# الدر المنضود

## فی حل

# سنن أبي داؤد

**افادات**:- حضرت مولانا محمد عاقل صیب

صدرمدرّس مظاهرالعلوم سهارنپور(هند)

**مترجمين**

[ رفقاء ] دار التصنيف والتحقيق

**زير نګراني**

مولانا شاه فيصل فاضل وفاق المدارس

| |
|---|
| **پښتو**.............................**شپږم جلد** |

**خصوصيات**

① دکتاب په اول کښې د اصول حديث مفيده مقدمه
② د بذل المجهود شرح أبي داود عربی شرحې خلاصه اونچوړ
③ د متن ټولو احاديث ته اعراب ورکول
④ د هرکتاب په اول کښې هغې سره متعلقه ضروری مباحث
⑤ د هر حديث تخريج د مصدر، كتاب او رقم په حوالې سره
⑥ د مشکلولغاتو حل
⑦ په فقهي مباحثوکښې د مذاهبو بيان
⑧ دفريق مخالف دلائل
⑨ د فريق مخالف ددلائلو ښخه جوابونه
⑩ د مذهب حنفي دلائل او وجوه ترجيح

**خورونکی**

**فيصل کتب خانه محله جنګی پيښور**

د کتاب نوم: الدرالمنضود فی حل سنن ابی داؤد
مؤلف: حضرت مولانا محمد عاقل صاحب دامت برکاتہم
زیر نگرانی:- مولانا شاہ فیصل فاضل وفاق المدارس
خورونکی : فیصل کتب خانه محله جنگی پیښور

## د ملاویدو پتې

- مکتبه فخر الدین رازی هرات [نمائنده فیصل کتبخانه در هرات]
- جدید اسلامی کتب خانه خوست
- المصباح کتب خانه کابل
- روغانیوال کتب خانه جلال آباد
- رحیمی کتب خانه خوست
- حرم کتب خانه کابل
- فلاح کتب خانه جلال آباد
- موئے مبارک کتب خانه غزنی
- مکتبه خواجه عبدالله انصاری غزنی
- واحدی کتب خانه خوست
- مکتبه رحمانیه قندهار
- دعوت کتب خانه جلال آباد
- تقوٰی کتب خانه جلال آباد
- نعمت کتب خانه کابل
- شریف الله کتب خانه کابل
- حقانیه کتب خانه گردیز
- مسلم کتب خانه جلال آباد
- مکتبه نعمانیه غزنی
- گودر کتب خانه جلال آباد
- مسلم کتب خانه خوست
- حاجی سردار کتب خانه کابل
- مکتبه رشیدیه کابل

## خپرونکې

# فیصل کتب خانه

مدینه تاور محله جنگی پیښور قصه خوانئ پیښور
موبائیل ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

# فهرست ابواب جلد ششم

| شمار | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |

| شمار | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

......

# باب في كراهية حرق العدو بالنار

## دشمن لره په اور باندې د سوزولو ممانعت

## په مسئلة الباب باندې كلام

دا د تعذيب بالنار مسئله ده، په دې كښې تفصيل دې كما قال ابن قدامة، چه په دشمن باندې د قابو موندلو نه پس د هغه په اور سيزل بالاتفاق ناجائز دی، او د قابو موندلو او د هغوی د قيد كولو نه مخكښ، په دې صورت كښې دا حكم دې چه كه بغير د تحريق نه په هغوی باندې قابو موندل ممكن وی نو بيا خو ئې تحريق جائز نه دې، البته په كوم صورت كښې چه بغير د تحريق نه قابو موندل ممكن نه وی نو په دې صورت كښې د اكثر اهل علم په نزد تحريق جائز دې. (تراجم بخاری ص ۱۱۶، ج ٤) د امام بخاری ترجمه ده ﴿لايعذب بعذاب الله﴾ د دې ترجمې د لاندې د سلفو اختلاف دې بعض صحابه كرام لكه عمر او ابن عباس دې ته مطلقا مكروه وائی، برابره خبره ده كه په سبب د كفر وی او كه د جنگ په حالت كښې وی، او يا قصاص وی، او بعض صحابه لكه علي او خالد بن الوليد رضی الله عنهم ورته جائز وائی، الی اخر ما ذكر، او ابن قدامه فرمائی چه اگر چه ابوبكر صديق رضی الله عنه د اهل ردة د تحريق حكم كړې وو او د هغه د دې حكم تعميل خالد بن الوليد رضی الله عنه كړې وو خو اوس په دې مسئله كښې هيڅ اختلاف نه دې پاتې، يعنی د دې په عدم جواز باندې اتفاق اوشو، (ای بعد اخذهم والقدوة عليهم) زه وايم، د كتاب الحدود د اولنی باب باب الحكم فيمن ارتد د لاندې دا روايت راروان دې، ﴿ان عليا عليه السلام احرق ناسا ارتدوا عن الاسلام فبلغ ذلک ابن عباس فقال : لم اكن لاحرقهم بالنار ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: لا تعذبوا بعذاب الله﴾ الحديث... دا خلق كوم چه علی رضی الله عنه سيزلي وو د دې مصداق فرقه سبائيه ده كوم چه د عبدالله بن سبا يهودی طرف ته منسوب دی دې خلقو د علی رضی الله عنه په باره كښې د الوهيت دعوی كړې وه، كما هو مذكور فی البذل ص ۱۲۱ ج ۵ فی كتاب الحدود.

[۲٦٧٣](۱) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا مُغِيرَةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْحِزَامِيُّ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ حَمْزَةَ الْأَسْلَمِيُّ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَّرَهُ عَلَى سَرِيَّةٍ قَالَ: فَخَرَجْتُ فِيهَا، وَقَالَ: "إِنْ وَجَدْتُمْ فُلَانًا فَأَحْرِقُوهُ بِالنَّارِ، فَوَلَّيْتُ فَنَادَانِي فَرَجَعْتُ إِلَيْهِ فَقَالَ: إِنْ وَجَدْتُمْ فُلَانًا فَاقْتُلُوهُ وَلَا تُحْرِقُوهُ، فَإِنَّهُ لَا يُعَذِّبُ بِالنَّارِ إِلَّا رَبُّ النَّارِ".

محمد بن حمزه اسلمي د خپل پلار نه روايت كوی چه نبی عليه السلام دلره په يو وړوكي لښكر باندې امير مقرر كړې وو دې وائی چه زه جهاد ته اووتم او نبی عليه السلام فرمائيلی وو كه فلانې مشرك موګير كړو نو په اور كښې ئې واچوئ او وئې سوزوئ، كله چه ماشاه كړه او روان شوم نو نبی عليه السلام بيا آواز اوكړو اوزه راوګرزيدم اوونې فرمائيل كه چرې فلانې موګير كړو نو مړئې كړئ او مه ئې سوزوئ ځكه چه په اور باندې څوك چالره عذاب نه شي وركولې علاوه د الله تعالی نه.

(۱): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۳٤٤۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/٤۹٤) (صحيح)

## شرح حدیث

حمزه بن عمرو الاسلمی رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ زه د یوې سریه امیر جوړ کړم او وې لیږلم، ما تلو په وخت ئې ماته اوفرمائیل ﴿ان وجدتم فلانا فاحرقوه بالنار﴾ چه که فلانې سړې ته بیا مومې نو هغه په اور اوسیزه، چه کله زه روان شوم نو زه ئې په اواز سره واپس راوبللم او وې فرمائیل چه که ته هغه سړې بیا مومې نو قتل ئې کړه، سیزه ئې مه ﴿فانه لا یعذب بالنار الا رب النار﴾ ګویا رسول الله ﷺ د خپل سابقه حکم نه رجوع اوفرمائیله، د فلانی نه مراد لکه چه په بعض روایاتو کښې تصریح ده هبار بن الاسود دې، د روایاتو نه معلومیږی چه د هبار یو ملګرې هم وو کوم چه د هبار سره شوې وو، دې دواړو ته د سزا ورکولو حکم په دې وجه شوې وو چه د رسول الله ﷺ لور سیده زینب رضی الله عنها چه کله د هغې خاوند ابو العاص بن الربیع رضی الله عنه د رسول الله ﷺ د معاهدې مطابق د مکې مکرمې نه د مدینې منورې طرف ته په سورلئ باندې کینولو سره روانه کړې وه، نو دې هبار چه د هغه سره یو بل سړې هم وو نو دې دواړو د زینب رضی الله عنها سورلئ اوبس په نیزه باندې وهلې وه او هغه ئې راغورځولې وه او دې وخت کښې زینب رضی الله عنها حامله هم وه، او هم د هغه ځائې نه د هغې بیماری شروع شوې وه، په بعض کتابونو کښې د هبار بن الاسود د ملګری نوم نافع بن عبد قیس راغلې دې، په بذل کښې د بعض کتابونو نه نقل کړې شوې دی چه دا سریه د چا چه دلته په حدیث الباب کښې ذکر دې د هبار سره ملاؤ نه شوه، لهذا هغه قتل هم نه شو، بلکه په روایاتو کښې دی چه هبار روستو اسلام قبول کړې وو، والله تعالی اعلم بالصواب، د سیده زینب رضی الله عنها دا واقعه په کتاب النکاح کښې هم په "رد زینب الی ابی العاص بن الربیع" والا حدیث د لاندې تیره شوې ده.

[۲۶۷۴](۱) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدٍ، وَقُتَيْبَةُ، أن الليث بن سعد. حدثهم عَنْ بُكَيْرٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: بَعَثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَعْثٍ فَقَالَ: "إِنْ وَجَدْتُمْ فُلَانًا وَفُلَانًا"، فَذَكَرَ مَعْنَاهُ.

دابوهریره نه روایت دې چه نبی علیه السلام مونږ په جنګ کښې اولیږلو اووئې فرمائیل که چرې فلانې فلانې موګیر کړو باقی روایت دتیر روایت په شان دې۔

[۲۶۷۵](۲) حَدَّثَنَا أَبُو صَالِحٍ مَحْبُوبُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا أَبُو إِسْحَاقَ الْفَزَارِيُّ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ الشَّيْبَانِيِّ، عَنِ ابْنِ سَعْدٍ، قَالَ: غَيْرُ أَبِي صَالِحٍ، عَنِ الْحَسَنِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ فَانْطَلَقَ لِحَاجَتِهِ فَرَأَيْنَا حُمَرَةً مَعَهَا فَرْخَانِ فَأَخَذْنَا فَرْخَيْهَا فَجَاءَتِ الْحُمَرَةُ فَجَعَلَتْ تَفْرِشُ فَجَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَنْ فَجَعَ هَذِهِ بِوَلَدِهَا رُدُّوا وَلَدَهَا إِلَيْهَا وَرَأَى قَرْيَةَ نَمْلٍ قَدْ حَرَّقْنَاهَا فَقَالَ مَنْ حَرَّقَ هَذِهِ قُلْنَا نَحْنُ قَالَ: "إِنَّهُ لَا يَنْبَغِي أَنْ يُعَذِّبَ بِالنَّارِ إِلَّا رَبُّ النَّارِ".

عبدالرحمن بن عبدالله دخپل پلارنه روایت کوی فرمائی چه مونږ دنبی علیه السلام سره په یوسفر کښې رو نبی علیه السلام دخپل څه حاجت دپاره. لاړو نو مونږه یوه مرغئ اولیدله چه دوه

(۱): صحيح البخاري/الجهاد ۱۴۹ (۳۰۱۶)، سنن الترمذي/السير ۲۰ (۱۵۷۱)، (تحفة الأشراف: ۱۳۴۸۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۰۷/۲، ۳۳۸، ۴۵۳) (صحيح)

(۲): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۹۳۶۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۰۴/۱)، ويأتي هذا الحديث في الأدب (۵۲۶۸) (صحيح)

بچي ورسره وو مونږ د هغې دواړه بچي اونيول نو مرغۍ راغله اوخپلې وزرې ئې اوغوړولې نبي ﷺ چه راغې وئې فرمائيل داچادردولې ده په خپلوبچوباندې بچي ورواپس کړئ دې ته او د ميږيانو کلې ئې هم اوليدو چه مونږ سوزولې وونبي ﷺ اوفرمائيل داچاسوزولې دې مونږ ورته اووئيل مونږه هغه اوفرمائيل پکارنه دي چه څوك په اور باندې عذاب ورکړې مګر پيدا کونکې داور.

## شرح حديث

﴿ كنا مع رسول الله صلى الله عليه وسلم فى سفر فانطلق لحاجته ﴾ د حديث مضمون دا دې چه عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائي چه مونږ د رسول الله ﷺ سره په يو سفر کښې وو چه کله په لاره کښې په يو منزل باندې کوز شو نو هغه خو د قضاء حاجت دپاره تشريف يوړلو، نو مونږ يوه مرغۍ اوليده، د هغې سره دوه بچي هم وو، مونږ د هغې بچي اونيول، لږ ساعت پس هغه مرغۍ يعنې د بچو مور راغله، او د چا په لاس کښې چه ئې بچي وو په د هغه دپاسه الوتله، لږ ساعت پس رسول الله ﷺ تشريف راوړلو او چه کله ئې د هغه بچو او مرغۍ منظر اوليدو نو وې فرمائيل چه دې ته چا تکليف ورکړې دې، د دې د بچو په وجه باندې، دا بچي د دې مور طرف ته واپس کړئ (په دې سفر کښې يوه واقعه خو دا راغله او بله واقعه هغه کومه چه راوي بيانوي) او هغه د ميږو سوړه اوليده چه مونږ هغه سيزلې وه نو په دې باندې هغه سوال اوکړو ﴿ من حرق هذه؟ ﴾ الى اخره... دا د مرغۍ او د هغې د بچو واقعه په يو بل سياق سره د کتاب الجنائز په شروع کښې هم راروانه ده، په هغې کښې بل څه اضافه هم ده، هم دغه شان د کتاب الادب په اخير کښې "باب فى قتل الذر" کښې هم دا حديث راروان دې.

## بَاب فِي الرَّجُلِ يُكْرِي دَابَّتَهُ عَلَى النِّصْفِ أَوِ السَّهْمِ

### خپل څاروې په کرايه ورکول په عوض د غنيمت د نيمې حصې يا د پوره حصې

دا مسئله دلته خو په خپل محل کښې ده او د دې نه مخکښې په کتاب الطهارة کښې د "باب ما ينهى عنه ان يستنجى به" د حديث د لاندې تبعا راغلې ده، د هغې طرف ته دې رجوع اوکړې شي، دا قسم اجاره د امام احمد او امام اوزاعى په نزد جائز ده، د جمهورو په نزد جائز نه ده، د جمهورو د طرف نه جواب په دغه مقام کښې تير شوې دې.

[٢٦٧٦](١) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الدِّمَشْقِيُّ أَبُو النَّضْرِ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ شُعَيْبٍ، أَخْبَرَنِي أَبُو زُرْعَةَ يَحْيَى بْنُ أَبِي عَمْرٍو السَّيْبَانِيُّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّهُ حَدَّثَهُ عَنْ وَاثِلَةَ بْنِ الْأَسْقَعِ، قَالَ: نَادَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ، فَخَرَجْتُ إِلَى أَهْلِي فَأَقْبَلْتُ وَقَدْ خَرَجَ أَوَّلُ صَحَابَةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَطَفِقْتُ فِي الْمَدِينَةِ أُنَادِي أَلَا مَنْ يَحْمِلُ رَجُلًا لَهُ سَهْمُهُ؟ فَنَادَى شَيْخٌ مِنَ الْأَنْصَارِ قَالَ لَنَا: سَهْمُهُ عَلَى أَنْ نَحْمِلَهُ عُقْبَةً وَطَعَامُهُ مَعَنَا، قُلْتُ: نَعَمْ، قَالَ: فَسِرْ عَلَى بَرَكَةِ اللَّهِ تَعَالَى قَالَ: فَخَرَجْتُ مَعَ خَيْرِ صَاحِبٍ حَتَّى أَفَاءَ اللَّهُ عَلَيْنَا، فَأَصَابَنِي قَلَائِصُ فَسُقْتُهُنَّ حَتَّى أَتَيْتُهُ فَخَرَجَ فَقَعَدَ عَلَى حَقِيبَةٍ مِنْ حَقَائِبِ إِبِلِهِ، ثُمَّ قَالَ: سُقْهُنَّ مُدْبِرَاتٍ ثُمَّ قَالَ: سُقْهُنَّ مُقْبِلَاتٍ، فَقَالَ: مَا أَرَى قَلَائِصَكَ إِلَّا كِرَامًا قَالَ: إِنَّمَا هِيَ غَنِيمَتُكَ الَّتِي شَرَطْتُ لَكَ قَالَ: خُذْ قَلَائِصَكَ يَا ابْنَ

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٧٤٧) (ضعيف)

أَخِي فَقِيرَ سَهْمِكَ أَرَدْنَا.

دواثلة بن اسقع رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ په غزوه تبوك كښې آواز اوكړو، دتبوك په جنګ كښې دمجاهدینو دراجمع كولو دپاره اوزه خپل كور ته تلې وم دهغه ځائې نه چه راتلم نو اولنې صحابي وتلې وو ماپه ښاركښې اعلان شروع كړو چه ایاداسې څوك شته چه دمال غنيمت دحصې په عوض كښې څوك په سورلئ سور كړئ یو بوډا انصاري اووئيل خه نودهغه حصه به مونږه اخلو اودې به دځان سره سورور او یوځائې به خوراك كوو ما اووئيل بالكل تيك ده ماته قبوله ده نوبياهغه بوډا اووئيل په الله تعالى باندې اعتماد كوو اوهغه اووئيل البته زه دیوبهترين ملګري سره اووتلم تردې چه الله تعالى مونږ ته مال غنيمت راكړو اوزماپه حصه كښې یوڅو تيز رفتاره اوښې راغلي نوماهغه رواني كړي اودده خواته راغلمه اودې وتلې وو اودخپل اوښ په شاته حصه باندې ناست وو اووئې وئيل دا اوښان په ما پسې شاته راشره او راځه اوددې نه پس ئې اووئيل زما خيال دې چه ستا اوښې ډيري ښې اوښې دي ما اووئيل داخوستا مال دې دكوم چه ما شرط مقرركړې وو هغه اووئيل اې زما وراره خپله حصه واخله زمونږه مقصد دا حصه اخستل نه وو.

## شرح حديث

د حديث مضمون دا دې چه سيدنا واثله بن الاسقع رضي الله عنه فرمائی چه د رسول الله ﷺ د طرف نه غزوه تبوک ته د تلو اعلان اوشو، زه اعلان اوریدلو سره خپل كور ته لاړم او هلته تلو سره زه هم دې طرف ته متوجه شوم، خو ډیر صحابه كرام وتلې وو (د هغوی سره چونكه سورلئ نه وه په دې وجه هغوی وئيل چه) زه د مدينې په كوڅو كښې اعلان كونكې ګرځيدم (الا من يحمل رجلا له سهمه) د رجل نه مراد د هغه خپل ذات دې، چه څوک شته چه ما په خپله سورلئ باندې سور كړی په داسې طريقه چه زما د مال غنيمت حصه به د هغه دپاره وی، ګويا د غنيمت حصه ئې د سورلئ اجرت مقرر كړو (او ظاهره ده چه د غنيمت حصه معلومه نه ده چه حاصليږی به یا نه او نه ئې مقدار معلوم دې لهذا دا (اجاره په اجرت مجهوله سره شوه) زما په دې أعلان باندې یو انصاری شيخ لبيک اووې، يعنی هغه د دې دپاره تيار شو او هغه اووې چه زما دپاره به د هغه حصه وی په داسې طور چه زه به دې په خپله سورلئ باندې سوروم په نوبت نوبت، او د هغې خوراک به هم مونږ سره وی، واثله فرمائی چه ما اووې چه خوښه مې ده، شيخ انصاری اووې چه بيا څه چه څو د الله پاک په نوم، واثله فرمائی چه زه د ډير ښه ملګری سره اوتلم، مطلب دا دې چه ما هغه ډير ښه بيا موندلو، تردې چه الله پاک مونږ ته مال غنيمت راكړو چه په هغې كښې بعض اوښانې ملاؤ شوې، ما هغه دې شيخ انصاری ته راوستلې هغه هم د دننه نه بهر راغلو، هغه د دې اوښانو نه د يو اوښ په كيجاوه باندې كيناستلو او د كيناستلو نه پس هغه انصاری ماته اووې چه دا خو لړ په شا بوځه، بيا ئې اووې چه اوس ئې لړ وړاندې بوځه (يعنی په هغه اوښانو باندې د ازميښت دپاره) بيا هغه انصاری ماته اووې چه دا ستا اوښانې خو ډيرې غوره دی، واثله فرمائی چه ما ورته اووې چه دا خو ستاسو دی لكه چه ما شرط لګولې وو، هغه انصاری

راته په جواب کښې اووې چه ګرانه! اونیسه دا خپلې اوښې ﴿ فغير سهمك اردنا ﴾ زمونږ مطلوب ستا دا اوښې خو نه دی، زمونږ مراد خو بل څه دی یعنی د اخرت ثواب.

د اجاره کوم صورت چه دلته مونډلې شوې دې هغه من حيث المسئلة والفقه، د ائمه ثلاث او جمهورو خلاف دې، د دې یو جواب دا کیدې شی چه دا د صحابی فعل دې، مرفوع حدیث نه دې فلا حجة فيه، امام احمد رحمه الله د دې د جواز قائل دې.

## یو اشکال او د هغې جواب

د دې نه پس ځان پوهه کړئ چه دلته یو اشکال ظاهر دې هغه دا چه په غزوه تبوک کښې نه خو قتال ته خبره رسیدلې وه او نه مال غنیمت حاصل شوې وو، نو بیا دا څنګه غنیمت دې د دې څه صورت شو، د دې جواب دا کړې شوې دې چه ډیر کرته په لویو لویو غزواتو کښې داسې کیږی چه یو لښکر یوځائې ته د جنګ دپاره روان دې چه د هغه سفر اوږد دې، په لاره کښې د لښکر د امیر رائې دا وی چه نزدې چه کومه کلې دې هلته په دې لښکر کښې یوه دسته جوړولو سره د هغې د فتح کولو دپاره اولیږلې شی، دا موقع پکښې کله کله راځی، پس لیکلې دی چه په غزوه تبوک کښې هم داسې شوې وو چه تبوک ته نزدې یو کلې واقع دې، د دومة الجندل په نوم باندې، چه د هغې رئیس او امیر د اکیدر په نوم باندې سړې وو، په حاشیه د نسائی کښې لیکلې شوې دی چه دا لوئې زمیندار او نواب وو، الحاصل رسول الله ﷺ د قیام تبوک دوران خالد بن الولید ته یوه دسته ورکړه او د هغې امیر ئې جوړ کړو او د هغې طرف ته ئې اولیږلو، سیدنا خالد رضی الله عنه په هغه اکیدر باندې قابو بیا مونډلو او هغه ئې قید کړو، د هغه اوږده قصه ده، د سیرة په کتابونو کښې دې اوکتلې شی، الغرض د دومة الجندل د فتح کولو نه پس د اکیدر سره مصالحت شوې وو، کوم مال چه په مصالحت کښې مقرر شوې وو د هغې مقدار په کتابونو کښې دا لیکلې شوې دې، ابل دوه زره او فرس اته سوه. دروع (زغرې) څلور سوه، غشی څلور سوه، نو د حصول غنیمت دا صورت شوې وو، د دې واقعې ذکر په ابوداود کښې وړاندې په کتاب الخراج کښې په باب في اخذ الجزية کښې داسې راروان دې: ﴿أَنَّ النَّبِی -صلى الله عليه وسلم- بَعَثَ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيدِ إِلَى أُكَيْدِرِ دُومَةَ فَأُخِذَ فَأَتَوْهُ بِهِ فَحَقَنَ لَهُ دَمَهُ وَصَالَحَهُ عَلَى الْجِزْيَةِ﴾ او د دې تفصیل هلته په بذل کښې حضرت لیکلې دې چه د هغې خلاصه په سیرة المصطفی ص ۹۲ ج ۳ کښې داسې لیکلې شوې ده، چه د تبوک نه رسول الله ﷺ خالد د څلور سوه او شلو شهسوارانو سره د اکیدر طرف ته اولیږلو کوم چه د هرقل د طرف نه د دومة الجندل حاکم او ګورنر وو، رسول الله ﷺ د لیږلو په وخت خالد رضی الله عنه ته اوفرمائیل چه هغه به تاسو ته د ښکار په حالت کښې ملاویږی هغه قتل کوئ مه بلکه ګرفتارولو سره ئې ماته راولئ، او! که هغه انکار اوکړو نو بیا ئې قتل کړئ، خالد په داسې شپه هلته اورسیدو چه سپوږمۍ روښانه وه، د ګرمۍ موسم وو او اکیدر او د هغه ښځه د قلعه په برج باندې ناست سندرې اوریدلې، ناڅاپه یوه ځنګلی غوا راغله او د قلعه د پاټک سره ئې ټکره اووهله (د دې غوا ښکار ډیر ګران وی هغه ډیره تیزه منډه وهی، د هر یو ښکاری په قابو کښې هم نه راځی، د دې د ښکار دپاره د هغه ځائې

ښکاري خلق اسونو ته ټرينګ ورکوي نخو دې وخت کښې د الله پاک شان ته اوګوره چه الله پاک ته د دې سريه د فتح انتظام مقصود وو نو هغه غوا خپله راغله او د هغه قلعه د دراوزې سره ئې سر وهلو، اکيدر فورا د خپل رور او څو خپلوانو سره د ښکار دپاره راکوز شو او په اسونو باندې سوريدلو سره په غوا پسې شو لږ مخکښې تلې وو چه د خالد بن الوليد رضي الله عنه ښکار شو، خالد اووې چه زه تا ته د قتل نه پناه درکولې شم په دې شرط چه ته ما سره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضريدل منظور کړې، اکيدر دا خبره منظوره کړه، خالد بن الوليد د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، اکيدر دوه زره اوښان او اته سوه اسونه او څلور سوه زغرې او څلور سوه نيزې ورکولو سره صلح اوکړه. اهـ

**د يو بل سوال جواب**

بيا دلته يو سوال واردېږي چه د غزوه تبوک د لښکر تعداد خو تقريبا ديرش زره وو او دا قلائص کوم چه د اکيدر نه حاصل شوې وو د هغې تعداد صرف دوه زره وو نو د واڅله په حصه کښې څو اوښان څنګه راغلل ځکه چه مال غنيمت خو برابر تقسيمېږي؟ د دې جواب دا دې لکه چه په بعض احاديثو کښې راتلونکې دې چه کله په يو لښکر کښې يوه سريه ويستلو سره ليږلې شي نو په حاصليدونکي غنيمت کښې خاص اصحاب سريه ته د مال غنيمت ثلث يا ربع ورکولې شي، او ما بقي په جيش باندې واپس کولې شي، لهذا کيدې شي چه په دې ثلث مال غنيمت کښې د واڅله په حصه کښې کوم چه په دې سريه کښې شريک وی دومره اوښان راغلل.

## بَابٌ فِي الْأَسِيرِ يُوثَقُ
### قيدی به مضبوط تړلې شي

يعنی کافر قيدی تړلې کيدې شي يا نه؟ پس د حديث الباب نه د دې جواز معلومېږي.

[۲۶۷۷] (۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ يَعْنِي ابْنَ سَلَمَةَ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ زِيَادٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "عَجِبَ رَبُّنَا عَزَّ وَجَلَّ مِنْ قَوْمٍ يُقَادُونَ إِلَى الْجَنَّةِ فِي السَّلَاسِلِ".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه دنبی عليه السلام نه مې اوريدلی دی چه الله تعالی تعجب کوي دهغه خلقو نه چه په زنځيرونو به تړلې شوي جنت ته بوتلې شي.

﴿ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ « لَقَدْ عَجِبَ رَبُّنَا عَزَّ وَجَلَّ مِنْ قَوْمٍ يُقَادُونَ إِلَى الْجَنَّةِ فِي السَّلَاسِلِ ﴾ يعنی الله پاک خوښوی هغه خلق کوم چه د جنت طرف ته بوتللې شی په زنځيرونو او بيړو کښې تړلی، په حديث کښې د دې نه مراد هغه کافر دی کوم چه مسلمانان اونيسي او د دار الاسلام طرف ته ئې راولی او بيا هغه دلته په اسلام سره مشرف شی، نو ګويا هغوی تړلو سره د اسلام طرف ته راوستلې شی او د اسلام طرف ته راتلل په جنت کښې داخليدل دی، لهذا وئيلې کيدې شی چه هغوی تړلو سره جنت ته بوتلې شی، د دې حديث نه

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۴۳۶۴)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الجهاد ۱۴۴ (۳۰۱۰)، مسند احمد (۲/۳۰۲، ۴۰۶) (صحيح)

د کافر قیدی د ربط جائز کیدل ثابتیږي، والحدیث اخرجه البخاری، قاله الشیخ محمد عوامه.

[٢٦٧٨]()حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ عَمْرِو بْنِ أَبِي الْحَجَّاجِ أَبُو مَعْمَرٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ يَعْقُوبَ بْنِ عُتْبَةَ، عَنْ مُسْلِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ جُنْدُبِ بْنِ مَكِيثٍ، قَالَ: بَعَثَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَبْدَ اللهِ بْنَ غَالِبٍ اللَّيْثِيَّ فِي سَرِيَّةٍ، وَكُنْتُ فِيهِمْ وَأَمَرَهُمْ أَنْ يَشُنُّوا الْغَارَةَ عَلَى بَنِي الْمُلَوَّحِ بِالْكَدِيدِ، فَخَرَجْنَا حَتَّى إِذَا كُنَّا بِالْكَدِيدِ لَقِينَا الْحَارِثَ بْنَ الْبَرْصَاءِ اللَّيْثِيَّ فَأَخَذْنَاهُ فَقَالَ: إِنَّمَا جِئْتُ أُرِيدُ الْإِسْلَامَ، وَإِنَّمَا خَرَجْتُ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَا: إِنْ تَكُنْ مُسْلِمًا لَمْ يَضُرَّكَ رِبَاطُنَا يَوْمًا وَلَيْلَةً، وَإِنْ تَكُنْ غَيْرَ ذَلِكَ نَسْتَوْثِقْ مِنْكَ فَشَدَدْنَاهُ وِثَاقًا.

دجند بن مکیث رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه نبی علیه السلام عبد الله بن غالب لیثي په یوه غضوه کښې اولیږلو اوزه هم په هغوی کښې ووم اودوی ته ئې حکم اوکړو چه دیوطرف نه حمله اوکړي په بنی ملوح خلقو باندې په کدید مقام کښې نومونږ روان شو تردې چه کدید ته اورسیدو اود حارث بن برصاع لیثي سره مخامخ شو نومونږه هغه اونیوو نوهغه اوونیل زه خوداسلام راوړو په اراده باندې راغلې یم اوزه خو درسول الله په اراده راوتلې یم مونږ ورته اوونیل که چرې ته مسلمان ئې نو زمونږ تړل به تاته په دې یوه شپه او ورځ کښې ضرر اونه رسوي اوکه چرې مسلمان نه ئې مونږه تا مضبوط تړو، بیا مونږ هغه لره مضبوط اوتړلو.

## مضمون حدیث

قوله: عَنْ جُنْدُبِ بْنِ مَكِيثٍ، قَالَ: بَعَثَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَبْدَ اللهِ بْنَ غَالِبٍ [٢] اللَّيْثِيَّ فِي سَرِيَّةٍ، وَكُنْتُ فِيهِمْ..الخ:

جندب بن مکیث فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم عبد الله بن غالب رضی الله عنه د یوې سریه امیر جوړ کړو او بنو الملوح ته ئې د قتال دپاره مقام کدید طرف ته اولیږلو، جندب وائی چه مونږ د کدید طرف ته روان شو نو (لقینا الحارث بن البرصاء اللیثی) [٣] هلته مونږ د حارث بن الصبر صالیثی سره مخامخ شو، مونږ هغه اونیولو، هغه اوویې چه زه خو د اسلام په اراده باندې راغلې یم، اوس زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې د تلو دپاره وتلې یم (او هغه خلقو د هغه د تړلو اراده اوکړه) پس مونږ هغه ته اوویې چه که واقعی ته مسلمان شوې ئې نو زمونږ تا لره صرف د یوې شپې او یوې ورځې دپاره تړل څه نقصان دي، او که داسې نه وی، یعنی واقعی ستا اراده د اسلام قبلولو نه وی نو مونږ خپل اطمینان غواړو، ځکه چه په دې صورت کښې دا تړل یقینا مفید او قرین قیاس دی، پس مونږ هغه په ښه طریقه اوتړلو.

د دې واقعې نه هم ظاهر دي چه د ربط الاسیر جواز معلومیږی.

[١]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٣٢٧٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٦٧/٣، ٤٦٨) (ضعيف)

[٢] ) قيل هو الصحيح وقيل الصواب غالب بن عبدالله واليه ميل الحافظ وقبله المنذري حيث قال: الصواب غالب بن عبدالله.

[٣] ) دا دفاعل کیدو په وجه مروع هم کیدې شي او منصوب هم په وجه د مفعولیت، ځکه چه ددې نه مخکښې کوم فعل دې یقینا که هغه مفرد صیغه اوونیلې شی نو الحارث به فاعل وی، اوکه یقینا په صیغه دجمع متکلم اوونیلې شی نوپه دې صورت کښې به الحارث مفعول به وی.

[۲۶۷۹]([1])حَدَّثَنَا عيسى بن حماد المصري، وَقُتَيْبَةُ، قَالَ قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ يَقُولُ: بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْلًا قِبَلَ نَجْدٍ فَجَاءَتْ بِرَجُلٍ مِنْ بَنِي حَنِيفَةَ يُقَالُ لَهُ: ثُمَامَةُ بْنُ أُثَالٍ، سَيِّدُ أَهْلِ الْيَمَامَةِ فَرَبَطُوهُ بِسَارِيَةٍ مِنْ سَوَارِي الْمَسْجِدِ فَخَرَجَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: "مَاذَا عِنْدَكَ يَا ثُمَامَةُ؟"، قَالَ: عِنْدِي يَا مُحَمَّدُ خَيْرٌ إِنْ تَقْتُلْ تَقْتُلْ ذَا دَمٍ وَإِنْ تُنْعِمْ تُنْعِمْ عَلَى شَاكِرٍ وَإِنْ كُنْتَ تُرِيدُ الْمَالَ فَسَلْ تُعْطَ مِنْهُ مَا شِئْتَ فَتَرَكَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى إِذَا كَانَ الْغَدُ، ثُمَّ قَالَ لَهُ: مَا عِنْدَكَ يَا ثُمَامَةُ؟ فَأَعَادَ مِثْلَ هَذَا الْكَلَامِ فَتَرَكَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى كَانَ بَعْدَ الْغَدِ فَذَكَرَ مِثْلَ هَذَا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَطْلِقُوا ثُمَامَةَ، فَانْطَلَقَ إِلَى نَخْلٍ قَرِيبٍ مِنَ الْمَسْجِدِ فَاغْتَسَلَ فِيهِ ثُمَّ دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَقَالَ: أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ" وَسَاقَ الْحَدِيثَ، قَالَ عِيسَى: أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ، وَقَالَ ذَا ذِمٍّ.

دسعید بن أبی سعید نه روایت دي فرمائی چه دابوهریرة رضی الله عنه نه مي اوریدلی دی چه نبی علیه السلام دنجدمقام طرف ته یولښکر اولیږو نو دبنی حنیفه قبیلې یوکس ئې په قید کښې راوستو چه ثمامة بنت اثال ورته وئیلې شو اودیمامې سردار وو اودمسجد نبوی په یوې ستن پورې ئې اوترو نبی علیه السلام دده طرف ته ورغی او ورته ئې اووئیل څه درسره دي اې ثمامه یعنی ستاخه حال دې پائې داسې اووئیل چه ستاپه ګمان کښې زماسره څه دي یعنی زه به ستاسره څه معامله کوم؟ ده اووئیل اې محمد زماسره. ډیر خیر دي اوډیر مال راسره دی که چرې مړ دي کړم نویوګنهګاربه مړ کړې اوکه چرې احسان دي اوکړو په ما باندې نواحسان به اوکړې په یوشکرګذار باندې اوکه منال دي پکاروي نو اوغواړه چه درکړم څومره چه دي خوښه وي نونبی علیه السلام ده لره په هم دي حال پریخودو کله چه بله ورځ شوه نوبیا ئې ترې دتیرې ورځې په شان سوال اوکړو او ده هم هغسې. جواب ورکړو نونبی علیه السلام ده لره په هم دي حال پریخودو کله چه بله ورځ شوه نوبیا ئې ترې دتیرې ورځې په شان سوال اوکړو او ده هم هغسې جواب ورکړو نبی علیه السلام اوفرمائیل ثمامه پریږدئ کله چه پریخود شو نومسجد ته نزدې دکجورو باغ وو دې ورغې اوهلته ئې غسل اوکړو او دوباره جومات ته راغې او وئې وئیل«أشهد أن لا إله إلا الله وأشهد أن محمدًا عبده ورسوله» زه ګواهي کوم چه دالله نه علاوه بل معبود نشته او محمد ﷺ دالله پاك بنده اورسول دې، اوحدیث ئې تر اخره بیان کړو، اودلیث په روایت کښې د ذادم په ځائې باندې ذادم لفظ نقل شوې دي.

﴿ بعث رسول الله صلى الله عليه وسلم خيلا قبل نجد ﴾ الخ یعنی رسول الله ﷺ یوه دسته د نجد طرف ته اولیږله (د دې نه مراد د محمد بن مسلمه سریه ده) نو هغه سریه د قبیله بنو حنیفه یو سړې راوستلو چه د هغه نوم ثمامه بن اثال رضی الله عنه وو کوم چه د اهل یمامه سردار وو دې خلقو هغه راوستلو او په مسجد نبوی کښې ئې په یوه ستن پورې اوتړلو (د دې نه ربط الاسیر ثابت شو لهذا د ترجمة الباب مطابقت هم د دې جزء سره دې) وړاندې په روایت کښې دی چه کله په رسول الله ﷺ باندې ورتیر شو نو رسول الله ﷺ د هغه طرف ته متوجه کیدو سره تپوس

[1]): صحيح البخاري/الصلاة ٧٦ (٤٦٢)، والمغازي ٧٠ (٤٣٧٢)، صحيح مسلم/الجهاد ١٩ (١٧٦٤)، سنن النسائي/الطهارة ١٢٧ (١٨٩)، المساجد ٢٠ (٧١٣)، (تحفة الأشراف: ١٣٠٠٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٥٢/٢) (صحيح)

اوکړو ﴿ما ذا عندک يا ثمامة﴾ چه اې ثمامه ستا په ذهن کښې څه دي يعنی د اسلام قبلولو اراده دې شته يا نه؟ يا د دې جملې مطلب دا دې چه ستا ګمان زمونږ په باره کښې څه دې، چه مونږ به تا سره څه کوو، نو هغه جواب ورکړو: ﴿عندی يا محمد خير ان تقتل تقتل ذا دم وان تنعم تنعم علی شاکر﴾ ثمامه په سنجيده لهجه کښې ډير مناسب جواب ورکړو چه اې محمد ﷺ ما سره خير دې، يعنی د اسلام راوړلو اراده ده، او وړاندې ئې عرض اوکړو چه که تاسو ما قتل کوئ نو داسې سړې به قتل کړئ کوم چه د وينې خاوند دې، نو داسې سړې به قتل کړئ چه د هغه د وينې بدله اخستلو والا شته. يعنی هغه متې لرې څکه چه دې د اهل يمامه سردار وو كما تقدم فی الرواية، د دې نه روستو هغه اووې: او که تاسو په ما باندې انعام کوئ نو په داسې سړي به انعام کوئ کوم چه به ستاسو شکر ګزار وی، بيا وړاندې هغه يوه خبره اوکړه ډيره غلطه چه که تاته د مال ضرورت وی نو اوايئ تاسو ته به مال درکولې شی څومره چه ستاسو پکار وی، رسول الله ﷺ په خاموشئ سره د هغه جواب واوريدو او هغه ئې پريخودلو او وړاندې لاړو، وړاندې په روايت کښې دی چه کله بله ورځ راغله نو رسول الله ﷺ د هغه په خوا باندې راتير شو، په دويمه ورځ هم دغه شان سوال او جواب اوشو او بيا رسول الله ﷺ هغه لره پريخودلو سره وړاندې لاړو، ترديې چه کله دريمه ورځ شوه نو بيا هم دا سوال او جواب اوشو، خو دې ځل رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿اطلقوا ثمامة﴾ چه ثمامه دې پريخودلې شی، هغه چه پرانستلې شو نو په تندئ مسجد ته نزدې يو باغ ته لاړو چرته چه اوبه وې او هلته ئې غسل اوکړو او بيا ئې په مسجد کښې کلمه شهادت اولوستله: اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمدا عبده ورسوله (صلی الله عليه وسلم).

عيسى بن حماد، د مصنف استاد فرمائی چه په يو روايت کښې ﴿ذا دم﴾ په ځائې ﴿ذا ذم﴾، ذم په معنی د ذمه او حرمت دې، ای ذی حرمة عند قومه يعنی که ته ما قتل کوې نو داسې سړې به قتل کړې کوم چه د خپل قوم معزز او محترم دې. والحديث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی قاله المنذری.

[۲۶۸۰](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو الرَّازِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنَا سَلَمَةُ يَعْنِي ابْنَ الْفَضْلِ، عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَعْدِ بْنِ زُرَارَةَ، قَالَ: قُدِمَ بِالْأُسَارَى حِينَ قُدِمَ بِهِمْ وَسَوْدَةُ بِنْتُ زَمْعَةَ عِنْدَ آلِ عَفْرَاءَ فِي مُنَاخِهِمْ عَلَى عَوْفٍ، وَمُعَوِّذٍ ابْنَيْ عَفْرَاءَ قَالَ: وَذَلِكَ قَبْلَ أَنْ يُضْرَبَ عَلَيْهِنَّ الْحِجَابُ قَالَ: تَقُولُ سَوْدَةُ: وَاللَّهِ إِنِّي لَعِنْدَهُمْ إِذْ أُتِيتُ، فَقِيلَ: هَؤُلَاءِ الْأُسَارَى قَدْ أُتِيَ بِهِمْ فَرَجَعْتُ إِلَى بَيْتِي وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيهِ وَإِذَا أَبُو يَزِيدَ سُهَيْلُ بْنُ عَمْرٍو فِي نَاحِيَةِ الْحُجْرَةِ مَجْمُوعَةٌ يَدَاهُ إِلَى عُنُقِهِ بِحَبْلٍ، ثُمَّ ذَكَرَ الْحَدِيثَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهُمَا قَتَلَا أَبَا جَهْلِ بْنَ هِشَامٍ وَكَانَا انْتَدَبَا لَهُ وَلَمْ يَعْرِفَاهُ وَقُتِلَا يَوْمَ بَدْرٍ.

د يحی بن عبد الله بن عبد الرحمن بن سعد بن زراره رضی الله عنه نه روايت د فرمائی چه هرکله چه دعضوه بدر قيديان راوستې شو نو سودة بن زمعة د عفراء دخاندان سره وه چرته چه دهغوی اوښان به کينولې شو دعروف بن عفره او معوض بن عفراء سره ترڅو چه دحجاب او پردې

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۸۹۷) (ضعيف)

حکم نه وو نازل شوې نوسوده وائی چه زه ددوی سره وم او وويلې شول دا قيديان راوستلې شوي دي زه خپل کورته راغلم او رسول الله هلته موجود وو او ابويزيد سهيل بن عمرو دحجرې په يوګوټ کښې هم موجود وو اودهغه دواړه لاسونه په څټ پورې په يوپړي باندې ترلي شوي وو اوبيا ئې پوره حديث ذکرکړو، ابوداود وائی عوف بن عفراء او معوذ بن عفراء هغه کسان دي چاچه ابوجهل بن هشام وژلې وو اوهغه ته نه رسيدل ليکن دهغه طرف ته روان وو اودې ئې دبدر په ورځ قتل کړو

﴿ قال : قدم بالاسارى حين قدم بهم وسودة بنت زمعة الخ ﴾ راوی وائی : چه کوم وخت کښې د بدر قيديان مدينې منورې ته راوستلې شو نو هغه وخت اتفاقی ام المومنين سيده سودةؓ د آل عفراء کره د هغوی د اوښانو په غوجل کښې، يعنی د هغوی په قيامګاه کښې، د عوف بن عفراء او معوذ بن عفراء سره نزدې ناسته وه، خو په دې ترجمه باندې دا اشکال دې چه عوف او معوذ دواړه خو په جنګ بدر کښې شهيدان شوې وو لهذا ﴿ على عوف ومعوذ ﴾ به د هغې د ظاهر نه لرې کولو سره بله معنی مراد کړې شی، يعنی سيده سودةؓ دې وخت د آل عفراء په وخت ولاړه وه، د عوف او معوذ په سلسله کښې يعنی تعزيت وغيره، د دې خلاف ظاهر تاويل حاجت زمونږ د موجوده نسخې په اعتبار سره دې چه په هغې کښې ﴿ فی مناختهم ﴾ په خاء معجمعه سره دې. او په بعض نسخو کښې دا لفظ د خاء معجمه په ځائې په حاء مهمله سره دې ﴿ فی مناحتهم ﴾ يعنی محل نوح او نوحه خوانی مجلس، په دې صورت کښې به هيڅ قسم اشکال نه وی [1] ﴿ قال وذلک قبل ان يضرب عليهن الحجاب ﴾ دلته چونکه دا سوال کيدې شی چه سيده سودة د آل عفراء کره تلې وه نو د دې جواب راوی دا ورکړو چه دا د حجاب نه مخکښې واقعه ده، سيده سودةؓ فرمائی چه کله هلته ناسته اوم نو هلته څه ګورم چه د جنګ بدر يو کافر قيدی ابو يزيد سهيل بن عمروؓ د حجرې په مينځ کښې تړلې شوې دې، چه د هغه لاسونه دسټ سره تړلې شوې وو ،ددې حديث داخرى جملې نه دربط الاسيرثبوت ملاويږی ﴿ ثم ذکر الحديث ﴾ مصنف فرمائی چه وړاندې په حديث کښې نور هم څه دی کوم چه مونږ اختصارا حذف کړل. ﴿ قال ابوداود: وهما قتلا ابا جهل بن هشام وکانا انتدبا له ولم يعرفاه وقتلا يوم بدر ﴾ امام ابوداود کله کله د حديث نه روستو تبعا او استطرادا څه علمی فائده ذکر کوی چه د د هغې مثالونه به وړاندې هم راشی، او يو د هغې نه دا مقام دې.

بهرحال په حديث الباب کښې د عوف بن عفراء او معوذ بن عفراء رضی الله عنهما ذکر وو نو د دې دواړو په پاره کښې مصنف فرمائی چه دواړو په جنګ بدر کښې د مشرکانو سردار ابوجهل قتل کړې وو، او دې دواړو د هغه د قتل اراده کړې وه خو هغه ئې نه پيژندلوو پس قصه مشهوره ده چه دې دواړو انصاری هلکانو د سيدنا عبدالرحمن بن عوفؓ نه په جنګ بدر کښې تپوس اوکړو چه ابوجهل چرته دې، هغه تپوس اوکړو چه ته

[1] نبه علي اختلاف النسخ الشيخ محمد عوامه في تحقيقه لسنن ابي داؤد، جزاه الله تعالي)

څه دپاره د هغه تپوس کوي؟ هغه اووې چه مونږ به هغه ختمو، هغه د هغوی په بهادرئ ډیر حیران شوچه دوه کم عمره انصاری هلکان د قریشو د سرداردقتل سوچ کوی، خیر بهرحال هغه ورته اوفرمائیل چه کله ماته په نظر راشي نو زه به ئې درته اوښائم، پس چه کله ئې په هغه باندې نظر پریوتلو نو هغه د دې خبر هغوی ته ورکړو الی اخر القصة....

## د ابو جهل د قاتلانو تعیین

امام ابوداود په دې خپل کلام کښې د قاتلین ابوجهل نشاندهي کړې ده، د عوف او معوذ په باره کښې فرمائی چه دې دواړو قتل کړې دې، دا د مشهورې خبرې خلاف ده، د صحیحین په روایاتو کښې د ابو جهل په قاتلانو کښې دا درې نومونه ملاویږی، معاذ بن عفراء، معوذ بن عفراء او معاذ بن عمرو بن الجموح (۱) د عوف بن عفراء نوم نشته، حضرت په بذل کښې د عوف رضی الله عنه ذکر شاذ منلې دې. حضرت لیکی ﴿ولم ار احدا ذکر عوفا فیمن قتل ابا جهل الا ابوداود وابن سعد ﴾ زه وائم چه دغه شان د هغه په قاتلینو کښې د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نوم د صحیحین په روایاتو کښې موجود دې خپله په ابوداود کښې هم وړاندې د هغه ذکر راروان دې، خو په شروع کښې په هغه باندې حمله کونکی هم هغه درې کسان دی د چا ذکر چه پورته راغلو، عبدالله بن مسعود رضی الله عنه روستو هغه لره قتل کونکې دې، هسې د دې سلسلې په روایاتو کښې کافی اختلاف او انتشار دې لکه چه د بخاری د شروح نه معلومیږی، او په دې روایات مختلفه کښې تطبیق باندې هم حافظ وغیره تفصیلی کلام کړې دې، خو د عوف بن عفراء ذکر څنګه امام ابوداود رحمه الله کړې دې، حافظ او هم دغه شان علامه عینی داسې نه دې کړې. په لامع الدراری او الحل المفهم کښې هم په دې باندې ډیر بحث کړې شوې دې.

## بَابٌ فِي الْأَسِيرِ يُنَالُ مِنْهُ وَيُضْرَبُ وَيُقَرَّرُ

### د قیدی د وهلو اود رټلو بیان

[۲۶۸۱] (۲) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، قَالَ: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَدَبَ أَصْحَابَهُ فَانْطَلَقُوا إِلَى بَدْرٍ فَإِذَا هُمْ بِرَوَايَا قُرَيْشٍ فِيهَا عَبْدٌ أَسْوَدُ لِبَنِي الْحَجَّاجِ، فَأَخَذَهُ أَصْحَابُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَعَلُوا يَسْأَلُونَهُ أَيْنَ أَبُو سُفْيَانَ؟ فَيَقُولُ: وَاللَّهِ مَا لِي بِشَيْءٍ مِنْ أَمْرِهِ عِلْمٌ وَلَكِنْ هَذِهِ قُرَيْشٌ قَدْ جَاءَتْ فِيهِمْ أَبُو جَهْلٍ، وَعُتْبَةُ، وَشَيْبَةُ ابْنَا رَبِيعَةَ، وَأُمَيَّةُ بْنُ خَلَفٍ فَإِذَا قَالَ لَهُمْ ذَلِكَ ضَرَبُوهُ فَيَقُولُ: دَعُونِي، دَعُونِي أُخْبِرْكُمْ فَإِذَا تَرَكُوهُ قَالَ: وَاللَّهِ مَا لِي بِأَبِي سُفْيَانَ مِنْ عِلْمٍ، وَلَكِنْ هَذِهِ قُرَيْشٌ قَدْ أَقْبَلَتْ فِيهِمْ أَبُو جَهْلٍ، وَعُتْبَةُ، وَشَيْبَةُ ابْنَا رَبِيعَةَ، وَأُمَيَّةُ بْنُ خَلَفٍ، قَدْ أَقْبَلُوا وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي وَهُوَ يَسْمَعُ ذَلِكَ فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ: وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ إِنَّكُمْ لَتَضْرِبُونَهُ إِذَا صَدَقَكُمْ وَتَدَعُونَهُ إِذَا كَذَبَكُمْ، هَذِهِ قُرَيْشٌ قَدْ أَقْبَلَتْ لِتَمْنَعَ أَبَا سُفْيَانَ قَالَ أَنَسٌ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هَذَا مَصْرَعُ فُلَانٍ غَدًا وَوَضَعَ يَدَهُ عَلَى الْأَرْضِ وَهَذَا مَصْرَعُ فُلَانٍ غَدًا وَوَضَعَ يَدَهُ عَلَى الْأَرْضِ وَهَذَا مَصْرَعُ فُلَانٍ غَدًا وَوَضَعَ يَدَهُ عَلَى الْأَرْضِ فَقَالَ: وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ مَا جَاوَزَ أَحَدٌ

---

۱) په دې کښې یو قول دا دې چه معاذ بن عمرو او معاذ بن عفراء دواړه د یو کس نومونه دی، یو ځائې کښې نې د مور طرف ته نسبت دې او بل ځائې کښې نې د پلار طرف ته.

۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۷۶)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الجهاد ۳۰ (۱۷۷۹)، والجنة ۱۷ (۵۷۳۲)، سنن النسائي/الجنائز ۱۱۷ (۲۰۷۶) مسند احمد (۲۶۷/۱) (صحيح)

مِنْهُمْ عَنْ مَوْضِعِ يَدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ". فَأَمَرَ بِهِمْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأُخِذَ بِأَرْجُلِهِمْ فَسُحِبُوا فَأُلْقُوا فِي قَلِيبِ بَدْرٍ.

دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې چه نبي عليه السلام خپل ملګري راوغوښتل تول دبدر طرف ته لاړل يکدم ورته دقريشو داوبوراوړلو والا اوښ ملاو شو او يوتور غلام ورسره وو دبنی الحجاج قبيلې والا صحابه کرامو اونيو و اوتپوس ئې تري اوکړو او ورته ئې اوونيل شابه اووايه ابوسفيان چرته دې؟ هغه اووئيل په الله مې دې قسم وي زه دابوسفيان په حال نه يم خبر لېکن د قريشو خلق راغلي دی چه په هغوی کښې ابوجهل، عتبة بن ربيعه، شيبه بن ربيعه، او اميه بن خلف شامل دې، کله چه ده دا اووئيل نوصحابه کرامو ده لره وهل ورکول شروع کړل ده اووئيل ماپريږدئ زه درته وايم کله چه ئې پريخودو نوده هم دا اووئيل چه په الله مې دې قسم وي ماته دابوسفيان حال نه دې معلوم البته قريشيان راغلي دی چه ابوجهل عتبه اوشيبه دربيعه ځامن او اميه بن خلف پکښې دی، په دې وخت کښې نبي عليه السلام په مونځ ولاړ وو اودا واقعه ئې اوريدله کله چه دمونځ نه فارغ شو نوونې ونيل زمادې په هغه ذات قسم وي دچا په لاس کښې چه زماروح دې کله چه دې تاسوته رښتيا وائي نوتاسوتې وهئ اوچه کله درته دروغ وائي نوبيا ئې پريږدئ ابوسفيان خودشام دقافلې سره مال راوړي راروان دې اودقريشو خلق دهغه دبچ کولو دپاره راغلي دی هسې نه چه داسې اوشی چه دمسلمانانو قافله په مال باندې قبضه اولګوي ليکن دمسلمانانو قافلې مقابله کول غوښتل د کافرانوسره اوهمداسې اوشول، انس وائی نبي عليه السلام اوفرمائيل دادفلانی دراغورځيدو ځائې دې صبا اوهلته ئې خپل لاس کيخود و چه دادفلانی دراغورځيدو ځائې دې صبا اوهلته يسې هم لاس کيخودو انسه په قسم سره اووئيل چه بيايوکس هم دهغه ځائې نه تير نه شو په کوم ځائې باندې چه نبي عليه السلام لاس ايخودلې وو دنبي عليه السلام په حکم سره دوی دخپونه اونيول شول او راښکلې شول او په بدرکښې يوې جوړې کندې ته اوغورځولې شول

## مضمون حديث

دا دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم دعوت ورکړو خپلو اصحابو ته د بدر په طرف باندې د تلو هغوی بدر ته اورسيدل، پس د مسلم په روايت کښې دی ﴿ فانطلقوا حتى نزلوا بدرا ﴾ هلته تلو سره صحابه کرامو د قريشو اوبه اوړونکې اوښان اوليدل «روايا جمع د راويه ده، راويه په اصل کښې خو د اوبو مشک ته وئيلې شی، بيا روستو د دې استعمال په هغه اوښ باندې شروع شو چه په هغې باندې د اوبو مشکونه راوړلې شي» په دې اوښانو کښې د قبيله بنو حجاج يو تور غلام يعنی د هغوی شپونکې وو، صحابه کرامو هغه راونيولو او د هغه نه ئې تپوس اوکړو : ﴿ اين ابو سفيان ﴾ چه ابو سفيان د قافلې رئيس چرته دې. يعنی کومې قافلې چه د شام نه مال تجارت راوړلو هغه چرته ده. د صحابه کرامو په تپوس باندې په هغه جواب ورکولو : والله ما ته خو د هغه په باره کښې هيڅ علم نشته، خو زه تاسو ته د يوې بلې خبرې خبر درکوم چه دا د قريشو لښکر د مکې نه راغلې دې په هغې کښې ئې د ابوجهل وغيره

ډیرو قریشي سردارانو نومونه واخستل یعني عتبه بن ربیعه، شیبه بن ربیعه او امیه بن خلف، صحابه کرامو به د هغه په دې خبره باندې هغه غلام وهلو، او هم دا تپوس به ئې ترې کولو چه ابوسفیان چرته دې؟ هغه به وئیل ما پرېږدئ وائم درته! چه کله به ئې پرېخودلو نو بیا به ئې اوئیل چه د ابو سفیان نه خو زه نه یم خبرخو د کفار قریش خبر ما ته شته چه هغوی د مکې نه راغلي دی او دلته راجمع دی او په هغوی کښې فلانی فلانی مشرکان هم دی، چه کله دا سوال او جواب کیدل هغه وخت رسول اللهﷺ په مانځه کښې مشغول وو خو رسول اللهﷺ په مانځه کښې دا ټولې خبرې اوریدلې، چه کله د مانځه نه فارغ شو نو هغه د صحابه کرامو طرف ته متوجه کیدو سره اوفرمائیل : قسم دې په هغه ذات د چا په قبضه کښې زما روح دې واقعي خبره هغه ده چه کومه تاسو ته دا غلام کوی یعنی دا چه ما ته د ابوسفیان خبر نشته، نو بیا خو تاسو هغوی وهئ، او چه کله درته هغه دروغ وائی نو تاسو هغه پرېږدئ، د دروغو نه مراد د هغه دا وینا ده چه بس! زه ئې درته اوس وائم خو د هغه دا دروغ وئیل صحابه کرامو ته د دهوکې ورکولو دپاره نه وو، صحابه کرامو ته خو هغه صحیح خبره کوله بلکه دا د خپل ځان د بچ کولو دپاره ده. بیا رسول اللهﷺ د دې غلام والا خبرې تصدیق کولو سره اوفرمائیل چه اوګورئ دا د قریشو کفار دی کوم چه د ابوسفیان د بچ کولو دپاره راغلي دی، بیا ئې د پیشن ګوئی په طور اوفرمائیل، چونکه هغه ته معلومه شوې وه چه جنګ ته به خبره رسیږی او په هغې کښې به مسلمانانو ته فتح ملاویږی. ﴿ووضع يده على الارض وهذا مصرع فلان غدا ﴾ رسول اللهﷺ به په زمکه باندې لاس وهلو او دا به ئې فرمائیل چه صبا له به دا ځائې د فلانی کافر د غورځیدو وی او قتل کیدو وی، د هغه کافر نوم به ئې اخستلو، او دا ځائې به د فلانی کافر د راپریوتلو وی، درې کرته رسول اللهﷺ هم دغه شان نوم اخستلو سره اوفرمائیل، وراندې راوی قسم خوړلو سره وائی چه د کوم کافر د جدا کیدو ځائې رسول اللهﷺ متعین کړې وو، هغه خاص هم په هغه ځائې کښې راپریوتلو، او بیا هغه قتل کړې شوی د خپو نه اونیولې شو او قلیب بدر ته ګزار کړې شو، د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت ښکاره دې یعنی د کافر قیدی د څه مصلحت په بنیاد وهل، قلیب هغه کوهی ته وئیلې شی چه په هغې باندې غاړه نه وی، دا کوهې په دې بدر مقام کښې وو کوم چه اوس پاتې نه شو. والحديث اخرجه مسلم اتم منه قال المنذری.

## باب فِي الْأَسِيرِ يُكْرَهُ عَلَى الْإِسْلَامِ

### د اسلام په قبلولو قیدیان مه مجبوروئ

دا باب د "باب الاسير يكره على الكفر" مقابل دې کوم چه مخکښې تیر شوې دې، هلته هم مونږ دې راتلونکی باب ته اشاره کړې وه یعنی یو کافر قیدی په اسلام باندې مجبور کول څنګه دی؟ جواب دا دې چه داسې نه دی کول پکار،

### (د کافر قیدیانو سره څه معامله کول پکار دی؟)

بیا د کافر قیدیانو سره څنګه معامله کول پکاردی؟ هغه په کتب فقه او حدیث کښې مشهور دی د جمهورو په نزد د هغه سره څلور قسمه معامله کولې شی، قتل، استرقاق، من ، فدا،

يعنى قتل كول، يا هغه لره غلام جوړول، يا په هغه باندې احسان كولو سره هغه پريخودل، يا فديه اخستلو سره پريخودل دا څلور واړه اختيارات د ائمه ثلاثه په نزد مشروع دى، د احنافو په نزد دا څلور اختيارات په شروع كښې دى روستو د هغوى په نزد په دې څلورو كښې دوه يعنى من او فداء، منسوخ شو، او قتل او استرقاق دا دوه باقى پاتې شو.

[۲۶۸۲]([1])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُمَرَ بْنِ عَلِيٍّ الْمُقَدَّمِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَشْعَثُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ يَعْنِي السِّجِسْتَانِيَّ. ح وحَدَّثَنَا ابْنُ بَشَّارٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ وَهَذَا لَفْظُهُ. ح وحَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، قَالَ: حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: كَانَتِ الْمَرْأَةُ تَكُونُ مِقْلَاتًا فَتَجْعَلُ عَلَى نَفْسِهَا إِنْ عَاشَ لَهَا وَلَدٌ أَنْ تُهَوِّدَهُ فَلَمَّا أُجْلِيَتْ بَنُو النَّضِيرِ كَانَ فِيهِمْ مِنْ أَبْنَاءِ الْأَنْصَارِ فَقَالُوا: لَا نَدَعُ أَبْنَاءَنَا فَأَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ: لَا إِكْرَاهَ فِي الدِّينِ قَدْ تَبَيَّنَ الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ سورة البقرة آية ۲۵۶، قَالَ أَبُو دَاوُد: الْمِقْلَاتُ الَّتِي لَا يَعِيشُ لَهَا وَلَدٌ.

دابن عباس نه روايت دې فرمائى چه دجاهليت په زمانه كښې چه به دكومې ښځې بچى ژوندى نه پاتې كيدل نوهغې به داندر او منلوكه چرې بچى مې ژوندې پاتې شو نو يهودى كوم به ئې، كله چه دبنونضير قبيلې يهوديانوته دملك پريښودو حكم اوشو نوپه هغوى كښې يوڅو انصارې هلكان هم روانډا رو ووئيل چه مونږ خپل هلكان به پرېږدونو الله پاك داحكم نازل كړو چه ددين په قبلولوكښې زبردستي كول نشته. ابوداود وائى چه المقلات هغوښځوته وئيلې شي دچاچه بچى ژوندې نه پاتې كيږې.

## شرح حديث

مدينه منوره كښې دوه قبيلې د مشركانو اوس او خزرج اباد وو، دا خلق چه په اسلام كښې داخل شو او د مهاجرينو هغوى ايواء او نصرة اوكړو نو هغوى ته انصار اوئيلې شو، نو د هغوى نه علاوه په مدينه كښې اهل كتاب يعنى يهود ډير په كثرت سره اباد وو، مشركين مدينه د اهل كتاب په خپل ځان باندې فوقيت او فضيلت منى، د هغوى د اهل علم كيدو د وجې نه ځكه چه مشركان خو مطلق وو، د باب په دې روايت كښې دا دى چه د اسلام د راوړلو نه مخكښې كوم چه انصارى زنانه (مشركه) مقلاة كيدو، يعنى د چا ماشوم چه ژوندې نه پاتې كيږى نو ډير وخت دا قسم زنانه د خپل حمل په زمانه كښې دا نذر منى چه كه زما ماشوم د پيدا كيدو نه پس ژوندې پاتې شو نو زه به هغه يهودى جوړ كړم، پس د دې قسم ډير زيات ماشومان يهودى جوړيدو سره په يهود كښې شامل شو، په روايت كښې دى ﴿ فلما اجليت بنو النضير كان فيهم من ابناء الانصار الخ ﴾ يعنى چه كله د بنو نضير يهود د رسول الله ﷺ په زمانه كښې د مدينې منورې نه جلا وطن كولې شو نو په دې كښې پورته ذكر شوې قسمونو كښې ابناء الانصار هم وو، نو دې ابناء الانصار پلارانو دا خبره كړې ده چه مونږ خپل ځامن نه پرېږدو، يعنى هغوى به منع كوو او زبردستى به ئې په اسلام كښې داخلوو نو په دې باندې دا آيت كريمه نازل شو ﴿ لا اكراه فى الدين قد تبين الرشد من الغى ﴾ گويا په دې آيت كريمه كښې انصار د دې خبرې نه منع كړې شوې دى چه هغوى به په زبردستئ باندې خپل اولاد لره مسلمان جوړولو سره په مدينه كښې ساتى.

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۴۵۹) (صحيح)

په ترجمة الباب کښې چه کومه مسئله ذکر شوې وه، د هغې حکم معلوم شو يعنی لا يجوز اکراه الاسير علی الاسلام... قال ابوداود : المقلات التی لا يعيش لها ولد... امام ابوداود رحمه الله هم د امام ترمذی رحمه الله په شان د حديث د بعض الفاظ غريبه تفسير کوی په دې وجه وئيلې شی چه ﴿ مقلاة ﴾ چه کوم لفظ په روايت کښې راغلې دې د هې معنی دا ده، داسې زنانه ته په پښتو کښې ميراته وئيلې شی، والحديث اخرجه النسائی، قاله المنذری.

## ايا په جهاد مع الکفار کښې اکراه فی الدين نشته؟

د دې آيت کريمه د وجې نه دا سوال پيدا کيږی چه ايا د کفارو سره چه کوم جهاد کولې شی په دې کښې اکراه نشته په ظاهره کښې خو د دې جواب دا دې چه دا خو صحيح ده چه د جهاد په ابتداء کښې د اسلام خبره کيخودلې شی خو بيا د هغې نه روستو د جزيه نمبر هم راځی. د اسلام نه قبلولو په صورت کښې په قبول جزيه باندې د هغوی سره قتال ختمولې شی، خو دا جواب د احنافو او مالکيانو په مسلک خو صحيح دې چه د هغوی په نزد د قبول جزيه صورت عام دې، د اهل کتاب او مشرکانو ټولو نه اخستلې کيدې شی، خو د شوافعو او حنابله په نزد چونکه د جزيه حکم د اهل کتاب سره خاص دې، د مشرکانو نه نه شی اخستلې، لهذا د دې دواړه امامانو په مسلک باندې اشکال باقی پاتې شو، دې حضراتو د دې جواب دا ورکړې دې چه د ﴿ لا اکراه فی الدين ﴾ نزول د اهل کتاب په واقعه کښې دې لکه چه په حديث الباب کښې ذکر شوې شان نزول نه معلوميږی، لهذا د دې آيت کريمه تعلق د مشرکانو سره نه شو، ګويا د مشرکانو په باره کښې د اکراه ممانعت نشته، په دې وجه هغوی سره جهاد کولې شی او جزيه ترې نه شی اخستلې خو د احنافو د طرف نه دا وئيلې کيدې شی چه اګر چه د آيت شان نزول په اعتبار سره خاص دې خو د عموم الفاظ. پيش نظر خو د هغې حکم دې ﴿ العبرة لعموم اللفظ لا لخصوص السبب ﴾ د پورته ذکر شوی اشکال نور هم ډير جوابونه ورکړې شوې دی، مثلا دا چه د اکراه تعريف دا دې ﴿ الزام الغير بما ليس فيه خير ﴾. چه يو سړی له په داسې خبره باندې مجبور کول چه په هغې کښې څه خير نه وی، او اسلام خو صرف خير دې، لهذا اکره په اسلام باندې دا بالکل خير دې نه، يو جواب دا هم ورکولې شی چه ﴿ الا اکراه فی الدين ﴾ دا د جهاد او قتال په آيتونو باندې منسوخ دې.

## بَابُ قَتْلِ الْأَسِيرِ وَلَا يُعْرَضُ عَلَيْهِ الْإِسْلَامُ

### د اسلام پيش کولو نه بغير د قيديانو د قتل کولو بيان

يعنی کافر قيدی باندې د اسلام د پيش کولو نه بغير د هغه قتل کول، او په هغه دعوت بادې اکتفاء کول کوم چه د قتال نه مخکښې ورکولې شی

[۲۶۸۳] (¹) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَسْبَاطُ بْنُ نَصْرٍ، قَالَ زَعَمَ السُّدِّيُّ، عَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ سَعْدٍ، قَالَ: لَمَّا كَانَ يَوْمُ فَتْحِ مَكَّةَ أَمَّنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّاسَ إِلَّا أَرْبَعَةَ نَفَرٍ وَامْرَأَتَيْنِ وَسَمَّاهُمْ، وَابْنُ أَبِي سَرْحٍ فَذَكَرَ الْحَدِيثَ قَالَ: وَأَمَّا ابْنُ أَبِي سَرْحٍ فَإِنَّهُ اخْتَبَأَ عِنْدَ عُثْمَانَ بْنِ

¹: سنن النسائي/المحاربة ۱۱ (۴۰۷۲)، ويأتي عند المؤلف في الحدود ۱(۴۳۵۹)، (تحفة الأشراف: ۳۹۳۷) (صحيح)

عَفَّانَ فَلَمَّا دَعَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّاسَ إِلَى الْبَيْعَةِ جَاءَ بِهِ حَتَّى أَوْقَفَهُ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَا نَبِيَّ اللّٰهِ بَايِعْ عَبْدَ اللّٰهِ فَرَفَعَ رَأْسَهُ فَنَظَرَ إِلَيْهِ ثَلَاثًا كُلُّ ذٰلِكَ يَأْبَى فَبَايَعَهُ بَعْدَ ثَلَاثٍ ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَى أَصْحَابِهِ فَقَالَ: أَمَا كَانَ فِيكُمْ رَجُلٌ رَشِيدٌ يَقُومُ إِلَى هٰذَا حَيْثُ رَآنِي كَفَفْتُ يَدِي عَنْ بَيْعَتِهِ فَيَقْتُلُهُ؟ فَقَالُوا: مَا نَدْرِي يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَا فِي نَفْسِكَ أَلَا أَوْمَأْتَ إِلَيْنَا بِعَيْنِكَ قَالَ: إِنَّهُ لَا يَنْبَغِي لِنَبِيٍّ أَنْ تَكُونَ لَهُ خَائِنَةُ الْأَعْيُنِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ أَخَا عُثْمَانَ مِنَ الرَّضَاعَةِ، وَكَانَ الْوَلِيدُ بْنُ عُقْبَةَ أَخَا عُثْمَانَ لِأُمِّهِ وَضَرَبَهُ عُثْمَانُ الْحَدَّ إِذْ شَرِبَ الْخَمْرَ.

دسعد رضی الله عنه نه روایت دي فرمائي هرکله چه دفتح مکي ورځ راغله نونبی علیه السلام ټولو خلقوته امن ورکړو مګر څلور کسانواو دوه ښځوته ئي ورنکړود کوموچه راوي نومونه اخستلي دي په کوموکښي چه ابن سرح هم وو، څکه چه دي مرتد شوي وو، ابن أبی سرح دعثمان نه سره ځان پټ کړوهرکله چه نبی علیه السلام خلق ددعوت دپاره را اوغوښتل نوعثمان هندی هم راوستو تردي چه دنبی علیه السلام په خوا کښي ئي ودروو اوعرض ئي وکړو اي دالله رسوله دعبدالله نه بیعت واخلئ نبی علیه السلام ورته وکتل اوبیعت ئي ورسره ونکړو، دري ځله داسي وشول اخردري پیرونه پس ئي ورسره بیعت وکړو، بیاددي نه پس نبی علیه السلام صحابه کراموته اوفرمائیل: ایا په تاسوکښي څوك عقل مند نشته چه پاځیدلی وي اوکله چه ماددده دبیعت نه انکار وکړو چه دده سرئي وهلي وي؟ صحابه کرامترعرض وکړوچه اي دالله رسوله مونږ ته ستادزړه حال معلوم نه وو کچري تامونږه په اشاره پوه کړي وي نوښه به وه او مونږبه دحکم تعمیل کړي وو اودده سربه مووهلي وو، نبی علیه السلام اوفرمائیل چه دنبی سره دانه ښائي چه په سترګواشارې وکړي. ابوداود وائي چه ابن أبی سرح دعثمان رضاعي ورور وو او ولید بن عقبه ئي مورني ورور وو، دي دشرابوپه څکلوګیرشو اوعثمان ورباندې حد جاري کړو.

سیدنا سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه فرمائي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د فتح مکه په ورځ باندې خلقو یعنی اهل مکه ته امن ورکړو (خو دا امن ورکول مطلقا نه دی بلکه بعض شرطونو سره وو، لکه چه هغه اوفرمائیل ﴿ من دخل الحرم فهو امن، ومن اغلق بابه فهو امن ومن القی السلاح فهو امن ﴾ سوا د څلورو سړو او زنانو نه، چه د چا نومونه راوی بیان کړي وو چه په هغې کښي ابن ابی السرح نوم وو، په دې روایت کښي خو هم دا دی یعنی د څلورو وارو سړو استثناء، حضرت په دې کښي د نورو روایاتو په بنیاد اضافه کولو سره یولس سړی او شپږ زنانه تفصیلی بیان کړې دی، مطلب دا دی، مطلب دا دې چه بعض مشرکین هغه نه وو معاف کړې بلکه د هغه وینه ئي په هر حال کښي مباح کړې وه، وړاندې په روایت کښي د عبدالله بن ابی السرح په باره کښي تفصیل دې، دا په اصل کښي د سیدنا عثمان رضی الله عنه رضاعی رور وو، د هغه په باره کښي دا لیکلي شوې دی چه هغه د فتح مکه نه مخکښې اسلام قبول کړې وو، ﴿ ثم ارتد ثم اسلم ﴾ په حدیث الباب کښې دی چه دې د سیدنا عثمان رضی الله عنه سره پټ شوې وو، بیا چه کله رسول الله صلی الله علیه وسلم اهل مکه د بیعت علی الاسلام دپاره طلب کړل نو سیدنا عثمان، ابن ابی السرح لره اخستلو سره د هغه خدمت ته حاضر شو، او هغه ئي د هغه مخې ته اودرولو، او عرض ئي اوکړو یا رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغه نه هم بیعت واخلئ، رسول الله صلی الله علیه وسلم خپل سر مبارک اوچت کړو او هغه ته ئي اوکتل او درې کرته ئي هم

دغه شان اوکړل، هر ځل رسول اللهﷺ د هغه د بیعت نه انکار فرمائیلو، یعنی د هغه طرف ته ئې د بیعت دپاره لاس نه ور اوږدولو، د دریم ځل نه پس رسول اللهﷺ هغه سره بیعت اوکړو، او بیا ئې د صحابه کرامو طرف ته توجه کولو سره اوفرمائیل چه ایا په تاسو کښې څوک پوهه سړې نه وو چه هر کله ما د هغه د بیعت نه لاس اخستلو نو هغه اودریدلې وې او هغه ئې قتل کړې وې، په دې باندې بعض صحابه کرامو عرض اوکړو چه یا رسول اللهﷺ مونږ ته معلومه نه وه چه ستاسو په زړه کښې څه دی او دا ئې هم عرض اوکړو چه ﴿ الا اومات الينا بعينك ﴾ چه تاسو په خپلو سترګوسره اشاره ولې اونکړه نو وې فرمائیل﴿ لا ينبغى لنبى ان تكون له خائنة الاعين﴾ یعنی دا خبره د نبی د شان خلاف ده چه هغه په داسې موقع باندې په سترګو سره اشاره اوکړی، یعنی د نبی یو کار هم کچا او سرسری نه وی، بلکه د هغه خو هر یو کار واضح او محکم وی هغه په سترګو سره اشارې نه کوی.

قال ابوداؤد : الخ.... مصنفؒ فرمائی چه عبدالله بن ابی السرح د سیدنا عثمانؓ رضاعی رور وو، وړاندې یوه بله خبره استطرادا د علمی فائدې دپاره د مقام مناسبت سره بیان فرمائی : ﴿ وكان الوليد بن عقبة الخ ﴾ یعنی عبدالله بن ابی السرح خو د هغه رضاعی رور و کوم چه ګڼړ قسم سړې وو هم دغه شان حال د ولید بن عقبه هم وو، هغه د سیدنا عثمانؓ اخیافی رور وو هغه هم ډیر ګڼړ وو په شرابو باندې عادت وو هم په دې وجه باندې سیدنا عثمانؓ په هغه باندې د شرابو حد هم جاری کړې وو، حضرت په بذل کښې دلته یو سوال او جواب لیکلې وو.

## په حدیث کښې اشکال او د هغې جواب

هغه دا چه عبدالله بن ابی السرح ته چه کله سیدنا عثمانؓ پناه ورکړه نو بیا د هغه قتل څنګه جائز وو؟ نو بیا رسول اللهﷺ صحابه کرامو ته د هغه د قتل په ترک باندې ولې تنبیه اوفرمائیله؟ جواب د دې ظاهر دې چه هر کله رسول اللهﷺ هغه مهدر الدم (مباح الدم) کړې وو نو د سیدنا عثمانؓ په پناه ورکولو سره څه کیږی. (من البذل) زه وائم چه دلته د دې اشکال نه علاوه یو بل قوی اشکال دا دې چه ﴿ انه كيف جاز قتله وقد اسلم؟ ﴾ یعنی د بیعت علی الاسلام دپاره راغلې وو او په اسلام کښې د داخلیدو ئې مضبوطه اراده کړې وه، د دې جواب علامه سندهی په حاشیه د نسائی کښې دا ورکړې دې چه د رسول اللهﷺ په زمانه کښې د انسان اسلام د رسول اللهﷺ په رضا او قبول باندې موقوف وو، چه د چا اسلام به هغه منظور کړو نو هم د هغه اسلام به معتبر وو والا فلا. د ابوداود په کتاب الجنائز کښې هم د دې قسم یوه بله واقعه حدیث کښې راغلې ده، هلته هم رسول اللهﷺ بیعت کولو سره خپل لاس منع کړو، د دې په شرح کښې حضرت سهارنپوری د اشکال مذکور هم دا جواب کړې دې، هم دغه شان د عبدالله بن ابی سرح دا واقعه په کتاب الحدود کښې هم راروانه ده، هلته حضرت د دې اشکال او جواب طرف ته تعرض کړې دې. والحديث اخرجه النسائي قاله المنذرى.

[٢٦٨٤]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، قَالَ: حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ حُبَابٍ، قَالَ: أَخْبَرَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَعِيدِ بْنِ يَرْبُوعٍ الْمَخْزُومِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنِي جَدِّي، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ: "أَرْبَعَةٌ لَا أُؤَمِّنُهُمْ فِي حِلٍّ وَلَا حَرَمٍ فَسَمَّاهُمْ، قَالَ: وَقَيْنَتَيْنِ كَانَتَا لِمِقْيَسٍ فَقُتِلَتْ إِحْدَاهُمَا وَأُفْلِتَتِ الْأُخْرَى فَأَسْلَمَتْ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: لَمْ أَفْهَمْ إِسْنَادَهُ مِنِ ابْنِ الْعَلَاءِ كَمَا أُحِبُّ.

دسعيد بن يربوع مخزومي نه روايت دې چه نبي ﷺ دفتح مکې په ورځ فرمائيلي وو څلورکسان داسې چه نه ورته په حل کښې اونه حرم کښې امن ورکوم اودهغوی نومونه ئې واخستل راوي وائي اودمقيس دوه وينځې ئې هم ذکرکړې يوه په دوی کښې قتل کړې شوه او دويمه او تختيده اوبيا مسلمانه شوه. امام ابوداود وائي زه ددې روايت اسناد دابي العلاء نه نه خوښوم.

دا هم د تير شوی روايت په شان دې هلته څلور سړی او د ﴿ امراتين ﴾ ذکر راغلې دې، دلته په ځائې د ﴿ امراتين ﴾ ﴿ قينتين ﴾ دې، ﴿ قينة ﴾ امة مغنية ته وئيلې شی، او په مطلق وينزه ئې هم اطلاق کيږی کوم چه د مقيس بن صبابه وو، او وئيلې شوې دی چه د ابن خطل وو چه په هغې کښې يو خو قتل کړې شو، او بله اوتختيدله او بيا ئې روستو اسلام هم قبول کړې وو.

[٢٦٨٥]()حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ مَكَّةَ عَامَ الْفَتْحِ وَعَلَى رَأْسِهِ الْمِغْفَرُ فَلَمَّا نَزَعَهُ جَاءَهُ رَجُلٌ فَقَالَ ابْنُ خَطَلٍ: مُتَعَلِّقٌ بِأَسْتَارِ الْكَعْبَةِ فَقَالَ: اقْتُلُوهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: ابْنُ خَطَلٍ اسْمُهُ عَبْدُ اللَّهِ وَكَانَ أَبُو بَرْزَةَ الْأَسْلَمِيُّ قَتَلَهُ.

دانس بن مالك رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبي ﷺ دفتح مکې په کال مې ته داخل شواودنبي ﷺ په سرباندې ..خود، وو کله چه هغه دسرنه .وخود، لرې کړونويوکس ورته راوستلې شو اووئې وئيل چه اې دالله رسوله ابن خطل يم او دکعبې په غلاف پورې انختلې وو نبي ﷺ اوفرمائيل قتل ئې کړئ. ابوداود وائی دابن خطل نوم عبدالله وو، اوده لره ابو برزه اسلمي قتل کړو.

## مضمون حديث

رسول الله ﷺ د فتح مکه په موقع باندې په مکه کښې داخل شوې وو په داسې حال کښې د هغه په سر مبارک باندې خپله (د اوسپنې ټوپۍ) وه، چه کله ئې هغه کوزه کړه او کيخودله يعنې د ضرورت پوره کيدو نه پس نو بيا يو سړې راغلو او عرض ئې اوکړو چه ابن خطل (کوم چه ئې مباح الدم کړې وو) د کعبې د غلاف پسې اينختلې ولاړ دې، يعنې د هغې په ذريعه د پناه غوښتلو دپاره (بيا هم) هغه اوفرمائيل چه هغه قتل کړئ، مصنف فرمائی چه د ابن خطل نوم عبدالله دې او کوم سړی چه هغه قتل کړې وو د هغه نوم ابو برزه الاسلمی وو،

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٤٧٤) (ضعيف)

(٢): صحيح البخاري/جزاء الصيد ١٨ (١٨٤٦)، الجهاد ١٦٩ (٣٠٤٤)، المغازي ٤٨ (٤٢٨٦)، اللباس ١٧ (٥٨٠٨)، صحيح مسلم/الحج ٨٤ (١٣٥٧)، سنن الترمذي/الحج ١٨ (١٦٩٣)، الشمائل ١٦ (١٠٦)، سنن النسائي/الحج ١٠٧ (٢٨٧٠، ٢٨٧١)، سنن ابن ماجه/الجهاد ١٨ (٢٨٠٥)، (تحفة الأشراف: ١٥٢٧)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الحج ٨١(٢٤٧)، مسند احمد (١٠٩/٣، ١٦٤، ١٨٠، ١٨٦، ٢٢٤، ٢٣١، ٢٣٢، ٢٤٠)، سنن الدارمي/المناسك ٨٨ (١٩٨١)، والسير ٢٠ (٢٥٠٠) (صحيح)

زه وائم چه وئيلې شوې دی چه هغه شريک بن عبده العجلانی قتل کړې وو، په بذل کښې د تاريخ خميس نه نقل کړې دې چه په جاهليت کښې د ابن خطل نوم اول عبد العزی وو، رسول الله ﷺ د اسلام قبلولو نه پس د هغه نوم بدلولو سره عبد الله کيخودلو او خطل دهغه د پلار لقب وو، نوم د هغه عبد مناف وو کما فی القسطلانی. د ابن خطل د قتل وجه امام خطابی دا ليکلې ده چه رسول الله ﷺ هغه د يو انصاری سره په څه کار پسې ليږلې ووو او هغه انصاری ئې د هغه امير جوړ کړې وو په لاره کښې چه کله روان وو نو ابن خطل هغه انصاری قتل کړو، او د هغه سامان ئې لوټ کړو. په دې وجه رسول الله ﷺ سره د دې چه هغه د کعبې په غلاف پورې اينختلې وو هغه ته امان ورنکړو. او هغه ئې په قصاص کښې قتل کړو. او بعض شارحينو ليکلې دی کما فی القسطلانی (ص ۳۱۷ ج ۳) چه په ابن خطل کښې متعدد موجبات قتل جمع شو. اول جنايت قتل او کفر او ارتداد، رسول الله ﷺ ايذاء او هجو، پس هغه به هم په شعر کښې د رسول الله ﷺ بدی بيانوله او په خپلو وينزو باندې به ئې هم په خوش اوازئ سره بدی بيانوله

## په حديث کښې دوه اختلافی فقهی مسائل

يو د قصاص فی الحرم نه متعلق او يو دخول حرم بغير د احرام نه متعلق. احرام والا مسئله په کتاب الحج کښې تيره شوې ده، د شافعيه مسلک دا دې چه د کوم سړی اراده د دخول حرم د حج او عمره نه علاوه په بل يو حاجت سره که هغه حاجت متکرره يا غير متکرره، په دې باندې احرام واجب نه دی، د احنافو په نزد مطلقا واجب دې، بعض شوافع په خپل تائيد کښې دا حديث هم پيش کوی، زمونږ د طرف نه دا جواب ورکړې شو چه په حديث کښې تصريح دې چه هغه اوفرمائيل : احلت لی ساعة من نهار... چه زما دپاره مکه د مختصر نه وخت دپاره حلال کړې شو، لهذا هم په دې وجه هغه رسول الله ﷺ بغير د احرام نه داخل شو، زمونږ دا جواب حافظ وغيره هم تسليم کړې دې، او بله مسئله ده يعنی د قصاص فی الحرم هغه دا ده چه که د جنايت وقوع خپله په حرم کښې شوې وی نو په دې صورت کښې قصاص فی الحرم بالاتفاق جائز دې او که يو سړې د حرم نه بهر جنايت کولو سره په حرم کښې داخل شی نو که د دې جنايت تعلق د نفس سره نه دې بلکه د اطرافو سره دې يعنی اندامونو سره نو بيا هم دا حکم دې، يعنی د دې بدله په حرم کښې جائز دې، او که هغه جنايت فی النفس دې يعنی که چاته خارج حرم قتل کولو سره قاتل حرم ته داخل شی، دا صورت اختلافی دې، په دې صورت کښې د احنافو او حنابله په نزد قصاص فی الحرم جائز نه دی، د شوافعو او مالکيانو په نزد په دې صورت کښې هم جائز دې، لهذا دا حديث د احنافو او حنابله خلاف کيدې شی، د دې جواب هم دا دې کوم چه د دې نه په مخکښې مسئله کښې تير شو چه د فتح مکه په ورځ باندې د هغه دپاره په مکه کښې قتال جائز کړې شوې وو، لهذا دا حديث زمونږ خلاف نه شی کيدې او بل احتمال دلته دا هم دې چه د ابن خطل جنايت هم په حرم کښې واقع شوې وو، فجاز قتله بالاتفاق. والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي قَتْلِ الْأَسِيرِ صَبْرًا

### د ګرفتار کړې شوی قیدی د وژلو بیان

د﴿ صبر ﴾ معنی د حبس او قید دې، د کافر دقتل دوه صورتونه دی چه دهغه قتل په میدان جنګ او جنګ کښې وی او دویم قسم د کافر قیدی قتل دې، یعنی کوم کافر قیدیان چه مونږ سره او زمونږ په قبضه کښې دی هغه لره قتل کول هم دې ته قتل صبرا وئیلې شی.

﴿ قال السیوطی : کل من قتل فی غیر معرکة ولا حرب ولا خطاء فانه مقتول صبرا ﴾

او په بذل کښې داسې دی چه کوم سړې لاس خپې ترلوسره او نیولو سره قتل کړې شی، دا قتل صبرا دې، د دې نه روستو چه کوم باب راروان دبه هغه دې "باب فی قتل الاسیر بالنبل" په دواړو بابونو کښې فرق دا دې چه په اول باب کښې قتل صبراً نه مراد هغه قتل صبرا دې کوم چه بغیر د غش ئېنه وی یعنی بالسیف او په دویم باب کښې د قتل صبرا نه مراد هغه قتل دې کوم چه بالنبل وی قتل صبرا بالسیف، بالاتفاق جائز دې کوم چه په اولنی باب کښې مذکور دې او د بالنبل ممانعت چه راغلې دې هغه ناجائز دې، لکه چه د دواړو بابونو د احادیثو نه معلومیږی.

[٢٦٨٦] (1) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْحُسَيْنِ الرَّقِّيُّ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ جَعْفَرٍ الرَّقِّيُّ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَبِي أُنَيْسَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، قَالَ: أَرَادَ الضَّحَّاكُ بْنُ قَيْسٍ أَنْ يَسْتَعْمِلَ مَسْرُوقًا، فَقَالَ لَهُ عُمَارَةُ بْنُ عُقْبَةَ: أَتَسْتَعْمِلُ رَجُلًا مِنْ بَقَايَا قَتَلَةِ عُثْمَانَ؟ فَقَالَ لَهُ مَسْرُوقٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ، وَكَانَ فِي أَنْفُسِنَا مَوْثُوقَ الْحَدِيثِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا أَرَادَ قَتْلَ أَبِيكَ قَالَ: مَنْ لِلصِّبْيَةِ قَالَ: النَّارُ فَقَدْ رَضِيتُ لَكَ مَا رَضِيَ لَكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دابراهیم نه روایت دې فرمائی چه قیس بن ضحاك اوغوښتل چه مسروق دې عامل مقررکړې شي نوعماره بن عقبه ورته ووئیل چه ته داسې کس عامل مقرروې څوك چه دعثمان نه په قاتلانوکښې دې مسروق ورته ووئیل ماته حدیث بیان کړې دې عبدالله بن مسعود رضی الله عنه اوهغه په مونږ کښې ډیر معتبر شخص وو، هرکله چه ستادپلار قتل کول اوغوښتل نونبی علیه السلام ته ئې ووئیل چه زماد بچوخبربه څوك اخلي نبی علیه السلام اوفرمائیل اور، نوده ووئیل چه زه ستادپاره هغه څه خوښوم کوم چه نبی علیه السلام ستادپاره خوښ کړي وو (یعنی چه نه ددوزخ په اورکښې اوسوزی).

### شرح حدیث

ضحاك بن قیس کوم چه په صغار صحابه کرام نه دې او د دمشق امیر وو هغوی یو ځل اراده اوکړه مسروق لره په یوځائې کښې د عامل جوړولو، نو په دې باندې عماره بن عقبه ضحاك ته اووې چه داسې سړې عامل جوړوی کوم چه د قاتلین عثمان نه یو باقی پاتې کیدونکې دې. (په دې دواړو کښې د څه وجې نه اختلاف او ناچاقی پیدا شوه) نو د دې په جواب کښې مسروق اووې (چه اودریږه خپله باره کښې هم واوره) ماته عبدالله بن

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩٥٦٠) (حسن صحیح)

مسعود رضي الله عنه بیان کړو کوم چه زمونږ په نزد انتهائی قابل اعتماد وو چه رسول الله ﷺ چه کله د پلار د قتل اراده فرمائیلې وه یعنی عقبه بن ابی معیط (کوم چه د بدر په قیدیانو کښې وو) نو هغه ډیر د بې وسئ په حالت کښې رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو ﴿ من للصبية ﴾ چه هغه ما قتل کوی نو زما د ماشومانو به څه کیږی، د هغوی کفالت به څوک کوی. ﴿ قال : النار ﴾ رسول الله ﷺ اوفرمائیل د هغوی کفالت به اور کوی بیا وراندې مسروق اووې چه زه هم ستا دپاره هغه خوښوم کوم چه ستا دپاره رسول الله ﷺ خوښ کړو.

د دې حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت داسې دې چه د عماره پلار عقبه بن ابی معیط قتل صبرا وو لکه چه حافظ ابن حجر د دې تصریح کړې ده. کما فی العون.

## بَابٌ فِي قَتْلِ الْأَسِيرِ بِالنَّبْلِ

### د تړلی شوی قیدي په غشو باندې د وژلو بیان

په دې باندې کلام په اول باب کښې راغلې دې.

[٢٦٨٧](1) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْأَشَجِّ، عَنِ ابْنِ تِعْلَى، قَالَ: غَزَوْنَا مَعَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ فَأُتِيَ بِأَرْبَعَةِ أَعْلَاجٍ مِنَ الْعَدُوِّ فَأَمَرَ بِهِمْ فَقُتِلُوا صَبْرًا، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ لَنَا غَيْرُ سَعِيدٍ، عَنِ ابْنِ وَهْبٍ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: بِالنَّبْلِ صَبْرًا فَبَلَغَ ذَلِكَ أَبَا أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيَّ، فَقَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَنْهَى عَنْ قَتْلِ الصَّبْرِ فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَوْ كَانَتْ دَجَاجَةٌ مَا صَبَرْتُهَا"، فَبَلَغَ ذَلِكَ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ فَأَعْتَقَ أَرْبَعَ رِقَابٍ.

دعبید بن تعلی نه روایت دې چه مونږ د عبدالرحمن بن خالد بن ولید په ملګرتیا کښې جهاد اوکړو اوهغوی ته څلور قوی کافران دشمنانو نه په قید کښې راوستې شو اودهغوی په حکم باندې نیولې شوي قتل کړې شول ابوداود وائی دسعیدنه علاوه نورو خلقو دا روایت داسې بیان کړې دې چ په غشوباندې اوویشتلې شول کله چه داخبر ابوایوب ته ورسیدو نوهغه اووئیل مادنبی علیه السلام نه اوریدلی دی چه دداسې قسم قتل کولونه ئې منع فرمائیلی ده زمادې په هغه ذات قسم وي دچا په لاس کښې چه زماروح دې چه جرګه به هم زه په داسې مرګ باندې مړه نکړم (یعنی دتړلو په حالت کښې) کله چه داخبر عبدالرحمن بن خالد بن ولیدته اورسیدو نوهغه څلور غلامان ازاد کړل.

﴿ فاتي باربعة اعلاج من العدو ﴾... ﴿ اعلاج ﴾ د ﴿ علج ﴾ جمع ده، یعنی دروند سړې، خاص کر د کفار عجم نه. د حدیث مضمون دا دې چه په یوه غزوه کښې د خالد بن الولید خوئې عبدالرحمن سره څلور کافر دشمنان راوستلې وو، هغوی قتل صبرا کړل یعنی بالنبل، چه کله سیدنا ابو ایوب انصاری رضي الله عنه ته د دې خبر ملاؤ شو نو هغه اوفرمائیل چه ما د رسول الله ﷺ نه خپله واوریدل چه هغه به د دغه شان قتل صبرا نه منع کوله، والله انسان خو انسان دې که یوه مرغئ وغیره هم وی نو زه هغه لره داسې قتل نه کړم چه کله د ابو ایوب انصاری دا خبره عبدالرحمن ته اورسیده نو هغه د دې خپلې غلطئ تلافی اوکړه او په تدارکښې څلور غلامان ازاد کړل.

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٤٧٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٢٢/٥)، سنن الدارمي الاضاحي ١٣ (٢٠١٧) (حسن)

د دې دویم باب د حدیث د تقابل نه معلومیږي چه د اول باب په حدیث کښې، کوم چه قتل صبرا وو هغه بالسیف وو کوم چه جائز او ثابت دې، د کتاب الاطعمة په حدیث کښې به راشي، ﴿ نهی عن المصبورة ﴾ او په یو روایت کښې دی ﴿ عن المجثمة ﴾ په دې حدیث کښې هم دغه شان قتل صبرا ذکر دې، یعنی مرغئ وغیره ترلو سره خپل ځان ته مخامخ کینولو سره د ذبح کولو په ځائي غشي ویشتل.

## باب فِي الْمَنِّ عَلَى الْأَسِيرِ بِغَيْرِ فِدَاءٍ

### قیدیان داحسان په طوربغیر د فدیې پریخودل

د دې نه مخکښې "باب فی الاسیر یکره علی الاسلام" کښې تیر شوې دی چه د کافر قیدی سره څه څه معاملې کولې شی او په دې کښې چه کوم اختلاف دې هغه هم تیر شوې دې، د ﴿من﴾ دوه صورتونه دی یو بغیر د فدیه نه او دویم بالفدیه، د احنافو په نزد دا دواړه منسوخ دی، د مالکیانو په یو روایت کښې دی چه﴿من﴾ که بالفدیه وی نو جائز دې او بغیر د فدیه نه ناجائز.

د دې نه پس پیژندل پکار دی چه د فدا دوه قسمونه دی، ﴿ فداء الاسیر بالمال ﴾ یعنی کافر قیدی په مال باندې پریخودل، او فداء الاسیر بالاسیر یعنی مسلمان قیدی په بدله کښې کفارو سره دلته اینختلې ده، کافر قیدی پریخودل، احناف په ظاهر الروایة کښې دواړه صورتونه ناجائز او منسوخ دی او د صاحبین په ن زد فداء الاسیر بالاسیر جائز دې، په تیر باب کښې د ائمه اربعه مذاهب منجملا تیر شوې دی په دې کښې مزید تفصیل دې، د احنافو په نزد ﴿ فاما منا بعد واما فداء ﴾ چه د هغې جمهور قائل دی دا آیت کریمه منسوخ الحکم دې، او ناسخ د دې دپاره ایت السیف دې یعنی ﴿ اقتلوا المشرکین حیث وجدتموهم ﴾ د سورة براءت آیت، او د من او فداء والا آیت په سورة محمد کښې دې، په نزول کښې آیت السیف یعنی آیت براءة بالاتفاق موخر دې.

[٢٦٨٨]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، قَالَ: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، قَالَ: أَخْبَرَنَا ثَابِتٌ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ ثَمَانِينَ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ مَكَّةَ هَبَطُوا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابِهِ مِنْ جِبَالِ التَّنْعِيمِ عِنْدَ صَلَاةِ الْفَجْرِ لِيَقْتُلُوهُمْ فَأَخَذَهُمْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سِلْمًا فَأَعْتَقَهُمْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَنْزَلَ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ وَهُوَ الَّذِي كَفَّ أَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ عَنْهُمْ بِبَطْنِ مَكَّةَ سورة الفتح آية ٢٤ إِلَى آخِرِ الْآيَةِ.

دانس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دمکې والا اتیا کسان نبی علیه السلام اودهغه ملګروته دحدیبې په کال باندې دجبال التنعیم نه دسحر دمونځ په وخت کښې راکوز شول دنبی علیه السلام دقتل کولو دپاره، نونبی علیه السلام ژوندی اونیول او ازاد ئې کړل نو الله تعالی دا ذکر شوې آیت نازل کړو.

### مضمون حدیث

دا عام الحدیبیه واقعه ده چه کله هغه په حدیبیه کښې ایسار شوې دې نو یوه ورځ د سحر د

١): صحيح مسلم/الجهاد ٤٦ (١٨٠٨)، سنن الترمذي/تفسير الفتح ٣ (٣٢٦٤)، (تحفة الأشراف: ٣٠٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢٢/٣، ٢٩٠) (صحيح)

مونږ په وخت ناڅاپه هم دا کفار مکه د صحابه کرامو د قتل کولو دپاره راکوز شي، د الله پاک په فضل سره رسول اللهﷺ او د هغه اصحابو هغه قيد کړو، په روايت کښې دی ﴿فاخذهم رسول الله صلى الله عليه وسلم سلما، سلما﴾ په کسرې د سين او فتح د سين دواړو سره دې، يعنى ﴿قيل صلحا وانقيادا﴾، يعنى ډير په سهولت سره هغه د مسلمانانو په قبضه کښې راغلو بغير د مزاحمت نه، خو رسول اللهﷺ هغه د قتل کولو په ځائې پريخودلو، نو په دې باندې آيت کريمه نازل شو ﴿وهو الذى كف ايديهم عنكم الاية﴾ گويا رسول اللهﷺ د دې طرز عمل کوم چه هغه اختيار کړې ده د دې تصويب او تحسين دې او دا حکمت او مصلحت تقاضا هم دا ده چه هغه پريخودلې شی، په بيان القران کښې دی يعنی گينې جنگ به اوړد شوې وې.

د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت ظاهر دې، والحديث اخرجه مسلم والترمذى والنسائى، قاله المنذرى.

[٢٦٨٩](١)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، قَالَ: أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِأُسَارَى بَدْرٍ: "لَوْ كَانَ مُطْعِمُ بْنُ عَدِيٍّ حَيًّا ثُمَّ كَلَّمَنِي فِي هَؤُلَاءِ النَّتْنَى لَأَطْلَقْتُهُمْ لَهُ".

جبير بن مطعم نه دخپل پلار نه روايت کوی چه نبی عليه السلام دبدرد قيديانو په باره کښې اووئيل که چرې مطعم بن عدي ژوندې وې او ددې گنده قيديانو په باره کښې ئې ماته سفارش کړې وې نو مابه دهغه په خاطر دا پريخودلی وو.

## شرح حديث

يعنى رسول اللهﷺ جبير بن مطعم ته اوفرمائيل (چه کله هغه رسول اللهﷺ ته د بدر د قيديانو په باره کښې سفارشی جوړيدو سره راغلې وو) نو هغه اوفرمائيل چه که ستا پلار يعنی مطعم بن عدی نن ژوندې وې او بيا ئې د دې گنده خلقو باره کښې ماته سفارش کړې وې نو ما به د هغوی په سفارش باندې دوی پريخودلې وې.

﴿نتنى﴾ جمع د ﴿نتن﴾ ده لکه د زمين جمع ﴿زمنى﴾، او يا جمع ده د ﴿نتين﴾ يعنى بدبويه او بدبودار څيز، د بدر قيديانو نه رسول اللهﷺ د هغوی د کفر په وجه داسې تعبير اوکړو، ﴿قال الله تعالى: انما المشركون نجس﴾ وئيلې شوې دی چه د مطعم په رسول الله ﷺ باندې يو احسان وو هغه دا چه کله رسول اللهﷺ د طائف د سفر نه واپس راتلو، او اهل طائف هغه ته تکليف ورکولو نو هغه وخت د رسول اللهﷺ مدد فرمائيلې وو، او وئيلې شوې دی چه هغه دا خبره د جبير د تطييب قلب او تاليف دپاره کړې وه، ځکه چه هغه وخت هغه اسلام نه وو قبول کړې، والحديث اخرجه البخارى ومسلم، قاله المنذرى.

(١): صحيح البخاري/فرض الخمس ١٦ (٣١٣٩)، والمغازي ١٢ (٤٠٢٤)، (تحفة الأشراف: ٣١٩٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٨٠) (صحيح)

# بَابٌ فِي فِدَاءِ الأَسِيرِ بِالْمَالِ

## د مال په عوض کښې د قيديانو پريخودلو بيان

په دې باب کښې د فداء دوه قسمونو کښې د يو قسم بيان دې، په دې باب کښې مصنف د بدر د قيديانو واقعه ذکر کړې ده چا سره چه رسول الله ﷺ فداء الاسير بالمال معامله فرمائيلې وه چه د بدر په قيديانو کښې د هر قيدي نه فديه اخستلو سره هغه ازاد کړې وو.

[٢٦٩٠](١)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو نُوحٍ، قَالَ: أَخْبَرَنَا عِكْرِمَةُ بْنُ عَمَّارٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا سِمَاكٌ الْحَنَفِيُّ قَالَ: حَدَّثَنِي ابْنُ عَبَّاسٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ، قَالَ: لَمَّا كَانَ يَوْمُ بَدْرٍ فَأَخَذَ يَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْفِدَاءَ أَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَكُونَ لَهُ أَسْرَى حَتَّى يُثْخِنَ فِي الأَرْضِ إِلَى قَوْلِهِ لَمَسَّكُمْ فِيمَا أَخَذْتُمْ سورة الأنفال آية ٦٧-٦٨ مِنَ الْفِدَاءِ، ثُمَّ أَحَلَّ لَهُمُ اللَّهُ الْغَنَائِمَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ يُسْأَلُ عَنِ اسْمِ أَبِي نُوحٍ فَقَالَ: إِيشْ تَصْنَعُ بِاسْمِهِ اسْمُهُ اسْمٌ شَنِيعٌ، قَالَ أَبُو دَاوُد: اسْمُ أَبِي نُوحٍ قُرَادٌ، وَالصَّحِيحُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ غَزْوَانَ.

د عمر بن الخطاب رضي الله عنه نه روايت دې چه کله د بدر د قيديانو نه نبي عليه السلام فديه واخستله او دوی ئې پريخودل الله تعالی دا ايت نازل کړو چه د نبی سره قيديان نه ښائي ترڅو چه مشرکان مړه نه کړي (يعني د مال په عوض کښې قيديان پريخودل د الله تعالی خوښ نه شول چونکه په دې وخت کښې کافران غالب وو د عمر رضي الله عنه رايې داوه چه دا ټول دې مړه کړې شي بيا د دې نه پس الله تعالی د دوی د پاره قيديان د مال په عوض کښې پريخودل جائز وګرځول. ابوداود وائی د ابونوح د نوم په باره کښې د احمد بن حنبل نه تپوس اوکړې شو نو هغه اووئيل چه د ده په نوم باندې څه کوې؟ د هغه څه ښه نوم خونه دې، ابودود وائی چه د ده نوم قراد دې او صحيح خبره داده چه د ده نوم عبد الرحمن بن غزوان دې۔

### شرح حديث

سيدنا ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چه سيدنا عمر رضي الله عنه د دې آيت کريمه ﴿ ما کان لنبی ان يکون له اسری ﴾ شان نزول دا بيان فرمائيلې دې چه د دې نزول هغه وخت اوشو چه کله اسيران بدر فديه اخستلو پريخودلو، په دې آيت کښې په دې باندې خبره تنبيه کړې شوې ده چه هغه د بدر د قيديانو سره د هر قيدي فديه اخستلو سره هغه ازاد کړې وو.

سيدنا ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چه سيدنا عمر رضي الله عنه په دې آيت کريمه ﴿ ما کان لنبی ان يکون له اسری ﴾ شان نزول داسې اوفرمائيلو چه د دې نزول هغه وخت اوشو چه کله د بدر قيديان فديه اخستلو سره پريخودلې شوې وو، په دې آيت کريمه کښې په دې خبره باندې تنبيه کړې شوې ده چه رسول الله ﷺ د بدر د قيديانو سره چه کومه معامله اوکړه هغه ئې فديه اخستلو سره پريخودلو، د هغه د پاره خو اثخان فی الارض مناسب وو، يعنی د کفارو وينه تويول، د ابطال کفر د پاره په رواياتو کښې راځی چه هغه د بدر د قيديانو په باره کښې د

(١): صحيح مسلم/الجهاد ١٨ (١٧٦٣)، سنن الترمذي/التفسير ٩ (٣٠٨١)، (تحفة الأشراف: ١٠٤٩٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٠/١، ٣٢) (حسن صحيح)

صحابه کرامو سره مشوره اوکړه چه الله پاک تاسو ته په هغوی باندې قدرت ورکړې دې او هغوی اوس ستاسو قابو ته راغلي دی اوس اوایئ چه د هغوی سره څه معامله اوکړې شی؟ سیدنا عمر رضی الله عنه عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ مناسب دا ده چه د هغوی ټولو سټ اووهلې شی، د رسول الله ﷺ دا رائې خوښه نه شوه په دې وجه هغه دوپاره بیا هم هغه سوال اوکړو چه د هغوی سره څه معامله اوکړې شی، سیدنا عمر رضی الله عنه بیا هم هغه عرض اوکړو، دریم ځل هغه بیا هم هغه سوال اوکړو، په دې باندې صدیق اکبر رضی الله عنه دا عرض اوکړو یا رسول الله! زما رائې دا ده چه دا خلق فدیه اخستلو سره پریخودلې شی، او په یو روایت کښې دا دی چه سیدنا عمر رضی الله عنه عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ هر سړې دې خپل عزیز قتل کړی، علی ته دې حکم ورکړی هغه د خپل رور عقیل سټ اووهی، او ماته اجازت راکړئ چه زه د خپل فلانی خپل سټ اووهم ځکه چه دا خلق د کفر مقتدا او سردار دی، رسول الله ﷺ د صدیق اکبر رضی الله عنه رائې خوښه کړه او قیدیانو لره فدیه اخستلو سره د پریخودلو فیصله اوفرمائیله، په دې باندې ذکر شوې آیت کریمه نازل شو، چه په هغې باندې رسول الله ﷺ او صدیق اکبر په ژړا شو، سیدنا عمر رضی الله عنه د هغه نه د ژړا سبب اوتپوسلو نو هغه اوفرمائیل چه زه د دې عذاب د وجې نه ژاړم، خو چه ستا په ملګرو باندې د فدیه اخستلو د وجې د الله پاک د طرف نه پیش کړې شوې دې، او فرمائی چه په ما باندې د هغوی عذاب دې اونې ته نزدې پیش کړې شو د دې نه روستو هغه اوفرمائیل چه که دې وخت کښې عذاب راغلې وې نو د عمر نه سوا به څوک هم نه وو بچ شوی، او په یو روایت کښې دی چه سوا د سعد بن معاذ ځکه چه سعد بن معاذ هم دغه شان رائې وه، کوم چه د عمر رضی الله عنه وو، دریم عبدالله بن رواحه دې هغه هم د فدیه اخستلو مخالف وو. (ماخوذ از سیرت مصطفی ج ۲ ص ۱۲۰)

﴿ثم احل لهم الله الغنائم﴾ په آیت مذکوره کښې چونکه په اخذ فدیه باندې نکیر کړې شوې دې چه د هغې تقاضه دا ده چه مال غنیمت د مسلمانانو دپاره حلال نه وی، په دې وجه راوی وائی چه ددې واقعې نه روستو الله پاک مال غنیمت د مسلمانانو دپاره حلال کړې وو.

## مشهور اشکال او د هغې جواب

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه په دې مقام باندې یو مشهور اشکال دې هغه دا چه د ترمذی وغیره د روایت نه معلومیږی چه د هغې راوی سیدنا علی رضی الله عنه دې چه د بدر د قیدیانو په قصه کښې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه جبرائیل(ع) ماته راغلو اووې فرمائیل چه تاسو خپلو اصحابو ته د بدر د قیدیانو په باره کښې اختیار ورکړئ په دوه خبرو کښې د یوې چه یا خو هغه دا قیدیان قتل کړی او یا د هغوی نه فدیه واخلی او هغوی پریږدی په داسې طریقه چه په مسلمانانو کښې هم د هغه تعداد برابر په بل کال باندې قتل کړې شی، پس هغه د صحابه کرامو نه مشوره اوفرمائیله نو هغوی د دې تخییر نه پس د فدیه اخستلو مشوره ورکړه په داسې طریقه چه دومره مسلمانان په بل کال باندې شهید کړې شو، په دې باندې اشکال ظاهر دې چه کله د فدیه اخستلو اجازت ورکړې شو نو بیا د دې په اختیارولو باندې په دې آیت کریمه کښې فدیه اخستلو باندې عتاب ولې نازل شو، د دې اشکال یو

مشهور جواب دا ورکولې شي چه دا اختيار صرف ظاهري او صوري وو او في الواقع په دې اختيار سره مقصود اختبار وو يعني امتحان چه اوګوري چه صحابه کرام د الله پاک د دشمنانو قتل اختياروي يا د دنيا سامان، او حضرت په بذل کښې د دې جواب د نقل کولو نه پس فرمائي چه د دې نه غوره جواب دا دې چه بعض صحابه کرام په دې موقع باندې د مال طرف ته مائل شوې وو، نو په اصل کښې د دې عتاب مورد هم هغه اصحاب دي لکه چه په آيت کريمه کښې هم دې طرف ته اشاره موجود ده ﴿ تريدون عرض الدنيا والله يريد الاخرة ﴾ او بعض علماء کرامو حديث تخيير کوم چه امام ترمذی په کتاب السير کښې په باب ما جاء فی قتل الاساری والفداء کښې ذکر کړې دې لره د راويانو وهم منلې دې، علامه تورپشتی د حديث تخيير په باره کښې فرمائي چه دا حديث په وجه د دې چه د قران کريم د ظاهر او د هغه احاديث صحيحه خلاف دې کوم چه د بدر د قيديانو په باره کښې راغلې دې چه په هغې کښې دا دی چه د فديه اخستل د صحابه کرامو په رائې او اجتهاد سره وه، پس په دې باندې عتاب نازل شو، که په دې سلسله کښې د څه وحی سماوی په ذريعه سره تخيير ثابتيدلو نو په دې باندې به عتاب نه متوجه کيدلو، فهذا الحديث مشكل جدا، الى اخر ما ذكر من تضعيف الحديث. هم دغه شان حافظ ابن کثير رحمه الله په ﴿ ما كان لنبی ان يكون له اسرى حتى يثخن فی الارض ﴾ د لاندې ډير صحيح روايات چه په هغې کښې د رسول الله ﷺ د صحابه کرامو نه د بدر د قيديانو په باره کښې مشوره ذکر شوې ده، او دا چه د فديه اخستل خپل مينځ کښې مشورې سره وو چه په هغې باندې د آيت کريمه نزول اوشو، او بيا په اخر کښې د سيدنا علی رضي الله عنه د تخير والا حديث ذکر کولو نه پس ليکی، رواه الترمذی والنسائی وابن حبان فی صحيحه من حديث الثوری به، وهذا حديث غريب جدا.

﴿ قال ابوداود سمعت احمد بن حنبل ﴾ امام ابوداود رحمه الله فرمائي چه زما د استاد احمد بن حنبل رحمه الله نه چا د ابو نوح (کوم چه دلته په سند کښې مذکور دې) نوم اوتپوسلو، نو هغه اوفرمائيل چه د هغه په نوم تپوسلو باندې به څه اوکړې، د هغه نوم ښه نه دې ډير بد دې او نوم ئې بيان نه کړو، په دې باندې امام ابوداود رحمه الله فرمائي چه د هغه نوم قراد دې، او صحيح دا ده چه د هغه نوم عبدالرحمن بن غزوان دې، قراد واقعی چه ښه نوم نه دې، ځکه چه قراد خو سپږو (کونې)[1] ته وئيلې شي،

والحديث اخرجه مسلم نحوه فی اثناء حديث طويل، قاله المنذری.

[۲۶۹۱] [2] حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْمُبَارَكِ الْعَيْشِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ حَبِيبٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي العنبس عَنْ أَبِي الشَّعْثَاءِ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَعَلَ فِدَاءَ أَهْلِ الْجَاهِلِيَّةِ يَوْمَ بَدْرٍ أَرْبَعَ مِائَةٍ.

[1]) دويبة تعيش علي الدواب والطيور وتمتص دمها: په څاروو کښې چه کومې سپږې کيږی چه پښتو کښې ورته کونې وائی، د څاروو نه وينه څکی. هغې ته قراد وائی. (مترجم)

[2]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۳۸۲) (صحيح)

دابن عباس نه روايت دي چه نبی ﷺ دجاهليت درماني دخلقودپاره د بدر په ورځ څلور سوه درهمه فديه مقرر کړې وه.
په دې حديث کښې چه د بدر د قيديانو نه کومه فديه اخستلې شوې وه د هغې بيان دې چه هغه څلورسوه درهمه وه، خوحضرت په بذل کښې د سيرت دکتابونو نه نقل کړې دي چه د فديه مقدار مختلف وو، د هر چا د حيثيت مطابق، د بعض نه څلور زره درهمه، د چا نه درې زره، او د بعض نه دوه زره، او چا سره چه د نقد ورکولو دپاره څه نه وو نو د هغه نه څه نه خدمت واخستلې شو، مثلا چا ته چه کتابت ورتلو نو د مدينې په هلکانو کښې لس هلکان هغه ته حواله کړې شو د دې دپاره چه هغوی ته کتابت اوښائی، والحديث اخرجه النسائی قاله المنذری.

[۲۶۹۲]()حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبَّادٍ، عَنْ أَبِيهِ عَبَّادِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: لَمَّا بَعَثَ أَهْلُ مَكَّةَ فِي فِدَاءِ أَسْرَاهُمْ بَعَثَتْ زَيْنَبُ فِي فِدَاءِ أَبِي الْعَاصِ بِمَالٍ وَبَعَثَتْ فِيهِ بِقِلَادَةٍ لَهَا كَانَتْ عِنْدَ خَدِيجَةَ أَدْخَلَتْهَا بِهَا عَلَى أَبِي الْعَاصِ، قَالَتْ: فَلَمَّا رَآهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَقَّ لَهَا رِقَّةً شَدِيدَةً وَقَالَ: "إِنْ رَأَيْتُمْ أَنْ تُطْلِقُوا لَهَا أَسِيرَهَا وَتَرُدُّوا عَلَيْهَا الَّذِي لَهَا، فَقَالُوا: نَعَمْ، وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَذَ عَلَيْهِ أَوْ وَعَدَهُ أَنْ يُخَلِّيَ سَبِيلَ زَيْنَبَ إِلَيْهِ، وَبَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَيْدَ بْنَ حَارِثَةَ وَرَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ فَقَالَ: "كُونَا بِبَطْنِ يَأْجَجَ حَتَّى تَمُرَّ بِكُمَا زَيْنَبُ فَتَصْحَبَاهَا حَتَّى تَأْتِيَا بِهَا".

دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائی هرکله چه دمکې والا خلقو دخپلو قيديانو دآزادولو دپاره فدئې اوليږلې نود نبی علیه السلام لور زينب رضي الله عنها هم د ابوالعاص د فدئې دپاره څه مال اوليږلو او په دې کښې هغې يوهار ليږلې وو کوم چه دخديجې وو هرکله چه نبی ﷺ داهار اوليدو نودزينب په يواځې والی اوبې کسئ باندې خفه شو او په هغې ئې زړه اوسوزيدو نبی ﷺ صحابه کرامو ته اوفرمائيل که تاسوته مناسب ښکارې نودزينب قيدې پريږدئ اودهغې مال واپس کړې هغوی اووئيل ښه ده نبی ﷺ دابوالعاص نه لوظ واخستو چه زينب به ماته دراتلونه نه منع کوې يعنی نبی ﷺ په مدينه کښې وو اوزينب په مکه کښې وه نونبی ﷺ په زينب پسې زيد بن حارثه رضي الله عنه اويو انصاري اوليږلو اودوی ته نبی ﷺ فرمائيلی وو ترڅو چه تاسوته زينب نه وی رارسيدلې نودهغه وخته پورې به تاسو په بطن ياجج مقام کښې يئ اوچه کله راشي نودځان سره ئې راولئ.
د دې روايت مضمون په کتاب النکاح کښې د هغه حديث د لاندې چه په هغې کښې دا دی چه سيدنا علی رضي الله عنه د فاطمې رضي الله عنها په نکاح کښې د موجود کيدو سره د ابو جهل د لور سره د نکاح اراده اوکړه، د دې حديث شرح د دې جلد په شروع کښې تيره شوې ده، د هغې نه روستو ئې هم يو ځل دوه حواله راغلې ده. بهرحال په دې واقعه کښې فداء الاسير بالاسير مونډلې شی کومه چه د صاحبين په نزد هم جائز دي، کما تقدم

(): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٦١٧٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٢٧٦) (حسن)

[۲۶۹۳](¹)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ، حَدَّثَنَا عَمِّي يَعْنِي سَعِيدَ بْنَ الْحَكَمِ قَالَ: أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ عُقَيْلٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: وَذَكَرَ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّ مَرْوَانَ، وَالْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ أَخْبَرَاهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ حِينَ جَاءَهُ وَفْدُ هَوَازِنَ مُسْلِمِينَ فَسَأَلُوهُ أَنْ يَرُدَّ إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ، فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَعِي مَنْ تَرَوْنَ وَأَحَبُّ الْحَدِيثِ إِلَيَّ أَصْدَقُهُ فَاخْتَارُوا إِمَّا السَّبْيَ وَإِمَّا الْمَالَ، فَقَالُوا: نَخْتَارُ سَبْيَنَا، فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَثْنَى عَلَى اللَّهِ ثُمَّ قَالَ: أَمَّا بَعْدُ فَإِنَّ إِخْوَانَكُمْ هَؤُلَاءِ جَاءُوا تَائِبِينَ وَإِنِّي قَدْ رَأَيْتُ أَنْ أَرُدَّ إِلَيْهِمْ سَبْيَهُمْ فَمَنْ أَحَبَّ مِنْكُمْ أَنْ يُطَيِّبَ ذَلِكَ فَلْيَفْعَلْ، وَمَنْ أَحَبَّ مِنْكُمْ أَنْ يَكُونَ عَلَى حَظِّهِ حَتَّى نُعْطِيَهُ إِيَّاهُ مِنْ أَوَّلِ مَا يُفِيءُ اللَّهُ عَلَيْنَا فَلْيَفْعَلْ، فَقَالَ: النَّاسُ قَدْ طَيَّبْنَا ذَلِكَ لَهُمْ يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّا لَا نَدْرِي مَنْ أَذِنَ مِنْكُمْ مِمَّنْ لَمْ يَأْذَنْ فَارْجِعُوا حَتَّى يَرْفَعَ إِلَيْنَا عُرَفَاؤُكُمْ أَمْرَكُمْ"، فَرَجَعَ النَّاسُ فَكَلَّمَهُمْ عُرَفَاؤُهُمْ فَأَخْبَرُوهُمْ أَنَّهُمْ قَدْ طَيَّبُوا وَأَذِنُوا.

دعروه بن زبير رضي الله عنه نه روايت دې چه دمروان او مسور بن مخرمه نه مې اوريدلي دي چه نبي عليه السلام فرمائيلي وو كله چه ده ته دهوازن قبيلې وفد دمسلمانيدو نه پس راغلې وو او دنبي عليه السلام نه ئې دا مطالبه كوله چه مونږ ته دې خپل مالونه راواپس كړې شي نبي عليه السلام ورته اوفرمائيل زماسره هغه خلق دي كوم چه تاسو وينئ اوزماهغه خبره خوښه وي كومه چه ډيره رېښتياوې تاسو په دوه خبرو كښې يوه خوښه كړئ يا قيديان. يامال هوازن قبيلې والا اووئيل مونږه قيديان واپس اخلو نبي عليه السلام خطبه اوفرمائيله او دالله تعالى دهنده پس ئې اوفرمائيل يقيناستاسو رونړه دكفرنه په توبې كولوسره راغلي دي اومادوى قيديان ازادول مناسب نه اوګڼل په تاسوكښې چه څوك پخپله خوښه خپل قيدي وا پس كول غواړي نو واپس دې كړي او په تاسو كښې چه څوك دخپلې حصې په وصول كولو بانديې قائم وي نوكله چه الله تعالى مونږ ته مال غنيمت راكړي نو مونږ به ده ته ددې بدل په هغې كښې وركړو اودده دپاره هم داسې كول پكاردي صحابه كرامو عرض اوكړواې دالله رسوله مونږ په دې خبره بانديې په خوشحالئ سره راضي يو يعنى د قيديانو په واپس كولو نبي عليه السلام اوفرمائيل مونږ نه پوهيږو چه په تاسو كښې دچا دا خبره خوښه ده اودچانه ده خوښه نوپه دې وجه بانديې تاسو واپس لاړ شئ تردې چه ستاسو سردار په دې معامله كښې زمونږ سره مخامخ شي نوپه دې شان سره ټول خلق واپس شول او ددوى سردارانو په دې سلسله كښې ددې خلقوسره خبرې اوكړې بياهغه خلق دوباره دنبي عليه السلام په خدمت كښې حاضر شول او نبي عليه السلام ته ئې خبر وركړو چه دوى د قيديانوپه واپس كولوبانديې راضي دي اودوى په خوشحالئ سره اجازت وركړې دې.

## جعرانه ته د وفد هوازن راتلل

په غزوه حنين كښې مسلمانانو ته چه كله فتح حاصله شوه او هغوى غنائم لره اخستلو سره چه كله په مقام جعرانه كښې ايسار شو نو د هغه په خدمت كښې د قبيله هوازن يو وفد چه په هغې كښې د هغه قبيلې اته لس اشراف او سرداران هم وو كوم چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په لاس

¹): صحيح البخاري/الوكالة ۷ (۲۳۰۷)، العتق ۱۳ (۲۵۴۰)، الهبة ۱۰ (۲۵۸۳)، المغازي ۵۴ (۴۳۱۸)، (تحفة الأشراف: ۱۱۲۵۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۲۶/۴) (صحيح)

باندې بیعت کولو سره په اسلام کښې داخل شوې وو نو هغوی رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه د هغه په قبضه کښې چه زمونږ کوم قیدیان دی په هغې کښې بعض زمونږ میاندې دی او بعض په مونږ کښې د بعض خویندې دی او بعض عمات او خالات دی، لهذا تاسو مهربانی اوکړئ او دا مونږ ته واپس کړئ، نو رسول الله ﷺ ورته اوفرمائیل ﴿ معی من ترون واحب الحدیث الی اصدقه ﴾ چه ما سره هغه خلق دی کوم چه تاسو وینئ، یعنی د رسول الله ﷺ صحابه کوم چه د دې مال اصولا مستحق شوې دی، او ګورئ زه صحیح خبره خوښوم (او هم هغه ستاسو مخې ته ږدم) هغه دا چه تاسو په دوه څیزونو کښې یوه اختیار کړئ، یا صرف قیدیان واخلئ او یا مال واخلئ، صرف سرونه واخلئ یا صرف مال یعنی په دې کښې صرف د یو سفارش کولې شم (اخر زما د ملګرو هم څه حق دې، د هغوی رعایت هم ضروری دی) هغوی عرض اوکړو چه مونږ صرف خپل قیدیان غواړو (د مال هیڅ خبره نه ده).

## د رسول الله ﷺ سفارش د صحابه کرامو نه د قبیله هوازن دپاره

په بعض روایاتو کښې دی چه رسول الله ﷺ د هغوی په دې خبره اوریدلو سره اوفرمائیل: ﴿اما الذی لبنی هاشم فلکم ﴾ یعنی د بنو هاشم په حصه کښې چه کوم قیدیان راغلي دی د هغوی خو فی الحال زه فیصله کوم چه هغه ستاسو دی، او بیا د دې نه روستو رسول الله ﷺ اودریدو او د خطبې په طور ئې د الله پاک حمد او ثناء بیان کړه او د هغه وفد هوازن مطالبه ئې د صحابه کرامو په وړاندې کیخودله، او د خپل طرف نه ئې دا سفارش اوفرمائیلو چه هغوی ته دې د هغوی قیدیان واپس کړې شی او وې فرمائیل چه کوم سړې ئې په تاسو کښې بغیر د عوض نه واپس کول غواړی هغه دې هم داسې واپس کړی، او څوک چه ئې په عوض سره واپس کوی نو هم داسې دې اوکړی، او د هغه عوض به زمونږ په ذمه وی، د دې واقعې نه پس چه د ټولو نه اول کوم مال غنیمت حاصلیږی د هغې نه به د هغه عوض ادا کولې شی، صحابه کرامو د هغه په خبره اوریدلو سره اوفرمائیل: ﴿ قد طیبنا ذلک لهم یا رسول الله ﴾ چه مونږ په خوشحالئ سره د هغوی قیدیان هغوی ته واپس کوو یعنی بغیر د عوض نه، په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه په دې اجتماعی خبره باندې مونږ یقینی نه شو پوهیدې چه څوک واقعی په خوشحالئ سره ورکولو ته تیار دې او څوک نه، لهذا دې وخت کښې تاسو خپل خپل ځائې ته رسیدو سره خپل خپل ذمه دار ماته راولیږئ، کوم چه ستاسو صحیح صحیح خبره ماته بیان کړی، پس ټول صحابه کرام پاسیدل او خپلو ځایونو ته لاړل او د هرې قبیلې مشر دې باره کښې خپلې قبیلې سره خبره اوکړه او بیا هغه ټول ذمه داران راغلل او د رسول الله ﷺ په خدمت کښې ئې عرض اوکړو ﴿ انهم قد طیبوا واذنوا ﴾، چه واقعی ټول خلق په خوشحالئ سره د قیدیانو د پریښودلو اجازت ورکوی، یعنی بغیر د عوض نه، په دې روایت کښې خو دومره دی خو په بعض نورو روایاتو کښې راځی چه ﴿ الا قلیلا من الناس ﴾ یعنی بغیر د څه خلقو نه کوم چه بغیر د عوض نه په ورکولو باندې تیار نه دی، یو په هغوی کښې اقرع بن حابس او عیینه بن حصن هم وو. کما فی البذل، والحدیث اخرجه البخاری والنسائی مختصرا، ومطولا قاله المنذری.

[٢٦٩٤]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، قَالَ: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، فِي هَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ: فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "رُدُّوا عَلَيْهِمْ نِسَاءَهُمْ وَأَبْنَاءَهُمْ فَمَنْ مَسَكَ بِشَيْءٍ مِنْ هَذَا الْفَيْءِ فَإِنَّ لَهُ بِهِ عَلَيْنَا سِتَّ فَرَائِضَ مِنْ أَوَّلِ شَيْءٍ يُفِيئُهُ اللَّهُ عَلَيْنَا، ثُمَّ دَنَا يَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَعِيرٍ فَأَخَذَ وَبَرَةً مِنْ سَنَامِهِ ثُمَّ قَالَ: يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّهُ لَيْسَ لِي مِنْ هَذَا الْفَيْءِ شَيْءٌ وَلَا هَذَا، وَرَفَعَ أُصْبُعَيْهِ إِلَّا الْخُمُسَ وَالْخُمُسُ مَرْدُودٌ عَلَيْكُمْ فَأَدُّوا الْخِيَاطَ وَالْمِخْيَطَ. فَقَامَ رَجُلٌ فِي يَدِهِ كُبَّةٌ مِنْ شَعْرٍ فَقَالَ: أَخَذْتُ هَذِهِ لِأُصْلِحَ بِهَا بَرْذَعَةً لِي فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَمَّا مَا كَانَ لِي وَلِبَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَهُوَ لَكَ، فَقَالَ: أَمَّا إِذْ بَلَغَتْ مَا أَرَى فَلَا أَرَبَ لِي فِيهَا وَنَبَذَهَا".

عمرو بن شعیب د خپل پلار نه اوهغه دده دنیکه نه روایت کوی ددې قصې متعلق فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی دوی ته ددوی ښځې او ماشومان واپس کړی او په خلقو کښې چه څوك ددې غنیمت نه دځان سره څه ساتل غواړی نوموږ به هغه لره ددې په بدل کښې شپږ اوښان ورکوو دهغه غنیمت نه چه الله تعالی ئې موږ ته راکړي، اوبیانبی ﷺ یواوښ ته ورنزدې شو اودهغه دکوپ نه ئې وړئ راوویستله اووئې فرمائیل اې خلقو ددې غنیمت په مال کښې زماهیڅ اختیار نشته دې اوهغه وړئ ئې اوښودله چه دومره اختیار مې هم نشته مګر خمس اوخمس یعنی خمس به ورکوئ اوهغه به هم واپس په تاسو باندې خرچ کولې شي نوکه دڅاسره دغنیمت دمال نه ستن اوتار هم وي نو واپس دې ئې کړي، نوپه دې وخت کښې یوکس اودریدو او په لاس کښې ئې وړی وه هغه اووئیل داوړئ مادخپلې سورلئ دګدئ دروغولو دپاره اخستلې وه نبی ﷺ اوفرمائیل کوم یوڅیز چه زما یادبنو عبدالمطلب دخاندان وي هغه ستاشو، دې کس اووئیل هرکله چه ددې رسئ داخستلوګناه ددې حده پورې ده کومه چه زه وینم نو ماته ددې هیڅ ضرورت نشته اوهغه ئې اوغورځوله.

## شرح حدیث

﴿ ردوا علیهم نسائهم وابنائهم ﴾ په حنین کښې چه کوم مال غنیمت مسلمانانو ته حاصل شوې وو هغه ډیر په اوچت مقدار کښې وو چه د هغې تفصیل په قیدیانو کښې شپږ زره زنانه او ماشومان، او په مال کښې څلیرشت زره اوښان، څلور زره اوقیه سپین زر، د څلویښتو زرو نه زیاتې ګډې بیزې.

﴿ ست فرائض من اول شئ یفیئه الله علینا ﴾ یعنی څوک چه عوض اخستل غواړی نو موږ به هغه ته په اول مال غنیمت کښې شپږ اوښان ورکوو، یعنی د هر سړی د غنیمت عوض شپږ اوښان مقرر کړې شو څوک چه اخستل غواړی.

﴿ انه لیس من هذا الفئ شئ ولا هذا ورفع اصبعیه الا الخمس ﴾ بیا هغه د یو اوښ د قب ویښته په موتی کښې اونیول او وې فرمائیل چه اوګورئ! زما دپاره په دې مال غنیمت کښې هیڅ هم نشته او نه دا ویښته کوم چه زما په موتی کښې دی سوا د غنیمت د خمس نه، او د دې خمس هم څه وی هغه به هم ستا طرف ته واپس کولې شی، یعنی مصالح مسلمین او جهاد وغیره ضروریات کښې خرڅ کولې شی.

(١): سنن النسائي/الهبة ١ (٣٦٩٠)، (تحفة الأشراف: ٨٧٨٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٨٤/٢، ٢١٨) (حسن)

﴿ فادوا الخياط والمخيط ﴾ دا په ماقبل باندې متفرع دې، يعنى كله چه زما په دې كښې سوا د خمس نه هيڅ نشته نو هم دغه شان ستاسو هم په طريق اولى سوا د واجب حق نه په دې كښې هيڅ نشته، لهذا يو سړې دې د خپلې معين حصې نه زائد يو څيز اگر كه هغه تار يا ستن ولې نه وى نه اخلى، كه اخستلې ئې وى نو هغه دې واپس كړى، لږ ساعت پس يو سړې اودريدو چه د هغه په لاس كښې د وړئ يو غونډارې وو، هغه د هغې طرف ته اشاره كولو سره عرض اوكړو چه ما دا وړئ د خپلې گدئ (زين) د اصلاح دپاره اخستلې ده، خو چونكه د دې وخته پورې مال غنيمت تقسيم شوې وو او دې سړى هغه وړئ د تقسيم نه روستو راوړې وه، هغه له پكار وو چه د تقسيم نه مخكښې ئې راوړى وې، په دې وجه رسول الله ﷺ د هغې د قبلولو نه په دې وجه عذر اوكړو چه ﴿ اما ما كان لى ولبنى عبدالمطلب فهو لك الخ ﴾ يعنى په دې وړئ كښې چه څومره حصه زما او زما د خاندان والو جوړيږى د هغې اجازت خو به زه تاته دركړم خكه چه په دې ويښتو كښې د پوره لښكر حصه وه په دې وجه هغه اوفرمائيل چه زه د خپلې حصې خو اجازت دركولې شم، او په دې كښې د نورو حصه ده نو د دې اجازت خپله د هغوى نه واخله، هغه د رسول الله ﷺ دې احتياط ته كتلو سره او اصولى خبره اوريدلو سره وې وئيل ﴿ اما اذا بلغت ما ارى الخ ﴾ بنه دامعمولى څيزدې درجې ته اورسيدو، په دې ويناسره ئې هغه اوغورځولو.

## په مال غنيمت كښې د رسول الله ﷺ د حصې بيان

دلته په دې حديث كښې دا اشكال دې چه هغه اوفرمائيل چه په مال غنيمت كښې زما هيڅ حصه نشته سوا د خمس نه، حال دا چه دا ثابته ده چه د رسول الله ﷺ دپاره به په مال غنيمت كښې درې حصې وې، ﴿ سهم كسهم احد الغانمين ﴾ يعنى د غازيانو په شان د هغه يوه حصه، وخمس الخمس، او سهم صفى، د دې دريم مستقل باب وړاندې راروان دې، د دې اشكال جواب دا وركړې شوې دې چه د رسول الله ﷺ د نفى نه مراد عام نفى ده بلكه د موجود او مخصوص مال غنيمت سره د دې تعلق دې، لهذا اوس هيڅ اشكال باقى پاتې نه شو، وينظر باب فى الامام يستاثر بشىء من الفيء لنفسه، والحديث اخرجه النسائى، قاله المنذرى.

## بَابٌ فِي الْإِمَامِ يُقِيمُ عِنْدَ الظُّهُورِ عَلَى الْعَدُوِّ بِعَرْصَتِهِمْ

### كله چه حاكم په دشمن غالب شى نو په ميدان جنگ كښې دې ايسار شى

[۲٦۹۵][1] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، قَالَ: حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ مُعَاذٍ. ح وحَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: حَدَّثَنَا رَوْحٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا سَعِيدٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، عَنْ أَبِي طَلْحَةَ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا غَلَبَ عَلَى قَوْمٍ أَقَامَ بِالْعَرْصَةِ ثَلَاثًا، قَالَ ابْنُ الْمُثَنَّى: إِذَا غَلَبَ قَوْمًا أَحَبَّ أَنْ يُقِيمَ بِعَرْصَتِهِمْ ثَلَاثًا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: كَانَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ يَطْعَنُ فِي هَذَا الْحَدِيثِ لِأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ قَدِيمِ حَدِيثِ سَعِيدٍ لِأَنَّهُ تَغَيَّرَ سَنَةَ خَمْسٍ وَأَرْبَعِينَ وَلَمْ يُخْرِجْ هَذَا الْحَدِيثَ إِلَّا بِأَخَرَةٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: يُقَالُ إِنَّ وَكِيعًا حَمَلَ عَنْهُ فِي تَغَيُّرِهِ.

---

[1]: صحيح البخاري/الجهاد ۱۸٤ (۳۰٦٤)، والمغازي ۸ (۳۹۷٦)، صحيح مسلم/صفة أهل النار ۱۷ (۲۸۷۵)، سنن الترمذي/السير ۳ (۱۵۵۱)، (تحفة الأشراف: ۳۷۷۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱٤۵/۳، ۲۹/٤)، سنن الدارمي/السير ۲۲ (۲۵۰۲) (صحيح)

دابو طلحه رضي الله عنه نه روایت دي فرمائي چه کله به نبي عليه السلام په کوم قوم باندې غالب شو نو په میدان جنګ کښې به ئې درې ورځې تیرولې، اودابن مثنې په روایت کې دي چه درې شپې تیرول به ئې ښه ګڼل، ابوداود وائی چه یحي بن سعید په دې حدیث کښې طعن وئیلې دې ځکه چه دا دسعید دمخکینو حدیثونو نه دې ځکه چه دپنځه ځلوېښت کالو په عمر کښې دهغه چه حافظه کښې تغیر راغلې وو اوداحدیث هم دهغه داخري عمر حدیث دې ابوداود وائی چه وکیع دسعید نه داروایت دهغه دتغیر په وخت کښې حاصل کړې وو.

## شرح حدیث

په حدیث الباب کښې هم دا مضمون دې چه د رسول الله ﷺ دا عادت مبارک وو چه کله به ئې په یو قوم باندې غلبه حاصلوله او یوه زمکه به ئې فتح کوله نو هلته به ئې په هغه میدان کښې د فتح نه روستو درې ورځو پورې قیام کولو، چه د هغې علماء کرامو مختلف مصلحتونه لیکلې دی مثلاً د هغه زمکې د حق ادا کول چه په هغې باندې تر اوسه پورې د غیر الله بندګی کړې شوې ده، اوس د دې فتحې نه پس څو ورځې په هغې باندې د معبود حقیقی عبادت اوکړې شی، بل په دې وجه هم چه د فتح اثار ظاهر شی، اود سورلو او د ملګرو استراحت چه هغوی ته د ارام موقع ملاؤ شی، او د خپل طاقت او بې پرواهئ اظهار، چه که اوس هم د چا د مقابلې همت وی نو رادیشی. ﴿ قال ابوداود : كان يحيى بن سعيد يطعن فى هذا الحديث ﴾ یحیی بن سعید به د دې حدیث په سند کښې طعن کولو، ځکه چه د دې په سند کښې سعید بن ابی عروبه دې کوم چه د مختلطین نه دې، یعنی په اخر عمر کښې په هغه باندې اختلاط راتلو، او په حافظه کښې ئې کمزوری راغلې وه او د مختلط حکم دا دې چه د هغه روایت قبل الاختلاط معتبر دې، او د هغې نه روستو نه، او دا حدیث د هغه د اخری عمر دې یعنی د اختلاط نه روستو.

وړاندې مصنف فرمائي چه د وکیع روایت د سعید نه د اختلاط نه روستو دې خو دلته د هغه نه روایت کولو والا وکیع نه دې بلکه روح بن عباده او معاذ بن معاذ دې، د هغه نه علاوه عبدالاعلی هم دې پس امام بخاری دا حدیث د روح بن عباده په طریق سره روایت کولو سره فرمائي چه : تابعه معاذ وعبدالاعلى، او د وکیع تحمل اګر چه د هغه نه بعد الاختلاط دې خو د دې درې واړو په باره کښې دا ثابت نه دی چه د هغه تحمل د احتلاط په حالت کښې وو، او بیا هسې هم دا حدیث متفق علیه دې، بخاری او مسلم د دې تخریج کړې دې، والحديث اخرجه البخارى ومسلم والترمذى والنسائى، قاله المنذرى.

# بَابٌ فِي التَّفْرِيقِ بَيْنَ السَّبْيِ

## د قیدیا نو دیو بل نه د جدا کولو بیان

په مال غنیمت کښې چه کوم قیدیان حاصلیږی که د یو سړی په حصه کښې چه کوم قیدیان راغلې دی په هغې کښې خپل مینځ کښې خپلولی وی او په هغوی کښې د کبیره سره سره صغیره هم وی، مثلاً د یو سړی په حصه کښې دوه غلامان راغلل دوه رونړه، یو بالغ او یو ماشوم نو په هغوی کښې تفریق کولې کیدې شی یا نه، په داسې طریقه چه هغه سړې چه د

چا په حصه کښې هغه دواړه راشي او هغه په دې دواړو کښې يو خرڅ کړې يا ئې چاته هبه کړې، په حديث کښې د دې منانعت راغلې دې.

## په مسئله مترجم بها کښې مذاهب ائمه

اوس دا خبره چه په دې کښې کوم کوم قرابتونه معتبر دی، او ترڅو پورې دا تفريق ممنوع دې؟ د دې په تفصيل کښې د ائمه کرامو اختلاف دې د احنافو په نزد د تفريق کراهت د هغه د بلوغ پورې دې، او د امام شافعی رحمه الله په نزد اووه يا اته کالو پورې دې، يعنی که هغه ماشوم د اووه يا اته کالو نه وړوکې وی نو بيا خو منع ده د هغې نه روستو منع نه دې ﴿ وقال مالک اذا اتغر ﴾ يعنی کله چه د هغه ماشوم غاښونه راوځی، او امام احمد فرمائی چه د مور او خوئی ترمينځه تفريق کله هم جائز نه دې اګر چه بالغ شی.

اوس دا چه کومې رشتې په دې کښې معتبرې دی، بين الولد والوالدة په عدم جواز باندې خو اجماع ده، بيا د احنافو په نزد د هر ذی رحم هم دا حکم دې، او د امام شافعی رحمه الله په نزد لکه چه د هغوی د کتابونو نه معلومېږی دا تحريم قرابت د پلار سره خاص دې ولد او والده، او هم دغه شان والد او جد او جد او جده، که جده د مور د طرف نه وی او که د پلار د طرف نه وی. ففی المغنی المحتاج (ج ۲ ص ۳۸) ويحرم التفريق بين الام والولد حتی يميز وفی قول حتی يبلغ ولا يحرم التفريق بينه وبين سائر المحارم کالاخ والعم، وان قوی السبکی التحريم منه بينه وبينهم اهـ وفی شرح السنة : وکذا حکم الجدة وحکم الاب والجد. اهـ (تحفه ص ۲۱۹ ج ۲)

[۲۶۹۶](1) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، قَالَ: حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ حَرْبٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ الْحَكَمِ، عَنْ مَيْمُونِ بْنِ أَبِي شَبِيبٍ، عَنْ عَلِيٍّ أَنَّهُ: فَرَّقَ بَيْنَ جَارِيَةٍ وَوَلَدِهَا فَنَهَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَلِكَ وَرَدَّ الْبَيْعَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَمَيْمُونٌ: لَمْ يُدْرِكْ عَلِيًّا قُتِلَ بِالْجَمَاجِمِ، وَالْجَمَاجِمُ سَنَةَ ثَلَاثٍ وَثَمَانِينَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَالْحَرَّةُ سَنَةَ ثَلَاثٍ وَسِتِّينَ، وَقُتِلَ ابْنُ الزُّبَيْرِ سَنَةَ ثَلَاثٍ وَسَبْعِينَ.

دميمون بن أبی شبيب رضی الله عنه نه روايت دې چه علی رضی الله عنه په قيديانو کښې د يوې جينئ اودهغې په بچو کښې جدائی راوستلې وه نو نبی عليه السلام دهغې نه منع اوفرمائيله اوسودا ئې واپس کړه. ابوداود وائی چه داروايت ميمون بن أبی شبيب د علی رضی الله عنه نه نقل کړې دې حالانکه د ميمون د علی رضی الله عنه سره ملاقات نه دې شوې اوميمون په جنګ جماجم په کال درې اتيا حجرې کښې قتل کړې شوې وو، ابوداود وائی چه دحره واقعه په کال درې شپيته حجرې کښې پيښه شوې وه اودابن زبير شهادت په کال درې اتيا هجری کښې شوې وو.

﴿ عن علی انه فرق بين جارية لها وولدها ﴾ دا تفريق چونکه د مور او خوئی ترمينځه وو، او هغه بالاتفاق ممنوع دې، وړاندې په روايت کښې دی چه ﴿ ورد البيع ﴾ د دې نه معلومه شوه چه د علی رضی الله عنه دا تفريق بالبيع وو چه هغه په دواړو کښې د يو بيع کړې وه، بلکه خبره د دې حديث نه دا معلومه شوه چه که دا قسم تفريق د بيع په ذريعه اوکړې شی نو هغه بيع فاسد ده، د امام شافعی او ابويوسف هم دا مذهب دې، د دې حديث نه د دې تائيد

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۲۸۶) (حسن)

کېږي، د امام صاحب په نزد که څوک داسې بيع اوکړي نو هغه مع الکراهت صحيح ده فاسد نه ده.

**قوله**: قال ابوداود : وميمون لم يدرک عليا... لهذا حديث منقطع دې، وړاندې فرمائی چه ميمون په جماجم جنګ کښې قتل شو، يعنی هغه جنګ کوم چه په "دير جماجم" کښې واقع شوې وو، او جنګ جماجم په ۸۳ھ کښې پيښ شوې وو، دا د ماقبل يعنی عدم ادراک علی دليل نه دې بلکه مستقل افاده ده، ځکه چه د علی رضي الله عنه د شهادت قصه په ۴۰ هجری کښې پيښه شوې وه او دا خبره ممکنه ده چه دې هغه وخت د څلورو پنځو کالو يا د هغې نه زيات وی، چه په کوم عمر کښې د صغير سماع صحيح وی. (بذل)

لهذا په دې صورت کښې ادراک کيدې شی، هم په دې وجه مونږ اووې چه دا د عدم ادراک دليل نه دې.

قال ابوداود : والحرة... ۶۳ھ

## د وقعة الحرة ذکر

مصنف دلته د دوه مشهور تاريخی جنګونو تبعا په طور د افادې ذکر کړې دې، يوه واقعة الحرة چه دا جنګ په ۶۳ھ کښې پيښ شوې وو، بله واقعه د قتل ابن الزبير رضي الله عنه، د دې په باره کښې فرمائی چه دا واقعه په ۷۳ھ کښې راپيښه شوې ده، وقعة الحرة مشهور جنګ دې کوم چه د امارت يزيد په زمانه کښې راپيښ شوې وو چه په هغې کښې د يزيد لښکر د مسلم بن عقبه په امارت کښې په مدينه منوره باندې حمله کړې وه چه په هغې کښې په سوونو صحابه کرام او تابعين شهيدان شوې وو، او د ابن الزبير رضي الله عنه بيان په الدر المنضود جلد ثالث باب الاحصار کښې ذکر دې.

د وقعة الحرة جوړ خو د ابن الزبير د فتنې نه دې هغه دا چه عبدالله بن الزبير رضي الله عنه د يزيد د بيعت نه انکار کولو سره د مدينې منورې نه مکې مکرمې ته راغلو، او اهل مکه ورسره ملګرتيا اوکړه نو په دې وجه باندې يزيد چونکه په مکه مکرمه باندې د حملې کوشش کولو اګر چه هغه په دې کښې ناکام شو خو د هغه دې حرکتونو ته کتلو سره اهل مدينه هم د يزيد خلاف شو او هغوی خپل بيعت فسخ کړو، او په مدينه کښې چه کوم بنو اميه وو د هغوی محاصره ئې اوکړه..... مروان د مدينې امير د دې خبر يزيد ته ورکړو اود هغه نه ئې مدد طلب کړو، په دې باندې يزيد يو مضبوط لښکر کوم چه په دولس زره کسانو باندې مشتمل وو، او وئيلې شوې دی چه شل زره کسان وو او مسلم بن عقبه ئې د هغې امير جوړ کړو او د مدينې طرف ته ئې اوليږلو او هغه ته ئې دا هدايت اوکړو چه اهل مدينه درې ورځو پورې پوهه کړئ که هغوی رجوع اوکړی نو صحيح ده ګينې هغوی سره دې جنګ اوکړې شی، الغرض هلته تلو سره قتال ته خبره اورسيده او اهل مدينه شکست اوخوړلو درې ورځې مسلسل په مدينه کښې قتال اوشو، دا جنګ چونکه په حره مدينه کښې شوې وو په دې وجه دې ته وقعة الحرة وئيلې شی چه په کوم ځائې کښې دا جنګ شوې وو هغه ځائې په حره راقم سره مشهور دې کوم چه د مسجد نبوی نه په يو ميل فاصله باندې دې، په دې جنګ کښې په باقی پاتې

مهاجرين وانصار او تابعينو نه يو نيم زر کسان قتل شو او د دې نه علاوه د عام مسلمانانو تعداد د ماشومانو او زنانو نه علاوه زر بيانولې شي. (الحل المفهم ص ۷۵ ج ۲)

## بَابُ الرُّخْصَةِ فِي الْمُدْرِكِينَ يُفَرَّقُ بَيْنَهُمْ

### په ځوانانو قيديانو کښې د جدائي راوستو د جواز بيان

يعنې تفريق بين السبايا هغه وخت ممنوع دې چه کله هغه وړوکې او نابالغ وى، او که بالغ وى نو د تفريق رخصت او اجازت دې.

[۲۶۹۷](۱)حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ: حَدَّثَنَا هَاشِمُ بْنُ الْقَاسِمِ، قَالَ: حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ، قَالَ: حَدَّثَنِي إِيَاسُ بْنُ سَلَمَةَ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ أَبِي بَكْرٍ وَأُمِّرَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَغَزَوْنَا فَزَارَةَ فَشَنَنَّا الْغَارَةَ، ثُمَّ نَظَرْتُ إِلَى عُنُقٍ مِنَ النَّاسِ فِيهِ الذُّرِّيَّةُ وَالنِّسَاءُ فَرَمَيْتُ بِسَهْمٍ فَوَقَعَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ الْجَبَلِ فَقَامُوا، فَجِئْتُ بِهِمْ إِلَى أَبِي بَكْرٍ فِيهِمْ امْرَأَةٌ مِنْ فَزَارَةَ وَعَلَيْهَا قَشْعٌ مِنْ أَدَمٍ مَعَهَا بِنْتٌ لَهَا مِنْ أَحْسَنِ الْعَرَبِ فَنَفَّلَنِي أَبُو بَكْرٍ ابْنَتَهَا، فَقَدِمْتُ الْمَدِينَةَ فَلَقِيَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لِي: "يَا سَلَمَةُ هَبْ لِي الْمَرْأَةَ، فَقُلْتُ: وَاللَّهِ لَقَدْ أَعْجَبَتْنِي، وَمَا كَشَفْتُ لَهَا ثَوْبًا فَسَكَتَ حَتَّى إِذَا كَانَ مِنَ الْغَدِ لَقِيَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي السُّوقِ فَقَالَ: يَا سَلَمَةُ هَبْ لِي الْمَرْأَةَ لِلَّهِ أَبُوكَ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ وَاللَّهِ مَا كَشَفْتُ لَهَا ثَوْبًا وَهِيَ لَكَ"، فَبَعَثَ بِهَا إِلَى أَهْلِ مَكَّةَ وَفِي أَيْدِيهِمْ أَسْرَى فَفَادَاهُمْ بِتِلْكَ الْمَرْأَةِ.

اياس بن سلمة دخپل پلارنه روايت کوى فرمائى چه مونږ دابوبکر رضي الله عنه سره جهادته لاړو اوهغه لره نبى عليه السلام په مونږ باندې امير مقررکړې وو، مونږ دبنى فزاره قبيلې سره جهاد وکړواود څلوروطرفونونه مو وربانديې حمله وکړله، بياې دخلقوشاته وکتل چه ماشومان اوښځې هم وې نومايوغشې وويشتو چه ددوى اودغر په مينځ کښې اولګيدونودوى راپاځيدل اوټول مې ابوبکر رضي الله عنه ته راوستل په دوى کښې يوه ښځه هم وه چه ډير اعلى لباس ئې اغوستلې وو اويوه ښکلې لورهم ورسره وه نوابوبکر رضي الله عنه هغه ماته راکړله، نوزه چه کله مدينې ته راغلم نودنبى عليه السلام سره مې ملاقات اوشو نوماته ئې اوفرمائيل اې سلمه دغه جينئ ماته را او بخښه ماورته ووئيل په الله مې دې قسم وې هغه خوزماډيره خوښه شوې ده اومالاتر اوسه دهغې پرده نده ماته کړې نونبى عليه السلام خاموش شو، تردې چه سباله بيازماسره په بازارکښې ملاوشو نوماته ئې بيا اوفرمائيل اې سلمه دغه جينئ ماته را او بخښه ستادې په خپل پلارقسم وې اود الله درضا دپاره ماورته ووئيل په الله مې دې قسم وې هغه خوزما ډيره خوښه شوې ده اومالا تر اوسه دهغې پرده نده ماته کړې اوهغه ستاشوه، نونبى عليه السلام هغه مکې والاورته ولېږله اودهغوى سره دمسلمانانو قيديان وو ددې په بدل کښې ئې ترې ازاد کړل.

د دې حديث راوى سلمه بن الاکوع رضي الله عنه دې کوم چه د سريه فزاره واقعه بيانوى چه د هغې امير صديق اکبر رضي الله عنه وو، ابن الاکوع فرمائى چه مونږ د صديق اکبر سره وتلو باندې د قبيله فزاره خلاف غزوه اوکړه او په هغوى مو حمله اوکړه، چه کله مونږ په هغوى باندې حمله

(۱): صحيح مسلم/الجهاد ١٤ (١٧٥٥)، سنن ابن ماجه/الجهاد ٣٢ (٢٨٤٦)، (تحفة الأشراف: ٤٥١٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٦/٤، ٤٧، ٥١) (حسن)

اوکړه (نو مسلمانانو ته فتح حاصله شوه، ډیر خلق قتل کړې شو، او ډیر خلق قید کړې شو او بعض د هغوی نه تختیدل، کوم چه هغه وړاندې بیانوی) بیا ما د خلقو د یو جماعت طرف ته اوکتل چه په هغوی کښې زنانه او ماشومان هم وو کوم چه په غر باندې ختلو دپاره منډې وهلې د ځان د بچ کولو دپاره، ما یو غشی اوچلولو (د هغوی د وژلو دپاره نه بلکه د هغوی د منع کولو دپاره)[1] پس هغه فرمائی چه زما غشې د غر او د هغوی ترمینځه راپریوتلو چه د هغې نه ویریدو سره هغوی هم هلته اودریدل او ما هغوی اونیول، او د صدیق اکبر په خدمت کښې مې پیش کړل په هغوی کښې د قبیله فزاره یوه داسې زنانه وه چه د هغې په بدن باندې تارکول وو، د هغې سره یوه ښکلې جینۍ وه، صدیق اکبر ئې هغه لور ماته د نفل او انعام په طور راکړه (هم د دې نه ترجمة الباب ثابت شو. ځکه چه دلته په مور او لور کښې تفریق اوشو، او ظاهره ده چه دواړه مدرکه او بالغانې وې) چه کله زه واپس کیدو سره مدینې منورې ته راغلم نو رسول الله ﷺ ماته اوفرمائیل اې سلمه دا جاریه ته ماته هبه کړه، ما عرض اوکړو والله زما خوښه شوې ده او زه تر اوسه پورې د دې خواته هم نه یم ورغلې، هغه فرمائی چه رسول الله ﷺ په دې باندې خاموشه شو، هغه فرمائی چه په بله ورځ باندې بیا د رسول الله ﷺ ما سره ملاقات اوشو او رسول الله ﷺ بیا ماته هم هغه خبره اوکړه او ما هم هغه خبره عرض کولو سره عرض اوکړو چه هغه ستاسو په خدمت کښې هدیه ده، هغه فرمائی چه رسول الله ﷺ هغه د اهل مکه طرف ته اولیږله چه د هغې د لاندې بعض مسلمانان ګیر وو، د رسول الله ﷺ دا لیږل د هغه مسلمانانو قیدیانو په بدل کښې وه، (یعنی په هغې باندې هغه مسلمانان قیدیان بحمد الله ازاد شو) اخرجه مسلم قاله المنذری وابن ماجة. (محمد عوامه).

## بَابٌ فِي الْمَالِ يُصِيبُهُ الْعَدُوُّ مِنَ الْمُسْلِمِينَ ثُمَّ يُدْرِكُهُ صَاحِبُهُ فِي الْغَنِيمَةِ

**بیان د مسلمانانو د هغه مال چه د کافرو په قبضه کښې راشی او دوباره ئې خپل مالک د غنیمت په مال کښې بیامومی**

**د مسئله مترجم بها تشریح سره د اختلاف ائمه نه:**

په دې ترجمة الباب کښې یوه مشهوره اختلافی مسئله ذکر شوې ده، چه د هغې بناء په یوه مشهوره مسئله اصولیه اختلافیه باندې دې، هغه دا چه استیلاء الکافر علی مال المسلم سبب ملک دې یا نه؟ (دا مسئله تاسو د ټولو نه اول په اصول شاشی کښې لوستلې ده) د احنافو او مالکیانو په نزد سبب ملک دې، د مالکیانو په نزد خو مطلقا او د احنافو په نزد د استیلاء سبب ملک کیدل بعد الاحراز دی، د احراز نه مخکښې نه، د دې وضاحت دا دې چه که یو کافر د یو مسلمان څه مال په څه طریقه باندې د دار الاسلام نه اوچتولو سره خپل ملک ته یوسی نو د دې استیلاء د وجې نه به هغه کافر د دې مسلمان مالک وی یا نه، د مالکیانو په نزد خو به هغه په دې باندې قابض کیدو سره مالک شی، او د احنافو په نزد به صرف په قبضې سره ملک نه ثابتیږی، چه ترڅو پورې احراز بیا نه موندلې شی یعنی هغه

[1] ځکه چه زنانه او ماشومان په جهاد کښې قتل کول ممنوع دی.

دې د دې ځائې نه دار الحرب ته نه بوځی، د امام شافعي په نزد استيلاء سبب ملک نه دې لهذا د هغوی په نزد به هغه کافر د دې مسلم د مال مالک نه وی، وعن احمد روايتان، الاول کالشافعي والثاني کمذهبنا الحنفية وهو الراجح عندهم. (الابواب والتراجم ص ١٢٥، ج ٤) د دې اصولی اختلاف د پيژندلو نه پس اوس حديث الباب اوګورئ.

[٢٦٩٨] (١) حَدَّثَنَا صَالِحُ بْنُ سُهَيْلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى يَعْنِي ابْنَ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ غُلَامًا لِابْنِ عُمَرَ أَبَقَ إِلَى الْعَدُوِّ فَظَهَرَ عَلَيْهِ الْمُسْلِمُونَ فَرَدَّهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى ابْنِ عُمَرَ وَلَمْ يُقْسَمْ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَالَ غَيْرُهُ: رَدَّهُ عَلَيْهِ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ.

دنافع نه روايت دې چه دابن عمر غلام دشمنانو طرف ته يعنی مشرکانو ته اوتختيدو نو کله چه مسلمانان په دوی باندې غالب شول نونبی ﷺ هغه غلام ابن عمرته واپس ورکړو اودائې تقسيم نکړو يعنی دغنيمت په مال کښې ئې داخل نکړو.

## د حديث شرح من حيث الفقه

په ترجمة الباب کښې مونږ کومه اصولی اختلاف مسئله بيان کړې ده د هغې نه پس اوس په دې باندې ځان پوهه کړئ چه که دا قسم مال، په مال غنيمت کښې حاصل شی نو د هغې څه کيدل پکار دی؟ ايا هغه به د مسلمان طرف ته رد کولې شی د چا چه مخکښې وو، يا که هغه به مال غنيمت منلې شی؟ د احنافو او مالکيانو د مسلک تقاضه دا ده چه هغه مال غنيمت اومنلې شی ځکه چه هغه مال د کفارو شوې وو، او د شوافعو دمسلک تقاضه دا ده چه دغه مال د هم دغه مسلمان طرف ته راواپس کړې شی، او هغه د مال غنيمت نه او نه منلې شی.

## په مسئله مترجم بها کښې د ائمه اربعه مذاهب

بيا ځان پوهه کړئ چه په دې باندې خو د ټولو اتفاق دې چه دا قسم مال چه کله په مال غنيمت کښې حاصل شی نو که د غنيمت د تقسيم نه مخکښې دا معلومه شی چه په دې کښې فلانې څيز د مسلمان دې نو په دې صورت کښې به په دې باندې د ټولو اتفاق وی چه دغه مال به د هغه مسلمان طرف ته رد کولې شی، او که د دې خبرې علم د تقسيم غنيمت نه پس وی نو په دې صورت کښې احناف او مالکيان دا وائی چه اوس به رد کولې نه شی او د شوافعو په نزد بعد القسمة هم د هغه طرف ته رد کولې شی د هغوی په نزد دې مال ته مال غنيمت وئيل هم صحيح نه دی.

ددې تفصيل نه پس په دې ځان پوهه کړئ چه که په يو حديث کښې د دې قسم مال په باره کښې رد الی المالک راغلې وی نو هغه احناف او مالکيان په قبل تقسيم الغنيمة باندې محمول کوی (ځکه چه د هغوی د مسلک تقاضه هم دا ده) خو که په يو حديث کښې د تقسيم تصريح وی او بيا هم هغه مال رد کړې شوې وی نو دا خو به د شوافعو موافق وی خو احناف او مالکيان په دې صورت کښې تاويل کوی او دا وائی چه هغه رد بالعوض وی، يعنی د هغه مسلمان نه به د هغې عوض اخستلې شی او بيا به هغه ته واپس کولې شی، هسې نه.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨١٣٥)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الجهاد ١٨٧ (٣٠٦٧)، سنن ابن ماجه/الجهاد ٣٢ (٢٨٤٦) (صحيح)

## د عبد ابق په باره کښې د امام صاحب او صاحبينو رائې

د دې نه پس په دې ځان پوهه کړئ چه که د يو مسلمان غلام د کفارو طرف ته پخپله اوتختي او بيا د هغه کفارو سره په جنګ کښې په مال غنيمت کښې هغه عبد ابق حاصل شي نو د هغه په باره کښې خپله د امام صاحب او صاحبينو خپل مينځ کښې اختلاف دې، د صاحبينو په نزد کفار د دې قسم عبد ابق مالکان کيږي څنګه چه نور د بل قسم مالک مالکان کيږي، خو امام صاحب د عبد ابق په باره کښې دا فرمائي چه کفار د هغه مالکان کيږي نه په ظاهر کښې د دې وجې نه چه دلته استيلاء چرته موندلې شوې ده څکه چه هغه عبد خو خپله تختيدلې وو لهذا د استيلاء ضابطه به په دې باندې نه نافذ کيږي، د امام صاحب خبره واقعي چه قياس ته نزدې ده، لهذا په عبد ابق کښې به د امام صاحب او امام شافعي دواړو رائې متحد وي، څنګه چه به د امام شافعي رحمه الله په نزد هغه رد کلي شي هم دغه شان به د امام صاحب په نزد هم، د باب په دې اولنی حديث کښې د عبد ابق قصه ذکر شوې ده.. چه د ابن عمر يو غلام وو هغه د کفارو طرف ته اوتختيدلو بيا چه مسلمانانو ته په هغه کفارو باندې غلبه حاصله شوه او هغه غلام هم په مال غنيمت کښې راغلو نو هغه غلام رسول الله ﷺ ابن عمر ته واپس کړو، په مال غنيمت کښې ئې شاملولو سره هغه تقسيم نه کړو، د باب د حديث اول هم دا مضمون دې، خو دا حديث د چا خلاف هم نه دې څکه چه دا رد قبل القسمة وو، او دا پورته ذکر شو چه د غنيمت د تقسيم نه مخکښې که علم راشي نو په دې صورت کښې به د ټولو په نزد د هغه څيز رد د مالک طرف ته وي.

د دې نه روستو چه کوم دويم حديث راروان دې د هغې مضمون دا دې چه يو ځل د ابن عمر يو اس د هغه د قبضې نه اووتلو کوم چه دشمنانو اونيولو او په هغې باندې يې قبضه اوکړه، بيا چه کله په هغه کفارو باندې مسلمانان غالب شو نو هغه فرس په ابن عمر باندې رد کړې شوې وو، د امام شافعي رحمه الله په نزد خو دا مطلقا ده، او د احنافو او مالکيانو په نزد په قبل القسمه تقسيم باندې محمول دې، او که دا رد بعد القسمة وو نو بيا به دا محمول کولې شي په رد بالعوض والقيمة باندې، يعنی د هغې عوض به ترې اخستلې شي او بيا به واپس کولې شي.

بيا وړاندې په دې دويم حديث کښې د ابن عمر رضي الله عنه د عبد ابق هم ذکر دې او د هغه په باره کښې هم دا دی چه هغه هغوی ته واپس کړې شو.

[۲۶۹۹](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، الْمَعْنَى قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: ذَهَبَ فَرَسٌ لَهُ فَأَخَذَهَا الْعَدُوُّ فَظَهَرَ عَلَيْهِمُ الْمُسْلِمُونَ فَرُدَّ عَلَيْهِ فِي زَمَنِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبَقَ عَبْدٌ لَهُ فَلَحِقَ بِأَرْضِ الرُّومِ، فَظَهَرَ عَلَيْهِمُ الْمُسْلِمُونَ فَرَدَّهُ عَلَيْهِ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ. بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دنافع نه روايت دې چه دابن عمر رضي الله عنه اس لاړو او دشمنانو اونيوو نو کله چه مسلمانان په مشرکانو غالب شول نو دغه اس ابن عمر څه ته واپس ورکړې شو اود نبی عليه السلام په دور کښې

(۱): صحيح البخاري/الجهاد ۱۸۷ (۳۰۶۷)، تعليقًا، سنن ابن ماجه/الجهاد ۳۳(۲۸۴۷)، (تحفة الأشراف: ۷۹۴۳) (صحيح)

دا په غنیمت کښې داخل اونه ګڼرلې شو دده یوغلام هم روم ته تختیدلې وو کله چه مسلمانان په رومیانو غالب شول نوخالد بن ولیده هغه غلام ابن عمر رضی الله عنه ته واپس کړو داخبره دنبی علیه السلام دزمانې نه دوروسته وخت ده.

امام بخاری رحمه الله هم دا مسئله اخستلې ده، باب اذا غنم المشركون مال المسلم ثم وجده المسلم، او بیا په هغې کښې هم دا حدیث د ابن عمر په مختلف طرق سره ذکر کړې دې، حديث الباب الثاني اخرجه البخاري وابن ماجة، قاله المنذري.

## بَابٌ فِي عَبِيدِ الْمُشْرِكِينَ يَلْحَقُونَ بِالْمُسْلِمِينَ فَيُسْلِمُونَ

### بیان دغلامانو د مشرکینو چه د دوی نه اوتختی او مسلمانانو ته راشی او اسلام قبول کړی

یعنی که د مشرکانو غلامان د هغوی نه خلاصیدو سره اوتختی او دار الاسلام ته راشی، بیا دلته راتلو سره مسلمانان هم شی نو د هغوی څه حکم دې؟ جواب ظاهر دې چه هغوی به ازاد شی (۱)، د مشرکانو غلامان به غلامان هله وی چه کله د مسلمانانو لاس ته د مال غنیمت په شکل باندې راشی د جهاد او قتال په ذریعه.

[۲۷۰۰](۲)حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ يَحْيَى الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ يَعْنِي ابْنَ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ أَبَانَ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ مَنْصُورِ بْنِ الْمُعْتَمِرِ، عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، قَالَ: خَرَجَ عِبْدَانٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْنِي يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ قَبْلَ الصُّلْحِ فَكَتَبَ إِلَيْهِ مَوَالِيهِمْ فَقَالُوا: يَا مُحَمَّدُ وَاللَّهِ مَا خَرَجُوا إِلَيْكَ رَغْبَةً فِي دِينِكَ وَإِنَّمَا خَرَجُوا هَرَبًا مِنَ الرِّقِّ، فَقَالَ نَاسٌ صَدَقُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ رُدَّهُمْ إِلَيْهِمْ، فَغَضِبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ: "مَا أُرَاكُمْ تَنْتَهُونَ يَا مَعْشَرَ قُرَيْشٍ حَتَّى يَبْعَثَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ مَنْ يَضْرِبُ رِقَابَكُمْ عَلَى هَذَا، وَأَبَى أَنْ يَرُدَّهُمْ وَقَالَ: هُمْ عُتَقَاءُ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ".

د علی رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دصلح حدیبیه په ورځ دصلح نه لږ مخکښې یوڅوغلامان نبی علیه السلام ته په تیخته راغلل دغلامانو مالکانو نبی علیه السلام ته اولیکل چه اې محمد فه په الله قسم داغلامان په دې وجه نه دی درغلي چه ستادین ئې خوښ دې دوی دغلامئ نه تختیدلي دي څه کسانو اووئیل داخبره ئې ریښتیاده اې دالله رسوله ورته ئې ورواپس کړه نونبی علیه السلام په غسه شو اووئې فرمائیل اې قریشیانو زماخیال دې چه تاسو دا خپل عادت نه پریږدئ تردې چه مسلط به کړي الله تعالی په تاسو باندې هغه څوك چه ستاسو څټونه به وهی ددې خبرو په وجه باندې اوانکارئې اوکړو دواپس کولونه اووئې فرمائیل داغلامان دالله تعالی دطرف نه ازاد کړې شوي دی.

د حدیث مضمون دا دې چه سیدنا علی رضی الله عنه فرمائی چه د غزوه حدیبیه په موقع باندې د صلح نه مخکښې د مشرکانو څو غلامان د هغوی د طرف نه د مسلمانانو طرف ته راغلل نو د هغوی مالکانو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته اولیکل چه زمونږ دا غلامان ستاسو طرف ته، ستاد دین د طلب او رغبت د وجې نه نه دی راغلی بلکه دا خو د غلامئ نه بچ کیدلو دپاره زمونږ د

---

(۱) علی هذا القیاس خپله مشرکان هم چه کله اسلام قبول کړی او د دار الحرب نه دار الاسلام ته راشی نو هغوی به هم ازاد وی.

(۲): سنن الترمذي/المناقب ۲۰ (۳۷۱۵)، (تحفة الأشراف: ۱۰۰۸۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۱۵۵) (صحیح)

خوا نه ستاسو طرف ته درغلي دي، په روايت كښې دي ﴿ فقال ناس : صدقوا يا رسول الله ردهم اليهم ﴾ يعنى په دې باندې بعض مسلمانانو رسول الله ﷺ ته عرض اوكړو چه د كومو مشركانو پيغام تاسو ته راغلي دې د هغوى خبره صحيح ده، لهذا دا غلامان د هغوى طرف ته واپس كړئ، نو د هغوى په دې خبره باندې رسول الله ﷺ ډير خفه شو، او ډيره سخته خبره ئې اوفرمائيله چه اې د قريشو جماعته! تاسو به د دې خپلو حركتونو نه قلار نه شئ، چه ترڅو پورې الله پاک په تاسو داسې دشمن مسلط نه كړي كوم چه ستاسو سټونه اووهي، راوى وائى چه رسول الله ﷺ د هغه غلامانو د واپس كولو نه صفا انكار اوكړو، او فرمائى : ﴿ هم عتقاء الله عزوجل ﴾.

## په حديث الباب كښې دوه كارونه قابل تحقيق دي

په دې حديث كښې دوه خبرې قابل تحقيق دي، اول دا چه په دې روايت كښې دا واقعه د يوم الحديبيه طرف ته منسوب كړې ده حضرت په بذل المجهود كښې روايات حديثيه او كتب تاريخ نه دا ثابته كړې ده چه دا غزوه د طائف ده، لهذا د ابوداود په دې روايت كښې لفظ "يوم الحديبيه" د يو راوى وهم دې، بلكه خبره حضرت دا فرمائيلې ده چه ﴿فقال ناس ﴾ مصداق ملا على قارى رحمه الله بعض صحابه كرام منلي دى، خو دا بعيده ده، اول خو د صحابه كرامو نه بعيده ده، دا خبره چه هغه د خپلو مسلمانانو رونړو په مقابله كښې د مشركانو تصديق اوكړي، دويم د رسول الله ﷺ په دې باندې د رد دا طرز او سخت وعيد په يا معشر قريش لفظ سره، دا د صحابه كرامو په حق كښې كيدل بعيد دى بلكه د دې نه مراد بعض كفار قريش دى. (١) او كه دا اومنلې شى چه دا واقعه د حديبيه ده، ګيني اصل خو دا ده چه دا واقعه غزوه طائف ده او دا ويونكى او تصديق كونكى بعض طلقاء يا بعض مؤلفة القلوب وو، او صحابه طلقاء نه د دې څيز صدور څه زيات بعيد نه دې، او على هذا القياس په دې باندې د رسول الله ﷺ وعيد، او د طلقاء په غزوه طائف كښې كيدل قرين قياس هم دى او ثابت هم دى، والله تعالى اعلم بالصواب. والحديث اخرجه الترمذى اتم منه قاله المنذرى، وفى البذل : واخرجه الحاكم فى المستدرك.

# بَابٌ فِي إِبَاحَةِ الطَّعَامِ فِي أَرْضِ الْعَدُوِّ

## د دشمن په علاقه كښې د خوراك څښاك د څيزونو د خوړلو د اباحت بيان

د دې ځائې نه د ابوابو رخ بدليږي، پس دا څو بابونه د مال غنيمت د بابونو متعلق دى، په مال غنيمت كښې د تصرف متعلق مصنف څو بابونه مسلسل تړلي دى اصل په دې كښې دا ده چه په مال غنيمت كښې تصرف قبل القسمة جائز نه ده خو بعض څيزونه د دې نه مستثنى

---

(١) خو په دې باندې به دا اشكال ضرور وى چه په روايت كښې دا دى چه ويونكو دا خبره د رسول الله ﷺ نه په "يا رسول الله" سره خطاب كولو سره اوكړه، د دې توجيه دا كيدې شى چه دا مقام مقام د تملق وو د خوشامدئ په طور به هغوى دا خطاب كړې وى او بعض طالبانو ماته د دې دا توجيه ذكر كړه چه كيدې شى ويونكى منافقان وى په دې وجه ئې په يا رسول الله سره خطاب اوكړو، خو د منافقانو هلته كيدل فهم ته نه راځى)

دی چه په هغې کښې تصرف قبل القسمة اباحت وارد دې، دا څو ابواب هم د دې متعلق دی، دا اولنې باب د طعام متعلق دې د خوراک څکاک د څیزونو په باره کښې خو د علماء کرامو اتفاق دې چه په هغې کښې تصرف عند الضرورة بقدر الضرورت د مجاهدینو دپاره جائز دې، اګر چه بغیر د امام د اذن نه وی، د جمهورو په نزد کما قال عیاض، وعند الزهری الاباحة بشرط اذن الامام.

[٢٧٠١](١) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ حَمْزَةَ الزُّبَيْرِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ جَيْشًا غَنِمُوا فِي زَمَانِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامًا وَعَسَلًا فَلَمْ يُؤْخَذْ مِنْهُمُ الْخُمُسُ.

دابن عمر رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه یولښکر دنبی علیه السلام په زمانه کښې دوډئ اوشهد په غنیمت کښې حاصل کړل نوددوی نه خمس وانه خیستلې شو.

طعام او عسل نه د خمس ویستلو وجه دا ده چه مجاهدینو هغه په دار الحرب کښې خوړلو څکلو سره خرچ کړې وو، د غنیمت په طور باندې دا ئې محفوظ ساتلې دې چه دا به تقسیم کولې شی او ددې نه خمس راویستلې شی، اخراج خمس خود تقسیم په وخت وی.

[٢٧٠٢](٢) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، وَالْقَعْنَبِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ، عَنْ حُمَيْدٍ يَعْنِي ابْنَ هِلَالٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ قَالَ: دُلِّيَ جِرَابٌ مِنْ شَحْمٍ يَوْمَ خَيْبَرَ قَالَ: فَأَتَيْتُهُ فَالْتَزَمْتُهُ قَالَ: ثُمَّ قُلْتُ: لَا أُعْطِي مِنْ هَذَا أَحَدًا الْيَوْمَ شَيْئًا قَالَ: فَالْتَفَتُّ فَإِذَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَبَسَّمُ إِلَيَّ.

دعبیدالله بن مغفل نه روایت دې فرماي سپنه د خیبر په ورځ دوازدې یوه تهیلی زوړنده وه دې وائی چه زه ورته جوښت شوم او په ژبه یاپه زړه کښې مې ووئیل چه ددې نه به نن چاله هیڅ هم نه ورکوم نوکله چه زه دنبی علیه السلام طرف ته ور وګرځیدم او اومې کتل نونبی علیه السلام زماپه دې کارپورې خندل څکه چه داسې کاردانصارو د خوئی خصلت نه خلاف وو.

## مضمون حدیث

سیدنا عبدالله بن مغفل رضي الله عنه فرمائی چه په جنګ خیبر کښ، یعنی چه کله هغه فتح کولې شی او مال غنیمت لوټ کولې شی نو د څرمنې یوه تهیلا زوړنده ماته ښکاره شی، نو زه هغې ته اورسیدم او هغه ئې قبضه واخستله او وې وئیل (چه دا ټول به زه اخلم) او چاته به په هغې کښې نه ورکوم (دا ټول منظر رسول الله صلی الله علیه وسلم شاته ولاړ لیدلو او اوریدلو چه د هغې خبر هغوی ته نه وو) هغه وائی: ما چه کله شاته اوکتل نو څه ګورم چه رسول الله صلی الله علیه وسلم زما طرف ته کتلو سره مسکې شو، په دې روایت کښې خو دومره دی، د مسند ابوداود طیالسی په روایت کښې د دې نه روستو دا دې چه هغه اوفرمائیل: ﴿ هو لک ﴾ چه ښه دا هم ته واخله. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، قاله المنذری.

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧٨١١)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/فرض الخمس ٢٠ (٣١٥٤) (صحيح)

(٢): صحيح البخاري/الخمس ٢٠ (٣١٥٣)، والمغازي ٣٨ (٤٢١٤)، والصيد ٢٢ (٥٥٠٨)، صحيح مسلم/الجهاد ٢٥ (١٧٧٢)، سنن النسائي/الضحايا ٣٧ (٤٤٤٠)، (تحفة الأشراف: ٩٦٥٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٨٦، ٥/٥٥، ٥٦)، سنن الدارمي/السير ٥٧ (٢٥٤٢) (صحيح)

## بَابٌ فِي النَّهْيِ عَنِ النُّهْبَى، إِذَا كَانَ فِي الطَّعَامِ قِلَّةٌ فِي أَرْضِ الْعَدُوِّ

**باب د تالان ممانعت، د دښمن په علاقه کښې کله چه خوراک کم وی**

﴿ نهبی ﴾ په وزن د عمری مصدر دې، یعني لوټ مار، او دلته مراد د دې نه هغه څیز دې کوم چه په مال غنیمت کښې قبل القسمة واخستلې شي د دې ترجمة الباب حاصل دا دې چه د خوراک څکاک څیز اخستل اګر چه مباح دی خو که په خوراک کښې قلت او تنګسیا وی نو بیا قبل القسمة چا له هم نه دی اخستل پکار.

[٢٧٠٣](1) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا جَرِيرٌ يَعْنِي ابْنَ حَازِمٍ، عَنْ يَعْلَى بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ أَبِي لَبِيدٍ، قَالَ: كُنَّا مَعَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَمُرَةَ بِكَابُلَ، فَأَصَابَ النَّاسُ غَنِيمَةً فَانْتَهَبُوهَا فَقَامَ خَطِيبًا فَقَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَى عَنِ النُّهْبَى فَرَدُّوا مَا أَخَذُوا فَقَسَمَهُ بَيْنَهُمْ.

دابولبیب نه روایت دې فرمائی چه زه دعبد الرحمن بن سمره رضي الله عنه سره په کابل کښې ووم او مجاهدینو غنیمت حاصل کړو او تالان ئي اوکړو نودې پاسیدو اوخطبه ئي ورکوله اووئي وئیل دنبی علیه السلام نه مې اوریدلی دی چه منع ئي کوله دتالان کولونه نوڅه چه مو اغستي وي هغه واپس کړئ نوچه کله واپس کړې شول نوپه دوی باندې ئي تقسیم کړل.

### شرح حدیث

په دې روایت کښې د خلقو د مال غنیمت د لوټ کولو ذکر دې چه قبل التقسیم خلقو هغه اخستل شروع کړل په دې باندې عبدالرحمن بن سمره په ولاړه باندې خلقو ته د رسول الله ﷺ حدیث نه دې اوریدلې، په دې باندې خلقو چه څه اخستلې وی ټول واپس کړل، بیا هغه دا باقاعده تقسیم کړلو، په دې روایت کښې چه د کوم مال غنیمت د خوړلو ذکر دې که د دې نه مراد غیر طعام دې، مختلف اشیاء خو هله ظاهر دې چه د هغې اخستل جائز نه وو او که هغه د طعام د قبیل نه وو لکه چه د ترجمة الباب تقاضه هم ده، نو اګر چه د اخذ طعام اباحت دې خو د قلت په صورت کښې اباحت نشته لکه چه مصنف په ترجمة الباب کښې اشاره کړې ده.

[٢٧٠٤](2) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ الشَّيْبَانِيُّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي مُجَالِدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى، قَالَ: قُلْتُ: هَلْ كُنْتُمْ تُخَمِّسُونَ يَعْنِي الطَّعَامَ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: أَصَبْنَا طَعَامًا يَوْمَ خَيْبَرَ فَكَانَ الرَّجُلُ يَجِيءُ فَيَأْخُذُ مِنْهُ مِقْدَارَ مَا يَكْفِيهِ ثُمَّ يَنْصَرِفُ.

دعبدالله بن أبی أوفی رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه ما اووئیل چه ایا تاسو به دنبی علیه السلام په زمانه کښې دخوراك په څیزونو کښې دغنیمت دمال نه خمس ورکولو؟ نووئي وئیل چه مونږ ته دغزوه خیبر په ورځ باندې په غنیمت کښې خوراك ملاو شو نوهریو کس به راتلو اودخپل ضرورت په مناسب به ئي دڅان دپاره اوړل اوبیابه لاړل.

عبدالله بن ابی اوفی د بعض صحابه کرامو نه د تخمیس طعام په باره کښې تپوس اوکړو چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې به د طعام تخمیس کیدلو، هغوی جواب ورکړو چه جنګ

(1) تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩٦٩٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦٢/٥، ٦٣)، سنن الدارمي الأضاحي ٢٣ (٢٠٣٨) (صحيح)

(2) تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٥١٧٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٥٥/٤) (صحيح)

خیبر کښې مونږ ته طعام حاصل شوې وو نو هلته دا صورت وو چه هر سړې په دې کښې په قدر د ضرورت واخستلو او لاړو، په قدر د ضرورت خو اخستل جائز دی خو د دې نه پس هم که باقی پاتې نه شی نو ظاهره ده چه دا د مال غنیمت په شان تقسیم کړې شی بعد الخمیس، هم دغه شان د د دې حدیث نه معلومه شوه چه په مال غنیمت کښې د خوراک څکاک څیز که په کثیر مقدار کښې وی نو بیا د هغې په اخستلو کښې هیڅ باک نشته، د اخستلو نه منع د قلت په صورت کښې ده.

[٢٧٠٥]()حَدَّثَنَا هَنَّادُبْنُ السَّرِيِّ، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، عَنْ عَاصِمٍ يَعْنِي ابْنَ كُلَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ فَأَصَابَ النَّاسَ حَاجَةٌ شَدِيدَةٌ وَجَهْدٌ وَأَصَابُوا غَنَمًا فَانْتَهَبُوهَا فَإِنَّ قُدُورَنَا لَتَغْلِي، إِذْ جَاءَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْشِي عَلَى قَوْسِهِ فَأَكْفَأَ قُدُورَنَا بِقَوْسِهِ ثُمَّ جَعَلَ يُرَمِّلُ اللَّحْمَ بِالتُّرَابِ ثُمَّ قَالَ: "إِنَّ النُّهْبَةَ لَيْسَتْ بِأَحَلَّ مِنَ الْمَيْتَةِ أَوْإِنَّ الْمَيْتَةَ لَيْسَتْ بِأَحَلَّ مِنَ النُّهْبَةِ". الشَّكُّ مِنْ هَنَّادٍ.

عاصم بن کلیب د خپل پلارنه اوهغه دیو انصاري نه روایت کوی فرمائی چه مونږ دنبی علیه السلام سره په یوسفر کښې لاړو خلقو ته په دې سفرکښې دخوراك متعلق ډیر مشکلات پېښ شول بیادې خلقو ته یوڅوچیلی ملاو شوې هریوکس چه به څه موندل نوهغه به ئې لوټ کول اوزمونږه کټوئ خوټ کیدله اودنبی علیه السلام سره خپله لینده ورسره وه اوراروان وو اوزمونږه کټوئ ئې پخپله لینده باندې نسکوره کړه اودغوښې پوټې ئې په خاورو پورې مږل اوبیا ئې اوفرمائیل تالان خودمرداري نه څه ښه نه دې یاداچه تالان خو د مرداري نه حلال نه دې د هناد راوي په دې دوه جملو کښې شك دې.

یو انصاری صحابی د رسول الله ﷺ د یوې غزوې ذکر فرمائی چه په دې جنګ کښې خلقو ته ډیرمشقت اوچت کړې وو او لوږه ئې برداشت کړې وه، په دې حالت کښې هغوی ته بعض بیزې حاصلې شوې، مجاهدینو د لوږې په سختنه کښې هغه ذبح وغیره کولو سره د غوښې د تیارولو دپاره په اور باندې کټوئ په سر کړی، لږ ساعت پس رسول الله ﷺ تشریف راوړلو، د هغه په لاس مبارك کښې یوه لینده وه، د هغې په ذریعه ئې هغه ټولې کټوئ واړولې. ﴿ ثم جعل یرمل اللحم بالتراب ﴾ یعنی د کټوئ غوښه ئې په خاورو او شړو کښې واړوله او دا ئې اوفرمائیل: دا د لوټ مار مال د مردار نه څه کم نه دې یعنی په حرمت کښې.

## د حدیث توجیه او تشریح

ځان پوهه کړئ چه د اباحت طعام مسئله د مهیا للاکل سره خاص نه ده، یعنی د تیار شوی خوراک سره بلکه په دې کښې څاروی وغیره هم داخل دی هغه هم د طعام په حکم کښې دي، هغې لره اخستلو سره او ذبح کولو سره خوړلې شی ﴿ صرح به الفقهاء ﴾ خو په دې واقعه کښې چه رسول الله ﷺ کوم تشدد اختیار کړې وو او هغه ئې حرام کړې وو او ددې په دوه وجو کښې یوه وجه کیدې شی یا خو داسې اوئیلې شی یا خوبه دا وئیلې شی چه په غنم کښې قلت وو (کما فی ترجمة الباب) او یا دا چه د دې حضراتو اخستل په قدر د حاجت نه وو

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٦٦٢) (صحيح)

بلکه د دې نه ئې زيات اخستلې وي کوم چه جائز نه دې، والله تعالى اعلم.
په دې واقعه کښې دا اشکال راځي چه اکفاء قدور او د هغې نه روستو کومه چه هغه د غوښو سره په خاورو ککړ کړې دې په دې کښې اضاعت مال دې او مال هم هغه د کوم سره چه د خلقو حق متلعق دې، يعنى د مجاهدينو، د دې يو جواب حضرت هم په بذل کښې بعض شارحينو نقل کړې دی او بل جواب دې دا هم کيدې شي چه رسول الله ﷺ شارع دې هغه چه څه اوکړل د سراسر دينى مصلحت په بنياد ئې اوکړل، يعنى يو حرام څيز چه د هغې د استعمال صحابه کرامو اراده کړې دې نو د دې فعل قباحت او شناعت ثابتولو دپاره دا عملى شکل هغه اختيار اوفرمائيلو.

## بَابٌ فِي حَمْلِ الطَّعَامِ مِنْ أَرْضِ الْعَدُوِّ

**د دارحرب نه د ځان سره د خوراک څښاک د څيزونو د راوړلو بيان**

**د ترجمة الباب شرح:**

په دې ترجمه کښې دوه احتمالات دى من ارض العدو غايت يا خو الى محل اقامتهم وى يا الى المدينة، که اول مراد دې نو بيا دا جائز ده يعنى په ميدان جنگ کښې د بعض خوراک څيزونه اوچت کړل په خپلو خيمو کښې اخستلو سره د هغې خوراک او که ثانى مراد وى نو بيا دا جائز نه ده، ځکه چه د اخذ طعام اباحت صرف د دار الحرب پورې محدود دې، يعنى هغه لره اوچتولو سره هم هلته خوړل لاجل الحاجة، او د هغه ځائې نه اوچتولو سره دار الاسلام منتقل کول د دې هيڅ گنجائش نشته، د جواز انتقال نه پس خو بعد القسمة کيدې شي

[٢٧٠٦] (١) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ، أَنَّ ابْنَ حَرْشَفٍ الْأَزْدِيَّ، حَدَّثَهُ عَنِ الْقَاسِمِ مَوْلَى عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ بَعْضِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: كُنَّا نَأْكُلُ الْجَزَرَ فِي الْغَزْوِ وَلَا نَقْسِمُهُ حَتَّى إِنْ كُنَّا لَنَرْجِعُ إِلَى رِحَالِنَا وَأَخْرِجَتُنَا مِنْهُ مُمْلَأَةٌ.

قاسم (دعبدالرحمن ازاد کړې شوى غلام د بعضې ملگرو دنبى ﷺ نه روايت کوى چه فرمائى ئې مونږ به په جهاد کښې داوښانو غوښې خوړلې اونه به موتقسيمولې تردې چه مونږ به کله خپلوخيموته واپس کيدو نو زمونږه توشه دانونه به دغوښونه ډک وو.

**شرح حديث**

يو صحابى فرمائى چه په جنگونو کښې مونږ خلقو د اوښانو غوښه خوړل او هغې لره باقاعده نه تقسيموله (او په مقدار کښې دومره زائد اخستلو) تردې چه مونږ به د خپلو استوگنو طرف ته واپس کيدلو په دې حال کښې زمونږ تهيلې د غوښو نه ډک وو.
په دې حديث کښې د رحال نه مراد که محل اقامت فى الغزو دې نو بيا خو د څه خاص اشکال خبره نه ده ځکه چه په دې صورت کښې د دې غوښې نقل کول نه مونډلې کيږى بلکه د دار الحرب قصه پاتې شوې ده، او که د رحال نه مراد الى منازلهم فى المدينة دې نو دا احتمال صحيح نه دې، ځکه چه مال غنيمت لره منتقل کول د دار الحرب نه قبل التقسيم

(١) تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٦٥٨) (ضعيف)

جائز نه دي، او دلته تصريح د ﴿ ولا نقسمه ﴾ ده ګيني احتمال ثاني لره اخستلو سره به مونږ دا وئيلې وې چه بعد القسمة مراد دي په دې حديث کښې لفظ ﴿ الجزر ﴾ راغلې دې، په بعض شروح کښې دی چه ﴿ الجزر ﴾ جمع ده ﴿ جزور ﴾ په معنی د اوښ او د دې معنی ﴿ شاة ﴾ مذبوحه هم ليکلې ده، او حضرت په بذل کښې احتمالا د دې معنی د ګاځرې هم ليکلې دی، کومه چه مشهوره سبزی وه، ﴿ اخرجت ﴾ جمع د خرج ده يعنی تهيلا، په اصل کښې د دابه په شا باندې کومه چه د ټاټ بورئ اچولې شی، چه د هغې دوه حصې وی ښی او ګس طرف ته دې ته حرج وئيلې شی، د خرجی لفظ په دې معنی کښې اردو کښې هم مستعمل دې.

## بَابٌ فِي بَيْعِ الطَّعَامِ إِذَا فَضَلَ عَنِ النَّاسِ فِي أَرْضِ الْعَدُوِّ

### د دښمن په زمکه کښې د زياتی خوراکی څيزونو د مال غنيمت د خرڅولو بيان

په ظاهره کښې د ترجمة الباب مطلب دا دې چه که د مجاهدينو د خوراک څکاک څيز قبل التقسيم په دار الحرب کښې د مال غنيمت نه واخلی يعنی د ضابطې مطابق د هغې اخستل جائز دی، په دې کښې که څه مقدار بچ شی نو هغه هم ځائې، يعنی دار الحرب کښې خرڅيدلې شی يا نه؟ مسئله دا ده چه په مال غنيمت کښې يو څيز لره قبل القسمة که هغه طعام وی يا غير طعام وی جائز نه دې، او که چا بيع اوکړه نو ﴿ رد الثمن فی الغنيمة بالاتفاق ﴾ واجب دې، لهذا مبادلة الطعام بالطعام ضرورة جائز دې.

[٢٧٠٧]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُصَفَّى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ يَحْيَى بْنِ حَمْزَةَ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو عَبْدِ الْعَزِيزِ شَيْخٌ مِنْ أَهْلِ الْأُرْدُنِّ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ نُسَيٍّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ غَنْمٍ قَالَ: رَابَطْنَا مَدِينَةَ قِنَّسْرِينَ مَعَ شُرَحْبِيلَ بْنِ السِّمْطِ فَلَمَّا فَتَحَهَا أَصَابَ فِيهَا غَنَمًا وَبَقَرًا فَقَسَمَ فِينَا طَائِفَةً مِنْهَا وَجَعَلَ بَقِيَّتَهَا فِي الْمَغْنَمِ، فَلَقِيتُ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ فَحَدَّثْتُهُ فَقَالَ مُعَاذٌ: غَزَوْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ فَأَصَبْنَا فِيهَا غَنَمًا فَقَسَمَ فِينَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَائِفَةً وَجَعَلَ بَقِيَّتَهَا فِي الْمَغْنَمِ.

دعبد الرحمن بن غنم نه روايت دې چه مونږه دشرحبيل بن سمط سره دقنسرين ښار محاصره اوکړه کله چه مجاهدينو دا ښار فتح کړو نوغوا اوچيلی ئې حاصلې کړې نويوڅه ئې په مونږ باندې تقسيم کړې اوباقی ئې په مال غنيمت کښې شامل کړې بيا ماد معاذ بن جبل رضي الله عنه سره ملاقات اوکړو اودا واقعه مې ورته بيان کړه معاذ رضي الله عنه او فرمائيل چه مونږ دنبی عليه السلام په ملګرتيا کښې دخيبر جهاد کړې وو مونږ ته هم هلته چيلن ملاو شوي وي اونبی عليه السلام يوڅه په مونږ تقسيم کړې اوباقی ئې په مال غنيمت کښې شامل کړې.

### د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت

د حديث مضمون خو مخامخ راغلو خو سوال دا دې چه د دې د ترجمة الباب سره څه مطابقت دې، په ترجمة الباب کښې د بيع الطعام ذکر دې، د طعام په باره کښې خو دا وئيلې کيدې شی چه د دې نه مراد غير مهيا للاکل دې، کوم چه په بقر او غنم باندې صادق راځی، خو په دې واقعه کښې بيع چرته موندلې شوې ده، حضرت په بذل کښې عدم مطابقة

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٣٣٤) (حسن)

الحديث للترجمة اشکال ليکلو سره د حضرت ګنګوهي د تقرير نه د دې د جواب ورکولو کوشش فرمائيلې دې هغه دې په بذل کښې اوکتلې شي، زما په ذهن کښې د دې جواب ډيره موده پس ذهن ته راغلو چه په دې حديث باندې مصنف چه کومه ترجمه د بيع قائم کړې ده هغه د فقه المصنف د قبيل نه دی لهذا حديث او ترجمه ترمينځه صريح مطابقت تلاش کول دې بې سوده دې، زما په خيال کښې د مصنف غرض دا دې چه دا خو ظاهر دې چه قبل القسمة د مال غنيمت بيع طعام وی يا غير طعام جائز نه دی، صرف د ضرورت مطابق طعام او په قدر د ضرورت اخستلې شی په دې کښې هم که څه بچ شی نو هغه د مال غنيمت طرف ته واپس کيدل ضروری دی، خو مصنف دا وائی چه که په دار الحرب کښې د خوراک څکاک څيزونه د تقسيم امام د طرف نه وی نو د دې نوعيت دويم دې د دې بيع جائز دې، ځکه چه د امام ورکول په طور د تمليک دې نه په طريقه د اباحت، په خلاف د دې د لښکر د خوراک څکاک څيز قبل القسمة پخپله مال غنيمت کښې اوچت شی نو اګر چه د هغې اوچتول ناجائز دی، د قاعدې مطابق خو په دې صورت کښې د دې بيع جائز نه ده، پخپله د اخستلو جواز په طريق د اباحت دې، په طريق د تمليک نه دې، او دلته حديث الباب کښې د طعام تقسيم امير د طرف نه وی، په دې صورت کښې هغه خلق د دې مالک شو ځکه چه هغه لره چه څه غواړی کولې شی اګر چه هغه ئې هبه کړی يا بيع، هذا ما عندی، والله تعالی اعلم بالصواب.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَنْتَفِعُ مِنَ الْغَنِيمَةِ بِالشَّيْءِ

### د تقسيم نه مخکښې د غنيمت د څيزونو د استعمال د مما نعت بيان

د مال غنيمت نه چه په کومو څيزونو کښې تصرف قبل القسمة جائز دې، د هغه څيزونو بيان روان دې د ټولو نه په شروع کښې مصنف طعام بيان کړې دې، او په دې ترجمه کښې د طعام نه علاوه نور بعض څيزونه يعنی مرکوب او ملبوس بيانوی، او د دې نه وړاندې باب کښې استعمال سلاح بيانوی.

### د ترجمة الباب والا مسئله کښې مذاهب ائمه

د دې استعمال عند الجمهور که بغير د ضرورت دې يا د خپل ضرورت دپاره دې نو بيا خو ناجائز دې، او که د حرب او د قتال ضرورت نه دا استعمالولې شی نو جائز دې، او د ملبوس په باره کښې دا دې چه که د سخت ضرورت په وخت استعمالولې شی نو بيا جائز دې. كذا يستفاد من البذل، ومغنی المحتاج للشافعية، والمغنی لابن قدامة، او کوم څيز چه دوائی استعمال کړې شی په دې کښې اختلاف دې، د احنافو او د حنابله په نزد عند تحقق الحاجة والضرورة د دې استعمال جائز دې، د شوافعو په نزد استعمال دواياني جائز نه دی الا بالقيمة. او د اکل فواکه جواز شافعيه، حنابله په نزد عند تحقق الحاجة والضرورة د دې استعمال جائز دې، د شوافعو په نزد دلته استعمال او دا جائز نه دې الا بالقيمة، او د اکل فواکه جواز د شوافعو او حنابلو په نزد عند تحقق الحاجة والضرورة د دې استعمال جائز دې، د شوافعو په

نزد د دوايانو استعمال جائز نه دي الا بالقيمة. او د اكل فواكه جواز شوافعو او حنابله په كتابونو كښې مصرح ده، هم دغه شان بذل كښې د احنافو مذهب ليكلې دې، او د امام مالك نه مركوب او ملبوس وغيره استعمال چه كله هغه د قتال ضرورت وى دوه روايتونه دى، جواز او عدم جواز صرح به الباجى كما فى الاوجز، په پورته مذكوره مسائلو كښې مذاهب ائمه ډير تتبع او مراجعت كتب نه پس ليكلې دې، په اوجز كښې دلته حافظ باندې د مذاهب په سلسله كښې تعقب كړې دې چه په هغې په ظاهره كښې تسامح دې.

[۲۷۰۸]()حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ المعنى، قَالَ أَبُو دَاوُد، وَأَنَا لِحَدِيثِهِ أَتْقَنُ قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاق، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ أَبِي مَرْزُوقٍ مَوْلَى تُجِيبَ، عَنْ حَنَشٍ الصَّنْعَانِيِّ، عَنْ رُوَيْفِعِ بْنِ ثَابِتٍ الْأَنْصَارِيِّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَبِالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يَرْكَبْ دَابَّةً مِنْ فَيْءِ الْمُسْلِمِينَ حَتَّى إِذَا أَعْجَفَهَا رَدَّهَا فِيهِ، وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَبِالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يَلْبَسْ ثَوْبًا مِنْ فَيْءِ الْمُسْلِمِينَ حَتَّى إِذَا أَخْلَقَهُ رَدَّهُ فِيهِ".

د رويفع بن ثابت انصاري رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه نبى عليه السلام فرمائيلى دى: د چاچه په الله تعالى اوپه ورځ داخرت باندې ايمان وي نوپه هغه سورلئ دي نه سوريږي كومه چه دمسلمانانو دغنيمت په مال كښې شامل وي اګرچه ده داځورب خاوري خواراومانده كړي هم وي نوبيابه ئې هم واپس كوي په غنيمت كښې اودچاچه په الله تعالى اوپه ورځ دلخرت باندى ايمان وي نودمسلمانانو دغنيمت جامې دي نه اغوندى اګر چه ده په استعمال سره زړي كړي هم وي خوبيابه ئې هم واپس كوي په غنيمت كښې،

﴿ من كان يومن بالله وباليوم الاخر فلا يركب دابة من فئ المسلمين ﴾ چه د كوم سړى په الله پاک او د قيامت په ورځ باندې ايمان وى (دا تعليق د ايمان بالله سره سره دتاكيد او اهتمام په طور دې) نو هغه له ښكار دى چه د مال غنيمت په يوه سورلئ باندې داسې سور نه شى چه كله د هغه نه سورلى واخستلې شى نو هغه كمزورې كړى نو بيا دې هغه په مال غنيمت كښې واپس كړى، هم دغه شان وراندې د استعمال ثوب په باره كښې فرمائى چه هغه استعمال كړى او چه كله هغه خراب يا زوړ شى نو هغه دې په مال غنيمت كښې واپس كړى، ابن قدامه هم د هغه حديث نه د مركوب او ملبوس په عدم جواز باندې استدلال كړې دې، د دې حديث سياق په دې خبره باندې مشعر دې چه د دې استعمال نه مراد هغه استعمال دې كوم چه بغير د ضرورت نه وى. كما هو مذهب الجمهور.

## بَابٌ فِي الرُّخْصَةِ فِي السِّلَاحِ يُقَاتَلُ بِهِ فِي الْمَعْرَكَةِ

### كه په جنګ كښې اسلحه ملاوْشى نواستعمال ئې په جنګ كښې جائز دى

د مصنف په دې ترجمه كښې اشاره ده چه د استعمال سلاح جواز هغه وخت دې چه كله د قتال د ضرورت دپاره وى يعنى خپل ذاتى ضرورت نه وى.

(): انظر حديث رقم: (۲۱۵۸)، (تحفة الأشراف: ۳۶۱۵) (حسن صحيح)

[۲۷۰۹]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، قَالَ: أَخْبَرَنَا إِبْرَاهِيمُ يَعْنِي ابْنَ يُوسُفَ بْنِ إِسْحَاقَ بْنِ أَبِي إِسْحَاقَ السَّبِيعِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ السَّبِيعِيِّ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو عُبَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: مَرَرْتُ فَإِذَا أَبُو جَهْلٍ صَرِيعٌ قَدْ ضُرِبَتْ رِجْلُهُ فَقُلْتُ: يَا عَدُوَّ اللَّهِ يَا أَبَا جَهْلٍ قَدْ أَخْزَى اللَّهُ الْأَخِرَ قَالَ: وَلَا أَهَابُهُ عِنْدَ ذَلِكَ فَقَالَ: أَبْعَدُ مِنْ رَجُلٍ قَتَلَهُ قَوْمُهُ فَضَرَبْتُهُ بِسَيْفٍ غَيْرِ طَائِلٍ فَلَمْ يُغْنِ شَيْئًا حَتَّى سَقَطَ سَيْفُهُ مِنْ يَدِهِ فَضَرَبْتُهُ بِهِ حَتَّى بَرَدَ.

ابوعبیده دخپل پلار عبدالله بن مسعود نه روایت کوی چه زه په غزوه بدرکښې دشریک کیدو دپاره لاړم نوما ابوجهل اولیدو چه پروت دې اوپه خوباندې ئې دتورو دګذارونو نشانونه وو ما اووئیل اې دالله دشمنه اې ابوجهله اخرالله تعالی ذلیل کړې اوته دالله درحمت نه لرې وې عبدالله والی په دې وخت کښې زه دهغه نه نه ویریدم هغه اووئیل ډیره دتعجب خبره ده چه یوسړې دهغه خپل قوم مړ کړې بیا ماپه ده باندې د تورې وار اوکړو لیکن اونه لګیدو تردې چه دهغه توره دهغه دلاس نه پریوته ماهم دده په توره دې قتل کړو تردې چه یخ شو.

## شرح حدیث

عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائی، په جنګ بدر کښې زه په رئیس المشرکین ابو جهل باندې راتیر شوم کوم چه په میدان جنګ کښې جدا پروت وو، چه د هغه خپه غوخه شوې وه، ما د هغه طرف ته رخ کولو سره اووې (د هغه د رسوا او ذلیل کولو دپاره) ﴿ یا عدو الله یا ابا جهل ﴾ او دا مې هم ورته اووې چه نن خو الله پاک ذلیل سړې نور هم ذلیله کړو، الاخر د همزه په فتحې سره بغیر د مد نه، او د خاء په کسرې سره دې په معنی د ذلیل، عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائی، او دې وخت کښې زه هغه ته په وینا باندې نه ویریدلم (ځکه چه دې وخت کښې خو هغه مجبوره پروت وو ګینې د دې نه مخکښې خو هغه ته داسې خطاب کول واقعی ګران وو چه د کفارو او مشرکانو سردار وو) په دې باندې هغه اووې چه د دې نه زیات نور هیڅ نه دی شوی چه یو سړې وو او هغه خپل قوم قتل کړو، یعنی تاسو څه کمال اوکړو؟ په څه باندې فخر کوئ، دلته چونکه د هغه مخاطب سیدنا عبدالله بن مسعود هذلی رضي الله عنه وو، د اوچت خاندان او قبیلې وو په دې وجه هغه دا خبره اوکړه، او په دې کښې ئې هم د خپلې تسلئ خیال ساتلې دې، لکه چه وئیلې شی: *گرتے ہیں شہسوار میدان جنگ میں۔* خو په شروع کښې چه کله دوه انصاری هلکانو په هغه باندې حمله کړې وه او هغه ئې راغورځولې وو نو هغه وختند هغه د ژبې نه د افسوس او غصې د وجې نه دا الفاظ وتلې وو ﴿ فلو غیر اکار قتلنی ﴾ (کما فی مغازی البخاری فی باب بلا ترجمة بعد، باب شهود الملائکة بدرا) ارمان چه زه د زمیندار هلک نه علاوه بل چا قتل کړې وې، یعنی څنګه چه زه لوئې سړې یم دغه شان زما قتل کونکې هم زما په شان وې، د دې دواړو ځایونو کښې تاثر مختلف دې، د اختلاف مخاطب د وجې نه ([2]) وړاندې په روایت کښې دی عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائی چه زما په

---

[1]): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۹۶۱۹)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الکبري/ السیر (۸۶۷۰)، مسند احمد (۱/۴۰۳، ۴۰۶، ۴۲۲، ۴۴۴) (صحیح)

[2]) او په قسطلانی کښې دی چه د دې قول ﴿ اعمد من رجل الخ ﴾ د خپلې تسلئ دپاره او د هغې د قتل نسبت د خپل قوم طرف ته ګول. (حال دا چه قاتل د هغه قوم نه نه وو) دا مجازا دې په اعتبار د سببیت، یعنی د دې قوم سببیت، یعنی د هغه قوم سبب جوړ شو د هغه د قتل)

لاس کښې چه کومه توره وه په هغې مې اووهلو، کومه چه د معمولی کیدو د وجې نه مفیده نه وه، او په هغې سره هغه ختم نه شو، تردې چه د هغه د لاس نه د هغه توره پریوتله (کومه چه ډیره غوره او تیزه وه) نو بیا ما هغه په هغه باندې استعمال کړه چه په هغې سره هغه یخ شو.

د دې اخری جملې د وجې نه حدیث د ترجمة الباب مطابق شو چه په دې کښې استعمال سلاح غنیمت بیا موندلې شو په دې کښې مذاهب ائمه په تیرو بابونو کښې په تفصیل سره تیر شوي دی، د ابوداود په روایت کښې لفظ ﴿ ابعد ﴾ واقع شوي دې چه د هغې شرح مونږ پورته اوکړه او د خطابی رائې دا ده چه دا لفظ داسې صحیح نه دې، صحیح ﴿ اعمد من رجل﴾ دې، چه د هغې معنی د ﴿ اعجب ﴾ ده، د بخاری لفظ هم ﴿ اعمد﴾ دې. والحدیث اخرجه النسائی مختصرا، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي تَعْظِيمِ الْغُلُولِ

### د مال غنیمت پټول عظیم ترین جرم دې

یعنی د دې خبرې په بیان کښې چه غلول جرم عظیم دې، د غلول معنی د مطلق خیانت ده، او وئیلې شوي دی چه هغه خیانت کوم چه په مال غنیمت کښې وی،

[۲۷۱۰]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، أَنَّ يَحْيَى بْنَ سَعِيدٍ، وَبِشْرَ بْنَ الْمُفَضَّلِ. حَدَّثَاهُمْ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ، عَنْ أَبِي عَمْرَةَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ، أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُوُفِّيَ يَوْمَ خَيْبَرَ فَذَكَرُوا ذَلِكَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: "صَلُّوا عَلَى صَاحِبِكُمْ فَتَغَيَّرَتْ وُجُوهُ النَّاسِ لِذَلِكَ فَقَالَ: إِنَّ صَاحِبَكُمْ غَلَّ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَفَتَّشْنَا مَتَاعَهُ فَوَجَدْنَا خَرَزًا مِنْ خَرَزِ يَهُودَ لَا يُسَاوِي دِرْهَمَيْنِ".

دزید بن خالد جهنی نه روایت دې چه دخیبر په ورځ دنبی علیه السلام په ملګرو کښې یو کس وفات شو صحابه کرامو نبی علیه السلام ته ددې ذکر اوکړو نبی علیه السلام اوفرمائیل په دې خپل ملګري مو جنازه اوکړئ یعنی زه په ده باندې جنازه نه کوم تاسو ئې اوکړئ په دې خبره باندې دخلقو مخونه بدل شول بیانبی علیه السلام اوفرمائیل ستاسو ملګري دالله په لار کښې خیانت کړې دې یعنی دغنیمت په مال کښې نومونږ دهغه دسامان تالاشي واغسته نومونږ دهغه په سامان کښې دیهودیانو دښځو د جامونه یوه جامه پیدا کړه دکوې چه قیمت دوه درهمه هم نه وو.

د حدیث مضمون واضح دې چه د غزوه خیبر په موقع باندې یو صحابی وفات شو چه د هغه ذکر رسول الله ﷺ ته اوکړې شو، رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د خپل ملګری مونځ تاسو اوکړو، د هغه د دې ناخوښئ او طرز نه خلق اویریدل، رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه هغه په مال غنیمت کښې خیانت کړې دې، راوی وائی چه مونږ د هغه د سامان تفتیش اوکړو نو د هغه په سامان کښې د ملغلرو څو کانړی راوتل، د یهودو د جواهرو نه کوم چه په قیمت کښې د دوه درهمو برابر هم نه وو، د دې نه د روستو مضمون هم د دې قسم دې. والحدیث اخرجه ابن ماجة، قاله المنذری.

[1]: سنن النسائي/الجنائز ٦٦ (١٩٦١)، سنن ابن ماجه/الجهاد ٣٤ (٢٨٤٨)، موطا امام مالك/الجهاد ١٣ (٢٣)، مسند احمد (١١٤/٤، ١٩٢/٥)، (تحفة الأشراف: ٣٧٦٧) (ضعيف)

[٢٧١١]()حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ ثَوْرِ بْنِ زَيْدٍ الدِّيْلِيِّ، عَنْ أَبِي الْغَيْثِ مَوْلَى ابْنِ مُطِيعٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّهُ قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ خَيْبَرَ فَلَمْ يَغْنَمْ ذَهَبًا وَلَا وَرِقًا إِلَّا الثِّيَابَ وَالْمَتَاعَ وَالْأَمْوَالَ قَالَ: فَوَجَّهَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ وَادِي الْقُرَى، وَقَدْ أُهْدِيَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَبْدٌ أَسْوَدُ يُقَالُ لَهُ مِدْعَمٌ حَتَّى إِذَا كَانُوا بِوَادِي الْقُرَى فَبَيْنَا مِدْعَمٌ يَحُطُّ رَحْلَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ جَاءَهُ سَهْمٌ فَقَتَلَهُ فَقَالَ النَّاسُ: هَنِيئًا لَهُ الْجَنَّةُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَلَّا وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ إِنَّ الشَّمْلَةَ الَّتِي أَخَذَهَا يَوْمَ خَيْبَرَ مِنَ الْمَغَانِمِ لَمْ تُصِبْهَا الْمَقَاسِمُ لَتَشْتَعِلُ عَلَيْهِ نَارًا. فَلَمَّا سَمِعُوا ذَلِكَ جَاءَ رَجُلٌ بِشِرَاكٍ أَوْ شِرَاكَيْنِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: شِرَاكٌ مِنْ نَارٍ أَوْ قَالَ: شِرَاكَانِ مِنْ نَارٍ.

دابوهريرة رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه مونږ دنبی علیه السلام سره د خيبر په کال باندې جهادته لاړو نوسپين اوسره زرموپه غنيمت حاصل نکړل بلکه مګر جامې اوسامانونه او مالونه موحاصل کړل دي وائی چه نبی علیه السلام دوادي القري علاقې طرف ته روان شو او يقينا نبی علیه السلام ته يوتورغلام هديه کړې شوي وو چه مدعم به ورته وئيلې شو هرکله چه وادی القری ته ورسيدل نومدعم دنبی علیه السلام داوښ کته کوزوله په دې وخت کښې دې په يوغشي ولګيدو اوهلاك شوخلقو ووئيل جنت دې ده ته مبارك شي نبی علیه السلام اوفرمائيل هيڅ کله نه په هغه ذات مې دې قسم وي دچاپه قبضه کښې چه زما روح دې کوم کمبل چه ده په غزوه خيبرکښې دتقسيم نه مخکښې اخستلي ووده هغه نه لمبې وهونکی اور جوړ شوي دې اودې سوزوي،هرکله چه خلقو دا واوريدل نويو کس يوه يادوه تسمې راخستي وي او نبی علیه السلام ته ئې راوړلې نبی علیه السلام اوفرمائيل داد اور يوه تسمه وه يادا اور دوه تسمې وی.

## شرح حديث

يعنی کله چه رسول الله ﷺ د غلول په باره کښې سخت وعيد اوفرمائيلو نو د دې وعيد د اوريدلو نه پس د يو سړی د څرمنې يوه تسمه يا دوه تسمې اخستلو سره د هغه په خدمت کښې راوړې (کومې چه هغه د مال غنيمت نه اوچتې کړې وې) نو په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه دا تسمه د اور ده، او که دوه تسمې ئې راوړې وی نو فرمائيلې به ئې وی چه دا دواړه تسمې د اور دی، د راوی شک دې.

د دې فقرې په مطلب کښې دوه احتمالونه دی، اول دا چه د هغه مراد د دې نه دا دې چه که تا دا تسمه واپس کړې نه وې نو دا به ستا دپاره اور د ته د تلو ذريعه وه، او ګويا د دې وينا نه پس ئې هغه کيخودله، او بل احتمال دا دې چه چونکه هغه سړی دا تسمه د غنيمت د تقسيم نه روستو راوړې وه،راوړل پکار ووهغه لره ددې نه مخکښې،اوس دچاپه حصه کښې هغه اولګولې شی؟ په دې وجه رسول الله ﷺ هغه په دې وينا سره واپس کړو چه دا تسمه اوس ستاپه حق کښې داورسبب دې. والحديث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، قاله المنذری.

[1]: صحيح البخاري/المغازي ٣٨ (٤٢٣٤)، والأيمان ٣٣ (٦٧٠٧)، صحيح مسلم/الإيمان ٤٨ (١١٥)، سنن النسائي/الأيمان والنذور ٣٧ (٣٨٥٨)، (تحفة الأشراف: ١٢٩١٦)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الجهاد ١٣ (٢٥) (صحيح)

## بَابٌ فِي الْغُلُولِ إِذَا كَانَ يَسِيرًا يَتْرُكُهُ الإِمَامُ وَلَا يُحَرِّقُ رَحْلَهُ

**کله چه د غنیمت نه پټ شوی څیز معمولی وی نو امیر دې دا معاف کړی او د غلو ساما نو نه دې نه سوزوی**

### د ترجمة الباب تشريح :

په دې ترجمة الباب کښې دوه جزونه دی، اولنې جزء دا چه مال غلول که یو معمولی څیز وی لکه تسمه وغیره کومه چه په سابقه باب کښې تیر شو نو د هغې سره به هم دا معامله کولې شی کومه چه په حدیث کښې تیره شوه خو که هغه مال غلول کثیر او په لوئې مقدارکښې وی نو بیا د اصولو تقاضه دا ده چه هغه دې رد نه کړې شی ځکه چه د غانمینو حق دې، بلکه هغه دې واخستلې شی او باقاعده دې تقسیم کړې شی، او دویم جزء د ترجمې د عقوبت غال سره متعلق دې چه په هغې باندې مستقل ترجمه وړاندې راروانه ده. لهذا دلته د هغې د ذکر کولو وجه فهم ته نه راځی، او هم دغه شان په حدیث الباب کښې هم د دې څه ذکر نشته، هسې مطلب د دې جزء دا دې چه وړاندې په حدیث کښې راځی چه کله ته یو سړې وینې چه هغه په مال غنیمت کښې خیانت کړې دې نو د هغه ټول سامان او متاع اوسیزه، نو دلته مصنف فرمائی چه د هغه غال سورلی به نه شی سیزلې باقی سامان به ئې سیزلې شی. اذ لا يجوز تعذيب الحيوان بالنار.

[٢٧١٢] (1) حَدَّثَنَا أَبُو صَالِحٍ مَحْبُوبُ بْنُ مُوسَى، قَالَ: أَخْبَرَنَا أَبُو إِسْحَاقَ الْفَزَارِيُّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَوْذَبٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَامِرٌ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ الْوَاحِدِ، عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا أَصَابَ غَنِيمَةً أَمَرَ بِلَالًا فَنَادَى فِي النَّاسِ فَيَجِيئُونَ بِغَنَائِمِهِمْ فَيُخَمِّسُهُ وَيُقَسِّمُهُ، فَجَاءَ رَجُلٌ بَعْدَ ذَلِكَ بِزِمَامٍ مِنْ شَعَرٍ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ هَذَا فِيمَا كُنَّا أَصَبْنَاهُ مِنَ الْغَنِيمَةِ فَقَالَ: أَسَمِعْتَ بِلَالًا يُنَادِي ثَلَاثًا؟ قَالَ: نَعَمْ قَالَ: فَمَا مَنَعَكَ أَنْ تَجِيءَ بِهِ، فَاعْتَذَرَ إِلَيْهِ فَقَالَ: كُنْ أَنْتَ تَجِيءُ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَلَنْ أَقْبَلَهُ عَنْكَ".

د عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی عليه السلام به کله غنیمت حاصل کړو او تقسیمول به ئې اوغوښتل نو بلال ته به ئې د اعلان کولو حکم وکړو نو خلقو به نبی عليه السلام ته خپل غنیمتونه راوړل او خمس به ئې تړې اخستلو او باقی به ئې په مجاهدینو تقسیمولو نو یو کس د غنیمت د تقسیم نه پس د خمس ورکولو د پاره د اوښ یاداس د واګو دوړئ یو ګړې راوړو او عرض ئې وکړو چه اې د الله رسوله دا هم مونږ په غنیمت کښې حاصل کړې وو نبی عليه السلام ورته اوفرمائیل ایا بلال چه درې پیرې آواز کړې وو تا نه وواورېدلې ده ووئیل هو نبی عليه السلام ورته اوفرمائیل تا ولې دا نه راوړلو؟ نو ده معذرت وکړو چه اې د الله رسوله په ما باندې ناوخته شو نبی عليه السلام ورته اوفرمائیل اوس ته پوهه شه اوستا کار ته به داد قیامت په ورځ راوړې اوزه درنه دا اوس نه شم اخستلې.

### د حدیث مضمون

د حدیث الباب مضمون دا دې چه د رسول الله ﷺ معمول وو چه کله به په یو ځائې کښې مال غنیمت حاصل شو نو هغه به په حضرت بلال رضي الله عنه باندې په خلقو کښې دا اعلان کولو چه چا سره چه کوم مال غنیمت دې هغه دې دلته راوړی او جمع دې کړی، پس په یو روایت کښې

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٨٣٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢١٣) (حسن)

داسې دي ﴿ ضموا اغنائمكم ﴾ پس خلقو به مال غنيمت يو ځائې ته راجمع كړو رسول الله ﷺ به هغه د قاعدې مطابق تخميس كولو، يعنې د كل مال غنيمت نه به ئې يو خمس راويستلو او باقى څلور اخماس به ئې په غانمين كښې تقسيم كړل، يو ځل داسې اوشو چه يو سړى د تقسيم نه روستو د وړئ جوړه يوه رسۍ راوړه او دا عرض ئې اوكړو چه دا ما د مال غنيمت نه اخستلې وه، رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل چه تا د بلال اعلان اوريدلې وو؟ كوم چه هغه درې كرته كړې وو؟ هغه عرض اوكړو چه او جى ما اوريدلې وو، وې فرمائيل چه بيا څه څيز مانع شوې وو د دې د راوړلو نه؟ هغه سړى په دې باندې څه معذرت شان اوكړو نو رسول الله ﷺ دهغه خبره وانوريدله اووې فرمائيل چه اوس به ته دادقيامت په ورځ باندې راوړې.

## بَابٌ فِي عُقُوبَةِ الْغَالِّ

### دغنيمت مال دپټونكى دسزا بيان

[۲۷۱۳] ([1]) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، وَسَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، قَالَ النُّفَيْلِيُّ الدَّرَاوَرْدِيُّ، عَنْ صَالِحِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ زَائِدَةَ، قَالَ أَبُو دَاوُد، وَصَالِحٌ هذا أبوواقد، قَالَ: دَخَلْتُ مَعَ مَسْلَمَةَ أَرْضَ الرُّومِ فَأُتِيَ بِرَجُلٍ قَدْ غَلَّ فَسَأَلَ سَالِمًا عَنْهُ فَقَالَ سَمِعْتُ أَبِي يُحَدِّثُ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِذَا وَجَدْتُمُ الرَّجُلَ قَدْ غَلَّ فَأَحْرِقُوا مَتَاعَهُ وَاضْرِبُوهُ، قَالَ: فَوَجَدْنَا فِي مَتَاعِهِ مُصْحَفًا فَسَأَلَ سَالِمًا عَنْهُ، فَقَالَ: بِعْهُ وَتَصَدَّقْ بِثَمَنِهِ".

دصالح بن محمد بن زائد رضی الله عنه نه روايت دې فرمائى چه زه د مسلمه سره روم ته لاړم هلته يوكس راوستې شو چه دغنيمت دمال نه ئې غلا كړې وه نومسلمه رضی الله عنه دهغه دحكم په باره كښې دسالم نه تپوس اوكړو هغه اووئيل چه مادخپل پلار ابن عمر رضی الله عنه نه اوريدلې دي چه دعمر رضی الله عنه نه ئې نقل كول چه نبى عليه السلام فرمائيلې دى چه كله تاسو څوك اووينئ چه دغنيمت دمال نه يو غلا كړې ده نودده سامان اوسوزوئ اوبيا ئې اووهئ، راوي وائى چه دده په سامان كښې د قران كريم يوه نسخه هم وه مسلمه دسالم نه تپوس اوكړو چه دا قران كريم خرڅ كړئ اوقيمت ئې صدقه كړئ.

﴿ اذا وجدتم الرجل قد غل فاحرقوا متاعه ﴾ د دې حديث مضمون د پورته باب په حديث كښې تير شو.

### ترجمة الباب والا مسئله كښې د ائمه كرامو اختلاف

بعض علماء د دې حديث په بنياد باندې د تحريق متاع غال قائل دى، لكه امام حسن بصرى، اسحاق بن راهويه او امام اوزاعى، او هم دا يو روايت د امام احمد رحمه الله نه دې، خو د جمهورو عمل په دې حديث باندې نه دې، د هغې وجه دا ده چه جمهور محدثينو په دې باندې كلام كړې دې پس امام ترمذى د امام بخارى نه د دې تضعيف بلكه عدم ثبوت نقل كړې دې، هم دغه شان امام دارقطنى هم د دې تضعيف كړې دې، هم دغه شان امام ابوداود

[1]: سنن الترمذي/الحدود ۲۸ (۱۴۶۱)، (تحفة الأشراف: ۶۷۶۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۲۲)، سنن الدارمي/السير ۴۹ (۲۵۳۷) (ضعيف)

هم د دې حديث په سند کښې اختلاف او اضطراب ثابت کړې دې، او امام طحاوی فرمائی چه که حديث صحيح اومنلې شی نو بيا به حواب دا وی چه ممکنه ده دا د هغه وخت خبره وی چه کله په اسلام کښې عقوبت ماليه جائز وو، کوم چه روستو منسوخ شو، امام ابوداود د دې حديث موقوف کيدو ته ترجيح ورکړې ده، دې حديث شريف ته اشاره په در منضود جلد ثانی کتاب الصلاة کښې په ترک جماعت باندې وعيد والا حديث کښې هم کړې شوې ده، او بعض شارحينو وئيلې دی چه که دا حديث ثابت هم اومنلې شی نو دا به په زجر او توبيخ باندې محمول وی، ځکه چه د رسول الله ﷺ نه دا بالکل هم ثابت نه دی چه هغه دې د متاع غال تحريق کړې وی.

د باب د اولنی حديث د ظاهر نه معلوميږی چه مسلمه کوم چه د عبدالملک بن مروان ځوئې دې هغه د دې حديث په وجه باندې تحريق متاع غال کړې وو، او چونکه د هغه په متاع کښې يو مصحف هم وو نو د هغې په باره کښې هغه د حضرت سالم نه معلومه کړه چه څه اوکړې شی؟ هغه اوفرمائيل چه: ﴿ بعه وتصدق بثمنه ﴾ او د باب د حديث ثانی مضمون دا دې، صالح بن محمد فرمائی چه مونږ خلق په يوه غزوه کښې د وليد بن هشام سره وو او په سفر کښې مونږ سره سالم بن عبدالله بن عمر او عمر بن عبدالعزيز هم وو نو وليد بن هشام د هغه سړی د سامان د سيزلو حکم ورکړو چا چه په مال غنيمت کښې غلول کړې وو او هغه په پوره لښکر کښې اوګرځولې شو او هغه ته ئې په غنيمت کښې هم حصه ورنکړه.

[۲۷۱۴]( )حَدَّثَنَا أَبُو صَالِحٍ مَحْبُوبُ بْنُ مُوسَى الأَنْطَاكِيُّ، قَالَ: أَخْبَرَنَا أَبُو إِسْحَاقَ، عَنْ صَالِحِ بْنِ مُحَمَّدٍ، قَالَ: غَزَوْنَا مَعَ الْوَلِيدِ بْنِ هِشَامٍ، وَمَعَنَا سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ، وَعُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ فَغَلَّ رَجُلٌ مَتَاعًا فَأَمَرَ الْوَلِيدُ بِمَتَاعِهِ فَأُحْرِقَ وَطِيفَ بِهِ وَلَمْ يُعْطِهِ سَهْمَهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا أَصَحُّ الْحَدِيثَيْنِ رَوَاهُ غَيْرُ وَاحِدٍ، أن الوليد بن هشام أحرق رحل زياد بن سعد وكان قد غل وضربه.

دصالح بن محمدنه روايت دې فرمائی چه مونږه دوليد بن هشام په ملګرتيا کښې جهاد اوکړو اوزمونږ سره سالم بن عبدالله بن عمر رضي الله عنهما او عمربن عبدالعزيزهم وو، نويو سړی د غنيمت دمال نه غلا اوکړه نووليد حکم اوکړو اودده سامان اوسوزول شو اوبيا ئې په ټولو خلقو کښې اوګرځوو اوحصه ئې ورته هم ورنکړه. ابوداود وائی چه داروايت ډير صحيح دې ډيرو کسانو داروايت نقل کړې دې چه وليد بن هشام بن عبدالملك بن مروان بن حکم دزياد بن سعدسامان سوزولې ووځکه چه هغه دغنيمت دمال نه غلاکړې وه اودې ئې وهلې هم وو.

## د تحريق متاع الغال حديث په باره کښې د مصنف رائې

﴿ قال ابو داود وهذا اصح الحديثين الخ ﴾ مصنف فرمائی چه پورته ذکر شوې حديث ﴿ اذا وجدتم الرجل قد غل فاحرقوا متاعه ﴾ ثابت نه دې بلکه موقوفا ثابت دې، د موقوف نه هم مقوف تابعی يعنی مقطوع مراد دې

( ): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٧٦٣) (ضعيف)

[٢٧١٥](1)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَوْفٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ أَيُّوبَ، قَالَ: حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبَا بَكْرٍ، وَعُمَرَ حَرَّقُوا مَتَاعَ الْغَالِّ وَضَرَبُوهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَزَادَ فِيهِ عَلِيُّ بْنُ بَحْرٍ، عَنْ الْوَلِيدِ وَلَمْ أَسْمَعْهُ مِنْهُ وَمَنَعُوهُ سَهْمَهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وحَدَّثَنَا بِهِ الْوَلِيدُ بْنُ عُتْبَةَ، وَعَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ نَجْدَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ عَنْ زُهَيْرِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ قَوْلَهُ: وَلَمْ يَذْكُرْ عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ نَجْدَةَ الْحَوْطِيُّ مَنْعَ سَهْمِهِ.

عمرو بن شعیب د خپل پلار نه هغه دده دنیکه نه روایت کوی چه نبی ﷺ او ابوبکر اوعمر رضی الله عنهما په غنیمت کښې دخیانت کونکی سامان سوزولي وو او وهلې ئې هم وو. ابوداود وائی چه علي بن بحر دا روایت دځه اضافي سره دولید نه نقل کړې دې اودا اضافه مادهغه نه نه وه اوریدلي اوهغه داوه چه حصه ئې هم نه وه ورکړې او ابوداود په بل سند سره دا روایت نقل کړې دې د عمرو بن شعیب نه او په هغې کښې دا جمله نشته چه حصه ئې نه وه ورکړې.

## بَابُ النَّهْيِ عَنِ السَّتْرِ عَلَى مَنْ غَلَّ

**دغنیمت په مال کښې په خیانت کونکي باندې د پردې د نه اچولو بیان**

[٢٧١٦](2)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ دَاوُدَ بْنِ سُفْيَانَ، قَالَ: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَسَّانَ، قَالَ: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ مُوسَى أَبُو دَاوُدَ، قَالَ: حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ سَعْدِ بْنِ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، حَدَّثَنِي خُبَيْبُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ أَبِيهِ سُلَيْمَانَ بْنِ سَمُرَةَ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، قَالَ: أَمَّا بَعْدُ، وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "مَنْ كَتَمَ غَالًّا فَإِنَّهُ مِثْلُهُ".

دسمره بن جندب رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی چه څوك په غنیمت کښې خیانت اوکړي اوبل کس ورباندې پرده واچوي یعنی امیرته ئې ښکاره نه کړي چه فلاني خیانت کړې دې تودې به هم دخیانت کونکی په شان وي یعنی دواړه په ګناه کښې برابردی.

﴿ عن سمرة بن جندب قال : اما بعد ﴾ دا د ﴿ اما بعد ﴾ والا پنځم حدیث دې چه د هغې تعارف مونږ سره د در منضود په مقدمه کښې او د هغې نه علاوه هم په څو ځایونو کښې راغلې دې، دا ټول شپږ حدیثونه دی چه په هغې کښې یو باقی پاتې شو کوم چه د کتاب الجهاد اخری حدیث دې. په بذل المجهودکښې دی چه دا سند ضعیف دې، قابل استدلال نه دې ﴿وبکل حال هذا اسناد مظلم لا ینهض بحکم ﴾ اهـ په دې حدیث کښې دا دی چه کوم سړې د غلول کونکی غلول لره پټ کړی، یعنی د هغه پرده اوساتی نو هغه هم دغه شان غال دې، د دې حدیث تقاضه دا ده چه که د یو سړی غلول معلوم شی نو امیر ته تلو سره د هغې اطلاع ضروری ده،اوس به یا خودا وئیلې شی چه مسئله د غلول ﴿من ستر مسلما ستره الله ﴾ د عموم نه مستثنی ده اویا به داوئیلې شی چه حدیث الباب ضعیف دې.

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٧٠٦، ١٩١٦٩) (ضعيف)

(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٦٢٠) (ضعيف)

# بَابٌ فِي السَّلَبِ يُعْطَى الْقَاتِلُ

## څوک چه څوک قتل کړي دهغه مال به قاتل ته ورکولې شي

### د احکام سلب ابتداء

د دې ځائې نه څو بابونه د احکام سلب متعلق شروع کیږي، سلب وئیلې شي د کافر مقتول سره چه کوم سامان وی د هغه جامې، وسله، سورلئ وغیره، د سلب متعلق ډیر زیات مسائل اختلافی دی، حضرت شیخ په اوجز المسالک کښې هغه ټول د کتب فقهیه او شروح حدیث نه راجمع کړې دی کوم چه اتلس مسائل دی، د هغه مسائلو نه یوه ډیره مشهوره اختلافی مسئله دا ده چه د مقتول سلب کوم چه قاتل ته ورکولې شی دا من حیث الاستحقاق دې یا من حیث التنفیل؟ او د شافعی او احمد په نزد من حیث الاستحقاق دې، یعنی د امام په رائې او د هغه په ورکړه باندې موقوف نه دی، هغه د هغه خپل حق دې اوکوم چه په حدیث کښې راغې چه ﴿من قتل قتيلا فله سلبه﴾، د دې دواړو امامانو په نزد دا څه وقتی فیصله او انعام نه دې بلکه د قاعده کلیه په طور دې، او د امام ابوحنیفه او مالک په نزد سلب د تنفیل د قبیلې نه دې، یعنی د امام د طرف نه یو غازی ته د هغه د کارنامې په طور په طور د زیاتې حصې او انعام ورکولې شی، چه هر کله دا خبره ده نو بیا د سلب د قاتل دپاره کیدل د امام په رائې او د هغه په فیصله باندې موقوف دې، که د هغه د طرف نه دا اعلان شوې دې چه ﴿من قتل قتيلا فله سلبه﴾ یا بغیر د اعلان نه چه هغه ئې چاته ورکول غواړی نو بیا به د هغه دپاره وی ګینې نه.

بله اختلافی مسئله دا ده چه سلب د کوم قاتل دپاره وی، د امام مالک په نزد د هغه قاتل دپاره کوم چه ذو سهم وی یعنی د چا چه باقاعده په غنیمت کښې حصه وی، فلا سلب للصبي والمراءة عنده بخلاف الجمهور، د هغوی په نزد دا قید نشته.

یوه مشهوره اختلافی مسئله د سلب متعلق دا ده کومه چه به وړاندې په مستقبل باب کښې راشي چه څنګه د مال غنیمت تخمیس وی چه د هغې نه خمس ویستلې شی د بیت المال وغیره دپاره نو ایا د داسې سلب تخمیس به هم وی یا نه، وغیره وغیره مسائل.

[۲۷۱۷] (¹) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عُمَرَ بْنِ كَثِيرِ بْنِ أَفْلَحَ، عَنْ أَبِي مُحَمَّدٍ مَوْلَى أَبِي قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي عَامِ حُنَيْنٍ، فَلَمَّا الْتَقَيْنَا كَانَتْ لِلْمُسْلِمِينَ جَوْلَةٌ قَالَ: فَرَأَيْتُ رَجُلًا مِنَ الْمُشْرِكِينَ قَدْ عَلَا رَجُلًا مِنَ الْمُسْلِمِينَ قَالَ: فَاسْتَدَرْتُ لَهُ حَتَّى أَتَيْتُهُ مِنْ وَرَائِهِ، فَضَرَبْتُهُ بِالسَّيْفِ عَلَى حَبْلِ عَاتِقِهِ، فَأَقْبَلَ عَلَيَّ فَضَمَّنِي ضَمَّةً وَجَدْتُ مِنْهَا رِيحَ الْمَوْتِ ثُمَّ أَدْرَكَهُ الْمَوْتُ فَأَرْسَلَنِي فَلَحِقْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ فَقُلْتُ لَهُ: مَا بَالُ النَّاسِ، قَالَ: أَمْرُ اللَّهِ، ثُمَّ إِنَّ النَّاسَ رَجَعُوا وَجَلَسَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ: "مَنْ قَتَلَ قَتِيلًا لَهُ عَلَيْهِ بَيِّنَةٌ فَلَهُ سَلَبُهُ، قَالَ: فَقُمْتُ ثُمَّ قُلْتُ: مَنْ يَشْهَدُ

¹): صحيح البخاري/البيوع ۳۷ (۲۱۰۰)، فرض الخمس ۱۸ (۳۱۴۲)، المغازي ۵۴ (۴۳۲۱)، الأحكام ۲۱ (۷۱۷۰)، صحيح مسلم/الجهاد ۱۳ (۱۵۷۱)، سنن الترمذي/السير ۱۳ (۱۵۶۲)، سنن ابن ماجه/ الجهاد ۲۹ (۲۸۳۷)، (تحفة الأشراف: ۱۲۱۳۲)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الجهاد ۱۰ (۱۸)، مسند احمد (۲۹۵/۵، ۲۹۶، ۳۰۶)، سنن الدارمي/السير ۴۴ (۲۵۲۸) (صحيح)

لِي؟ ثُمَّ جَلَسْتُ، ثُمَّ قَالَ ذَلِكَ الثَّانِيَةَ: مَنْ قَتَلَ قَتِيلًا لَهُ عَلَيْهِ بَيِّنَةٌ فَلَهُ سَلَبُهُ، قَالَ: فَقُمْتُ ثُمَّ قُلْتُ: مَنْ يَشْهَدُ لِي؟ ثُمَّ جَلَسْتُ، ثُمَّ قَالَ ذَلِكَ الثَّالِثَةَ: فَقُمْتُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا لَكَ يَا أَبَا قَتَادَةَ؟ قَالَ: فَاقْتَصَصْتُ عَلَيْهِ الْقِصَّةَ فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ: صَدَقَ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَسَلَبُ ذَلِكَ الْقَتِيلِ عِنْدِي فَأَرْضِهِ مِنْهُ، فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ الصِّدِّيقُ: لَاهَا اللَّهِ إِذًا يَعْمِدُ إِلَى أَسَدٍ مِنْ أُسْدِ اللَّهِ يُقَاتِلُ عَنِ اللَّهِ، وَعَنْ رَسُولِهِ فَيُعْطِيكَ سَلَبَهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: صَدَقَ فَأَعْطِهِ إِيَّاهُ"، فَقَالَ أَبُو قَتَادَةَ: فَأَعْطَانِيهِ فَبِعْتُ الدِّرْعَ فَابْتَعْتُ بِهِ مَخْرَفًا فِي بَنِي سَلِمَةَ فَإِنَّهُ لَأَوَّلُ مَالٍ تَأَثَّلْتُهُ فِي الْإِسْلَامِ.

دابوقتاده رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه مونږ دنبی علیه السلام سره د غزوه حنین په کال باندې جهاد ته لاړو هرکله چه مونږه ددشمن سره مخامخ شو نوپه مسلمانانوکښې انتشار پیداشودې وائی ماپه مشرکانوکښې یوکس اولیدو چه په یو مسلمان باندې زورور شوي دې نوزه ورغلم دوروسته طرف نه او په ختې مې ورله توره کیخوده نوده ماته رامنډه کړل اوماله ئې داسې زور راکړو چه دمرګ خوند ئې را اوخودو بیا پخپله مړشواوزه ئې پریخودم بیازمادعمرها سره ملاقات اوشو اوما اووئیل نن صباپه خلقو باندې څه شوي دې هغه په جواب کښې اووئیل حکم خوهم داسې شوې وو خو مسلمانان واپس راغلل اوګیناستل رسول الله ﷺ اوفرمائیل څوك چه څوك قتل کړې نودهغه سامان به هغه ته ملاویږي خوکله چه په دې باندې دوه ګواهان وي، ابوقتاده وائی ماچه کله دا واوریدل نوکیناستم بیا نبی علیه السلام اوفرمائیل څوك چه څوك مړ کړي نودهغه سامان به هم ده ته ملاویږي په دې شرط چه ګواه ورسره وي نوزه پاڅیدم او اودریدم اوزمادا خیال وو چه ګواه به چرته وي بیا کیناستم او په دریم ځل نبی علیه السلام داسې اوفرمائیل په تاڅه شوي دي اې ابوقتاده نوماورته ټوله قصه واوروله په دې وخت کښې یوکس اووئیل چه ریښتیائې اووئیل اې دالله رسوله، اوددغه کافرسامان زماسره دې دغه ماته راکړئ نوده ته ابوبکر رضی الله عنه اووئیل په الله قسم داسې به هیڅ کله اونه شي چه جنګ دې دالله یواز مرې کوی دالله درسول دطرف نه اوغنیمت دې ته واخلې نبی علیه السلام اوفرمائیل ابوبکر ریښتیا وائی اوسا ما ن ابوقتاده ته ورکړئ ابوقتاده وائی چه ماته ئې راکړل زغره مې خرڅه کړه او یوباغ مې واغستو د بنی سلمه په مال کښې اودا اولنې مال وو کوم چه ماپه اسلام کښې حاصل کړو.

## شرح حدیث

سیدنا ابوقتاده رضی الله عنه فرمائی چه مونږ د رسول الله ﷺ سره په حنین کښې وو، چه کله زمونږ د مشرکانو سره مقابله اوشوه نو د لښکر په بعض خلقو کښې غوبل جوړ شو، ابو قتاده فرمائی چه ما یو مشرک اولیدو چه یو مسلمان ئې راګیر کړې وو او په هغه باندې مسلط وو، هغه فرمائی چه کله ما دا منظر اولیدو نو زه په چل ول د هغه د شا طرف نه هغه له راغلم او هغه مې ستې ته نزدې په توره اووهلو، هغه دغه سړې پریخودلو او په ما ئې حمله اوکړه او زه هغه داسې په شدت سره لاندې کړم چه د هغه نه ماته د خپل مرګ بوئې راغلو (خو اوشوه د دې برعکس) بیا هغه مړ شو او زه ئې پریخودلم، او هم په دې وخت کښې، زه سیدنا عمر رضی الله عنه ته راغلم او ما د هغه نه تپوس اوکړو ﴿ ما بال الناس ﴾ چه په خلقو څه اوشو

ولې منډې وهی؟ نو هغه جواب راکړو چه ﴿ امر الله ﴾ د دې دوه مطلبونه کیدې شی یو دا چه داسې د الله پاک په تقدیر او د هغه په حکم سره اوشو چه د هغې ظاهری سبب او مقصد اعجاب دې. کما هو مذکور فی القران او یا د امر الله مطلب دا دې چه ویریږئ مه د الله پاک د فیصلې او د هغه د مدد انتظار کوئ، ﴿ثم ان الناس رجعوا وجلس رسول الله صلی الله علیه وسلم ﴾ دلته په روایت کښې اختصار دې د دې روایت باقی حصه حضرت په بذل کښې د مسلم د روایت نه نقل کړې ده هغه دې اوکتلې شی، په روایت کښې دی چه کله خلق د رسول الله ﷺ د خوا نه منتشر شو نو سیدنا عباس رضی الله عنه ته ئې اوفرمائیل کوم چه جهوری الصوت وو (کان رجلا صیتا) ﴿ نادیا معشر الانصار، یا اصحاب السمرة ﴾ چه دا اواز اولګوه اې د انصارو جماعت! اې اصحاب شجره! حضرت عباس رضی الله عنه چه دا اواز اولګولو نو صحابه کرام پوهه شو چه دا اواز د رسول الله ﷺ د طرف نه دې، پس عباس رضی الله عنه فرمائی چه زما په اواز باندې خلق داسې مائل شو او په منډه منډه راغلل لکه غوا چه د خپل ورک شوی بچی په اواز اوریدو باندې د هغه طرف ته منډه وهی، هغوی په دې وینا سره منډې وهلې چه ﴿ یا لبیک یا لبیک ﴾ او ټول رسول الله ﷺ ته نزدې راغلل، تردې چه کله د سلو کسانو برابر د هغه په خوا کښې مجاهدین راجمع شو نو اوس هغه د کفارو طرف ته متوجه شو د جنګ کولو دپاره او سخت جنګ شروع شو، هغه په دې وخت کښې جنګ کتلو سره اوفرمائیل : ﴿ الان حمی الوطیس ﴾ چه اوس جنګ ګرم شو (یعنی د یخیدو او تیختې نه پس) بیا رسول الله ﷺ د زمکې نه د شړو یو موټې واخستلو او د هغه مشرکانو طرف ته ئې ګزار کړو او وې فرمائیل ﴿شاهت الوجوه ﴾ (دا مخونه دې اوسوځی) راوی وائی چه هغه یو موټې شګې د مشرکانو په سترګو کښې پریوتلې او هغوی شا راواړوله او په منډه شو، او مسلمانانو ته فتح حاصله شوه. دا ده هغه حصه د هغه روایت کومه چه دلته په ابوداود کښې مختصر کړې شوې ده.

## شرح حدیث

﴿ وجلس رسول الله صلی الله علیه وسلم ﴾ یعنی د جنګ نه چه کله فارغ شو او په سکون سره کیناستلو نو هغه دا اعلان اوکړو چه ﴿ من قتل قتیلا له علیه بینة فله سلبه ﴾ چه چا یو کافر قتل کړې وی او د هغه سره په دې باندې ګواه وی نو د هغه مقتول سلب به د قاتل دپاره وی (ابو قتاده هم چونکه یو کافر قتل کړې وو چه د هغې ذکر د روایت په شروع کښې وو خو چونکه رسول الله ﷺ د بینه قید هم لګولې وو په دې وجه هغه فرمائی چه زه اودریدم او اودریدو سره د خلقو طرف ته متوجه کیدو سره مې اووې چه : من یشهد لی؟ چه زما په معامله کښې څوک ګواهی ورکونکې شته؟ چه کله چا هیڅ او نه وئیل نو زه کیناستلم، د رسول الله ﷺ د طرف نه بیا هغه اعلان اوشو، په دې باندې زه هم دوباره اودریدم او ما بیا اووې چه زما څوک ګواه شته، درې کرته هم دغه شان اوشوه خو زما د ګواهئ دپاره څوک هم نه پاسیدو، رسول الله ﷺ ماته اوفرمائیل چه ابو قتاده څه خبره ده (څکه چه بار بار پاسیږې) هغه فرمائی چه ورته د هغه کافر د قتل ټوله قصه بیان کړه، اوس یو سړې اودریدو

او هغه اووې یا رسول اللهﷺ دې رشتیا وائی او د هغه کافر قتیل سلب ما سره دې ﴿فارضعه منه﴾ پس ابو قتاده له د دې څه عوض ورکړئ او دې راضی کړئ، یعنی هغه سلب ما سره پرېږدئ، هغه وخت په مجلس کښې ابوبکرصدیقؓ هم موجود وو هغه ته د دې سړی په خبره اوریدلو باندې ډیره غصه راغله او وې فرمائیل : ﴿لاها الله اذا یعمد الی اسد من اسد الله یقاتل عن الله وعن رسوله فیعطیک سلبه﴾ یعنی قسم په الله داسې به نه کیږی، ایا ته غواړې چه رسول اللهﷺ قصد اوکړی د الله پاک زمرو کښې یو زمری ته، کوم چه د الله پاک او د هغه د رسول دپاره قتال کوی (اشاره ده د ابو قتاده طرف ته) او تاته د هغه سلب درکړی؟ (داسې به هرګز اونشی) رسول اللهﷺ د صدیق اکبر تائید اوکړو چه د هغه خبره بالکل صحیح ده، پس رسول اللهﷺ هغه سړی ته چا سره چه د هغه کافر سلب وو حکم ورکړو چه ابو قتاده ته دا سلب ورکړه، ابو قتاده فرمائی (هغه سلب په دومره کثیر مقدار کښې وو چه) ما په هغې کښې یوه زغره خرڅولو سره د هغې په عوض کښې د بنو سلمه یو باغ واخستلو ﴿فانه لاول مال تاثلته فی الاسلام﴾ چه دا اولنې مال دې نکوم چه په اسلام کښې د داخلیدو نه روستو ماته حاصل شوې دې.

﴿ تاثل ﴾ د ﴿ اثل ﴾ نه دې ﴿ واثل کل شئ اصله ﴾ ﴿ لاها الله ﴾ په دې کښې ﴿ الله ﴾ مجرور دې ﴿ ای لا والله ﴾ لفظ ﴿ ها ﴾ د واو قسم بدل دې، د دې حدیث په شرح کښې حضرت هم په بذل کښې ډیر مسائل د سلب متعلق د کتب فقه نه نقل فرمائیلې دی. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی وابن ماجة.

[٢٧١٨](١)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، قَالَ: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَئِذٍ يَعْنِي يَوْمَ حُنَيْنٍ: "مَنْ قَتَلَ كَافِرًا فَلَهُ سَلَبُهُ فَقَتَلَ أَبُو طَلْحَةَ يَوْمَئِذٍ عِشْرِينَ رَجُلًا وَأَخَذَ أَسْلَابَهُمْ، وَلَقِيَ أَبُو طَلْحَةَ أُمَّ سُلَيْمٍ وَمَعَهَا خِنْجَرٌ فَقَالَ: يَا أُمَّ سُلَيْمٍ مَا هَذَا مَعَكِ؟ قَالَتْ: أَرَدْتُ وَاللَّهِ إِنْ دَنَا مِنِّي بَعْضُهُمْ أَبْعَجُ بِهِ بَطْنَهُ"، فَأَخْبَرَ بِذَلِكَ أَبُو طَلْحَةَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، قَالَ أَبُو دَاوُد: أَرَدْنَا بِهَذَا الْخِنْجَرَ وَكَانَ سِلَاحَ الْعَجَمِ يَوْمَئِذٍ الْخِنْجَرُ.

دانس بن مالكؓ نه روایت دې فرمائی چه نبیﷺ فرمائیلی دی نن ورځ که چا یو کافر مړ کړو نودهغه سامان به ده ته ورکولې شی نو ابوطلحهؓ شل کسان مړه کړل او دهغوی مالونه ئې واخستل بیاابوطلحه دام سلیمؓ (دده بی بی)سره ملاو شو او دهغې سره یوه توره وه ده اووئیل اې ام سلیم داڅه دې تاسره ام سلیم اووئیل په الله مې دې قسم وې ما اراده کړې وه که چرې کوم کافرماته نزدې راشې نوپه دې توره به دهغه خېټه شلومه ابوطلحه داخبره نبیﷺ ته بیان کړه ابوداود وائی دا حدیث حسن دې ابوداود وائی ددې نه زمونږ مراد خنجر دې اوپه دغه زمانه کښې دعجمیانو اسلحه خنجروو.

﴿فقتل ابو طلحة یومئذ عشرین رجلا واخذ اسلابهم﴾ یعنی سیدنا ابو طلحهؓ د غزوه

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٠)، وقد أخرجه: صحیح مسلم/الجهاد ٤٧ (١٨٠٩)، مسند احمد (٣/٢٧٩، ١٩٠)، سنن الدارمي/السير ٤٤ (٢٥٢٧) (صحیح)

حنين په ورځ باندې شل كافر مړه كړي وو او د هغوى ټولو اسلاب ئې اخستلې وو.

﴿ قال ابوداود هذا حديث حسن ﴾ د حسن نه يا خو اصطلاحي معنى مراد ده لكه چه امام ترمذي رحمه الله په فرمائيل خو د مصنف خو دا عادت نه دې، زما په ذهن كښې دا خبره راځي چه د مصنف لغوى معنى مراد ده چه دا حديث ډير ښه دې، يعنى د امام ابوداود ډير خوښ شو، د ابو طلحه شل كافر قتل كول او د هغوى سامان اخستل، او د هغې دپاسه د ام سليم دا عجيبه شان واقعه يو نوې شان خبره، والله تعالى اعلم.

## د مصنف د كلام مطلب

﴿ قال ابوداود اردنا بهذا الخنجر ﴾ د دې جملې دوه مطلبونه كيدې شى يو دا چه په دې حديث كښې خنجر نه د دې معروف معنى مراد وى، بل څه څيز نه دې خنجر، بل مطلب دا كيدې شى چه زمونږ مراد په دې حديث ذكر كولو سره د استعمال خنجر جواز دې، او وراندې دا دى چه په هغه زمانه كښې خنجر د عجميانو وسله وه هم هغوى به دا زيات تر استعمالولو، يعنى په عربو كښې د دې د استعمال رواج نه وو، ګويا د دې دپاره د دې د بيان جواز ضرورت راپيښ شو. اخرج مسلم قصة ام سليم في الخنجر بنحوه، قاله المنذرى.

## بَابٌ فِي الْإِمَامِ يَمْنَعُ الْقَاتِلَ السَّلَبَ إِنْ رَأَى وَالْفَرَسُ وَالسِّلَاحُ مِنَ السَّلَبِ

**كه چرې امير اوغواړي نو د مقتول سامان دې قاتل ته ورنكړي او اس او اسلحه هم په سامان كښې داخل دى**

په ترجمة الباب كښې دوه اجزاء دى، اول دا چه كه د امام رائې قاتل ته د سلب نه وركولو وى نو هغه داسې كولې شى، دا خبره د احنافو او مالكيانو د مسلك مطابق خو ده، خو د شوافع او حنابله خلاف دې كما يظهر ذلك من المذاهب المذكورة قبل، او د ترجمې دويم جزء دا دې چه فرس او سلاح د دې دواړو شمار په سلب كښې دې، دا هم يوه اختلافي مسئله ده چه د سلب مصداق د مقتول كوم كوم سامان دې، د سلاح د سلب نه كيدل خو اجماعى دى، او فرس او دابه هم د ائمه ثلاثه په نزد په سلب كښې داخل دى، البته د امام احمد رحمه الله نه په دې كښې دوه روايتونه دى.

[۲۷۱۹](۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي صَفْوَانُ بْنُ عَمْرٍو، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ، قَالَ: خَرَجْتُ مَعَ زَيْدِ بْنِ حَارِثَةَ فِي غَزْوَةِ مُؤْتَةَ فَرَافَقَنِي مَدَدِيٌّ مِنْ أَهْلِ الْيَمَنِ لَيْسَ مَعَهُ غَيْرُ سَيْفِهِ، فَنَحَرَ رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ جَزُورًا فَسَأَلَهُ الْمَدَدِيُّ طَائِفَةً مِنْ جِلْدِهِ فَأَعْطَاهُ إِيَّاهُ فَاتَّخَذَهُ كَهَيْئَةِ الدَّرَقِ، وَمَضَيْنَا فَلَقِينَا جُمُوعَ الرُّومِ وَفِيهِمْ رَجُلٌ عَلَى فَرَسٍ لَهُ أَشْقَرَ عَلَيْهِ سَرْجٌ مُذْهَبٌ، وَسِلَاحٌ مُذْهَبٌ فَجَعَلَ الرُّومِيُّ يُغْرِي بِالْمُسْلِمِينَ، فَقَعَدَ لَهُ الْمَدَدِيُّ خَلْفَ صَخْرَةٍ فَمَرَّ بِهِ الرُّومِيُّ فَعَرْقَبَ فَرَسَهُ فَخَرَّ وَعَلَاهُ، فَقَتَلَهُ وَحَازَ فَرَسَهُ وَسِلَاحَهُ، فَلَمَّا فَتَحَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ لِلْمُسْلِمِينَ بَعَثَ إِلَيْهِ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ فَأَخَذَ مِنَ السَّلَبِ، قَالَ عَوْفٌ: فَأَتَيْتُهُ فَقُلْتُ: يَا خَالِدُ أَمَا عَلِمْتَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى بِالسَّلَبِ لِلْقَاتِلِ؟ قَالَ: بَلَى، وَلَكِنِّي اسْتَكْثَرْتُهُ قُلْتُ: لَتَرُدَّنَّهُ عَلَيْهِ، أَوْ لَأُعَرِّفَنَّكَهَا عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَبَى أَنْ يَرُدَّ عَلَيْهِ، قَالَ عَوْفٌ: فَاجْتَمَعْنَا عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَصَصْتُ عَلَيْهِ قِصَّةَ الْمَدَدِيِّ، وَمَا فَعَلَ خَالِدٌ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا خَالِدُ مَا حَمَلَكَ عَلَى مَا صَنَعْتَ؟ قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ اسْتَكْثَرْتُهُ،

(۱): صحيح مسلم/الجهاد ۱۳ (۱۷۵۳)، (تحفة الأشراف: ۱۰۹۰۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۲۶، ۲۷) (صحيح)

فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا خَالِدُ رُدَّ عَلَيْهِ مَا أَخَذْتَ مِنْهُ، قَالَ عَوْفٌ: فَقُلْتُ لَهُ دُونَكَ يَا خَالِدُ أَلَمْ أَفِ لَكَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَمَا ذَلِكَ فَأَخْبَرْتُهُ قَالَ: فَغَضِبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَا خَالِدُ لَا تَرُدَّ عَلَيْهِ هَلْ أَنْتُمْ تَارِكُونَ لِي أُمَرَائِي لَكُمْ صَفْوَةُ أَمْرِهِمْ وَعَلَيْهِمْ كَدَرُهُ؟".

دعوف بن مالك اشجعي رضی الله عنه نه روايت دي فرمائی چه په غزوه موته (په شام کښې ديوځائي نوم دی) کښې زه دزيد بن حارثه سره لاړم او په يمنيانو کښې مددی زما ملګرې شو دهغه سره د يوې تورې نه علاوه نور هيڅ نه وو په مسلمانانو کښې يو کس يو اوښ ذبح کړو نومددي دهغې لږه څرمن اوغوښتله هغوی ورکړه نومددي دهغې نه ډال جوړ کړو بيا مونږه روان شو تردې چه درومیانو دفوج سره مخامخ شو په دغه فوج کښې يوکس په سور اس باندې سور وو چه دسرو زرو زين ورباندې پروت وو او اسلحه ورسره هم سنهري وه په مسلمانانوبه ئې سختې سختې حملې کولې نو مددی دده په فکرکښې د يوې ګټې لاندې کيناستو نوکله چه دغه کس په اس سور تيريدو نو مددي دده داس خپې اووهلې او هغه راوغورځيدو نومددي ورباندې کيناستو اوقتل ئې کړو اس اواسلحه ئې واخستل هرکله چه الله تعالی مسلمانانوته فتح ورکړه نوخالد بن وليد ور پسې څوک أوليږل اويوڅه سامان ئې ترې واخستو عوف وائی زه خالد بن ليد ته ورغلم او وې وئيل اې خالده ايا تاته معلومه نه ده چه دمقتول نه اخستلې شوې سامان دقاتل دې هغه اووئيل ولې راته معلومه نه ده ليکن داسامان ډير وو ما اووئيل ته دا سامان ده ته ورکړه اوکه نه نوزه به درته دنبی علیه السلام په مخامخ اووايم لیکن خالد به دسامان ورکولونه انکار اوکړو عوف وائی بیامونږ ټول دنبی علیه السلام په وړاندې جمع شو أو ما مددي واقعه بيان کړه اوخالد چه ورسره څه کړي وو هغه ئې هم بيان کړل نبی علیه السلام اوفرمائيل اې خالده تا داسې کار ولې کړې دې خالد اووئيل اې دالله رسوله داسامان ماته زيات ښکاره شو نبی علیه السلام اوفرمائيل اې خالد تاچه ترې کوم اغستلي دي هغه ورکړه، عوف اووئيل اې خالده ماچه درسره دڅه وعده کړې وه هغه أوس پوره شوه نبی علیه السلام معلومول اوغوښتل چه څه معامله وه؟ نوما پوره واقعه بيان کړه نبی علیه السلام په غصه شو اووئې فرمائيل اې خالده هرګزئې مه ورکوه ته دا غواړې چه زماامیران اوسرداران په داسې حال پريږدې چه دهغوی دښه کارونونه فائده ته واخلي اوبدنامي دهغوی شي.

## شرح حديث

سيدنا عوف بن مالک رضی الله عنه کوم چه په غزوه موته کښې شريک وو هغه د دې غزوې خپله يوه واقعه بيانوی فرمائی چه کله زه په غزوه موته کښې تلم نو په لاره کښې ورسره يو يمنی سړی د مدد په طور ملګرې شو، د کوم سړی چه په جهاد کښې باقاعده نوم نه وی او هغه خپله د لښکر د مدد دپاره روان وی غالبا هم دې سړی ته مددی وئيلې شی، عوف رضی الله عنه فرمائی چه هغه يمنی سره سوا د تورې نه نور هيڅ نه وو، تردې چه د هغه سره ډهال هم نه وو، چه د هغې ډير لوئې ضرورت وی په جنګ کښې، نو الله پاک د هغه دپاره د ډهال انتظام په داسې طريقه اوکړو چه په لاره کښې يو لښکری خپل اوښ ذبح کړو (د توښې دپاره) نو هغه مددی د هغې نه د څرمنې يوه ټکړه واخستله، او بيا ئې د هغې نه ډهال جوړ کړو،

ډهال د ځرمنې وی، او د دشمن د حملې نه د بچ کولو دپاره وی) عوف رضی الله عنه فرمائی چه کله مونږ د جنګ مقام ته اورسیدو نو د رومیانو د ډیر لوئې لښکر سره مو مقابله اوشوه، په دې رومیانو کښې یو رومی په خپل سور اس باندې سور وو چه په هغې باندې داسې کته خوره وه چه سره زر پکښې ګډ شوې وو، یعنی د سرو زرو کار پرې شوې وو، او د هغه وسله توره وغیره هم په سرو زرو رنګ او قیمتی وو هغه فرمائی چه دې رومی سړی په مسلمانانو کښې ډیر په تیزئ سره وینې تویولې (هغه مددی دا اراده اوکړه چه زه به ان شاء الله دا رومی وژنم) پس هغه مددی په یو کمر کښې پټ د هغه نه شاته کیناستلو، چه کله دا رومی د هغه مخې ته تیر شو نو دې مددی توره باندې ګزار اوکړو چه هغې سره د هغه رومی د اس خپه غصه شوه، هغه رومی د خپل اس نه پریوتلو بل طرف ته پرې دا مددی دپاسه شو او هغه ئې قتل کړو، او د هغه اس او وسله هغه واخستل چه کله مسلمانانو ته فتح ملاؤ شوه (او خالد بن ولید د لښکر امیر ته معلومه شوه چه دې مددی یمنی سره د رومی ډیر لوئې او قیمتی سلب موجود دې) نو خالد هغه ته سړې اولیږلو او د هغه سلب بعض حصه ئې ترې واخستله (هغه یمنی هیڅ او نه وئیل خو عوف رضی الله عنه په دې باندې خفه شو نو عوف فرمائی چه) زه خالد بن الولید رضی الله عنه لاړم، او هغه سره مې په دې سلسله کښې خبره اوکړه او دا چه سلب خو د قاتل دپاره وی، تاته معلومه نه ده د رسول الله صلی الله علیه وسلم فیصله، حضرت خالد بن الولید رضی الله عنه اوفرمائیل چه او معلومه ده خو ما د دې سلب مقدار ډیر زیات اوګڼړلو په دې وجه مې ترې څه واخستل، او ټول مې هغه ته ورکول مناسب او نه ګڼړل. ﴿قلت : لتردنه علیه او لاعرفنکها عند رسول الله صلی الله علیه وسلم﴾ عوف رضی الله عنه فرمائی چه ما هغه ته اووې چه یا خو به ته ضرور دا سلب هغه ته واپس کوې او یا به زه تا د دې په خوند پوهه کړم کله چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته لاړ شو، سیدنا خالد رضی الله عنه د عوف رضی الله عنه د دې وینا پرواه اونکړه او د ورکولو نه ئې انکار اوکړو، عوف فرمائی: چه کله مونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم ته لاړو نو ما هغه ته د مددی پوره قصه بیان کړه، یعنی د هغه کارنامه، او څه چه خالد رضی الله عنه د هغه سره اوکړل هغه مې هم ورته بیان کړل، رسول الله صلی الله علیه وسلم تپوس اوکړو چه خالده تا داسې ولې اوکړل؟ هغه عرض اوکړو یا رسول الله صلی الله علیه وسلم ما هغه سلب ډیر زیات اوګنړلو، رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل ای خالده تا چه د هغه نه څه اخستلې دی هغه ورته واپس کړه، خالد رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د حکم فورا تعمیل اوکړو، ما په دې باندې خالد ته اووې ﴿دونک یا خالد الم اف لک﴾ چه اې خالد واخله! یعنی هغه څیز د کوم چه ما تا سره وعده کړې وه، او وراندې ئې دا هم اووې چه اوګوره ما چه تا سره څه وئیلې وو هغه مې پوره نه کړل؟ سیدنا خالد رضی الله عنه خو هیڅ او نه وئیل خو رسول الله صلی الله علیه وسلم د عوف رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چه دا ته څه خبره کوې، عوف فرمائی چه ما ډیر په خوشحالئ باندې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ټوله خبره اوکړه (خیال ئې دا وو چه ما خو ډیربنه کار کړې دې، یو حقدار ته مې دهغه دحق رسولو کوشش کړې دې او دا سوچ ئې نه کولو چه د امیر اطاعت او د هغه احترام هم ډیر ضروری دې) په دې باندې رسول الله صلی الله علیه وسلم ډیر ناراضه شو په عوف رضی الله عنه باندې (یعنی په ما باندې ځکه چه راوی هم هغه دې) او اوس

رسول اللهﷺ دا اوفرمائيل چه اې خالده! اوس ئې ورته مه واپس کوه، ګويا هغه خپله فيصله واپس کړه او عوف ته ئې خطاب کولو سره اوفرمائيل : ﴿ هل انتم تارکون لی امرائی لکم صفوة امرهم وعليهم کدرة ﴾ تاسو به زما اميران نه پريږدئ؟ يعنی هغوی پريخودل پکار دی او په هغوی تنقيد نه دې پکار، د هغوی صفا صفا خبره او د انصاف والا معامله ستاسو په حق کښې مفيد ده، او د هغوی د مشتبه معاملې وبال به په هغوی باندې وی (تاسو د هغوی اصلاح ولې کوئ).

اوګورئ! سيدنا عوف بن مالک اشجعی ﷺ دا خپله واقعه چه په هغه باندې رسول اللهﷺ ناراضه هم شو او هغه ئې رټلې هم دې خو هغه دا واقعه ډير په رغبت سره بيانوی، دا د دې صحابی کمال ديانت فی النقل دې چه کومه واقعه د رسول اللهﷺ په وړاندې راپيښه شوه که هغه ئې د ځان خلاف وه نو هم هغه ئې ضرور خلقو ته بيان کړه، او عوف څه چه د ټولو صحابه کرامو دا حال وو، د حديث په کتابونو کښې د دې نور هم ډير مثالونه دی، د دې حديث دې د ترجمة الباب سره مطابقت اوکتلې شی، ظاهره ده چه د دې حديث نه يوه مسئله معلومه شوه چه د سلب تخميس به نه شی کولې ځکه چه رسول اللهﷺ د پوره سلب فيصله د قاتل دپاره فرمائيلې وه بغير د تخميس نه، پس دا مسئله مصنف په وړاندې باب کښې بيانوی او هم د دې حديث نه ئې استدلال کړې دې، والحديث اخرجه مسلم، قاله المنذری.

[۲۷۲۰](۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، قَالَ: سَأَلْتُ ثَوْرًا عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ، فَحَدَّثَنِي عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ نَحْوَهُ.

وليد وائی د ثورنه مې ددې متعلق تپوس اوکړو نوهغه راته دخالد بن معدان نه هغه دجبير بن نفيرنه هغه دخپل پلارنه اوهغه دعوف بن مالك اشجعي نه دتيرروايت په شان بيان کړو.

## بَابٌ فِي السَّلَبِ لَا يُخَمَّسُ

### د مقتول سامان به قاتل ته ورکولې شی او خمس به پکښې نه وی

[۲۷۲۱](۲) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ، وَخَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى بِالسَّلَبِ لِلْقَاتِلِ وَلَمْ يُخَمِّسِ السَّلَبَ.

دعوف بن مالك اشجعی اوخالد بن وليد ﷺ نه روايت دې چه نبی عليه السلام فيصله کړې وه دمقتول دمال دقاتل دپاره او په دې کښې خمس نه وو.

### په دې مسئله کښې مذاهب ائمه

د تخميس سلب مسئله هم اختلافی ده، مصنف خو په ترجمة الباب کښې د تخميس نفی کړې ده، د امام شافعی او امام احمد رحمه الله هم دا مسلک دې، او د احنافو په نزد هم دغه شان ده چه د دې تخميس به نه شی کولې، الا ان قيد الامام... يعنی دا که امام د اعلان په وخت

۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۰۹۰۲) (صحيح)

۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۵۰۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴/۹۰، ۶/۲۶) (صحيح)

قید اولګوی د تخمیس، مثلا داسې اعلان اوکړی ﴿من قتل قتیلا فله سلبه بعد التخمیس﴾ نو بیا به په دې صورت کښې زمونږ په نزد د دې تخمیس وی، حافظ د امام مالک رحمه الله نه د تخمیس سلب په مسئله کښې تخییر نقل کړې دې، یعنی دا چه امام ته اختیار دې د تخمیس او عدم تخمیس، د دې باب د لاندې مصنف پورته والا حدیث ذکر کړې دې.

## بَابُ مَنْ أَجَازَ عَلَى جَرِيحٍ مُثْخَنٍ يُنَفَّلُ مِنْ سَلَبِهِ

**قریب الموت کافر زخمی که څوک مړ کړی نو ده ته به دهغه د سامان نه دانعام په طور ورکولې شی**

### د ترجمة الباب شرح

د دې ترجمة الباب شرح او څه چه مصنف فرمائی هغه دا ده چه که دا صورت راپیښ شی چه د یو کافر اولا یو مجاهد صرف زخمی کړی، او بل غازی راشی هغه قتل کړی نو په دې صورت کښې به سلب د چا دپاره وی، ایا د من اجاز دپاره یا د اولنی سړی دپاره؟ په دې کښې مذاهب د ائمه کرامو ان شاء الله......... داسې دی چه د امام شافعی او احمد په نزد به سلب د اول دپاره وی، او د احنافو په نزدې د دې مدار د جرح په نوعیت باندې دې که اول حمله کونکی هغه کافر بالکل معذور او د کار نه ویستلو نو سلب به د اول دپاره وی ګینې د اخرې دپاره، وعند مالک علی رای الامام. (من حاشیة الشیخ علی البذل).

[۲۷۲۲] ([1]) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبَّادٍ الأَزْدِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: نَفَّلَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ بَدْرٍ سَيْفَ أَبِي جَهْلٍ كَانَ قَتَلَهُ.

عبدالله بن مسعود نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام ماته دبدر په غزا کښې دابوجهل تور په انعام کښې راکړه کوم چه ده وژلې وو.

### د حدیث شرح من حیث الفقه ومذاهب الائمة

سیدنا عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ماته د ابو جهل توره، په جنګ بدر کښې په طور د انعام او حصه زائده راکړو، راوی وائی ځکه چه عبدالله بن مسعود رضی الله عنه هغه قتل کړې وو، د سیدنا عبدالله رضی الله عنه ابوجهل لره د قتل کولو ذکر خو بابونه وړاندې تیر شوې دې، چه په هغې کښې دا وو چه اولا ما په هغه باندې توره او چلوله خو هغه تورې کار اونکړو نو بیا ما د ابوجهل په توره باندې هغه قتل کړو.
دا حدیث په ظاهره د امام شافعی او احمد خلاف دې لکه چه د مذاهب مذکوره په کتلو سره معلومیږی نو د دې جواب د شوافعو د طرف نه امام بیهقی رحمه الله دا کړې دې چه دا واقعه د بدر ده او د غنائم بدر مسئله جدا ده، د غنائم بدر کامل او مکمل اختیار د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره وو د نص قرانی د وجې نه ﴿یسالونک عن الانفال قل الانفال لله والرسول﴾ دا آیت کریمه د غنائم بدر په باره کښې نازل شوې دې لکه چه په ابوداود کښې به وړاندې د دې تصریح راشی. باب فی النفل کښې.
د دې نه پس ځان پوهه کړئ چه دا حدیث د احنافو په یو حیثیت سره خلاف دې او یو

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۹۶۲۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۴۴۴) (ضعیف)

حیثیت سره د هغوی موافق دي، د ترجمة الباب والا مسئلې په لحاظ سره نو دا زمونږ خلاف دې، د دې جواب خو به دا شی کوم چه اوس امام بیهقی رحمه الله ورکړو، او بله مسئله په دې کښې دا ده چه کومه مونږ بیانوو چه په دې کښې دا زمونږ موافق دې چه د احنافو او مالکیانو مسلک د سلب په باره کښې دا تیر شوي دي چه د مقتول د سلب د قاتل دپاره کیدل په طریقه د استحقاق نه دی بلکه په طریقه د تنفیل دی، یعنی د امام په فیصله باندې موقوف دی، نو دا حدیث په دې مسئله کښې زمونږ موافق په دې حیثیت سره دې چه اوګورئ د صحیح بخاری [1] په روایت کښې دی چه سیدنا معاذ بن عفراء او سیدنا معاذ بن عمرو بن الجموح د دې دواړو تورو ته کتلو سره اوفرمائیل چه ﴿ کلاکما قتله ﴾ چه بیشکه تاسو دواړو هغه قتل کړې دې خو د هغې باوجود ئې د سلب فیصله د معاذ بن عمرو بن الجموح رضي الله عنه دپاره اوکړه، که د سلب بنیاد د امام په ورکړه باندې نه وې نو بیا هغه سلب دواړو ته ملاویدل پکار وو. والله تعالی اعلم

## بَابٌ فِيمَنْ جَاءَ بَعْدَ الْغَنِيمَةِ لَا سَهْمَ لَهُ

### د غنیمت د تقسیم نه پس چه څوک راشی نو د هغه دپاره حصه نشته

د دې ځائې نه د غنیمت د حصو او د هغې د مستحقینو ابواب شروع کیږی، مصنف دا فرمائی چه کوم سړې د غنیمت د تقیسم نه روستو میدان جهاد ته راشی نو د هغه دپاره په غنیمت کښې حصه نشته.

### په دې مسئله کښې مذاهب ائمه

په دې مسئله کښې مذاهب ائمه داسې دی چه جمهور علماء کرام ومنهم الائمة الثلاث په نزد د غنیمت د حصې مدار په قتال او انقضاء قتال باندې دې لهذا کوم سړې چه د قتال دوران هلته اورسیږی نو د هغه دپاره به په غنیمت کښې حصه وی، او څوک چه د انقضاء قتال نه پس راشی نو د هغه دپاره به نه وی، او د احنافو په نزد د دې مدار په احراز او قسمت باندې دې، یعنی مال غنیمت لره راټولولو سره دار الاسلام ته منتقل کول، نو کوم سړې چه د احراز نه مخکښې اورسیږی او هم دغه شان د تقسیم نه وړاندې، یعنی لا تر اوسه پورې مال غنیمت په دار الحرب کښې دې او تقسیم شوې هم نه دې نو بیا خو به د غنیمت مستحق وی اګر چه انقضاء قتال شوې وی او که پس د احراز نه ئې راورسولو قبل الاحراز خو پس د غنیمت د تقسیم نه نو په دې دواړو صورتونو کښې به د غنیمت مستحق نه وی، د دې نه روستو حدیث الباب واخلئ

[۲۷۲۳] ([2]) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْوَلِيدِ الزُّبَيْدِيِّ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، أَنَّ عَنْبَسَةَ بْنَ سَعِيدٍ، أَخْبَرَهُ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ، يُحَدِّثُ سَعِيدَ بْنَ الْعَاصِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بَعَثَ أَبَانَ بْنَ سَعِيدِ بْنِ الْعَاصِ عَلَى سَرِيَّةٍ مِنَ الْمَدِينَةِ قِبَلَ نَجْدٍ فَقَدِمَ أَبَانُ بْنُ سَعِيدٍ وَأَصْحَابُهُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِخَيْبَرَ بَعْدَ أَنْ فَتَحَهَا وَإِنَّ حُزُمَ خَيْلِهِمْ لِيفٌ فَقَالَ أَبَانُ: اقْسِمْ لَنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَقَالَ أَبُو

[1] باب من لم يخمس الاسلاب من كتاب فرض الخمس)
[2] صحيح البخاري/الجهاد ٢٨ (٢٨٢٧)، والمغازي ٣٨ (٤٢٣٧)، (تحفة الأشراف: ١٤٢٨٠) (صحيح)

هُرَيْرَةَ: فَقُلْتُ: لَا تَقْسِمْ لَهُمْ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَقَالَ أَبَانُ: أَنْتَ بِهَا يَا وَبْرُ تَحَدَّرَ عَلَيْنَا مِنْ رَأْسِ ضَالٍ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اجْلِسْ يَا أَبَانُ وَلَمْ يَقْسِمْ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دسعیدبن العاص رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه ابان بن سعید بن العاص لره نبی علیه السلام په لښکرباندې امیر مقررکړې وواودمدینې نه ئې دنجد طرف ته لیږلي وونو ابان بن سعید اوددۀ ملګري په خیبرکښې دنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضرشول وروسته د فتح کولونه او ددوی داسونوتانګونه دکهجورو د پوټکونه جوړ وو، ابان اووئیل اې دالله رسوله زمونږ دپاره په غنیمت کښې حصه راکړه ابوهریره وائی چه ما ووئیل اې دالله رسوله چه حصه ورله ورنکړې ابان ووئیل چه دو بر په شان خبرې کوې (وبر د پیشو په شان یو قسم ځناوردې) اوضال نومې غرد سرنه اوس راکوزشوي ئې (دا د ابوهریرة دکلي نوم وو) نبی علیه السلام اوفرمائیل اې ابان کېنه اونبی علیه السلام ابان اودهغه ملګروته حصه ونکړه.

## مضمون حدیث

د حدیث مضمون دا دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ابان بن سعید رضی الله عنه په یوه سریه باندې امیر جوړ کړو او د مدینې منورې نه ئې نجد طرف ته اولیږلو (هم دې دوران کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم او صحابه کرام د خیبر د فتح کولو دپاره هلته رسیدلې وو) ابان بن سعید او د هغه ملګری چه واپس شو نو نیغ خیبر ته راغلل په داسې حال کښې چه خیبر فتح شوې وو د هغې نه روستو په روایت کښې دی: ﴿ وان حزم خیلهم لیف ﴾ حزم جمع د حزام یعنی کتې دہ، او لیف د کهجورې د اونې پوستکې، یعنی د هغوی د اسونو کتې د کهجورو د پوستکی وې، ممکن ده چه د راوی غرض د هغوی فقر بیانول وی، او کیدې شی چه صرف د واقع بیانول وی، اوس صورت حال دا راپیښ شو چه ابان رضی الله عنه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دا عرض اوکړو چه یا رسول الله صلی الله علیه وسلم د خیبر په غنیمت کښې زمونږ حصه هم مقرر کړئ، ابوهریره رضی الله عنه کوم چه د حدیث راوی دې فرمائی چه زه هم هغه وخت دې مجلس کښې موجود اوم، نو ما رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړو چه یا رسول الله صلی الله علیه وسلم د دې خلقو حصه مه مقرر کوئ (په دې باندې به ابان رضی الله عنه ظاهره ده چه خفه شوې وی) پس ابان رضی الله عنه اووې:

﴿ انت یا وبر تحدر علینا من راس ضال ﴾ یعنی ابان رضی الله عنه ابوهریره رضی الله عنه ته په غصه او خفګان سره اووې چه اې مږې نه دا خبره کوې؟ ﴿ انت بها ای انت تقول بهذه الکلمة ﴾ هغه ابوهریره رضی الله عنه ته وبر د سپکاوی په طور وئیلې دی (وبر زمونږ د ژبې په اعتبار سره مونث دې په دې وجه وړاندې ترجمه هم د هغې مطابق ده) کوم چه راکوز شوې دې زمونږ خواته د یو ځنګل نه، د ﴿ ضال ﴾ تفسیر امام بخاری په ﴿ السدر البری ﴾ سره کړې دې یعنی ځنګلی بیره. په دې باندې رسول الله صلی الله علیه وسلم ابان رضی الله عنه ته اوفرمائیل چه کېنه اې ابان! یعنی جنګ مه کوئ، وړاندې راوی فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د دې خلقو په مال غنیمت کښې حصه مقرر نه کړه.

## د حدیث توجیه د احنافو د طرف نه

دا حدیث په ظاهره کښې د جمهورو موافق او د احناف خلاف دې، ځکه چه د مال غنیمت نه اوسه پورې احراز شوې وو او نه تقسیم شوې وو، خو انقضاء قتال شوې وو، د دې جواب د

احنافو د طرف نه بعض حضراتو دا کړي دي چه کله خیبر د مسلمانانو په قبضه کښې راغلو نو ګویا هغه دار الاسلام جوړ شو، لهذا احراز غنیمت بیا موندلې شو.

[۲۷۲٤]() حَدَّثَنَا حَامِدُ بْنُ يَحْيَى الْبَلْخِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، قَالَ: حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ، وَسَأَلَهُ إِسْمَاعِيلُ بْنُ أُمَيَّةَ، فَحَدَّثَنَاهُ الزُّهْرِيُّ، أَنَّهُ سَمِعَ عَنْبَسَةَ بْنَ سَعِيدٍ الْقُرَشِيَّ، يُحَدِّثُ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَدِمْتُ الْمَدِينَةَ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِخَيْبَرَ حِينَ افْتَتَحَهَا فَسَأَلْتُهُ أَنْ يُسْهِمَ لِي فَتَكَلَّمَ بَعْضُ وُلْدِ سَعِيدِ بْنِ الْعَاصِ فَقَالَ: لَا تُسْهِمْ لَهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: فَقُلْتُ: هَذَا قَاتِلُ ابْنِ قَوْقَلٍ، فَقَالَ سَعِيدُ بْنُ الْعَاصِ: يَا عَجَبًا لِوَبْرٍ قَدْ تَدَلَّى عَلَيْنَا مِنْ قَدُومِ ضَالٍ يُعَيِّرُنِي بِقَتْلِ امْرِءٍ مُسْلِمٍ أَكْرَمَهُ اللَّهُ تَعَالَى عَلَى يَدَيَّ، وَلَمْ يُهِنِّي عَلَى يَدَيْهِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَؤُلَاءِ كَانُوا نَحْوَ عَشَرَةٍ فَقُتِلَ مِنْهُمْ سِتَّةٌ، وَرَجَعَ مَنْ بَقِيَ.

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائي چه مدینې ته راغلم اونبی علیه السلام په خیبر کښې وو دفتح کولوپه وخت کښې مانبی علیه السلام ته اووئیل چه زما دپاره هم حصه مقررکړئ نودسعید بن العاص په ځامنوکښې یوکس ووئیل چه مونږ خودته هیڅ کله حصه نه ورکووما ووئیل همدا سړې دابن قوقل قاتل دې، سعید بن العاص وویل زه ددې وبرنه تعجب کوم چه دضال غرنه راکوزشوې دې او مادیو مسلمان په قتل باندې رټي چاته چه الله تعالی زما په لاسو عزت ورکړې دې اوزه ئې دهغه په لاسونه یم ذلیل کړې چه دکفر په حالت کښې دهغه دلاس نسه مړشوې وې. ابوداود وائی چه دوی تقریبا لس کسان ووشپږ کسان قتل کړې شول اوباقی پاتې واپس راغلل.

د دې حدیث په دویم طریق کښې مضمون د دې برعکس دې، په هغې کښې داسې دی ﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَدِمْتُ الْمَدِينَةَ وَرَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- بِخَيْبَرَ حِينَ افْتَتَحَهَا فَسَأَلْتُهُ أَنْ يُسْهِمَ لِي فَتَكَلَّمَ الخ ﴾

## شرح حدیث

سیدنا ابوهریره رضی الله عنه فرمائي چه زه د اسلام د قبلولو دپاره مدینې منورې ته راغلم، هلته چه راغلم نو راته معلومه شوه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د غزوه خیبر دپاره تشریف اوړلې دې، زه هلته لاړم په داسې حال کښې چه هغه خیبر فتح کړې وو، ما رسول الله صلی الله علیه وسلم ته درخواست اوکړو چه زما حصه هم مقرر کړئ نو په دې باندې ابان بن سعید رضی الله عنه عرض اوکړو چه یا رسول الله صلی الله علیه وسلم د ابوهریره حصه مه مقرر کوئ، ابوهریره رضی الله عنه فرمائي چه د دې په جوابی کار روایئ کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړو ﴿ هذا قاتل ابن قوقل ﴾ چه یا رسول الله! ابان خو د نعمان بن قوقل صحابی رضی الله عنه قاتل دې، یعنی دا ډیر غلط سړې دې ﴿فقال سعید بن العاص ﴾ دلته په روایت کښې سعید بن العاص دې خو د سیاق تقاضه دا ده چه دلته ابان بن سعید کیدل پکار دی. چه کله ابوهریره رضی الله عنه ابان ته د یو صحابی قاتل اووې او په هغه ئې د قتل الزام اولګولو نو د هغې په جواب کښې ورته ابان اووې چه تعجب دې په هغه مړه باندې کوم چه زمونږ خواته د ځنګلي بیرې نه راکوزه شوې ده چه ماته پیغورونه کوی د یو مسلمان په قتل باندې، حال دا چه الله پاک زما په لاس باندې هغه ته عزت ورکړو (چه زما د وجې نه ورته د

(): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٤٢٨٠) (صحیح)

شهادت مرتبه ملاؤ شوه) او زه ئې د هغه په لاسونو باندې ذليل او رسوا نه کړم.

د دې دواړو روايتونو په مضامين کښې چه کوم فرق دې د سوال او جواب د ترتيب په اعتبار سره د هغې جواب بعض محدثين لکه امام ذهلی رحمه الله خو داسې ورکړې دې چه اول روايت ئې راجح کړې او دويم ئې مرجوح کړې دې، او بعض جمع بين الروايتين داسې کړې ده چه کيدې شي دواړه خبرې موندلې شوې وی، د ابوهريره رضي الله عنه په طلب باندې ابان دا اووې، او د ابان په طلب باندې ابوهريره رضي الله عنه دا اووې... حديث الباب الاول اخرجه البخاری تعليقا، والثانی اخرجه البخاری (مسند) قاله المنذری.

[۲۷۲۵]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، حَدَّثَنَا بُرَيْدٌ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى، قَالَ: قَدِمْنَا فَوَافَقْنَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ افْتَتَحَ خَيْبَرَ فَأَسْهَمَ لَنَا، أَوْ قَالَ فَأَعْطَانَا مِنْهَا وَمَا قَسَمَ لِأَحَدٍ غَابَ عَنْ فَتْحِ خَيْبَرَ مِنْهَا شَيْئًا إِلَّا لِمَنْ شَهِدَ مَعَهُ إِلَّا أَصْحَابَ سَفِينَتِنَا، جَعْفَرٌ وَأَصْحَابُهُ فَأَسْهَمَ لَهُمْ مَعَهُمْ.

دابوموسی رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه مونږ دحبشې نه راغلو او مونږ نبی عليه السلام ته په داسې وخت کښې راغلو چه خيبر فتح شوې وو نونبی عليه السلام مونږ ته دخيبر دغنيمت په مال کښې حصه راکړه اوکه داسې ئې وئيلی دی چه مونږ ته ئې څه راکړل اوددې نه ئې دداسې کس دپاره حصه مقرر نکړه کوم چه په دې وخت کښې حاضر نه وو علاوه دهغه کسانونه کوم چه دنبی عليه السلام سره حاضر وو اوپه جهاد کښې شريک و البته دکشتۍ خلق يعنی جافر بن أبی طالب اودهغه ملګروته بسې حصه ورکړه.

## شرح حديث

سيدنا ابو موسی اشعری رضي الله عنه د اصحاب الهجرتين نه دې، د هغه هجرت ثانيه کوم چه د حبشه نه د مدينې منورې طرف ته شوې دې د هغې حال بيان فرمائی او چونکه د حبشه او مدينې ترمينځه سمندر دې او په کشتۍ باندې تلل راتلل وو په دې وجه هغه او د هغه ملګرو نه په اصحاب السفينه سره هم تعبير کولې شی، نو هغه فرمائی چه کله مونږ د حبشې نه راغلو چه اول به مدينې منورې ته رارسيدلې وی، هلته رارسيدو سره معلومه شوه چه رسول الله صلی الله عليه وسلم په فتح خيبر کښې مشغول دې نو دې هم د ابوهريره رضي الله عنه په شان هلته لاړو، ابوموسی رضي الله عنه فرمائی چه رسول الله صلی الله عليه وسلم زمونږ د ټولو ملګرو د خيبر په غنيمت کښې حصه مقرر کړه، او زمونږ نه علاوه څوک هم داسې نه وو چه هغه دې د فتح خيبر په وخت موجود نه وی او د هغه حصه ئې مقرر کړې وی، په اصحاب سفينه کښې هغه د جعفر بن ابی طالب رضي الله عنه نوم هم اخلی.

دلته سوال دا دې چه رسول الله صلی الله عليه وسلم د ابان بن سعيد رضي الله عنه او ابوهريره رضي الله عنه دپاره په خيبر کښې حصه مقرر نه کړه او د اصحاب سفينه دپاره ئې حصه مقرر کړه او حال دا چه د دواړو نوعيت يو دې، د دې په جواب باندې د پوهيدلو دپاره اول په دې ځان پوهه کړئ چه

(): صحيح البخاري/فرض الخمس ۱۵ (۳۱۳۶)، والمناقب ۳۷ (۳۸۷۶)، والمغازي ۳۸ (۴۲۳۰)، سنن الترمذي/السير ۱۰ (۱۵۵۹)، (تحفة الأشراف: ۹۰۴۹)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/فضائل الصحابة ۴۱ (۲۵۰۲)، مسند احمد (۴/۳۹۴، ۴۰۵، ۴۱۲) (صحيح)

ابوهریره او ابان سره چه کومه معامله رسول الله ﷺ اوکړه هغه د جمهورو د مسلک موافق وه او د احنافو د مسلک خلاف وه، او د اصحاب سفینه سره چه ئې کومه معامله اوکړه خو د احنافو د مسلک خو مطابق وه خو د جمهورو د مسلک خلاف ده، زمونږ موافق په دې وجه ده چه د مال غنیمت نه خو لا تر اوسه پورې احراز شوې وو او نه هغه تقسیم شوې وو، او په دې صورت کښې زمونږ په نزد دلته اسهام وی، لهذا د رسول الله ﷺ دا معامله د اصحاب سفینه سره د احنافو د اصولو خو مطابق ده خو د جمهورو خلاف ده، خو چونکه احنافو په اولنی حدیث یعنی د ابوهریره رضي الله عنه په قصه کښې دا وئیلې دی د اشکال نه د بچ کیدو دپاره چه هلته احراز شوې وو په دې وجه رسول الله ﷺ د هغوی حصه مقرر نه کړه کما تقدم منا انفا. اوس د دې جواب په رنړا کښې د اصحاب سفینه سره د رسول الله ﷺ معامله زمونږ د مسلک خلاف کیږی، د دې توضیح د پیژندلو نه پس اوس د اصل اشکال جواب واورئ یعنی په دواړو قصو کښې وجه د فرق، او هغه فرق علماء کرامو احتمالا دا بیان کړې دې چه ممکنه ده چه د اصحاب سفینه اسهام د غانمین په رضا باندې وی، یا د اصل غنیمت نه نه وی بلکه د خمس نه وی کوم چه د بیت المال دپاره وی، بلکه توجیه دا کړې شوې ده چه لعل اصحاب السفینة بلغوا قبل تمام الفتح. یعنی هغه وخته پورې کامل طریقې سره فتح نه وه شوې، په خلاف د ابوهریره رضي الله عنه چه د هغه د رارسیدو پورې کامله فتح شوې وه. (وهذا التوجیه الاخیر من قبل الجمهور دون الحنفیة) والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی مختصرا ومطولا، قاله المنذری).

[۲۷۲۶](۱) حَدَّثَنَا مَحْبُوبُ بْنُ مُوسَى أَبُو صَالِحٍ، أَخْبَرَنَا أَبُو إِسْحَاقَ الْفَزَارِيُّ، عَنْ كُلَيْبِ بْنِ وَائِلٍ، عَنْ هَانِئِ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ يَعْنِي يَوْمَ بَدْرٍ فَقَالَ: إِنَّ عُثْمَانَ انْطَلَقَ فِي حَاجَةِ اللَّهِ، وَحَاجَةِ رَسُولِ اللَّهِ، وَإِنِّي أُبَايِعُ لَهُ فَضَرَبَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَهْمٍ، وَلَمْ يَضْرِبْ لِأَحَدٍ غَابَ غَيْرَهُ.

دابن عمر رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی عليه السلام د بدر په ورځ اودریدو اووئې وئیل یقینا عثمان دالله اودالله درسول په کار پسې تلې دې اوزه دهغه دپاره بیعت کوم اونبی عليه السلام دهغه دپاره حصه مقررکړه اودهغه نه ئې علاوه دهیڅ چادپاره حصه مقررنکړه.

ابن عمر رضي الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ د بدر په ورځ باندې د تقسیم غنیمت نه مخکښې اودریدو او وې فرمائیل چه بیشکه عثمان د الله او د هغه د رسول ﷺ په کار کښې تلې دې، او زه د هغه دپاره بیعت کوم، یعنی رسول الله ﷺ خپل یو لاس د هغه لاس اومنلو او د خپل دویم لاس سره ئې یوځائې کړو، او بیا ئې د بدر غنیمتونه تقسیم کړل او باقاعده د عثمان رضي الله عنه حصه ئې هم مقرر کړه.

سیدنا عثمان رضي الله عنه رسول الله ﷺ د خپلې زوجه محترمه سیده رقیه رضي الله عنها د خیال ساتلو دپاره په مدینه کښې پریخودلې وو، هم دا مراد دې د رسول الله ﷺ د دې قول نه چه هغه د الله او د هغه د رسول ﷺ د کار دپاره تلې دې، پس فقهاء کرامو هم د دې واقعې نه دا مسئله

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٦٨٤) (صحيح)

مستنبط کړې ده چه که یو سړې په جهاد کښې د دې وجې نه شریک نه شي چه هغه د مسلمانانو امام د مسلمانانو په یو کار باندې مقرر کړې دې نو د هغه به په مال غنیمت کښې حصه وی.

وړاندې په روایت کښې دی، راوی فرمائی چه رسول الله ﷺ د عثمان نه علاوه د بل یو سړی هم په غنیمت کښې حصه نه ده لګولې کوم چه په جنګ کښې شریک شوې نه وو، په دې باندې حضرت په بذل کښې لیکلې دی چه دا خبره راوی د خپل علم په اعتبار سره کوی ګینې بعض خلق نور هم داسې شته چه د هغوی حصه مقرر کړې شوې ده. په دې روایت باندې اشکال دا دې چه په جنګ بدر کښې د بیعت قصه کوم ځائې کښې راغلې ده، هغه خو په غزوه حدیبیه کښې راپیښه شوې وه کوم ته چه بیعة الرضوان وئیلې شی، هم په دې وجه وئیلې شوې دی چه غالبا دا د کوم راوی وهم دې. (كذا في العون ولم يتعرض له في البذل)

## باب فِي الْمَرْأَةِ وَالْعَبْدِ يُحْذَيَانِ مِنَ الْغَنِيمَةِ

### غلامانو او ښځوته په غنیمت کښې د حصې ورکولو بیان

د دې باب تعلق د مواضع تقیسم غنیمت سره دې، د دې کلی او جامع باب خو به وړاندې راشی، باب في مواضع قسم الغنيمة، دا هم د دې جامع باب یوه کړئ ده، هغه دا چه زنانه او عبد که په جهاد کښې شرکت کوی نو د هغوی دپاره به په غنیمت کښې حصه وی یا نه، د ائمه اربعه په نزد زکورة او حریت د غنیمت د حصې په شرطونو کښې دې، لهذا د دې دواړو به باقاعده حصه نه وی، خو حذوه یعنی د عطیه په طور به ورته څه معمولی څیز ورکولې شی، دې معمولی څیز ته حذوه او رضخ دواړو سره تعبیر کولې شی د زنانه او غلام دپاره د رضخ کیدل د ائمه ثلاثه په نزد دی، امام مالک د دې هم قائل دې، اصل مسئله کښې د امام اوزاعی او حسن بن صالح اختلاف دې، د اوزاعی صرف د زنانه په باره کښې او د حسن بن صالح صرف د غلام په باره کښې، دا دواړه د حصې قائل دی، خو د احنافو په نزد د عبد نه مراد عبد غیر ماذون دې د چا دپاره چه حصه نشته په خلاف د ماذون عبد... فانه في حكم الحر في هذه المسئلة، په ترجمة الباب کښې لفظ د ﴿ يحذيان ﴾ مضارع مجهول صیغه ده، احذى يحذى احذاء نه، چه د هغې معنی د ورکړې ده خاص کر مال غنیمت سره.

[۲۷۲۷](1)حَدَّثَنَا مَحْبُوبُ بْنُ مُوسَى أَبُو صَالِحٍ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ الْفَزَارِيُّ، عَنْ زَائِدَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنِ الْمُخْتَارِ بْنِ صَيْفِيٍّ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ هُرْمُزَ، قَالَ: كَتَبَ نَجْدَةُ إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ يَسْأَلُهُ عَنْ كَذَا وَكَذَا وَذَكَرَ أَشْيَاءَ، وَعَنِ الْمَمْلُوكِ أَلَهُ فِي الْفَيْءِ شَيْءٌ، وَعَنِ النِّسَاءِ هَلْ كُنَّ يَخْرُجْنَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَهَلْ لَهُنَّ نَصِيبٌ؟ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: لَوْلاَ أَنْ يَأْتِيَ أُحْمُوقَةً مَا كَتَبْتُ إِلَيْهِ، أَمَّا الْمَمْلُوكُ فَكَانَ يُحْذَى، وَأَمَّا النِّسَاءُ فَقَدْ كُنَّ يُدَاوِينَ الْجَرْحَى وَيَسْقِينَ الْمَاءَ.

د یزید بن هرمز نه روایت دې چه نجده ابن عباس ته اولیکل او د هغه نه ئې ډیر معلوماتونه حاصلول غوښتل او دائې هم معلومول چه که غلام په جهاد کښې شریک شي نو هغه ته به

(1): صحيح مسلم/الجهاد ٤٨ (١٨١٢)، سنن الترمذي/السير ٨ (١٥٥٦)، سنن النسائي/الفيء (٤١٣٨)، مسند احمد (٢٤٨/١، ٢٩٤، ٣٠٨، ٣٢٠، ٣٤٤، ٣٤٩، ٣٥٢)، (تحفة الأشراف: ٦٥٥٧) (صحيح)

حصه ورکولې شي اوکه نه؟ او زنانه به هم دنبي ﷺ سره جهاد ته تلي ایاهغوی ته به حصه ورکولې شوه اوکه نه؟ نوابن عباس اووئیل که چرې ماته دا ویره نه و چه دوی به بې وقوفي اوکړي نومابه دوی ته جواب نه وو لیکلې بیا ابن عباس رضی الله عنه دوی ته جواب اولیکلو چه غلام ته په طور دانعام یوڅه ورکولې شي اوژنانوو خوبه دزخمیانو علاج کرو اوهغوی ته به ئې اوبه ورکولې (نجده دخوارجو دامیر نوم دې).

## مضمون الحديث

نجده حروری رئیس الخوارج د ابن عباس رضی الله عنه نه څو مسائل اوتپوسل چه په هغې کښې یو تپوس د مملوک په باره کښې وو چه د هغه په مال غنیمت کښې حصه شته یا نه، او بل تپوس ئې د زنانو متعلق وو چه ایا هغه به د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د جهاد دپاره وتلې، او ایا د هغوی دپاره به باقاعده حصه وه؟ نو د دې په جواب کښې ورته ابن عباس رضی الله عنه اوفرمائیل: ﴿ لولا ان یاتی احموقة ما کتبت الیه ﴾ که ماته د دې خبرې ویره نه وه چه معلومه نه ده هغه به په حماقت کښې څه اوکړی نو ما به هغه ته جواب نه وو لیکلې، په ظاهره کښې ابن عباس د هغه نجده په فاسد العقیده کیدو باندې د نفرت اظهار کوی، خو چونکه د دینی مسئلې خبره ده په دې وجه ئې مجبورا لیکی، بهرحال هغه په جواب کښې اولیکل چه او مملوک ته د عطیه په طور څه ورکولې شی، او زنانه به هم د مجروحین د خیال ساتلو او خدمت په نیت باندې جهاد ته تللې.

د دې نه روستو روایت کښې د ابن عباس په جواب کښې د زنانو متعلق دا دی ﴿ وقد کان یرضح لهن ﴾ چه او هغوی ته به رضح ورکولې شو، د رضح ذکر په الدر المنضود جلد اول باب الغسل من الحیض کښې ضمنا د حدیث د لاندې راغلې دې، او هلته مونږ دا هم لیکلې وو چه ددې اصل محل کتاب الجهاد دې. فتذکر. والحدیث اخرجه مسلم والترمذی والنسائی مختصرا ومطولا، قاله المنذری.

[٢٧٢٨](١)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ خَالِدٍ يَعْنِي الْوَهْبِيَّ، حَدَّثَنَا ابْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي جَعْفَرٍ، وَالزُّهْرِيِّ عَنْ يَزِيدَ بْنِ هُرْمُزَ، قَالَ: كَتَبَ نَجْدَةُ الْحَرُورِيُّ إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ يَسْأَلُهُ عَنِ النِّسَاءِ هَلْ كُنَّ يَشْهَدْنَ الْحَرْبَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَهَلْ كَانَ يَضْرِبُ لَهُنَّ بِسَهْمٍ؟ قَالَ: فَأَنَا كَتَبْتُ كِتَابَ ابْنِ عَبَّاسٍ إِلَى نَجْدَةَ قَدْ كُنَّ يَحْضُرْنَ الْحَرْبَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَمَّا أَنْ يُضْرَبَ لَهُنَّ بِسَهْمٍ فَلَا وَقَدْ كَانَ يُرْضَخُ لَهُنَّ.

دیزید بن هرمز نه روایت دې چه نجده ابن عباس ته اولیکل اودهغه نه ئې دزنانو په باره کښې معلومات حاصلوو چه آیا زنانه به دنبي ﷺ سره جهاد ته حاضریدلې؟ اوایاددوی دپاره به ئې حصه مقرروله؟ مادابن عباس رضی الله عنه دطرف نه داجواب اولیکو چه په دور نبوی کښې زنانه به په جهاد کښې شریکیدلې او ددوی دپاره به څه مقرره حصه نه وه بلکه په طور دانعام به ورته یوڅه ملاویدل.

---

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٦٥٥٧) (صحيح)

[۲۷۲۹]()حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعِيدٍ، وَغَيْرُهُ، أَخْبَرَنَا زَيْدُ بْنُ الْحُبَابِ، قَالَ: حَدَّثَنَا رَافِعُ بْنُ سَلَمَةَ بْنِ زِيَادٍ، حَدَّثَنِي حَشْرَجُ بْنُ زِيَادٍ، عَنْ جَدَّتِهِ أُمِّ أَبِيهِ، أَنَّهَا خَرَجَتْ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةِ خَيْبَرَ سَادِسَ سِتِّ نِسْوَةٍ، فَبَلَغَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَعَثَ إِلَيْنَا فَجِئْنَا فَرَأَيْنَا فِيهِ الْغَضَبَ فَقَالَ: "مَعَ مَنْ خَرَجْتُنَّ وَبِإِذْنِ مَنْ خَرَجْتُنَّ؟ فَقُلْنَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ خَرَجْنَا نَغْزِلُ الشَّعَرَ وَنُعِينُ بِهِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَمَعَنَا دَوَاءُ الْجَرْحَى وَنُنَاوِلُ السِّهَامَ وَنَسْقِي السَّوِيقَ، فَقَالَ: قُمْنَ. حَتَّى إِذَا فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْهِ خَيْبَرَ أَسْهَمَ لَنَا كَمَا أَسْهَمَ لِلرِّجَالِ قَالَ: قُلْتُ لَهَا: يَا جَدَّةُ وَمَا كَانَ ذَلِكَ قَالَتْ: تَمْرًا".

حشرج بن زیاد دخپلې نیا (دپلار دطرفه)نه روایت کوي چه دا دنبی علیه السلام سره دخیبر جهاد ته تلې وه اودا په شپږوکښې شپږمه ښځه وه ام زیاد وائی کله چه نبی علیه السلام خبرشو نومونږ ئې راوغوښتلو مونږ چه لاړو نو نبی علیه السلام په غصه کښې وو زمونږ نه ئې تپوس اوکړو چه تاسوه چاسره راوتلې ئې اودچاپه حکم باندې راوتلې يې؟ مونږ اووئیل اې دالله رسوله مونږ چه راوتلو مونږ وړئ ریشلې وې او مونږ دهغې په ذریعه دالله په لار کښې امداد کوو او زمونږ سره دزخمیانو دپاره دوائی ده او مونږ مجاهدینوته غشي ورسوو او ستوان تقسیموو، نبی علیه السلام اوفرمائیل لاړې شئ نوکله چه خیبر الله تعالی فتح کړو نو زمونږ دپاره ئې حصه هم مقررکړه دنارینوو دپاره ئې حصې مقررې کړې وې راوي وائی چه مااووئیل اې نیا هغه څه شې وو (چه په غنیمت کښې درکړې شو)هغې اووئیل کجورې.

﴿ حَدَّثَنِي حَشْرَجُ بْنُ زِيَادٍ عَنْ جَدَّتِهِ أُمِّ أَبِيهِ أَنَّهَا خَرَجَتْ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فِي غَزْوَةِ خَيْبَرَ الخ ﴾ حشرج بن زیاد د خپلې نیا ام زیاد الاشجعیه نه روایت کوي، هغه وائی چه مونږ شپږ زنانه د رسول الله ﷺ سره غزوه خیبر ته لاړو، هغه ته چه کله د دې خبر اوشو نو هغه مونږ پسې یو سړې راولیږلو، چه کله مونږ د هغه خواته لاړو نو مونږ اوکتل چه هغه غصه دې، هغه زمونږ نه تپوس اوکړو چه تاسو د چا سره راوتلې یئ او د چا په اجازت راوتلې یئ؟ هغه وائی چه مونږ عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ مونږ راوتلې یو د دې دپاره چه مالوچ تقیسم کړو (الغزل بالفارسیة په معنی د رشتن، غنبتل) د دې دپاره چه هغه په جهاد کښې په کار راشي، او مونږ سره دوائی ده د مجروحین دپاره، او د دې دپاره چه مونږ مجاهدینو ته غشي ورکړو، او په هغوی باندې ستوان وغیره اوڅکوو، رسول الله ﷺ زمونږ جواب اوریدلو سره اوفرمائیل ښه اودریږئ، تردې چه کله الله پاک په رسول الله ﷺ باندې خیبر فتح کړو ﴿ اسهم لنا کما اسهم للرجال ﴾ نو رسول الله ﷺ په غنیمت کښې زمونږ دپاره هم حصه مقرر کړه څنګه چه ئې د سړو دپاره مقرر کړې وه.

هم دا روایت د امام اوزاعی مستدل دې، جمهور فرمائی چه د دې نه مراد رضخ دې، حشرج وائی چه ما د هغې نه تپوس اوکړو چه په حصه کښې درته څه ملاؤ شو نو هغې اووې چه کهجورې. والحديث اخرجه النسائي، قاله المنذري.

(): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۸۳۱۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۷۱/۶، ۳۷۱) (ضعيف)

[۲۷۳۰](١)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا بِشْرٌ يَعْنِي ابْنَ الْمُفَضَّلِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زَيْدٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي عُمَيْرٌ مَوْلَى آبِي اللَّحْمِ، قَالَ: شَهِدْتُ خَيْبَرَ مَعَ سَادَتِي فَكَلَّمُوا فِيَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَرَ بِي فَقُلِّدْتُ سَيْفًا فَإِذَا أَنَا أَجُرُّهُ فَأُخْبِرَ أَنِّي مَمْلُوكٌ فَأَمَرَ لِي بِشَيْءٍ مِنْ خُرْثِيِّ الْمَتَاعِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: مَعْنَاهُ أَنَّهُ لَمْ يُسْهِمْ لَهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَالَ أَبُو عُبَيْدٍ: كَانَ حَرَّمَ اللَّحْمَ عَلَى نَفْسِهِ فَسُمِّيَ آبِي اللَّحْمِ.

دعمير (دابواللحم ازاد كړي شوي غلام)نه روايت دي فرمائي چه زه دخپلو مالكانوسره دخيبر غزاته لاړم هغې زماپه باره كښې نبي عليه السلام ته اووئيل چه دي دځان سره بوځو اوكه نه نبي عليه السلام اجازت ورکړو اوماته يسې حكم اوكړو نوماتوره غاړي ته واچوله داسې توره چه په زمكه مې راښكله نبي عليه السلام ته خبر وركړې شو چه دي خوغلام دې نونبي عليه السلام ماته دانعام په طور باندې دكور دسامان نه يوڅه راكړل.

## شرح حديث

عمير صحابي رضي الله عنه كوم چه ازاد كړې شوي غلام دې، د يو بل صحابي ه د هغه لقب ابي اللحم مشهور دې او په نوم كښې ئې اختلاف دې، عبدالله يا خلف يا الحويرث الغفاري، د ابوداود په بعض نسخو كښې دى : قال ابو عبيد : كان حرم اللحم على نفسه فسمي ابو اللحم﴾ ابو عبيد قاسم بن سلام فرمائي چه هغه ته ابو اللحم په دې وجه وئيلې شي چه هغه د اسلام قبلولو نه مخكښې چه كوم ځاروى د بتانو په نوم باندې ذبح كولې شو د هغې غوښه په خپل ځان باندې حرام كړې وه، يعنى د هغې نه به ئې پرهيز كولو، هغه
وائي چه زه د خپلو مالكانو سره د خيبر په غزوه كښې شريک شوم چه د هغې صورت دا شو چه زما مالكانو زما په باره كښې رسول الله ﷺ سره خبره كړې وه نو هغه زما په باره كښې اجازت وركړو، هغه فرمائي چه ماته په غاړه كښې يوه توره واچولې شوه (لكه چه د مجاهدينو په غاړه كښې وى) نو ما هغه د ځان سره راښكله، يعنى هغه ما سره په زمكه لګيدلې تله (د هغه دكم عمرئ اود قد د وړوكوالى دوجې نه) وړاندې فرمائي چه د تقسيم غنيمت په وخت زما باره كښې عرض اوكړې شو چه دا غلام دې، پس رسول الله ﷺ زما دپاره د كور د استعمال د معمولي سامان د وركولو حكم اوفرمائيلو يعنى كټوئ او لوښى وغيره، الاواني المنزلية... د دې نه معلومه شوه چه د مملوک دپاره باقاعده حصه نه وى، خو دلته به يو اشكال وى چه هغه اګر چه عبد وو خو عبد ماذون للقتال وو كوم چه د احنافو په نزد په حكم د ازاد كښې دې، د دې جواب به كيدې شي چه دا وى چه دې صرف عبد نه دې بلكه صغير هم دې لكه چه د ابوداود په بعض نسخو كښې دى. قال ابوداود : معناه انه لم يسهم له لصغره.... والحديث اخرجه الترمذى وابن ماجة، قاله المنذرى.

[۲۷۳۱](٢)حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي سُفْيَانَ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: كُنْتُ أَمِيحُ أَصْحَابِي الْمَاءَ يَوْمَ بَدْرٍ.

---

١): سنن الترمذي/السير ٩ (١٥٥٧)، سنن ابن ماجه/الجهاد ٣٧ (٢٨٥٥)، (تحفة الأشراف: ١٠٨٩٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٢٣/٥)، سنن الدارمي/السير ٣٥ (٢٥١٨) (صحيح)

٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٣٢٨) (صحيح)

**ترجمه:** دجابرنه روایت دي فرمائي چه مابه دبدر په ورځ باندې دمسلمانانودپاره داوبونه لوښي راډکول.

## شرح حدیث

سیدنا جابر رضي الله عنه فرمائي چه زه به په جنګ بدر کښې په بوقه کښې اوبه اورلو سره خپلو اصحابو ته ورکولې په بعض نسخو کښې دا زیادت دې ﴿ معناه لم یسهم له ﴾ د جابر د عدم اسهام وجه هم دا ده چه هغه دې وخت کښې ماشوم وو چه د هغې قرینه خپله په روایت کښې موجود ده چه ما به په بوقه کښې اوبه اچولې، د دې نه معلومه شوه چه هغه به اوبه ډکولې او اوبه راښکلو والا بل څوک وو، د ماح یمیح میحا معنی هم دا ده چه اوبو ته کوزیدلو سره د هغې نه لوښي ډکول، ظاهره ده چه دا کار ماشوم هم کولې شی، د بوقې د ډکیدو نه پس د هغې راښکل دا د طاقت ور سړی کار دې.

ځان پوهه کړئ چه ډکونکی ته مائح او راښکونکی ته ماتح وئیلې شی، فقد قال الخطابی الماتح هو الذی ینزل الی اسفل البیر فیملا الدلو ویرفعها الی المائح وهو الذی ینزع الدلو. اه

## بَابٌ فِي الْمُشْرِكِ يُسْهَمُ لَهُ

**کله چه مشرک د مسلمانانو سره په جهاد کښې شریک وی نو دده دپاره به حصه وی اوکه نه؟**

[۲۷۳۲](۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَيَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ الْفُضَيْلِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ نِيَارٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَ: يَحْيَى إِنَّ رَجُلًا مِنَ الْمُشْرِكِينَ لَحِقَ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيُقَاتِلَ مَعَهُ فَقَالَ: ارْجِعْ، ثُمَّ اتَّفَقَا فَقَالَ: إِنَّا لَا نَسْتَعِينُ بِمُشْرِكٍ.

دام المومنین عائشه رضي الله عنها نه روایت دې چه د مشرکانو نه یوکس نبی علیه السلام ته راغې اودنبی علیه السلام سره یې جهاد شروع کړو نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل واپس شه مونږ ته دمشرك مدد نه دې پکار.

## استعانة بالمشرک کښې مذاهب ائمه

دلته دوه مسئلې دی، یو د استعانة بالمشرک کومه چه په حدیث الباب کښې ذکر ده یعنی مسلمان د خپل ځان سره جهاد ته یو مشرک بوتلې شی د دې دپاره چه هلته په کار راشی؟ او بله مسئله دا ده چه هغه ځان سره بوتلې شو نو د هغه دپاره به په مال غنیمت کښې حصه وی یا نه؟ دواړه مسئلې اختلافی دی، اوله مسئله کومه چه په حدیث الباب کښې هم ذکر ده ﴿ انا لا نستعین بمشرک ﴾ په دې کښې د امام احمد رحمه الله نه دوه روایتونه دی د جواز او عدم جواز، او د احنافو په نزد مطلقا جواز دې، او د شوافعو په نزد جواز بشرطین دې یو دا چه هغه د مسلمانانو په باره کښې حسن الرائې وی، دویم حاجت الی

(۱): صحیح مسلم/الجهاد ۵۱ (۱۸۱۷)، سنن الترمذي/السير ۱۰ (۱۵۵۸)، سنن ابن ماجه/الجهاد ۲۷ (۲۸۳۲)، (تحفة الأشراف: ۱۶۳۵۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۶۷، ۱۴۸)، سنن الدارمي/السير ۵۴ (۲۵۳۸) (صحیح)

الاستعانة ([1]) يعنې يو خو دا چه په هغه مشرک کښې تعصب نه وی او هغه شری نه وی، بل دا چه واقعی د استعانت حاجت هم وی، که حاجت نه وی يا هغه متعصب وی نو بيا جائز نه ده، او د امام مالک رحمه الله په نزد د استعانت جواز په دې صورت کښې دې چه کله هغه د بوتلونکو په خادمانو کښې وی، دا مذاهب خو شو په مسئله اولی کښې، او پاتې شوه بله مسئله د حصو نو د داسې سړی دپاره حصې صرف د امام احمد په نزد دی فی الراجح عنده، په دې وجه د هغوی په نزد اسلام شرائط اسهام نه نه دې بلکه صرف دا څلور څيزونه دی بلوغ، عقل، حرية، ذكورة، كما فی الاوجز (ص ۳۹ ج ۴) او عند الجمهور ومنهم الائمة الثلاثة د هغه دپاره د غنيمت حصه نشته، او په مسئله اولی کښې د احنافو دليل هغه دې کوم چه هم په دې کتاب کښې په باب تضمين العارية کښې راروان دې (بذل ص ۳۰۲ ج ٤) چه رسول الله ﷺ په جنګ حنين کښې استعانت فرمائيلې وو په صفوان بن اميه سره د وسلې په استعاره سره د هغه د اسلام د راوړلو نه مخکښې. وحديث الباب اخرجه مسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة بنحوه، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي سُهْمَانِ الْخَيْلِ

### په غنيمت کښې داس دپاره د حصې بيان

سهم خيل باندې خو د ټولو اتفاق دې چه د اس باقاعده حصه په مال غنيمت کښې وی خو د دې مقدار کښې اختلاف دې ائمه خمسه يعنی ائمه ثلاثه او صاحبين په نزد د فرس دپاره دوه حصې دی، لهذا فرس او فارس دواړه يوځائې کيدو سره درې حصې شوې او د امام صاحب په نزد د فرس دپاره يوه حصه ده، لهذا د فارس دپاره به دوه حصې وی يو د هغه او يو د هغه د اس.

[۲۷۳۳] ([2]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْهَمَ لِرَجُلٍ وَلِفَرَسِهِ ثَلَاثَةَ أَسْهُمٍ سَهْمًا لَهُ، وَسَهْمَيْنِ لِفَرَسِهِ.

دابن عمرنه روايت دې فرمائي چه نبی عليه السلام سورلئ والاته درې حصې ورکړې يوه دده خپله حصه اودوه حصې داس.

﴿ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم- أَسْهَمَ لِرَجُلٍ وَلِفَرَسِهِ ثَلَاثَةَ أَسْهُمٍ سَهْمًا لَهُ وَسَهْمَيْنِ لِفَرَسِهِ ﴾ دا حديث د ائمه ثلاث او د صاحبينو دليل دې، او د امام صاحب دليل په راروان باب کښې راځی، چه په هغې باندې مصنف مستقل ترجمه قائم کړې ده او د دې حديث

[1] ) فقد ترجم النووي بباب كراهة الاستعانة في الغزو بكافر الا لحاجة او كونه حسن الرای في المسلمين علي حديث مسلم عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ -صلي الله عليه وسلم- أَنَّهَا قَالَتْ خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ -صلي الله عليه وسلم- قِبَلَ بَدْرٍ فَلَمَّا كَانَ بِحَرَّةِ الْوَبَرَةِ أَدْرَكَهُ رَجُلٌ قَدْ كَانَ يُذْكَرُ مِنْهُ جُرْأَةٌ وَنَجْدَةٌ فَفَرِحَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللَّهِ -صلي الله عليه وسلم- حِينَ رَأَوْهُ فَلَمَّا أَدْرَكَهُ قَالَ لِرَسُولِ اللَّهِ -صلي الله عليه وسلم- جِئْتُ لأَتَّبِعَكَ وَأُصِيبَ مَعَكَ. قَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ -صلي الله عليه وسلم- ؟ تُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ؟. قَالَ لاَ قَالَ ؟ فَارْجِعْ فَلَنْ أَسْتَعِينَ بِمُشْرِكٍ ؟ الحديث اخرجه مسلم ص ۱۸ ج ۲)

[2] ): سنن ابن ماجه/الجهاد ۳۶ (۲۸٥٤)، (تحفة الأشراف: ۸۱۱۱)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الجهاد ٥١ (۲۸٦۳)، المغازي ۳۸ (٤۲۲۸)، صحيح مسلم/الجهاد ۱۷ (۱۷٦۲)، سنن الترمذي/السير ٦ (۱٥٥٤)، مسند احمد (۲/۲، ٦۲، ۷۲، ۸۰، ۱٤۳، ۱٥۲)، سنن الدارمي/السير ۳۳ (۲٥۱٥) (صحيح)

جواب دا کیدې شي چه دا حدیث مجمل دې، د دې نه دا نه معلومیږي چه دا کلنئ واقعه کیدې شي چه د خیبر نه مخکښې واقعه وی، لهذا منسوخ ده. او د امام صاحب دلیل یعنی د مجمع بن جاریه انصاری حدیث هغه د خیبر د غنیمتونو دې،

هم دغه شان په دې کښې احتمال دې چه په دې دریو کښې یو حصه په طور د تنفیل وی. او کانت القسمة اذ ذاک مفوضة الی رای الامام، والله تعالی اعلم، والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی وابن ماجة، قاله المنذری.

[٢٧٣٤]([1])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ يَزِيدَ، حَدَّثَنِي الْمَسْعُودِيُّ، حَدَّثَنِي أَبُو عَمْرَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: أَتَيْنَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعَةَ نَفَرٍ وَمَعَنَا فَرَسٌ، فَأَعْطَى كُلَّ إِنْسَانٍ مِنَّا سَهْمًا وَأَعْطَى لِلْفَرَسِ سَهْمَيْنِ.

د ابوعمره پلار عبد الرحمن بن ابی عمره انصاری ﷛ وائی چه مونږ څلورسړی رسول الله ﷺ ته راغلو او مونږ سره یو اس وو، نو هغوی ﷺ مونږ ته هر سړی ته یوه یوه حصه ورکړه، او اس ته ئې دوه حصې ورکړې.

[٢٧٣٥]([2])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أُمَيَّةُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا الْمَسْعُودِيُّ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ آلِ أَبِي عَمْرَةَ، عَنْ أَبِي عَمْرَةَ بِمَعْنَاهُ إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: ثَلَاثَةُ نَفَرٍ زَادَ فَكَانَ لِلْفَارِسِ ثَلَاثَةُ أَسْهُمٍ.

دې سند سره هم ابو عمره نه ددې حدیث پشان رانقل دې خوپه دې کښې دادی چه مونږ درې سړی وو اوپه دې کښې دا اضافه ده چه سور (اس والاته) درې حصې ملاؤ شوې

## بَابٌ فِيمَنْ أَسْهَمَ لَهُ سَهْمًا

**بابـ دکومو (علماؤ) په نزد چه اس ته یوه حصه ورکول پکار دی دهغوی دلائل**

[٢٧٣٦]([3])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا مُجَمِّعُ بْنُ يَعْقُوبَ بْنِ مُجَمِّعِ بْنِ يَزِيدَ الْأَنْصَارِيُّ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي يَعْقُوبَ بْنَ مُجَمِّعٍ، يَذْكُرُ عَنْ عَمِّهِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ عَمِّهِ مُجَمِّعِ بْنِ جَارِيَةَ الْأَنْصَارِيِّ، وَكَانَ أَحَدَ الْقُرَّاءِ الَّذِينَ قَرَءُوا الْقُرْآنَ قَالَ: شَهِدْنَا الْحُدَيْبِيَةَ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمَّا انْصَرَفْنَا عَنْهَا إِذَا النَّاسُ يَهُزُّونَ الْأَبَاعِرَ، فَقَالَ بَعْضُ النَّاسِ لِبَعْضٍ مَا لِلنَّاسِ قَالُوا: أُوحِيَ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَرَجْنَا مَعَ النَّاسِ نُوجِفُ، فَوَجَدْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاقِفًا عَلَى رَاحِلَتِهِ عِنْدَ كُرَاعِ الْغَمِيمِ، فَلَمَّا اجْتَمَعَ عَلَيْهِ النَّاسُ قَرَأَ عَلَيْهِمْ إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُبِينًا فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللهِ أَفَتْحٌ هُوَ، قَالَ: نَعَمْ، وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ إِنَّهُ لَفَتْحٌ فَقُسِمَتْ خَيْبَرُ عَلَى أَهْلِ الْحُدَيْبِيَةِ، فَقَسَمَهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى ثَمَانِيَةَ عَشَرَ سَهْمًا، وَكَانَ الْجَيْشُ أَلْفًا وَخَمْسَ مِائَةٍ فِيهِمْ ثَلَاثُ مِائَةِ فَارِسٍ، فَأَعْطَى الْفَارِسَ سَهْمَيْنِ، وَأَعْطَى الرَّاجِلَ سَهْمًا، قَالَ أَبُو دَاوُد: حَدِيثُ أَبِي مُعَاوِيَةَ أَصَحُّ وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ وَأَرَى الْوَهْمَ فِي حَدِيثِ مُجَمِّعٍ أَنَّهُ قَالَ: ثَلَاثَ مِائَةِ فَارِسٍ، وَكَانُوا مِائَتَيْ فَارِسٍ.

د مجمع بن جارية الانصاری ﷛ نه روایت دې فرمائی چه مونږ د صلح حدیبیه په ورځ د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضرشوی وو کله چه واپس کیدو نوخپل خپل اوښان مو زر زر اوزغلول، په دې وخت کښې خلقو د یو بل نه تپوسونه شروع کړل چه د منډې وهلو څه سبب

[1]: تفرد به أبوداود، مسند احمد (١٣٨/٤)، (تحفة الأشراف: ١٢٠٧٢) (صحيح)
[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٢٠٧٢) (صحيح)
[3]: تفرد به أبوداود، مسند احمد (٤٢٠/٣)، (تحفة الأشراف: ١١٢١٤)، ويأتي هذا الحديث في الخراج (٣٠١٥) (ضعيف)

دي، بيا معلومه شوه چه په نبی ﷺ وحی نازله شوې ده، او مونږ دخلقو سره په منډه ووتلو او نبی ﷺ مو په خپله اوښه باندې سور اوليدلو د كراع الغيم (چه د مكې اومدينې په مينځ كښې يوځائې دې) سره كله چه ورته خلق راجمع شو نو دا آيت : ﴿إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِينًا﴾ ئې ورته اولوستلو ، يوكس اووئيل اې دالله رسوله! آيا دا فتح ده؟ نبی ﷺ اوفرمائيل هو، زما دې قسم وی په هغه ذات دچا په لاس كښې چه د محمد ﷺ روح دې چه دا فتح ده او دغه فتح يا خو صلح حديبيه وه دكومې په انجام كښې چه مسلمانانو ته ډيره فائده حاصله شوه ياددې فتح نه مراد فتح مكه ده يافتح خيبر مراد دې كومه چه په دې پسې متصل واقع شوې وه بياچه كله دخيبر په جنګ كښې مسلمانانوكوم مال حاصل كړونوهغه دصلح حديبيه په خلقو باندې وويشل شو ، نبی ﷺ دامال اتلس حصې كړو اولښكريان ټول پنځلس سوه كسان وو پدوې درې سوه دسورلووالا وو اودولس سوه پيدل تلو والا رو ، نبی ﷺ دسورلو والاته دوه دوه حصې وركړې او پيدل كسانوته ئې يوه يوه حصه وركړه. ابوداؤد وائې حديث د ابومعاويه اصح دې اوعمل هم په دغې دې او دمجمع په حديث كښې وهم دې هغه وائې چه درې سوه اسونو والا وو ، حالانكه هغوی دوه سوه اسونو والا ؤو.

## مضمون حديث

د حديث مضمون دا دې چه مجمع بن جاريه رضی الله عنه فرمائي چه كله مونږ د حديبيه نه واپس كيدو نو بعض خلقو اوښان زغلول، چه كله د هغې وجه اوتپوسلې شوه نو خلقو جواب وركړو چه رسول الله ﷺ باندې وحی نازله شوې ده، هغه وائې چه مونږ خپلې سورلۍ اوزغلولې، چه كله مونږ هغوی ته نزدې شو نو وې كتل چه ته په خپله سورلۍ باندې هغه لره اودرولې ولاړ دې كراع الغميم ته نزدې، د خلقو د جمع كيدو نه پس هغه دا آيت كريمه تلاوت اوفرمائيلو ﴿ انا فتحنا لک فتحا مبينا ﴾ نو په دې باندې يو سړی د هغه نه تپوس اوكړو چه يا رسول الله! دا څه چه پيښ شوې دی دا فتح ده؟ هغه قسم خوړلو سره اوفرمائيل چه او فتح ده، يعنی د انجام او نتيجې په اعتبار سره هغه په دې وجه چه په حديبيه كښې د لسو كالو پورې په عدم قتال باندې د ډيرو شرطونو سره معاهده شوې وه خو كفارو د څه مودې تيريدو نه پس لوظ مات كړو چه د هغې په وجه باندې ډير زر فتح مكه ته خبره اورسيده، د دې رجل نه مراد سيدنا عمر رضی الله عنه دې، كوم چه په حديبيه كښې كيدونكې صلح باندې راضی نه وو بلكه اصل رائې ئې د هغوی د مقابلې وه، رسول الله ﷺ د هغه جذبات خاموش كړل، چه په هغې باندې هغه خاموشه شو، خو د دې باوجود هغه ډير متاثر او خفه وو، هم په دې وجه كله چه رسول الله ﷺ هغه ته دا آيت كريمه واورولو ﴿ انا فتحنا لک فتحا مبينا ﴾ نو هغه د رسول الله ﷺ نه په طور د تعجب تپوس اوكړو چه ايا هم دا فتح ده؟

## د مجمع بن جاريه حديث د احنافو دليل دې

وړاندې په روايت كښې د ترجمة الباب والا مسئله ذكر شوې ده، هغه دا چه چونكه د صلح حديبيه نه فورا پس د فتح خيبر قصه پيښه شوې وه نو راوی د خيبر د غنيمتونو تقسيم لره په دې روايت كښې بيانوی، هغه دا چه رسول الله ﷺ د خيبر غنيمتونو لره په اهل

حديبيه باندې په اتلسو حصو کښې تقسيم کړې وو يا ئې اهل حديبيه په دې وجه اووې چه په فتح خيبر کښې شرکت کونکی صحابه کرام هم هغه وو کوم چه د دې نه مخکښې په صلح حديبيه کښې شريک وو، په اتلسو حصو کښې د تقسيم کولو تفصيل راوی داسې بيانوی چه د لښکر تعداد پنځلس سوه وو چه په هغې کښې درې سوه فارس اودولس سوه راجل وو اوپه هغه اتلسوسهام کښې هر يوسهم په سلوحصوباندې مشتمل وو په دې صورت کښې د راجل په حصه کښې يو سهم او د فارس په حصه کښې دوه حصې راځي او که د فارس درې حصې وې کما قال الجمهور نو بيا به دا غنيمت د د اتلسو حصوپه ځائې يويشت حصو باندې تقسيم کيدلې. (تاسوپرې حساب اولګوئ او اوګورئ)

## د خيبر د غنيمتونو په باره کښې دوه مختلف روايتونه

وړاندې به په بعض روايتونو کښې داسې هم راشي چه رسول الله ﷺ د خيبر غنيمتونه شپږ ديرش حصې کړل خو په دې کښې هيڅ د تعارض والا خبره نشته، ځکه چه چرته اتلس حصې راغلې دی هلته د راوی مراد دا دې چه د خيبر نيم غنيمتونه رسول الله ﷺ په اتلسو حصو باندې تقسيم کړل، او د اتلسو دوچند شپږ ديرش وی، لهذا حساب برابر شو، په اصل کښې هغه د خيبر د غنيمتونو نه نصف د غانمين ترمينځه تقسيم کړې وو او نيم ئې د خپل ضرورت دپاره او نوائب المسلمين دپاره پريخودلې وو.

چرته چه دا راځي چه رسول الله ﷺ په شپږ ديرشو حصو باندې تقسيم کړل چه د دې نه مراد په خلقو باندې تقسيم کول مراد نه دی بلکه د حساب په اعتبار سره دی او بيا په دې شپږ ديرشو کښې نصف يعنی اتلس په خلقو باندې تقسيم کړې شو لکه چه دلته په روايت کښې دی.

## د جمهورو د طرف نه د دليل حنفيه جواب

جمهور د دې جواب دا ورکوی چه دا خبره چه اصحاب حديبيه پنځلس سوه وو او په هغوی کښې درې سوه شهسواران وو، دا د تحقيق خلاف ده بلکه صحيح دا ده چه اصحاب حديبيه کل څوارلس سوه وو چه په هغوی کښې دولس سوه راجل او دوه سوه شهسواران وو او دوه سوه فارس قائم مقام د شپږ سوه راجل، دولس او شپږ اتلس وی، پس د ابوداود په بعض نسخو کښې دی چه حديث د ابو معاويه اصح دې د مجمع د حديث نه، د مجمع حديث وهم دې، فارس درې سوه نه وو بلکه دوه سوه وو، د حديث ابی معاويه نه مراد د تير باب حديث اول دې کوم چه د جمهورو موافق او د هغوی دليل دې، زه وايم چه د اصحاب حديبيه په تعداد کښې د رواياتو اختلاف دې، په بعض رواياتو کښې پنځلس سوه راغلې دې، په بعض کښې څوارلس سوه او په بعض کښې ديارلس سوه، وکل هذه الروايات فی صحيح البخاری، احنافو د مجمع بن جاريه د دې حديث په وجه باندې په دې درې واړو رواياتو کښې د پنځلس سوه روايت ته ترجيح ورکړې ده، او وجه د ترجيح ئې د مجمع بن جاريه هم هغه روايت منلې دې، جمهور فرمائي چه د مجمع بن جاريه روايت ضعيف دې، کما تقدم فی کلام المصنف، هم دغه شان بعض نورو محدثينو هم د مجمع په حديث باندې

کلام کړې دې، پس ابن القطان فرمائی چه په دې حدیث کښې یعقوب بن مجمع راوی مجهول دې، د هغه نه سوا د هغه د ځوئی نه روایت کول معلوم نه دی (گویا هغه د من لم یرو عنه الا واحد د قبیل نه دې او مجهول العین دې خو هغه د هغه د ځوئی په باره کښې اعتراف کړې دې چه هغه ثقه دې.

## د جمهور د نقد جواب

په دې باندې حضرت په بذل کښې لیکی چه د ابن القطان دا خبره صحیح نه ده چه د یعقوب نه د هغه د ځوئی نه علاوه بل څوک روایت نه کوی پس حافظ لیکی : روی عنه ابنه مجمع وابن اخیه ابراهیم بن اسماعیل بن مجمع، وعبدالعزیز عبید بن صهیب، وذکره ابن حبان فی الثقات، فارتفع الجهالة وثبت التوثیق. د دې نه پس حضرت په بذل کښې د دې سند په بل راوی یعقوب ځوئی مجمع بن یعقوب باره کښې د امام شافعی کلام نقل فرمائیلې دې پس په خلاصه کښې دی ﴿ قال الشافعی شیخ لا یعرف ﴾ په دې باندې حضرت فرمائی : قال الحافظ روی عنه یونس بن محمد المؤدب، ویحیی بن حسان، واسماعیل بن ابی اویس والقعنبی وقتیبة ومحمد بن عیسی ابن الطباع وغیرهم" د دې نه پس حضرت فرمائی چه د چا نه روایت کونکی دومره وی هغه مجهول څنګه شو، بیا دا چه ابن معین او نسائی نه د هغه په باره کښې نقل دی چه ﴿ لیس به باس ﴾، هم دغه شان ابوحاتم هم وئیلې دی ﴿ لا باس به ﴾، ابن سعد فرمائی ﴿ کان ثقة ﴾، او د دې نه مخکښې د ابن القطان په کلام کښې تیر شوې دی چه هغه د هغه د پلار یعقوب په باره کښې خو اوفرمائیل چه ﴿ لا یعرف ﴾ او خپله د مجمع په باره کښې فرمائی چه ﴿ ثقة ﴾، هم دغه شان ابن الترکمانی په الجوهر النقی کښې فرمائی چه د امام شافعی نه منقول دی چه د مجمع په باره کښې هغه فرمائی ﴿ شیخ لا یعرف ﴾، بیا هغه فرمائی : هذا الحدیث اخرجه الحاکم فی المستدرک وقال حدیث کبیر صحیح الاسناد، ومجمع بن یعقوب معروف، روی له ابوداود والنسائی. اهـ مختصرا هم دغه شان علامه ذهبی د مستدرک په تلخیص کښې د دې حدیث د تخریج نه پس فرمائی : حدیث صحیح. اهـ

# بَابٌ فِي النَّفْلِ

### باب: د زیاتی (غنیمت، انعام) ورکولو په بیان کښې

په غنیمت کښې چه د امام د پاره کوم انعام مقرر کړې شی نفل وئیلې شی.

### د ترجمة الباب شرح :

نفل خو په اصل کښې وئیلې شی حصه زائده او انعام ته او هم د دې نه تنفیل لفظ هم دې، خو دلته د نفل نه مراد غنیمت دې لکه چه د احادیث الباب نه معلومیږی، مصنف په دې باب کښې د غنائم بدر روایات ذکر کړې دی چه د هغې پوره پوره اختیار رسول الله ﷺ ته وو لکه چه مخکښې تیر شو، او د غنائم بدر په باره کښې آیت کریمه نازل شو ﴿ یسئلونک عن الانفال ﴾ چه کله په دې آیت کریمه کښې د غنائم بدر نه په نفل سره تعبیر اوکړې شو نو هم د دې په اتباع کښې مصنف د غنیمت نه په نفل سره تعبیر اوکړو.

[۲۷۳۷]( ) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، قَالَ: أَخْبَرَنَا خَالِدٌ، عَنْ دَاوُدَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَوْمَ بَدْرٍ مَنْ فَعَلَ كَذَا وَكَذَا فَلَهُ مِنَ النَّفَلِ كَذَا وَكَذَا، قَالَ: فَتَقَدَّمَ الْفِتْيَانُ وَلَزِمَ الْمَشْيَخَةُ الرَّايَاتِ فَلَمْ يَبْرَحُوهَا، فَلَمَّا فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ قَالَ الْمَشْيَخَةُ: كُنَّا رِدْءًا لَكُمْ لَوِ انْهَزَمْتُمْ لَفِئْتُمْ إِلَيْنَا، فَلَا تَذْهَبُوا بِالْمَغْنَمِ وَنَبْقَى، فَأَبَى الْفِتْيَانُ وَقَالُوا: جَعَلَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَنَا فَأَنْزَلَ اللَّهُ يَسْأَلُونَكَ عَنِ الْأَنْفَالِ قُلِ الْأَنْفَالُ لِلَّهِ وَالرَّسُولِ إِلَى قَوْلِهِ كَمَا أَخْرَجَكَ رَبُّكَ مِنْ بَيْتِكَ بِالْحَقِّ وَإِنَّ فَرِيقًا مِنَ الْمُؤْمِنِينَ لَكَارِهُونَ سورة الأنفال آية ٥ يَقُولُ فَكَانَ ذَلِكَ خَيْرًا لَهُمْ فَكَذَلِكَ أَيْضًا فَأَطِيعُونِي فَإِنِّي أَعْلَمُ بِعَاقِبَةِ هَذَا مِنْكُمْ.

دابن عباس هنه روایت دي فرمائي چه نبی ﷺ دغزوه بدر په ورځ فرمائیلی ووچه چا دا دا کارونه وکړل نو دهغه دپاره دا دا انعام دي ددې په اوریدوسره ځوانان مخکښي لاړل او بوډاګان دجندوسره پاتې شول اوددغه ځاي نه ونه خوزیدل هرکله چه الله تعالی مسلمانانوته فتح نصیب کړه نوبوډاګانو ووئیل مونږ خو ستاسو دپاره مددګاران اودپناه ځاي وو، که چرې تاسو شکست خوړلی وي نومونږته به راجوښت شوي وې داسې نشي کیدي چه دغنیمت مال تاسو واخلئ او مونږ همداسې پاتې شو نوځوانانوونه منله اووئي وئیل چه نبی ﷺ دا مونږ ته راکړې دي نوپه دې وخت کښې الله تعالی دامذکوره آیت نازل کړو، یعني تپوس کوي دوی ستانه اې محمد دانفال په باره کښې ته ورته اووایه چه انفال دالله تعالی اودهغه درسول په اختیارکښې دي تر ..لکارهون،، پورې.

## د حدیث مضمون او د هغې شرح

یعني رسول الله ﷺ په جنګ بدر کښې اعلان اوفرمائیلو چه څوک کوم کافر لره قتل کوی د هغه ټول سامان به قاتل ته ملاویږي (دا اعلان په بعض مغازی کښې شوې دې چرته چه مصلحت ګڼړلې شوې وو، په دې سره مقصود تشجیع وی او ترغیب، د دې دپاره چه هر سړې ښه په همت سره جنګ اوکړی) راوی وائی چه د رسول الله ﷺ د طرف نه د دې اعلان کیدو نه پس ځوانان طبقه خو وړاندې شو د قتال دپاره او بوډاګان او ضعیف قسم خلق د جهنډو په خوا کښې پاتې شو د هغوی د سنبهالولو دپاره، هغوی د هغې د خوا نه لرې نه شو، پس چه کله الله پاک مسلمانانو ته فتح ورکړه نو هغه بوډاګانو دا خبره اوکړه ځوانانو ته چه مونږ ستاسو اسره او مدد کونکی وو (یعني ستاسو شاته ولاړ وو) که تاسو ته شکست شوې وې نوتاسو به واپس زمونږ خواته راتلئ، لهذا ټول غنیمت خپله مه اخلئ، ځوانانو چه دا خبره واوریده نو د ورکولو نه ئې انکار اوکړو او وې وئیل چه دا خو د رسول الله ﷺ د طرف نه زمونږ دپاره دې، نو د دې اختلاف په موقع باندې دا آیت کریمه نازل شو ﴿يَسْأَلُونَكَ عَنِ الْأَنْفَالِ قُلِ الْأَنْفَالُ لِلَّهِ وَالرَّسُولِ﴾ الى قوله ﴿كَمَا أَخْرَجَكَ رَبُّكَ مِنْ بَيْتِكَ بِالْحَقِّ﴾ د ﴿كما اخرجك﴾ تفسیر خپله دلته په روایت کښې موجود دې چه د هغې تشریح دا ده چه بعض صحابه کرام په شروع کښې د بدر طرف ته د جنګ دپاره تلو ته تیار نه وو او دا ئې نه خوښوله، د جنګ د تیاریٔ نه کولو د وجې نه، بلکه دا ئې غوښتل چه د قریشو په قافلې پسې لاړ شی کومه چه د شام نه راروانه وه، کومې چه د ساحل لاره اختیاره کړه او بل طرف

( ): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٠٨١) (صحيح)

ته روانه شوه، خو روستو چه کله جنګ اوشو او مسلمانانو ته شانداره فتح اوشوه نو بیا هغوی ته احساس اوشو چه نه په جنګ کښې زمونږ خیر او خوبی وه کوم چه په شروع کښې هغوی ناخوښه ګڼړلو، نو په دې آیت کریمه ﴿ کما اخرجك ربك ﴾ کښې هم د دې بدر د واقعې سره د مال غنیمت تقسیم او عدم تقسیم لره تشبیه ورکولې شي چه اوګورئ چه څنګه رسول اللهﷺ د غنیمت په باره کښې فیصله کوی هم هغه تاسو اختیار کړئ او په خپل حق کښې ئې غوره اوګنړئ او په خپله رائې باندې اصرار مه کوئ، د انجام په اعتبار هم په دې کښې خیر دې لکه چه په بدر کښې چه کوم څیز تاسو ناخوښه ګنړلو او روستو ثابته شوه چه هغه څیز ناخوښه کیدل نه وو پکار بلکه هم په هغې کښې خیر وو. والحدیث اخرجه النسائی قاله المنذری.

[٢٧٣٨]([1]) حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، قَالَ: أَخْبَرَنَا دَاوُدُ بْنُ أَبِي هِنْدٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَوْمَ بَدْرٍ: "مَنْ قَتَلَ قَتِيلًا فَلَهُ كَذَا وَكَذَا، وَمَنْ أَسَرَ أَسِيرًا فَلَهُ كَذَا وَكَذَا"، ثُمَّ سَاقَ نَحْوَهُ وَحَدِيثُ خَالِدٍ أَتَمُّ.

د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام دغزوه بدر په ورځ فرمائیلی ووچه چا کوم کافر مړ کړو نودهغه دپاره دا دا انعام دې اوچاچه قیدي راوستو نودهغه دپاره دا دا انعام دې اوباقی حدیث ئې دتیرشوی روایت په شان بیان کړو .اودخالدحدیث زیات کامل دې.

د دې نه په روستو روایت کښې دی ﴿ فَقَسَّمَهَا رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- بِالسَّوَاءِ ﴾ یعنی رسول اللهﷺ د بدر غنیمتونه د ټولو مجاهدینو ترمینځه برابر تقسیم اوفرمائیل، یعنی د سلب نه علاوه، د سلب په باره کښې خو اعلان شوې وو چه هغه به صرف د قاتل دپاره وی، د هغه نه علاوه چه کوم باقی غنیمت وو هغه بیشکه برابر تقسیم کړې شو.

[٢٧٣٩]([2]) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ بَكَّارِ بْنِ بِلَالٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ مَوْهَبٍ الْهَمْدَانِيُّ قَالَ: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ زَكَرِيَّا بْنِ أَبِي زَائِدَةَ، قَالَ: أَخْبَرَنِي دَاوُدُ بِهَذَا الْحَدِيثِ بِإِسْنَادِهِ، قَالَ: فَقَسَّمَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالسَّوَاءِ، وَحَدِيثُ خَالِدٍ أَتَمُّ.

داود په خپل سندسره دا روایت بیان کړي فرمائی چه نبی علیه السلام یوبرابر تقسیم وکړو. اودخالد حدیث زیات کامل دې.

[٢٧٤٠]([3]) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، عَنْ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: جِئْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ بَدْرٍ بِسَيْفٍ فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ اللَّهَ قَدْ شَفَى صَدْرِي الْيَوْمَ مِنَ الْعَدُوِّ فَهَبْ لِي هَذَا السَّيْفَ، قَالَ: "إِنَّ هَذَا السَّيْفَ لَيْسَ لِي وَلَا لَكَ، فَذَهَبْتُ وَأَنَا أَقُولُ يُعْطَاهُ الْيَوْمَ مَنْ لَمْ يُبْلِ بَلَائِي فَبَيْنَا أَنَا إِذْ جَاءَنِي الرَّسُولُ فَقَالَ: أَجِبْ فَظَنَنْتُ أَنَّهُ نَزَلَ فِيَّ شَيْءٌ بِكَلَامِي فَجِئْتُ، فَقَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّكَ سَأَلْتَنِي هَذَا السَّيْفَ وَلَيْسَ هُوَ لِي وَلَا لَكَ وَإِنَّ اللَّهَ قَدْ جَعَلَهُ لِي فَهُوَ لَكَ، ثُمَّ قَرَأَ: يَسْأَلُونَكَ عَنِ الْأَنْفَالِ قُلِ الْأَنْفَالُ

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٦٠٨١) (صحيح)

[2]: انظر حديث رقم: (٢٧٣٧)، (تحفة الأشراف: ٦٠٨١، ١٥٦٥٨) (صحيح)

[3]: صحيح مسلم/الجهاد ١٢ (١٧٤٨)، سنن الترمذي/تفسير الأنفال ٩ (٣٠٧٩)، (تحفة الأشراف: ٣٩٣٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/١٧٨، ١٨١، ١٨٥) (حسن صحيح)

لِلّٰهِ وَالرَّسُولِ سورة الأنفال آية، إِلَى آخِرِ الآيَةِ، قَالَ أَبُودَاوُد: قِرَاءَةُ ابْنِ مَسْعُودٍ يَسْأَلُونَكَ النَّفَلَ.

مصعب بن سعد دخپل پلار نه روایت کوی فرمائی چه دبدر په ورځ دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم او یوه توره مې هم راوړه، ماووئیل اې دالله رسوله الله تعالی نن ورځ زماسینې ته ددشمن نه شفا ورکړه داتوره ماته راکړه، نبی ﷺ اوفرمائیل داتوره نه زما حق دې اونه ستاء ما چه دا واوریدل نو روان شوم او په روانه مې داوئیل چه دابه نن هغه چاته ورکولې شي څوك چه به زماپه شان تجربه کارنه وي ماچه وکتل نواچانك دنبی ﷺ دطرف نه په ما پسې یوکس راغې چه زه ې غوښتلم راته ئې وئیل چه راشه ما داګمان وکړو کیدشي چه زماپه باره کښې به څه وحې نازل شوې وي، هرکله چه زه دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم نو وئې فرمائیل تا زمانه توره غوښتلې وه داتوره الله تعالی اوس ماته راکړه اوزه ئې تاته درکوم او بیائې دا ایت اولوستو: «يسألونك عن الأنفال قل الأنفال لله والرسول» تراخره پورې، ابوداود وائی چه قراء: دراین مسعودنه کښې «يسألونك عن النفل»، راغلی دی.

**مضمون حدیث**

﴿ عَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ جِئْتُ إِلَى النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم– يَوْمَ بَدْرٍ بِسَيْفٍ ﴾ سیدنا سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه فرمائی چه په جنګ بدر کښې زه رسول الله ﷺ ته د یوې تورې سره حاضر شوم او عرض مې اوکړو چه یا رسول الله ﷺ یقینا الله پاک نن زما سینه یخه کړه په دشمن باندې یعنی هغوی سره په قتال کولو باندې لهذا دا توره ماته راکړئ (د دې دپاره چه بیا ئې په جهاد کښې استعمال کړم) هغه اوفرمائیل : دا توره نه زما ده او نه ستا ده (اصل کښې دې وخته پورې د مال غنیمت په باره کښې هیڅ قسم حکم نه وو نازل شوې او د بدر غنیمت د ټولو نه اول غنیمت دې، د غنیمت د تقسیم د آیت نزول د دې نه روستو شوې وو) نو هغه وائی چه زه د رسول الله ﷺ په جواب اوریدلو سره خالی لاس روان شوم او دا سوچ مې کولو چه ﴿ يُعْطَاهُ الْيَوْمَ مَنْ لَمْ يُبْلِ بَلاَئِى ﴾ چه کیدې شی دا توره به یو داسې سړی ته ورکړې شی چاته چه زما په شان مشقت او محنت نه وی برداشت کړې، زه لا روان اوم په دې سوچ کښې چه هم په دې وخت د رسول الله ﷺ قاصد ماته راورسیدو چه د رسول الله ﷺ خواته لاړ شه، هغه غوښتلې ئې، نو ما سوچ اوکړو چه زما د دې وسوسې او خیال د وجې نه چه (نا مناسبه وه) زما په باره کښې به څه نازل شوې وی، خیر زه حاضر شوم، په حاضریدو باندې رسول الله ﷺ ماته اوفرمائیل چه دا توره تا زما نه غوښتلې وه، هغه وخت خو نه ستا دپاره وه او نه زما دپاره، خو اوس الله پاک زما دپاره کړه لهذادا ته یوسه، او رسول الله ﷺ دا آیت کریمه تلاوت کړو ﴿يسئلونک عن الانفال ﴾ الاية... امام ابوداود فرمائی چه د ابن مسعود رضی الله عنه قراءت ﴿يسئلونک النفل ﴾ دې. والحديث اخرجه مسلم مطولا بنحوه، واخرجه الترمذی والنسائی، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي نَفْلِ السَّرِيَّةِ تَخْرُجُ مِنَ الْعَسْكَرِ

**په لښکر کښې بعضوته دانعام په طور څه اضافی مال ورکولو بیان**

دا خبره یو ځل مخکښې هم راغلې ده زمونږ په کلام کښې چه ډیر کرته داسې کیږي چه کوم

یو لوئې لښکر یوځائې ته د جهاد دپاره ځي نو په لاره کښې د هغوی نه یو مختصر جماعت د یو کلي د فتح کولو دپاره لیږلې شي، هغه جماعت د هغه کلي او علاقې د فتح کولو نه پس بیا په لښکر کښې شریک شي، نو هغه وخت قانون دا وو چه کوم غنیمت به دې سریه حاصلولو په هغه غنیمت کښې به څه حصه ثلث یا ربع اصحاب سریه ته ورکولې شو، او باقي غنیمت به د هغه لښکر طرف ته منتقل کیدلو، او بیا به په ټول لښکر باندې تقسیم کیدلو.

نو دلته دوه څیزونه شو، اول دا چه اصحاب سریه ته د نفل په طور سره ورکړې شي، او بله خبره دا چه باقي غنیمت په عسکر باندې واپس کړې شي، په دې ترجمه کښې مصنف امر اول ذکر کړې دې، او د امر ثاني ذکر د څو ابوابو نه روستو مستقل په ترجمه کښې راروان دې "باب فی السریة ترد علی اهل العسکر" اوګورئ دا هغه جزء ثاني دې، کتاب باندې داسې پوهیدلې شي او هغه داسې حل کولې شي، بغیر د محنت او مشقت نه د یو کتاب حل کول هم اسان نه دي، اوس حدیث الباب ته ګورئ.

[۲۷۴۱] ( )حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ نَجْدَةَ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ. ح وحَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْأَنْطَاكِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنَا مُبَشِّرٌ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَوْفٍ الطَّائِيُّ، أَنَّ الْحَكَمَ بْنَ نَافِعٍ حَدَّثَهُمُ الْمَعْنَى كُلُّهُمْ، عَنْ شُعَيْبِ بْنِ أَبِي حَمْزَةَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: بَعَثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَيْشٍ قِبَلَ نَجْدٍ وَانْبَعَثَتْ سَرِيَّةٌ مِنَ الْجَيْشِ، فَكَانَ سُهْمَانُ الْجَيْشِ اثْنَيْ عَشَرَ بَعِيرًا اثْنَيْ عَشَرَ بَعِيرًا، وَنَفَّلَ أَهْلَ السَّرِيَّةِ بَعِيرًا بَعِيرًا فَكَانَتْ سُهْمَانُهُمْ ثَلَاثَةَ عَشَرَ ثَلَاثَةَ عَشَرَ.

دابن عمر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام مونږه په یو لښکر کښې دنجد طرف ته او لیږلو اودخپل لښکرنه ئې څه حصه ددشمن دمقابل دپاره اولیږله اوبیا ئې دلښکر کسانوته دولس دولس اوښان ورکړل اودسرې والا(وړوکي لښکر ته ئې یویواوښ اضافي ورکړو نودهغوی په حصه کښې دیارلس. دیارلس اوښان شول.

## شرح حدیث

عبدالله بن عمر رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ مونږ په یو لوئې لښکر د نجد طرف ته، او د هغه لوئې لښکر نه ئې مختصر جماعت ویستلو سره بل طرف ته اولیږلو، په لښکر والو کښې د هر یو په حصه کښې دولس اوښان راغلل، او اهل سریه ته یو یو اوښ د نفل په طور ورکړې شو، په دې وجه په اهل سریه کښې دهر یو په حصه کښې دیارلس اوښان راغلل.

**تنبیه** : دا حدیث په صحیح مسلم کښې هم دې د دې په شرح کښې امام نووی رحمه الله فرمائی چه بعض شارحینو دا خیال کړې دې چه د ټولو غانمینو په حصه کښې مجموعي طور دولس اوښان راغلل او دا غلطه ده ځکه چه د ابوداود په بعض روایاتو کښې تصریح ده د دې خبرې چه د جیش دهر هر سړي په حصه کښې دولس دولس اوشان راغلل او اهل سریه ته د دولسو نه علاوه مزید یو یو اوښ په طور د نفل هم ورکړې شو. اهـ كذا فی البذل، حدیث د ترجمة الباب مطابق دې کما هو ظاهر، خو دلته بعض څیزونه بیانول پکار دي.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧٦٧٩)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/فرض الخمس ١٥ (٣١٣٤)، والمغازي ٥٧ (٤٣٣٨)، صحيح مسلم/الجهاد ١٢ (١٧٤٨)، موطا امام مالك/الجهاد ٦ (١٥)، سنن الدارمي/السير ٤١ (٢٥٢٤) (صحيح)

## د سريه ابو قتاده رضي الله عنه ذکر

اول دا چه د دې سريه نوم سريه ابو قتاده رضي الله عنه دې، او دا پنځلس يا شپاړس کسان وو، او دا واقعه د شعبان ۸ هجري د فتح مکه نه مخکښې ده، د سيرت په کتابونو کښې ليکلې شوې دی چه دا سريه قبيله غطفان سره د مقابلې دپاره ليږلې شوې وه، دا خلق په خضره کښې اباد وو، خضره علاقه نجد کښې ده، رسول الله صلى الله عليه وسلم ابو قتاده رضي الله عنه د شپاړسو ملګرو سره اوليږلو، په مقابله کښې هغوی ته فتح اوشوه، غنيمت کښې ورته دوه سوه اوښان او دوه زره بيزې حاصلې شوې.

## يو قوی اشکال او د هغې جواب

دويم دا چه په دې هم ځان پوهه کړئ چه د سيرت په کتابونو کښې دا هم ليکلې شوې دی چه دا لوئې لښکر په څلور زره کسانو باندې مشتمل وو، په دې باندې دا اشکال کړې شوې دې چه هر کله په حاصليدونکی غنيمت کښې اوښان صرف دوه سوه وو نو د پوره لښکر په حصه کښې چه څلور زره کسان وو، دولس دولس اوښان څنګه راغلل، اشکال ظاهر دې، بيا د دې اشکال دوه جوابونه ورکړې شوې دی، يو دا چه دا مقدار د غنيمت خو هغه دې کوم چه اصحاب سريه ته حاصل شوې وو د هغوی په فتح کښې او لوئې لښکر ته که کوم غنيمت حاصل شوې وی هغه د دې نه علاوه دې لهذا دواړه غنيمتونه يوځائې کولو سره د هر يو په حصه کښې دولس دولس اوښان راغلل، او بل جواب د دې اشکال دا دې چه کوم مصنف هم وړاندې ثابت کړې دې چه په دې حديث کښې د جيش ذکر وهم دې، لهذا د اشکال بنياد ختم شو، اوس وړاندې په کتاب کښې خپله راځی چه دا وهم کوم راوی ته پيدا شوې دې او څوک د دې نه محفوظ پاتې شوې دی.

[۲۷۴۲][1] حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ عُتْبَةَ الدِّمَشْقِيُّ قَالَ: قَالَ الْوَلِيدُ يَعْنِي ابْنَ مُسْلِمٍ: حَدَّثْتُ ابْنَ الْمُبَارَكِ بِهَذَا الْحَدِيثِ قُلْتُ: وَكَذَا حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فَرْوَةَ، عَنْ نَافِعٍ قَالَ: لَا تَعْدِلُ مَنْ سَمَّيْتَ بِمَالِكٍ هَكَذَا أَوْ نَحْوَهُ يَعْنِي مَالِكَ بْنَ أَنَسٍ.

ابن مبارك وئيلی دی کوم روايت چه شعيب بيان کړې دې او کوم چه ابن ابی فروه بيان کړې دې دواړه د مالك بن انس د روايت درجې ته نه شی رسيدلې. دغسې يا ددې په شان خبره هغوی اوکړه، ددې نه هغوی امام مالک بن انس مراد اخستلو.

## شرح الحديث:

ښه په غور سره واورئ! د اولنی حديث په سند کښې راغلې وو ﴿ حدثنا بن مسلم ﴾ د هغه نوم وليد دې او د هغې نه روستو دوه تحويلونه وو او بيا دا وو ﴿ کلهم عن شعيب بن ابی حمزة ﴾ د ﴿ کلهم ﴾ مصداق وليد بن مسلم، مبشر او حکم بن نافع دی، دا درې واړه روايت کوی د شعيب بن ابی حمزة نه او شعيب د نافع نه.

اوس په دې دويم سند کښې وليد بن مسلم وائی چه کوم حديث به ما د شعيب نه روايت کولو هغه ما ابن المبارک ته هم بيان کړو، او هغه ته ما دا اووې چه څنګه دا حديث

---

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۷۶۷۹) (صحيح)

ماته شعیب بیان کړو د نافع نه، هم دغه شان دا حدیث ماته ابن ابی فروه هم بیان کړو. ﴿عن نافع﴾ او د "هم دغه شان" مطلب دې د "ذکر جیش" سره، یعنی څنګه چه د شعیب بن ابی حمزه په روایت کښې ذکر جیش دې هم دغه شان د ابن ابی فروه په روایت کښې هم ذکر جیش دې نو په دې باندې ابن المبارک اوفرمائیل چه د کومو دوه استاذانو ته نوم اخلې یعنی شعیب او ابن ابی فروه چه د هغوی په روایت کښې ذکر جیش دې هغه برابر نه شي کیدې د مالک بن انس، یعنی مالک بن انس د دې دواړو نه ډیر اوچت دې او د هغوی دواړو په روایت کښې د جیش ذکر نشته، لهذا د ابن مبارک د کلام خلاصه دا شوه چه په دې حدیث کښې ذکر "جیش" وهم دې.

اوس چه د دې نه پس مصنف د دې روایت څومره هم طرق ذکر کړې دی چه په هغې کښې یو طریق د مالک هم دې په دې ټولو کښې ذکر "جیش" نشته، پس د محمد بن اسحاق عن نافع په روایت کښې ذکر جیش نشته او د هغې نه روستو روایت راروان دې د امام مالک او بیا د حاء تحویل نه پس د لیث چه په هغې کښې هم ذکر جیش نشتهو او بیا د هغې نه روستو روایت راروان دې د عبیدالله عن نافع په هغې کښې هم ذکر جیش نشته، لهذا تحقیقی جواب د دې اشکال کوم چه په شروع کښې ذکر کړې شوې دې هم دا دې چه په دې روایت کښې ذکر جیش نشته.

[۲۷۴۳]([1]) حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدَةُ يَعْنِي ابْنَ سُلَيْمَانَ الْكِلَابِيَّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَرِيَّةً إِلَى نَجْدٍ، فَخَرَجْتُ مَعَهَا فَأَصَبْنَا نَعَمًا كَثِيرًا فَنَفَّلَنَا أَمِيرُنَا بَعِيرًا بَعِيرًا لِكُلِّ إِنْسَانٍ، ثُمَّ قَدِمْنَا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَسَمَ بَيْنَنَا غَنِيمَتَنَا، فَأَصَابَ كُلَّ رَجُلٍ مِنَّا اثْنَيْ عَشَرَ بَعِيرًا بَعْدَ الْخُمُسِ وَمَا حَاسَبَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالَّذِي أَعْطَانَا صَاحِبُنَا وَلَا عَابَ عَلَيْهِ بَعْدَ مَا صَنَعَ، فَكَانَ لِكُلِّ رَجُلٍ مِنَّا ثَلَاثَةَ عَشَرَ بَعِيرًا بِنَفْلِهِ.

دابن عمر رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام دلښکر یو دسته دنجد طرف ته اولیږله اوزه هم په دغه دسته کښې شامل ووم مونږ په مال غنیمت کښې ډیر مال حاصل کړو او زمونږ د دستې مشر په مونږ کښې هریوکس ته یو یو زیاتی اوښ په انعام کښې راکړو ددې نه پس چه کله مونږ نبی علیه السلام ته راغلو نوهغه مال غنیمت په مونږ تقسیم کړو په مونږ کښې هریوکس ته دولس دولس اوښان اورسیدل د خمس نه علاوه او زمونږ مشر چه مونږ ته یو یو اوښ راکړې وو نبی علیه السلام هغه په حساب کښې شامل نکړو اونه ئې زمونږ د مشر داعمل بد اوګڼړلو نو په دې شان سره په مونږ کښې دهریوکس په شمول دانعام دیارلس دیارلس اوښان اورسیدل...

[۲۷۴۴]([2]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ. ح وحَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، وَيَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ مَوْهَبٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا اللَّيْثُ الْمَعْنَى، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ

---

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۴۱۵) (صحيح)

[2]): صحيح البخاري/ الخمس ۱۵ (۳۱۳۴)، صحيح مسلم/ الجهاد ۱۲ (۱۷۴۹)، (تحفة الأشراف: ۸۲۹۳، ۸۳۵۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۶۲، ۱۱۲، ۱۵۶)، موطا امام مالك/ الجهاد ۶ (۱۵)، دي السير ۴ (۲۵۲۴) (صحيح)

سَرِيَّةٍ فِيهَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ قِبَلَ نَجْدٍ، فَغَنِمُوا إِبِلًا كَثِيرَةً فَكَانَتْ سُهْمَانُهُمُ اثْنَيْ عَشَرَ بَعِيرًا وَنُفِّلُوا بَعِيرًا بَعِيرًا، زَادَ ابْنُ مَوْهَبٍ: فَلَمْ يُغَيِّرْهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دعبدالله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه نبی علیه السلام دفوج یوه دسته دنجد طرف ته اولیږله اوپه هغوی کښې زه هم وم اوډیر اوښان مو په غنیمت کښې حاصل کړل او په مجاهدینو کښې دهریوکس په حصه کښې دولس دولس اوښان اورسیدل او یو یو اوښ ئې ورته په انعام کښې ورکړو دابن مهب په روایت کښې دا اضافه ده چه دا تقسیم نبی علیه السلام بدل نکړو.

[۲۷۴۵] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، قَالَ: حَدَّثَنِي نَافِعٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: بَعَثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَرِيَّةٍ فَبَلَغَتْ سُهْمَانُنَا اثْنَيْ عَشَرَ بَعِيرًا، وَنَفَّلَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعِيرًا بَعِيرًا، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ بُرْدُ بْنُ سِنَانٍ، عَنْ نَافِعٍ مِثْلَ حَدِيثِ عُبَيْدِ اللَّهِ، وَرَوَاهُ أَيُّوبُ، عَنْ نَافِعٍ مِثْلَهُ إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: وَنُفِّلْنَا بَعِيرًا بَعِيرًا، لَمْ يَذْكُرِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دعبدالله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه نبی علیه السلام مونږ دفوج په یوه دسته کښې دجهاد دپاره اولیږلو او په مجاهدینو کښې دهریوکس په حصه کښې دولس دولس اوښان راغلل اونبی علیه السلام مونږ ته یو یو اوښ په انعام کښې راکړو، ابوداود وائی داحدیث برد بن سنان دنافع نه دعبیدالله په شان نقل کړې دې او ایوب هم دنافع نه همداسې نقل کړې دې لیکن په روایت کښې داسې دي چه مونږ ته یویو اوښ مزید ملاو شو او په دې روایت کښې دنبی علیه السلام ذکرنشته.

[۲۷۴۶](¹) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ شُعَيْبِ بْنِ اللَّيْثِ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ جَدِّي. ح وحَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ أَبِي يَعْقُوبَ، قَالَ: حَدَّثَنِي حُجَيْنٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ عُقَيْلٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ كَانَ يُنَفِّلُ بَعْضَ مَنْ يَبْعَثُ مِنَ السَّرَايَا لِأَنْفُسِهِمْ خَاصَّةً النَّفْلَ سِوَى قَسْمِ عَامَّةِ الْجَيْشِ، وَالْخُمُسُ فِي ذَلِكَ وَاجِبٌ كُلُّهُ.

دعبدالله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه نبی علیه السلام به دفوج دستوته زیاته حصه ورکوله اودابه صرف هغوی ته ورکولې شوه نه چه ټول لښکر ته خو البته پنځمه حصه به ترې ویستل شوه.

[۲۷۴۷](²) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنَا حُيَيٌّ، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْحُبُلِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ يَوْمَ بَدْرٍ فِي ثَلَاثِ مِائَةٍ وَخَمْسَةَ عَشَرَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اللَّهُمَّ إِنَّهُمْ حُفَاةٌ فَاحْمِلْهُمْ، اللَّهُمَّ إِنَّهُمْ عُرَاةٌ فَاكْسُهُمْ، اللَّهُمَّ إِنَّهُمْ جِيَاعٌ فَأَشْبِعْهُمْ"، فَفَتَحَ اللَّهُ لَهُ يَوْمَ بَدْرٍ، فَانْقَلَبُوا حِينَ انْقَلَبُوا، وَمَا مِنْهُمْ رَجُلٌ إِلَّا وَقَدْ رَجَعَ بِجَمَلٍ أَوْ جَمَلَيْنِ وَاكْتَسَوْا وَشَبِعُوا.

دعبدالله بن عمر نه روایت دي فرمائی چه نبی علیه السلام دغزوه بدر په ورځ باندې ددری سوه پنځلس کسانوسره راوونو اودادعائې اوغوښتله: «اللَّهُمَّ إنهم حفاة فاحملهم اللَّهُمَّ إنهم عراة فاكسهم اللَّهُمَّ إنهم جياع فأشبعهم» اې الله دا خلق پیاده دي دوی ته سورلی ورکړی داخلق

¹): صحيح البخاري/فرض الخمس ۱۵ (۳۱۳۵)، صحيح مسلم/الجهاد ۱۲ (۱۷۵۰)، (تحفة الأشراف: ۶۸۸۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۴۰/۲) (صحيح)

²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۸۵۹) (حسن)

برینډ دي دوی ته لباس ورکړی اې الله داخلق وږي دي دوی ماړه کړي، بیاالله تعالی مسلمانانوته دغزوه بدریه وو باندې کامیابي نصیب کړه اودرې واپس راغلل اوپه دوی کښې هیڅ څوك داسې نه وو چه یو یا دوه اوښان ئې نه وی راوستل او ددوی سره کپړې هم وې اودوی ماړه شوي هم وو.

## د اصحاب بدر تعداد

﴿ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– خَرَجَ يَوْمَ بَدْرٍ فِي ثَلَاثِمِائَةٍ وَخَمْسَةَ عَشَرَ ﴾

د حدیث مضمون خو واضح دې چه رسول اللهﷺ د جنګ بدر دپاره صرف د درې سوه او پنځلس کسانو سره وتلې وو [1] او هغه وخت ئې د الله پاک نه دا دعاګانې اوکړې چه اې الله! دا ټول خلق کوم چه ما سره روان دی خپې ابله دی یعنی پیاده دی بغیر د سورلۍ نه دی، پس ته هغوی ته سورلی ورکړه، او..... اې الله! دا ټول برینډ دی یعنی په پوره بدن ئې کپړې نشته نو ته ورته جامې ورکړه، اې الله! دا اوږې دی نو ته دوی ماړه کړه (د نبی د دعا قبلیدل خو یو یقینی امر دې) پس وړاندې راوی وائی چه الله پاک د خپل رسول دپاره په دې جنګ کښې فتح ورکړه، پس کله چه دوی واپس کیدل نو داسې واپس کیدل چه چا سره یو اوښ وو د سورلۍ او چا سره دوه اوښان وو ،او هم دغه شان لباس او خوراک وغیره هر څه، په دې روایت کښې د بدریانو صحابه کرامو تعداد خو موجود دې چه د هغوی په تعداد کښې اختلاف دې کوم چه په حاشیه کښې لیکلې شوې دې او د مشرکانو تعداد زر وو او وئیلې شوې دی چه اووه سوه او پنځوس وو چه د هغوی سره اووه سوه اوښان وو او سل اسونه. (بذل)

## د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت

دلته سوال دا دې چه د دې حدیث د ترجمة الباب سره څه مطابقت دې او د کوم یو لښکر نه دا سریه راویستلې شوې وه، جواب دا دې چه د دې توجیه دا کیدې شی چه بدر خو مدینې ته نزدې دې زیات لرې نه دې چرته چه دا جنګ شوې وو نو په دې ځان پوهه کړئ چه مدینه منوره چرته چه ډیر صحابه کرام موجود وو هغه معسکر شو او دا درې سوه پنځلس بدریان صحابه په منزله د سریه شو ، خو په دې مطابقت کښې یو کمې پاتې شو چه د ترجمة الباب نه خو دا فهمیږی چه اصحاب سریه چه کوم غنیمتونه حاصل کړی د هغې بعض حصه د نفل په طور هغوی ته ورکړې شی او باقی دې په عسکر باندې تقسیم کړې شی، دلته دا دویم څیز بیا نه موندلې شو ، د دې جواب دا کیدې شی چه د بدر غنیمتونه د عام غنیمتونو د حکم نه خارج دی لکه چه د دې نه مخکښې هم تیر شوې دی.

---

[1] د اهل بدر په تعداد کښې روایات مختلف دی، د مسلم په یو روایت کښې درې سوه او نولس دی، او په مسند بزار کښې درې سوه او اولس او مسند احمد او بزار او طبرانی په یو حدیث کښې درې سوه او دیارلس دی، حافظ فرمائی وهو المشهور عند اهل المغازي (بذل)

# باب فِيمَنْ قَالَ الْخُمُسُ قَبْلَ النَّفْلِ

## دهغه چا د قول بیان چه خمس به د تقسیم نه مخکښې ویستلي شي

## په محل تنفیل کښې د ائمه کرامو مذاهب

په دې ترجمه کښې چه کومه مسئله ذکر شوې ده هغه محل تنفیل دې، یعنی امام یو غازی ته په طور د نفل د حصې نه زیاتی څه ورکړی هغه به د کوم یو مال نه ورکولې شي؟ صورت حال دا دې چه اولا به ټول مال غنیمت جمع کولې شي او د هغې نه یو خمس جدا کولې شي او اربعه اخماس جدا کولې شي، دا چه کوم اربعة اخماس دي دا په غانمین کښې تقسیمیږی، او چه کوم خمس غنیمت دې د هغې په باره کښې د قرآن کریم هدایت دا دې چه هغه پنځه ځایه تقسیم کړې شي: ﴿ وَلِلرَّسُولِ وَلِذِي الْقُرْبَى وَالْيَتَامَى وَالْمَسَاكِينِ وَابْنِ السَّبِيلِ ﴾ چه هر کله خمس پنځه ځایه تقسیم کړې شي نو د هر یو په حصه کښې به د دې یوې حصې نه..... د دې پنځو نه خمس الخمس راځی، اوس پوهه شئ چه دا نفل به د دې مالونو نه په کوم مال کښې ورکولې شي. د امام احمد مذهب دا دې چه اربعة اخماس دي او د امام مالک په نزد په خمس سره، او د امام شافعی په نزد په خمس الخمس سره، یعنی د امام چه کومه خپله حصه ده د هغې نه، او د احنافو مذهب دا دې چه که د امام د طرف نه تنفیل قبل الاحراز وی نو بیا خو په اربعة اخماس سره، او که بعد الاحراز دي نو بیا د خمس نه. (من الاوجز)

د دې ټول تفصیل پیژندلو نه پس اوس د ترجمة الباب په الفاظو کښې غور اوکړئ چه په دې ترجمه کښې د چا مسلک ذکر شوې دې په ظاهره د ترجمې نه دا هم فهمیږی چه په مال غنیمت کښې د خمس د راویستلو نه پس به نفل ورکولې شی، خمس دې اول راویستلې شی، لهذا په ظاهره کښې مطلب دا شو چه د اربعة اخماس نه به ورکولې شی کوم چه د امام احمد مذهب دې او مصنف هم حنبلی المسلک دې، علی ما هو المشهور، د دې نه روستو حدیث الباب اوګورئ:

[۲۷۴۸](¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، قَالَ: أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ يَزِيدَ بْنِ جَابِرٍ الشَّامِيِّ، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنْ زِيَادِ بْنِ جَارِيَةَ التَّمِيمِيِّ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ مَسْلَمَةَ الْفِهْرِيِّ، أَنَّهُ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يُنَفِّلُ الثُّلُثَ، بَعْدَ الْخُمُسِ".

دحبیب بن مسلمة الفهري نه روایت دي فرمائی چه نبی ﷺ به دخمس اخستلونه پس دغنیمت دمال دریمه حصه مجاهدینو ته په انعام کښې ورکوله

[۲۷۴۹](²) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ الْجُشَمِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ صَالِحٍ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنِ ابْنِ جَارِيَةَ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ مَسْلَمَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَانَ يُنَفِّلُ الرُّبُعَ، بَعْدَ الْخُمُسِ، وَالثُّلُثَ بَعْدَ الْخُمُسِ إِذَا قَفَلَ".

دحبیب بن مسلمة الفهري نه روایت دي فرمائی چه نبی ﷺ به دخمس اخستلونه پس

¹): سنن ابن ماجه/الجهاد ۳۵ (۲۸۵۱)، (تحفة الأشراف: ۳۲۹۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۵۹/۴، ۱۶۰)، سنن الدارمي/السير ۴۳ (۲۵۲۶) (صحیح)

²): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۳۲۹۳) (صحیح)

دغنيمت دمال څلورمه حصه او دريمه حصه، کله چه به واپس کيدل مجاهدينوته په انعام کښې ورکوله.

## شرح حديث

د دې مضمون دا دې چه د غزوه په شروع کښې اصحاب سريه ته رسول اللهﷺ د نفل په طور د مال غنيمت ربع ورکولو د خمس د راويستلو نه پس، او د غزوه ه په واپسئ باندې به ئې د غنيمت ثلث ورکولو هم دغه شان يعنى بعد الخمس خلاصه دا شوه چه د تلو په وخت به ئې ربع ورکولو او په واپسئ کښې ثلث، د دې وضاحت دا دې چه په جيش کښې به کومه سريه جوړولو سره په لاره باندې ليږله نو دا د سريه ليږل که به د تلو په وخت وى او هغه سريه به مال غنيمت حاصل کړو نو بيا خو به په هغه غنيمت کښې هغه سريه ته د هغې ربع ورکولې شو، او که د غزوه نه په واپسئ باندې دا سريه ليږلې شوې نو په دې صورت کښې به هغه ته د غنيمت نه ثلث ورکولې شو، د نفل مقدار کښې د دې کمى زياتى مقصد دا دې چه د تلو په په وخت خو به ټول لښکر تازه وى په دې کښې مشقت کم دې ځکه چه په دې صورت کښې ربع ورکولې شى، او په واپسئ کښې چونکه ټول ستړى شوى وو نو په دې کښې محنت مشقت زيات وى چه هر سړې کور ته د رسيدو په فکر کښې وى په دې وجه په دې صورت کښې د ربع په ځائې ثلث ورکولې شى. والحديث رواه ابن ماجة، قاله المنذري.

[۲۷۵۰] (1) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَحْمَدَ بْنِ بَشِيرِ بْنِ ذَكْوَانَ، وَمَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ الدِّمَشْقِيَّانِ المعنى، قَالَا: حَدَّثَنَا مَرْوَانُ بْنُ مُحَمَّدٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَمْزَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا وَهْبٍ، يَقُولُ: سَمِعْتُ مَكْحُولًا، يَقُولُ: كُنْتُ عَبْدًا بِمِصْرَ لِامْرَأَةٍ مِنْ بَنِي هُذَيْلٍ، فَأَعْتَقَتْنِي فَمَا خَرَجْتُ مِنْ مِصْرَ وَبِهَا عِلْمٌ إِلَّا حَوَيْتُ عَلَيْهِ فِيمَا أُرَى، ثُمَّ أَتَيْتُ الْحِجَازَ فَمَا خَرَجْتُ مِنْهَا وَبِهَا عِلْمٌ إِلَّا حَوَيْتُ عَلَيْهِ فِيمَا أُرَى، ثُمَّ أَتَيْتُ الْعِرَاقَ فَمَا خَرَجْتُ مِنْهَا وَبِهَا عِلْمٌ إِلَّا حَوَيْتُ عَلَيْهِ فِيمَا أُرَى، ثُمَّ أَتَيْتُ الشَّامَ فَغَرْبَلْتُهَا كُلَّ ذَلِكَ أَسْأَلُ عَنِ النَّفَلِ، فَلَمْ أَجِدْ أَحَدًا يُخْبِرُنِي فِيهِ بِشَيْءٍ حَتَّى أَتَيْتُ شَيْخًا يُقَالُ لَهُ زِيَادُ بْنُ جَارِيَةَ التَّمِيمِيُّ، فَقُلْتُ لَهُ: هَلْ سَمِعْتَ فِي النَّفَلِ شَيْئًا؟ قَالَ: نَعَمْ، سَمِعْتُ حَبِيبَ بْنَ مَسْلَمَةَ الْفِهْرِيَّ يَقُولُ: شَهِدْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَفَّلَ الرُّبُعَ فِي الْبَدْأَةِ، وَالثُّلُثَ فِي الرَّجْعَةِ".

بووهب وئيلى دى چه دمکحول نه مې اوريدلى دى چه هغه وئيل زه په مصر کښې دبنى هذيل قبيلې د يوې ښځې غلام وم نوهغې زه ازاد کړم اوزه ترهغې د مصرنه ونه وتلم ترڅوچه مې دهغه ځائې علمونه نه ووحاصل کړي اوبيازه عراق ته راغلم اودعراق نه ترهغې پورې نه تلم ترڅوچه زمادعلم مطابق هلته څومره علم وو هغه مانه وو حاصل کړي بيازه شام ته راغلم اوټول شام مې اولټولو اودهرکس نه به مې دنفل متعلق تپوس کولو، داسې مې هيڅ څوک پيدانکړل چه دنفل متعلق راته يوحديث بيان کړي بهرحال يوکس مې پيداکړوچه نوم ئې زياد بن جاريه تميمي وومااورته ووئيل اياتادنفل په باره کښې څه اوريدلى دى؟هغه ووئيل مادحبيب بن مسلمه الفهري نه اوريدلى دى زه دنبى عليه السلام په خدمت کښې حاضر شوم دغنيمت دمال څلورمه حصه ئې دجهاد په ابتداء کښې او اودريمه حصه ئې په رخصتيد وکښې مجاهدينو ته ور کړه.

(1): انظر حديث رقم: (۲۷۴۸)، (تحفة الأشراف: ۳۲۹۳) (صحيح)

## د مکحول شامي د تحصيل علم عجيب حال

مکحول شامي کوم چه ډير مشهور فقيه او محدث دې، په سندونو کښې هم په کثرت سره د هغوی نوم راځي، هغه خپل څه حال بيانولو چه په شروع کښ، زه د قبيله بنو هذيل د يوې زنانه په مصر کښې غلام اوم هغې زه ازاد کړم (د الله پاک په مهربانۍ او کرم سره او کيدې شي چه د تحصيل علم په انتظار کښې وو لکه چه وړاندې فرمائي، چه د هغې نه معلوميږي چه دې د ازاديدو سره په تحصيل علم کښې اخته شو) فرمائي چه زه د مصر نه نه يم وتلې مګر په داسې حال کښې چه په هغې کښې څه علم وو د علماء کرامو سره مګر دا چه زه په هغې باندې حاوی شوم، يعنی د هغه ځائې د ټولو علماء کرامو نه مې علم حاصل کړو، د خپلو معلوماتو په اعتبار سره، بيا حجاز ته داخل شوم او هم دغه شان مې هلته هم اوکړل په خپل خيال او په خپل علم کښ، بيا عراق ته راغلم او هلته مې هم داسې اوکړل، بيا د هغې نه روستو ملک شام ته راغلم (هلته خو ما په خپل تحصيل کښې هيڅ کسر پرينښودولو) پس په دې کښې ما چاڼ اوکړو ﴿ غربلتها ﴾ د غربال نه اخستلې شوې دې يعنی چاڼ، د دې نه روستو وائي ﴿ کل ذلک اسال عن النفل ﴾ د هر يو عالم نه به مې دا سوال کولو (که وړوکې وو که لوئې وو) د نفل په باره کښ، په ظاهره کښې به ئې د نفل په باره کښې دا تپوس کولو چه دا چه په بعض رواياتو کښې په نفل کښې ثلث ورکول راځي او په بعض کښې ربع ورکول راځي د دې اختلاف څه تشريح ده؟ يا کيدې شي چه د مطلق نفل په باره کښې سوال دا کوی چه په بعض رواياتو په نفل کښې ثلث ورکول راځي او په بعض کښې ربع ورکول راځي ددې اختلاف څه تشريح ده، يا کيدې شي چه د مطلق نفل په باره کښې سوال کول مراد وی چه رسول الله ﷺ به سريه ته په نفل کښې څومره مقدار ورکولو. والله تعالی اعلم بمراده

وړاندې هغه فرمائي چه يو سړی هم زما د سوال پوره جواب رانکړو تردې چه زه د يو مشر سړی سره ملاؤ شوم چه د هغه نوم زياد بن جاريه نو ما د هغه نه هم دا تپوس اوکړو چه تا د نفل په باره کښې څه حديث اوريدلې دې؟ نو هغه اوفرمائيل: ﴿ نَعَمْ سَمِعْتُ حَبِيبَ بْنَ مَسْلَمَةَ الْفِهْرِى يَقُولُ شَهِدْتُ النَّبِى -صلى الله عليه وسلم- نَفَّلَ الرُّبُعَ فِى الْبَدْأَةِ وَالثُّلُثَ فِى الرَّجْعَةِ ﴾ دلته راتلو سره د امام مکحول رحمه الله مراد پوره شو چه هغه شيخ د نفل په باره کښې د رسول الله ﷺ د عمل تفصيل بيان کړو، تفصيل هم هغه دې کوم چه مونږ د باب په شروع کښې بيان کړې دې. والحديث اخرجه ابن ماجة بمعناه، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي السَّرِيَّةِ تَرُدُّ عَلَى أَهْلِ الْعَسْكَرِ

باب: دهغه فوجي دستې (ډلې) بيان چه هغه واپس راشي او لښکر کښې ملاؤ شي

[۲۷۵۱] (۱) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ ابْنِ إِسْحَاقَ هُوَ مُحَمَّدٌ بِبَعْضِ هَذَا. ح وحَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، حَدَّثَنِي هُشَيْمٌ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ جَمِيعًا، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ،

(۱): تفرد به أبو داود، وأعاد بعض المؤلف في الديات (۴۵۳۱)، (تحفة الأشراف: ۸۷۸۶، ۸۸۱۵)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الديات ۳۱ (۲۶۸۵) (حسن صحيح)

عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْمُسْلِمُونَ تَتَكَافَأُ دِمَاؤُهُمْ، يَسْعَى بِذِمَّتِهِمْ أَدْنَاهُمْ وَيُجِيرُ عَلَيْهِمْ أَقْصَاهُمْ، وَهُمْ يَدٌ عَلَى مَنْ سِوَاهُمْ، يَرُدُّ مُشِدُّهُمْ عَلَى مُضْعِفِهِمْ وَمُتَسَرِّعُهُمْ عَلَى قَاعِدِهِمْ، لَا يُقْتَلُ مُؤْمِنٌ بِكَافِرٍ وَلَا ذُو عَهْدٍ فِي عَهْدِهِ"، وَلَمْ يَذْكُرِ ابْنُ إِسْحَاقَ الْقَوَدَ وَالتَّكَافُؤَ.

عمرو بن شعيب دخپل پلارنه اوهغه دده دنيكه نه روايت كوي فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دی دمسلمانانو ويني دسزا متعلق يوبرابردي معمولي مسلمان هم امن وركولي شي اودهغه دپاره دامن معاهده پوره كول لازمي دي همدارنگي لري اوسيدونكی مسلمان هم اَمن وركولي شی اگركه دده نه قريب موجود وي او ددې دمخالفينو په مقابل كښې مسلمانان ټول يوشې دي اودچاسورلی چه قوی اوتيزرفتاري وي هغه دي يوځائې اوسي دهغو سره دچاچه سورلی كمزوری وي اوكله چه دلښكر يوه دسته دمال گټلودپاره اوويستلی شي نوباقی خلق دي هم په هغې كښې شريک كړي، اونه به شی وژلې مسلمان دكافر په بدله كښې اونه زي دچانه چه لوظ اخستلې شوې وي يعنی هغه كافر دكوم نه چه جزئيه نه اخستل كيږي ياهغه كافر كوم ته چه امان وركړې شوې وي په دارالاسلام كښې اوابن اسحاق په خپل روايت كښې قود اوتكافی لفظونه نه دی ذكركړي.

## شرح حديث

په حديث كښې شپږ اجزاء ذكر شو، د هر يو جزء په مطلب باندې ځان پوهه كړئ. ۱: د ټولو مسلمانانو وينه برابر ده، شريف او وضيع، د پورته قوم او ښكته قوم هيڅ فرق نشته، د نفس بدله نفس ده كه هر څوک وی. ۲: د مسلمانانو د طرف نه په پناه او امن وركولو كښې د ادنی درجې مسلمان هم كوشش كولې شی، يعنی كه د ادنی درجې مسلمان هم يو كافر ته پناه وركړی نو بيا به دا امن هر يو مسلمان تسليموی، كه ادنی د عدد په اعتبار سره وی لكه صرف يو سړې، يا د مرتبې په لحاظ سره لكه زنانه او غلام، پس د ائمه اربعه په نزد د عبد امان معتبر دې، خو د احنافو په نزد په دې شرط چه هغه ماذون فی القتال وی، يعنی د شيخين په نزد، د امام محمد په نزد دا شرط نشته، د هغه په نزد د عبد محجور عن القتال امان هم معتبر دې هم دغه شان د د زنانه امان هم د ائمه اربعه په نزد معتبر دې، په دې كښې د سحنون مالكی او ابن ماجشون اختلاف دې، عندهما يتوقف امان المراءة علی اذن الامام. خو د صبی امان د جمهورو په نزد جائز نه دې البته د امام مالک په نزد جائز دې. ۳: په مسلمانانو باندې امان وركولې شی د كمې درجې والا سړې هم، په بذل كښې ليكلي دی چه په ظاهره كښې دا جمله د جمله اولی تاكيد دې، د دې نه علاوه د دې جملې بل څه مطلب زما ذهن ته رانغلو. انتهی كلامه. زه وايم: په بعض حواشی كښې ئې د دې دويم مطلب دا ليكلې دې چه د ﴿ اقصاهم ﴾ نه مراد ﴿ ابعدهم دارا ﴾ يعنی كوم مسلمان چه د دار الحرب نه ډير لرې اوسيږی هغه هم كه يو كافر حربی ته امان وركړی نو هغه امان به ټول منی يعنی كوم چه ﴿ اقربهم دارا ﴾ دې هغه به ئې هم منی. ۴: مسلمانان د يو بل معاون دی هر يو لره د بل په حق امر كښې معاونت كول پكار دی او په دې اعانت كښې امان وركول هم داخل دی، لهذا د دې رعايت هم كول پكار دی چه د هغې حكم په دريم نمبر كښې تير شوې دې. ۵: په دوی

کښې دې قوي په ضعيف باندې غنيمت راواپس کړي، قوي او ضعيف کيدل که د خپل ذات په اعتبار سره وي چه يو بوډا او يو ځوان دې، يا د سورلئ په اعتبار سره وي چه يوه سورلئ ډيره قوي او بله ضعيفه او کمزورې ده، د غنيمت په استحقاق کښې به ټول برابر وي. ۶: په سريه کښې تلونکې به حاصليدونکې غنيمت هغه لښکر ته واپس کوي کوم چه په دار الحرب کښې ناست دې، هم په دې جمله کښې د ترجمة الباب مطابقت دې، په داسې موقع باندې بين السطور ليکلې شي "فيه الترجمة" دا خو اصل مسئله ده د دې د مزيد تشريح ضرورت نشته، اول ذکر شوه.

## مسلمان به د ذمي په بدل کښې قصاصا قتل کولې شي يا نه په دې کښې مذاهب ائمه

**قوله:** ﴿ لاَ يُقْتَلُ مُؤْمِنٌ بِكَافِرٍ وَلاَ ذُو عَهْدٍ فِي عَهْدِهِ ﴾ د دې جملې نه مخکښې اختلافي مسئله واورئ، دا د قصاص مسئله ده، په دې باندې د ټولو اتفاق دې چه د کافر حربي په بدله کښې به مومن نه شي قتل کولې هم دغه شان په دې باندې هم اتفاق دې چه د کافر حربي په مقابله کښې به ذمي نه شي قتل کولې، او په دې باندې هم اتفاق دې چه د ذمي په بدله کښې به ذمي قتل کولې شي خو اختلاف په دې کښې دې چه د کافر ذمي په بدل کښې به مسلمان هم قتل کولې شي يا نه؟ نو د جمهورو په نزد به نه شي قتل کولې او د احنافو په نزد به د ذمي په بدله کښې مسلمان قتل کولې شي، د احنافو په نزد د قصاص په مسئله کښې مسلمان او ذمي دواړه برابر دي.

## دا حديث د احنافو دليل دې او څنګه؟

د دې نه پس اوس په دې ځان پوهه کړئ د دې حديث شرح، جمهور وائي چه په دې حديث کښې د کافر نه مراد مطلق دې که حربي وي يا ذمي وي، که يو مسلمان يو ذمي لره قتل کړي نو د جمهورو په نزد به د هغه مسلمان نه قصاص نه شي اخستلې، په دې مسئله کښې د جمهورو په نزد ټول کافر برابر دي که هغه حربي او که ذمي وي، په ظاهره کښې د جمهورو خبره صحيح معلوميږي ځکه چه په حديث کښې ﴿ بکافر ﴾ مطلق ذکر شوې دې، احنافو چه د دې کوم جواب کړې دې هغه په غور سره واورئ. هغوی داسې وائي چه په حديث کښې د ﴿ بکافر ﴾ نه مراد حربي کافر دې نه مطلق کافر، چه د هغې دليل او قرينه دا ده چه وړاندې په دې حديث کښې راځي "ولا ذو عهد في عهده" د دې ﴿ ذو عهد ﴾ عطف په مومن باندې دې، د عبارت تقدير په داسې وي "لا يقتل مومن بکافر، ولا ذو عهد في عهده بکافر ﴾ اوس اوګورئ چه د کافر لفظ دوه ځايه راغلې دې په معطوف کښې او په معطوف عليه کښې، په معطوف کښې د کافر نه بالاتفاق کافر حربي مراد دې ځکه چه که مطلق کافر حربي مراد کړې شي نو د دې مطلب به دا وي چه ذمي به نه د کافر حربي په مقابله کښې قتل کولې شي نه خپله د ذمي په مقابله کښې، حال دا چه ذمي د ذمي په مقابله کښې بالاتفاق قتل کولې شي، نو هر کله چه دا ثابته شوه چه په معطوف کښې د کافر نه مراد حربي دې نو هم دغه شان به په معطوف عليه کښې هم د کافر نه مراد کافر حربي وي. ځکه چه نحوي

قاعده مشهوره ده چه معطوف، د معطوف علیه په حکم کښې وی : ﴿ فثبت ما ادعیناه ان المراد فی الحدیث بالکافر، الکافر الحربی، لا مطلق الکافر فتدبر وتشکر ﴾ اوس دا خبره چه جمهور به زمونږ د دې تقریر څه جواب کوی، په ظاهره کښې هغوی د دې جواب کوی چه دا دویمه جمله په ﴿ ولا ذو عهد فی عهده ﴾ ماقبل باندې عطف نه ده بلکه دا استیناف دې او مستقل جمله ده چه د هغې مطلب دا دې چه کوم ذمی په خپل عهد باندې قائم وی هغه دې قتل نه کړې شي، بس خبره ختمه شوه. والحدیث اخرجه ابن ماجة، قاله المنذری.

[۲۷۵۲]([1]) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا هَاشِمُ بْنُ الْقَاسِمِ، حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ، حَدَّثَنِي إِيَاسُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: أَغَارَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَلَى إِبِلِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَتَلَ رَاعِيَهَا فَخَرَجَ يَطْرُدُهَا هُوَ وَأُنَاسٌ مَعَهُ فِي خَيْلٍ، فَجَعَلْتُ وَجْهِي قِبَلَ الْمَدِينَةِ، ثُمَّ نَادَيْتُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ: يَا صَبَاحَاهُ، ثُمَّ اتَّبَعْتُ الْقَوْمَ فَجَعَلْتُ أَرْمِي وَأَعْقِرُهُمْ فَإِذَا رَجَعَ إِلَيَّ فَارِسٌ، جَلَسْتُ فِي أَصْلِ شَجَرَةٍ حَتَّى مَا خَلَقَ اللَّهُ شَيْئًا مِنْ ظَهْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا جَعَلْتُهُ وَرَاءَ ظَهْرِي، وَحَتَّى أَلْقَوْا أَكْثَرَ مِنْ ثَلَاثِينَ رُمْحًا وَثَلَاثِينَ بُرْدَةً يَسْتَخِفُّونَ مِنْهَا، ثُمَّ أَتَاهُمْ عُيَيْنَةُ مَدَدًا فَقَالَ: لِيَقُمْ إِلَيْهِ نَفَرٌ مِنْكُمْ، فَقَامَ إِلَيَّ أَرْبَعَةٌ مِنْهُمْ فَصَعِدُوا الْجَبَلَ فَلَمَّا أَسْمَعْتُهُمْ قُلْتُ: أَتَعْرِفُونِي قَالُوا: وَمَنْ أَنْتَ قُلْتُ: أَنَا ابْنُ الْأَكْوَعِ وَالَّذِي كَرَّمَ وَجْهَ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، لَا يَطْلُبُنِي رَجُلٌ مِنْكُمْ فَيُدْرِكُنِي وَلَا أَطْلُبُهُ فَيَفُوتُنِي فَمَا بَرِحْتُ حَتَّى نَظَرْتُ إِلَى فَوَارِسِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَخَلَّلُونَ الشَّجَرَ أَوَّلُهُمُ الْأَخْرَمُ الْأَسَدِيُّ، فَيَلْحَقُ بِعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عُيَيْنَةَ، وَيَعْطِفُ عَلَيْهِ عَبْدُ الرَّحْمَنِ فَاخْتَلَفَا طَعْنَتَيْنِ فَعَقَرَ الْأَخْرَمُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ، وَطَعَنَهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ فَقَتَلَهُ فَتَحَوَّلَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ عَلَى فَرَسِ الْأَخْرَمِ، فَيَلْحَقُ أَبُو قَتَادَةَ بِعَبْدِ الرَّحْمَنِ فَاخْتَلَفَا طَعْنَتَيْنِ فَعَقَرَ بِأَبِي قَتَادَةَ وَقَتَلَهُ أَبُو قَتَادَةَ فَتَحَوَّلَ أَبُو قَتَادَةَ عَلَى فَرَسِ الْأَخْرَمِ، ثُمَّ جِئْتُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ عَلَى الْمَاءِ الَّذِي جَلَّيْتُهُمْ عَنْهُ ذُو قَرَدٍ فَإِذَا نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي خَمْسِ مِائَةٍ فَأَعْطَانِي سَهْمَ الْفَارِسِ وَالرَّاجِلِ.

ایاس بن سلمه دخپل پلار سلمه بن اکوع نه روایت کوی فرمائی چه چه عبدالرحمن بن عیینه فزاري دنبی ﷺ په اوښانوباندې حمله اوکړه او لوټ ئې کړل اودهغه شپونکي ئې قتل کړواوشروع شو چه شړل ئې ده پخپله هم اودده نورو ملګروهم کوم چه په اسونوسواره وو نوماخپل مخ مدینې طرف ته مخامخ کړو اوبیا ئې درې آوازونه اوکړل چه یاصباحاه (داهغه کلمه ده کومه چه دفریاد په وخت کښې وئیلې شی)او زه په دوی پسې ور پسې شوم او په غشومي ویشتل او ور پسې روان ووم او زخمي کول به مې کله چه به کومې سورلۍ والا په ماپښې راوګر جیدو نوزه به د یوې ونې شاته پټ شوم تردې پورې چه د نبی ﷺ څومره اوښان وو هغه مادځان نه شاته کړی. یعنی ټول مې ترې د تختولونه ازاد کړل تردې چه دیرش نیزې اودیرش څادرونه ئې اوغورزول ددې دپاره چه سپک شو او په تیختنه کښې اساني پیداشي په دې وخت کښې دعبدالرحمن پلار عیینه دچانه مدد واغستو اوراورسیدو اووئې وئیل په تاسوکښې یوڅوکسان خوپه دغه سړی پسې ورشئ یعنی سلمه بن اکوع اوقتل ئې کړئ، سلمه وائی په دوی کښې څلور کسان په ما پسې راغلل اوغرته راوختل کله چه دومره نزدې شول چه زما آواز ئې اوریدو ماورته اووئیل آیا تاسو

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٥٢٧)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الجهاد ٤٥ (١٨٠٦)، مسند احمد (٤٨/٤) (حسن صحيح)

ماپیزنئ؟ هغوی اووئیل ته څوك يې؟ ما اووئیل داکوع څوی یم زمادي قسم وي په هغه ذات باندې چاچه محمدته عزت ورکړې دې په تاسوکښې یوکس مانه شي نیولې اونه په تاسوکښې یوکس زمانه بچ کیدې شي او په مخه به مې دنبی ﷺ اس سوارانوته کتل نوپه دې وخت کښې مادنبی ﷺ اسواران اولیدل چه په ونوکښې را روان وو او په ټولوکښې مخکښې اخرم اسدي وو هغه دډاکوانو دمشر عبدالرحمن سره ملاو شو عبدالرحمن چه دې اولیدو نود دواړ ترمینځه وارونه اوشول اخرم دعبدالرحمن اس قتل کړو اوعبدالرحمن اخرم قتل کړو بیا عبدالرحمن داخرم په اس باندې سور شو بیا ابوقتاده دعبدالرحمن سره مقابله شروع کړه او وارونه شروع شول دابوقتاده أس قتل کړې شو او ابوقتاده عبدالرحمن قتل کړو بیابوقتاده داخرم په اس باندې سور شو او وئې زغلوو اونبی ﷺ دپنځه سوه کسانو سره ناست وو نبی ﷺ ماته دیوسور اودیوه پیاده حصه راکړه.

## د غزوة الغابة قصه

دا قصه په غزوة الغابة او غزوه ذی قرد سره مشهوره ده، غابیه د یو ځائې نوم دې د احد د طرف نه د مدینې نه یو برید یعنی یو منزل په فاصله باندې، دا په کوم کال باندې پیښه شوې وه، په دې کښې اختلاف دې، ټولو سیرت لیکونکو خو دا قبل الحدیبیه لیکلې ده او د امام بخاری په روایت کښې قبل خیبر بثلاثة ایام دې، یعنی په ۷ هجری کښ، د دې غزوه مقصد خپله په دې روایت کښې مذکور دې، د رسول الله ﷺ شل اوښې د پیو والا هلته څریدلې، د سیدنا ابوذر غفاری رضی الله عنه څوئې د هغې نګران او شپونکې وو خپله ابوذر رضی الله عنه او د هغه ښځه هم هلته مقیم وو، عبدالرحمن بن عیینه کوم چه کافر وو (اګر چه نوم ئې اسلامی دې) د څلویښتو شهسوارانو سره په هغه اوښو باندې حمله اوکړه، شپونکې ئې قتل کړو، او هغه ټولې اوښې ئې بوتلې نو رسول الله ﷺ د پنځه سوه صحابه کرامو سره د مدینې منورې نه روان شو د غابه طرف ته او سیدنا سلمه بن الاکوع رضی الله عنه د چا منډه چه ضرب المثل وو هغه چه دا واوریدل نو د رسول الله ﷺ نه مخکښې هغه طرف ته په منډه شو او د تلو په وخت ئې د مدینې طرف ته مخ کولو سره درې کرته اواز اوکړو ﴿يا صباحاه﴾ دا جمله د مدد طلب کولو دپاره وی، خلقو لره د خبر کولو او متوجه کولو دپاره، هغه فرمائی چه زه ډیر په قوت سره هغوی پسې اوم د غشو په ذریعه مې د هغوی سورلئ زخمی کړې، چه کله به د هغوی نه زما طرف ته څوک متوجه شو نو زه به د اونې نه شاته شوم او په غشو به مې ویشتل او وراندې به مې منډه کړه، تردې چه د رسول الله ﷺ چه څومره اوښې وې هغه ټولې شاته پاتې شوې او زه په هغوی پسې اوم، په دې منډه کښې هغه مشرکانو د ځانه روستو تقریبا دیرش څلویښت څادرې او هم په دې مقدار کښې نیزې په لاره کښې اوغورځولې د بوجه د سپکولو دپاره د دې دپاره چه منډه ورته اسانه شی، اوس یوځائې ته رسیدو سره د عبدالرحمن پلار عیینه د دې ډاکوانو د حمایت دپاره راوتلو، دا ټول ډاکوان تر اوسه پورې بې حوصلې وو او سوچ ئې دا وو چه معلومه نه ده په مونږ پسې څومره خلق شاته راروان دی، خو د عیینه په رارسیدو باندې دا خلق برابر شو او ما هم ځان برابر کړو

چه کیدي شي اوس مقابله اوشي په دې وجه یکدم یوې غونډۍ ته اوختلم، د غره د لاندې دا ټول مشرکان راجمع ولاړ وو او زه پورته رسیدلې اوم، نو عیینه خپلو ملګرو ته اووې چه تاسو څو کسان غونډۍ ته اوخیژئ، پس څلور کسانو زما طرف ته رخ اوکړو او په غونډۍ باندې راختل، چه کله هغوی په غونډۍ باندې ختلو سره ماته دومره رانزدې شو چه زما اواز ئې اوریدلې شو (هم دا ترجمه ده د فلما اسمعتهم) نو ما اوس د هغوی سره خبرې اترې شروع کړې، مقصود هغوی په خبرو کښې مشغول کول وو چه رسول الله ﷺ زما طرف ته څه مدد راولیږي څنګه چه هغوی ته مدد راورسیدو او هغوی ته ئې په تیزه اووې "اتعرفونی" ایا تاسو ما پیژنئ هم چه زه څوک یم؟ هغوی ترې تپوس اوکړو چه هم ته راته اوایه ته څوک ئې، ما اووې زه ابن الاکوع یم، قسم دې په هغه ذات چا چه محمد ﷺ ته عزت ورکړې دې په تاسو کښې یو سړې هم داسې نشته چه په منډه باندې ما راونیسی، او په تاسو کښې یو سړې هم داسې نشته چه زه ئې راونیول غواړم او هغه زما نه لاړ شي، سلمه فرمائی : ما هغوی سره هم دا قسم خبرې کولې (او هغوی هم په خبرو کښې مصروف کیدو سره د پورته ختلو نه منع شو) تردې چه ما د رسول الله ﷺ شهسواران اولیدل چه د اونو په مینځ کښې په منډه منډه راروان وو په راتلونکو کښې د ټولو نه وړاندې اخرم اسدی رضی الله عنه وو، د دې نه پس چه د دې واقعې کومه حصه باقی پاتې شوه هغه مونږ سره په "باب الرجل يسمی دابته" د لاندې تیره شوه هغه دې هلته اوکتلې شی، د هغې نه روستو بیا په دې واقعه کښې دی ﴿ثُمَّ جِئْتُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَهُوَ عَلَى الْمَاءِ الَّذِى جَلَّيْتُهُمْ عَنْهُ ذُو قَرَدٍ﴾ یعنی بیا زه روغ سلامت واپس کیدو سره د رسول الله ﷺ طرف ته راروان اوم نو ما اوکتل چه رسول الله ﷺ هغه چینې ته رارسیدلې وو د کوم ځائې نه چه زه په هغه ډاکوانو پسې شوې اوم یعنی ذو قرد، رسول الله ﷺ هغه وخت د پنځو سوو صحابه کرامو سره وو پس رسول الله ﷺ یوه حصه خو ماته د شهسوار راکړه او یوه ئې راته د پیاده راکړه، راجل خو په دې وجه چه راجل خو دې وو او د فارس په طریقه د نفل.

د دې حدیث د ترجمة الباب سره مناسبت داسې کیدې شي چه د کومو پنځه سوه صحابه کرامو سره رسول الله ﷺ ذو قرد ته رسیدلې وو په مدینه منوره کښې هغه خو جیش اوګڼړلې شي او سلمه بن الاکوع او د هغه ملګرې اصحاب سریه، او د غنیمت د عسکر طرف ته واپس کول هم دلته بیا موندلې شو چه سلمه هغه ټول سامان راوړلو او رسول الله ﷺ ته ئې پیش کړو، او سریه ته په طور د نفل ورکړې کیدل هم دلته بیا موندلې شو، لهذا د حدیث په ترجمة الباب باندې انطباق اوشو. دا قصه په صحیح مسلم کښې د دې نه په زیات تفصیل سره ذکر شوې ده. والحدیث اخرجه مسلم اتم من هذا.

......

## بَابٌ فِي النَّفْلِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَمِنْ أَوَّلِ مَغْنَمٍ

**په غنیمت کښې د سرو زرو او سپینو زرو نه دانعام ورکولو بیان**

### د ترجمة الباب تشریح

دا ترجمة الباب دقیق دې، په دې کښې دوه اجزاء دی اول دا چه ایا د امام دپاره دا جائز دی چه هغه سره زر او سپین زر په طور د نفل یو غازی ته ورکړی؟ د جمهورو په نزد جائز دی، په دې کښې د امام اوزاعی اختلاف منقول دې، د هغه په نزد په نفل کښې سره او سپین زر نه شي ورکړې کیدې، بلکه نور سامان وسله وغیره به ورکولې شي، او د ترجمه دویم جزء دې النفل من اول مغنم، د اول مغنم په مفهوم کښې اختلاف دې، صاحب د عون المعبود د دې مصداق لیکلې دې ما یحصل ابتداء بسبب الجهاد والقتال، یعنی دار الحرب ته د داخلیدو نه مخکښې په میدان جنګ کښې د جهاد او قتال په ذریعه کوم چه د مشرکینو مال حاصل وی یعنی هم هغه کوم ته چه مال غنیمت وئیلې شی هم دغه شان هغوی لیکلې دی چه دا مقابل دې د مباحات دار الحرب یعنی په دار الحرب کښې دننه څیزونه کوم چه مسلمانانو ته حاصل شوې دی د هغې د فتح کولو نه پس، او حضرت په بذل کښې د اول مغنم معنی احتمالا دا لیکلې ده: ما یحصل من الغنیمة قبل القتال اذا دخل عسکر الاسلام دار الحرب فحصلت لهم غنیمة من قبل ان یقاتلوا بقوة الجیش.

یعنی د کفارو هغه مال کوم چه دار الحرب ته د داخلیدو نه پس حاصل شی بغیر د قتال نه صرف د لښکر په طاقت سره، چه د هغې حاصل په ظاهره کښې مال فئ شو،

او بیا وړاندې حضرت لیکلې دی چه غالبا په دې سره د اوزاعی د قول طرف ته اشاره ده پس حافظ په فتح الباری کښې د امام اوزاعی نه نقل کړې دی چه د اول غنیمت نه دې نفل ورنکړې شی او نه دې ذهب او فضه د نفل په طور ورکړې شی. وخالفه الجمهور. حضرت فرمائی ظاهره دا ده چه د مصنف میلان هم په دواړو مسئلو کښې هم دې طرف ته دې، یعنی په دواړو مسئلو کښې د عدم جواز نفل یعنی لا یجوز النفل من الذهب والفضة ولا من مال الفئ... او د صاحب عون رائې دا ده چه د اول مغنم نه مراد غنیمت دې، او د مصنف میلان د مسلک جمهور طرف ته دې په دواړو مسئلو کښې، یعنی جواز نفل، د سرو او سپینو زرو نه هم او د مال غنیمت نه هم، او زما رائې دا ده کومه چه د شارحینو رائې ده او په حدیث الباب کښې د غور کولو نه هم دا معلومیږی چه د اول مغنم نه مراد هم هغه دې چه حضرت فرمائی "ما یحصل بدون القتال" یعنی مال فئ، خو د مصنف رائې دا فهمیږی چه په نفل من الذهب والفضة کښې خو د هغوی رائې د جمهورو په شان دې، یعنی جواز، او اول مغنم یعنی مال فئ کښې عدم جواز نفل، ځکه چه دا د ټولو غانمینو حق دې، خو چه هلته هر کله قتال ته خبره رانغله نو بیا د نفل څه معنی، نفل توت شجیع علی القتال دپاره ورکولې شی، او ان شاء الله د حدیث الباب نه هم دا ثابتیږی لکه چه وړاندې به راشی.

[۲۷۵۳]() حَدَّثَنَا أَبُو صَالِحٍ مَحْبُوبُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا أَبُو إِسْحَاقَ الْفَزَارِيُّ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ أَبِي الْجُوَيْرِيَةِ الْجَرْمِيِّ، قَالَ: أَصَبْتُ بِأَرْضِ الرُّومِ جَرَّةً حَمْرَاءَ فِيهَا دَنَانِيرُ، فِي إِمْرَةِ مُعَاوِيَةَ وَعَلَيْنَا رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَنِي سُلَيْمٍ يُقَالُ لَهُ مَعْنُ بْنُ يَزِيدَ، فَأَتَيْتُهُ بِهَا فَقَسَمَهَا بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ وَأَعْطَانِي مِنْهَا مِثْلَ مَا أَعْطَى رَجُلًا مِنْهُمْ، ثُمَّ قَالَ: لَوْلَا أَنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "لَا نَفْلَ إِلَّا بَعْدَ الْخُمُسِ لَأَعْطَيْتُكَ"، ثُمَّ أَخَذَ يَعْرِضُ عَلَيَّ مِنْ نَصِيبِهِ فَأَبَيْتُ.

دابو الجويرية الجرمی نه روایت دې فرمائی چه دمعاویه دخلافت په زمانه کښې ماپه روم کښې یو سور منګي پیداکړو چه ددینارونونه ډك وو او په دغه وخت کښې دنبی ﷺ په صحابه کرامو کښې دبنوسلیم قبیلې یوکس چه معن بن یزید به ورته وئیلې شو زمونږ امیر وونو ما دامنګي دغه امیرته یوړونو هغه په ټولو مسلمانانو تقسیم کړو اود نورو کسانو د حصو په مقدارحصه ئې ماته هم راکړه، که چرې ماذنبی ﷺ داقول نه وی اوریدلي کوم چه هغه فرمائلي ووچه انعام ورکول نشته مګر پس دخمس نه، نومابه دا تاته درکړي وي او بیائي ماته خپله حصه پیش کوله خوماورته انکاروکړو داخستلونه.

## مضمون حدیث

ابو الجویریه فرمائی چه ماته یو ځل د سیدنا معاویه رضی الله عنه په خلافت کښې د سور رنګ ګوډئ (نینزکه) په روم کښې ملاؤ شوه، چه په هغې کښې دنیارونه وو، او هغه وخت زمونږ امیر یو صحابی وو د قبیله بنو سلیم چه د هغه نوم معن بن یزید رضی الله عنه وو، ما هغه ګوډئ راوړه او هغه ته مې پیش کړه، هغه دغه دینارونه په مسلمانانو باندې تقسیم کړل او زما حصه ئې هم د هغوی برابر اولګوله یعنی ماته ئې په طریق د نفل هیڅ زیاتی رانکړل او بیا ئې ماته د معذرت په طور اووې چه که ما د رسول الله ﷺ نه دا حدیث نه وې اوریدلې، لا نفل الا بعد الخمس... نو ما به تاته ضرور څه زیاتی درکړې وې، او بیا ئې د دې نه روستو ماته د خپلې حصې نه څه پیش کول چه دا واخله نو ما ئې د اخستلو نه انکار اوکړو، معن بن یزید په عدم جواز نفل باندې د دې حدیث نه استدلال کړې دې ﴿لا نفل الا بعد الخمس﴾ ځکه چه د دې حدیث نه خو دا فهمیږی چه نفل د هغه مال نه وی چه په هغې کښې خمس واجب وی، او دا چه کوم مال وو د ګوډئ والا په دې کښې خمس نشته ځکه چه دا خو مال فئ وو او خمس خو د مال غنیمت نه اخستلې شی نه د مال فئ نه، لهذا په دې کښې به نفل هم نه وی.

## د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت

مونږ پورته لیکلې وو چه د مصنف میلان ([2]) په اول مغنم والا مسئله کښې د عدم جواز نفل طرف ته دې، دا خو په ظاهره ثابته شوه او ذهب او فضه والا مسئله کښې مونږ دا وئیلې وو چه په دې کښې مصنف جواز نفل قائل وو، دا بله مسئله هم په ظاهره کښې د حدیث الباب

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٤٨٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٧٠/٣) (صحيح)

[2] دا چه مونږ اوئیل چه د مصنف میلان دې طرف ته دې دا په دې وجه چه د حدیث الباب نه زمونږ په نزد هم دا ثابتیږی خو مسئله چونکه اجتهادی ده په دې وجه ضروری نه ده چه د مصنف رائې دې هم دا وی، او په ترجمة الباب کښې مصنف د خپلې رائې اظهار نه دې فرمائیلې.۱۲)

نه ثابتیږي ځکه چه معن بن یزید په دې مال کښې د عدم نفل په سبب منحصر کړې دې په دې خبره کښې چه دا مال فئ دې مال غنیمت نه دې، معلومه شوه چه که هم دا مال د مال غنیمت نه وي نو د دې نه به ئې په طور د نفل ورکړې وې، او د دې ذهب کیدل به مانع نه وې د نفل نه، لهذا ثابته شوه چه د ذهب او فضه نه نفل ورکړې کیدې شی، زما په نزد دا د ترجمة الباب او بیا د مصنف د دې سره غرض او بیا د حدیث الباب د دې غرض سره مطابقت دا ښه ژور بحث دې، بعض تراجم په هر کتاب کښې مشکل وی، او د بخاری د تراجمو باریکی ژور والي او غموض خو مشهوره خبره ده.

دا حدیث د دې کتاب نه علاوه په صحاح سته کښې خو بل چرته هم نشته، شیخ محمد عوامه لیکلي دی په کتاب السیر للفزاری کښې هم په دې متن او سند سره.

[۲۷۵٤](١) حَدَّثَنَا هَنَّادٌ،عَنْ ابْنِ الْمُبَارَكِ،عَنْ أَبِي عَوَانَةَ،عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ.

اوعاصم بن کلیب په خپل سند سره د تیرشوي روایت په شان روایت بیان کړې دې.

## بَابٌ فِي الإِمَامِ يَسْتَأْثِرُ بِشَيْءٍ مِنَ الْفَيْءِ لِنَفْسِهِ

### د مشرکینو نه حاصل شوي مال امیر ساتلې شی

د فئ اطلاق په غنیمت باندې هم وی، په دې ترجمة الباب کښې د فئ نه غنیمت مراد دې، یعنی په مال غنیمت کښې امام د خپل ځان دپاره د څه خاص څیز انتخاب کولې شی؟ د غنیمت د حصې نه علاوه؟ جواب دا دې چه "لیس لاحد بعده صلی الله علیه وسلم" رسول الله ﷺ ته خود دې خبرې حق وو چه هغه د مال غنیمت نه یو داسې څیز چه د هغه خوښ وی اخستلې شی چه د هغې نوم سهم صفی دې، او په دې باندې وراندې مستقل باب هم راروان دې، خو د هغه نه روستو د یو امام دپاره بالاتفاق داسې اخستل جائز نه دی.

[۲۷۵۵](٢) حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ عُتْبَةَ،قَالَ: حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْعَلَاءِ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا سَلَّامٍ الْأَسْوَدَ، قَالَ: سَمِعْتُ عَمْرَو بْنَ عَبَسَةَ، قَالَ: صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى بَعِيرٍ مِنَ الْمَغْنَمِ فَلَمَّا سَلَّمَ أَخَذَ وَبَرَةً مِنْ جَنْبِ الْبَعِيرِ، ثُمَّ قَالَ: "وَلَا يَحِلُّ لِي مِنْ غَنَائِمِكُمْ مِثْلُ هَذَا إِلَّا الْخُمُسُ وَالْخُمُسُ مَرْدُودٌ فِيكُمْ".

دعمرو بن عبس رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام مونږ ته مونځ راکړو په داسې حال کښې چه دغنیمت یواوښ ته ئې مخ کړې وو یعنی دسترې په شکل هرکله چه فارغ شو نوداوښ د شانه ئې یو ویښته راوویستو اوبیا ئې اوفرمائیل ستاسو دغنیمت نه زما دپاره ددې ویښته په برابر شې اخستل جائز نه دی مگر علاوه دخمس نه، اوخمس به هم واپس په تاسو باندې خرچ کیږی.

### شرح الحدیث

یعنی رسول الله ﷺ یو ځل د غنیمت په اوښانو کښې یو اوښ ستره جوړ کړو او د هغه طرف ته ئې مونځ اوکړو، د مونځ نه چه فارغ شو نو د اوښ د ملا نه ئې په خپل موټی کښې ویښته نیولو سره اوفرمائیل چه د خمس نه علاوه زما دپاره په مال غنیمت کښې یو موټې (څیز

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١١٤٨٤) (صحيح)
(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٧٦٩) (صحيح)

اخستل هم جائز نه دی، او هغه خمس کوم چه زه اخلم نو هغه هم په تاسو باندې خرچ کولې شی، په دې حدیث کښې د خمس نه مراد خمس الخمس دې، لکه چه مخکښې تیر شو چه په کل مال غنیمت کښې خمس ویستلو سره بیا خمس لره په پنځه حصو کښې تقسیم کولې شی چه په هغې کښې یوه حصه د رسول اللهﷺ ده، لهذا د هغه حصه خمس الخمس اوشو، خو مجازا د هغې نه په خمس سره تعبیر کولې شی.

## د رسول اللهﷺ دپاره به په مال غنیمت کښې درې حصې وې

خو د دې نه پس تاسو په دې باندې ځان پوهه کړئ چه د رسول اللهﷺ دپاره به په مال غنیمت کښې درې حصې وې یوهم داکومه چه پورته ذکرشوه،دویم سهم کسهم احد الغانمین، او دریم سهم صفی کوم چه په دې ترجمة الباب کښې مذکور دې نو چه کله د رسول اللهﷺ دپاره په مال غنیمت کښې درې قسم حصې وې نو بیا په دې حدیث کښې رسول اللهﷺ صرف په یو قسم حصه باندې ولې انحصار اوفرمائیلو؟ د دې جواب حضرت په بذل کښې دا ورکړې دې چه په دې روایت کښې اختصار دې، د مسند احمد په روایت کښې په دې باندې زیادت دې ﴿ ولا نصیبی معکم ﴾ یعنی یوه هغه حصه کومه چه ستاسو ټولو دپاره وی. حضرت خو په بذل کښې هم دومره لیکلې دی، خو زما په خیال کښې لا اشکال باقی دې، هغه دا چه د رسول اللهﷺ دپاره دریمه حصه هم وه یعنی سهم صفی، د دې جواب دا کیدې شی چه د سهم صفی په باره کښې دا اختلاف دې چه هغه به د رسول اللهﷺ دپاره په هر یو غنیمت کښې وو یا صرف په دې صورت کښې چه کله رسول اللهﷺ په هغه غزوه کښې خپله شریک وی، په خلاف د غنیمت د حصې نه چه هغه ستا دپاره په هر صورت کښې وی، که رسول اللهﷺ په غزوه کښې شریک نه وی بیا هم.

والحدیث اخرجه النسائی وابن ماجة من حدیث عبادة بن الصامت بنحوه، وروی ایضا من حدیث جبیر بن مطعم، والعرباض بن ساریة، قاله المنذری.

# بَابٌ فِي الْوَفَاءِ بِالْعَهْدِ

## معاهده پوره کول لازمی دی

[۲۷۵۶](۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ الْغَادِرَ يُنْصَبُ لَهُ لِوَاءٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، فَيُقَالُ هَذِهِ غَدْرَةُ فُلَانِ بْنِ فُلَانٍ".

دابن عمر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی دخیانت ګردپاره به دقیامت په ورځ باندې یوه جنده اودرولې شي اواواز به اوشی چه دا د فلانی د فلانی دځوي خیانت دې.

**تشریح: قوله:** "إِنَّ الْغَادِرَ يُنْصَبُ لَهُ لِوَاءٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، فَيُقَالُ هَذِهِ غَدْرَةُ فُلَانِ بْنِ فُلَانٍ".(۲)

---

۱): صحیح البخاري/الجزیة ۲۲ (۳۱۸۸)، والأدب ۹۹ (۶۱۷۷)، والحیل ۹ (۶۹۶۶)، والفتن ۲۱ (۷۱۱۱)، (تحفة الأشراف: ۷۲۳۲)، وقد أخرجه: صحیح مسلم/الجهاد ٤ (۱۷۳۶)، سنن الترمذي/السیر ۲۸ (۱۵۸۱)، مسند احمد (۲/۱٤۲) وأعاده المؤلف في السنة (٤۶۵۵) (صحیح)

۲) اي هذه الهیئة الحاصلة له مجازاة غدرته (عون).

په جهاد کښې د مشرکانو سره چل ول او دهوکه کول خو جائز دی بلکه نافع دی، او دې ته ترغیب ورکړې شوې دې، خو که د یو مشرک سره څه معاهده اوشی نو د هغې خلاف ورزی قطعا جائز نه ده، هغه عذر دې، او په عذر باندې په حدیث کښې سخت وعید راغلې دې، پس په حدیث الباب کښې دی چه د عذر کونکې سره به په قیامت کښې دا معامله کولې شی چه هغه په کوم ځائې کښې وی هلته به یوه جهنډه قائمولې شی (جهنډه به په دې وجه قائم کولې شی چه خلق د هغې طرف ته متوجه کیدو سره اوګوری چه دا سرې څوک دې) او هغه وخت به دا اعلان کولې شی چه اوګورئ دې سړی ته دا د فلانی ځوئې دې، په فلانی وخت ئې په دنیا کښې فلانې عذر کړې وو، یعنی د هغه د عذر تشهیر کولو سره به هغه رسوا کولې شی، شارحینو په دې حدیث باندې زمونږ د خیال مطابق دومره لیکلې دی، خو د حضرت ګنګوهی تقریر ترمذی، المعروف بالکوکب الدری، په هغې کښې لیکلې دی چه دا غادر به په اوږد لرګی باندې کینولې شی کوم چه به د هغه په شرمګاه کښې دننه کیږی. والله تعالی اعلم بمراد الحدیث، ویوئده ما فی بعض الروایات عند استه والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الْإِمَامِ يُسْتَجَنُّ بِهِ فِي الْعُهُودِ

### باب: په معاهدو کښې به د امام پناه حاصلولې شی

[۲۷۵۷] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّمَا الْإِمَامُ جُنَّةٌ يُقَاتَلُ بِهِ".

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی یقینا امام ډال دې اوجنګ کیږی په ده سره یعنی دده په مشوره باندې جنګ کیږی نودده په مشوره باندې صلح کول هم پکار دی.

### شرح الحدیث

د ترجمة الباب لفظ، د لفظ حدیث نه ماخوذ دې ځکه چه په حدیث الباب کښې دی ﴿انما الامام جنة﴾ جنة وئیلې شی ډهال ته، ډهال ذریعه او وسیله وی د دشمن د حملې نه د بچ کیدو دپاره، ځکه چه هغه په مینځ کښې حائل شی، نو د ترجمة الباب مطلب دا شو چه د امام په ذریعه باندې پناه حاصلولې شی په معاهدو او صلحو کښې، یعنی عمومی صلح بین المسلمین والمشرکین او د قتال تعلق د امام المسلمین سره دې، ظاهره خبره ده، په حکومتونو کښې چه کومې معاهدې کیږی که هغه صلح وی یا قتال وی د دې تعلق د بادشاهانو سره وی نه د رعایا سره. ﴿ انما الامام جنة یقاتل به ﴾ رسول الله ﷺ فرمائی چه یقینا امام د ډهال په شان دې او د رعایا په حق کښې هغه د تحفظ ذریعه وی، د دشمنانو د حملې نه او د هغوی د تکلیفونو نه دبچ کیدو دپاره، وړاندې هغه فرمائی ﴿یقاتل به ای بامره

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۳۷۸۸)، وقد أخرجه: صحیح البخاري/الجهاد ۱۰۹ (۲۹۵۷)، صحیح مسلم/الإمارة ۹ (۱۸٤۱)، سنن النسائي/البیعة ۳۰ (٤۲۰۱) (صحیح)

ورایه، یعنی د مشرکانو سره په قتال کښې هم د هغه رائې چلیږی او خلقو لره د هغه په رائې باندې تلل هم پکار دی هغه چه هر څه فیصله کوی د قتال یا صلح، رعایا لره په هغې کښې موافقت کول پکار دی.......... وړاندې امام ته خپله اختیار دې چه هغه ئې د چا نه مناسب اوګنړی د هغه په باره کښې دې رائې او مشوره ورکړی. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، قاله المنذری.

[۲۷۵۸] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرٌو، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ الْأَشَجِّ، عَنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ أَبِي رَافِعٍ، أَنَّ أَبَا رَافِعٍ أَخْبَرَهُ، قَالَ: بَعَثَتْنِي قُرَيْشٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُلْقِيَ فِي قَلْبِي الْإِسْلَامُ فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي وَاللَّهِ لَا أَرْجِعُ إِلَيْهِمْ أَبَدًا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنِّي لَا أَخِيسُ بِالْعَهْدِ، وَلَا أَحْبِسُ الْبُرُدَ، وَلَكِنِ ارْجِعْ فَإِنْ كَانَ فِي نَفْسِكَ الَّذِي فِي نَفْسِكَ الْآنَ فَارْجِعْ"، قَالَ: فَذَهَبْتُ ثُمَّ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَسْلَمْتُ، قَالَ بُكَيْرٌ: وَأَخْبَرَنِي أَنَّ أَبَا رَافِعٍ كَانَ قِبْطِيًّا، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا كَانَ فِي ذَلِكَ الزَّمَانِ فَأَمَّا الْيَوْمَ فَلَا يَصْلُحُ.

دحسن بن ابی رافع نه روایت دې چه ابورافع راته خبر را کړې دې فرمائیل ئې چه قریشو زه نبی علیه السلام ته ولیږلم کله چه مې نبی علیه السلام اولیدو نوپه زړه کښې مې داسلام سره محبت واچولې شو ماعرض اوکړو اې دالله رسوله زه دوی ته هیڅ کله واپس نه ورځم نبی علیه السلام اوفرمائیل چه زه لوظ نه ماتوم اونه سفیر لره قد کوم بلکه لاړشه که چرې په ریښتیا ستا په زړه کښې هغه څه وي کوم چه ته وائې نو بیا واپس راشه ابورافع وائی زه لاړمه او بیا نبی علیه السلام ته واپس راغلم اواسلام مې قبول کړو، بکیر وائی چه حسن ماته وئیلی دی چه ابو رافع یو قبطي غلام وو. ابوداود وائی دا دهغه دور خبره ده په اوس وخت کښې داسې وئیل نه دی پکار ځکه چه دصحابي تعظیم کول ضروری دی.

## مضمون حدیث

سیدنا ابو رافع رضی الله عنه د خپل اسلام قبلولو واقعه بیانوی چه زه قریشو د رسول الله ﷺ په خدمت کښې لیږلې اوم، ګویا هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې د وافد په حیثیت کښې راغلې وو، هغه فرمائی چه کله ما د هغه د مخ مبارک زیارت اوکړو نو زما په زړه کښې فوراً د اسلام حقانیت راغلو نو ما هغه ته عرض اوکړو یا رسول الله! والله زه به اوس د کفارو طرف ته نه واپس کیږم (هغوی چه د کوم کار دپاره راغلې وو هغه ترې تول هیر شو او په هغه باندې مئین شو) رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ګوره زه لوظ نه ماتوم (چه هر چا سره وی) او نه چه د هغوی کوم قاصد او ایلچی وی، منع کوم، هغه اوفرمائیل چه دې وخت کښې ته واپس شه، پس که د تلو نه پس ستا په زړه کښې بیا هم هغه خبره اوشوه کومه چه اوس ده نو واپس شئ هغه وائی چه زه هغه وخت خو لاړم او بیا موقع کتلو سره د هغه طرف ته لاړم او اسلام ئې قبول کړو، وړاندې په روایت کښې دا دی چه ابو رافع په شروع کښې قبطی غلام وو، قبط وئیلې شی قوم فرعون ته، په بذل کښې لیکلې شوې دی چه په شروع کښې دا د حضرت عباس غلام وو هغه ازاد کړې وو (په ظاهره کښې د اسلام نه مخکښې مراد دې)

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٢٠١٣)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبري/السير (٨٦٧٤) (صحيح)

قال ابوداود : الخ : مصنف فرمائی چه داسې قاصد د مشرکانو طرف ته واپس کولو د هغه زمانې خبره وه په دې زمانه کښې مناسب نه دی. یعنی د کفارو د طرف نه راتلونکې قاصد دار الاسلام ته د رارسیدو نه پس که اسلام قبول کړی نو بیا هغه واپس کول نه دی پکار اګر چه عام قاعده او ضابطه هم دا ده چه قاصد نه دی منع کول پکار خو دا صورت مستثنی دې، او په دې صورت کښې هغه لره واپس کول صرف د رسول الله ﷺ په زمانه کښې خو جائز وه چه د رسول الله ﷺ ذات د دې رجوع زبردست محرک وو، خو د هغه نه روستو به په دې قاعده باندې عمل نه وی.

په روایت کښې دی ﴿ لا اخیس بالعهد ﴾ دا په خاء معجمه او یاء تحتانیه سره دې، د خاس یخیس معنی د نقض ده، او د دې نه روستو چه کوم لفظ دې ﴿ لا احبس البرد ﴾ دا حبس دې په معنی د منع کولو او ﴿ البرد ﴾ جمع ده د برید، قاصد او استاذې. والحدیث اخرجه النسائی، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الْإِمَامِ يَكُونُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْعَدُوِّ عَهْدٌ فَيَسِيرُ إِلَيْهِ

### کله چه د مشرکانو او امام ترمینځ معاهده وی نو په دې دوران کښې امام د مشرکانو علاقې ته تلې شي

[۲۷۵۹] (¹) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ النَّمَرِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي الْفَيْضِ، عَنْ سُلَيْمِ بْنِ عَامِرٍ رَجُلٍ مِنْ حِمْيَرَ، قَالَ: كَانَ بَيْنَ مُعَاوِيَةَ وَبَيْنَ الرُّومِ عَهْدٌ، وَكَانَ يَسِيرُ نَحْوَ بِلَادِهِمْ حَتَّى إِذَا انْقَضَى الْعَهْدُ غَزَاهُمْ فَجَاءَ رَجُلٌ عَلَى فَرَسٍ أَوْ بِرْذَوْنٍ، وَهُوَ يَقُولُ: اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ وَفَاءٌ لَا غَدْرَ، فَنَظَرُوا فَإِذَا عَمْرُو بْنُ عَبَسَةَ فَأَرْسَلَ إِلَيْهِ مُعَاوِيَةُ فَسَأَلَهُ فَقَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "مَنْ كَانَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ قَوْمٍ عَهْدٌ فَلَا يَشُدُّ عُقْدَةً وَلَا يَحُلُّهَا حَتَّى يَنْقَضِيَ أَمَدُهَا أَوْ يَنْبِذَ إِلَيْهِمْ عَلَى سَوَاءٍ"، فَرَجَعَ مُعَاوِيَةُ.

دسلیم بن عامر حمیری نه روایت دې چه د معاویه رضی الله عنه او رومیانو په مینځ کښې په دې خبره باندې معاهده شوې وه چه دیو مقرر وخت پورې به جنګ نه وی او معاویه به ددغه خلقو ښارونو ته سفر کولو کله چه دمعاهدې موده پوره شوه نو بیا ئې ددغه خلقو سره جنګ شروع کړو، په دې دوران کښې په عربي یاترکي اس باندې یو کس سور راروان وو او الله اکبر الله اکبر لوظ پوره کول پکاردې دوکه نه ده پکار دا کلمات به ئې وئیل خلقو چه ورته اوکتل نودا عمرو بن عبس وو نومعاویه ده ته یو کس ورولیږلو ددې تپوس دپاره چه مونږه کومه دوکه کړې ده، هغه اووئیل مادنبی علیه السلام نه اوریدلی دی چه فرمائیل ئې دچاچه دیو قوم سره معاهده وي نوترهغې پورې دې ورسره نه نوې لوظ کوي اونه دې زوړ لوظ ماتوي ترڅو چه موجوده معاهده نه وی پوره شوې اویا معاهده ددواړه جانبونه فسخ کړې شي، معاویه چه دا واوریدل نو ددغه ځائې نه راواپس شو

### د حدیث مضمون

یعنی سیدنا معاویه رضی الله عنه او د روم د نصاری ترمینځه عهد وو، او هغه د هغوی د ښهر طرف ته روان وو، یعنی د لوظ د پوره کیدو نه مخکښې روان وو، په دې نیت سره چه هلته په

¹: سنن الترمذي/السير ۲۷ (۱۵۸۰)، (تحفة الأشراف: ۱۰۷۵۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۱۱/۴، ۱۱۳، ۳۸۵) (صحيح)

رسيدو رسيدو به د لوظ موده پوره شي نو فورا به حمله اوکړي نو د شاته نه يو سړي راغلو په اس باندې سور (برذون وئيلې شي غير عربي اس ته، يعنی ترکی) په دې وينا او تنبيه کولو سره، الله اکبر، معاهده پوره کړئ، غداری مه کوئ، چه خلقو ورته په شا اوکتل نو معلومه شوه چه ويونکې عمرو بن عبسه دې، سيدنا معاويه رضي الله عنه هغه ته په سړی ليږلو سره معلومه کړه نو هغه د رسول الله ﷺ حديث بيان کړو چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دی "چه د چا چه د يو قوم سره معاهده وی نو هغه د عهد غوټه اوتړی نه دې پرانيزی" مراد دا دې چه په هغه معاهده کښې دې څه فرق نه راولی، دا جمله هم په دې معنی کښې استعماليږی، د هغې د لفظ ترجمې طرف ته دې التفات نه کوی "تردې چه د معاهدې موده پوره نه شی. يا دا چه معاهده ښکاره ماته کړې شی" يعنی واضح طور اوئيلې شی چه مونږ دا معاهده ختموو. ﴿على سواء﴾ مطلب دا دې چه د معاهدې د باقی نه پاتې کيدو په علم کښې دواړه برابر شی، يو ته د بل رائې په ښه طريقې سره معلومه شی چه اوس د بيا دپاره معاهده نه شی پريخودلې، ګويا فسخ معاهده ﴿ فرجع معاوية ﴾ سيدنا معاويه رضي الله عنه په دې اوريدو سره خپل ځائي ته واپس شی.

دا خو ظاهره ده چه د سيدنا معاويه رضي الله عنه مقصود عذر او د معاهده خلاف ورزی نه وه، په موده پوره کيدو باندې به ئې په هغوی باندې حمله کوله، خو دا فی الجمله احتياط وو، د صريح عهد خلاف خو به نه وې خو وئيلې شی چه د لازم عهد خلاف به وې، ځکه د دويم فريق په ذهن کښې دا کيدې شی چه اګر چه دعهد موده پوره شوه خو زمونږ خصم به د مودې د پوره کيدو نه پس د خپل مقام نه ځی. هکذا فی البذل عن القاری، خو زمونږ حضرت شيخ به په سبق کښې فرمائيل چه زما په خيال کښې خو په دې کښې نقض عهد نه وو.

والحديث اخرجه الترمذی والنسائی وقال الترمذی، حسن صحيح، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الْوَفَاءِ لِلْمُعَاهِدِ وَحُرْمَةِ ذِمَّتِهِ

### د ذمی وژل سخته ګناه ده

[۲۷٦۰] (۱) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ عُيَيْنَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي بَكْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ قَتَلَ مُعَاهِدًا فِي غَيْرِ كُنْهِهِ حَرَّمَ اللَّهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ".

د ابوبکر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی چاچه معاهدې والا بغير دڅه وجې نه قتل کړو نو الله تعالی به په ده باندې جنت حرام کړې.

د معاهدې نه مراد ذمی، يعنی د ذمی سره وفاداری کول، د هغه د ذمې او لوظ خلاف معامله نه کول، په حديث الباب کښې دی : کوم سړې چه يو ذمی لره بغير د شرعی جواز نه قتل کړی نو الله پاک د هغه په قاتل باندې جنت حراموی، د دې قسم احاديث په خپل ظاهر باندې نه وی، بلکه د اهل سنت په نزد مؤول وی، مثلا دا چه د دخول اولی نفی ده چه د هغه دپاره ئې ابتداء د جنت دخول حرام کړې دې يا به د سزا خوړلو نه پس ځی، يا دا چه په

(۱): سنن النسائی/القسامة ۱۰(٤٧٥١)، (تحفة الأشراف: ١١٦٩٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٣٦،٣٨،٤٦،٥٠،٥١)، سنن الدارمی/السير ٦١(٢٥٤٦) (صحيح)

مستحل باندې محمول دي، مقصود په دې سره مبالغه ده په زجر او توبيخ کښې. والله اعلم.
والحديث اخرجه النسائی، قاله المنذری.

## باب في الرُّسُل
### د قاصدانو بيان

د رسول نه مراد قاصد او استاذي دي، د کفارو د طرف نه راتلونکي وفد، او وئيل دا غواړي چه هغه به نه شي قتل کولی اګر چه هغه کافر دي.

[۲۷٦۱]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا سَلَمَةُ يَعْنِي ابْنَ الْفَضْلِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، قَالَ: كَانَ مُسَيْلِمَةُ كَتَبَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: وَقَدْ حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ شَيْخٍ مِنْ أَشْجَعَ يُقَالُ لَهُ: سَعْدُ بْنُ طَارِقٍ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ نُعَيْمِ بْنِ مَسْعُودٍ الْأَشْجَعِيِّ، عَنْ أَبِيهِ نُعَيْمٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَهُمَا حِينَ قَرَأَ كِتَابَ مُسَيْلِمَةَ: "مَا تَقُولَانِ أَنْتُمَا؟ قَالَا: نَقُولُ كَمَا قَالَ، قَالَ: أَمَا وَاللَّهِ لَوْلَا أَنَّ الرُّسُلَ لَا تُقْتَلُ لَضَرَبْتُ أَعْنَاقَكُمَا".

سلمه بن نعيم بن مسعود اشجعي رضي الله عنه د خپل پلار نعيم نه روايت کوي فرمائي چه د نبي عليه السلام نه مې اوريدلي دي چه د مسيلمه كذاب قاصدانو ته ئې فرمائيل کله چه نبي عليه السلام د مسيلمه خط اولوستو چه تاسو په دې باره کښې څه وائې؟ هغوی اووئيل مسيلمه چه څه وائي هغه مونږه هم وايو (يعني د هغه نبوت منو) نبي عليه السلام اوفرمائيل په الله قسم که چرې قاصدان وژل به ده خبره نه وې نو ما به ستاسو د دواړو څټونه وهلي وو.

دا حديث د محمد بن اسحاق روايت کونکی د هغه شاګرد سلمه دی، سلمه داسې وئيلې شي چه ابن اسحاق زما نه دا روايت يو ځل نو تعليقا بغير د سند نه بيان کولې شی، او يو ځل سندا يعنی سند سره، پس هغه سند دلته په کتاب کښې مذکور دي.

### مضمون حديث

د حديث مضمون دا دې چه مسيلمه كذاب چا چه د هغه په زمانه کښې د نبوت دعوی کولې شی، هغه د خپلو دواړو قاصدانو په ذريعه يو ليک د رسول الله ﷺ په خدمت کښې اوليږلو، د حديث راوی نعيم بن مسعود وئيلې شی چه رسول الله ﷺ هغه خط واوريدلو، چه په هغې کښې ظاهره ده هغه د خپل نبوت خبره ليکلې وه، نو په دې باندې رسول الله ﷺ خپله د هغه دواړو قاصدانو نه تپوس اوکړو چه تاسو د هغه په باره کښې څه وايئ نو هغوی جواب ورکړو چه هغوی څه وائي هغه خبره مونږ هم کوو، يعنی د هغه تصديق کوو، نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه والله که دا خبره نه وه چه قاصدان نه شی قتل کولې نو ما به ستاسو نه سټونه وهلې وې.

دا دوه قاصدان چه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغلې وو د هغوی نوم په مسند احمد کښې ابن النواحه او ابن اثال راغلي دي، د هغې الفاظ دا دی ﴿ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: جَاءَ ابْنُ النَّوَّاحَةِ وَابْنُ أُثَالٍ رَسُولاً مُسَيْلِمَةَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لَهُمَا: أَتَشْهَدَانِ أَنِّي رَسُولُ اللهِ؟ قَالاَ: نَشْهَدُ أَنَّ مُسَيْلِمَةَ رَسُولُ اللهِ ﴾ پوره روايت په بذل کښې ذکر شوې دي.

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٦٥٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٤٨٧) (صحيح)

[۲۷۶۲](¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ حَارِثَةَ بْنِ مُضَرِّبٍ، أَنَّهُ أَتَى عَبْدَ اللَّهِ، فَقَالَ: مَا بَيْنِي وَبَيْنَ أَحَدٍ مِنَ الْعَرَبِ حِنَةٌ، وَإِنِّي مَرَرْتُ بِمَسْجِدٍ لِبَنِي حَنِيفَةَ فَإِذَا هُمْ يُؤْمِنُونَ بِمُسَيْلِمَةَ، فَأَرْسَلَ إِلَيْهِمْ عَبْدُ اللَّهِ فَجِيءَ بِهِمْ فَاسْتَتَابَهُمْ غَيْرَ ابْنِ النَّوَّاحَةِ، قَالَ لَهُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "لَوْلَا أَنَّكَ رَسُولٌ لَضَرَبْتُ عُنُقَكَ فَأَنْتَ الْيَوْمَ لَسْتَ بِرَسُولٍ، فَأَمَرَ قَرَظَةَ بْنَ كَعْبٍ فَضَرَبَ عُنُقَهُ فِي السُّوقِ، ثُمَّ قَالَ: مَنْ أَرَادَ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى ابْنِ النَّوَّاحَةِ قَتِيلًا بِالسُّوقِ".

دحارثه بن مضرب نه روایت دي فرمائی چه زه عبدالله بن مسعود ته راغلم او اومې وئیل چه په عربوکښې مې دهیچاسره دشمني نشته دبني حنیفه دجومات سره تیرېدم اوهلته خلقو په مسلیمه باندې ایمان راوړو نوعبدالله ابن مسعود هغوی راوغوښتل او ورته ئې اووئیل چه تاسو دابن نواحه نه علاوه نور ټول توبه اوباسي اوابن مسعود ورته اووئیل د نبی علیه السلام نه مې اورېدلی دی چه فرمائیلې یسې وو که چرې ته قاصد نه وې نو مابه ستا څټ وهلې وو، اوته دنن نه پس قاصد نه ئې اوبیا ابن مسعود قرضه بن کعب ته حکم اوهغه ئې په بازار کښې قتل کړو اوخلقوته ئې ووئیل څوك چه ابن نواحه لیدل غواړی نوبازار ته دې لاړ شي هلته مړ پروت دې۔

## شرح حدیث

یو سړې راغلو چه عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په داسې حال کښې چه کله هغه د کوفې والی وو دا اوئیل چه اوګورئ زما او اهل عرب ترمینځه څه دشمني نشته. (یعنی کومه خبره چه زه کوم د څه دشمنئ د وجې نه بلکه صحیح خبره ده) او بیا هغه دا اوئیل چه د قبیله بنو حنفیه په مسجد کښې تیر شو نو ما اولیدل د دې مسجد والا چه د مسلیمه تصدیق ئې کولو، سیدنا عبدالله رضی الله عنه هغه سړې لیږلو راوغوښتلو، د راتلو نه پس ئې په هغوی باندې توبه ویستله نو هغوی ټولو توبه اوکړه، سوا د ابن النواحه نه، نو په دې باندې عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ابن النواحه اوفرمائیل چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه واورېدل هغه اوفرمائیل چه که ته قاصد نه وې نو ما به ستا سټ وهلې وې، د دې نه روستو ورته عبدالله بن مسعود رضی الله عنه اوفرمائیل چه ته اوس دې وخت کښې قاصد نه ئې، او د دې نه روستو ئې ښکاره قتل کړو، او دا اعلان ئې اوکړو چه که څوک ابن النواحه لره مقتول لیدل غواړی. والحدیث اخرجه النسائی.

## بَابٌ فِي أَمَانِ الْمَرْأَةِ

### که چرې کومه ښځه مشرک ته پناه ورکوی نو ورکولې شی

دا مسئله د دې نه مخکښې (یسعی بذمتهم ادناهم) د لاندې تیر شوې دی چه د زنانه امان معتبر دې. عند الائمة الاربعة... د سحنون او ابن ماجشون مالکیانو په نزد د زنانه امان د امام په اذن باندې موقوف دې.

(¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۹۱۹۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۳۸٤)، سنن الدارمي/السير ٦٠ (۲٥٤٥) (صحيح)

[۲۷۶۳](۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عِيَاضُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ مَخْرَمَةَ بْنِ سُلَيْمَانَ، عَنْ كُرَيْبٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: حَدَّثَتْنِي أُمُّ هَانِئٍ بِنْتُ أَبِي طَالِبٍ، أَنَّهَا أَجَارَتْ رَجُلًا مِنَ الْمُشْرِكِينَ يَوْمَ الْفَتْحِ فَأَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَتْ ذَلِكَ لَهُ، فَقَالَ: "قَدْ أَجَرْنَا مَنْ أَجَرْتِ وَأَمَّنَّا مَنْ أَمَّنْتِ".

دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دي فرمائی چه ام هاني بنت أبي طالب دفتح مکې په ورځ په مشرکانو کښې يو کس ته پناه ورکړې وه او نبی عليه السلام ته راغله اوقصه ئې ورته بيان کړه نبی عليه السلام اوفرمائيل يقينا مونږه پناه ورکړه چاته چه تاپناه ورکړی ده او امن ورکړو مونږه هغه چاته چه تا امن ورکړې دې- دام المومنين عائشې رضي الله عنها نه روايت دي فرمائی چه که چرې کوي ښځې به يو مشرك ته دمسلمانانونه پناه ورکوله نوجائز به ګڼرلې شوه.

ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چه ام هانی (د سيدنا علی رضي الله عنه خور) ماته بيان کړه چه ما د فتح مکه په ورځ باندې يو مشرک ته امن ورکړې وو، د دې نه روستو د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغلو او د دې په ذکر کښې هغه سره اوکړو نو هغه وائی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه او چاته چه تا أمان ورکړې دې مونږ هم هغوی ته امان ورکړې دې. (دا خبره ئې مکرر کړه) والحديث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی بنحوه، قاله المنذری.

[۲۷۶٤](۲) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: إِنْ كَانَتِ الْمَرْأَةُ لَتُجِيرُ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ فَيَجُوزُ.

دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دي فرمائی چه ام هاني بنت أبي طالب دفتح مکې په ورځ په مشرکانو کښې يو کس ته پناه ورکړې وه او نبی عليه السلام ته راغله اوقصه ئې ورته بيان کړه نبی عليه السلام اوفرمائيل يقينا مونږه پناه ورکړه چاته چه تاپناه ورکړی ده او امن ورکړو مونږه هغه چاته چه تا امن ورکړې دې- دام المومنين عائشې رضي الله عنها نه روايت دي فرمائی چه که چرې کوي ښځې به يو مشرك ته دمسلمانانونه پناه ورکوله نوجائز به ګڼرلې شوه.

## بَابٌ فِي صُلْحِ الْعَدُوِّ

### دشمن سره د صلح کولو بيان

### د ترجمة الباب شرح او د علماء کرامو مذاهب

د جهاد او قتال بابونه شروع دی، دا د باب صلح په باره کښې دی چه د دشمن سره صلح هم کيدې شی. او اصل په دې کښې د الله پاک قول دې چه مشرکان د صلح طرف ته مائل کيږی نو هغوی سره صلح اوکړئ، پس د جمهورو مسلک هم دا دې چه که امام د کفارو سره په صلح کښې مصلحت اوګنړی نو صلح کولې شی، په دې کښې د بعض صحابه کرامو او تابعينو اختلاف دې لکه ابن عباس، عطاء او مجاهد وحسن بصری وغيره، دا حضرات وائی چه دا آيت منسوخ دې د سورة توبه د آيت نه ﴿ قَاتِلُوا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ

---

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۰۰۵)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الصلاة ٤ (۳۵۷)، والجزية ۹ (۳۱۷۱)، والأدب ۹٤ (٦۱۵۸)، صحيح مسلم/المسافرين ۱٦ (۳۳٦)، موطا امام مالك/قصر الصلاة ۸ (۲۸)، مسند احمد (٦/۳٤۳، ٤۲۳)، دي الصلاة ۱۵۱ (۱٤۹٤) (صحيح)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۹۹۸) (صحيح)

الْآخِرِ﴾ الاية... دې ته آيت السيف هم وئيلې شي، او جمهور دا وائي چه په دې كښې نسخ وغيره هيڅ نشته، بلكه مطلب دا دې چه كه د مقابلې طاقت نه وي او مصالحت ممكن وي نو بيا مصالحت كيدې شي گينې اصل حكم قتال او جهاد خو دې، كه د مصالحت ضرورت وي نو هغه هم كولې شي. (ابن كثير)

[٢٧٦٥](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ ثَوْرٍ حَدَّثَهُمْ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ، قَالَ: خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَمَنَ الْحُدَيْبِيَةِ فِي بِضْعَ عَشْرَةَ مِائَةً مِنْ أَصْحَابِهِ حَتَّى إِذَا كَانُوا بِذِي الْحُلَيْفَةِ قَلَّدَ الْهَدْيَ وَأَشْعَرَهُ وَأَحْرَمَ بِالْعُمْرَةِ وَسَاقَ الْحَدِيثَ قَالَ: وَسَارَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى إِذَا كَانَ بِالثَّنِيَّةِ الَّتِي يُهْبَطُ عَلَيْهِمْ مِنْهَا بَرَكَتْ بِهِ رَاحِلَتُهُ فَقَالَ النَّاسُ: حَلْ حَلْ خَلَأَتِ الْقَصْوَاءُ مَرَّتَيْنِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا خَلَأَتْ وَمَا ذَلِكَ لَهَا بِخُلُقٍ وَلَكِنْ حَبَسَهَا حَابِسُ الْفِيلِ، ثُمَّ قَالَ: وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا يَسْأَلُونِي الْيَوْمَ خُطَّةً يُعَظِّمُونَ بِهَا حُرُمَاتِ اللَّهِ إِلَّا أَعْطَيْتُهُمْ إِيَّاهَا، ثُمَّ زَجَرَهَا فَوَثَبَتْ فَعَدَلَ عَنْهُمْ حَتَّى نَزَلَ بِأَقْصَى الْحُدَيْبِيَةِ عَلَى ثَمَدٍ قَلِيلِ الْمَاءِ، فَجَاءَهُ بُدَيْلُ بْنُ وَرْقَاءَ الْخُزَاعِيُّ، ثُمَّ أَتَاهُ يَعْنِي عُرْوَةَ بْنَ مَسْعُودٍ، فَجَعَلَ يُكَلِّمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكُلَّمَا كَلَّمَهُ أَخَذَ بِلِحْيَتِهِ وَالْمُغِيرَةُ بْنُ شُعْبَةَ قَائِمٌ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَهُ السَّيْفُ، وَعَلَيْهِ الْمِغْفَرُ، فَضَرَبَ يَدَهُ بِنَعْلِ السَّيْفِ، وَقَالَ: أَخِّرْ يَدَكَ عَنْ لِحْيَتِهِ فَرَفَعَ عُرْوَةُ رَأْسَهُ فَقَالَ: مَنْ هَذَا؟ قَالُوا: الْمُغِيرَةُ بْنُ شُعْبَةَ، فَقَالَ: أَيْ غُدَرُ أَوَلَسْتُ أَسْعَى فِي غَدْرَتِكَ، وَكَانَ الْمُغِيرَةُ صَحِبَ قَوْمًا فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَقَتَلَهُمْ وَأَخَذَ أَمْوَالَهُمْ، ثُمَّ جَاءَ فَأَسْلَمَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَمَّا الْإِسْلَامُ فَقَدْ قَبِلْنَا، وَأَمَّا الْمَالُ فَإِنَّهُ مَالُ غَدْرٍ لَا حَاجَةَ لَنَا فِيهِ فَذَكَرَ الْحَدِيثَ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اكْتُبْ هَذَا مَا قَاضَى عَلَيْهِ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ، وَقَصَّ الْخَبَرَ فَقَالَ سُهَيْلٌ، وَعَلَى: أَنَّهُ لَا يَأْتِيكَ مِنَّا رَجُلٌ وَإِنْ كَانَ عَلَى دِينِكَ إِلَّا رَدَدْتَهُ إِلَيْنَا، فَلَمَّا فَرَغَ مِنْ قَضِيَّةِ الْكِتَابِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَصْحَابِهِ: قُومُوا فَانْحَرُوا، ثُمَّ احْلِقُوا، ثُمَّ جَاءَ نِسْوَةٌ مُؤْمِنَاتٌ مُهَاجِرَاتٌ الْآيَةَ، فَنَهَاهُمُ اللَّهُ أَنْ يَرُدُّوهُنَّ وَأَمَرَهُمْ أَنْ يَرُدُّوا الصَّدَاقَ، ثُمَّ رَجَعَ إِلَى الْمَدِينَةِ فَجَاءَهُ أَبُو بَصِيرٍ رَجُلٌ مِنْ قُرَيْشٍ يَعْنِي فَأَرْسَلُوا فِي طَلَبِهِ فَدَفَعَهُ إِلَى الرَّجُلَيْنِ فَخَرَجَا بِهِ حَتَّى إِذْ بَلَغَا ذَا الْحُلَيْفَةِ نَزَلُوا يَأْكُلُونَ مِنْ تَمْرٍ لَهُمْ، فَقَالَ أَبُو بَصِيرٍ لِأَحَدِ الرَّجُلَيْنِ: وَاللَّهِ إِنِّي لَأَرَى سَيْفَكَ هَذَا يَا فُلَانُ جَيِّدًا، فَاسْتَلَّهُ الْآخَرُ فَقَالَ: أَجَلْ قَدْ جَرَّبْتُ بِهِ فَقَالَ أَبُو بَصِيرٍ: أَرِنِي أَنْظُرْ إِلَيْهِ فَأَمْكَنَهُ مِنْهُ فَضَرَبَهُ حَتَّى بَرَدَ وَفَرَّ الْآخَرُ حَتَّى أَتَى الْمَدِينَةَ فَدَخَلَ الْمَسْجِدَ يَعْدُو، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَقَدْ رَأَى هَذَا ذُعْرًا فَقَالَ: قَدْ قُتِلَ وَاللَّهِ صَاحِبِي وَإِنِّي لَمَقْتُولٌ، فَجَاءَ أَبُو بَصِيرٍ فَقَالَ: قَدْ أَوْفَى اللَّهُ ذِمَّتَكَ فَقَدْ رَدَدْتَنِي إِلَيْهِمْ، ثُمَّ نَجَّانِي اللَّهُ مِنْهُمْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَيْلَ أُمِّهِ مِسْعَرَ حَرْبٍ لَوْ كَانَ لَهُ أَحَدٌ فَلَمَّا سَمِعَ ذَلِكَ عَرَفَ أَنَّهُ سَيَرُدُّهُ إِلَيْهِمْ، فَخَرَجَ حَتَّى أَتَى سِيفَ الْبَحْرِ وَيَنْفَلِتُ أَبُو جَنْدَلٍ، فَلَحِقَ بِأَبِي بَصِيرٍ حَتَّى اجْتَمَعَتْ مِنْهُمْ عِصَابَةٌ".

دمسور بن مخرمه رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام دصلح حديبيه په كال څه دپاسه زرو كسانو سره دده د ملګرونه راووتو، هركله چه ذي الخليفة ته راورسيدل نوخپلو قربانو ته ئې اميلونه واچول اوزخمي ئې كړې اودعمرې احرامونه ئې اوتړل اوحديث ئې تراخره بيان كړو، راوي وائي چه نبي عليه السلام روان شوتردې چه هغه ډير ته اورسيدو دكوم نه چه سړې كوزيږې اومې ته داخليږې نو دنبي عليه السلام سورلۍ كيښناسته خلقو ورته حل حل اووئيل (داهغه كلمه ده چه داوښ دپاخولو دپاره استعماليږي)ليكن قصوې اونه پانځيدله دوه پيرې نبي عليه السلام اوفرمائيل قصوې خو زد اوكړو اوداددې عادت نه دې ليكن دا هغه ذات

(١): صحيح البخاري/الحج ١٠٦ (١٦٩٤)، والشروط ١٦ (٢٧٣٤)، والمغازي ٣٥ (٤١٤٨)، ن الحج ٦٢ (٢٧٧٢)، (تحفة الأشراف: ١١٢٧٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٢٣/٤، ٣٢٧، ٣٢٨) (صحيح)

کېنولي ده چاچه دابرهه هاتي (کوم چه دکعبي دورانولودپاره روان وو)ايسارکړې وو اوبيا ئي اوفرمائيل زمادي قسم وي په هغه ذات باندې دچا په لاس کښې چه زماروح دې که چرې دوی زمانه دکعبې دتعظيم په باره کښې هرقسم مطالبه کوي نوزه به ئي منم اوبيا ئي اوښه پاڅوله اوهغه پاڅيده اونبی ﷺ دمکې والا دلاري نه يوطرف ته شو په بل طرف ته ئي مخه کړه تردې چه دخديبيه په اخرکښې چرته چه په يوه کنده کښې لږ اوبه وې هلته ئي قيام اوکړو اودتولونه مخکښې ورته بديل بن ورقاء الخزاعي راغې اودهغه نه پس عروه بن مسعود سقفي راغی اودنبی ﷺ سره ئي خبرې شروع کړې دخبرو په دوران کښې به عروه باربار دنبی ﷺ دږيرې له لاس وړل اومغيره بن شعبه به دنبی ﷺ سره نزدې ولاړ وو او په لاس کښې ئي توره وه اوخود ئي په سر وو دعروه لاس ئي د تورې په موټې باندې ديکه کړو او وئې وئيل چه دنبی ﷺ دږيرې نه دې لاس لرې کړه عروه سر پورته کړو اووئې وئيل داڅوک دي خلقو ورته اووئيل مغيره بن شعبه دې عروه اووئيل اې مکاره ايا ماستاپه خيانت کښې منډې نه دی وهلې؟ او ددې خيانت قصه داسې وه چه دجاهليت په زمانه کښې مغيره دڅان سره څه کسان بوتلی وو اوبيا ئي مړه کړل اودهغوی مال ئي لوټ کړو اوبيادنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او اسلام ئي قبول کړو نبی ﷺ ورته اوفرمائيل اسلام خودې مونږ قبول کړو ليکن مونږ مال نه اخلو ځکه چه دا په خيانت ګټلې شوې دې، ددې نه پس مسعر تراخره حديث بيان کړو نبی ﷺ اوفرمائيل دامصالحت نامه اوليکئ اوداهغه مصالحت نامه وه په کومه کښې چه نبی ﷺ دافيصله کړې وه چه هغه دالله رسول دې اوبيا ئي ټوله واقعه بيان کړه سهيل ووئيل په قريشوکښې چه څوك تاته داسلام قبلولودپاره راشي نوته به ئي واپس کوي کله چه مصالحت نامه تکميل شوه نو صحابه کراموته ئي اوفرمائيل پاڅئ اوخپلې قربانياني ذبح کړئ او سرونه اوخروئ، ددې نه پس دمکې مکرمې يوڅوزنانه وو اسلام قبول کړو

او هجرت ئي اوکړو او مسلمانانوته راغلې الله تعالى ددوی دواپسئ نه منع اوفرمائيله او ددوی مهرونه کوم چه ددوی د مشرکانو خاوندانو په ذمه باندې وو هغه ئي واپس کړل بيانبی ﷺ مدينې ته راغی او په قريشوکښې يوکس چه په ابوبصير مشهور وو دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضرشو قريشو دده دواپس راوستلو د پاره دوه کسان راوليږل نبی ﷺ ابوبصير هغوی ته حواله کړو هغوی دواړو دڅان سره روان کړو چه ذوالخليفه ته اورسيدل نوهلته کيناستل اودکجورو په خوراك مشغول شول ابوبصير په دوی دواړوکښې يوکس ته اووئيل په الله مې دې قسم وي ستاداتوره خوديره ښکلې ده اوتوره ئي دهغه د ملا نه راوويستله اووئې وئيل ماپه دې توره باندې ازميښت کړې دې ماورته اووئيل ته راوړه چه زه ئي اوګورم نوهغه راته راکړه نوپه هغه خپله توره ئي اووهلو تردې چه يخ شو اودويم کس اوتختيدو او واپس مدينې ته راغې اوپه منډه جومات ته داخل شونبی ﷺ اوفرمائيل دې پريدلې دې اووئې وئيل زما ملګرې قتل کړې شو اوزه به هم قتل کړې شم نو په دې وخت کښې ابوبصير راورسيدو اووئې وئيل اې دالله رسوله تاخپل لوظ پوره کړو زه دې

مشرکانو ته حواله کړم خو ماته الله تعالی دهغه خلقونه نجات راکړو نبی ﷺ اوفرمائیل ته خو جنګ غتو که چرې دده کوم ملګرې وې ابوبصیر چه دا واوریدل نو ګمان ئې اوکړو چه شاید نبی ﷺ مې دوباره مشرکانو ته حواله کوي نودې اووتو اودسمندرغارې ته لاړو، څه وخت پس ابوجندل دسهیل څوی چاچه وصلح کړې وه مسلمان شو اودصلح نه پس نبی ﷺ ته راغې، لیکن نبی ﷺ هغه واپس کړ دکافرانو د صلح موافق نوهغه هم دابوبصیرسره یوځائې شوتردې چه هلته دسمندرسره دمسلمانانو یوجماعت (ډله) جمع شوه.

## د صلح حدیبیه والا حدیث شرح

په دې باب کښې مصنف د صلح حدیبیه د هغه اوږد روایت ټکړه ذکر کړې ده کومه چه په بخاری کښې مفصلا ذکر شوې ده په دې روایت کښې د اصحاب حدیبیه تعداد د زرو نه لږ شان زیات بیان کړې دې د هغوی په تعداد کښې اختلاف روایات دې کوم چه نزدې تیر شوې دې چه دیارلس سوه وو یا څوارلس پنځلس سوه، په دې روایت کښې دا دی چه رسول الله ﷺ ذوالحلیفه ته رسیدلو سره د هدی تقلید اوکړو او د اشعار او عمرې احرام ئې اوتړلو..... وساق الحدیث مصنف فرمائی چه راوی پوره حدیث بیان کړو (او زه به د هغې اختصار کولو سره بعض ځایونو نه اقتباس کوم) پس په روایت کښې دې چه روان وو تردې چه کله په دې ثنیه باندې راورسیدو چه د هغې نه په اهل مکه باندې انسان راکوزیږی نو هلته رسیدلو سره د هغه اوښه..... کیناستله، چه د هغې ظاهری سبب هیڅ په نظر رانغلو خلق هغه لره د اوچتولو دپاره اوئیل ﴿حل، حل﴾ او خلقو دا هم اووې ﴿خلات القصواء﴾ چه د رسول الله ﷺ دا اوښه نو نن جدا اوسیږی نو هغه اوفرمائیل چه دا خبره نه ده، ډه نه کوی او نه د هغې عادت دې ﴿ولکن حبسها حابس الفیل﴾ بلکه خبره دا ده چه دا د تلو نه هغه ذات منع کړې ده چا چه هاتهی منع کړې دې، (د ابرهه د حملې په وخت) یعنی الله پاک ﴿ثم قال : والذی نفسی بیده الخ﴾ بیا هغه لږ په اوچت اواز سره دا خبره فرمائیلې ده قسم دې په هغه ذات چه د هغه په قبضه کښې زما روح دې چه نن ورځ دا مشرکین چه د کوم څیز هم زما نه تپوس کوی، یعنی شرط لګوی په صلح کښې دننه نو زه به دا شرط منظور کړم، یعنی داسې شرط چه هغې سره د هغه غرض مسجد حرام، بیت الله شریف او د الله پاک د احکاماتو تعظیم مقصود وی..... او که څوک دا شرط لګوی چه هغې سره د مسجد حرام یا بیت الله یا د الله پاک د احکاماتو بې حرمتی کیږی نو هغه به نه شی منظور کولې (د بیت الله او مسجد حرام تعظیم خو به مشرکانو هم کولو او د هغې بې حرمتی به ئې نه کوله، خو د هغوی تعظیم بس د هغوی د مذهب مطابق وو) ﴿ثم زجرها فوثبت﴾ یعنی د رسول الله ﷺ د دې خبرې کولو نه پس چه کومه اوښې هم اوریدله) هغه ئې پاسوله نو په منډه روانه شوه، تردې چه په تلو تلو کښې د حدیبیه په لرې طرف کښې کوز شو په یوه معمولی شان چینه باندې، په شروع کښې ورته بدیل بن ورقاء خزاعی د اهل مکه نه راغلو، او بیا..... عروه بن مسعود، عروه چه کوم وخت د رسول الله ﷺ سره خبرې کولې نو بار بار ئې د هغه ګیره یعنی زنه نیوله لکه چه د چاپلوسئ په وخت کولې شی، دې وخت کښې مغیره بن شعبه ﷺ د

رسول اللهﷺ په خوا کښې د محافظ (باډی ګارډ) په طور مسلح ولاړ وو، په لاس کښې ئې توره وه او په سر باندې ئې د اوسپنې ټوپئ وه، نو کله چه به عروه د رسول اللهﷺ ږنې مبارکې ته لاس اوړلو نو مغیره به د هغه توري چه کومه د هغه په لاس کښې وه په دسته باندې یعنی د قبضې په طرف د هغه لاس ښکلو وهل او په ژبې سره به ئې هم وئیل چه د ګیرې نه لاس لرې کړه، عروه ته معلومه هم نه وه چه هغه سره دا څوک ولاړ دې، د مغیره په نعل السیف وهلو سره عروه د هغه طرف ته سر اوچت کړو ﴿ فقال ای غدر او لست اسعی فی غدرتک ﴾ (چه په وهلو سره ورته معلومه شوه چه دا وهلو والا خو ئې خپل وراره دې نو اوس ئې لړ د خبرو همت پیدا شو) او وې وئیل اې فسادی او غداره! ایا ماته ستا د غدارئ سزا نه ملاویږی؟ وړاندې راوی د دې قصې وضاحت کوی چه یو ځل مغیره په زمانه جاهلیت کښې د خپلو څو ملګرو سره روان وو، په لاره کښې مغیره خپلو ملګرو لره په دهوکې سره قتل کړل او د هغوی مال لوټ کولو سره د رسول اللهﷺ خدمت کښې حاضر شو او په اسلام کښې داخل شو نو رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه اسلام خو دې قبول دې خو دا مال د دهوکې دې د دې مونږ ته حاجت نشته ﴿ فذکر الحدیث ﴾ مصنف چونکه اختصار کولو او د دې نه روستو چه کوم اصل په حدیث کښې ذکر دې د هغې ذکر کول مقصود نه وو نو په دې وجه ئې اووې چه ﴿ وذکر الحدیث ﴾ چه راوی نور هم ډیر څه ذکر کړل، الغرض مشرکانو رسول اللهﷺ او صحابه کرام مکې ته د داخلیدو او د عمرې کولو نه منع کړل، او د صلح خبره ئې د هغه مخې ته کیخودله چه راروان کال تاسو د درې ورځې د عمرې کولو دپاره تشریف راوړلې شئ، او رسول اللهﷺ هم د صلح دپاره تیار شو، او علی رضی الله عنه ته ئې د صلح نامه د لیکلو دپاره اوفرمائیل، او وې فرمائیل چه په شروع کښې داسې اولیکئ ﴿ هذا ما قاضی علیه محمد رسول الله وقص الخبر ﴾ مصنف بیا د دې نه وړاندې ټکړه حذف کړه، الغرض کله چه صلح نامه مرتب کیده او شرطونه لیکلې کیدل نو سهیل بن عمرو پکښې دا هم لیکل اوغوښتل چه ﴿ انه لا یاتیک نا رجل وان کان علی دینک الا رددته الینا ﴾ چه د صلح په موده کښې که زمونږ یو سړې ستاسو طرف ته درشی نو اګر چه هغه ستاسو په دین باندې وی د هغه به زمونږ طرف ته واپس کول ضروری وی، په اوږد حدیث کښې دی چه په دې شرط باندې صحابه کرامو ته ډیره غصه ورغله کومه چه د مسلمانانو په حق کښې ډیره سخته وه خو د رسول اللهﷺ په وینا باندې صحابه کرام خاموش شو، بیا د فقهاء کرامو ترمینځه د دې شرط په باره کښې اختلاف دې.

چه داسې شرط که د مشرکانو د طرف نه وی نو هغه وخت ئې هم قبلول جائز دی یا نه، په ائمه کرامو کښې د امام احمد په نزد خو اوس هم جائز دی، او د امام شافعی او امام مالک په نزد د کفارو داسې شرط منظور کول په هغه صورت کښې جائز دی چه کله هغه مسلمان (چاته چه واپس کولې شی) هلته یعنی په دار الحرب کښې قبیله او خاندان وی کوم چه د هغه حفاظت کولې شی..... ګینې جائز نه دی، او د احنافو په نزد د دې شرط منظور کول اوس جائز نه دی، منسوخ دی د رسول اللهﷺ د دې روایت په وجه باندې ﴿انا بری من مسلم

بين مشركين ﴾.... فلما فرغ من قضية الكتاب... چه كله صلح نامه تياره شوه او د احصار عن العمرة تحقق اوشو نو رسول اللهﷺ خپلو اصحابو ته اوفرمائيل چه كوم هدايا تاسو سره دي هغه ذبح كړئ او حلق كولو سره حلال شئ ﴿ ثم جاء نسوة مومنات مهاجرات ﴾ په دې صلح كښې چه كوم شرطونه مقرر شوې وو په هغې كښې چونكه يو شرط دا هم وو كوم چه اوس پورته تير شو چه كه ددې ځائې نه يو سړې ستاسو طرف ته لاړ شي نو هغه به واپس كوئ اګر چه اسلام كښې داخل شوې وي نو د دې شرط متعلق راوى وائى چه د صلح نامې د مرتب كيدو نه پس څه زنانه د مسلمانيدو نه پس د مكې نه هجرت كولو سره دې طرف ته راغلې نواوس دلته دا مسئله وه چه دا زنانه دې واپس كړې شي يا دې نه كړې شي په دې موقع باندې د دې آيت كريمه نزول اوشو ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا جَاءَكُمُ الْمُؤْمِنَاتُ مُهَاجِرَاتٍ فَامْتَحِنُوهُنَّ اللَّهُ أَعْلَمُ بِإِيمَانِهِنَّ فَإِنْ عَلِمْتُمُوهُنَّ مُؤْمِنَاتٍ فَلَا تَرْجِعُوهُنَّ إِلَى الْكُفَّارِ ﴾ راوى وائى چه الله پاک په دې آيت كريمه كښې مسلمانان د دې خبرې نه منع كړل چه هغه دا مهاجرات د كفارو طرف ته واپس كړى او دغه شان ورته د دې خبرې حكم اوكړې شو چه په مهاجراتو كښې چه كومې د خاوندانو والا دى د هغوى مهرونه دې د هغوى اولنو خاوندانو ته واپس كړې شى اوس دا چه څوک به ئې واپس كوى كه دې مهاجرې دلته د يو مسلمان سره واده اوكړو نو بيا خو دې د هغه مهاجرې دا دويم خاوند هغه مهر واپس كړى، او كه واده ته خبره نه وى رسيدلې نو بيا دې د هغې د مهر په اندازه مال د بيت المال نه د هغې اولنى خاوند ته وركړى خو دا د مهر د رد كولو مسئله عام نه ده، هم د دې صلح حديبيه سره خاص ده. كما فى بيان القران.

د دې آيت كريمه د نزول په سلسله كښې د علماء كرامو دوه اقوال دى، يو دا چه دا آيت كريمه ناسخ دې د صلح په شرطونو كښې د دې خاص جزء په حق كښې ګويا په صلح كښې چه كوم شرط منظور كړې شو هغه د رد الى الكفار په باره كښې عام وو د رجال او نساء دواړو په حق كښې، خو دې آيت كريمه دا شرط د زنانو په حق كښې منسوخ كړو، او د سړو په حق كښې ئې باقى اوساتلو، پس مهاجر سړو لره كوم چه د صلح نه پس د مكې نه مدينې منورې ته راغلل هغوى ته رسول اللهﷺ د واپس تلو حكم اوكړو لكه چه وړاندې خپله په روايت كښې راروان دى او د بعض علماء كرامو رائې دا ده چه دا آيت كريمه ناسخ نه دې بلكه دا مفسر دې او هغه د راتلو سره دا وضاحت كړې دې چه زنانه په دې شرط كښې داخلې نه دى لهذا هغوى دې واپس نه كړې شى.

دلته دوه څيزونه د تنبيه قابل دى، د يو تعلق زمونږ د كتاب د موجوده نسخې سره دې هغه دا چه زمونږ په دې نسخه كښې داسې دى چه ﴿ ثم جاء نسوة مومنات مهاجرات الآية ﴾ هغه دا چه دا جمله د ﴿ ثم ﴾ نه تر د مهاجرات پورې يا خو د راوى الفاظ دى او د هغه قول دې نو په دې باندې د الاية ليكلو مطلب څه دې؟ الاية خو هلته ليكلې شى چرته چه آيت كريمه شروع كولو سره د باقى اختصار اوكړې شى دلته خو لا د آيت لفظ شروع شوې هم نه دې، لهذا داسې به وئيلې شى چه دلته د يو راوى نه يا كاتب نه په عبارت كښې سقوط

شوې دې، لهذا پوره عبارت داسې وو ﴿ ثُمَّ جَاءَ نِسْوَةٌ مُؤْمِنَاتٌ مُهَاجِرَات فانزال الله يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا جَاءَكُمُ الْمُؤْمِنَاتُ مُهَاجِرَاتٍ ﴾ الاية په اصل کښې د مهاجرات لفظ دلته په عبارت کښې دوه ځايه راغلې وو يو د راوی په کلام کښې او بل په آيت کښې نو د کاتب نظر د اول ځائې نه دويم ځائې ته منتقل شو او هغه په اول ځائې کښې الاية اوليکلو.

بل ځيز قابل تنبيه دې چه په دې آيت کريمه کښې وړاندې دا دی ﴿ ثم رجع الى المدينة ﴾ لهذا د دې روايت د سياق تقاضه دا ده چه د دې مهاجرو زنانو راتلل د رسول اللهﷺ مدينې منورې ته د رسيدو نه مخکښې په حديبيه کښې يا د مدينې په لاره کښې شوې وو، حال دا چه په واقع کښې داسې نه ده، بلکه د دې نساء مهاجراتو امد د رسول اللهﷺ مدينې منورې ته د رسيدو نه څو ورځې پس شوې وو. كذا في البذل عن الحافظ، والله تعالى اعلم

﴿ فَجَاءَهُ أَبُو بَصِيرٍ رَجُلٌ مِنْ قُرَيْشٍ – يَعْنِي فَأَرْسَلُوا فِي طَلَبِهِ – فَدَفَعَهُ إِلَى الرَّجُلَيْنِ ﴾ يعنى د صلح حديبيه نه څو ورځې پس ابو بصيرؓ هجرت کولو سره مدينې منورې ته راغلو، د هغه د راتلو سره د کفارو د طرف نه دوه کسان د هغه د واپس بوتلو دپاره راغلل د هغه دوه کسانو نومونه په دې روايت کښې خو نه دی ذکر شوی، په بذل کښې دی چه د يو نوم خنيس بن جابر دې او بل سړې د هغه مولى يعنى ازاد کړې شوې غلام وو چه د هغه نوم کوثر وو، رسول اللهﷺ ابو بصير دې دواړو ته حواله کړو (هم دا شرط اصل کښې ډير سخت او په مسلمانانو باندې ګران وو چه هغې سره هغوی ډير غصه وو، خو رسول اللهﷺ کوم چه د خپل امت په حق کښې د مور او پلار نه هم زيات کريم او مهربانه دې د اسلام او مسلمانانو د عمومي او اجتماعي مصلحتونو ته کتلو سره دا شرط منظور کړې وو) دې دواړو سړو لا ابوبصيرؓ د مدينې منورې نه بهر ذو الحليفه ته رسولې وو، چه د څه خوراک څښاک په نيت سره هلته کوز شو، ابو بصيرؓ د خنيس په لاس کښې چه کومه توره وه د هغې په ليدو باندې اووې چه والله ستا دا توره خو ډيره غوره ده (کم عقل خلق په خپل تعريف باندې خوشحاليږی) پس هغه په دې اوريدلو باندې فورا هغه د تيکی نه راويستله او وې وئيل چه زما دا توره ازمېښتلې شوې ده، ابوبصير ورته اووې چه ته ئې ماته د کتلو دپاره راکولې شې ﴿ فامكنه منه ﴾ پس خنيس ابوبصير ته په هغه توره باندې قدرت ورکړو، ابوبصير دا موقع غنيمت اوګڼړله او هغه توره ئې هم په هغه باندې استعمال کړه تردې چه هغه مړ شو، په دې صورت حال کتلو سره د خنيس ملګرې يعنى کوثر د مدينې طرف ته اوتختيدو او په منډه منډه مسجد نبوی ته اورسيدو، رسول اللهﷺ هغه لره لرې په راتلو سره اوفرمائيل ﴿ لَقَدْ رَأَى هَذَا ذُعْرًا ﴾ چه دې سړی څه ويره ليدلې ده، هغه راغلو او رسول اللهﷺ ته ئې بغير د تمهيد تړلو نه په ويره ويره اووې چه زما ملګرې قتل کړې شو او زه هم قتل کيدونکې يم، په دې کښې ابو بصير هم هلته راغلو، هغه رسول اللهﷺ ته عرض اوکړو چه الله پاک ستاسو لوظ خو پوره کړو او اوس تاسو ګويا برى الذمه شوئ ما لره د هغوی طرف ته په واپس کولو باندې، بيا الله پاک ماته په خپل فضل سره د مشرکانو نه خلاصې راکړو (د هغه مقصد دا وو چه رسول اللهﷺ ماته اوس په مدينه کښې د پاتې کيدو اجازت راکړی خو

چونکه رسول الله ﷺ دا د صلح خلاف گڼرله او د هغه دا رائې نه وه هم په دې وجه ئې د هغه په خبره اوریدو اوفرمائیل ﴿وَيْلَ أُمِّهِ مِسْعَرَ حَرْبٍ لَوْ كَانَ لَهُ أَحَدٌ﴾ (مسعر بضم الميم اسم فاعل هم کیدې شی او بکسر المیم اسم اله هم کیدې شی) رسول الله ﷺ د ابو بصیر رضی الله عنه په باره کښې فرمائی چه د هغه دا خبره اور گرمونکې ده، یعنی که ابو بصیر واپس نه کړې شو نو مشرکانو کښې به اشتعال پیدا شی، دا خبره خو د هغه په صلح او مصلحت باندې بناء وه، او بله خبره د ابوبصیر سره د همدردئ په طور ئې دا جمله ارشاد اوفرمائیله: ﴿لو كان له احد﴾ ارمان چه د ابو بصیر رضی الله عنه دې وخت کښې څوک ناصر او مددګار وې، راوی وائی چه کله ابوبصیر د رسول الله ﷺ دا جمله واوریده نو هغه پوهه شو چه رسول الله ﷺ به ما واپس کوی، پس ابو بصیر رضی الله عنه د مدینې نه راوتلو او د راوتلو نه پس د سمندر په ساحل باندې اوسیدلو ﴿وينفلت ابو جندل﴾ د ابو بصیر نه پس ابو جندل رضی الله عنه یو صحابی اسلام قبلولو سره د اویا شهسوارانو سره د مکې نه دې طرف ته راغلل او مدینې ته د راتلو په ځائې د ابو بصیر سره دیره شو، هم دغه شان وخت په وخت خلقو د مکې نه اسلام قبلولو او هجرت کولو سره دلته د سمندر په غاړه باندې دیره کیدل او راوی وائی چه د هغوی یو برابر جماعت جوړ شو، په بذل کښې د سهیلی نه نقل دی چه هغه لیکلې دی چه د دې خلقو تعداد درې سوو ته اورسیدو، او دا خلق مدینې ته په دې وجه نه راتلل چه که هلته لاړ شو نو د صلح مطابق به واپس کولې شو دا ساحلی علاقه چرته چه دا خلق پاتې کیدل د کفار قریش د قافلو د تیریدو لاره وه، چه کله هغوی د مکې نه شام او د شام نه مکې ته د تجارت دپاره تلل، دې خلقو سره خو ظاهره ده چه د خوراک څکاک دپاره هیڅ هم نه وو، او د مسلمانانو دپاره د کافر حربی مال حلال دې په دې وجه به هغوی دا قافلې لوټ کولې، چه کله دا صورت حال پیدا شو نو قریش مکه رسول الله ﷺ ته د الله پاک او خپلولئ واسطه ورکړه چه تاسو دا هلک خپل طرف ته راوبلئ او د بیا دپاره چه څوک هم د دې ځائې نه مدینې ته ځی هغه به په امن وامان سره هلته اوسیږی هغه دې واپس نه کړې شی، پس رسول الله ﷺ ابو بصیر رضی الله عنه پسې سړې اولیږلو چه تاسو ټول دلته راشئ، پس هغوی ټول مدینې منورې ته راغلل، په یو روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ ابوبصیر رضی الله عنه ته خپل خط اولیږلو، قاصد چه کله هغه ته خپل خط یوړلو نو هغه په خپل اخری وخت کښې وو، لیکن چه کله هغه وفات کیدو نو د رسول الله ﷺ خط د هغه په لاس کښې وو، ابو جندل رضی الله عنه ابو بصیر رضی الله عنه لره هم هلته دفن کړو او د هغه قبر سره نزدې ئې یو مسجد هم جوړ کړو. (بذل)

دا حدیث طویل مفصلا په بخاری کښې په کتاب الشروط، باب الشروط فی الجهاد کښې ذکر شوې دې. والحديث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی مختصرا ومطولا، قاله المنذری.

[۲۷٦٦]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ إِسْحَاقَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ، وَمَرْوَانَ بْنِ الْحَكَمِ، أنهم اصطلحوا على وضع الحرب عشر سنين، يأمن فيهن الناس وعلى أن بيننا عيبة مكفوفة وأنه لا إسلال ولا إغلال.

(): تفرد به أبو داود، وانظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۲۵۳) (حسن)

دمسور بن مخرمه رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه قریشو په دې خبره مصالحت کړې ووچه لس کاله به جنګ نه وی خلق به په دې موده کښې په امن وي اودټولوزړونه به يوبل ته پاك وي اونه به پټه غلاوي اونه ښکاره.

يعنی په حدیبیه کښې چه کومه صلح شوې وه هغه د لسو کالو دپاره وه چه په راتلونکو لسو کالو دپاره به ټول خلق مسلمانان او مشرکان په امن او سکون سره اوسيږي، او داسې شوې وه چه خلق به د دې صلح په زمانه کښې د کپړو د يو محفوظ پنډوکی په شان اوسيږي، شارحين وائی چه دا کنايه ده د قلوب صافيه نه، او د دويمې جملې په مطلب کښې يو قول دې ﴿ اسلال ﴾ نه مراد ښکاره حمله کول (الغارة الشهيرة) او د ﴿ اغلال ﴾ معنی السرقة الخفيفة، خفيه طورباندې غلا اويو تفسير د اسلال سرقه ده، او د اغلال په خيانت سره کړې شوې دي او يو تفسير د اسلال، سل السيوف او د اغلال لبس الدروع سره کړې شوې دي.

[۲۷۶۷]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُاللهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ، عَنْ حَسَّانَ بْنِ عَطِيَّةَ، قَالَ: مَالَ مَكْحُولٌ، وَابْنُ أَبِي زَكَرِيَّاءَ، إِلَى خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ وَمِلْتُ مَعَهُمَا، فَحَدَّثَنَا عَنْ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، قَالَ: قَالَ جُبَيْرٌ انْطَلِقْ بِنَا إِلَى ذِي مِخْبَرٍ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَتَيْنَاهُ فَسَأَلَهُ جُبَيْرٌ عَنِ الْهُدْنَةِ فَقَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "سَتُصَالِحُونَ الرُّومَ صُلْحًا آمِنًا وَتَغْزُونَ أَنْتُمْ وَهُمْ عَدُوًّا مِنْ وَرَائِكُمْ".

د حسان بن عطيه نه روايت دې فرمائی چه مكحول او ابن ابی زکريا دخالدبن معدان طرف ته روان شول اوزه هم ورسره روان شوم نوموږته ئې دجبير بن نفير نه حديث بيان کړوچه جبير ووئيل: ذی مخبر صحابی ته مې بوځئ نوچه موږ ورغلو، نوجبير ترې تپوس وکړو دصلح متعلق هغه ووئيل چه دنبی عليه السلام نه مې اوريدلی دی چه فرمائيلي ئې وو، زرده چه تاسوبه درومیانوسره داسې صلح وکړئ چه امن به وي او انديښني به ختي شي اوبيابه تاسو اوهغوی يوځائې شئ اودبل دشمن سره به جنګ وکړئ.

### شرح الحديث

حسان بن عطيه روايت کوی چه يو ځل مکحول شامی او ابن ابی زکريا، د خالد بن معدان خواله روان وو نو زه هم د هغه سره شوم، چه کله هلته اورسيدو نو هغه موږ ته د جبير دا واقعه رانقل کړه چه يو ځل جبير موږ ته اووې (يعنی خالد) چه موږ سره ذی مخبر صحابی ته لاړ شئ، پس موږ هغه ته لاړو، د رسيدو نه پس جبير د هغه صحابی ذی مخبر نه تپوس اوکړو د هدنة په باره کښې (په ظاهره کښې جبير بن نفير ته به د چا نه خبر ملاؤ شوې وی چه دا ذی مخبر صحابی د هدنة په باره کښې يو مرفوع حديث بيانوی د دې دپاره د هغه خواته د براه راست اوريدلو دپاره لاړو) په دې باندې ذی مخبر رضی الله عنه اوفرمائيل چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوريدلي دی هغه اوفرمائيل ﴿ سَتُصَالِحُونَ الرُّومَ صُلْحًا آمِنًا وَتَغْزُونَ أَنْتُمْ وَهُمْ عَدُوًّا مِنْ وَرَائِكُمْ ﴾ رسول الله صلی الله علیه وسلم صحابه کرامو ته خطاب کولو سره اوفرمائيل چه تاسو يعنی

[1]: سنن ابن ماجه/الفتن ۳۵ (۴۰۸۹)، (تحفة الأشراف: ۳۵۴۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۹۱/۴، ۴۰۹/۵) ويأتي عند المؤلف في الملاحم برقم (۴۲۹۳) (صحيح)

مسلمانان! به په اخر زمانه کښې د روميانو سره صلح کوئ ډير د امن والا صلح، بيا به تاسو هغوی سره يوځائې کيدو باندې د دشمن سره جنګ کوئ.

دا حديث بعينه هم په دې سند او متن سره په دې باندې زيادت سره په کتاب الملاحم کښې راروان دې، چه د هغې په اخر کښې دا هم دی چه کله مسلمانان او نصاری فتح کولو سره لوټ مار کوی نو په واپسئ کښې به يو نصرانی صليب لره اوچتولو سره وائی چه ﴿ غلب الصليب ﴾ په دې باندې به مسلمانانو ته غصه راشی او زبردست جنګ به شروع شی چه د هغې نوم ﴿ الملحمة الکبری ﴾ دې.

مصنف دا حديث په باب فی صلح العدو کښې جواز صلح مع العدو باندې د دليل په حيثيت سره راوړې دې، په دې باندې طالب علمانه نقد دا کيدې شی چه دا حديث د فتن د رواياتو نه دې، او د اخبار ما سيقع د قبيل نه دې، ګويا د رسول الله ﷺ د طرف نه يوه پيشن ګوئی شوې ده خو داسې واقعات کوم چه په احاديثو کښې ذکر شوې دی د کومو د وقوع چه رسول الله ﷺ خبر ورکړې دې، هغه د جواز يا عدم جواز دليل نه شی جوړولې کيدې، والله تعالی اعلم. د دې جواب دا کيدې شی چه دا خو صحيح ده چه اخبار د عما سيقع والا رواياتو نه په جواز باندې استدلال صحيح نه دی، خو دلته د دې روايت نه استدلال داسې صحيح دې چه رسول الله ﷺ د دې خبرې خبر ورکوی چه په اخر زمانه کښې څه وخت دا خبره راپيښه شی چه د هغه وخت ټول مسلمانان به د نصاری سره مصالحت کوی او په بل حديث کښې ارشاد دې چه د دې امت اتفاق په ناحقه خبره باندې نه کيږی، په دې حيثيت سره دا روايت په جواز باندې دال کيدې شی هسې د نفس مصالحت جواز خو په آيت کريمه او نورو احاديثو نه ثابت دې. والحديث اخرجه ابن ماجة، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الْعَدُوِّ يُؤْتَى عَلَى غِرَّةٍ وَيُتَشَبَّهُ بِهِمْ

### د دشمن سره د چل کولو نه پس د جنګ کولو بيان

يعنی دشمن لره په شک کښې اچولو سره هغوی لره د غفلت په حالت کښې ليدلو سره ناڅاپه حمله کول. مقصود د دې جواز بيانول دی، ځکه چه دا د عذر د قبيلې نه نه دې بلکه الحرب خدعة د قبيل نه دې.

[۲۷۶۸]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ لِكَعْبِ بْنِ الْأَشْرَفِ فَإِنَّهُ قَدْ آذَى اللَّهَ وَرَسُولَهُ، فَقَامَ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ فَقَالَ: أَنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَتُحِبُّ أَنْ أَقْتُلَهُ قَالَ: نَعَمْ قَالَ: فَأْذَنْ لِي أَنْ أَقُولَ شَيْئًا قَالَ: نَعَمْ قُلْ، فَأَتَاهُ فَقَالَ: إِنَّ هَذَا الرَّجُلَ قَدْ سَأَلَنَا الصَّدَقَةَ وَقَدْ عَنَّانَا قَالَ: وَأَيْضًا لَتَمَلُّنَّهُ قَالَ: اتَّبَعْنَاهُ فَنَحْنُ نَكْرَهُ أَنْ نَدَعَهُ حَتَّى نَنْظُرَ إِلَى أَيِّ شَيْءٍ يَصِيرُ أَمْرُهُ، وَقَدْ أَرَدْنَا أَنْ تُسْلِفَنَا وَسْقًا أَوْ وَسْقَيْنِ قَالَ كَعْبٌ: أَيَّ شَيْءٍ تَرْهَنُونِي؟ قَالَ: وَمَا تُرِيدُ مِنَّا؟ قَالَ: نِسَاءَكُمْ، قَالُوا: سُبْحَانَ اللَّهِ أَنْتَ أَجْمَلُ الْعَرَبِ! نَرْهَنُكَ نِسَاءَنَا فَيَكُونُ ذَلِكَ عَارًا عَلَيْنَا قَالَ: فَتَرْهَنُونِي أَوْلَادَكُمْ، قَالُوا: سُبْحَانَ اللَّهِ يُسَبُّ ابْنُ أَحَدِنَا فَيُقَالُ رُهِنْتَ بِوَسْقٍ أَوْ وَسْقَيْنِ قَالُوا: نَرْهَنُكَ اللَّأْمَةَ يُرِيدُ السِّلَاحَ قَالَ: نَعَمْ فَلَمَّا أَتَاهُ نَادَاهُ، فَخَرَجَ إِلَيْهِ وَهُوَ

[1]: صحيح البخاري/الرهن ۳ (۲۵۱۰)، والجهاد ۱۵۸ (۳۰۳۱)، والمغازي ۱۵ (۴۰۳۷)، صحيح مسلم/الجهاد ۴۲ (۱۸۰۱)، (تحفة الأشراف: ۲۵۲۴)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبري/(۸۶۴۱) (صحيح)

مُتَطَيِّبٌ يَنْضَحُ رَأْسُهُ، فَلَمَّا أَنْ جَلَسَ إِلَيْهِ وَقَدْ كَانَ جَاءَ مَعَهُ بِنَفَرٍ ثَلَاثَةٍ أَوْ أَرْبَعَةٍ فَذَكَرُوا لَهُ، قَالَ: عِنْدِي فُلَانَةُ وَهِيَ أَعْطَرُ نِسَاءِ النَّاسِ قَالَ: تَأْذَنُ لِي فَأَشُمَّ قَالَ: نَعَمْ فَأَدْخَلَ يَدَهُ فِي رَأْسِهِ فَشَمَّهُ قَالَ: أَعُودُ؟ قَالَ: نَعَمْ، فَأَدْخَلَ يَدَهُ فِي رَأْسِهِ فَلَمَّا اسْتَمْكَنَ مِنْهُ قَالَ: دُونَكُمْ فَضَرَبُوهُ حَتَّى قَتَلُوهُ".

دجابر رضی الله عنه نه روایت دي فرمائي چه نبي علیه السلام اوفرمائیل چه څوك به كعب بن اشرف مړ كړي يقيناهغه الله او رسول ته تكليف رسولي دي؟ نومحمد بن مسلمه پاڅيدو او اوئي وئيل چه زه اي دالله رسوله، اياته غواړې چه قتل ئي كړم؟نبي علیه السلام اوفرمائيل هوهغه اووئيل چه اجازت راته وكړه چه څه چل جوړ كړم نو ورته ورغى او ورته ئي اووئيل چه دا سړي يعنى محمدزمونږنه صدقات غواړي او مونږد مشكلاتو سره مخامخ كوي هغه ووئيل تاسوبه نورهم پريشانه شي، محمد بن مسلمه ووئيل مونږئي تابع داري كړي ده اوس ي هومره نشو پرېښودلي ترڅوچه مونږته دده عاقبت نه وى معلوم شوي، مونږدا اراده كړې وه چه ته مونږته يو وسق يادوه وسقه خوراك قرض را كړې، كعب ووئيل څه شي به راسره ګانړه كړئ؟ محمد بن مسلمه ورته ووئيل ستاڅه خوښ دي؟ كعب ووئيل خپلې ښځې راسره ګانړه كړئ دوى ورته ووئيل سبحان الله ته خوپه عربوكښې ډير ښكلي سړي ئي اوداسې كچه خبره كوي كه چرې مونږ درسره ښځې ګانړه كړونودا خوبه زمونږ دپاره پيغور وي اوشرم وي كعب ووئيل نوبيا راسره خپل اولاد ګانړه كړئ محمد بن مسلمه ووئيل چه اولاد موكله لوي شي نوخلق به ورته پيغور وركوي چه ته خوهغه سړي ئي چه په يووسق باندې ګانړه شوي وې مسلمانانو ورته ووئيل چه خپله اسلحه به درسره ګانړه كړوكعب ووئيل تيك ده، دوى ورغلل او آوازئي ورته وكړوكعب چه راغې نوخوشبوئي لګولې وه اودسر نه ئي اوبه څڅيدلې نومحمد بن مسلمه ورسره كيناستو او درې يا څلور كسان ئي هم دځان سره بوتلي وو، دوى ورته دده د خوشبو او اوبوڅڅيدوخبره ذكر كړه نوهغه ووئيل چه زماسره فلانۍ ښځه ده اوهغه په ټولوښځوكښې ډيره خوشبوداره ګرځي محمدبن مسلمه ورته ووئيل كه اجازت وى نوسربه دي بوئى كړم؟هغه ووئيل تيك ده نومحمد بن مسلمه دهغه په سرلاس كيښودو، بيائي دوباره داسې وكړل چه كله ئي قابو كړونو خپلوملګروته ئي اشاره وكړه چه څه ته انتظاركوئ چنانچه دوى كعب بن اشرف ووهلو تردې چه مړشو.

## د كعب بن اشرف يهودى د قتل قصه

په دې باب كښې مصنف د كعب بن اشرف د قتل واقعه بيان كړې ده، كعب بن اشرف يو مشهور يهودي وو او شاعر قسم سړې وو، خو لوړ دنګ او د وجود نه برابر، ډير ضررى قسم انسان وو، د رسول الله ﷺ بدى به ئي بيانوله، او د رسول الله ﷺ خلاف به ئي كفار قريش راپاسول، خپله په دې حديث رسول الله ﷺ فرمائي: ﴿ فَإِنَّهُ قَدْ آذَى اللَّهَ وَرَسُولَهُ ﴾ بهر حال د مضمون روايت داسې دې چه يوه ورځ رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه په تاسو كښې څوك سړې شته چه كعب بن اشرف قتل كړى؟ او داسې اراده اوكړى؟ په دې باندې محمد بن مسلمه رضی الله عنه اودريدو او عرض ئي اوكړو يا رسول الله ﷺ زه دا كار كولې شم، ايا تاسو هم دا غواړئ چه هغه دې قتل كړې شى؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل او! هغه عرض اوكړو چه

که داسې وی نو بیا دې ماته د څه دروغو رشتیا وئیلو اجازت راکړې شی (یعنی هغه کافر لره په دهوکه کښې د اچولو دپاره) رسول الله ﷺ اوفرمائیل او اجازت دې؛ د دې اجازت ملاویدو نه پس هغه فورا د دې کار د کولو دپاره اودریدو، او کعب بن اشرف ته لاړو، (هغه سره د دې خائې د خبرې کولو دپاره) پس هغه ته لاړو او وې وئیل ﴿ إِنَّ هَذَا الرَّجُلَ قَدْ سَأَلَنَا الصَّدَقَةَ وَقَدْ عَنَّانَا ﴾ چه ګوره روره دا سړې زمونږ نه (د رسول الله ﷺ طرف ته اشاره ده) نه زکاتونه غواړی او مونږ ئې په یو مشقت کښې اچولې یو، د ﴿ عنا ﴾ واحد مذکر غائب صیغه ده او نا ضمیر منصوب دې دا د عنا نه اخستلې شوې دې په معنی د مشقت، هغه ئې په اوریدلو سره اووې چه اوس خو به تاسو لا د دې نه زیات ستړی کیږئ (لا تاسو لیدلې څه دی؟) په دې باندې ورته هغه اووې چه روره داسې ده چه اوس خو مونږ په غلطئ سره د هغه تابعداری شروع کړې ده او مونږ دا مناسب نه ګڼړو چه هغه یکدم پریږدو ترڅو پورې مو چه دا نه وی لیدلې چه د دې سړی انجام به څه وی (ترقی کوی یا زوال ته رسیږی) د دې نه روستو ورته محمد بن مسلمه اووې چه دې وخت کښې خو زه تاته د یو خاص غرض دپاره راغلې یم چه ته مونږ ته یو یا دوه وسقه غله د قرض په طور راکړه (د ضرورت په وخت خپل خلق په کار راځی او هم د هغوی طرف ته رجوع کولې شی) په دې باندې ورته هغه اووې چه څه به را سره ګانړه کوې، هغه ورته اووې چه ته څه غواړې، هغه ورته اووې چه خپلې زنانه راسره ګانړه کړئ، هغه ورته اووې سبحان الله! تا خو ډیر عجیبه خبره اوکړه ګوره ته خو ډیر ښکلې او خائسته سړې ئې، بیا مونږ خپلې زنانه تا سره څنګه ګانړه کړو، دا څیز خو به زمونږ دپاره د شرم باعث شی، هغه ورته اووې ښه خپل اولاد راسره ګانړه کړه، هغه ورته اوفرمائیل چه زمونږ د اولاد په حق کښې به دا څیز عیب وی خلق به هغوی سره د جهګړې په وخت هغوی ته پیغور ورکوی چه ته هم هغه سړې ئې چه د یو وسق غلې په عوض کښې ګانړې کړې شوې وې، بیا ورته محمد بن مسلمه اوفرمائیل چه مونږ به تا سره خپله وسله ګانړه کیدو، هغه ورته اووې صحیح ده، دلته په روایت کښې اختصار دې، په ظاهره کښې دلته داسې دی چه خپل مینځ کښې ئې دا خبره اوشوه چه مونږ به د دې وسلې سره تاته د شپې په وخت راځو، پس د شپې په معین وخت کښې محمد بن مسلمه د هغه کور ته راغلو او هغه ته ئې اواز اوکړو، هغه د پورته نه راکوز شو، په بعض روایتونو کښې دی چه د هغه ښځې هغه وخت هغه ته اووې چه ماته خو د دې سړی د اواز نه د مرګ بوئی راځی، خو هغه ئې تردید اوکړو، دې وخت کښې دا کعب بن اشرف په قسم قسم خوشبویانو سره معطر وو او د خپلې ښځې د خوانه راغلې وو، چه کله لاندې راکوز شو او د هغې په خوا کښې کیناستلو نو چونکه محمد بن مسلمه د ځان سره درې څلور ملګری هم راوستلې وو نو هغوی ورته د دې خوشبوئ تذکره اوکړه نو هغه اووې

﴿عندی فلانة وهي اعطر نساء الناس ﴾ (چه زما نه به خوشبویانې ولې نه ځی) او زما په کور کښې داسې زنانه ده چه د هغې د ټولو زنانو نه زیات عطر خوښ دی، نو محمد بن مسلمه رضی الله عنه ورته اوفرمائیل اجازت دې؟ ستاسو د سر ویښته بوئی کولې شم؟ هغه ورته

اووې او اجازت دې، هغه د هغه د سر په ويښتو کښې لاس داخل کړل او د هغه سر ئې ښه بوئی کړو، بيو ځل د بوئی کولو نه پس ئې دوباره اووې چه د بوئی کولو اجازت دې؟ هغه اووې او ولې نه! دې ځل بيا هغه د هغه د سر په ويښتو کښې لاسونه داخل کړل او دې ځل ئې هغه ويښته مضبوط په خپلو لاسونو کښې اونيول او خپلو ملګرو ته ئې اشاره اوکړه چه ﴿ دونکم ﴾ واخلئ اونيسئ دې! پس هغوی د هغه سټ پرې کړو.

دا واقعه د ربيع الاول ۳ هجری ده، د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت بالکل واضح دې، دا روايت د څه زيادت سره په صحيح بخاری کښې په کتاب المغازی کښې په باب قتل كعب بن الاشرف کښې ذکر شوې دې، د بخاری په روايت کښې دا هم دی چه د محمد بن مسلمه سره د هغه خواته راتلونکو کښې د كعب بن اشرف رضاعی رور ابو نائله هم وو، چه کله كعب لاندې راکوزيدو نو د هغه ښځې اووې ﴿ أَيْنَ تَخْرُجُ هَذِهِ السَّاعَةَ فَقَالَ إِنَّمَا هُوَ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ وَأَخِي أَبُو نَائِلَةَ – وَقَالَ غَيْرُ عَمْرٍو قَالَتْ أَسْمَعُ صَوْتًا كَأَنَّهُ يَقْطُرُ مِنْهُ الدَّمُ ﴾ په فتح الباری کښې د بعض رواياتو نه نقل کړې شوې دی چه کله هغه لاندې کوزيدلو ﴿ فتعلقت به امرأته وقالت مكانك فوالله أني لأرى حمرة الدم مع الصوت ﴾

دا د كعب د قتل واقعه په کتاب الخراج کښې په باب كيف كان اخراج اليهود من المدينة کښې هم راروان دې، او د هغه طرف ته رجوع به هم کولې شی او په دې کښې داسې دی ﴿امر النبی صلی الله عليه وسلم سعد بن معاذ ان يبعث رهطا يقتلونه فبعث محمد بن مسلمة ﴾ په دې دواړو روايتونو کښې چه کوم اختلاف دې د هغې توجيه په روستو راتلونکی باب کښې حضرت سهارنپوری په بذل المجهود کښې ذکر فرمائيلې دې چه د هغې خلاصه دا ده چه په شروع کښې خو هم دغه شان شوې وه کومه چه دلته اولنی ځائې کښې مذکور دې بيا رسول الله ﷺ سعد بن معاذ رضی الله عنه ته هم اوفرمائيل چه ته هم څو کسان د دې کار دپاره تيار کړئ، او محمد بن مسلمه ته به ئې هم فرمائيلې وی چه په دې کښې زياته تندی مه کوه او د سعد بن معاذ په مشورې سره کار کوه، پس سيدنا سعد رضی الله عنه د محمد بن مسلمه سره څو کسان اوليږل.

والحديث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، قاله المنذری.

[۲۷٦۹]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حُزَابَةَ، حَدَّثَنَا إِسْحَاق يَعْنِي ابْنَ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا أَسْبَاطٌ الْهَمْدَانِيُّ، عَنْ السُّدِّيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "الْإِيمَانُ قَيَّدَ الْفَتْكَ لَا يَفْتِكُ مُؤْمِنٌ".

ابوهريره رضی الله عنه د نبی عليه السلام نه روايت نقل کوې چه فرمائيل ئې وو، ايمان د فتك خاتمه کړې ده څوک چه مومن وې فتك نه کوې (فتك په غفلت کښې څوک وژلو ته وئيلې شي).

د ﴿ فتلك ﴾ معنی ﴿ القتل غدرا فی حال غفلة العدو ﴾ يعنی ناځاپه د يو دشمن په خلاف معاهده حمله کول. دا د مومن شان نه دې، او نه شرعا جائز دې، باب خو روان دې د قتل الكافر غرة او د هغې د ترغيب او دا حديث په ظاهره کښې د ترجمة الباب سره مطابقت نه لرې، خو د مصنف دا په دې باب کښې راوړل د ترجمة الباب د ثابتولو دپاره نه دی، بلکه

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۳٦۱۵)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الحج ۷٦ (۳۲۷۸) (صحيح)

تنبيها دى، د دې خبرې د پوهې دپاره چه قتل غرة بيل خيز دې، او ﴿ فتك ﴾ يعنى قتل غدرا دا بل خيز دې، اول جائز بلكه مندوب دې، او ثانى ممنوع، په تراجم بخارى كښې هم يو خيز راځى، يعنى ذكر الاضداد، هم دغه شان دلته هم ده.

## بَابٌ فِي التَّكْبِيرِ عَلَى كُلِّ شَرَفٍ فِي الْمَسِيرِ

### په هرلوړ ځائې باندې د ختلو په وخت كښې د تكبيرونيلو بيان

[۲۷۷۰] (¹) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا قَفَلَ مِنْ غَزْوٍ أَوْ حَجٍّ أَوْ عُمْرَةٍ يُكَبِّرُ عَلَى كُلِّ شَرَفٍ مِنَ الْأَرْضِ ثَلَاثَ تَكْبِيرَاتٍ وَيَقُولُ: "لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، آيِبُونَ تَائِبُونَ عَابِدُونَ سَاجِدُونَ لِرَبِّنَا حَامِدُونَ، صَدَقَ اللَّهُ وَعْدَهُ، وَنَصَرَ عَبْدَهُ، وَهَزَمَ الْأَحْزَابَ وَحْدَهُ".

دعبدالله بن عمر رضی الله عنه نه روايت دې فرمائى چه نبى علیه السلام كله دجهاد نه ياد حج نه يا د عمرې نه واپس راتلو نو په هرلوړ ځائې باندې دختلو په وخت به ئې درى ځله تكبير وئيلو اوداذكرشوي دعابه ئې هم وئيله يعنى دالله نه علاوه بل څوك حقدار دبندګئ نشته او دهغه څوك شريك نشته هم دهغه بادشاهي ده اود تعريف مستحق هم هغه د هغه په هر څه باندې قادر دې اومونږ دهغه طرف ته واپس تلونكى يو توبه كونكي، عبادت ګذار، اوسجده كونكي يو، دخپل معبود تعريف بيانونكى يو الله تعالى خپله وعده رښتونكى اوښودله اودخپل بنده مدد ئې اوكړو اوهغه فوجونوته شكست وركړو چه يودې.

ترجمه او حديث الباب دواړه واضح دى چه انسان له پكار دى چه د تلو په وخت كه په يو لوړ ځائې باندې خيژى نو تكبير يعنى الله اكبر وئيلو سره دې خيژى، او د هغې بالمقابل چه كله د پستئ طرف ته ځى نو تسبيح يعنى سبحان الله وئيلو سره دې كوزيږى. والحديث اخرجه البخارى ومسلم والنسائى، قاله المنذرى.

## بَابٌ فِي الْإِذْنِ فِي الْقُفُولِ بَعْدَ النَّهْيِ

### د ممانعت نه پس د ميدان جهاد نه د واپس راتلو داجازت بيان

### د ترجمة الباب تشريح

د ترجمة الباب مضمون دا دې، د رسول الله صلى الله عليه وسلم د مجلس نه د مجلس دوران (د هغه نه اجازت اخستلو نه پس) د قفول يعنى د واپس كيدو د جواز د ممانعت نه پس، يعنى په شروع كښې دا خبره ناجائز وه چه يو سړې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د مجلس نه د اجازت اخستلو نه پس لاړ شى، روستو د الله پاک د طرف نه د دې اجازت اوشو، يعنى د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه د اجازت اخستلو نه پس هيڅ باک نشته، جائز ده، د دې ترجمة الباب د وجې نه د سورة توبه آيت ﴿ لَا يَسْتَأْذِنُكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ يُجَاهِدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالْمُتَّقِينَ، إِنَّمَا يَسْتَأْذِنُكَ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَارْتَابَتْ قُلُوبُهُمْ فَهُمْ فِي رَيْبِهِمْ يَتَرَدَّدُونَ ﴾

¹): صحيح البخاري/الحج ١٢ (١٧٩٧)، والجهاد ١٣٣ (٢٩٩٥)، والمغازي ٢٩ (٤١١٦)، صحيح مسلم/الحج ١٥ (١٣٤٤)، سنن الترمذي/الحج ١٠٤ (٩٥٠)، (تحفة الأشراف: ٨٣٣٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٦٣) (صحيح)

دا آیت کریمه منسوخ دي او ناسخ د دې دپاره دویم آیت کریمه دې کوم چه په سورة نور کښې مذکور دي یعنې ﴿ إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَإِذَا كَانُوا مَعَهُ عَلَى أَمْرٍ جَامِعٍ لَمْ يَذْهَبُوا حَتَّى يَسْتَأْذِنُوهُ إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَأْذِنُونَكَ أُولَئِكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ﴾ دا آیت د سورة نور دې، مصنف دې آیت کریمه ته ناسخ وائی د اولنی آیت کریمه دپاره په کوم کښې چه اجازت اخستلو سره واپس کیدو ته د منافقانو فعل وئیلې شوې دې، نو هر کله چه د منافقانو فعل دې نو یقینا ناجائز شو، لهذا په اولنی آیت کریمه کښې خو ګویا اجازت اخستلو سره د واپس کیدو ممانعت راغلو. او دویم آیت کریمه کوم چه په سورة نور کښې دې د هغې مضمون دا دې چه د رسول اللهﷺ د مجلس نه چه کوم خلق مومنان دی بغیر د اجازت اخستلو نه نه پاسیږی، اجازت اخستلو سره پاسیږی یعنی په خلاف د منافقانو چه هغه د رسول اللهﷺ د مجلس نه په پټه بغیر د اجازت نه اوځی، په دې آیت کریمه کښې د مجلس نه پاسیدلو ته د مومنانو فعل وئیلې شوې دې او بغیر د اجازت نه پاسیدلو ته د منافقانو فعل، لهذا د دې آیت کریمه نه اجازت اخستلو سره د پاسیدو جواز معلوم شو، حال دا چه د اولنی آیت کریمه نه د دې ممانعت معلومیږی، او سورة نور چونکه په نزول کښې روستو دې د سورة توبه نه لهذا د سورة نور په آیت سره د سورة توبه د آیت حکم منسوخ کړې شو، کومه خبره چه په ترجمة الباب کښې مصنفرحمه الله بیان کړې ده هم هغه خبره ابن عباس رضي الله عنه هم په حدیث الباب کښې د دواړو آیتونو د تفسیر د لاندې بیان کړې ده، لهذا حدیث الباب د ترجمة الباب مطابق کیدو سره د مصنف مدعی ثابته شوه، دا چه څه مونږ لیکلې دی د مصنف د ترجمې تشریح او څه چه مصنف بیانول غواړی د هغې د لاندې لیکلې دی.

[۲۷۷۱]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ ثَابِتٍ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يَزِيدَ النَّحْوِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: لَا يَسْتَأْذِنُكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ سورة التوبة آية ۴۴ الْآيَةَ نَسَخَتْهَا الَّتِي فِي النُّورِ إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ إِلَى قَوْلِهِ غَفُورٌ رَحِيمٌ سورة النور آية ۶۲.

دابن عباس رضي الله عنه نه روایت دې چه فرمائیلی ئې دی چه دا آیت کریمه «لا يستأذنك الذين يؤمنون بالله واليوم الآخر» الآية دسورة نور په دې ایت: «إنما المؤمنون الذين آمنوا بالله ورسوله» تر «غفور رحيم» سره منسوخ شوې دې.

## تحقیق مقام

خو حقیقت دا دې چه کوم دوه آیتونو ته ناسخ او منسوخ وئیلې شوې وو د هغه دواړو آیتونو مضمون د یو بل نه بالکل مختلف دې لهذا د نسخ هیڅ سوال نه پیدا کیږی هر یو آیت په خپل ځائې قائم او مستحکم دې ځکه چه د اولنی آیت کریمه د مضمون خلاصه او حاصل دا دې چه کوم خلق منافقان وی هغوی بعض وخت داسې کوی چه رسول اللهﷺ سره په جهاد کښې د شرکت کولو دپاره خو په شروع کښې شریک شی او بیا په لاره کښې واړه او غټې عذرونه بیانولو سره او هغه نه اجازت اخستلو سره واپس شی، په خلاف د مومنانو

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۶۲۵۷) (حسن)

چه هغوی داسې هرګز نه کوی، او دویم آیت کریمه کوم چه د سورة نور آیت دې د هغې مضمون دا دې چه کوم خالص مومنان وی هغوی اول خو پاسیږی نه، او که څوک د څه ضرورت په وجه باندې پاسیږی نو د رسول الله ﷺ نه اجازت اخستلو سره پاسی، زمونږ د دې بیان نه معلومه شوه چه د دواړو آیتونو محمل جدا جدا دې د یو بل نه مختلف دې لهذا په دې دواړو آیتونو کښې نه خو ناسخ شته او نه منسوخ، خو د دې باوجود په دې کښې اختلاف دې، په بذل کښې هم حضرت د دواړو آیتونو په تفسیر کښې د مفسرینو اختلاف لیکلې دې او دا چه بعض علماء په دې کښې د نسخ قائل دی او بعض قائل نه دی.

## بَابٌ فِي بَعْثَةِ الْبُشَرَاءِ

### د زیری د خبر ورکولو دپاره د چا د لیږلو بیان

یعنی که یو سړی ته امیر دا حکم ورکړی چه که تاسو فلانې کار اوکړئ نو ډیره ښه ده او هغه سړې د دې کار دپاره لاړ شی او هغې لره انجام ته اورسوی او په خپل مقصد کښې کامیابی حاصله کړی، نو دې مامور لره پکار دی چه امام لره فوری طور د خبر کولو دپاره د یو قاصد په ذریعه هغه ته د فتح او کامیابئ زیرې اورسوی چه امام د تکلیف او انتظار نه بچ شی.

[٢٧٧٢](١) حَدَّثَنَا أَبُو تَوْبَةَ الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ، حَدَّثَنَا عِيسَى، عَنْ إِسْمَاعِيل، عَنْ قَيْسٍ، عَنْ جَرِيرٍ، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَلَا تُرِيحُنِي مِنْ ذِي الْخَلَصَةِ فَأَتَاهَا فَحَرَّقَهَا، ثُمَّ بَعَثَ رَجُلًا مِنْ أَحْمَسَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُبَشِّرُهُ يُكْنَى أَبَا أَرْطَاةَ.

دجریر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام راته اوفرمائیل چه ایا د ذي الخلصه نه مې نه بیغمه کوی؟ نو دې هلته لاړو او هغه ئې اوسوزولو او د احمس قبیلې یو کس ئې نبی علیه السلام ته دزیرې دپاره اولیږلو چه کنیه ئې ابو ارطاة وه.

### شرح حدیث

سیدنا جریر رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ ماته یو ځل اوفرمائیل چه اې جریر! ته ماته د ذی الخلصة نه ارام نه شی راکولې؟ یعنی که راکولې شې نو ضرور راکړه، په دې باندې هغه فورا پاسیدو او هلته ئې خان اورسولو او هغه ئې سیزلو سره ختم کړو، او بیا ئې لاس په لاس د قبیله احمس یو سړې چه د هغه کنیت ابو ارطاة وو د دې امر د زیری ورکولو دپاره د رسول الله ﷺ خدمت ته اولیږلو. یا ذی الخلصة په یمن کښې یو ځائې وو چه په هغې کښې د قبیله دوس او خثعم وغیره بتان پراته وو، یعنی بت خانه، په نورو الفاظو باندې مندر، دا روایت په صحیح بخاری کښې په کتاب المغازی کښې په باب غزوة ذی الخلصة کښې لږ په تفصیل سره ذکر شوې دې، په هغې کښې دا دی جریر فرمائی چه زه د رسول الله ﷺ د فرمان نه پس د یو نیم سل سورو کسانو سره د دې کار دپاره اوتلم، او هغه بت خانه مې ماته کړه او کوم عبادت کونکی چه په هغې کښې ناست وو هغوی مې قتل کړل، او هم دغه

(١): صحیح البخاري/الجهاد ١٥٤ (٣٠٢٠)، صحیح مسلم/فضائل الصحابة ٢٩ (٢٤٧٦)، (تحفة الأشراف: ٣٢٢٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٣٦٠، ٣٦٢، ٣٦٥) (صحیح) بأتم منه.

شان په هغې کښې دا هم دې چه ذو الخلصه ته الكعبة اليمانية او الكعبة الشامية هم وئيلې شي.
والحديث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي،وابو ارطاة اسمه الحصين بن ربيعة،له صحبة،قاله المنذري

## بَابٌ فِي إِعْطَاءِ الْبَشِيرِ

### زيرى كونكى ته د انعام وركولو بيان

دا باب داسې اوګڼرئ چه د مخکښې ذکر شوی باب تکمله ده يعنى كوم سړې چه زيرې راوړې نو هغه ته د انعام په طور څه ورکول پکار دی، په دې باب کښې مصنف د کعب بن مالك رضی الله عنه د قصې د روايت يو ټکړه ذکر کړې ده، چه د هغې په اخر کښې دی چه کله زما په کور کښې د بنديدو پنځوس ورځې پوره شوې او ما هغه ورځ د سحر مونځ اوکړو د خپل کور په چهت باندې نو ما د يو اواز لګونکی اواز د لرې نه واوريدو.... دا ئې وئيل چه يا کعب بن مالك ابشر! چه کله هغه ماته نزدې راغلو ماته زيرې راکونکې نو هغه وخت زما په بدن باندې کپړې وې ما هغه ويستلې او هغه ته مې هبه کړې او د مسجد په طرف روان شوم، چه کله مسجد ته داخل شوم نو ما اوکتل چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ناست دې، هغه فرمائی: په حاضرينو کښې سيدنا طلحه بن عبيد الله رضی الله عنه اودريدو او په منډه منډه ماته راغلو او ما سره ئې مصافحه اوکړه او مبارکی ئې راکړه.

[٢٧٧٣]([1]) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ كَعْبٍ، قَالَ: سَمِعْتُ كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ بَدَأَ بِالْمَسْجِدِ فَرَكَعَ فِيهِ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ جَلَسَ لِلنَّاسِ وَقَصَّ ابْنُ السَّرْحِ الْحَدِيثَ، قَالَ: وَنَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُسْلِمِينَ عَنْ كَلَامِنَا أَيُّهَا الثَّلَاثَةُ حَتَّى إِذَا طَالَ عَلَيَّ تَسَوَّرْتُ جِدَارَ حَائِطِ أَبِي قَتَادَةَ وَهُوَ ابْنُ عَمِّي، فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَوَاللَّهِ مَا رَدَّ عَلَيَّ السَّلَامَ، ثُمَّ صَلَّيْتُ الصُّبْحَ صَبَاحَ خَمْسِينَ لَيْلَةً عَلَى ظَهْرِ بَيْتٍ مِنْ بُيُوتِنَا، فَسَمِعْتُ صَارِخًا يَا كَعْبُ بْنَ مَالِكٍ أَبْشِرْ، فَلَمَّا جَاءَنِي الَّذِي سَمِعْتُ صَوْتَهُ يُبَشِّرُنِي نَزَعْتُ لَهُ ثَوْبَيَّ فَكَسَوْتُهُمَا إِيَّاهُ فَانْطَلَقْتُ حَتَّى إِذَا دَخَلْتُ الْمَسْجِدَ فَإِذَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ، فَقَامَ إِلَيَّ طَلْحَةُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ يُهَرْوِلُ حَتَّى صَافَحَنِي وَهَنَّأَنِي.

دکعب بن مالك رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه کله به نبی علیه السلام دسفرنه راغې نواول به جومات ته لاړو دوه رکعته مونځ به ئې اوکړو بيابه دخلقوسره کيناستو او ابن السرح حديث تراخره بيان کړې دې کعب وائی نبی علیه السلام خلق منع کړې وو زمونږ درې کسانو سره د خبرو کولونه ترديې چه ډير وخت تيرشو نوزه دابوقتاده باغ ته داخل شوم هغه زمادتره ځوې وو ماورباندې سلام واچوو په الله قسم هغه دسلام جواب قدرې هم رانکړو (ځکه چه نبی علیه السلام زمونږ سره د خبرو کولونه اودسلام د جواب ورکولونه منع فرمائيلې وه) بياما دخپل کور په چت باندې په پنځوسمه ورځ دسحر مونځ اوکړو نود چا آواز مې ترغوږونوشو چه وئيل ئې اې کعب بن مالك خوشحاله شه کله چه هغه زما خواته راورسيدو نوماهغه ته خپلې دواړه جامې وويستلې او ورې کړې اوودغه ځائې نه روان شومه مسجد نبوی ته داخل شوم هلته

[1]: صحيح البخاري/ الجهاد ١٩٨ (٣٠٨٨)، صحيح مسلم/المسافرين ١٢ (٧١٦)، سنن النسائي/المساجد ٣٨(٧٣٢)، (تحفة الأشراف: ١١١٣٢) (صحيح)

نبی ﷺ ناست وو طلحه بن عبیدالله ته چه زه اولیدلم نواودریدو راغې زماسره سې مصافحه اوکړه اوماته ئې مبارکي راکړه.
د کعب بن مالک رضی الله عنه د توبې مفصل او اوږد حدیث په صحیح بخاری کتاب المغازی باب حدیث کعب بن مالک د لاندې ذکر شوې دې، کوم چه د بخاری شریف په اتلسمه پاره کښې دې، او زمونږ د سنن ابی داؤد هم دا اتلسمه پاره روانه ده، د خطیب بغدادی د تجزیه په اعتبار سره. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی مختصر ومطولا، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي سُجُودِ الشُّكْرِ

### دشکر د سجدې بیان

[۲۷۷٤](١) حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنْ أَبِي بَكْرَةَ بَكَّارِ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، أَخْبَرَنِي أَبِي عَبْدُ الْعَزِيزِ، عَنْ أَبِي بَكْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ: إِذَا جَاءَهُ أَمْرُ سُرُورٍ، أَوْ بُشِّرَ بِهِ خَرَّ سَاجِدًا شَاكِرًا لِلَّهِ.

ابوبکر رضی الله عنه دنبی ﷺ نه روایت نقل کوي فرمائی چه کله به په نبی ﷺ خوشحالي راغله اویابه وریاندې زیري اوشونو په سجده باندې به پریوتو دالله تعالی دشکر ادا کولو دپاره.
دا باب د تیرو شوو بابونو سره مربوط دې په تیرو شوو بابونو کښې خوشخبری او په هغې باندې د انعام وغیره بیان راغلې دې هم د هغې مناسب دا باب هم دې، د حدیث الباب مضمون هم دا دې چه کله به رسول الله ﷺ ته یو زیرې راتلو نو هغه به د شکر سجده کوله.
په الدر المنضود جلد ثانی ابواب صلاة الکسوف په اخر کښې یو باب، باب السجود عند الایات تیر شوې دې، یعنی د حوادث په وخت الله پاک ته په سجده پریوتل، او دا موجوده باب کوم چه زمونږ په وړاندې دې دا د هغه اولنی باب مقابل دې او د سجدې حکم په دواړو ځایونو کښې دې، ځنګه چه د حوادثو په وخت کښې هم دغه شان د مسرت او خوشحالئ په موقع باندې، د سجده شکر مسئله هم اختلافی ده چه د شوافعو، حنابله او صاحبین په نزد مستحب ده، د امام ابوحنیفه او مالک په نزد غیر مستحب ده، لکه چه هلته په اولنی ځائې کښې تفصیل تیر شوې دې، د هغې طرف ته دې رجوع اوکړې شی، د امام صاحب نه چه د سجده شکرکوم انکار منقول دې د هغې تشریح کښې درې اقوال دی، وئیلې شوې دی چه په دې سره مراد د هغه عدم وجوب دې، یعنی واجب نه ده، او وئیلې شوې دی چه د هغه مراد دا دې چه دا کار مشروع نه دې، او دریم قول دا دې چه د شکر د ادا کولو دپاره صرف سجده کافی نه ده، بلکه دوه رکعته دې د شکریه په نیت سره اولوستلې شی.

[۲۷۷٥](٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، حَدَّثَنِي مُوسَى بْنُ يَعْقُوبَ، عَنِ ابْنِ عُثْمَانَ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَهُوَ يَحْيَى بْنُ الْحَسَنِ بْنِ عُثْمَانَ، عَنِ الْأَشْعَثِ بْنِ إِسْحَاقَ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ مَكَّةَ نُرِيدُ الْمَدِينَةَ فَلَمَّا كُنَّا قَرِيبًا مِنْ عَزْوَرَا نَزَلَ، ثُمَّ رَفَعَ يَدَيْهِ فَدَعَا اللَّهَ سَاعَةً، ثُمَّ خَرَّ سَاجِدًا فَمَكَثَ طَوِيلًا، ثُمَّ قَامَ فَرَفَعَ يَدَيْهِ فَدَعَا اللَّهَ سَاعَةً، ثُمَّ خَرَّ سَاجِدًا فَمَكَثَ طَوِيلًا، ثُمَّ قَامَ فَرَفَعَ

(١): سنن الترمذي/السير ٢٥ (١٥٧٨)، سنن ابن ماجه/الإقامة ١٩٢ (١٣٩٤)، (تحفة الأشراف: ١١٦٩٨) (صحيح)
(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٨٧٠) (ضعيف)

يَدَيْهِ سَاعَةً، ثُمَّ خَرَّ سَاجِدًا ذَكَرَهُ أَحْمَدُ ثَلَاثًا، قَالَ: إِنِّي سَأَلْتُ رَبِّي وَشَفَعْتُ لِأُمَّتِي فَأَعْطَانِي ثُلُثَ أُمَّتِي، فَخَرَرْتُ سَاجِدًا شُكْرًا لِرَبِّي، ثُمَّ رَفَعْتُ رَأْسِي فَسَأَلْتُ رَبِّي لِأُمَّتِي فَأَعْطَانِي ثُلُثَ أُمَّتِي فَخَرَرْتُ سَاجِدًا لِرَبِّي شُكْرًا ثُمَّ رَفَعْتُ رَأْسِي، فَسَأَلْتُ رَبِّي لِأُمَّتِي فَأَعْطَانِي الثُّلُثَ الْآخِرَ فَخَرَرْتُ سَاجِدًا لِرَبِّي". قَالَ أَبُو دَاوُد: أَشْعَثُ بْنُ إِسْحَاقَ، أَسْقَطَهُ أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ. حِينَ حَدَّثَنَا بِهِ، فَحَدَّثَنِي بِهِ عَنْهُ مُوسَى بْنُ سَهْلٍ الرَّمْلِيُّ.

دسعد بن أبي وقاص رضي الله عنه نه روايت دي فرمائی چه مونږ دنبی ﷺ سره اووتو چه دمکي نه مديني ته راتلو کله چه عزورا مقام ته راورسيدو نو نبی ﷺ دسورلئ نه راکوز شو او دواړه لاسونه ئي پورته کړل او دعائي اوکړله ديو وخت پورې دالله تعالی نه اوبيا په سجده پريوتو او اوږده سجده ئي اوکړه بيا پاڅيدو او دواړه لاسونه ئي پورته کړل اوديوساعته پورې ئي دعا اوکړه بيا په سجده پريوتو اوددې نه پس ئي اوفرمائيل مادخپل رب نه سوال اوکړو اودخپل امت دپاره مې سفارش اوکړو نوالله تعالی ماته زمادامت ددريمې حصې اجازت راکړو بيازه الله ته په سجده پريوتم دالله تعالی دشکراداکولو دپاره چه کله مې سر پورته کړو نودخپل امت دپاره مې دالله نه سوال اوکړو نوالله ماته زمادامت دريمه حصه راکړه بياالله ته دشکرد پاره په سجده پروتم چه سرې پورته کړو نودامت دپاره مې دالله نه سوال اوکړو نو باقی پاتې دريمه حصه ئي هم راکړه اوبياالله ته په سجده پريوتم. ابوداود وائی اشعث بن اسحاق لره احمد بن صالح په سند کښې ساقط کړې دې کله چه ئي مونږ ته داحديث بيانولو نومونږ ته ئي دسهل بن موسی رملي نه بيان کړو.

## مضمون حديث

﴿عن سَعْدٍ عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم﴾

سيدنا سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه فرمائی چه يو ځل مونږ د مکې نه د مدينې دپاره روان شو چه کله مونږ مقام غوراء ته نزدې شو نو رسول الله ﷺ د سورلئ نه کوز شو بيا ئي لاس اوچت کړل او دعا ئي کوله بيا په سجده پريوتلو او د ډير ساعته پورې په سجده کښې وو، د هغې نه روستو بيا اودريدو او لاس مبارک ئي اوچت کړل بيا ئي لاس اوچتولو سره ډير ساعته پورې دعا اوکړه او بيا په سجده پريوتلو او د ډير ساعته پورې په سجده کښې وو، بيا ئي په دريم ځل په ولاړه باندې دعا اوکړه بيا هم دغه شان په سجده پريوتلو او روستو ئي اوفرمائيل چه ما د خپل رب نه سوال اوکړو او د خپل امت دپاره مې سفارش کړې وو نو الله پاک ماته د خپل امت دريمه حصه راکړه، ګويا د هغوی په حق کښې زما سفارش قبول شو، په دې باندې ما سجده اوکړه د خپل رب په شکريه کښ، بيا ما سر اوچت کړو او هم هغه دعا مې اوکړه نو نو زما رب ماته زما د امت يو ثلث نور ماته راکړو، په دې باندې ما بيا خپل رب ته د شکر سجده اوکړه (ترديې چه د دوه ثلث معافی اوشوه) رسول الله ﷺ فرمائی چه ما بيا دعا اوکړه نو الله پاک ماته د امت اخر ثلث هم راکړو، ګويا د پوره امت دپاره د مغفرت سفارش قبول کړې شو، په دې باندې ما خپل رب ته سجده اوکړه.

حافظ ابن القيم رحمه الله په دې حديث باندې په خپل تعليق کښې د مسند احمد د رواياتو نه د رسول الله ﷺ سجده شکر کول په مختلف بشارات باندې نقل کړې دی، او هم

دغه شان د سيدنا علی رضی الله عنه سجده کول، په خوارج باندې د فتح په وخت او په مقتولينو کښې چه کله د لټون په وخت ذو الثديه راوتلو، او د سنن سعيد بن منصور نه هغوی نقل کړې دی چه صديق اکبر ته چه لکه د مسليمه د هلاکيدو خبر راغلو نو هغه وخت هغه هم سجده اوکړه.

## شرح السند

﴿ قال ابوداود : اشعث بن اسحاق اسقطه احمد بن صالح الخ ﴾ د مصنف د دې کلام شرح دا ده چه د دې حديث په سند کښې ابن عثمان او عامر بن سعد ترمينځه اشعث بن اسحاق واسطه ذکر شوې ده، د هغې په باره کښې مصنف رحمه الله دا فرمائی چه دا حديث چه کله ماته زما استاد احمد بن صالح مخامخ بيان کړې وو، هغه وخت ترې هغه دا واسطه ساقط کړې وه، خو بيا چه کله د دې نه روستو دا حديث ماته زما بل استاد موسی بن سهل بيان کړو د احمد بن صالح نه نقل کولو سره نو بيا پکښې هغه د اشعث بن اسحاق واسطه ذکر کړه، پس حاصل دا شو چه مصنف ته دا حديث په دوه طريقو سره رارسيدلې دې، براه راست د احمد بن صالح نه او په واسطه د موسی بن سهل، د احمد بن صالح نه په اول طريق کښې واسطه ذکر نه ده، په دويم طريق کښې ذکر ده، خو مصنف د موسی په روايت باندې اعتماد کولو سره په دې دويم طريق کښې هم واسطه ذکر کړه، ګويا د مصنف رائې دا ده چه دا واسطه کيدل پکار دی.

د دې حديث په سند کښې حافظ منذری رحمه الله ليکی ﴿ وفی ا سناده موسی بن يعقوب الزمعی وفيه مقال، قلت : وقال الذهبی فی الميزان فی ترجمته : وثقه ابن معين، وقال النسائی ليس بالقوی، وقال ابوداود هو صالح وقال ابن المدينی، ضعيف منكر الحديث.

## بَابٌ فِي الطُّرُوقِ

### د شپې په وخت کښې د سفر نه کورته د راتلو بيان

طرق او طروق دواړه لغتونه دی، د دې معنی د ضرب هم راځی او هم د دې نه ﴿ مطرقة ﴾ (ستهک) دې، او بله معنی ئې اتيان بالليل د شپې راتلل دی، او په شپه کښې راتلونکی ته طارق وئيلې شی، چونکه د شپې راتلونکې عام طور سره طرق يعنی د دق الباب (دروازه ټکولو) محتاج وی.

[٢٧٧٦] ( ) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، وَمُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، قَالاَ: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مُحَارِبِ بْنِ دِثَارٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَكْرَهُ أَنْ يَأْتِيَ الرَّجُلُ أَهْلَهُ طُرُوقًا.

د جابر بن عبد الله رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام به د شپې کورته راتلل بد ګڼړل.

## شرح الحديث

حافظ فرمائی هم د دې حديث په دويم طريق کښې دغه شان دی : ﴿ اذا اطال احدكم الغيبة فلا

[1]: صحيح البخاري/العمرة (الحج) ١٦(١٨٠١)، صحيح مسلم/الإمارة ٥٦ (٧١٥)، (تحفة الأشراف: ٢٥٧٧)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الاستئذان ١٩ (٢٧١٣)، مسند احمد (٢٩٩/٣، ٣٠٢) (صحيح)

يطرق اهله ليلا ﴾ يعنی کله چه يو سړې د اوږد غائب والی نه پس د سفر نه راواپس شی نو هغه له پکار دی چه خپلې ښځې ته دې د شپې په وخت نه راځی، د دې وجه علماء کرامو ليکلې دې چه د خاوند د خپلې ښځې نه تزين او ښه هيبت مطلوب وی، پس هم د دې په موجودګئ کښې د دې اهتمام کوی او که خاوند موجود نه وی، په سفر وغيره کښې تلې وی نو هغه د دې اهتمام نه کوی، اوس چه کله د اوږد غيبت نه پس بغير د مخکښې اطلاع کولو نه د شپې په وخت راشی نو په دې صورت کښې ظاهره ده چه که خپله ښځه په کوم حالت کښې ليدل غواړی په هغې کښې به هغه بيا نه مومی، او په دې کښې خطره ده چه دا به د نفرت سبب جوړ شی هم دغه شان د هيئت حسنه نه علاوه کيدې شی او دا هم کيدې شی چه هغه په نور څه نا مناسب حال کښې وينی، په دې صورت کښې به ناڅاپه رارسيدو سره د هغې پرده پاتې نه شی. د رسول الله ﷺ په ارشاداتو کښې د مختلف مصالح کيدل قرين قياس دی، کومو بعض خلقو چه د رسول الله ﷺ په دې هدايت باندې عمل نه دې کړې او ناڅاپه د شپې راغلل نو هغوی د ناخوښه حالاتو سره مخ شوې دی چه د هغې بعض قصې په شروح کښې ليکلې شوې دی. والحديث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی بنحوه، قاله المنذری.

[۲۷۷۷](¹) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مُغِيرَةَ، عَنْ الشَّعْبِيِّ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ أَحْسَنَ مَا دَخَلَ الرَّجُلُ عَلَى أَهْلِهِ إِذَا قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ أَوَّلَ اللَّيْلِ".

دجابر بن عبدالله رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی دسفرنه کورته دراتلو په وختونوکښې ښه وخت ماښام دې.

## شرح الحديث

دلته د دخول علی الاهل نه مراد صحبت دې، چه کله انسان د سفر نه واپس راغلې وی او د سفر کولونه پس دشپې خپل اهل ته راورسيږی نو دهغه په حق کښې بهتر هم دا فرمائی چه هغه سړې دې په شروع کښې خپل ضرورت پوره کړی، ځکه چه د سفر او اوږد غيبت د وجې نه شهوت قوی کيږی نو د هغه دپاره مناسب هم دا ده چه د خپل حاجت نه دې په شروع کښې فارغ شی او خپل طبيعت دې بحال کړی، خو دا ادب او طريقه د مسافر په حق کښې ده، په عام حالاتو کښې نه ده، په عام حالاتو کښې خو د دې په خلاف د هغه دپاره د شپې اخری حصه اولی ده چه د شپې د اخری حصې پورې خوراک کول وغيره ټول د هضم کيدو نه پس او څه ارام نه پس په طبيعت کښې اعتدال پيدا کيږی.

دا چه د حديث کومه شرح کړې شوې ده په دې صورت کښې په دې حديث کښې او په حديث سابق کښې هيڅ تضاد نشته، او که په دې حديث ثانی کښې د دخول نه مراد داخليدل مراد کړې شی نو بيا دا حديث د اول حديث خلاف راشی خو که په دې حديث کښې هم اوله معنی مراد کړې شی نو بيا د دې تعارض به دا جواب وی چه دا حديث په دې صورت باندې محمول دې چه کله د هغه کور والو ته د مخکښې نه اطلاع شوې وی، په

¹: صحيح البخاري/النكاح ۱۲۱ (۵۲۴۴)، صحيح مسلم/الجهاد ۵۶ (۷۱۵)، (تحفة الأشراف: ۲۳۴۳) (صحيح)

خلاف د حدیث اول چه هغه به محمول کړې شی په هغه صورت باندې چه کله د مخکښې نه اطلاع نه وی او یو توجیه دا هم کړې شوې ده چه دا د کراهت والا حدیث محمول دې په دخول فی اثناء اللیل باندې، او په عدم کراهت والا حدیث باندې محمول دې، دخول اول اللیل باندې، والله تعالی اعلم. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی بنحوه، قاله المنذری.

[۲۷۷۸]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ أَخْبَرَنَا سَيَّارٌ، عَنْ الشَّعْبِيِّ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ، فَلَمَّا ذَهَبْنَا لِنَدْخُلَ قَالَ: "أَمْهِلُوا حَتَّى نَدْخُلَ لَيْلًا لِكَيْ تَمْتَشِطَ الشَّعِثَةُ، وَتَسْتَحِدَّ الْمُغِيبَةُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ الزُّهْرِيُّ: الطُّرُوقُ بَعْدَ الْعِشَاءِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَبَعْدَ الْمَغْرِبِ لَا بَأْسَ بِهِ.

دجابر بن عبدالله رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه مونږ دنبی علیه السلام سره په سفرکښې وو هرکله چه مونږ کورته دداخلید و اراده اوکړه نونبی علیه السلام اوفرمائیل صبر وکړئ اوخبرئي ولیږلو، چه ښځې خپل ګډوډ ویخته ګومنزکړي اوزیرناف صفائي وکړي. ابوداود وائی زهري وئیلی دی د الطرق نه دماخوستن نه بعد وخت مراد دي، ابوداود وائی دماښام نه پس کورته په داخلیدوکښې حرج نشته.

سیدنا جابر رضی الله عنه فرمائی چه مونږ د رسول الله ﷺ سره په یو سفر کښې وو، چه کله مونږ خلق واپس شو نو خپلو ازواجو ته واپس لاړو (په ظاهره باندې د سفر نه واپسئ باندې د ماښام وخت کښې شوې وه) نو هغه اوفرمائیل چه اوس ایسار شه د شپې به هغوی ته څو چه په دې موده کښې هلته ببر سرې خپل ویښته ګومنځ کولو سره برابر کړی، د نامه نه لاندې ویښته وغیره صفا کړی، مغیبه هغه زنانه چه د هغې خاوند په سفر کښې تلې وی، د دې حدیث نه معلومه شوه چه خاوند له پکار دی چه د سفر نه په واپسئ باندې د خپل اهل سره رسیدو کښې دې تندی نه کوی بلکه هغه ته دې مهلت ورکړی د راتلو د اطلاع نه پس، دومره وخت چه په هغې کښې هغه خپل هیئت برابر کړې شی،

په دې حدیث کښې ﴿ فلما ذهبنا لندخل ﴾ کښې اختصار دې، پس د بخاری په روایت کښې دی ﴿ فلما قدمنا ذهبنا لندخل﴾ او کیدل هم دغه شان پکار دی.

په دې باب کښې مصنف درې احادیث ذکر کړې دی، اتفاق ته ګوره چه مسانید د جابر نه دی، د درې واړو راوی د جابر بن عبدالله نه دې، والحدیث اخرجه النسائی، وفی البخاری ومسلم بنحوه، قاله المنذری.

........

[1]: صحیح البخاري/النکاح ۱۲۲ (۵۲۴۷)، صحیح مسلم/الإمارة ۵۶ (۷۱۵)، (تحفة الأشراف: ۱۹۴۱۸، ۲۳۲۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۹۸/۳، ۳۵۵، ۳۹۶) (صحیح)

## بَابٌ فِي التَّلَقِّي

### باب د مسافر د استقبال کولو بیان

يعنی د سفر نه د راتلونکو استقبال.

[۲۷۷۹](١) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ، قَالَ: لَمَّا قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ مِنْ غَزْوَةِ تَبُوكَ تَلَقَّاهُ النَّاسُ فَلَقِيتُهُ مَعَ الصِّبْيَانِ عَلَى ثَنِيَّةِ الْوَدَاعِ.

دسائب بن یزید رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه کله نبی علیه السلام مدینې ته دغزوه تبوک نه واپس راغې نوخلقو دهغه استقبال اوکړو اوزه دماشومانو سره دهغه دملاقات دپاره ثنية الوداع ته لاړم او ملاقات مې ورسره اوکړو.

### شرح الحديث.

سائب بن یزید رحمه الله فرمائی، چه کله رسول الله ﷺ د تبوک نه په واپسئ باندې تشریف اوړلو نو صحابه کرام د هغه د استقبال دپاره ثنية الوداع ته اورسیدو، زه هم د نورو بچو سره استقبال دپاره لاړم.

سائب بن یزید صغار (کم عمره) صحابه کرامو نه دې هغه وخت د هغوی عمر تقریبا اووه کاله وو (لانه ولد فی ۲ هـ) ثنیه وئیلې شی، د دواړو غرونو ترمینځه چه کومه لاره او کنده وی چه په هغې کښې لوړه ژوره وی، او د وداع معنی د رخصت کولو ده، ثنية الوداع ته ثنية الوداع په دې وجه وئیلې شی چه مدینې منورې ته تلو والو او مدینې ته داخلیدونکو لره هم د دې ځائې نه استقبال او رخصت کولې شی، بیا ځان پوهه کړه چه په مدینه منوره کښې دا دواړه ثنیه جدا جدا دی یو هغه کومه چه د مکې مکرمې په لاره باندې دې او دویم د ملک شام په لاره کښې، په دې کښې اولنې د ثننیه مسجد قبا نه لږ وړاندې واقع دې، او دویم د مسجد نبوی په شمال کښې د جبل سلع سره متصل دې، او په حدیث الباب کښې چه کومه ثنیه ذکر شوې دې هغه د دې نه دویمه ثنیه ده ځکه چه د هغه واپسی د سفر تبوک نه کیدله، او کوم چه په سباق الخیل والا حدیث کښې د ثنیه ذکر راغې د دې نه مراد هم، هم دا دویمه ثنیه ده، هم په دې جانب کښې د خیل مسابقت وی. والحديث اخرجه البخاری والترمذی، قاله المنذری.

## بَابٌ فِيمَا يُسْتَحَبُّ مِنْ إِنْفَاذِ الزَّادِ فِي الْغَزْوِ إِذَا قَفَلَ

### کله چه یو مجاهد سامان تیار کړی او پخپله نه شی تلې نو بل چاته دې سامان ورکړی

يعنی کوم سړې چه د غزوه په سفر کښې خپل ځان سره د لارې توښه وغیره سامان د ځان سره اوړی نو په دې کښې که د ضرورت پوره کیدو نه پس څه بچ شی نو هغه سره ئې واپس رانوړی بلکه هغه دې هم هلته د الله پاک دپاره خرچ کړی.

١: صحيح البخاري/الجهاد ١٩٦ (٣٠٨٣)، والمغازي ٨٢ (٤٤٢٦)، سنن الترمذي/الجهاد ٣٨ (١٧١٨)، (تحفة الأشراف: ٣٨٠٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٤٩/٣) (صحيح)

[۲۷۸۰]( ) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا ثَابِتٌ الْبُنَانِيُّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ فَتًى مِنْ أَسْلَمَ، قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي أُرِيدُ الْجِهَادَ وَلَيْسَ لِي مَالٌ أَتَجَهَّزُ بِهِ قَالَ: اذْهَبْ إِلَى فُلَانٍ الْأَنْصَارِيِّ فَإِنَّهُ كَانَ قَدْ تَجَهَّزَ فَمَرِضَ، فَقُلْ لَهُ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقْرِئُكَ السَّلَامَ، وَقُلْ لَهُ: ادْفَعْ إِلَيَّ مَا تَجَهَّزْتَ بِهِ فَأَتَاهُ، فَقَالَ لَهُ: ذَلِكَ فَقَالَ: لِامْرَأَتِهِ يَا فُلَانَةُ ادْفَعِي لَهُ مَا جَهَّزْتِنِي بِهِ، وَلَا تَحْبِسِي مِنْهُ شَيْئًا، فَوَاللَّهِ لَا تَحْبِسِينَ مِنْهُ شَيْئًا فَيُبَارِكَ اللَّهُ فِيهِ.

دانس بن مالك ﷺ نه روايت دي چه د اسلم قبيلې يوځوان دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اوعرض ئې اوکړو چه اې دالله رسوله زما جهاد ته دتلو اراده ده اومال راسره نشته چه ځان تيارکړم نبی ﷺ ورته اوفرمائيل فلانې انصارې ته ورشه او ورته اووايه چه نبی ﷺ درباندې سلام وائي او ورته اووايه چه دځان دپاره دې کوم سامان تيارکړې وې هغه ماته راکړه چه زه پرې دځان دپاره تيارې اوکړم نودې لاړ او ورته ئې اووئيل هغه خپلې ښځې ته اووئيل اې فلانئ کوم سامان چه دې زما دپاره تيارکړې دې هغه ده ته ورکړه اودهغې نه څه شې مه پاتې کوه که چرې ته څه شې پاتې کړې نوپه هغې کښې به هيڅ برکت نه وي.

د قبيله اسلم يو ځوان صحابی رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه زما اراده په جهاد کښې د تلو ده او ما سره دومره مال نشته چه هغې سره د جهاد سامان برابر کړې شم، رسول الله ﷺ هغه ته اوفرمائيل چه فلانی انصاری ته لاړ شه، هغه جهاد ته د تلو تيارى کړې وه خو بيا بيمار شو په دې وجه لانړو (خو د جهاد سامان هغه سره محفوظ دې) او لاړ شه هغه ته اوايه چه رسول الله ﷺ تاته سلام کړې دې او دا ئې فرمائيلې دی چه څه سامان تا د جهاد دپاره برابر کړې وو هغه هر څه دې ماته راکړې دی هغه وائی چه زه هغه ته لاړم او د رسول الله ﷺ خبره مې هغه ته اورسوله، نو هغه انصاری صحابی فورا د خپلې ښځې ته اووې چه څه تا د جهاد سامان زما دپاره تيار کړې وو هغه ټول هغه سړی ته حواله کړه او د هغې نه يو څيز هم مه منع کوه، پس والله که تا د هغې نه يو څيز منع کړو نو بيا په هغې کښې ستا دپاره برکت نه شی کيدې چه ته دې يو څيز د هغې نه منع کړې او په هغې کښې برکت راشی، بلکه کله به هم برکت هم نه وی.ددې حديث نه مصنف د دې صورت استنباط اوکړو چه په ترجمة الباب کښې مذکور دې. والحديث اخرجه مسلم، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الصَّلَاةِ عِنْدَ الْقُدُومِ مِنَ السَّفَرِ

### څوک چه د سفر نه واپس راشی نواول دې مونځ اوکړی

[۲۷۸۱]( ) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُتَوَكِّلِ الْعَسْقَلَانِيُّ، وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنِي ابْنُ جُرَيْجٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِيابْنُ شِهَابٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ أَبِيهِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَعْبٍ، وَعَمِّهِ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ كَعْبٍ، عَنْ أَبِيهِمَا كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَانَ لَا يَقْدَمُ مِنْ سَفَرٍ إِلَّا نَهَارًا"، قَالَ الْحَسَنُ: "فِي الضُّحَى فَإِذَا قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ أَتَى الْمَسْجِدَ فَرَكَعَ فِيهِ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ جَلَسَ فِيهِ".

[1]: صحيح مسلم/الإمارة ۳۸ (۱۸۹۴)، (تحفة الأشراف: ۳۲۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۰۷/۳) (صحيح)
[2]: انظر حديث رقم: (۲۷۷۳)، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۳۲) (صحيح)

دکعب بن مالک نه رضی الله عنه روایت دې چه نبی علیه السلام به د سفر نه نه راتلو مګرد ورځې اوحسن وئیلی دی چه دغري به راتلو کله چه به دکوم سفرنه راغې نواول به جومات ته راغې اودوه رکعته به ئې په کښې اوکړل اوبیابه په کښې کیناستو.

یعنی د سفر نه په واپسئ کښې انسان له پکار دی چه دوه رکعته مونځ اوکړی، هم دغه شان چه کله ئې په سفر کښې د تلو اراده وی نو بیا هم دوه رکعته نفل کول سنت دی، خو دا مونځ سفر نه واپسئ باندې خو په مسجد کښې اولوستلې شی، دا اولی دې، او د سفر دپاره د روانیدو په وخت د هغه مونځ په کور کښې کیدل مسنون دی، په حدیث الباب کښې صرف ترجمة الباب والا مونځ ذکر شوې دې، چه په هغې کښې دې چه د رسول الله ﷺ دا عادت مبارک وو چه د سفر نه په واپسئ کښې په مدینه کښې په ورځ کښې وو د چاشت په وخت باندې او بیا هغه مسجد ته تشریف راوړلو سره هلته دوه رکعتونه لوستل،دمونځ نه پس بیاهم هلته مسجد کښې څه ساعت پس تشریف کیخودلو.

او د دې نه روستو حدیث کښې دی چه رسول الله ﷺ د خپل حج نه په واپسئ باندې مدینه منوره کښې داخل شو نو اولا هغه خپله سورلی د مسجد په دروازه باندې کینولو، بیا د سورلئ نه راکوزیدو سره مسجد کښې داخل شو د هغې نه پس بیا کور ته تشریف راوړلو، نافع فرمائی چه زما استاذ او سید ابن عمر رضی الله عنه به هم داسې کول.

[۲۷۸۲](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَنْصُورٍ الطُّوسِيُّ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي نَافِعٌ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "حِينَ أَقْبَلَ مِنْ حَجَّتِهِ دَخَلَ الْمَدِينَةَ، فَأَنَاخَ عَلَى بَابِ مَسْجِدِهِ، ثُمَّ دَخَلَهُ فَرَكَعَ فِيهِ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ انْصَرَفَ إِلَى بَيْتِهِ"، قَالَ نَافِعٌ: فَكَانَ ابْنُ عُمَرَ كَذَلِكَ يَصْنَعُ.

دابن عمر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام کله د حج نه مدینې ته راغې نواول جومات ته راغې اودجومات په دروازه کښې ئې خپله اوښه کینوله او بیاوردا خل شو اودوه رکعته ئې په کښې اوکړل او بیا خپل کور ته روان شو نافع وئیلی دی چه ابن عمر رضی الله عنه به پخپله هم داسې کول.

## بَابٌ فِي كِرَاءِ الْمَقَاسِمِ

### د تقسیم کونکی د معاوضې بیان

مقاسم بضم المیم یعنی قسام دې، د خلقو ترمینځه مشترک څیز جدا جدا حصو کښې تقسیم کول، او مقاسم، بفتح المیم، مقسم جمع ده چه د هغې معنی قسمت او تقسیم ده، بالفتح د لوستلو په صورت کښې مضاف محذوف وی، یعنی صاحب المقاسم په کتب لغت کښې لیکلې دی چه صاحب المقاسم نائب الامیر وی، قسام الغنائم یعنی مال غنیمت لره په مجاهدینو باندې تقسیم کولو والا، دا خو د لفظ مقاسم تحقیق شو او کراء المقاسم کوم چه په ترجمة الباب کښې دې د هغې معنی شوه اجرة القسام، یعنی تقسیم کولو والا، د تقسیم کولو اګر چه اجرت واخلی نو دا جائز ده یا ناجائز، د دې فیصله به د حدیث الباب نه وی.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٤١٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢٩/٢) (حسن صحيح)

[۲۷۸۳]()حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ مُسَافِرٍ التِّنِّيسِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، حَدَّثَنَا الزَّمْعِيُّ، عَنِ الزُّبَيْرِ بْنِ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سُرَاقَةَ، أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ ثَوْبَانَ، أَخْبَرَهُ أَنَّ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ، أَخْبَرَهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِيَّاكُمْ وَالْقُسَامَةَ، قَالَ: فَقُلْنَا: وَمَا الْقُسَامَةُ؟ قَالَ: الشَّيْءُ يَكُونُ بَيْنَ النَّاسِ فَيَجِيءُ فَيَنْتَقِصُ مِنْهُ".

دابوسعید خدری ﷺ نه روایت دې چه نبی ﷺ فرمائیلی دی خبردار دتقسیم دمعاوضي نه ځان وساتئ، خلقو عرض اوکړو چه ددې څه مطلب دې نبی ﷺ اوفرمائیل یوشې چه دډیرو کسانو په مینځ کښې مشترك وي اوبیا هغه کم کړې شي.

## شرح الحدیث

رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه بچ کیدل خپل ځان لره د تقسیم اجرت اخستلو سره، یو راوی د خپل استاذ نه تپوس اوکړو چه د قسامة نه څه مراد دې؟ هغه جواب ورکړو چه یو څیز د څو کسانو ترمینځه مشترک دی، تقسیم کونکي چه کله هغه څیز د شریکانو ترمینځه تقسیم کیدلو نو په هغې کښې کمی اوکړی، یعنی د هغې نه څه د خپل ځان دپاره راوباسی، په ظاهره مطلب دا دې چه بغیر د هغې نه اجازت اخستلو دپاره، د خپل مخوریز توب او ملکئ د وجې نه لکه چه په روستو راتلونکی روایت کښې راځی.

[۲۷۸٤]()حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ عَنْ شَرِيكٍ يَعْنِي ابْنَ أَبِي نَمِرٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، قَالَ الرَّجُلُ: يَكُونُ عَلَى الْفِئَامِ مِنَ النَّاسِ فَيَأْخُذُ مِنْ حَظِّ هَذَا وَحَظِّ هَذَا.

عطاء بن یسار دنبی ﷺ نه دتیر روایت په شان روایت کړې دې مګرددې اضافي سره چه یوکس دخلقو په ډله باندې مقرر شي اودهر چا دحصې نه لږ لږ اخلی.

یعنی یو سړې کوم چه په جماعتونو باندې حاوی دی (لکه چه ملکان خانان وی) څه د هغې د حصې نه اخلی څه د فلانی د حصې نه، د دې نه په مختصر الفاظو باندې داسې هم تعبیر کیدلې شی هغه زبردسته کټوتی که د ملک د طرف نه وی دا ملکان خلق داسې وی، د هغوی په خپل قوم باندې ډیر زور وی او په تکبر کښې د خپل قوم په مال کښې بغیر د اجازت نه تصرف کوی، هم دا دې هغه څیز کوم چه رسول الله ﷺ فرمائیلې دې ﴿ ایاکم والقسامة ﴾ د دې قسم کټوتی په عدم جواز او حرام کیدو کښې خو هیڅ شک نشته، او په حدیث کښې د دې ممانعت هم راغلې دې خو په ترجمة الباب کښې لفظ "کراء" مذکور دې، یعنی اجرت خو به بیا په صورت مسئوله کښې دا وی چه کوم سړې د یو مشترک څیز لره د شریکانو ترمینځه د حصو مطابق په دیانت سره تقسیم کړی لکه زمکو وغیره سره چه پټواریان کوی او بیا د هغه تقسیم معینه اجرت واخستلې شی په دې کښې خو هیڅ کراهت او د عدم جواز خبره نشته، پس د جمهور علماء کرامو او ائمه ثلاثه په نزد دا جائز ده، حضرت شیخ په دې مسئله کښې د امام مالک رحمه الله اختلاف لیکلې دې چه "انه کره اجر

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٢٩٦) (ضعیف)

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩٠٩٢) (ضعیف)

القسام" د صحيح بخاری په کتاب الاجارة کښې په ترجمة الباب کښې تعليقا داسې دی : ولم ير ابن سيرين باجر القسام باسا... او په فتح الباری کښې دی : وكره مالك اجرة القسام وقيل انما كرهها لانه كان يرزق من بيت المال فكره له ان ياخذ اجرة اخرى، واشار سحنون الى الجواز عند فساد امور بيت المال. اهـ

## بَابٌ فِي التِّجَارَةِ فِي الْغَزْوِ

### په جهاد کښې د تجارت کولو بيان

[۲۷۸۵]() حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ يَعْنِي ابْنَ سَلَّامٍ، عَنْ زَيْدٍ يَعْنِي ابْنَ سَلَّامٍ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا سَلَّامٍ يَقُولُ: حَدَّثَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ سَلْمَانَ، أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَهُ، قَالَ: لَمَّا فَتَحْنَا خَيْبَرَ أَخْرَجُوا غَنَائِمَهُمْ مِنَ الْمَتَاعِ وَالسَّبْيِ، فَجَعَلَ النَّاسُ يَتَبَايَعُونَ غَنَائِمَهُمْ، فَجَاءَ رَجُلٌ حِينَ صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ لَقَدْ رَبِحْتُ رِبْحًا مَا رَبِحَ الْيَوْمَ مِثْلَهُ أَحَدٌ مِنْ أَهْلِ هَذَا الْوَادِي قَالَ: وَيْحَكَ وَمَا رَبِحْتَ؟ قَالَ: مَا زِلْتُ أَبِيعُ وَأَبْتَاعُ حَتَّى رَبِحْتُ ثَلَاثَ مِائَةِ أُوقِيَّةٍ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَا أُنَبِّئُكَ بِخَيْرِ رَجُلٍ رَبِحَ، قَالَ: مَا هُوَ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الصَّلَاةِ".

دعبيد الله بن سلام رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه دنبی ﷺ په صحابه کرامو کښې يو کس راته حديث بيان کړې دې وئيل ئې چه کله مونږه خيبر فتح کړو نوهر چا خپل خپل غنيمت واخستو چه سامانونه اوقيديان هم په کښې وو اوخلقو په خپل مينځ کښې اخستل اوخرخول شروع کړل په دې دوران کښې يوکس راغې او عرض پيسې اوکړو چه اې دالله رسوله مانن دومره ګټه کړې ده چه ددې کلي په خلقو کښې به دننه پورې هيڅا دومره ګټه نه وی کړې نبی ﷺ اوفر سائيل په تا افسوس دې څه دې ګټلي دي ده اووئيل اخستل خرخول مې کول تردې چه درې سوه اوقي مې اوګټلي نبی ﷺ ورته اوفرمائيل زه به درته يوکس اوښايم چه ددې نه به ئې ډيره ګټه کړې وي دې وائی ماووئيل اې دالله رسوله هغه څوک د نبی ﷺ اوفرمائيل دفرض مونځ نه پس دوه رکعتونه کول.

يو صحابی فرمائی چه کله مونږ خيبر فتح کړو او په مال غنيمت کښې څه سامان يا قيدی وغيره هغوی دغه څيزونو لره په خپل مينځ کښې اخستل خرخول شروع کړل، يو سړې راغلو او رسول الله ﷺ ته ئې عرض اوکړو چه نن په دې تجارت کښې ماته دومره نفع حاصله شوې ده چه دومره به چاته نه وی حاصل شوې. قال : ويحک (كلمة ترحم وتوجع) هغه اوفرمائيل : هلاک شې تا څه اوګټل؟ هغه عرض اوکړو ما خپل مال خرڅولو او دويم ئې خرڅولو هم دغه شان په واپس کيدو کښې ما سره درې سوه اوقيه سپين زر په نفع کښې حاصل شو، يعنی دولس زره درهم نو هغه اوفرمائيل چه زه تاته اوايم، د دې نه غوره نفع حاصلولو والا سړې هغه عرض اوکړو څوک دې هغه؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل هغه سړې کوم چه د فرض مونځ نه روستو دوه رکعتونه اوکړی

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٦٣٢) (ضعيف)

## بَابٌ فِي حَمْلِ السِّلَاحِ إِلَى أَرْضِ الْعَدُوِّ

### د دشمن علاقې ته د اسلحې نقل کولو بیان

د دار الحرب طرف ته په څه طریقه وسله لیږل، یا په طریقه د بیع چه دار الحرب ته تلونکی باندې یو مسلمان وسله خرڅه کړي، "او بطریق الهبة والمبادلة" لکه چه په حدیث الباب دی، د احنافو په نزد داسې کول جائز نه دي، عند الجمهور جائز دی.

[۲۷۸۶](۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، أَخْبَرَنِي أَبِي، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ ذِي الْجَوْشَنِ رَجُلٍ مِنَ الضِّبَابِ، قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ أَنْ فَرَغَ مِنْ أَهْلِ بَدْرٍ بِابْنِ فَرَسٍ لِي، يُقَالُ لَهَا الْقَرْحَاءُ فَقُلْتُ: يَا مُحَمَّدُ إِنِّي قَدْ جِئْتُكَ بِابْنِ الْقَرْحَاءِ لِتَتَّخِذَهُ، قَالَ: لَا حَاجَةَ لِي فِيهِ، وَإِنْ شِئْتَ أَنْ أَقِيضَكَ بِهِ الْمُخْتَارَةَ مِنْ دُرُوعِ بَدْرٍ فَعَلْتُ، قُلْتُ: مَا كُنْتُ أَقِيضُهُ الْيَوْمَ بِغُرَّةٍ قَالَ: فَلَا حَاجَةَ لِي فِيهِ.

ذي الجوشن دضباب قبیلې والا په صحابه کرامو کښې دیو کس نه روایت کوی چه فرمائیلی ئې وو کله چه دغزوه بدر په ورځ نبی علیه السلام دمشرکینو نه فارغ شو نو ماورته دخپل اس یو کلن بچې بوتلو چه قرحا ورته وئیلې شي ماورته اووئیل اې دالله رسوله قرحامې درته راوستې دې ددې دپاره چه ته ئې په استعمال کښې راولې نبی علیه السلام اوفرمائین زما ورته ضرورت نشته، که چرې ته دده په عوض کښې دغزوه بدر دغنیمت په زغروکښې کومه زغره خوښه وې نوبیا به ئې قبول کړم مااووئیل زه نن اس هم نه شم قبلولې نبی علیه السلام اوفرمائیل ماته هم ددې ضرورت نشته.

### شرح الحدیث

ذی الجوشن رضی الله عنه د خپل اسلام قبلولو نه مخکښې واقعه بیانوی چه زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شوم د هغه د جنګ بدر نه فارغ کیدو نه پس د خپلې اسپې د یو بچې سره چه د هغې اسپې نوم قرحاء وو (فرس اقرح فی جبهته بیاض بقدر درهم، المؤنث قرحاء) او ما رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د هغه نوم اخستلو سره عرض اوکړو چه ما تاسو ته ابن القرحاء راوستلې دې چه تاسو دا ځان سره اوساتئ او قبول ئې کړئ، رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل ماته د دې ضرورت نشته (یعنی مفت بغیر د پیسو نه) پس که ته غواړې چه زه تاته د بدر د زغرو نه یوه غوره زغره درکړم او دا واخلم نو زه داسې کولې شم، په دې باندې ما اووې چه (که بدل والا خبره کوې) نو بیا زه دا (د دې اسپې بچې) د یو غلام په بدله کښې هم تاته نه شم درکولې، رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل بیا ماته د دې ضرورت نشته.

﴿ وان شئت ان افیضک به ﴾ دا لفظ په نسخه هندیه کښې په الف سره لیکلې شوې ده، په ظاهره کښې دا لفظ د همزه په فتحې سره دې، فاض یفرض نه. د دې معنی د عوض ورکولو ده.

(۱): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۳۵۴۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۸۴/۳) (ضعیف)

## بَابٌ فِي الْإِقَامَةِ بِأَرْضِ الشِّرْكِ

### د مشرکانو په علاقه کښې د اوسیدو بیان

يعنی په دار الحرب کښې د اقامة حکم، مقصود دمنع بيانول دی.

[۲۷۸۷](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ دَاوُدَ بْنِ سُفْيَانَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَسَّانَ، أَخْبَرَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ مُوسَى أَبُو دَاوُدَ، حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ سَعْدِ بْنِ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، حَدَّثَنِي خُبَيْبُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ أَبِيهِ سُلَيْمَانَ بْنِ سَمُرَةَ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، أَمَّا بَعْدُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ جَامَعَ الْمُشْرِكَ، وَسَكَنَ مَعَهُ فَإِنَّهُ مِثْلُهُ".

دثمره بن جندب رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي څوک چه دکوم مشرک سره تعلق وساتي اودهغه په ملګرتيا کښې پاتي شي نودا کس هم دمشرک په شان دي.

دا روايت د سمره بن جندب د احاديث سته نه دي، کوم چه په ابوداود کښې دی، شپږم يعنی اخرى حديث دي، رسول الله ﷺ فرمائی چه کوم مسلمان د مشرک سره يوځاي اوسيږی نو پوهه شئ چه هم د هغه په شان دي.

### شرح الحديث

د دي حديث په شرح کښې دري احتمالات دی. ۱: من جامع المشرك اى فى دار واحدة، يعنى خاص په يو كور كښې دواړه اوسيږی مسلمان هم او مشرک هم. ۲: او بلد واحد، يعنى په يو ښهر کښې مسلمان هم اوسيږی او مشرک هم، په دي دويم مطلب کښې اولني صورت او اولني مطلب په طريق اولى داخل دي، خو د دي عکس نه. ۳: المراد الاشتراك معه فى الرسوم والعادات والزى والهيئة، يعنى کوم مسلمان چه د مشرکانو ملګرتيا کوی د هغوی په رسمونو او عادتونو کښې او هم دغه شان په شکل او صورت او هيئت کښې د هغوی وضع اختيار کړی نو بيا هم مشرک دي.

دا حديث اول او ثانى د معنى په لحاظ سره خو د زجر او توبيخ د قبيل نه دي، او د دريمي معنى په اعتبار سره تقريبا په خپل ظاهر باندي دي، په دي حديث کښې د دي د بعض معانى په اعتبار سره د هجرت طرف ته اشاره ده، د کتاب الجهاد ابتداء هم د باب الهجرة نه ده، فهذا من حسن الاختتام، والله ولى المرام، وبيده حسن الخاتمة على الايمان.

اخر كتاب الجهاد

وهذا اخر الجزء الرابع من "الدر المنضود على سنن ابى داود" وقد تم تسويد هذا الجزء فى المدينة المنورة على صاحبها الف الف صلاة وتحية وقد اعانني فى تسويد هذا الجزء العزيز المحتوم المولوى حبيب الله الجمبارنى ثم المدنى المظاهرى تحريرا واملاء وفى جمع المواد من شروح الحديث وكتب الفقه للائمة الاربعة وغيرهما من كتب الرجال والسير والتاريخ بجهد بليغ واستعداد تام، فجزاه الله تعالى خيرا ورزقنى واياه لما يحبه ويرضاه.

محمد عاقل عفا الله عنه

۹ محرم الحرام ۱۴۲۲هـ

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٦٢١)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/السير ٤٢ (١٦٠٥) (حسن لغيره) (المستدرك ١٤١/١-١٤٢) (ملاحظة: الصحيحة: ٢٣٣٠)

## مکتوب گرامی

### مکرم ومحترم مولانا برهان الدين صاحب سنبهلی زيد مجدهم

صدر شعبه تفسير، واستاذ الحديث، وناظم تحقيقات شرعيه دار العلوم ندوة العلماء لکهنؤ

### مولانا محمد عاقل صاحب دامت برکاتکم ومدت فيوضکم

السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته!

طبيعت مو ښنګه دې؟ الله دې اوکړي چه د هر طرف نه په خير سره وی.

يو هفته اوشوه چه د محترم قيمتی علمی تحفه (الدر المنضود ښلورم جلد) ملاؤ شوه. تاسو چه کومه درجه په هغې کښې محنت او خوله بيولې ده د دې اندازه اصل کښې هم هغه انسان لګولې شی چا چه دې د دې کوښې سيل کړې وی، راقم هم چونکه د دې کوښې ورک شوې لاروې دې (يا پاتې شوې دې) په دې وجه د دې په قدر او قيمت پيژندلو کښې ورته څۀ مشکلات نه وو. بعض ځايونو کښې خو د قابو نه بهر ﴿ سبحان الله، الحمد لله او لله دره ﴾ په شان دعائيه او تعريفی کلماتو صحيح محل معلوم شو. د الله پاک نه سوال دې چه دا فيض مسلسل جاری وی.

د ﴿ قال ابوداؤد ﴾ کلام په سنبالولو کښې چه تاسو کوم د ژور نظر او بيدار دماغو ثبوت ورکړې دې هغه په حقيقت کښې د کتاب د قدر او قيمت په تعين کښې معين وی او قاری ته د ذهن سکون ورکوی. ګينې په نورو اړخونو باندې خو نورو خلقو هم د تعريف نه ډک کار کړې دې. په ړومبی جلد کښې د مستحاضه په بحث (د هغې اقسامو او احکامو) کښې چه کوم وضاحت کړې شوې دې هغه ډير زيات مفيد دې. هم په دې بحث کښې د انواع مستحاضه بيان نمبروار ډير زيات آسان دې.

د الله پاک نه دعا ده چه هغه دا کار مکمل کړی چه اهل علم (خاص طور سره مدرسينو) ته زياته آسانی ملاؤ شی. دې وخت کښې خو د ښلورم جلد د وصول کولو په اطلاع او د هغې شکريه ادا کول مقصود دی، په کتاب باندې د رائې اظهار نه، د خير په دعاګانو کښې د ياد ساتلو خصوصی درخواست دې. و السلام

احقر محمد برهان الدين ۲۳/۶/۱۷ھ

# اول کِتَابُ الضَّحَايَا

## د قربانۍ د احکامو بيان

دلته نسخې مختلف دی، په يوه نسخه کښې د ضحايا په ځائې "الاضاحی" دې. امام بخاری رحمه الله هم د "الاضاحی" لفظ اختيار کړې دې زمونږ په نسخه کښې هم د دې سرخئ نه پس حديث شروع کيږی، وفی بعض النسخ کما فی حاشية البذل د "باب ما جاء فی ايجاب الاضاحی" زيادت دې.

### مباحث سته مفيده:

دلته څو امور قابل ذکر دی:

۱: د دې کتاب د ماقبل سره مناسبت

۲: اضحيه لغة او شرعا

۳: اختلاف د هغوی په حکم د دې کښې ۴: په ایام اضحیه کښې اختلاف
۵: د ذبح د وخت ابتداء ۶: د مشروعیة اضحیه ابتداء.

**بحث اول: (ما قبل سره مناسبت)**

ددې کتاب مناسبت د کتاب الجهاد سره ښکاره دې چه په جهاد کښې د خپل نفس اومال دواړو انفاق او قربانی وی او په اضحیه کښې مال خرچ کولو سره د حیوان قربانی وی.
دلته د دې نه پس کتاب الصید راځی. په بخاری کښې د دې برعکس "کتاب الصید والذبائح" دکتاب الاضاحی نه مخکښې دې.

**بحث ثانی: (د اضحیه لغوی تحقیق)**

په بذل المجهود کښې په دې کښې څلور لغات لیکلې دی. [1] اضحیة (بضم الهمزة) اضحیة (بکسر الهمزة) د دې جمع اضاحی ده لکه د امنیة جمع چه امانی ده، ضحیة (بالکسر) د دې جمع ضحایا راځی ﴿ کعطیة وعطایا ﴾ اضحاة د دې جمع اضحی ده لکه د ارطاة جمع چه ارطی ده. اهـ

﴿ وفی الدرر المختار: الاضحیة لغة اسم لما یذبح ایام الاضحی، من تسمیة الشئ باسم وقته آه وقال الکرمانی وهی ما یذبح یوم العید تقربا الی الله تعالی، وسمیت بذلک لانها تفعل بالضحی آه (الحل المفهم ص۲)

د اضحیه مشروعیت د کتاب او سنت او اجماع درې واړو نه دې، اما الکتاب فقوله تعالی ﴿ فصل لربک وانحر ﴾ قال بعض اهل التفسیر : المراد به الاضحیة بعد صلاة العید، واما السنة فما روی عن انس رضی الله عنه انه صلی الله علیه وسلم ضحی بکبشین املحین الحدیث متفق علیه. واجمع المسلمون علی مشروعیتها (اوجز عن المغنی)

**بحث ثالث: (د قربانئ شرعی حکم)**

د اضحیة په حکم د وجوب او د سنتیت په اعتبار سره اختلاف دې، د اکثر علماء کرامو په نزد چه په هغې کښې ائمه ثلاثه هم دی دا سنت موکده ده. د امام مالک رحمه الله مشهور قول هم دا دې [2] او په یو روایت کښې د احنافو او امام مالک په نزد قربانی واجب ده، وحکی العینی عن الهدایة "الاضحیة واجبة علی کل مسلم حر مقیم موسرا اما الوجوب فقول ابی حنیفة ومحمد واحدی الروایتین عن ابی یوسف، وعنه انها سنة، علامه عینی فرمائی چه امام طحاوی رحمه الله د دې وجوب د امام ابوحنیفه رحمه الله قول ګرزولې دې. او د صاحبینو قول دې چه دا سنت

[1] ) وفی الاوجز ۲۱٤/٤ عن ابن عابدین فیه ثمان لغات: الاضحیة بضم الهمزة وکسرها مع تشدید الیاء وتخفیفها وضحیة بلا همز بفتح الضاد وکسرها واضحاة بفتح الهمزة وکسرها آه)

[2] ) پاتې شوه ده چه موکده علی الکفایة ده یا علی العین نو د مالکیانو په نزد خو تصریح ده د سنت موکده لعینه ففی حاشیة الشرح الصغیر للدردیر ٦٤٩/١ قوله سن وتاکد عینا ای علی المشهور و قیل انها واجبة، وقله عینا ای علی کل واحد بعینه ممن استوفی الشروط الاتیة آهـ او په کتابونو د شوافعو کښې ئې دا سنت علی الکفایة لیکلې ده ففی الشرح الاقناع.... والتضحیة سنة موکدة فی حقنا علی الکفایة ان تعدد اهل البیت فاذا فعلها واحد من اهل البیت کفی عن الجمیع والا فسنة عین آه وقال الحافظ فی الفتح ١٠/٥ وهی عند الشافعیة والجمهور سنة موکدة علی الکفایة.آه)

موکده دي. دلیل د وجوب په ابن ماجه کښې روایت دې من حدیث ابی هریرة رضی الله عنه مرفوعا ﴿ من کانت له سعة ولم یضح فلا یقربن مصلانا ﴾
قال العینی واخرجه الحاکم وقال صحیح الاسناد آه وبسط الشیخ فی البذل........ فی مستدلات الحنفیة فارجع الیه من الاوجز.

**انواع اضحیة:**

په بذل کښې لیکلې دی چه د اضحیة دوه قسمونه دی، واجب او تطوع، بیا د واجب څو قسمونه دی، یو هغه چه د هغې وجوب په غنی او فقیر دواړو باندې وی، لکه د نذر قربانی او د دې وجوب مطلقا دې ځکه چه دا وجب د نذر د وجې نه دې چه په هغې کښې غنی او فقیر دواړه برابر دی، او یو قسم هغه دې چه واجب وی په فقیر باندې نه په غنی باندې لکه هغه څاروې کوم لره چه فقیر انسان د قربانۍ په نیت باندې واخلی ځکه چه هغه څناور د اخستلو په وجه باندې متعین شو پخلاف د غنی چه که هغه یو څاروې د قربانۍ په نیت باندې واخلی نو په هغه باندې به د شراء د وجې د هغې قربانی واجب نه وی د هغې په پریخودلو سره دویمه کولې شی، دریم قسم هغه دې چه ما یجب علی الغنی دون الفقیر او دا په هغه صورت کښې ده چه نذر بیا موندلې شی نه شراء آه.

**د اضحِیة دپاره غنیٰ شرط ده ک نه؟:**

د دې نه پس پوهه شئ چه د احنافو په نزد لکه چه پورته د هدایه نه تیره شوه د اضحیة د وجوب دپاره غنی شرط ده او د جمهورو په نزد اگر چه قربانی خو سنت موکده ده واجب نه ده اوس د دې تاکد د سنیت دپاره غنی شرط ده که نه؟ نو په کتابونو د مالکیانو کښې غنیٰ شرط کړې شوې ده او د هغوی په نزد چه کوم سړې د قوت عام مالک نه وی د هغه په حق کښې سنت نه ده، او په کتب شافعیه کښې تصریح ده چه د دې دپاره غنی شرط نه ده بس مستطیع کیدل کافی دی. په مسافر باندې اضحیة شته او که نه؟ په دې باندې مستقل کلام په "باب فی المسافر یضحی" د لاندې را روان دې.

**فائده:** د باب آخری حدیث: ﴿ ولکن تاخذ من شعرک واظفارک الخ ﴾ د لاندې په بذل المجهود کښې لیکلې دی: ثم ظاهر الحدیث وجوب الاضحیة الا علی العاجز ولذا قال جمع من السلف تجب علی المعسر ویؤیده حدیث ﴿یا رسول اللهﷺ استدین واضحی قال نعم فانه دین ﴾ مقضی الی آخر مافی البذل. یعنی د بعض علماء کرامو په نزد په غریب باندې هم قربانی واجب ده ځکه چه په حدیث کښې دی چه د یو سائل په سوال باندې رسول اللهﷺ اوفرمائیل او قرض اخستلو سره هم قربانی کوئ ځکه چه دا قرض به ادا شی. یا مطلب دا چه قربانی په انسان باندې یو قسم دین او واجب ده.

**بحث رابع: (د اضحیه د ورځو تعین اوتعداد)**

د ایام اضحیة تعیین او تعداد کښې کافی اختلاف دې کوم لره چه شیخ رحمه الله په اوجز المسالک ۳۰۵/۳ کښې لیکلې دې، د دې په آخر کښې شیخ صاحب لیکی: ﴿ والجملة ان فی

تعيين ايام الاضحية سبعة مذاهب الاول يوم النحر فقط وهو مذهب داؤد وابن سيرين. الثاني ثلاثة ايام وهو مذهب الائمة الثلاثة وغيرهم. الثالث اربعة ايام وهو مذهب الشافعي رحمه الله وغيره. الرابع يوم النحر وستة ايام بعد وهو قول قتادة. الخامس عشرة ايام حكاه ابن التين السادس الى آخر ذي الحجة وهو مذهب ابن حزم (لرواية ابى سلمة بن عبدالرحمن وسليمان بن يسار قالا بلغنا ان رسول الله ﷺ قال الاضحى الى هلال المحرم لمن استاذن بذلک (كذا فى المحلى) السابع يوم فى الامصار وثلاثة فى منى وهو قول سعيد بن جبير وجابر بن زيد، الى آخر ما فى الاوجز او په متن د (ابو شجاع ۲۴۳) کښې دی ووقت الذبح من وقت صلاة العيد الى غروب الشمس من آخر ايام التشريق او د هغې په حاشيه کښې دی يعنې يولسمه او دولسمه او ديارلسمه ذوالحجة روى ابن حبان عن جبير بن مطعم رضى الله عنه قال قال رسول الله ﷺ ﴿ وكل ايام التشريق ذبح ﴾ اى وقت للذبح ۱هـ د دې تفصيل نه معلومه شوه چه د ائمه ثلاثه په نزد ايام اضحيه درې دی او د شوافعو په نزد څلور دی د لسمې ذوالحجې نه واخله تر د ديارلسمې د ماښام پورې.

**بحث خامس: (د ذبح د وخت ابتداء)**

د ذبح د وخت ابتداء د کله نه ده نو په دې باندې علماء کرامو متفق دی ان الذبح قبل صلاة العيد لا يجوز، او په دې کښې اختلاف دې چه د امام د قربانۍ نه مخکښې د نورو خلقو قرباني جائز ده يا نه؟ د جمهور علماء کرامو او ائمه ثلاثه په نزد جائز ده. د امام مالک په نزد د امام د ذبح نه مخکښې د چا دپاره ذبح کول جائز نه دی. او د هغوی د اختلاف سبب په دې باب کښې د راغلې مختلفو آثارو (روايتونو) دې. وذلک انه جاء فى بعضها انه صلى الله تعالى عليه وسلم امر لمن ذبح قبل الصلوة ان يعيد الذبح وفى بعضها انه امر لمن ذبح قبل ذبحه ان يعيد اخرجه مسلم الى آخر ما فى الاوجز، په دې کښې نور تفصيل باب ما يجوز فى الضحايا من السن په آخر کښې را روان دې.

**بحث سادس: (قرباني دکله نه مشروع شوه؟)**

د قربانۍ د مشروعيت ابتداء په قرآن کريم کښې ذکر شوې ده پس ارشاد دې ﴿ فلما بلغه السعى قال يا بنى انى ارى فى المنام انى اذبحک فانظر ماذا ترى الاية ﴾ د ابراهيم ﷺ چه ترڅو پورې اولاد نه وو شوې نو هغه الله پاک ته دعا اوکړه چه ﴿ رب هب لى من لدنک من الصالحين فبشرناه بغلام حليم ﴾ د دې نه پس پورته آيت کريمه ذکر شوې دې چه کله ئې هغه خوئې (اسمعيل ﷺ داسې عمر ته اورسيدو چه د خپل پلار سره په ګرځيدو شو نو بعض مفسرينو ليکلې دی چه هغه وخت د هغوی عمر ديارلس کاله شوې وو نو ابراهيم ﷺ دې خوئې ته اوفرمائيل بچوريه زه په خوب کښې ګورم چه زه تا ذبح کوم پس ته هم سوچ اوکړه چه ستا څه رائې ده په دې باندې هغوی عرض اوکړو چه ﴿ يا ابت افعل ما تومر ﴾ اې باباجانه د کومې خبرې چه تاسو ته حکم شوې دې هغه پوره کړئ الى آخر القصة چه په هغې کښې دا دی چه کله ابراهيم ﷺ چاړه راخکله نو د بار بار راخکلو باوجود مرئ نه پرې کيده ﴿ وناديناه ان يا ابراهيم قد صدقت الرؤيا الاية ﴾ په روايت کښې دی چه ابراهيم ﷺ دې آسمانی آواز اوريدو سره پورته اوکتل نو

جبرائیل علیه السلام د یو ګډ سره ولاړ وو، دا جنتي ګډ ابراهیم علیه السلام ته ورکړې شو او هغه د الله پاک په حکم باندې د خپل خوی په ځائې هغه قرباني کړو. (معارف القرآن ملخصا)

دا مضمون په سنن ابن ماجه او د مسند احمد په روایت کښې داسې ذکر شوې دې عن زید بن ارقم قال قال اصحاب رسول الله ﷺ ما هذه الاضاحی یا رسول الله ﷺ؟ قال سنة ابیکم ابراهیم علیه السلام قالوا فما لنا فیها یا رسول الله؟ قال بکل شعرة حسنة الحدیث د رسول الله ﷺ هم دا ارشاد دې چه دا اضحیه د ابراهیم علیه السلام سنت دې د دې شروع د هغه ځائې نه شوې ده.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي إِيجَابِ الْأَضَاحِي

### د قربانۍ د وجوب بیان

[۲۷۸۸](۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ. ح وحَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، حَدَّثَنَا بِشْرٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَوْنٍ، عَنْ عَامِرٍ أَبِي رَمْلَةَ، قَالَ: أَخْبَرَنَا مِخْنَفُ بْنُ سُلَيْمٍ، قَالَ: وَنَحْنُ وُقُوفٌ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَرَفَاتٍ قَالَ: يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّ عَلَى كُلِّ أَهْلِ بَيْتٍ فِي كُلِّ عَامٍ أُضْحِيَّةً وَعَتِيرَةً، أَتَدْرُونَ مَا الْعَتِيرَةُ هَذِهِ الَّتِي يَقُولُ النَّاسُ الرَّجَبِيَّةُ؟، قَالَ أَبُو دَاوُد: الْعَتِيرَةُ مَنْسُوخَةٌ هَذَا خَبَرٌ مَنْسُوخٌ.

د مخنف بن سلیم نه روایت دې دې وائی او مونږ دنبی علیه السلام سره په عرفات کښې ولاړ وو هغه اوفرمائیل اې خلقو یقینا په هرکور والاباندې په هرکال کښې یوځل قرباني کول واجب دي اوعتیره هم اوتاسو ته پته شته چه عتیره څه شي دې داهغه شې دې کوم ته چه خلق رجیه وائي. ابوداود وائی عتیره منسوخ شوي ده اوداخبر هم منسوخ دې.

﴿ انبانا مخنف بن سلیم قال ونحن وقوف مع رسول الله ﷺ بعرفات قال یا ایها الناس ان علی اهل کل بیت فی کل عام اضحیة وعتیرة الخ ﴾

مخنف بن سلیم صحابی رضی الله عنه فرمائی چه کوم وخت مونږ د رسول الله ﷺ سره په عرفات کښې وقوف کونکی وو نو هغوی اوفرمائیل اې خلقو! په هر کور والا باندې او د هغوی په ذمه اضحیه او عتیره ده، او بیا ئې اوفرمائي تاسو ته پته شته چه عتیره څه څیز دې؟ عتیره هم هغه ده چه هغې ته خلق رجبیة وائی.

### د قربانۍ د وجوب دلیل:

احنافو د دې حدیث نه د قربانۍ په وجوب باندې استدلال کړې دې ځکه چه لفظ "علی" د الزام او وجوب دپاره راځی، او دویم څیز کوم چه په دې حدیث کښې ذکر شوې دې یعنی عتیره هغه د جمهورو په نزد د نورو احادیثو په وجه منسوخ ده لهذا د قربانۍ وجوب باقی پاتې شو، د عتیره تفسیر لکه چه څنګه پخپله په دې حدیث کښې ذکر شوې دې دا د هغه ذبیحې او قربانۍ نوم دې چه د اسلام په شروع کښې د رجب په عشره اولی کښې کیدله، په دې وجه دې ته رجبیه هم وائی.

دلته یو دریم څیز بل دې کوم چه په احادیثو کښې راغلې دې یعنی فرع، د دې ذکر

(۱): سنن الترمذي/الأضاحي ۱۹(۱۵۱۸)، سنن النسائي/الفرع والعتيرة ۱(۴۲۲۹)، سنن ابن ماجه/الأضاحي ۲ (۳۱۲۵)، (تحفة الأشراف: ۱۱۲۴۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۱۵/۴، ۷۶/۵) (حسن)

د كتاب الاضحية په آخر كښې آخرى باب "باب فى العتيرة" كښې را روان دي لهذا په دې دواړو باندې كلام انشاء الله هم په هغه ځائې كښې راشي.
والحديث اخرجه الترمذى والنسائى وابن ماجه، قاله المنذرى.

[۲۷۸۹]() حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَزِيدَ، حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ أَبِي أَيُّوبَ، حَدَّثَنِي عَيَّاشُ بْنُ عَبَّاسٍ الْقِتْبَانِيُّ، عَنْ عِيسَى بْنِ هِلَالٍ الصَّدَفِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أُمِرْتُ بِيَوْمِ الْأَضْحَى عِيدًا جَعَلَهُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ لِهَذِهِ الْأُمَّةِ، قَالَ الرَّجُلُ: أَرَأَيْتَ إِنْ لَمْ أَجِدْ إِلَّا أُضْحِيَةً أُنْثَى، أَفَأُضَحِّي بِهَا قَالَ: لَا، وَلَكِنْ تَأْخُذُ مِنْ شَعْرِكَ وَأَظْفَارِكَ وَتَقُصُّ شَارِبَكَ، وَتَحْلِقُ عَانَتَكَ، فَتِلْكَ تَمَامُ أُضْحِيَّتِكَ عِنْدَ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ".

دعبدالله بن عمرو بن العاص نه روايت دې چه نبى عليه السلام فرمائيلى دى حكم شوې دې ماته داخترکولو په ورځ د قربانۍ باندې (۱۰ ذي الحجه) کومه چه الله تعالى ددې امت دپاره اختر ګرځولې ده، چاعرض اوکړو چه اې دالله رسوله که چرې زماسره د سوالى (امانت) اوښه ياچيلۍ وى اونور څه نه وى نوايا زه په دې قرباني اوکړم؟ نبى عليه السلام اوفرمائيل نه بلکه ته خپل ويښته کم کړه اونوکان پرې کړه اوبريت برابر کړه داستادپاره قربانى ده دالله تعالى په نزد.

﴿ عن عبدالله بن عمرو بن العاص رضى الله عنهما ان النبى صلى الله عليه وسلم قال : امرت بيوم الاضحى عيدا جعله الله لهذه الامة الخ ﴾

## شرح الحديث:

رسول الله ﷺ فرمائى چه ماته د دې خبرې حكم شوې دې چه زه يوم الاضحى لره د اختر ورځ جوړه کړم، ځکه چه الله پاک دې ورځې لره زما د امت دپاره د اختر ورځ مقرر کړې ده (او چونکه د دې ورځې په احکاماتو کښې يو حکم شرعى قربانۍ هم ده په دې وجه سائل د رسول الله ﷺ نه هغه سوال اوکړو کوم چه دلته په حديث کښې ذکر شوې دې هغه دا دې) يو صحابى عرض اوکړو چه که ماسره د منيحه نه علاوه بل څه نه وى نو آيا زه هم د دې قربانى اوکړم؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل بلکه ته داسې اوکړه چه په دې ورځ کښې خپل ويښته او نوکونه او خپل بريت واړه کړه او د نامه نه لاندې ويښته اوخرايه، ستا پوره قربانى د الله پاک په نزد هم دغه ده.

رسول الله ﷺ ګويا دا ټول امور د هغه په حق کښې د قربانۍ بدل اوګرزولو.

د منيحه اطلاق په هغه پئ ورکونکې اوښه يا بيزې باندې کيږى چه هغې لره د هغې مالک يو ضرورت مند انسان ته د څه مودې دپاره ورکړى چه هغه د هغې پيو نه په دغه موده کښې فائده اوچته کړى او بيا هغه څاروې خپل مالک ته واپس کړى، رسول الله ﷺ هغه صحابى لره د هغه منيحه د قربانۍ نه منع کړو، يا خو په دې وجه چه دا د هغه د ضرورت څيز وو او هغه سره دهغې نه علاوه بل دپيو ورکولو څاروې نه وو (كذا فى البذل)

او يا ئې په دې وجه منع کړو لکه چه پورته ذکر شو چه د منيحه انسان پخپله مالک نه وى. هغه د بل څيز وى کوم چه به بيا واپس کولې شى. والحديث اخرجه النسائى قال المنذرى.

(): سنن النسائي/الضحايا ١ (٤٣٧٠)، (تحفة الأشراف: ٨٩٠٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٩/٢) (حسن)

## بَابُ الأُضْحِيَةِ عَنِ الْمَيِّتِ

### د مړی د طرف نه قربانی کول

[۲۷۹۰]([1]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ أَبِي الْحَسْنَاءِ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ حَنَشٍ قَالَ: رَأَيْتُ عَلِيًّا يُضَحِّي بِكَبْشَيْنِ، فَقُلْتُ لَهُ: مَا هَذَا؟ فَقَالَ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْصَانِي أَنْ أُضَحِّيَ عَنْهُ فَأَنَا أُضَحِّي عَنْهُ.

دحنش نه روایت دې فرمائی چه ما علي رضي الله عنه اولیدو چه په دوه ګډانوئې قرباني کوله ماورته اووئیل داڅه دي؟ هغه اووئیل ماته نبی عليه السلام وصیت کړې وو ددې خبرې چه زه دې دهغه دطرف نه قرباني اوکړم، نودایوه قرباني زه دهغه دطرف نه کوم.

﴿عن حنش قال رایت علیا یضحی بکبشین فقلت له ما هذا الخ﴾

حنش وائی چه ما علی رضي الله عنه اولیدو چه هغوی همیشه دوه ګډان قربانی کوی نو ما د دې په باره کښې د هغوی نه تپوس اوکړو چه تاسو دوه څاروی ولې قربانی کوئ؟ هغوی اوفرمائیل: ځکه چه ما ته رسول الله ﷺ وصیت کړې دې چه زه د هغوی د طرف نه قربانی اوکړم، لهذا یو قربانی زه د خپل طرف نه کوم او دویمه د رسول الله ﷺ د طرف نه.

دا روایت په ترمذی کښې هم دې او د دې په اخیر کښې دا زیادت دې، ﴿فلا ادعه ابدا﴾ چه زه دا پرېږدم نه بلکه همیشه به داسې کوم.

### مسئلة الباب کښې مذاهب ائمة:

امام ترمذی فرمائی د بعض اهل علم په نزد د مړی د طرف نه قربانی کول جائز دی او بعض دې لره جائز نه ګڼړی او بیا ئې د عبدالله بن مبارک مسلک دا نقل کړې دې چه زما په نزد غوره دا ده چه د مړی د طرف نه دې صدقه اوکړې شی نه قربانی او که یو انسان د مړی د طرف نه قربانی اوکړی نو په هغې کښې دې خپله هیڅ نه خوری بلکه ټول دې صدقه کړی آه او جمهور وائی چه:

د رسول الله ﷺ د خپل ټول امت د طرف نه قربانی کول ثابت دی چه په هغې کښې احیاء او اموات ټول داخل دی، او دا هم ثابته نه ده چه رسول الله ﷺ به چه کومه قربانی د امت د طرف نه کوله د هغې نه به ئې خپله څه نه خوړل بلکه ټول به ئې صدقه کوله او د احنافو مسلک په دې کښې هغه دې کوم چه په الکوکب الدری کښې ذکر دې ففیه: قوله ولم یر بعضهم ان یضحی عنه، وهولاء حملوا هذا الحدیث علی الخصوصیة، وعند نااله ان یضحی عن المیت غیر انه ان کان بوصیة من لیس له ان یاکل منه، وان لم یکن وصیة منه حل له اکلها کما فی اضحیة نفسه من غیر فضل آه..... والحدیث اخرجه الترمذی، قال المنذری.

---

[1]: سنن الترمذي الأضاحي ۳(۱٤۹۵)، (تحفة الأشراف: ۱۰۰۷۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۱۰۷، ۱٤۹، ۱۵۰) (ضعيف)

## بَابُ الرَّجُلِ يَأْخُذُ مِنْ شَعْرِهِ فِي الْعَشْرِ وَهُوَ يُرِيدُ أَنْ يُضَحِّيَ

بیان د هغه کس څوک چه د قربانۍ اراده لري چه د ذي الحجې په لسو ورځو کښې به وېښته نه کمه وي

[٢٧٩١](1) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مُسْلِمٍ اللَّيْثِيُّ، قَالَ: سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ، يَقُولُ: سَمِعْتُ أُمَّ سَلَمَةَ، تَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ كَانَ لَهُ ذِبْحٌ يَذْبَحُهُ فَإِذَا أَهَلَّ هِلَالُ ذِي الْحِجَّةِ فَلَا يَأْخُذَنَّ مِنْ شَعْرِهِ وَلَا مِنْ أَظْفَارِهِ شَيْئًا حَتَّى يُضَحِّيَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: اخْتَلَفُوا عَلَى مَالِكٍ، وَعَلَى مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو فِي عَمْرِو بْنِ مُسْلِمٍ، قَالَ بَعْضُهُمْ: عُمَرُ وَأَكْثَرُهُمْ قَالَ: عَمْرٌو، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهُوَ عَمْرُو بْنُ مُسْلِمِ بْنِ أُكَيْمَةَ اللَّيْثِيُّ الْجُنْدَعِيُّ.

ام المومنين ام سلمه رضي الله عنها نه روايت دي فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي چاچه قرباني نيولي وي دذبح کولو دپاره نوکله چه دذي الحجه میاشت راوخيژي نونه دې پرې کوي دخپلو وېښتو نه اونه دنوکانونه هيڅ شی ترڅوچه ئې قرباني نه وی کړي.

﴿ قال رسول الله ﷺ من كان له ذبح يذبحه فاذا اهل هلال ذى الحجة فلا ياخذن من شعره الخ﴾

لفظ "ذبح" په کسرې د ذال سره دې يعنې ذبيحه، هغه څاروې چه د هغه د ذبح کولو اراده ده لکه څنګه چه د الله پاک ارشاد دې ﴿ وفديناه بذبح عظيم ﴾ او کوم ذبح چه په فتحې سره دې هغه مصدر دې. يعنې کوم انسان چه د قربانۍ اراده لرې نو د هغه دپاره د يکم ذوالحجة نه تر د قربانۍ پورې ويختهٔ خرول او نوکونه پرې کول نه دی پکار.

### مسئلة الباب کښې مذاهب ائمة:

دا نهي ظاهر او د حنابله په نزد دا د تحريم دپاره ده، او د امام شافعي رحمه الله او مالک رحمه الله په نزد د کراهت دپاره ده. او د احناف په نزد خلاف اولی ده لکه په بذل المجهود کښې دی. امام ترمذی د دې حديث نه پس ليکی: والى هذا الحديث ذهب احمد واسحاق ورخص بعض اهل العلم كفى ذلك فقالوا لا باس ان ياخذ من شعره واظفاره وهو قول الشافعي واحتج بحديث عائشة رضى الله عنها ﴿ ان النبى ﷺ كان يبعث بالهدى من المدينة فلا يجتنب شيئا مما يجتنب من المحرم ﴾ آه... امام نووی رحمه الله په دې کښې د امام شافعی رحمه الله مسلک د کراهت تنزيهی ليکلې دې. غالبا د امام ترمذی مراد د لاباس نه هم دا دې يعنې جائز مع الكراهة د دې نه پس امام ترمذی رحمه الله د امام شافعی رحمه الله په دليل کښې د عائشې رضي الله عنها حديث پيش کړې دې، د هغې جواب په عرف الشذی کښې شاه صاحب رحمه الله دا ورکړې دې چه د رسول الله ﷺ بعث هدی غير ذی الحجة کښې کيدلو په دې وجه به هغوی د دې نه ځان نه ساتلو، او شاه صاحب دا هم فرمائي والعرض التشاكل بالحجاج يعنى په حديث الباب کښې چه د وېښتو لرې کولو او د بريتو د ورولو چه کوم ممانعت دې په دې سره مقصود قربانۍ کونکې لره مشابهت اختيارول دی د حاجی محرم سره.

والحديث اخرجه مسلم والترمذى والنسائى، وابن ماجة بمعناه قال المنذرى.

(1): صحيح مسلم/الأضاحي ٣ (١٩٧٧)، سنن الترمذي/الأضاحي ٢٤ (١٥٢٣)، سنن النسائي/الضحايا ١ (٤٣٦٦)، سنن ابن ماجه/الأضاحي ١١ (٣١٤٩)، (تحفة الأشراف: ١٨١٥٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٢٨٩، ٣٠١، ٣١١)، سنن الدارمي/الأضاحي ٢ (١٩٩٠) (حسن صحيح)

# باب مَا يُسْتَحَبُّ مِنَ الضَّحَايَا

## قرباني په کوم قسم څاروی باندې بهتره ده؟

[٢٧٩٢]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي حَيْوَةُ، حَدَّثَنِي أَبُو صَخْرٍ، عَنْ ابْنِ قُسَيْطٍ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ بِكَبْشٍ أَقْرَنَ يَطَأُ فِي سَوَادٍ، وَيَنْظُرُ فِي سَوَادٍ، وَيَبْرُكُ فِي سَوَادٍ فَأُتِيَ بِهِ فَضَحَّى بِهِ، فَقَالَ: يَا عَائِشَةُ هَلُمِّي الْمُدْيَةَ، ثُمَّ قَالَ: اشْحَذِيهَا بِحَجَرٍ فَفَعَلَتْ، فَأَخَذَهَا وَأَخَذَ الْكَبْشَ فَأَضْجَعَهُ وَذَبَحَهُ، وَقَالَ: بِسْمِ اللَّهِ اللَّهُمَّ تَقَبَّلْ مِنْ مُحَمَّدٍ وَآلِ مُحَمَّدٍ وَمِنْ أُمَّةِ مُحَمَّدٍ، ثُمَّ ضَحَّى بِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

دام المومنين عائشته رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه نبی عليه السلام د ښکرونو والا ګډ اوغوښتو د کوم چه سترګې سينه اوخيټه او پښې تورې وې وبې فرمائيل چاړه په کاڼړي تيره کړئ او رائې وړئ ماورته راوړو نبی عليه السلام واخستو اوګی ئې په زمکه څملولو اوذبح کولو قصد ئې اوکړو اودا دعائې اوفرمائيله: «بسم الله اللَّهُمَّ تقبل من محمد وآل محمد ومن أمة محمد» دالله په نوم سره زبح کوم، اې الله محمد دطرف نه اودهغه دال اواولاد او امة دطرف نه دا قبول کړې، او بيانبی عليه السلام دغه کی قرباني کړو.

﴿ عن عائشة رضی الله عنها ان رسول الله ﷺ امر بكبش اقرن يطا فی سواد وينظر فی سواد ﴾

**شرح الحديث:**

يعنی رسول الله ﷺ د داسې ښکلی ګډ د قربانئ حکم ورکړو چه په هغې کښې دا صفتونه موندلې کيږی چه د ښکرو والا وی، ګرځيدونکې وی په تور والی کښې يعنی د هغه خپې تورې وی، او ګوری په توروالی کښې يعنی د هغه سترګې ښکلې تورې وی، کينی په تور والی کښې يعنی د هغه خيټه او ډډې تورې وی. بيا هغوی اوفرمائيل اې عائشې! چاړهٔ راوړه او د هغې پلک په کاڼړی باندې راخکلو سره تيرهٔ کړه، بيا هغوی هغه راڅملولو او ذبح ئې کړو او د ذبح کولو په وخت ئې دا اوئيل ﴿ بسم الله اللهم تقبل من محمد وال محمد ومن امة محمد ﴾ (ﷺ)

د قربانئ د څاروی د ذبح کولو په وخت دې هغه په ګسه ډډه باندې څملولې شي چه په هغې سره د هغه څاروی سر د ذبح کونکی طرف ته شي او هغه د هغه سر لره په ګس طرف ته په زورسره په ښی لاس باندې په آسانئ سره ذبح کړی. قاله النووی وذکر اتفاق العلماء عليه او ددې شکل به دا وی چه د اضحيهٔ سر جنوب او خپلې شمال طرف ته کيخودلې شی او په ګس طرف باندې څملولې شی چه د څاروی استقبال قبلې طرف ته شی.

په دې حديث کښې دی چه رسول الله ﷺ د يو ګډ قربانی د خپل طرف نه او د خپل اهل بيت بلکه د ټول امت د طرف نه اوکړه، آيا د يو بيزې قربانی د ټولو خلقو د طرف نه کيدې شی، د دې مسئلې دپاره وړاندې په کتاب کښې يو مستقل باب را روان دې "باب فی الشاة يضحی بها عن جماعة"

(): صحيح مسلم الأضاحي ٣ (١٩٦٧)، (تحفة الأشراف: ١٧٣٦٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٧٨/٦) (حسن)

## د قربانئ په څاروی کښې شرکت او په هغې کښې د مذاهب ائمه تفصيل او تحقيق

په دې کښې بعض علماء کرام لکه د امام مالک، احمد او اوزاعی رحمهم الله مسلک هم دا دې چه يو بيزه د پوره کور د طرف نه جائز ده اګر چه هغوی د اووۀ کسانو نه هم ډير وی. او د دوه کورونو والو دطرف نه جائزنه دي اګر چه د هغوی تعداد د اووۀ نه کم وی، (کذا فی البدائع وغيره وسيجئ تفصيل المذاهب) د احنافو د طرف نه د دې جواب داسې ورکړې شوې دې چه دا حديث منسوخ دې د هغه حديث په وجه باندې کوم چه په راروان "باب البقر عن کم تجزئ" د لاندې راروان دې. او يا دې دا اوئيلې چه دا د رسول الله ﷺ په خصوصياتو کښې دې، او دريم تاويل دا کړې شوې دې چه په دې سره مقصود مشارکة فی الثواب دې نه د ټولو د طرف نه قربانی، والله تعالی اعلم. دا آخری توجيه زياته غوره معلوميږی.

په موطاء امام مالک کښې "الشرکة فی الضحايا" د عنوان د لاندې په اوجز څلورم جلد کښې شيخ صاحب رحمه الله د امامانو مذاهب داسې ليکلې دی د امام مالک مسلک ئې د علامه باجی مالکی نه نقل کړی دی چه د هغوی په نزد هدی واجب دې او په اضحية کښې دا خبره جائز نه ده چه يو څاروې د قربانئ د څاروی په قيمت کښې شريکيدو سره واخلی او د هغې قربانی اوکړی که هغه بقره وی يا که بدنه، او په هدئ د تطوع کښې د هغوی دوه اقوال دی، قول مشهور هم هغه دې چه په دې کښې هم اشتراک جائز نه دې چه د يو انسان دپاره د قربانئ څاروې وی او هغه د هغه قربانی اوکړی د خپل طرف نه او د خپل اهل وعيال د طرف نه اګر چه هغه د اووۀ نه زيات وی آه ګويا د دې کلام حاصل دا شو چه د امام مالک رحمه الله په نزد د قربانئ څاروې که غوا وی که اوښ وی او که ګډ وی د هغې قربانی صرف د يو انسان د طرف نه کيدې شی، خو که خاص د خپل اهل بيت په دې کښې نيت اوکړی نو هغه صحيح دې اګر که هغه اهل بيت د اووۀ نه زيات ولې نه وی، او د احنافو مسلک باجی دا بيان کړې دې چه د هغوی په نزد هدی او اضحيه هر دواړو کښې د اووۀ کسانو شرکت کيدې شی (ای فی البدنة والبقرة) په دې شرط چه د ټولو شريکانو مقصود په دې ذبح سره قربت وی اګر چه د قربت وجود مختلف وی، لکه جزاء صيد او فديه اذی وغيره او که په دې شريکانو کښې د يو شريک مقصد قربت نه وی نو هغه قربانی به صحيح نه وی هغه فرمائی چه د امام شافعی رحمه الله په نزد په هر صورت کښې جائز ده (که د ټولو مقصود قربت وی او که نه وی) او د دې دواړو (احنافو او شوافعو) په دې خبره اتفاق دې چه د اووۀ نه د زياتو شرکت جائز نه دې، فالخلاف بيننا وبينهم فی فصلين احدهما انه لا يجوز الاشتراک فی الرقبة عندنا ويجوز عندهم والثانی انه يجوز عندنا ([1]) ان تنحر البدنة الواحدة عن اکثر من سبعة وعندهم لا يجوز ذلک آه علامه باجی د حنابله مسلک نقل نه کړو. ابن قدامه د هغوی مسلک په دې کښې د احنافو او شوافعو مطابق ليکلې دې. يعنی دا چه په بدنه او بقره کښې د اووۀ کسانو شرکت کيدې شی، د قربت نيت کيدل د شوافعو په شان د هغوی په نزد هم ضروری نه دی او د مالکيانو

[1] ای عند المالکية لان القائل هو العلامة الباجي)

په نزد خو چونکه نفس شرکت جائز نه دي په دې وجه هلته د اتحاد نيت او اختلاف نيت سوال هم نه پيدا کيږي، ابن قدامه فرمائي چه په بدنة او بقرة کښې د اووه شرکت مطلقا جائز دي برابره خبره ده که هغوی مشترک وی د يو کور نه او يا نه وی. بيا وړاندې ابن قدامه کفاية عن اهل بيت واحد په مسئله کښې ليکلی دی ولا باس ان يذبح الرجل عن اهل بيته شاة واحدة او بقرة او بدنة نص عليه احمد وبه قال مالک والليث والاوزاعی آه

د دې نه پس تاسو ځان په دې پوهه کړئ چه د شاة په باره کښې د شوافعو او حنابله او مالکيانو د درې واړو په کتب فروع کښې دا ملاويږي ﴿ انها تجزی عن الرجل وعن اهل بيته وان کانوا سبعة او اکثر ﴾ خو د جائز کيدو مفهوم د هغوی په نزد دې چه اضحيه خوبه د ذابح د طرف نه ګڼړلې شي او د ثواب استحقاق به هم خاص د هغه دپاره وی خو چونکه د هغه حضراتو په نزد قرباني سنت علی الکفاية ده په دې وجه د يو سړی قرباني کول به د ټول اهل بيت د طرف نه کافي شي د څه نه چه د هغوی په کتابونو کښې په سقوط الطلب سره تعبير کړې شوې دې يعنی د دې قربانئ نه پس د کور والو نه د اضحيه شرعا مطالبه پاتې نه شوه.[1] او حديث الباب چه په هغې کښې دا دی چه رسول الله ﷺ د کبش واحد قرباني د خپل ټول امت د طرف نه اوکړه دا هغوی په خصوصيت باندې محمول کړې دې د حصول ثواب للامة په حق کښې. والحديث اخرجه مسلم قاله المنذری.

[۲۷۹۳][2] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحَرَ سَبْعَ بَدَنَاتٍ بِيَدِهِ قِيَامًا، وَضَحَّى بِالْمَدِينَةِ بِكَبْشَيْنِ أَقْرَنَيْنِ أَمْلَحَيْنِ.

دانس نه روايت دې چه نبی عليه السلام اووه اوښان په ولاړه په خپل لاس حلال کړي وو او په مدينه کښې ئې په دوه ښکرورو ګڼانو قرباني کړې وه.

﴿ نحر سبع بدنات بيده قياما وضحی بالمدينة بکبشين اقرنين املحين ﴾

## شرح الحديث:

دا حديث د بخاری په کتاب الحج کښې "باب من نحر هديه بيده" هم په دې طريق سره هم داسې روايت دې په ظاهر کښې د نحر بدن واقعه د مکې مکرمې ده، او د کبشين املحين د قربانئ واقعه. لکه چه په روايت کښې تصريح ده د مدينې منورې ده، اوس به سوال دا وی چه په حج کښې خو رسول الله ﷺ لکه چه په رواياتو کښې تصريح ده د سلو هدايا نحر فرمائيلې وو د دې جواب کتاب الحج ته د رجوع کولو نه معلوميږي چه په دې کښې

---

[1] ) ففي شرح الاقناع من فروع الشافعية ٢٤٠ وتجزئ البدنة عن سبعة وكذا البقرة وتجزئ الشاة عن واحد فقط ، فان ذبحها عنه وعن اهله او عنه واشرك غيره في ثوابها جاز آه وفي هامشه : والشاة عن واحد فقط فان قلت هذا مناف لما بعده حيث قال فان ذبحها عنه وعن اهله الخ اجيب بانه لا منافاة لان قوله عن واحد اي من حيث حصول التضحية حقيقة وما بعده الحاصل للغير انما هو سقوط الطلب عنه واما الثواب التضحية حقيقة فخاصان بالفاعل علي كل حال آه وفي الروض المربع ونيل المآرب من فروع الحنابلة : تجزئ الشاة عن واحد واهل بيته وعياله والبدنة والبقرة عن سبعة)

[2] ): صحيح البخاري/الحج ٢٤ (١٥٤٧)، ٢٥ (١٥٤٨)، ٢٧ (١٥٥١)، ١١٩ (١٧١٥)، الجهاد ١٠٤ (٢٩٥١)، ١٢٦ (٢٩٨٦)، صحيح مسلم/صلاة المسافرين ١ (٦٩٠)، سنن النسائي/الضحايا ١٣ (٤٣٩٢)، وقد مضي هذا الحديث برقم (١٧٩٦)، (تحفة الأشراف: ٩٤٧) (صحيح)

روایات مختلف دی د اووۀ اوښانو يو روايت پکښې هم دې، او د سبع د تخصيص يو وجه په کتاب الحج کښې دا تيره شوې ده يعنی په هغوی کښې هر يو رسول الله ﷺ ته نزدې کيده چه اوګوري په مونږ کښې د کوم يو نه شروع فرمائی. ﴿كلهن يزدلفن اليه بايتهن يبدأ﴾ (۱)

﴿ املح ﴾ هغه څاروې چه د هغه د ويښتو سپين والې د هغه په تور والي باندې غالب وی (بذل) وفي المرقات : الاملح افعل من الملحة وهی بياض يخالطه السواد وعليه اكثر اهل اللغة وقيل بياضه اكثر من سواده، وقيل هو نقي البياض آه (عون)

تنبيه: دا حديث پوره په صحيح بخاری کښې موجود دې كما تقدم فالعجب من الحافظ المنذری حيث قال اخرج البخاری قصة الكبشين فقط بنحوه.

[۲۷۹۴](۲) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَحَّى بِكَبْشَيْنِ أَقْرَنَيْنِ أَمْلَحَيْنِ يَذْبَحُ وَيُكَبِّرُ وَيُسَمِّي وَيَضَعُ رِجْلَهُ عَلَى صَفْحَتِهِمَا.

دانس رضی الله عنه نه روايت دې چه نبی علیه السلام په دوه ښکرورو ګډانو قربانی کړې وه دذبح په وخت به ئې تکبير وئيلو او بسم الله به ئې وئيله او په څټ به ئې ورله خپه ايښودلې وه.

[۲۷۹۵](۳) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا عِيسَى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ أَبِي عَيَّاشٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ: ذَبَحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الذَّبْحِ كَبْشَيْنِ أَقْرَنَيْنِ أَمْلَحَيْنِ مُوجَأَيْنِ، فَلَمَّا وَجَّهَهُمَا قَالَ: "إِنِّي وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِي فَطَرَ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضَ عَلَى مِلَّةِ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا وَمَا أَنَا مِنَ الْمُشْرِكِينَ، إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ لَا شَرِيكَ لَهُ، وَبِذَلِكَ أُمِرْتُ وَأَنَا مِنَ الْمُسْلِمِينَ، اللَّهُمَّ مِنْكَ وَلَكَ وَعَنْ مُحَمَّدٍ وَأُمَّتِهِ بِاسْمِ اللَّهِ وَاللَّهُ أَكْبَرُ"، ثُمَّ ذَبَحَ.

دجابر بن عبدالله رضی الله عنه نه روايت دې چه نبی علیه السلام دقربانۍ په ورځ باندې دوه ښکرور څاربه خسی ګډان ذبح کړل، هرکله چه ئې قبيلې ته مخامخ کړل وئې فرمائيل يقينا زه خپل مخ دهغه ذات طرف ته متوجه کوم چاچه زمکه او اسمانونه پيدا کړی دی اوزه په دين ابراهيمي باندې قائم يم اود مشرکانونه نه يم يقينا زمامونځ زما قرباني زماژول عبادتونه زما ژوند اوزما مرګ خالص دالله تعالی دپاره دې دهغه څوک شريک نشته دې اوماته په دې خبره باندې حکم شوې دې اې الله داقرباني ستا ورکړه ده اوداصرف ستادرضادپاره ده، د محمد دطرف نه اودهغه دامت دطرف نه دالله په نوم سره اوالله دهرڅه نه ډير لوئې دې ددې کلماتو وئيلونه پس ئې ذبح کړل.

﴿ عن جابر بن عبدالله رضی الله عنهما قال ذبح النبی صلی الله عليه وسلم يوم الذبح كبشين اقرنين املحين موجوئين ﴾ وفي بعض النسخ موجبين، وفي بعضها موجيين يعنی خصی.

امام خطابی رحمه الله فرمائی په دې کښې دليل دې په دې خبره باندې چه د خصی قربانی

۱) خو په ابوداؤد کښې دا حديث د عبدالله بن قرط رضی الله عنه په روايت سره دې ولفظه وقرب لرسول الله ﷺ بدنات خمس اوست فطفقن يزدلفن اليه بايتهن يبداء الحديث)

۲): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۳٦٤) (صحيح)

۳): سنن ابن ماجه/الأضاحي ۱ (۳۱۲۱)، (تحفة الأشراف: ۳۱٦٦)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الأضاحي ۲۲ (۱۵۲۱)، مسند احمد (۳۵٦/۳، ۳٦۲، ۳۷۵)، سنن الدارمي/الأضاحي ۱ (۱۹۸۹) (حسن)

مکروه نه ده او بعض اهل علمو د دې قربانی مکروه کړې ده ﴿ لنقص العضو ﴾ خو دا نقص عیب نه دې ځکه چه د خصاء په وجه باندې غوښه مزیداره کیږی او د هغې بدبوئی ختمیږی.

او د دې نه روستو حدیث کښې چه د هغې راوی ابوسعید خدری رضی الله عنه دې په هغې کښې دی ﴿ بکبش اقرن فحیل ﴾ یعنی داسې کبش چه په جفتئ کښې ډیر غوره وی، او د فحل اطلاق په مطلق نر باندې هم کیږی، په دواړو روایتونو کښې په ظاهره تعارض دې لکه چه ابن العربی داسې ګنړلې ده هغه وائی په دې حدیث د ابوسعید رضی الله عنه سره د هغه روایت تردید کیږی چه په هغې کښې موجوئین وارد شوې دې، حافظ فرمائی دا خبره نه ده بلکه په دې کښې احتمال د تعدد دواقعاتو دې یو ځل رسول الله ﷺ قربانی دخصی اوکړه او یو ځل د غیر خصی. (تحفة الاحوذی)

حدیث جابر رضی الله عنه اخرجه ابن ماجة وحدیث ابی سعید اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجة قاله المنذری

[۲۷۹٦]([1]) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، حَدَّثَنَا حَفْصٌ، عَنْ جَعْفَرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُضَحِّي بِكَبْشٍ أَقْرَنَ فَحِيلٍ يَنْظُرُ فِي سَوَادٍ، وَيَأْكُلُ فِي سَوَادٍ، وَيَمْشِي فِي سَوَادٍ.

دابوسعید خدری رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی علیه السلام به په ښکرو والاګډ باندې قرباني کوله کوم چه به توربخن ښکاریدو او په تور والی کښې به ئې خوراك کولو او په توروالي کښې به ګرځیدو یعنی سترګي او پښې ئې توري وي.

## بَابُ مَا يَجُوزُ مِنَ السِّنِّ فِي الضَّحَايَا

### د قربانئ د څاروی دپاره څومره عمر ضروری دی؟

یعنی د کوم عمر د څاروی قربانی جائز ده.

[۲۷۹۷]([2]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي شُعَيْبٍ الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَذْبَحُوا إِلَّا مُسِنَّةً، إِلَّا أَنْ يَعْسُرَ عَلَيْكُمْ، فَتَذْبَحُوا جَذَعَةً مِنَ الضَّأْنِ".

دجابر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی په قربانی کښې صرف مسنه ذبح کوئ که چرې مسنه نه ملاویږي نوبیا جزعه ذبح کړئ.

﴿ عن جابر رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ لا تذبحوا الا مسنة الا ان یعسر علیکم فتذبحوا جذعة من الضان ﴾

### د مسنة مصداق سره د اختلاف د ائمه:

رسول الله ﷺ فرمائی چه قربانی دې صرف په مسنه سره اوکړې شی او د هغې نه په کم دې

---

[1]): سنن الترمذي/الأضاحي ٤ (١٤٩٦)، سنن النسائي/الضحايا ١٣ (٤٣٩٥)، سنن ابن ماجه/الأضاحي ٤ (٣١٢٨)، (تحفة الأشراف: ٤٢٩٧) (صحيح)

[2]): صحيح مسلم/الأضاحي ٢ (١٩٦٢)، سنن النسائي/الضحايا ١٢ (٤٣٨٣)، سنن ابن ماجه/الأضاحي ٧ (٣١٤١)، (تحفة الأشراف: ٢٧١٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣١٢، ٣٢٧) (صحيح)

نه شي کولې. په معنی د عمر والا چه هغه ته ثني هم وئيلې شي، بيا په دې باندې ځآن پوهول پکار دی چه مسنة د هر ځاروی ځانله ځانله وی، پس مسنة الابل هغه دې چه د پنځو کالو کيدو سره په شپږم کال کښې داخل شی او مسنة البقر هغه دې چه د پوره دوه کالو کيدو سره په دريم کال کښې داخل شی او په غنم کښې که هغه ګډه وی که بيزه هغه ده چه د پوره يو کال کيدو سره په دويم کال کښې داخل شی.

په دې باندې ځان پوهول پکار دی چه غنم جنس دې چه د هغې دوه قسمونه دی معز (بيزه يا چيلئ) او ضان (ګډان) د دې نه پس په حديث کښې دا دی چه که يو انسان ته مسنة حاصله نه شی نو هغه جذع من الضان کولې شی. جذع په لغت کښې هغه ته وئيلې شی چه پوره د يو کال وی او شرعا چه کم از کم د شپږو مياشتو وی ما تمت له ستة اشهر كذا في الهداية، او بعض علماء کرامو د دې تفسير داسې ليکلې دې ﴿ما اتى عليه اكثر الحول﴾ يعنی چه په هغه باندې د کال اکثره حصه تيره شوې وی، په دېحديث کښې د جذع سره د ضان قيد دې هم په دې وجه جذع من المعز (د بيزې د شپږو مياشتو بچې) په ائمه اربعه کښې د چا په نزد هم جائز نه دې. امام نووی فرمائی جدغ من الضان مطلقا د ټولو علماء کرامو په نزد جائز دې سواء وجد غيره ام لا په بذل المجهود کښې ليکی چه فقهاء په جذعه کښې دا شرط لګولې دې چه داسې تندرست او څورب وی چه هغه د پوره کال په ګډانو کښې پريخودلې شی نو د هغوی سره ئې فرق محسوس نه شی.

دا څه چه مونږ د مسنة د مصداق په باره کښې اوليکل په دې کښې د احنافو او حنابله مسلک خو بعينه هم دا دې خو د شوافعو او مالکيانو په دې کښې په بعض کښې اختلاف دې، پس د شوافعو په نزد مسنة الغنم که هغه معز وی او که ضان هغه دې چه پوره د دوه کالو وی، او جذع من المعز والضان هغه دې چه د يو کال وی، او د مالکيانو په نزد په مسنة البقر کښې اختلاف دې د هغوی په نزد مسنة البقر هغه دې چه د درې کالو وی، پس د شوافعو اختلاف په غنم کښې او د مالکيانو په بقر کښې شو، او د دې نه دا هم معلومه شوه چه د جذع من الضان د کوم چه په حديث کښې اجازت ورکړې شوې دې هغه د ائمه ثلاثه په نزد خو هغه دې چه د شپږو مياشتو وی يا داسې اوايه چه د يو کال نه کم وی، او د شوافعو په نزد هغه دې چه پوره د يو کال وی، په دې هم ځان پوهول پکار دی چه جذع من الضان چه د جمهور او څلورو امامانو په نزد جائز دې او په دې کښې د سيدنا عبدالله بن عمر رضی الله عنهما او امام زهری رحمه الله اختلاف دې هغوی دا جائز نه ګڼړی لکه چه په شروحو کښې دی (من الاوجز والبذل)

والحديث اخرجه مسلم والنسائي وابن ماجة، قاله المنذری.

[۲۷۹۸]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ صُدْرَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الأَعْلَى بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي عُمَارَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ طُعْمَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ، قَالَ: قَسَمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي أَصْحَابِهِ ضَحَايَا فَأَعْطَانِي عَتُودًا جَذَعًا: فَرَجَعْتُ بِهِ إِلَيْهِ، فَقُلْتُ لَهُ: إِنَّهُ جَذَعٌ، قَالَ: ضَحِّ بِهِ، فَضَحَّيْتُ بِهِ.

دزید بن خالد جهنی ﷺ نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ په صحابه کرامو باندې د قربانۍ څاروی تقسیم کړل اوماته ئې چیلی یوبچې کوم چه یوکلن وو رائې کړو مادغه بچې نبی ﷺ ته واپس بوتلو او ورته مې اووئیل چه داخو جزعه دې نبی ﷺ اوفرمائیل په دې قرباني اوکړه نوماذبح کړو اوقرباني مې پرې اوکړه.

﴿ عن زید بن خالد الجهنی ﷺ قال قسم رسول الله ﷺ فی اصحابه ضحایا فاعطانی عتودا جذعا ﴾

**شرح الحدیث:**

یعنی رسول الله ﷺ په خپلو اصحابو کښې د قربانۍ څاروی تقسیم کړل، هغوی ماته هم د بیزې یو بچې راکړو. هغوی وائی چه ما هغه رسول الله ﷺ ته راوستلو او عرض مې اوکړو چه یا رسول الله ﷺ دا خو جذع یعنی ناقص العمر دې، رسول الله ﷺ اوفرمائیل ته د دې قربانی اوکړه.

دا جذع که من المعزوی نو بیا خو به د دې صحابی خصوصیت وی او د بل چا دپاره به جائز نه وی، او که ﴿جذع من الضان﴾ وه نو بیا په خصوصیت باندې د حمل کولو ضرورت نشته.
والحدیث اخرجه البخاری ومسلم من روایة عقبة بن عامر الجهنی رضی الله عنه، قاله المنذری.

[۲۷۹۹]()حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، حَدَّثَنَا الثَّوْرِيُّ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: كُنَّا مَعَ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يُقَالُ لَهُ مُجَاشِعٌ مِنْ بَنِي سُلَيْمٍ فَعَزَّتِ الْغَنَمُ فَأَمَرَ مُنَادِيًا، فَنَادَى أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ: "إِنَّ الْجَذَعَ يُوَفِّي مِمَّا يُوَفِّي مِنْهُ الثَّنِيُّ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهُوَ مُجَاشِعُ بْنُ مَسْعُودٍ.

اصم بن کلیب دخپل پلارنه روایت کوی فرمائی چه مونږه په صحابه کرامو کښې دیوکس سره وو چه مجاشع به ورته وئیلې شو دبنی سلیم قبیلې والا یوځل ګډان چیلی ګران شول نوهغه اعلان کونکی ته داعلان کولوحکم اوکړو چه دا اعلان اوکړي چه نبی ﷺ فرمائیلی وو چه په کوم ځائې کښې مسنه کافی وي نوهلته جزعه هم کافی ده ابوداود وائی دغه مجاشع بن مسعود وو.

﴿ عن عاصم بن کلیب عن ابیه قال کنا مع رجل.......... فعزت الغنم فامر منادیا فنادی ان رسول الله ﷺ کان یقول ان الجذع یوفی مما یوفی من الثنی ﴾

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۷۵۱)، وقد أخرجه: صحیح البخاري/الوکالة ۱ (۲۳۰۰)، والشرکة ۱۲ (۲۵۰۰)، والأضاحي ۲، (۵۵۴۷) ۷ (۵۵۵۵)، صحیح مسلم/الأضاحي ۲ (۱۹۶۵)، سنن الترمذي/الأضاحي ۷ (۱۵۰۰)، سنن النسائي/الضحایا ۱۲ (۴۳۸۴)، سنن ابن ماجه/الأضاحي ۷ (۳۱۳۸)، مسند احمد (۱۴۹/۴، ۱۵۲، ۱۹۴/۵)، سنن الدارمي/الأضاحي ۴ (۱۹۹۶)، کلهم عن عقبة بن عامر رضي الله عنه (حسن صحیح)

[2]): سنن النسائي/الضحایا ۱۲(۴۳۸۹)، سنن ابن ماجه/الأضاحي ۷ (۳۱۴۰)، (تحفة الأشراف: ۱۱۲۱۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۶۸/۵) (صحیح)

کليب فرمائي چه مونږ د يو صحابي ﷺ سره وو چه د هغه نوم مجاشع دې. يو کال داسې اوشو چه د بيزو (چيلو) کمې پيدا شو يعني د پوره عمر والو، نو هغه صحابي په يو سړي باندې دا اعلان اوکړو چه رسول الله ﷺ به فرمائيل چه د ګډ د شپږو مياشتو بچې هم هغه کار ورکوی چه د پوره عمر والا ورکوي. والحديث اخرجه ابن ماجة قال المنذري.

[۲۸۰۰]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، حَدَّثَنَا مَنْصُورٌ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنِ الْبَرَاءِ قَالَ: خَطَبَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ النَّحْرِ بَعْدَ الصَّلَاةِ، فَقَالَ: "مَنْ صَلَّى صَلَاتَنَا وَنَسَكَ نُسُكَنَا فَقَدْ أَصَابَ النُّسُكَ، وَمَنْ نَسَكَ قَبْلَ الصَّلَاةِ فَتِلْكَ شَاةُ لَحْمٍ، فَقَامَ أَبُو بُرْدَةَ بْنُ نِيَارٍ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ وَاللَّهِ لَقَدْ نَسَكْتُ قَبْلَ أَنْ أَخْرُجَ إِلَى الصَّلَاةِ، وَعَرَفْتُ أَنَّ الْيَوْمَ يَوْمُ أَكْلٍ وَشُرْبٍ، فَتَعَجَّلْتُ فَأَكَلْتُ وَأَطْعَمْتُ أَهْلِي وَجِيرَانِي، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تِلْكَ شَاةُ لَحْمٍ، فَقَالَ: إِنَّ عِنْدِي عَنَاقًا جَذَعَةً وَهِيَ خَيْرٌ مِنْ شَاتَيْ لَحْمٍ فَهَلْ تُجْزِءُ عَنِّي، قَالَ: نَعَمْ، وَلَنْ تُجْزِءَ عَنْ أَحَدٍ بَعْدَكَ".

دبراء بن عازب نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام مونږ ته دلوی اختر په ورځ باندې پس دمانځه نه خطبه راکړه اووئې فرمائيل څوک چه زمونږ د مونځ په شان مونځ اوکړي او څوک چه زمونږ دقربانۍ په شان قرباني اوکړي نوده قرباني اوکړه (يعني اجر به ورته ملاو شي او څوک چه دلوي اختر مونځ نه مخکښې قرباني اوکړي نودا صرف غوښه ده قرباني نه ده نو په دې وخت کښې ابوبرده بن نيار پاڅيدوار عرض ئې اوکړو اې دالله رسوله په الله قسم ماخودلوی اختر دمونځ نه مخکښې قرباني اوکړه اومادا ګڼړل چه داورځ دخوراک څښاک ده نومادتوندئ نه کار واخستو ما پخپله هم اوخوړله او پخپلې ښځې اوبچو اوګاونډيانوي هم اوخوړه، نبي عليه السلام اوفرمائيل داخوصرف دغوښې چيلې شو بياابوبرده عرض اوکړو اې دالله رسوله زماسره يوجزعه چيلې موجود دې کوم چه دغوښې والا دوه چيلونه بهتردې نواياد قرباني دپاره به دا کافي وي؟ نبي عليه السلام اوفرمائيل ليکن دغه چيلې ستانه علاوه به دبل چادپاره کافي نه وي (داحکم صرف ستادپاره دې).

﴿ عن البراء رضی الله عنه قال خطبنا رسول الله ﷺ يوم النحر بعد الصلوة فقال من صلى صلاتنا ونسک نسکنا الخ ﴾

## شرح الحديث:

يعني يو ځل په لسم د ذوالحجة باندې رسول الله ﷺ د اختر د مانځه خطبه ورکړه چه په هغې کښې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه څوک زمونږ په شان اول د اختر مونځ ادا کړي او بيا زمونږ په شان قرباني اوکړي نو د هغه قرباني خو صحيح ده او کوم انسان چه د اختر د مانځه نه مخکښې قرباني اوکړي نو د هغه دا ذبح کول به د غوښې دپاره وی نه د قربانۍ په طور په دې باندې يو صحابي ابوبرده ﷺ پاسيدو او عرض ئې اوکړو يا رسول الله ﷺ ما د اختر د مانځه نه مخکښې قرباني اوکړه په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل دا ګډ ستا د

[1]: صحيح البخاري/العيدين ۳ (۹۵۱)، ۵ (۹۵۵)، ۸ (۹۷۵)، ۱۰ (۹۶۸)، ۱۷ (۹۷۶)، ۲۳ (۹۸۳)، الأضاحي ۱ (۵۵٤۵) (۵۵۵٦)، ۸ (۵۵۵۷)، ۱۱ (۵۵۵۷)، ۱۲ (۵۵٦۳)، الأيمان والنذور ۱۵ (٦٦۷۳)، صحيح مسلم/الأضاحي ۱ (۱۹٦۱)، سنن الترمذي/الأضاحي ۱۲ (۱۵۰۸)، سنن النسائي/العيدين ۸ (۱۵٦٤)، الضحايا ۱٦ (٤٤۰۰)، (تحفة الأشراف: ۱۷٦۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۸۰/٤، ۲۹۷، ۳۰۲، ۳۰۳)، سنن الدارمي/الأضاحي ۷ (۲۰۰۵) (صحيح)

غوښې ګډ دې. په دې باندې هغوی عرض اوکړو چه ما سره د بيزې يو بچې دې جذع چه د دوه چيلو د غوښو نه هم غوره دې. شراحو ليکلي دی چه مراد دا دې چه د خوراک کونکو په حق کښې د هغه غوښه ډيره عمده ده يا داسې بيان کړه چونکه رسول الله ﷺ هغه صحابی ته د تيرې قربانۍ په باره کښې دا فرمائيلي وو چه هغه قربانی نه ده بلکه شاة لحم دې او هم دې طرف ته اشاره کولو سره هغه صحابی رضی الله عنه عرض اوکړو چه ما سره يو بيزه ده چه اګر که وړه ده خو زما د ړومبۍ قربانۍ په غوښه او ښوروب والی کښې دوچند ده، نو آيا د هغې قربانی به زما دپاره کافی وی؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل ستا دپاره به کافی شی او ستا نه علاوه به د بل چا دپاره کافی نه وی، په ظاهر کښې به دا جذع من المعز وی هم په دې وجه رسول الله ﷺ جواز لره د هغه سره مقيد کړو، په دې وجه دا جواز به د هغه صحابی رضی الله عنه سره خاص وی، دا روايت په سنن ترمذی شريف کښې هم دې ولفظه: ﴿ قال (ای البراء) فقام خالی فقال يا رسول الله هذا يوم اللحم فيه مکروه وانی عجلت نسيکنی ﴾ وفی اخره ﴿يا رسول الله ﷺ عندی عناق لبن هی خير من شاتی لحم ﴾ د عناق لبن معنی شراح دا ليکلي ده، چه د بيزې هغه د پيو ښکلو والا بچې چه لا تراوسه پورې ئې پئ نه دی پريخودلي شوې، او په کوکب الدری کښې دا دی: وئيلې شوې دی چه د عناق لبن نه مراد دا دې چه هغه د ډير ښه نسل د بيزې بچې دې چه ډير زيات پئ ورکونکې ده او وئيلې شوې دی چه مراد دا دې چه ﴿ انها مرباة بلبن کثير ﴾ چه د هغه ښه په ډيرو پيو باندې ساتنه شوې ده چه ښه غوره او ښوروب شی. آهـ

د دې نه پس په دې باندې ځان پوهه کړئ چه د ترمذی په دې روايت کښې دی چه ﴿هذا يوم اللحم فيه مکروه ﴾ د دې مطلب دا بيان کړې شوې دې چه نن ورځ يعنی د قربانۍ په ورځ د سحر په وخت کښې خو غوښه خوښولي شی او مرغوب وی او د ناوخته کيدو نه پس ناخوښه او غير مرغوب شی. په دې وجه ما داسې اوکړل چه سحر وختی مې قربانی اوکړه چه خلق دې لره په شوق او رغبت سره اوخری، هسې خو فی نفسه په دې کښې روايات مختلف دی، پس د مسلم په روايت کښې خو هم داسې دی، او په دويم روايت کښې دی ﴿هذا يوم اللحم فيه مقروم ﴾ چه د هغې معنی ده خوښه، يقال قرمت الی اللحم، وقرمته اذا اشتهيته په دې صورت کښې معنی د حديث ظاهره ده چه چونکه نن ورځ د خلقو رغبت او اشتهاء غوښې طرف ته ډيره وی په دې وجه ما خپله قربانی زر اوکړه. والله تعالی اعلم.

## د قربانۍ وخت کله شروع کيږي:

د دې حديث نه معلومه شوه چه د اختر د مانځه نه مخکښې قربانی کول صحيح نه دی هم په دې وجه په دې حديث باندې امام ترمذی باب ترلې دې، "باب ما جآء فی الذبح بعد الصلوٰة" امام ترمذی دې حديث نه پس فرمائی ﴿ والعمل علی هذا عند اهلم العلم ان لا يضحی بالمصر حتی يصلی الامام وقد رخص قوم من اهل العلم لاهل القری فی الذبح اذا طلع الفجر وهو قول ابن المبارک ﴾ د احناف مسلک د قربانۍ په وخت کښې دا دې چه د قربانۍ وخت د لسمې ذوالحجې د صبح صادق نه شروع کيږي که اهل مصر وی يا اهل قريه خو د اهل مصر په حق

کښې د جواز دپاره شرط زياتی دې هغه دا چه د اختر د مانځه نه پس ځائې په دې باندې تقديم جائز نه دې كذا فى البذل عن البدائع، او د شوافعو او د حنابله مسلک په دې کښې (د اهل قريه او مصر دواړو په حق کښې) دا دې چه د نمر د راختلو نه پس دومره وخت تير شی چه په هغې کښې د اختر مونځ او خطبه ادا کيدې شی، كه لا تراوسه پورې د اختر مونځ ادا شوې يا نه، پس د دومره وخت تيريدل کافی دی..... كذا فى الاوجز عن كتب الفروع، دا مسئله په ابتدائی مباحثو کښې مختصرا تيره شوې ده هلته د دې ځائې حواله ورکړې شوې ده.

والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری.

[۲۸۰۱](۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ، عَنْ مُطَرِّفٍ، عَنْ عَامِرٍ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: ضَحَّى خَالٌ لِي يُقَالُ لَهُ أَبُو بُرْدَةَ قَبْلَ الصَّلَاةِ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "شَاتُكَ شَاةُ لَحْمٍ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ عِنْدِي دَاجِنًا جَذَعَةً مِنَ الْمَعْزِ، فَقَالَ: اذْبَحْهَا وَلَا تَصْلُحُ لِغَيْرِكَ".

دبراء بن عازب رضی الله عنه نه روايت فرمائی چه زما ماما چه ابوبرده به ورته وئيلې شو داختر د مونځ نه مخکښې ئې قربانی اوکړه نبی عليه السلام ورته اوفرمائيل چه ستا چيلې خودغوښې دپاره ذبح شو (قربانی دې اونه شوه) هغه عرض اوکړو اې دالله رسوله زماسره يوه جزعه قسم چيلې موجود دې نبی عليه السلام اوفرمائيل ذبح ئې کړه اوستانه علاوه دبل چادپاره صحيح نه دې.

## باب مَا يُكْرَهُ مِنَ الضَّحَايَا.

### په کومو ځاروو باندې قربانی کول مکروه دی؟

[۲۸۰۲](۲) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ النَّمَرِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عُبَيْدِ بْنِ فَيْرُوزَ، قَالَ: سَأَلْتُ الْبَرَاءَ بْنَ عَازِبٍ مَا لَا يَجُوزُ فِي الْأَضَاحِيِّ، فَقَالَ: قَامَ فِينَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَصَابِعِي أَقْصَرُ مِنْ أَصَابِعِهِ، وَأَنَامِلِي أَقْصَرُ مِنْ أَنَامِلِهِ، فَقَالَ: أَرْبَعٌ لَا تَجُوزُ فِي الْأَضَاحِيِّ الْعَوْرَاءُ بَيِّنٌ عَوَرُهَا، وَالْمَرِيضَةُ بَيِّنٌ مَرَضُهَا، وَالْعَرْجَاءُ بَيِّنٌ ظَلْعُهَا، وَالْكَسِيرُ الَّتِي لَا تَنْقَى، قَالَ: قُلْتُ: فَإِنِّي أَكْرَهُ أَنْ يَكُونَ فِي السِّنِّ نَقْصٌ، قَالَ: مَا كَرِهْتَ فَدَعْهُ، وَلَا تُحَرِّمْهُ عَلَى أَحَدٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: لَيْسَ لَهَا مُخٌّ.

دعبيدبن فيروز نه روايت دې فرمائی چه دبراء بن عازب رضی الله عنه نه پوښتنه وکړه چه دقربانی دپاره کوم قسم ځاروی مناسب دي؟نوبراء رضی الله عنه اوفرمائيل چه يوه ورځ نبی عليه السلام په مونږ کښې پاڅيدو اوزما ګوتې دهغه دګوتونه ورې اوحقيريې دي اوزما دګوتو بندونه دهغه د بندونونه حقير او واړه دي (يعنی په څلورو ګوتوسره ئې اشاره اوکړه او وئې فرمائيل چه څلورقسمه ځاروی د قربانی لائق نه دی، يوخوهغه ځاروی دې کوم چه ښکاره کانړې وي بل هغه چه مرض ئې ښکاره وي او بل هغه ګوډځاروي چه ګوډتوب ئې ښکاره وي اوبل کمزورې اوخوار ځاروی دی دکوم چه پوختئ شميرلې شي، ماعرض وکړوچه زماد قربانئ دپاره هغه ځاروی هم خوښ نه دی دکوم چه عمرکم وي، نبی عليه السلام اوفرمائيل کوم چه درته

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۷۶۹) (صحيح)
(۲): سنن الترمذي/الأضاحي ۵ (۱۴۹۷)، سنن النسائي/الضحايا ۴ (۴۳۷۴)، سنن ابن ماجه/الأضاحي ۸ (۳۱۴۴)، (تحفة الأشراف: ۱۷۹۰)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الضحايا ۱(۱)، مسند احمد (۴/۲۸۴، ۲۸۹، ۳۰۰، ۳۰۱)، سنن الدارمي/الأضاحي ۳(۱۹۹۲) (صحيح)

بدښکاري هغه پرېږده ليکن بل څوك تري مه منع کوه.

﴿ سالت البراء بن عازب ما لايجوز فى الاضاحى فقال قام فينا رسول الله ﷺ الخ ﴾

## شرح الحديث:

عبيد بن فيروز رحمه الله د براء رضي الله عنه نه سوال اوکړو چه کوم څاروی داسې دی چه د هغې قربانی جائز نه ده نو هغوی اوفرمائيل چه يو ځل رسول الله ﷺ مونږ ته اودريدو سره خطبه اوکړه (او چونکه هغوی راتلونکې مضمون د خپل لاس د ګوتو مبارکو په اشارې سره بيان کړې وو او بيا د هغوی په اتباع کښې براء رضي الله عنه هم هغه شان خپلو ګوتو سره اشاره اوکړه په دې وجه هغوی وړاندې فرمائی) چه زما ګوتې خو ډيرې وړې دی د رسول الله ﷺ د ګوتو نه او زما بندونه ډير او کمزوری دی د هغوی د بندونو نه، پس هغوی اوفرمائيل چه څلور قسمه څناور داسې دی چه د هغې قربانی جائز نه ده:

۱: يو عوراء چه د هغې عور بالکل ښکاره وی يعنی د کوم چه يو سترګه خرابه وی او په هغې ورته څه په نظر نه راځی د هغې قربانی جائز نه ده، او که هغه په دواړو سترګو باندې ړوند وی نو د هغه قربانی په طريق اولی جائز نه ده.

۲: هغه مريض څناور چه د هغې مرض صفا ښکاره وی، د دې نه مراد هغه مريضه ده ﴿التی لا تعلف﴾ چه هغې د مرض د وجې نه ګيا خوړل پريخودلې وی.

۳: عرجاء چه د هغې ګوډوالې ښکاره وی، ﴿ ظلع بمعنى عرج اى بين عرجها ﴾ د دې نه مراد هغه څناور ﴿التى لا تمشى الى المنسک ﴾ چه د مذبحه پورې تلې نه شی.[1]

۴: الکبير يعنی بوډا او ډير عمر والا ﴿ التى لا تنقى يعنى التى لا نقى لها ﴾ نقى په معنى د سدر يعنی د هډوکی دننه نلې يعنی داسې بوډا چه د هغه په خپو کښې د نلی پورې نه وی، د دې نه پس په روايت کښې دادی چه ما براء رضي الله عنه ته عرض اوکړو چه زه د قربانئ په څاروی کښې دا ښه نه ګڼړم چه هغه کم عمر وی، هغوی اوفرمائيل چه څه ستا نه وی خوښ نو پخپله هغه پرېږده خو د نورو دپاره ئې مه ناجائز کوه. د نقص فى السن نه مراد نقص شرعی نه دې ځکه چه هغه خو د چا دپاره هم جائز نه دې بلکه د دې نه هغه نقص مراد دې چه په ظاهر کښې د کتلو په لحاظ سره او د عرف په لحاظ وی. مثلاً د يو کال بيزه دا اګر چه عرفا د کم عمر والا ده خو شرعا د قربانئ لائق ده.

د دې نه پس ځان پوهه کړئ چه کوم څلور قسمونه په دې حديث کښې ذکر شوې دی د هغوی قربانی د څلورو واړو امامانو په نزد نا جائز ده او په (اوجز ۲۱۶/۴) کښې دی:

حکى الاجماع على ذلک ابن رشد المالکى فى البداية والموفق فى المغنى والشوکانى فى النيل وغيرهم، وکذلک اجمعوا على ان اليسير من هذه العيوب الاربعة لا يضر والکثير يمنع، ثم اختلفوا فى الحد الفاصل بين اليسير والکثير الى آخر ما فى الاوجز من التفصيل فى ذلک.

والحديث اخرجه الترمذى والنسائى وابن ماجة قال المنذرى.

---

[1] د عرجاء په مصداق کښې چه د دې نه کوم قسم عرج مراد دې ډير د ائمه کرامو ډير اختلاف ذکره فى الاوجز ۲۱۵/۴)

[۲۸۰۳]([1]) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، قَالَ: أَخْبَرَنَا. ح حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ بَحْرِ بْنِ بَرِّيٍّ، حَدَّثَنَا عِيسَى، الْمَعْنَى عَنْ ثَوْرٍ، حَدَّثَنِي أَبُو حُمَيْدٍ الرُّعَيْنِيُّ، أَخْبَرَنِي يَزِيدُ ذُو مِصْرٍ، قَالَ: أَتَيْتُ عُتْبَةَ بْنَ عَبْدٍ السُّلَمِيَّ، فَقُلْتُ: يَا أَبَا الْوَلِيدِ إِنِّي خَرَجْتُ أَلْتَمِسُ الضَّحَايَا، فَلَمْ أَجِدْ شَيْئًا يُعْجِبُنِي غَيْرَ ثَرْمَاءَ فَكَرِهْتُهَا، فَمَا تَقُولُ؟ قَالَ: أَفَلَا جِئْتَنِي بِهَا؟ قُلْتُ: سُبْحَانَ اللهِ تَجُوزُ عَنْكَ، وَلَا تَجُوزُ عَنِّي، قَالَ: نَعَمْ إِنَّكَ تَشُكُّ وَلَا أَشُكُّ، إِنَّمَا نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمُصْفَرَةِ وَالْمُسْتَأْصَلَةِ وَالْبَخْقَاءِ وَالْمُشَيَّعَةِ وَالْكَسْرَاءِ فَالْمُصْفَرَةُ الَّتِي تُسْتَأْصَلُ أُذُنُهَا حَتَّى يَبْدُوَ سِمَاخُهَا، وَالْمُسْتَأْصَلَةُ الَّتِي اسْتُؤْصِلَ قَرْنُهَا مِنْ أَصْلِهِ، وَالْبَخْقَاءُ الَّتِي تُبْخَقُ عَيْنُهَا، وَالْمُشَيَّعَةُ الَّتِي لَا تَتْبَعُ الْغَنَمَ عَجَفًا وَضَعْفًا، وَالْكَسْرَاءُ الْكَسِيرَةُ.

یزید ذومصر وائی چه زه عتبه بن عبد بن سلمي ته ورغلم او ورته مې اووئیل اې ابوالولید دقربانئ دڅاروي په لټولوپسې راوتلې ۵م خوداسې څاروې مې پیدانکړو چه زما خوښ شي علاوه دیوه چیلې نه اودهغه هم یوغابښ مات وو او هغه هم راته مناسب ښکاره نه شو نوستاڅه رایه ده آبوالولید ورته اووئیل ماته دې ولې نه راوستو ماورته اووئیل سبحان الله هغه خوستادپاره درست دې لیکن زما دپاره نه دې هغه اووئیل هو، ستاشك دې اوزماشك نشته دې نبی ﷺ په کوم څاروی باندې د قربانی کولونه منع نه ده فرمائیلې علاوه دمصفره او - مستاصله او بخقاء او مشیعه، کسراء مصفره هغه څاروې دې دکوم نه چه غوږونه پرې شوي وي تردې چه دغوږونو سوري ئې ښکاره شوي وي او مستاصله هغه څاروې دې چه ښکرئې مات وي یاختلې وي او بخقاء هغه څاروې دې دکوم چه د یوې سترګې نظر ختم شوې وي اومشیعه هغه څاروې دې چه دخوار والی او کمزوري توب دوجې نه دنورو څاروو سره نه شي تللې بلکه وروسته پاتې کیږي اوکسراء هغه څاروې دې دکوم چه لاس یا خپه ماته شوې وي ددې نه علاوه نور ټول قسمونه دڅارور دقربانۍ دپاره درست دې نوبیاولې شك کوې؟ ﴿ اخبرنی یزید ذو مصر قال اتیت عتبة بن عبدالسلمی الخ ﴾

## شرح الحدیث:

د یزید لقب ذومصر دې هغه وائی چه یو ځل عتبه بن عبد السلمی ته لاړم او ما هغوی ته اووې چه زه د قربانئ د څاروی په تلاش کښې راوتلې اوم نو ما ته په هغه څارو کښې چه ما اولیدې اول خو خوښ نه شو او کوم چه مې خوښ شو هغه ثرماء یعنی ساقطة الاسنان دی، په دې وجه ما هغه هم ناخوښه کړو، په دې کښې ستاسو څه رائې ده؟ هغوی جواب ورکړو چه تا هغه ماته ولې رانه وستلو (ما به په هغې قربانی کړې وې) ما اووې سبحان الله! دا عجیبه خبره ده چه ستاسو دپاره خو دې جائز شی او زما دپاره دې ناجائز وی، هغوی اوفرمائیل دا په دې وجه چه ته شك کوئ د هغې په جواز کښې او زه شك نه کوم، د دې نه پس هغوی اوفرمائیل چه ﴿ انما نهی رسول الله ﷺ عن المصفرة والمستاصلة والبخقاء والمشیعة والکسرآء ﴾ د دې نه پس بیا وړاندې په روایت کښې د دې صفاتو تفصیل او تشریح ذکر شوې ده هغه دا چه مصفرة نه مراد هغه څاروې دې چه د هغه غوږ بالکل د ویخ نه ویستلې شوې وی. تردې چه د غوږ سورې ئې په نظر راځی او مستاصله هغه څاروې دې چه د هغې

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۹۷۵۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۵۸/٤) (ضعیف)

ښکر د ویخ نه مات شوې وی او بخقاء هغه ځاروې دې چه د هغه د سترګې رڼړا تللې وی (او سترګه ئې په خپل ځائې باندې صحیح او سالم وی) او مشیعة هغه بیزه ده چه د نورو بیزو سره په رمه کښې نه شی تللې دضعف د وجې نه او کسراء هغه ځاروې دې چه خپه ئې ماته وی.

[۲۸۰٤] () حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ، عَنْ شُرَيْحِ بْنِ النُّعْمَانِ، وَكَانَ رَجُلَ صِدْقٍ عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَسْتَشْرِفَ الْعَيْنَ وَالْأُذُنَيْنِ، وَلَا نُضَحِّيَ بِعَوْرَاءَ وَلَا مُقَابَلَةٍ وَلَا مُدَابَرَةٍ وَلَا خَرْقَاءَ وَلَا شَرْقَاءَ، قَالَ زُهَيْرٌ: فَقُلْتُ لِأَبِي إِسْحَاقَ: أَذَكَرَ عَضْبَاءَ، قَالَ: لَا قُلْتُ: فَمَا الْمُقَابَلَةُ؟ قَالَ: يُقْطَعُ طَرَفُ الْأُذُنِ، قُلْتُ: فَمَا الْمُدَابَرَةُ؟ قَالَ: يُقْطَعُ مِنْ مُؤَخَّرِ الْأُذُنِ، قُلْتُ: فَمَا الشَّرْقَاءُ؟ قَالَ: تُشَقُّ الْأُذُنُ، قُلْتُ: فَمَا الْخَرْقَاءُ؟ قَالَ: تُخْرَقُ أُذُنُهَا لِلسِّمَةِ.

علی رضي الله عنه نه روایت دې چه نبی علیه السلام مونږ ته حکم اوکړو چه دقربانۍ دځاروي غوږونه او سترګې ښه اوګورئ چه په دې کښې داسې عیب نه وی کوم چه دقربانۍ دصحت سره منافي وي اوپه کاڼړې ځاروی باندې قرباني مه کوئ او په هغه ځاروی هم قرباني مه کوئ دکوم چه غوږ دښی طرف نه یاچپ طرف نه پرې کړې شوې وي یاهغه چه په غوږ کښې ئې ګول سورې وي یا په اوږدو شلیدلی وي زهیر وائی مادابواسحق نه پوښتنه اوکړه چه ایا عضباء ئې هم ذکرکړو هغه اووئیل نه.

﴿عن علی رضی الله تعالی عنه قال امرنا رسول الله ﷺ ان نستشرف العين والاذن ولا نضحی بعوراء ولا مقابلة ولا مدابرة ولا خرقاء ولا شرقاء الخ﴾

علی رضي الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ مونږ ته حکم فرمائیلې دې چه مونږ به د قربانۍ د ځاروی د سترګه او غوږ په غور ګورو (چه هغه صحیح سالم هم دی) او بیا په دې حدیث کښې د نورو څلورو ځناورو ذکر دې چه د هغې د قربانۍ نه رسول الله ﷺ منع فرمائیلې ده. د هغې څلورو واړو تعلق د عیب فی الاذن سره دې پس مقابله هغه ځاروې دې چه د هغه د غوږ څه حصه د مقدم اذن یعنی د مخکښې طرف نه پرې کولو سره هغه هم هلته پریخودلې شوې وی (بیله کړې شوې نه وی) او مدابره هغه ځاروې دې چه د هغه د غوږ څه حصه د شاته نه پرې کړې شوې وی او هم هغه شان پریخودلې شوې وی او شرقاء هغه ځاروې دې چه د هغه غوږ په اوږد والی پرې کړې شوې وی (ماخوذ من الشرق ای الشق) او خرقاء هغه ځاروې دې چه د هغه په غوږ کښې غونډې سورې کړې شوې وی للسمة یعنی د علامت په طور.

**په حدیث الباب کښې مذاهب ائمة:**

د دې څلورو واړو قسمونو قربانی د شوافعو په نزد جائز نه ده دا نهی د هغوی په نزد د تحریم دپاره ده، او د احنافو په نزد د تنزیه دپاره. په دې وجه چه د احنافو په نزد د غوږ حکم دا دې چه که هغه نیم یا اکثر مقطوع وی نو د هغې قربانی ناجائز ده او که د نیم نه کم مقطوع وی نو جائز ده، او د مالکیانو په نزد که ثلث مقطوع وی نو جائز ده او مافوق الثلث

[1]): سنن الترمذي/الأضاحي ٦ (١٤٩٨)، سنن النسائي/الضحايا ٨ (٤٣٧٧) ٨ (٤٣٧٨)، ٩ (٤٣٧٩)، سنن ابن ماجه/الأضاحي ٨ (٣١٤٢)، (تحفة الأشراف: ١٠١٢٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٨٠، ١٠٨، ١٢٨، ١٤٩)، سنن الدارمي/الأضاحي ٣ (١٩٩٥) (ضعيف)

جائز نه ده کما یظهر من کلام الدردیر او د شوافعو په نزد په دې کښې مطلقا ګنجائش نشته، پس په شرح الاقناع کښې دی : ولا یجزی مقطوع بعض الاذن وان کان یسیرا وقال ابو حنیفة ان کان المقطوع دون الثلث اجزاء آه...... د مذهب حنفی په نقل کښې په دې کښې تسامح دې بلکه زمونږ په نزد مادون النصف معفو عنه دې لکه چه مخکښې تیر شو او د حنابله په نزد په اذن کښې دوه روایتونه دی یو د احنافو په شان چه مادون النصف معاف دې او دویم روایت د نصف دې، ففی الروض المربع ۲۲۲ ویجزئ مع الکراهة ما باذنه او قرنه خرق اوشق او قطع اقل من النصف او النصف فقط علی ما نص علیه فی روایة حنبل وغیره آه.

والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجة قاله المنذری.

[۲۸۰۵](١) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ أَبِي عَبْدِ اللَّهِ الدَّسْتُوَائِيُّ وَيُقَالُ لَهُ هِشَامُ بْنُ سَنْبَرٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ جُرَيِّ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ عَلِيٍّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى أَنْ يُضَحَّى بِعَضْبَاءِ الْأُذُنِ وَالْقَرْنِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: جُرَيٌّ سَدُوسِيٌّ بَصْرِيٌّ لَمْ يُحَدِّثْ عَنْهُ إِلَّا قَتَادَةُ.

د علی رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام منع فرمائیلی ده ددې نه چه قربانی دې اوکړې شي په داسې څاروی دکوم چه ښکر مات وي يائې غوږ پرې کړې شوې وي ابوداود وائی چه جري سدوسي بصري دې دده نه صرف قتاده دحدیث روایات نقل کړي دي.

﴿ عن علی رضی الله تعالی عنه ان النبی صلی الله علیه وسلم نهی ان یضحی بعضباء الاذن والقرن ﴾ یعنی مقطوع الاذن او مکسور الاذن، وړاندې په روایت کښې دی ﴿ قلت لسعید بن المسیب ما الاعضب قال النصف فما فوقه ﴾ په ظاهره د سعید بن المسیب رحمه الله د کلام حاصل د عضب القرن سره دې نه د اعضب الاذن سره ځکه چه په اذن کښې خو تفصیل دې او مذاهب مختلف دی لکه چه اوس مخکښې تیر شو او اعضب القرن یعنی مکسور القرن مطلقا جائز دې لهذا النصف فما فوقه به هم په د ښکښې جاری کیږی.

حدیث علی رضی الله تعالی عنه اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجة قاله المنذری

[۲۸۰۶](٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ قَتَادَةَ قَالَ: قُلْتُ لِسَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ: مَا الْأَعْضَبُ؟ قَالَ: النِّصْفُ فَمَا فَوْقَهُ.

قتاده رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دسعید بن مسیب نه مې پوښتنه اوکړه چه عضباء کم قسم څاروی ته وئیلې شي هغه اووئیل چه غوږ ئې دنیمې نه زیات پرېکړې شوې وي.

(١): سنن الترمذي/الأضاحي ٩ (١٥٠٤)، سنن النسائي/الضحايا ١١ (٤٣٨٢)، سنن ابن ماجه/الأضاحي ٨ (٣١٤٥)، (تحفة الأشراف: ١٠٠٣١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٨٣، ١٠١، ١٠٩، ١٢٧، ١٢٩، ١٥٠) (ضعيف)
(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٧٢١) (صحيح)

## بَابٌ فِي الْبَقَرِ وَالْجَزُورِ عَنْ كَمْ تُجْزِءُ؟

### د غواګانو او د اوښانو قربانۍ د څو کسانو د پاره کافي ده؟

[۲۸۰۷] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ: كُنَّا نَتَمَتَّعُ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَذْبَحُ الْبَقَرَةَ عَنْ سَبْعَةٍ، وَالْجَزُورَ عَنْ سَبْعَةٍ نَشْتَرِكُ فِيهَا.

جابر بن عبدالله نه روایت دې فرمائي چه مونږ به کله د نبی ﷺ په زمانه کښې حج تمتع کولو نو غوا به مو د اوه کسانو د طرف نه ذبح کړه او اوښ به مو هم د اوه کسانو د طرف نه ذبح کړو، او مونږ به په دې کښې شريك وو.

﴿ عن جابر بن عبدالله رضی الله تعالی عنهما قال كنا نتمتع فی عهد رسول الله ﷺ نذبح البقرة عن سبعة والجزور عن سبعة الخ ﴾

د جمهور علماء کرامو مسلک هم دا دې چه که بقره وی یا اوښ په دواړو کښې د اووۀ کسانو شرکت کیدې شی (٢) امام ترمذی رحمه الله د دې حدیث د تخریج نه پس فرمائی ﴿هذا حديث حسن صحيح والعمل على هذا عند اهل العلم ثم قال وقال اسحاق يجزئ ايضال البعير عن عشرة واحتج بحديث ابن عباس رضی الله عنهما آه. ﴾ د ابن عباس رضی الله عنهما حدیث په ترمذی کښې د دې نه مخکښې تیر شوې دې. ولفظه ﴿ كنا مع رسول الله ﷺ فی سفر فحضر الاضحی فاشترکنا فی البقرة سبعة وفی البعیر عشرة ﴾ قال ابوعیسی حدیث ابن عباس حدیث حسن غریب لانعرفه الا من حدیث فضل بن موسی آه..... دا حدیث د ابن عباس رضی الله عنهما په ابوداؤد کښې نشته په باقی سنن ثلاثه کښې شته او حدیث د جابر رضی الله عنه د بخاری نه علاوه په باقی ټولو کتب صحاح کښې موجود دې د جمهورو په نزد هم دا راجح ده او علامه شوکانی رحمه الله حدیث د ابن عباس رضی الله عنهما په اضحیه باندې محمول کړې دې او حدیث د جابر رضی الله عنه په هدی باندې یعنی د بدنه په قربانۍ کښې د لسو شرکت کیدې شی او که هغه هدی دې نو صرف د اووۀ کسانو شرکت کیدې شی. والحدیث اخرجه مسلم والنسائی قاله المنذری

[۲۸۰۸] (٣) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ قَيْسٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "الْبَقَرَةُ عَنْ سَبْعَةٍ وَالْجَزُورُ عَنْ سَبْعَةٍ".

جابر بن عبدالله رضی الله عنه نه روایت دې فرمائي چه نبی ﷺ فرمائيلی دی غوا د اوه کسانو د پاره کافي ده او اوښ هم د اوه کسانو د پاره کافي دې.

[۲۸۰۹] () حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ الْمَكِّيِّ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّهُ قَالَ: نَحَرْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْحُدَيْبِيَةِ الْبَدَنَةَ عَنْ سَبْعَةٍ، وَالْبَقَرَةَ عَنْ سَبْعَةٍ.

---

١ ): صحيح مسلم/الحج ٦٢ (١٣١٨)، سنن النسائي/الضحايا ١٥ (٤٣٩٨)، (تحفة الأشراف: ٢٤٣٥)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الحج ٦٦ (٩٠٤)، موطا امام مالك/الضحايا ٥ (٩) (صحيح)

٢ ) او د مالکیانو د مسلک تحقیق مخکښې ذکر شوې دې چه د هغوی په نزد شرکت فی الاضحية جائز نه دې.

٣ ): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٤٧٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٦٣/٣) (صحيح)

جابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه مونږ دنبي عليه السلام سره په حديبيه کښې اوښ داوه کسانو دطرف نه او غواهم داره کسانو دطرف نه ذبح کړه.

## بَابٌ فِي الشَّاةِ يُضَحَّى بِهَا عَنْ جَمَاعَةٍ

### دخوکسانو دطرف نه يو قرباني کول کافي دي؟

[۲۸۱۰]() حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ يَعْنِي الإِسْكَنْدَرَانِيَّ، عَنْ عَمْرٍو، عَنِ الْمُطَّلِبِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: شَهِدْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الأَضْحَى بِالْمُصَلَّى، فَلَمَّا قَضَى خُطْبَتَهُ نَزَلَ مِنْ مِنْبَرِهِ وَأُتِيَ بِكَبْشٍ فَذَبَحَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ، وَقَالَ: "بِسْمِ اللَّهِ وَاللَّهُ أَكْبَرُ هَذَا عَنِّي وَعَمَّنْ لَمْ يُضَحِّ مِنْ أُمَّتِي".

جابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه زه دنبي عليه السلام سره دلوي اختر په ورځ په عيدګاه کښې موجود وم نوهرکله چه ئي خطبه پوره کړه نو راکوزشو دبرخپل نه او يو ګډ ورته راوستلي شو نبي عليه السلام په خپل لاس مبارک ذبح کړو او اوئي فرمائيل: «بسم الله والله أكبر هذا عني وعمن لم يضح من أمتي» دازما دطرف نه ده اوزما په امت کښې چه چاقرباني نه وي کړي دهغه دطرف نه ده.

په مسئلة الباب او حديث الباب باندې کلام نزدې د په ﴿ باب ما يستحب من الضحايا ﴾ د لاندې تير شوې دې.

## بَابُ الإِمَامِ يَذْبَحُ بِالْمُصَلَّى

### دامام دپاره په عيدګاه کښې د خپلې قرباني ذبح کولو بيان

وفي الاوجز ٤/ عن المسوى الذبح في المصلى احسن اظهارا لشعار الدين آه.... د جمهور علماء کرامو په نزد خو دعام ده په دې وجه امام بخاري رحمه الله ترجمه قائم کړې ده ﴿باب الاضحى والنحر بالمصلى﴾ خو امام ابوداؤد په دې ترجمه کښې د امام سره دا مقيد کړې دې کوم چه د امام مالک رحمه الله مسلک دې. ففي ((الابواب والتراجم ٦/ ٣٣) قال ابن بطال: ﴿هو السنة للامام خاصة عند مالک، قال مالک انما يفعل ذلک لئلا يذبح احد قبله وليذبحوا بعده على يقين وليتعلموا منه صفة الذبح آه ﴾ زه وايم او دلته په ابتدائي مباحثو کښې هم تيره شوې ده چه د امام مالک مسلک دا دې چه د خلقو دپاره قرباني کول تر هغه وخته پورې جائز نه دي تر څو چه امام قرباني نه وي کړې.

[۲۸۱۱]() حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، أَنَّ أَبَا أُسَامَةَ حَدَّثَهُمْ عَنْ أُسَامَةَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، كَانَ يَذْبَحُ أُضْحِيَتَهُ بِالْمُصَلَّى وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يَفْعَلُهُ.

---

[۱]: سنن الترمذي/الأضاحي ٢٢ (١٥٢١)، سنن ابن ماجه/الأضاحي ١ (٣١٢١)، (تحفة الأشراف: ٣٠٩٩)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الأضاحي ١ (١٩٨٩)، مسند احمد (٣/٣٥٦، ٣٦٢) (صحيح)

[۲]: سنن ابن ماجه/الأضاحي ١٧ (٣١٦١)، (تحفة الأشراف: ٧٤٧٣)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/العيدين ٢٢ (٩٨٢)، والأضاحي ٦ (٥٥٥٢)، سنن الترمذي/الضحايا ٩ (١٥٠٨)، سنن النسائي/العيدين ٢٩ (١٥٩٠)، والأضاحي ٢ (٤٣٧١)، مسند احمد (٢/١٠٨، ١٥٢) (حسن صحيح)

نافع دابن عمر رضی اللہ عنہ نه روایت کوی فرمائی چه نبی علیہ السلام به خپله قرباني په عیدګاه کښې ذبحه کوله، او ابن عمر به هم داسې کول.

وحديث الباب اخرجه البخاری والنسائی وابن ماجة بنحوه قاله المنذری

## بَاب فِي حَبْسِ لُحُومِ الأَضَاحِي

### دقربانۍ د غوښو دساتلو بیان

[۲۸۱۲]() حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالَتْ: سَمِعْتُ عَائِشَةَ تَقُولُ: دَفَّ نَاسٌ مِنْ أَهْلِ الْبَادِيَةِ حَضْرَةَ الأَضْحَى فِي زَمَانِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ادَّخِرُوا الثُّلُثَ، وَتَصَدَّقُوا بِمَا بَقِيَ" قَالَتْ: فَلَمَّا كَانَ بَعْدَ ذَلِكَ، قِيلَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ لَقَدْ كَانَ النَّاسُ يَنْتَفِعُونَ مِنْ ضَحَايَاهُمْ وَيَجْمُلُونَ مِنْهَا الْوَدَكَ، وَيَتَّخِذُونَ مِنْهَا الأَسْقِيَةَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَمَا ذَاكَ، أَوْ كَمَا قَالَ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ نَهَيْتَ عَنْ إِمْسَاكِ لُحُومِ الضَّحَايَا بَعْدَ ثَلاَثٍ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّمَا نَهَيْتُكُمْ مِنْ أَجْلِ الدَّافَّةِ الَّتِي دَفَّتْ عَلَيْكُمْ فَكُلُوا وَتَصَدَّقُوا وَادَّخِرُوا".

دام المومنین عائشة رضی اللہ عنہا نه روایت دي فرمائی چه دنبی علیہ السلام په زمانه کښې څه خلق دځنګل اوسیدونکي راغلل نبی علیہ السلام اوفرمائیل دقربانۍ دغوښې دریمه حصه اوساتئ اوباقی پاتې صدقه کړئ ام المومنین فرمائی ددې نه پس خلقو نبی علیہ السلام ته عرض اوکړو چه اې دالله رسوله مخکښې به خلقو دخپلو قربانونه فائدې اخستلې اوددې نه به ئې چربي اوښکله اودڅرمنو نه به ئې مشکونه جوړول نبی علیہ السلام اوفرمائیل ستاسو څه مطلب دې هغوی عرض اوکړو اې دالله رسوله تاسو منع فرمائیلې ده دقربانۍ دغوښې دساتلونه ددرې ورځونه زیات نبی علیہ السلام اوفرمائیل ما ځکه منع کړې وه چه دځنګل نه څه غریبانان خلق راغلي. وو دهغوی دپاره اوس د قربانی غوښه خورئ اوصدقه هم ورکوئ اوساتلې ئې هم شئ.

### د حديث مضمون:

**قوله:** ﴿ سمعت عائشة رضی الله تعالی عنها تقول : دف ناس من اهل البادية حضر ةالاضحی فی زمان رسول الله ﷺ﴾ مضمون د حديث دا دې چه عائشه رضی اللہ عنہا فرمائی چه یو ځل د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د قربانۍ په موقعه باندې د څه کلو نه خلق مدینې منورې ته راغلل، په دې باندې رسول الله ﷺ خلقو ته اوفرمائیل چه هغوی دې د خپلو خپلو قربانو غوښې د درې ورځو په اندازه اوساتی او باقی دې صدقه کړی چه کله په بل کال د قربانۍ زمانه راغله نو خلقو رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ خلق به د خپلو قربانو نه منتفع کیدل او د هغې وازګه به ئې ویلې کولو سره رډله او د قربانۍ د څرمنو نه به ئې مشکونه جوړول، په دې باندې هغوی تپوس اوکړو ﴿ وما ذاک؟ ﴾ نو بیا څه خبره ده (یعنی تاسو ته په دې کښې څه اشکال دې؟) خلقو عرض اوکړو ځکه تاسو د لحوم الاضاحی د امساک نه منع فرمائیلې

---

[1]): صحيح مسلم/الأضاحي ٥ (١٩٧١)، سنن النسائي/الضحايا ٣٦ (٤٤٣٦)، (تحفة الأشراف: ١٦١٦٥، ١٧٩٠١)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الأضاحي ١٤ (١٥١١)، سنن ابن ماجه/الأضاحي ١٦ (٣١٦٠)، موطا امام مالك/الضحايا ٤ (٧)، مسند احمد (٥١/٦) (صحيح)

وه چه د دریږ ورځو نه زیاته اونه ساتلي شي، په دي باندي رسول اللهﷺ ارشاد اوفرمائیلو ﴿ انما نهیتکم من اجل الدافة التی دفت علیکم ﴾ ما خو ورانديږ کال د کلو نه د راتلونکو د وجي نه منع کړي وه (يعنی وقتی طور سره، نه د هميشه دپاره) لهذا د قربانئ غوښه خورئ هم، صدقه کوئ ئي هم او ذخيره ئي هم ردئ.

په بخاری کښي دی ﴿ باب ما يوکل من لحوم الاضاحی وما يتزود منها ﴾ قال الحافظ ای من غير تقييد بثلث ولا نصف ثم قال والتقييد بثلاثة ايام منسوخ واما خاص بسبب آه ﴾

## مسئلة الباب کښي مذاهب ائمه:

زمونږ فقهاء کرامو ليکلي دی چه افضله دا ده چه د دريمي حصي غوښي صدقه اوکړي شي او دريمه حصه د خپلوانو او دوستانو د ميلمستيا دپاره کيخودلي شي او يو ثلث د ځان دپاره ذخيره کړی، او داسي کول صرف مستحب دی، که ټوله د خپل ضرورت دپاره کيږدی، نو هم جائز ده او په "الدر المختار" کښي دی: وندب ترک التصدق لذی عيال غير موسع الحال توسعة عليهم او د شوافعو د کتابونو نه معلوميږی چه د قربانئ د غوښي څه حصه صدقه کول واجب دی بلکه افضل دا ده يوه دوه نمړئ پريخودلو سره باقی ټوله صدقه کړي شي.

(من الابواب والتراجم ج۶ ...) والحديث اخرجه مسلم والنسائی قال المنذری.

[۲۸۱۳](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ الْحَذَّاءُ، عَنْ أَبِي الْمَلِيحِ عَنْ نُبَيْشَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّا كُنَّا نَهَيْنَاكُمْ عَنْ لُحُومِهَا أَنْ تَأْكُلُوهَا فَوْقَ ثَلَاثٍ لِكَيْ تَسَعَكُمْ فَقَدْ جَاءَ اللَّهُ بِالسَّعَةِ فَكُلُوا وَادَّخِرُوا وَاتَّجِرُوا، أَلَا وَإِنَّ هَذِهِ الْأَيَّامَ أَيَّامُ أَكْلٍ وَشُرْبٍ وَذِكْرِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ".

دنبيشة رضی الله عنه نه روايت دي فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی يقينا ماتاسو منع کړي وئ دخوړلو دغوښي دقربانئ نه ددريږ ورځونه پس، په دي وجه چه داغوښه تاسو ټولوته اورسي اوس الله تعالی فراخي راوستلي ده نوخورئ ئي او ذخيره کوئ ئي اوثواب اوګټئ خبردار دا ورځي دخوراك او څښاك دي اودالله تعالی دذکر دي.

د باب په دويم حديث کښي دی ﴿ فکلوا وادخروا واتجروا ﴾ دا لفظ د اجر نه اخستلي شوي دي چه هغه ئي باب افتعال ته بوتلي دي يعنی الائتجار يعنی اجر او ثواب حاصلول ځوک دي دا په تشديد د تاء سره نه لولی ﴿ واتجروا ﴾ ځکه چه دا د تجارت نه نهٔ دي.

والحديث اخرجه النسائی بتمامه، وابن ماجه مختصرا علی الاذن فی الادخار فوق ثلاث واخرج مسلم الفصل الثانی فی ذکر الاكل والشرب والذکر، قاله المنذری

.........

(١): سنن النسائي/الفرع والعتيرة ٢ (٤٢٤١)، سنن ابن ماجه/الأضاحي ١٦(٣١٦٠)، (تحفة الأشراف: ١١٥٨٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٧٥، ٧٦)، دي/الأضاحي ٦ (٢٠٠١) (صحيح)

## بَابٌ فِي الرِّفْقِ بِالذَّبِيحَةِ

### د قربانۍ په څاروی باندې دشفقت کولو بیان

[٢٨١٤](١) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي الْأَشْعَثِ، عَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ، قَالَ: خَصْلَتَانِ سَمِعْتُهُمَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللَّهَ كَتَبَ الْإِحْسَانَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ، فَإِذَا قَتَلْتُمْ فَأَحْسِنُوا قَالَ: غَيْرُ مُسْلِمٍ، يَقُولُ: فَأَحْسِنُوا الْقِتْلَةَ وَإِذَا ذَبَحْتُمْ فَأَحْسِنُوا الذَّبْحَ وَلْيُحِدَّ أَحَدُكُمْ شَفْرَتَهُ وَلْيُرِحْ ذَبِيحَتَهُ.

شداد بن اوس نه روایت دې فرمائی چه د نبی علیه السلام نه مې دوه خصلتونه اوریدلی دی اوې خودا دې چه الله تعالی په بنده باندې احسان کول فرض کړی دی دهریوشی سره نوکله چه تاسو قتل کوئ په ښه طریقه ئې کوئ یعنی که چرې دخون په بدله کښې خون کوئ نوزر ئې فارغه وئ اوبل داچه که چرې کوم څاروې حلالوئ نو په ښه طریقه ئې ذبه کوئ اوپکارده چه خپله چاړه تیره کړئ او ضروري. ده چه حلالیدونکې څاروی ته راحت اورسوي.

﴿عن شداد بن اوس رضی الله تعالی عنه قال : خصلتان سمعتهما من رسول الله ﷺ ان الله کتب الاحسان علی کل شئ الخ﴾

صحابی فرمائی چه دوه خبرې کومې چه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دی کومې چه د دې ضابطې د لاندې داخل دی چه الله پاک په انسان باندې دا خبره واجب کړې ده چه هغه دې په هر یو څیز کښې د احسان لحاظ ساتی چه هغه دې په حسن او خوبئ او نرمئ سره کوی وړاندې د دې دواړو خصلتونو بیان دې چه که تاسو یو کافر قتل کوئ هم نو په ښه طریقې سره یعنی مثله مه کوئ. او هم دغه شان کله چه یو څاروې ذبح کوئ نو هغه هم په ښه طریقه باندې ذبح کوئ، یعنی چاړهٔ ښهٔ طریقې سره تیره کړئ او ذبیحې ته آرام ورکړئ چه د ذبح نه پس فورا د هغې څرمنه مه اوباسئ بلکه د هغې د یخیدو انتظار اوکړئ.

والحدیث اخرجه مسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری

[٢٨١٥](٢) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدٍ، قَالَ: دَخَلْتُ مَعَ أَنَسٍ عَلَى الْحَكَمِ بْنِ أَيُّوبَ فَرَأَى فِتْيَانًا أَوْ غِلْمَانًا قَدْ نَصَبُوا دَجَاجَةً يَرْمُونَهَا، فَقَالَ أَنَسٌ: نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تُصْبَرَ الْبَهَائِمُ.

دهشام بن زید نه روایت دې فرمائی چه زه دانس ها سره حکم بن ایوب ته ورغلم هلته مې یو څو هلکان اولیدول چه د یوې چرګې نه ئې نښه جوړه کړې وه او په غشوئې ویشتله انس وه چه دا اولیدله نوونې وئیل چه نبی علیه السلام دڅاروو په دې شان سره د تړلونه پس دویشتلونه منع فرمائیلی ده.

---

١ ): صحیح مسلم/الأضاحي ٥ (١٩٧٥)، (تحفة الأشراف: ٢٠٧٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٢٧٧، ٢٨١)، سنن الدارمي/الأضاحي ٦ (٢٠٠٣) (صحیح)

٢ ): صحیح مسلم/الصید ١١ (١٩٥٥)، سنن الترمذي/الدیات ١٤ (١٤٠٩)، سنن النسائي/الضحایا ٢١ (٤٤١٠)، ٣٦ (٤٤١٩)، سنن ابن ماجه/الذبائح ٣ (٣١٧٠)، (تحفة الأشراف: ٤٨١٧)، وقد أخرجه: مسند أحمد (١٢٣/٤، ١٢٤، ١٢٥)، سنن الدارمي/الأضاحي ١٠ (٢٠١٣) (صحیح)

شرح الحديث:

قوله: ﴿ نهي رسول الله ﷺ ان تصبر البهائم ﴾

د صبر معنی د بندولو او د قید کولو ده، او مطلب دا دې چه څاروې دې د قاعدې لاندې ذبح کړې شي کومه چه د ذبح طریقه ده، او صبر بهائم دا دې چه مثلا یو مرغئ لره تړل او هغه مخې ته کینولو سره هغه په نخښه کړې شي، او د کوم څاروی سره داسې اوکړې شي هغې ته مبصوره او مجثمه هم وئیلې شي، ځکه چه دا ذبح ذبح شرعی نه ده دغه شان هغه څاروې حلال هم نه وی حرامیږي. لکه چه په کتاب الاطعمة کښې به راشي

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي وابن ماجة قاله المنذري.

## بَابٌ فِي الْمُسَافِرِ يُضَحِّي

### په سفر کښې د قربانۍ کولو بیان

د امام شافعي رحمه الله مسلک دې چه د قربانۍ سنت کیدل د ټولو په حق کښې دی که هغه مقیم وی او که مسافر وی، د امام مالک مسلک هم دا دې چه د ټولو په حق کښې سنت موکده دې خو د حاجیانو دپاره بمعنی فانهم لاضحية عليهم وسنتهم الهدى ([1])(الكافي لابن عبدالبر ۴۱۸/۱)

او د احنافو په نزد د مسافر په حق کښې قرباني واجب نه ده صرف د مقیم په حق کښې واجب ده.

[۲۸۱۶]([2]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ خَالِدٍ الْخَيَّاطُ، قَالَ: حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ صَالِحٍ، عَنْ أَبِي الزَّاهِرِيَّةِ، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنْ ثَوْبَانَ قَالَ: ضَحَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ قَالَ: "يَا ثَوْبَانُ أَصْلِحْ لَنَا لَحْمَ هَذِهِ الشَّاةِ"، قَالَ: فَمَا زِلْتُ أُطْعِمُهُ مِنْهَا حَتَّى قَدِمْنَا الْمَدِينَةَ.

دثوبان رضي الله عنه نه روایت دې چه نبی علیه السلام دسفرپه دوران کښې خپله قرباني ذبحه کړه اوبیا ئې اوفرمائیل اې ثوبان زمونږ دپاره ددې چیلی غوښه صفا کړه، ثوبان عرض اوکړو چه بیاماهغه غوښه په نبی علیه السلام باندې اوخوړه تردې چه زمونږ سفر پوره شو او مونږ مدینې ته داخل شو.

حدیث الباب کښې چه د رسول الله ﷺ د کومې قربانۍ ذکر دې په ظاهر کښې دا د حجة الوداع واقعه ده. په بذل کښې دی ﴿ فاضحية صلى الله عليه وسلم محمولة عندنا على التطوع ﴾

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي قاله المنذري

## بَابٌ فِي ذَبَائِحِ أَهْلِ الْكِتَابِ

### د اهل کتابو د ذبح بیان

د اهل کتاب د ذبیحو په اباحت باندې ابن قدامة په مغنی کښې د علماء کرامو اجماع نقل کړې ده، البته د اهل کتابو په ښکار کښې اختلاف دې، د اکثرو علماء رائې نو په دې کښې

[1]) وفيه وقال مالك : الصدقة بثمن الضحية بمني احب الي آه)

[2]): صحيح البخاري/الصيد ۲۵ (۵۵۱۳)، صحيح مسلم/الصيد۱۲(۱۹۵۶)، سنن النسائي/الضحايا ۴۰ (۴۴۴۴)، سنن ابن ماجه/اللذبائح ۱۰ (۳۱۸۶)، (تحفة الأشراف: ۱۶۳۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۱۷/۳، ۱۷۱، ۱۹۱) (صحيح)

اباحت دي خو د امام مالک رحمه الله په دې کښې ابن قدامه اختلاف ليکلې دې ولفظه: ﴿ الا ان مالكا اباح ذبائحهم وحرم صيدهم، ولايصح لان صيدهم من طعامهم فيدخل فى عموم الاية آه (تراجم ۲۵/۶)
قلت: قال الدردير : لا كافر ولو كتابيا فلا يوكل صيده ولو سمى الله عليه لان الصيد رخصة والكافر ليس من اهلها آه..... خو په كتاب الكافى دابن عبدالبر كښې دا ليكلى دى چه د امام مالک رحمه الله په نزد صيد د اهل كتاب مكروه دې حرام نه دې، لقول الله عزوجل " تناله ايديكم ورماحكم" يعنى اهل الايمان. ﴿ وهو عند جمهور اهل العلم مثل ذبائحهم ﴾ آه.

[۲۸۱۷](۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ ثَابِتٍ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يَزِيدَ النَّحْوِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: فَكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ، وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ فَنُسِخَ وَاسْتَثْنَى مِنْ ذَلِكَ، فَقَالَ: وَطَعَامُ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ حِلٌّ لَكُمْ وَطَعَامُكُمْ حِلٌّ لَهُمْ.

دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى دالله تعالى داقول «فكلوا مما ذكر اسم الله عليه» يعنى په كومو ځاروو چه دالله نوم واخستې شي هغه خورئ او په كومو چه دالله نوم نه وى اخستې شوې هغه مه خورئ دا ايت منسوخ شوې دې يعنى ددې نه داهل كتابو ذبح استثناء شوې ده او ددوى ذبح جائز ده لكه چه دالله تعالى قول دې «وطعام الذين أوتوا الكتاب حل لكم وطعامكم حل لهم».

[۲۸۱۸](۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا إِسْرَائِيلُ، حَدَّثَنَا سِمَاكٌ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ فِي قَوْلِهِ: وَإِنَّ الشَّيَاطِينَ لَيُوحُونَ إِلَى أَوْلِيَائِهِمْ سورة الأنعام آية ۱۲۱ يَقُولُونَ مَا ذَبَحَ اللَّهُ فَلَا تَأْكُلُوا وَمَا ذَبَحْتُمْ أَنْتُمْ فَكُلُوا، فَأَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ سورة الأنعام آية ۱۲۱.

دابن عباس رضي الله عنه نه دالله تعالى ددې قول «وإن الشياطين ليوحون إلى أوليائهم» په باره كښې منقول دي چه يهوديانو به وئيل چه كوم ځاروې الله تعالى ذبح كړو چه په قدرتي مرګ مړشي دغه تاسو نه خورئ او كوم چه پخپله ذبح كړئ هغه خورئ نو په دې وخت كښې الله تعالى دا ايت نازل كړو «ولا تأكلوا مما لم يذكر اسم الله عليه».

[۲۸۱۹](۳) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: جَاءَتِ الْيَهُودُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالُوا: نَأْكُلُ مِمَّا قَتَلْنَا وَلَا نَأْكُلُ مِمَّا قَتَلَ اللَّهُ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ سورة الأنعام آية ۱۲۱ إِلَى آخِرِ الْآيَةِ.

دابن عباس نه روايت دې فرمائى چه يهوديان نبى عليه السلام ته راغلل اووئې وئيل خورو مونږ دهغه نه كوم چه مونږ پخپله ذبح كړو اونه خورو مونږ دهغه نه كوم چه الله تعالى وژلې وي نوالله تعالى دا ايت نازل كړو «ولا تأكلوا مما لم يذكر اسم الله عليه» ايت تر آخره پورې.
﴿ عن ابن عباس رضى الله تعالى عنهما فى قوله تعالى وان الشياطين ليوحون الى اوليائهم الخ ﴾
يعنى شياطين د كفارو په زړه كښې دا خبره اچوى چه تاسو د الله پاک ذبيحه خو نه

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۶۲۵۹) (حسن)
(۲): سنن النسائي/الضحايا ۴۰ (۴۴۴۸)، سنن ابن ماجه/الذبائح ۴ (۳۱۷۳)، (تحفة الأشراف: ۶۱۱۱) (صحيح)
(۳): سنن الترمذي/تفسير الأنعام ۶ (۳۰۶۹)، (تحفة الأشراف: ۵۵۶۸) (صحيح)

خوری. د الله پاک د ذبیحې نه مراد هغه ځاروې دې کوم ته چه الله پاک مرګ ورکړې وی یعنی میتة. او خپله ذبیحه تاسو حلاله ګنړئ او خورئ ئې یعنی دا څنګه بې انصافی ده، نو په دې باندې دا آیت کریمه نازل شو ﴿ولا تاکلوا مما لم یذکر اسم الله علیه﴾ یعنی د دې جواب حاصل دا دې چه د انسان ذبیحه صرف په دې وجه حلاله نه ده چه هغه د انسان ذبیحه ده بلکه په دې حیثیت سره چه په هغې باندې د الله پاک نوم اخستلې شوې دې. په خلاف د ما ذبح الله چه په هغې باندې د الله پاک نوم نه شی اخستلې.

والحدیث اخرجه ابن ماجة قاله المنذری

## بَابُ مَا جَاءَ فِي أَكْلِ مُعَاقَرَةِ الْأَعْرَابِ

### د اهل کتابو د فخر دپاره د ذبح کړې شوی ځاروی د خوراک بیان

معاقرة په معنی د ذبح، خو دلته دا مصدر په معنی د مفعول دې ای ما عاقره الاعراب.

[۲۸۲۰] (¹) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ مَسْعَدَةَ، عَنْ عَوْفٍ، عَنْ أَبِي رَيْحَانَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَكْلِ مُعَاقَرَةِ الْأَعْرَابِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: اسْمُ أَبِي رَيْحَانَةَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَطَرٍ، وَغُنْدَرٌ أَوْقَفَهُ عَلَى ابْنِ عَبَّاسٍ.

ابن عباس نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام منع فرمائیلی ده کوم چه اهل کتاب عرب د فخر کولو دپاره ذبح کړې. ابوداود وائی چه دا روایت غندر دابن عباس رضی الله عنه نه موقوف نقل کړې دې، او دابوریحانه نوم عبدالله بن مطر وو.

﴿نهی رسول الله ﷺ عن معاقرة الاعراب﴾

**شرح الحدیث:**

یعنی رسول الله ﷺ د باندچیانو او د جاهلانو د ذبیحې خوړلو نه منع فرمائیلې ده چه د دې نه مراد هغه قربانی ده چه د فخر او ریاء په طور او د نورو د مقابلې دپاره اوکړې شی، فقهاء کرامو لیکلی دی: وکذلک کل طعام صنع ریاء ومفاخرة.... یعنی کومه قربانی یا خوراک چه صرف د نوم او شهرت دپاره اوکړې شی د هغې خوراک منع دې.

**فائده:** هم د دې قسم یو بل حدیث په کتاب الجنائز ﴿باب کراهیة الذبح عند القبر﴾ کښې راغلې دې ﴿قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لا عقر فی الاسلام﴾ د دې حدیث معنی بله ده لکه چه د ترجمة الباب نه معلومیږی پس هلته په متن کښې راځی ﴿کانوا یعقرون عند القبر ببقرة او بشئ﴾ یعنی د جاهلیت په زمانه کښې به بعض خلقو د خپل یو سخی په قبر باندې اوښ وغیره ذبح کولو، بعضو خو په دې خیال چه دې انسان به په خپل ژوند کښې میلمستوب کولو مونږ د دې په بدله کښې د هغه په قبر باندې د هغه د طرف نه دا ذبح کوو چه دا ځناور او مارغان اوخوری او بعضو به په دې خیال کول چه کوم ځاروې د هغه په قبر ذبح کړې شی هغه به د قبر نه د پاسیدو په وخت د هغه سورلئ جوړه شی، ځکه چه بعض کفار د بعث قائل وو.

¹: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۸۱۱) (حسن صحیح)

## بَابٌ فِي الذَّبِيحَةِ بِالْمَرْوَةِ

### په سپین کانړي باندې د ذبح کولو بیان

د مروة نه مراد الحجر المحدد (یعنی تیره کانړي چه د چړې په شان کار کوی او غرض د مصنف رحمه الله دا دې چه په هر تیره څیز باندې ذبح کول چه په هغې سره رګونه پرې کړې شی جائز ده، خاص د چړې کیدل دې دپاره ضروری نه دی لکه چه په حدیث کښې دی.

[۲۸۲۱]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَبَايَةَ بْنِ رِفَاعَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، قَالَ: أَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّا نَلْقَى الْعَدُوَّ غَدًا وَلَيْسَ مَعَنَا مُدًى، أَفَنَذْبَحُ بِالْمَرْوَةِ وَشِقَّةِ الْعَصَا؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَرِنْ أَوْ أَعْجِلْ مَا أَنْهَرَ الدَّمَ وَذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ، فَكُلُوا مَا لَمْ يَكُنْ سِنًّا أَوْ ظُفْرًا، وَسَأُحَدِّثُكُمْ عَنْ ذَلِكَ أَمَّا السِّنُّ فَعَظْمٌ، وَأَمَّا الظُّفْرُ فَمُدَى الْحَبَشَةِ، وَتَقَدَّمَ بِهِ سَرَعَانٌ مِنَ النَّاسِ فَتَعَجَّلُوا فَأَصَابُوا مِنَ الْغَنَائِمِ، وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي آخِرِ النَّاسِ، فَنَصَبُوا قُدُورًا فَمَرَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْقُدُورِ، فَأَمَرَ بِهَا فَأُكْفِئَتْ وَقَسَمَ بَيْنَهُمْ فَعَدَلَ بَعِيرًا بِعَشْرِ شِيَاهٍ، وَنَدَّ بَعِيرٌ مِنْ إِبِلِ الْقَوْمِ وَلَمْ يَكُنْ مَعَهُمْ خَيْلٌ فَرَمَاهُ رَجُلٌ بِسَهْمٍ فَحَبَسَهُ اللَّهُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ لِهَذِهِ الْبَهَائِمِ أَوَابِدَ كَأَوَابِدِ الْوَحْشِ، فَمَا فَعَلَ مِنْهَا هَذَا فَافْعَلُوا بِهِ مِثْلَ هَذَا".

رافع بن خدیج نه روایت دې فرمائی چه دنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضر شوم او عرض مې اوکړو چه اې دالله رسوله مونږ صبا ددشمن سره دمقابلې دپاره مخامخ کیږو اوزمونږ سره چاړه چاقو نشته ایا مونږ په کانړي باندې ذبح اوکړو؟ نبی علیه السلام اوفرمائیل په داسې څیز ذبح اوکړئ کوم چه وینه بهیوی اویائې داسې اوفرمائیل چه په تیزۍ سره ذبح اوکړئ په کوم شي چه دالله نوم واخستې شي او علاوه دغاښونو اونوکانونه اوزه تاسوته ددې وجه بیانوم چه غاښ یوهډوکي دې اونوک دهبشیانو چاړه ده څه خلقو تیزئ نه کار واخستلو په مخکښې کیدلو کښې اوغنیمتونه ئې حاصل کړل اونبی علیه السلام دخلقو په اخر کښې وو دغه خلقو دیګونه نغرونه اوخیژول نبی علیه السلام ددیګونوسره تیریدو ددې داولته کولو حکم ئې اوکړو اودغنیمت مال ئې په مجاهدینوباندې تقسیم کړو اوبو اوبښ ئې دلس چیلو په حساب مقرر کړو او په اوښانوکښې یو اوبښ تښتیدو اودمجاهدینوسره په دغه وخت کښې اسونه نه وو یوکس په غشي اوویشتو او الله تعالی اودررو نبی علیه السلام اوفرمائیل چه په دې ځاروو کښې څنې تښتیدونکي ځاروی وي لکه څنګه چه وحشي څناور وی که چرې کوم ځاروې داسې حرکت اوکړي نودهغه سره همداسې عمل اوکړئ.

﴿ فقلت یا رسول الله! انا نلقی العدو غدا ولیس معنا مدی، فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم ارن او اعجل ﴾

### شرح الحدیث:

د ارن په ضبط کښې سخت اختلاف دې او مختلف الاقوال دی ۱: ارن په کسرې د راء سره

(): صحیح البخاري/الشرکة ۳ (۲٤۸۸)، ۱٦ (۲۵۰۷)، الجهاد ۱۹۱ (۳۰۷۵)، الذبائح ۱۵ (۵٤۹۸)، ۱۸ (۵۵۰۳)، ۲۳ (۵۵۰۹)، ۳٦ (۵۵٤۳)، ۳۷ (۵۵٤٤)، صحیح مسلم/الأضاحي ٤ (۱۹٦۸)، سنن الترمذي/الصید ۱۹ (۱٤۹۲)، السیر ٤۰ (۱٦۰۰)، سنن النسائي/الصید ۱۷ (٤۳۰۲)، الضحایا ۱۵ (٤۳۹٦)، ۲٦ (٤٤۱٤، ٤٤۱۵)، سنن ابن ماجه/الذبائح ۹ (۳۱۸۳)، (تحفة الأشراف: ۳۵٦۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/٤٦۳، ٤٦٤، ٤/۱٤۰، ۱٤۲) (صحیح)

په وزن د اطع ای اهلکها ذبحا یعنی ذبح اوکړه او اوئي وژنه (یعنی په هر تیرۀ څیز باندي) ۲ وئیلې شوې دی چه صحیح دا ده چه دا لفظ د ائرن دې من ارن یارن من باب سمع چه د هغې معنی ده اعجل او مطلب ئې دا دې چه په هر تیرۀ څیز سره هغه ذبح کړی او په ذبح کولو کښې تیزی اوکړی ځکه چه د اوسپنې نه علاوه د بل تیره څیز نه دا خطره وی چه د ټولو رګونو د پرې کولو نه مخکښې هغه چرته مړ نه شی، په دې وجه ئې اوفرمائیل چه په ذبح کولو کښې تیزی کوه، د دې نه علاوه نور هم اقوال دی، د حدیث مضمون دا دې چه رافع بن خدیج رضی الله عنه رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه مونږ بل صبا له جهاد ته ځو (او مونږ سره اګر چه توري دی خو هغې لره خو په ذبح کښې استعمالول مناسب نه دی) او مونږ سره چړې نشته که د ذبح وخت راشی نو په کوم څیز باندې ذبح اوکړو؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه کومه یوه آله هم د څاروی وینه اوبهیوی په دا سې حال کښې چه د وینې بیولو په وخت په هغې باندې د الله پاک نوم اخستلې شوې وی هغه تاسو خرئ بیا وراندې رسول الله ﷺ یوه استثناء اوفرمائیله چه هغه وینه بیونکې څیز د غاښ او د نوک نه علاوه کیدل پکار دی او وراندې رسول الله ﷺ د دې وجه دا بیان کړه چه په غوښه د دې وجې نه نۀ چه هغه هډوکې دې او د نوک په باره کښې ئې اوفرمائیل چه هغه د حبشیانو چاړه ده. د غاښ په باره کښې ئې اوفرمائیل چه هغه هډوکې دې د دې په شرح کښې امام نووی فرمائی چه په عظم سره ذبح مه کوئ ځکه چه هغه به په وینې سره نجس شی او حال دا چه تاسو د تنجیس عظم نه منع کړې شوی یئ لانه زاد اخوانکم من الجن او د نوک د منع کیدو وجه رسول الله ﷺ دا بیان اوفرمائیله چه دا د اهل حبشه چاړۀ ده لهذا په دې سره ذبح کولو کښې تشبه بکفار الحبشة ده.

## اله ذبح څنګه پکار ده؟ په دې کښې مذاهب د ائمه

آله د ذبح څه پکار ده؟ په دې باره کښې (اوجز المسالک ج٤..) کښې د ائمه د مذاهبو تفصیل داسې لیکلې شوې دې: ابن رشد مالکی فرمائی چه د علماء کرامو په دې باندې اجماع ده چه کوم څیز د حیوان وینې اوبیوی او اوداج (د مرئ رګونه) قطع کړی که هغه اوسپنه وی یا کاڼړې یا بل څه او د هغې په ذریعه ذبح کول جائز دی، خو په درې څیزونو کښې د علماء کرامو اختلاف دې، غاښ او نوک او هډوکی (یعنی د غاښ نه علاوه بل هډوکې) بیا وراندې لیکی چه د مالکیانو په مذهب کښې په دې کښې هیڅ اختلاف نشته چه ذبح بالعظم جائز ده اذا انهر الدم، خو په غاښ او هډوکی کښې د مالکیانو اختلاف دې چه په هغې کښې درې اقوال دی.

۱: المنع مطلقا ۲: الفرق بین الانفصال والاتصال او دریم قول دا دې چه صرف کراهیت دې نه منع، او ابن قدامه د حنابله مذهب د سن او ظفر په باره کښې صرف عدم جواز لیکلې دې مطلقا، که منزوع وی یا غیر منزوع، او مطلق عظم (غیر السن) په باره کښې د امام احمد دوه اقوال لیکلې شوی دی، اباحت او عدم اباحت او هغوی اباحت ته ترجیح ورکړې ده پس هغوی لیکی والاول اصح انشآء الله لان العظم دخل فی عموم لفظ المبیح ثم استثنی السن والظفر خاصة فیبقی سائر العظام داخلا فیما یباح الذبح به آه او د شوافعو مسلک په شرح اقناع

وغیره کښې د دې دریو (السن والظفر ومطلق العظم) په باره کښې مطلقا عدم جواز لیکلې شوې دې د اتصال او انفصال د فرق نه بغیر بیا وړاندې لیکی چه په دې کښې اختلاف دې چه د ذبح بالعظام نه نهی تعبدی ده لکه چه د ابن الصلاح وغیره رائې ده یا غیر تعبدی یعنی معلل والیه مال النووی یعنی تنجیس عظم چه ممنوع دې، او د احنافو مذهب لکه چه مشهور دې الفرق بین الاتصال والانفصال یعنی نوک او غاښ که د بدن سره متصل وی نو ذبح ناجائز ده او که منفصل وی نو جائز ده خو داسې کول مکروه دی، په ذبیحه کښې هیڅ کراهت نشته وفی الهدایة وما رواه (الشافعی) محمول علی غیر المنزوع فان الحبشة کانوا یفعلون ذلک، ولانه الة جارحة فیحصل به ما هو المقصود وهو اخراج الدم، بخلاف غیر المنزوع لانه یقتل بالثقل فیکون فی معنی المنخنقة (ملخصا من الاوجز ۱۷۰/٤) وړاندې حدیث کښې دی ﴿ وتقدم سرعان من الناس فتعجلوا فاصابوا من الغنائم الخ ﴾

**شرح الحدیث:**

یعنی بعض جلد باز قسم خلقو په مال غنیمت کښې د تقسیم نه مخکښې بعض بیزې وغیره ذبح کولو سره د خوراک دپاره کټوئ باندې کړې، رسول الله ﷺ روستو طرف ته وو چه کله د رسول الله ﷺ تیریدل په هغه کټوو باندې اوشو نو رسول الله ﷺ د هغې د اولټه کولو حکم ورکړو چه څوک ئې او نه خوړلې شی.

د مال غنیمت نه انتفاع قبل التقسیم په طعام کښې جائز دې چه د هغې تفصیل د کتاب الجهاد په ابوابو کښې تیر شوې دې هغې ته دې رجوع اوکړې شی.

بیا وړاندې په حدیث کښې دی ﴿ وقسم بینهم فعدل بعیرا بعشر شیاه ﴾ یعنی د مال غنیمت د تقسیم په وخت هغوی یو اوښ لره د لسو بیزو برابر مقرر کړو، د دې نه بعض علماء کرامو لکه اسحاق بن راهویه وغیره په دې باندې استدلال کړې دې چه د یو اوښ قربانئ کښې د لسو کسانو شرکت کیدې شی، خو دا استدلال بس هم دومره دې، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی ﴿ ولعله کانت قیمة الغنم اذ ذاک کذلک ﴾ یعنی کیدې شی په دغه زمانه کښې په بازار کښې لس بیزې د یو اوښ د قیمت برابر وی.

وړاندې په حدیث کښې دی ﴿ وند بعیر من ابل القوم ولم یکن معهم خیل فرماه رجل بسهم الخ ﴾ یعنی په دې سفر کښې دا واقعه پیښه شوه چه په اوښانو کښې یو اوښ وران شو او متوحش کیدو سره په تیخته شو او د قابو نه بهر شو نو یو انسان د هغه سره هغه معامله اوکړه کومه چه د ښکار سره کولې شی یعنی بسم الله لوستلو سره ئې هغه په غشی باندې ویشتلو چه په هغې باندې هغه اودریدو او په قبضه کښې راغلو، په دې موقع باندې هغوی ارشاد اوفرمائیلو ﴿ ان لهذه البهائم اوابد کاوابد الوحش ﴾ چه بیشکه زمونږ په دې عادت ځاروو کښې بعض د وحشی ځناورو په شان متوحش شی پس که یو ځاروې داسې شی نو د هغه سره داسې معامله کول جائز دی، یعنی د دې قسم ځاروې د ښکار په حکم کښې کیږی او څنګه چه د ښکار کولو په شریعت کښې طریقه ده هغې لره په داسې ځاروو کښې اختیار ول جائز دی. ، والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری

[۲۸۲۲]( ) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، أَنَّ عَبْدَ الْوَاحِدِ بْنَ زِيَادٍ، وَحَمَّادًا حَدَّثَاهُمُ الْمَعْنَى وَاحِدٌ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ صَفْوَانَ، أَوْ صَفْوَانَ بْنِ مُحَمَّدٍ، قَالَ: اصَّدْتُ أَرْنَبَيْنِ فَذَبَحْتُهُمَا بِمَرْوَةٍ فَسَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: عَنْهُمَا فَأَمَرَنِي بِأَكْلِهِمَا.

محمدبن صفوان یا د صفوان بن محمدنه روایت دي فرمائی چه مادوه هوسي په ښکار کښي راوړلي اوپه تیره کاڼړي مي حلالي کړي دنبی ﷺ نه مي تپوس اوکړو ماته ئي ددوی دخوراك اجازت راکړو

[۲۸۲۳]( ) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي حَارِثَةَ، أَنَّهُ كَانَ يَرْعَى لِقْحَةً بِشِعْبٍ مِنْ شِعَابِ أُحُدٍ، فَأَخَذَهَا الْمَوْتُ فَلَمْ يَجِدْ شَيْئًا يَنْحَرُهَا بِهِ فَأَخَذَ وَتِدًا فَوَجَأَ بِهِ فِي لَبَّتِهَا حَتَّى أُهَرِيقَ دَمُهَا، ثُمَّ جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ بِذَلِكَ فَأَمَرَهُ بِأَكْلِهَا.

عطاء بن یسار دبنی حارثه دیوکس نه روایت کوی چه ما داحد دغر په دروکښي خپله اوښه څروله هغه مړه شوه اوداسي هیڅ یوشي راته ملاو نه شو چه په هغه باندي ئي ذبح کړم نو یو میښ مي راواغست او د اوښي په مرئ کښي مي اومنډو تردي چه وله : تري لاړه بیاد نبی ﷺ په خدمت کښ حاضرشوم او ددې خبرې خبر مي ورکړو نوهغه ددې د خوړلو اجازت وکړو.

﴿ عن رجل من بنی حارثة انه یرعی لقحة بشعب من شعاب احد فاخذها الموت الخ ﴾

یعنی یو سړی خپله اوښه د احد د غر په یو څوکه باندي څروله هم په دې وخت کښي هغه اوښه قریب المرګ شوه هغه سړی د هغې نحر کول اوغوښتل خو هیڅ یو څیز ورته ملاؤ نه شو د اوسپني یو میخ کوم چه هغه د هغې په سینه کښي ښخ کړو چه په هغي سره د هغې وینه اوبهیدله او بیا راتلو سره ئي رسول الله ﷺ ته د دې ذکر اوکړو رسول الله ﷺ د هغې خوراک اجازت ورکړو.

[۲۸۲٤]( ) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ مُرِّيِّ بْنِ قَطَرِيٍّ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَرَأَيْتَ إِنْ أَحَدُنَا أَصَابَ صَيْدًا، وَلَيْسَ مَعَهُ سِكِّينٌ أَيَذْبَحُ بِالْمَرْوَةِ وَشِقَّةِ الْعَصَا، فَقَالَ: أَمْرِرِ الدَّمَ بِمَا شِئْتَ وَاذْكُرِ اسْمَ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ.

دعدي بن حاتم رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه ماعرض اوکړو اې دالله رسوله که چرې په مونږ کښي یوکس ښکار اوکړي اوچاړه ورسره نه وی نوایاپه کاڼړي یالرګي باندې ذبح کولې شی نبی ﷺ اوفرمائیل دالله تعالی نوم واخله اووینه وبویوه اګرکه په هرشي باندې وي

﴿ ایذبح بالمروة وشقة العصاء ﴾ مروة تیره کاڼړي او شقة العصا د یو لرګی تیره والا ټکړه او حصه.

وحدیث عدی بن حاتم رضی الله تعالی عنه اخرجه النسائی وابن ماجة قاله المنذری.

[1]: سنن النسائي/الصيد ٢٥ (٤٣١٨)، والضحايا ١٧ (٤٤٠٤)، سنن ابن ماجه/الصيد ١٧ (٣٢٤٤)، (تحفة الأشراف: ١١٢٢٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٧١/٣) (صحيح)

[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٥٦٤١)، وقد أخرجه: موطاامام مالك/الذبائح ٢ (٣) مسند احمد (٣٦٧/٤، ٤٣٠/٥) (صحيح)

[3]: سنن النسائي/الصيد ٢٠ (٤٣٠٩)، الضحايا ١٨ (٤٤٠٦)، سنن ابن ماجه/الذبائح ٥ (٣١٧٧)، (تحفة الأشراف: ٩٨٧٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٥٦/٤، ٢٥٨، ٣٧٧) (صحيح)

## بَابُ مَا جَاءَ فِي ذَبِيحَةِ الْمُتَرَدِّيَةِ

### د رارغړیدلی څاروی د ذبح کولو بیان

[۲۸۲۵]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي الْعُشَرَاءِ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَمَا تَكُونُ الذَّكَاةُ إِلَّا مِنَ اللَّبَّةِ أَوِ الْحَلْقِ؟ قَالَ: فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَوْ طَعَنْتَ فِي فَخِذِهَا لَأَجْزَأَ عَنْكَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا لَا يَصْلُحُ إِلَّا فِي الْمُتَرَدِّيَةِ وَالْمُتَوَحِّشِ.

بو العشراء دخپل پلار نه روایت کوی فرمائی چه ماعرض اوکړو اې دالله رسوله ایازکاة (ذبح کول) دسینې اومرئ په مینځ کښې وي ایاپه بل ځائ کښې هم وي؟ نبی ﷺ اوفرمائیل که چرې ته دڅاروي ورون په نیزه اووهي نوهم کافی ده. ابوداود وائی چه دادهغه څاروی دذبح کولو طریقه ده کوم چه دبره نه راورغړي اودهغې دذبح کولو موقع ملا ونه شي اویاهغه څاروې کوم چه اوتښتي.

﴿ عن ابی العشراء عن ابیه رضی الله تعالی عنه انه قال یا رسول الله اما تکون الذکاة الا من اللبة او الحلق الخ ﴾

### شرح الحدیث:

د ابوالعشراء او د هغه د پلار په نوم کښې اختلاف دې چه د هغې تفصیل په بذل المجهود کښې دې، او د ابوالعشراء د خپل پلار نه په سماع کښې هم اختلاف دې، امام ترمذی د دې په باره کښې فرمائی هذا حدیث غریب لا نعرفه الا من حدیث حماد بن سلمة ولا نعرف لابی العشرآء عن ابیه غیر هذا الحدیث واختلفوا فی اسم ابی العشرآء فقال بعضهم اسمه اسامة بن قهطم ویقال یسار بن برز ویقال ابن بلز، ویقال اسمه عطارد، نسب الی جده آه....... او په مسند احمد کښې دی ﴿ الا فی الحلق او اللبة ﴾ هغه صحابی د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه آیا شرعی زکوة د حلق او لبه سره خاص دې؟ (د حلق تعلق خو د ذبح سره دې او د لبه د نحر سره چه د هغې ذکر په کتاب الحج کښې تیر شوې دې، لبه د سینې پورته حصه (موضع القلادة من الصدر) او حلق خو معروف دې. نو رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو نه بلکه که د څاروی په پتون کښې هم زخم اوکړې شی نو کافی ده.

خان پوهول پکار دی چه د جرح شرعی دوه قسمونه دی ([2]) یو اختیاری او دویم اضطراری، اختیاری خو هغه دې کوم چه په مانوس او مقبوض څاروو کښې وی. دا خو د حلق او لبه سره خاص دې او دویم قسم یعنی ذکاة اضطراری په متوحش او غیر مانوس (یعنی چه عادت نه وی) څاروو کښې وی یعنی په ښکار کښې د حلق او لبه سره خاص نه دې بلکه د بدن په هره حصه کښې جرح کول، دلته په حدیث کښې د سائل سوال د ذکاة اختیاری سره متعلق وو کوم چه د لبه او حلق سره خاص دې هم په دې وجه امام ابوداؤد رحمه الله

[1]): سنن الترمذي/الصيد ۱۳ (۱۴۸۱)، سنن النسائي/الضحايا ۲۴ (۴۴۱۳)، سنن ابن ماجه/الذبائح ۹ (۳۱۸۴)، (تحفة الأشراف: ۱۵۶۹۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۴/۴)، دي/الأضاحي ۱۲ (۲۰۱۵) (منکر)

[2]) د دې پوره تفصیل په کتاب الصید کښې راروان دې)

د دې حديث په تشريح او تاويل کښې فرمائي ﴿ قال ابوداؤد: لا يصلح هذا الا في المتردية والمتوحش ﴾ د متوحش نه مراد هغه ځاروې دې چه د هغې ذکر په ﴿ وند بعير من ابل القوم ﴾ کښې تير شو. او د متردية نه مراد هغه عادت او مقبوض ځاروې دې چه د پورته نه يو لاندې ځائې ته راوغورځيږي مثلاً په کوهي کښ، او د دې قسم ځاروو حکم چه کوهي ته اوغورځيږي ښکاره دې چه په هغې کښې د ذکاة اختياري چه کومه طريقه ده هغه خو نه شي کيدې، نو مصنف فرمائي چه د حديث الباب محمل هم دا د مجبورئ والا شکل دې، په دې وجه که هلته هم ذکاة اختياري ضروري کړې شي نو کيدې شي چه هغه ځاروې د دې خبرې د نه مخکښې مړ شي، زمونږ فقهاء کرامو هم د داسې مجبورئ په صورت کښې د دې حل هم دا ليکلې دې امام ترمذي رحمه الله هم ددې حديث د ذکر کولو نه پس هم دا تاويل ذکر کړې دې، هغه فرمائي چه قال يزيد بن هارون هذا في الضرورة ..آهـ

**فائده:** (خليل احمد) سهارنپوري رحمه الله په بذل المجهود کښې د مصنف په دې تاويل باندې يو اعتراض فرمائيلې دې کوم چه په ظاهره د اصولو او قواعدو مطابق دې خو مصنف چه کومه مسئله بيانوي د هغې تصريح په هدايه کښې موجود ده، لهذا د مصنف تاويل په خپل ځائې صحيح دې[1] والحديث اخرجه الترمذي والنسائي وابن ماجة قاله المنذري.

## بَابٌ فِي الْمُبَالَغَةِ فِي الذَّبْحِ

### په ذبح کښې د کوشش کولو بيان

يعنې ځاروې لره ښه طريقې سره ذبح کول ضروري دي هسې نې په معمولي غشي ويشتلو چه په هغې سره هغه ځاروې په مزه مزه وينه بهيدلو سره ختم شي دا معتبر نه دی.

### حقيقة الذبح

په بذل کښې د ترجمة الباب د لاندې ليکلې شوې دی حتى يقطع الحلقوم والمرى

[1] ) زما يو يادداشت کښې داسې راووتلو چه د مصنف د توجيه حاصل دا دې چه دا حديث په ذکاة اضطراري باندې محمول دې نه په اختياريه باندې، او مصنف رحمه الله د دې دوه افراد بيان کړې دی يو متوحش لکه چه مخکښې تير شو ان لهذه البهائم اوابد کاوابد الوحش الخ. او يو متردية، په اول کښې خو هيڅ اشکال نشته خپله په حديث کښې د هغې وضاحت دې خو په متردية باندې محمول کول مفيد نه دی ځکه چه متردية په قرآن کريم کښې په ميتة کښې شمار کړې شوې دی اګر چه د مصنف مراد دا دې چه د تردی نه پس مطلق جرح کافي ده يعنې زکاة اضطراري خو په دې کښې اشکال دا دې چه که حديث په ذکاة د اضطرار باندې محمول کړې شي نو بيا هم صحيح نه ده ځکه چه په دې صورت کښې به د دې متردية د مرګ دوه اسباب جمع شي يو تردی او يو جرح، جرح خو په ذکاة اضطراري کښې صحيح ده خو تردی هم چونکه سبب د مرګ دې او دلته هغه موجود دې او ذکاة اضطرار دا دې چه که دوه اسباب جمع شي چه په هغې کښې يو سبب داسې وی چه د هغې ښکار حلال نه وی نو بيا داسې کړې شوی ښکار جائز نه دې، هم دا اشکال سهارنپوری صاحب په بذل کښې فرمائيلې دې د حضرت دا اشکال او تحقيق د اصولو او قواعدو خو مطابق معلوميږی خو د متردية کوم شکل چه مصنف ليکلې دې د هغې په باره کښې جزئيه په هدايه رابع کښې مصرح ده او دا ئې جائز ليکلې ده پس هيڅ اشکال نشته په توجيه د مصنف باندې پس تدبر اوکړه او شکر اوکړه. نبهني علي تلك الجزئية بعض الطلبة في اثناء الدرس جزاه الله تعالي خيرا)

والودجان يعنى كامله ذبح دا ده چه دا درې رګونه پرې کړې شي. حلقوم وائي مجرى النفس ته (يعنى د ساه نالئ) او مرى وئيلې شي د خوراک څکاک نالئ ته، او ودجان د وينې رګونه وفى الهداية ٤/٥٤ والعروق التى تقطع فى الذكاة اربعة الحلقوم والمرى والودجان لقوله عليه السلام افرى الأوداج بما شئت وهى اسم جمع واقله الثلاث فيتناول المرى والودجين، بيا وراندې په هدايه کښې په دې مسئله کښې اختلاف ليکلې دې چه د دې قطع ضروري ده يا د اکثر قطع کول کافي دی؟ په دې باندې هغوی مدلل بالتفصيل کلام فرمائيلې دې او د نورو امامانو اختلاف ئې هم ليکلې دې فارجع اليه لو شئت.

[٢٨٢٦](¹) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، وَالْحَسَنُ بْنُ عِيسَى مَوْلَى ابن المبارك، عَنْ ابْنِ الْمُبَارَكِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، زَادَ ابْنُ عِيسَى، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَا: نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ شَرِيطَةِ الشَّيْطَانِ، زَادَ ابْنُ عِيسَى فِي حَدِيثِهِ وَهِيَ الَّتِي تُذْبَحُ فَيُقْطَعُ الْجِلْدُ وَلَا تُفْرَى الْأَوْدَاجُ، ثُمَّ تُتْرَكُ حَتَّى تَمُوتَ.

دابن عباس (ابن عيسي په کښې ابوهريره هم ذکرکړې دې)دواړونه روايت دې فرمائى چه نبى ﷺ منع فرمائيلې ده دشريطې دشيطان نه دابن عيسي په روايت کښې دشريطې داتفسير دې چه کوم څاروې حلاليږي دهغه څرمن پريکړې شي اورګونه ئې پريخود شي تردې چه په ټوپونو توپونو وهلومړ شي.

**شرح الحديث:**

**قوله:** ﴿ نهى رسول الله ﷺ عن شريطة الشيطان ﴾ يعنى رسول الله ﷺ د هغه ذبيحې د خوړلو نه منع فرمائيلې ده چه هغه ناقصې طريقې سره ذبح کړې شوې وى.دا لفظ اخستلې شوې دې د شرط الحجام نه حجام يعنى ښکر لګونکې چه په کوم ځائې باندې ښکر لګوى هغه مخکښې په غشى باندې زخمى کوى، لهذا مطلب دا شو چه معمولى شان قطع کول جائز نه دى، په دې سره هغه څاروې نه حلاليږي د جاهليت په زمانه کښې بعض خلق هم داسې کوى چه د حلق بعض حصو لره قطع کولو نه پس هغه څاروى لره هم داسې پريخوده تردې چه هغه به مړ شو. په حديث کښې دې فعل لره د شيطان طرف ته منسوب په دې وجه کړې شوېدې چه داسې حرکت باندې انسان لره تياروى. د دې حديث شرح خپله په متن کښې هم موجود ده ﴿وهى التى تذبح فيقطع الجلد الخ ﴾

## بَابُ مَا جَاءَ فِي ذَكَاةِ الْجَنِينِ

### د څاروى په خيټه کښې د بچي دزکاة بيان

[٢٨٢٧](²) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ مُجَالِدٍ، عَنْ أَبِي الْوَدَّاكِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْجَنِينِ، فَقَالَ: "كُلُوهُ إِنْ شِئْتُمْ، وَقَالَ

¹): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٦١٧٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٨٩/١) (ضعيف)

²): سنن الترمذي /الأطعمة ٢ (١٤٧٦)، سنن ابن ماجه /الذبائح ١٥ (٣١٩٩)، (تحفة الأشراف: ٣٩٨٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١/٣، ٣٩، ٥٣) (صحيح)

مُسَدَّدٌ: قُلْنَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ نَنْحَرُ النَّاقَةَ، وَنَذْبَحُ الْبَقَرَةَ وَالشَّاةَ فَنَجِدُ فِي بَطْنِهَا الْجَنِينَ أَنُلْقِيهِ أَمْ نَأْكُلُهُ؟ قَالَ: كُلُوهُ إِنْ شِئْتُمْ فَإِنَّ ذَكَاتَهُ ذَكَاةُ أُمِّهِ.

ابوسعيد خدری رضی الله عنه نه روايت دي فرمائی چه ماد نبی علیه السلام نه دخاروي په خيټه کښې دبچي متعلق تپوس اوکړو نبی علیه السلام اوفرمائيل خورئ ئي که ستاسو خوښه وي دمسدد به روايت کښې دي چه سعيد اووئيل ماعرض اوکړواي دالله رسوله که چرې مونږ اوښ نهر کړو اوغوا اوګډه ذبح کړو اودهغي په ګېډه کښې بچې بيامومو نوايا غورځوو به ئي او که خوروبه ئي؟ نبی علیه السلام اوفرمائيل وېې خورئ که خوښه مووي يقينا دده دمور ذبح کيدل دده ذبح کيدل دي.

﴿ عن ابی سعيد قال سالت رسول الله ﷺ عن الجنين........ الخ فان ذكاته ذكاة امه ﴾

د حديث مضمون دا دي چه د رسول الله ﷺ نه سوال اوکړې شو چه يا رسول الله ﷺ مونږ ډير کرته چه کوم خاروې ذبح کوو نو د هغي د خيټې نه بچي راوځی د هغي مونږ څه اوکړو هغه اوخرو يا او ئې غورځوو؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه خوړلې ئي شئ ځکه چه د هغه د مور ذبح خپله د هغه ذبح ده، يعنی هغه بچې په ذبح کښې د مور تابع دي لهذا د هغي د مستقل ذبح کولو ضرورت نشته او دا کوم حکم چه په حديث کښې ذکر شوې دي دا په هغه صورت کښې دي چه کله هغه بچې مړ وی، او که هغه ژوندي راوځی په هغه صورت کښې دا حکم نه دې. په دې صورت کښې به د هغه د حلاليدو دپاره بالاتفاق د هغه ذبح کول ضروری وی.

### په مسئلة الباب کښې اختلاف د ائمة:

د دې نه پس ځان پوهه کړئ چه په دې حديث باندې د ائمه ثلاثه او د صاحبينو عمل دې د امام ابوحنيفه رحمه الله رائې دا نه ده ففی الهداية: ومن نحر ناقة او ذبح بقرة فوجد فی بطنها جنينا ميتا لم يوكل اشعر اولم يشعر، وهذا عند ابی حنيفة رحمه الله تعالی وهو قول زفر والحسن بن زياد رحمه الله تعالی وقال ابويوسف ومحمد رحمهما الله اذا تم خلقته اكل وهو قول الشافعی لقوله عليه السلام ذكاة الجنين ذكاة امه الی اخره وفی هامشه:وقال الامام محمد رحمه الله فی موطاه : فاما ابوحنيفة فكان يكره اكله حتی يخرج حيا فيذكی وكان يروی عن حماد عن ابراهيم انه قال لا تكون زكاة نفس ذكاة نفسين.

### الجواب عن الامام ابی حنيفة رحمه الله:

د احنافو د طرف نه د دې حديث يو جواب ورکولې شی چه په دې حديث کښې مقصود تشبيه ده ای ذكاة الجنين كذكاة امه، او تشبيه کله د حرف تشبيه په حذف سره هم وی لکه په قول د الله پاک کښې، ﴿ وجنته عرضها السموات والارض، ای عرضها كعرض السموات والارض ﴾ او د دې تائيد د دې نه هم کيږی کوم چه وئيلې شوې دی چه يو روايت په دې حديث کښې ذكاةً په نصب سره هم دې ذكاة الجنين ذكاة امه، او دا منصوب بنزع الحافض كما فی قوله تعالی وهی تمر مر السحاب.

او د امام صاحب رحمه الله د طرف نه دا هم وئيلې شوې دی چه جنين ميتة چه په هغې کښې د علماء کرامو اختلاف دې د دوه حالو نه خالی نه دې، يا خو به هغه د مخکښې نه د خپلې

مور په خیټه کښې میتة وی نو د هغې حرمت خو ظاهر دې، او یا به د مور د ذبح نه پس په هغې باندې مرګ واقع شوې وی اختناق یعنی د ساه د أودریدو د وجې نه، لهذا په دې صورت کښې هغه منخنقه شوه، یعنی یو صورت کښې میتة او په یو صورت کښې منحنقة وکلاهما حرامان بنص القرآن، او دا هم وئیلې شوې دی چه که د حدیث نه مقصود تشبیه نه وې بلکه بیان دحکم او نیابت وې نو بیا د دې دپاره تعبیر داسې پکار وو ﴿ ذكاة ام الجنين ذكاته﴾ والحديث اخرجه الترمذی وابن ماجة قاله المنذری.

[۲۸۲۸](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ رَاهَوَيْهِ، حَدَّثَنَا عَتَّابُ بْنُ بَشِيرٍ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي زِيَادٍ الْقَدَّاحُ الْمَكِّيُّ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "ذَكَاةُ الْجَنِينِ ذَكَاةُ أُمِّهِ".

جابر بن عبدالله نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی دخاروي په خیټه کښې د موجود بچی دذبح کولو په ځائې دده دمور ذبح کول کافی دی

## بَابُ مَا جَاءَ فِي أَكْلِ اللَّحْمِ لَا يُدْرَى أَذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ أَمْ لَا

### بیان د حکم د خوراک دهغې غوښې چه معلومه نه وی دذبح کولو په وخت پرې بسم الله ونیلې شوې ده اوکه نه ده؟

[۲۸۲۹](٢) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ. ح وحَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ. ح وحَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَيَّانَ، وَمُحَاضِرٌ الْمَعْنَى، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ وَلَمْ يَذْكُرَا، عَنْ حَمَّادٍ، وَمَالِكٍ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهُمْ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ قَوْمًا حَدِيثُو عَهْدٍ بِالْجَاهِلِيَّةِ يَأْتُونَنَا بِلُحْمَانٍ لَا نَدْرِي أَذَكَرُوا اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهَا أَمْ لَمْ يَذْكُرُوا أَفَنَأْكُلُ مِنْهَا؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "سَمُّوا اللَّهَ وَكُلُوا".

ام المومنين عائشې رضي الله عنها نه روایت دې فرمائی چه صحابه کرامو نبی ﷺ ته عرض اوکړو چه اې دالله رسوله څه خلق اوس تازه مسلمانان شوي دي اودشرعي احکامو پوره علم ورسره نشته مونږ ته غوښه وړي راوړي مونږ ته معلومه نه ده چه هغوی دذبحې په وخت باندې بسم الله وائی اوکه نه وائی ایا مونږ دغه غوښه خوړلې شو؟ نبی علیه السلام اوفرمائیل تاسو دالله نوم واخلئ اوخورئ ئې.

﴿ ولم يذكرا عن حما د ومالک عن عائشة رضی الله تعالى عنها ﴾

### شرح السند

لفظ "عن عائشة" په ترکیب کښې "لم یذکرا" مفعول به دې د مصنف په دې حدیث کښې درې استاذان دی، موسی او القعنبی دريم یوسف. لهذا مطلب دا شو مصنف فرمائی زما استاد

---

١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٨٨٢)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الأضاحي ١٧(٢٠٢٢) (صحيح)

٢): صحيح البخاري/البيوع ٥ (٢٠٥٧)، الصيد ٢١ (٥٥٠٧)، التوحيد ١٣ (٧٣٩٨)، (تحفة الأشراف: ١٦٩٥٠، ١٧١٨١، ١٩٠٢٩)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الضحايا ٣٨(٤٤٤١)، سنن ابن ماجه/الذبائح ٤ (٣١٧٤)، موطا امام مالك/الأضاحي ٤ (٧)، والذبائح ١(١)، سنن الدارمي/الأضاحي ١٤(٢٠١٩) (صحيح)

موسی د حماد او قعنبی د خپل استاد مالک نه د دې په سند کښې لفظ "عن عائشة" نه دې ذکر کړې، بلکه صرف دريم استاد يعنی يوسف بن موسی دا ذکر کړې دې، لهذا د دواړو روايت مرسل شو او دا دويم موصول

مضمون د حديث دا دې عائشه رضی الله عنها فرمائی بعض صحابه کرامو د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه بعض نوی مسلمانان مونږ ته د قربانئ غوښه راوړی چه د هغې په باره کښې مونږ په دې باندې نه پوهيږو چه هغوی به په دې باندې د ذبح په وخت ﴿ بسم الله ﴾ وئيلې وه يا نه نو آيا مونږ دا خوړلې شو؟ رسول الله ﷺ افرمائيل چه ﴿ بسم الله ﴾ لولئ او خورئ يعنی کومه چه د خوراک مسنون طريقه ده چه د ﴿ بسم الله ﴾ وئيلو سره دې خوراک اوکړې شی هغه کوه، يعنی ددې نوې مسلمانانو سره د حسن ظن معامله کولو سره هغه خوراک پکار دې، او دا مطلب ئې نه دې چه ﴿ تسمية عند الاكل ﴾ د ﴿ تسمية عند الذبائح ﴾ قائم مقام جوړيږی. والحديث اخرجه البخاری والنسائی وابن ماجه قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الْعَتِيرَةِ

### د عتيرې (په رجب کښې د قربانئ) بيان

### فرع وعتيره کښې بحث مع مذاهب ائمة

د عتيره ذکر په کتاب الضحايا کښې د ټولو نه اول حديث کښې تيره شوې ده، او د دې راروان باب حواله هم، عتيره د هغه قربانئ نوم دې چه په ابتداء د اسلام کښې چه کله په روميئ عشره کښې خوړلې شوه کما تقدم فی اول الکتاب، امام ابوداوٗد خو دلته صرف يو باب (عتيره باندې) باندې قائم کړې دې او امام بخاری رحمه الله په عتيره او فرع دواړو باندې خانله خانله ابواب قائم کړې دی او په دواړو کښې د ابوهريره رضی الله عنه دا مرفوع روايت ﴿ لا فرع ولا عتيرة ﴾ ذکر فرمائيلې دې په رواياتو کښې د دواړو په باره کښې اختلاف دې نفيا واثباتا. پس د کتاب په شروع کښې کومه چه په حديث کښې تيره شوې ده په دې کښې چه د عتيره کوم جواز ذکر شوې دې او دلته حديث الباب کښې د دې نفی مذکور دې. په صحيحينو کښې خو د دواړو نفی او عدم جواز ذکر شوې دې، خو د سنن روايات په دې کښې مختلف دی، پس د عتيره په باره کښې خو اوس اختلاف تير شوې دې او د فرع دپاره د دې باب روميې حديث کښې خو د دې اثبات مذکور دې ﴿ فی کل سائمة فرع ﴾ او د باب په دويم حديث کښې د دې نفی ده ﴿ لا فرع ولا عتيرة ﴾ هم دغه شان وړاندې په باب العقيقة کښې يو حديث را روان دې ﴿ والفرع حق ﴾ جمهور علماء او د ائمة ثلاثة په نزد خو دا دواړه منسوخ دی خو امام شافعی رحمه الله او د بعض نورو علماء کرامو په نزد دا دواړه هم مستحب دی لکه چه امام نووی رحمه الله د امام شافعی رحمه الله نه د دې د استحباب تصريح نقل کړې ده [۱]

دا مخکښې تيره شوه چه د جمهورو عمل خو حديث د صحيحين ﴿ لا فرع ولا عتيرة ﴾ باندې دې او هغوی دا دواړه منسوخ منی او امام شافعی رحمه الله د اثبات او د نفی په روايتونو کښې

[۱] وفي هامش البذل: وعند الحنابلة لا يسن ولا يكره والمراد بالنفي عندهم نفي السنية كما جزم في "الروض المربع".

دفع د تعارض داسې کړې ده چه نفی ئې محمول کړې ده په نفی د وجوب باندې او د اثبات روایت په استحباب باندې.

## د فرع په تفسیر کښې اقوال:

د دې نه پس ځان داسې پوهه کړئ چه د عتیرة تفسیر خو پورته ذکر شو او د فرع په تفسیر کښې اقوال مختلف دی.

۱: د یو څناور ړومبې بچې (جوتهه) کومو لره به چه مشرکین د بتانو په نوم باندې ذبح کولو د خیر او برکت دپاره. او په شروع د اسلام کښې به دا د الله پاک په نوم باندې ذبح کولې شو. دویم فرق دا وو چه مشرکانو به د هغې د پیدائش نه پس په شروع کښې ذبح کولو او په شروع د اسلام کښې د لوئیدو نه پس لکه چه وړاندې د ابوداؤد په یو روایت مرفوعه کښې د دې ذکر راروان دې.

۲: په پوره رمه کښې چه کوم څاروې ړومبې بچې راوړی، اګر که هغه فی نفسه د هغې ړومبې نه وی. ۳: د انسان په ملک کښې بیزه وی یا اوښ، د سلو عدد [۱] پوره کیدو نه پس چه کوم بچې پیدا شی. پ۴: په هر پنځوس بیزو کښې یوه بیزه لکه چه په راروان حدیث ﴿من کل خمسین شاة شاة﴾

[۲۸۳۰] ([۲]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ. ح وحَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، عَنْ بِشْرِ بْنِ الْمُفَضَّلِ الْمَعْنَى، حَدَّثَنَا خَالِدٌ الْحَذَّاءُ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي الْمَلِيحِ، قَالَ: قَالَ نُبَيْشَةُ نَادَى رَجُلٌ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّا كُنَّا نَعْتِرُ عَتِيرَةً فِي الْجَاهِلِيَّةِ فِي رَجَبٍ، فَمَا تَأْمُرُنَا، قَالَ: "اذْبَحُوا لِلَّهِ فِي أَيِّ شَهْرٍ كَانَ وَبَرُّوا اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ وَأَطْعِمُوا، قَالَ: إِنَّا كُنَّا نُفْرِعُ فَرَعًا فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَمَا تَأْمُرُنَا؟ قَالَ: فِي كُلِّ سَائِمَةٍ فَرَعٌ تَغْذُوهُ مَاشِيَتُكَ حَتَّى إِذَا اسْتَحْمَلَ"، قَالَ نَصْرٌ: اسْتَحْمَلَ لِلْحَجِيجِ ذَبَحْتَهُ فَتَصَدَّقْتَ بِلَحْمِهِ، قَالَ خَالِدٌ: أَحْسَبُهُ، قَالَ عَلَى ابْنِ السَّبِيلِ: فَإِنَّ ذَلِكَ خَيْرٌ، قَالَ خَالِدٌ: قُلْتُ لِأَبِي قِلَابَةَ كَمِ السَّائِمَةُ قَالَ: مِائَةٌ.

دابو الملیح نه روایت دې فرمائی چه نشیبه اووئیل یو کس نبی ﷺ ته اواز اوکړو چه مونږ به دجهالیت په زمانه کښې عطیره کوله نواوس زمونږ دپاره څه حکم دې؟ نبی ﷺ اوفرمائیل دالله په نوم باندې ذبح کوئ اګرچه هره یوه میاشت وي او دالله تعالی فرمانبرداری کوی اوغریبانوته خوراك ورکوئ، ددې نه پس دغه کس عرض اوکړو چه مونږ به د جاهلیت په زمانه کښې فرع کوله اوس زمونږ دپاره ددې متعلق څه حکم دې؟ نبی ﷺ اوفرمائیل په هریوڅریدونکي څاروی کښې یوه فرع وي کوم چه ستاسو څاروې په خلقو باندې خوروي کله چه هغه څاروې دوزن داوچتولو قابل شي یاتري اوښ جوړ شي نوهغه ذبح کړئ اودهغه غوښه مسافروته په صدقه کښې ورکړئ خالد اووئیل دابهتره طریقه ده ما

---

[۱]) لکه چه وړاندې د راوی په کلام کښې راروان دی وکم السائمة؟ قال مئة او هم دغه شان په کتاب الطهارة کښې باب في الاستنثار کښې چه کوم اورد حدیث تیر شوې دې د هغې نه هم معلومیږی وفیه قوله صلی الله علیه وسلم لا تحسبن انا من اجلك ذبحناها، لنا غنم مئة لا یزید لا نرید ان تزید فاذا ولد الراعي بهمة ذبحنا مکانها شاة الحدیث)

[۲]): سنن النسائي/الفرع والعتيرة ۱ (٤٢٣٣)، سنن ابن ماجه/الذبائح ۲ (۳۱۳۷)، (تحفة الأشراف: ۱۱۵۸٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/۷٥، ۷٦) (صحیح)

ابوقلابه ته اووئيل چه په خومره څاروو کښې داسې کول پکاردي؟ هغه اووئيل چه په سلوکښې. (فرع دڅاروي اولني بچي وي کوم چه مشرکانوبتانوته دتقرب دپاره دهغوی په نوم ذبح کرو، اوعتيره، دبتانودتقرب دپاره دهغوی په نوم باندې درجب په اولنۍ عشره کښې دڅاروي ذبح کولوته وئيلې شي، په ابتداء اسلام کښې به مسلمانانوداعمل کولوليکن بيا منسوخ شو).

﴿ فی کل سائمة فرع تغذوه ما شيتک حتی إذا استحمل للحجيج ذبحته فتصدقت بلحمه ﴾

د فرع په باره کښې لکه چه مخکښې تير شو چه د جاهليت په زمانه کښې به په ړومبئ ورځ هغه بچې ذبح کولې شو. رسول اللهﷺ په دې حديث کښې فرمائی چه فرع خو برحق ده خو په ړومبئ ورځ باندې د ذبح کولو خبره غلطه ده بلکه تاسو له دا پکار دی چه کله هغه ستاسو خپل څاروې دې نو هغه اوپالئ او ساتنه ئې اوکړئ، چه کله هغه لوئې شی او د سورلئ قابل شی نو بيا هغې لره د ذبح کولو نه پس د هغه غوښه صدقه کړئ، او هم د دې په شان هدايت د رسول اللهﷺ نه وړاندې په يو روايت کښې راروان دې (چه د هغې حواله پورته تيره شوه) ﴿ والفرع حق وان تترکوه حتی يکون بکرا شغزبا ابن محاض او ابن لبون الخ ﴾ د دې ترجمه دا ده: او دا خبره چه تاسو دا بچې پريږدئ تردې چه هغه ځوان شی او بيا هغه يوې غريبې ښځې ته ورکړئ يا ئې په جهاد کښې استعمال کړئ نو دا غوره ده د دې خبرې نه چه ته هغې لره د پيدا کيدو نه پس فورا ذبح کړې او د هغې غوښه د هغې په څرمن او ويښتو پاتې شی او ته د خپلو پيو لوښې نسکور کړې، او ته د هغې بچې مور ته تکليف ورکړې. د پيو د لوښی د نسکور کولو مطلب دا دې چه کله د اوښې بچې په وړوکوالی کښې ذبح کړې شی نو بيا اوښه بغير د خپل بچې نه پئ ځنګه ورکولې شی.

حديث نبيشة اخرجه النسائی وابن ماجة وحديث ابی هريرة اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری.

[۲۸۳۱] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا فَرَعَ وَلَا عَتِيرَةَ".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی په اسلام کښې نه فرع شته اونه عتيره. دفرع اوعتيره وضاحت په تيرشوي حديث کښې مذکوردي.

[۲۸۳۲] (٢) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدٍ، قَالَ: الْفَرَعُ أَوَّلُ النِّتَاجِ كَانَ يُنْتَجُ لَهُمْ فَيَذْبَحُونَهُ.

دسعيد بن المسيب نه روايت دې فرمائی چه فرع هغه بچې ته وئيلې شي کوم چه اول پيداشي اوخلقوبه دبتانو په نوم ذبح کولو.

[1]: صحيح البخاري/العقيقة ٤ (٥٤٧٣)، صحيح مسلم/الأضاحي ٦ (١٩٧٦)، سنن الترمذي/الأضاحي ١٥ (١٥١٢)، سنن النسائي/الفرع والعتيرة (٤٢٢٧)، سنن ابن ماجه/الذبائح ٢ (٣١٦٨)، (تحفة الأشراف: ١٣١٢٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٣٩، ٢٥٤، ٢٨٥)، سنن الدارمي/الأضاحي ٨ (٢٠٠٧) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٨٣٣) (صحيح)

[۲۸۳۳]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُثْمَانَ بْنِ خُثَيْمٍ، عَنْ يُوسُفَ بْنِ مَاهَكَ، عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ كُلِّ خَمْسِينَ شَاةً شَاةٌ، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ بَعْضُهُمُ الْفَرَعُ أَوَّلُ مَا تُنْتِجُ الإِبِلُ كَانُوا يَذْبَحُونَهُ لِطَوَاغِيتِهِمْ ثُمَّ يَأْكُلُونَهُ، وَيُلْقَى جِلْدُهُ عَلَى الشَّجَرِ وَالْعَتِيرَةُ فِي الْعَشْرِ الأُوَلِ مِنْ رَجَبٍ.

دام المومنین عائشة رضی الله عنها نه روایت دې فرمائي چه نبی علیه السلام مونږته حکم کړې وو چه په هرو پنځوسو ګډو کښې به یوه ګډه اداکوو. امام ابوداود وائي چه فرع داوښ اولني بچی ته وئیلې شي کوم چه به مشرکانو دخپلو بتانو په نوم ذبحه کولو اوبیابه ئې خوړلو، او څرمن به ئې ورله په یوه ونه باندې وغوړوله اوعتیره درجب دمیاشتې په اولنۍ عشره کښې وې.

## بَابٌ فِي الْعَقِيقَةِ

### دعقیقې داحکامو بیان

د صحیح بخاری عنوان ﴿ کتاب العقیقة ﴾ دې کوم چه هغوی د کتاب الاطعمة نه پس مستقلا ذکر کړې دې، د باب الفرع والعتیرة نه مخکښې، او په هغې کښې امام بخاری صرف دوه ابواب قائم کړې دی. ﴿ باب تسمیة المولود غداة یولد لمن لم یعق عنه وتحنیکه ﴾ او دویم باب ﴿ اماطة الاذی عن الصبی فی العقیقة ﴾ چه په هغې کښې ئې دا حدیث ذکر کړې دې ﴿ مع الغلام عقیقة فاهریقوا عنه دما وامیطوا عنه الاذی ﴾

### د عقیقې متعلق ضروری مباحث:

عقیقة د عق نه اخستلې شوې دې چه د هغې معنی د شق او د قطع ده، د عقیقې اطلاق د مولود د سر په ویښتو باندې کیږی چه هغې لره قطع کولې شي، او په هغه ذبیحه باندې هم عقیقه په هغه امورو کښې ده کوم چه په زمانه د جاهلیت کښې هم رائج وو خو هغه خلقو به دا کول چه د ذبیحې وینې به ئې د مولود په سر باندې مږلې، په اسلام کښې اصل عقیقه خو باقی پریخودلې شوه خو دویم خصلت یعنی ﴿ اللطخ بالدم ﴾ نه منع اوکړې شوه او د هغې په ځائې زعفران استعمال کړې شو، دا مضمون د باب په آخری حدیث کښې را روان دې.

په اوجز کښې د کتاب العقیقة په شروع کښې لس بحثونه ذکر کړې شوې دی چه د هغې ذکر مجملا په حاشیة د لامع او ﴿ الابواب والتراجم ﴾ کښې راغلې دې. بحث اول خو په لغوی تحقیق کښې دې او دویم بحث د دې په حکم کښې چه د هغې خلاصه دا ده چه عقیقه د ظاهریه په نزد واجب ده وهو روایة عن احمد والحسن، او د شوافعو او حنابله په نزد سنت موکده ده، او د امام مالک په نزد مستحب ده کما فی الموطاء وکلام الدردیر، او د احنافو په دې باره کښې درې روایات دی، اول دا چه مستحب ده وهو المعروف فی فروعهم، دویم دا چه مباح ده، او دریم دا چه انها بدعة ونسب الی الامام، وانکر الانتساب العلامة العینی، د احنافو په نزد صحیح دا ده چه عقیقة مستحب ده خو د صاحب بدائع رائې د دې خلاف ده هغوی دې ته منسوخ او مکروه وئیلې ده. په موطاء کښې امام محمد رحمه الله هم نسخ لیکلې ده خو د هغه

(): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۷۸۳۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۵۸/۶، ۲۵۱) (صحیح)

محشي په دې باندې تعقب کولو سره په هغې تفصيلي کلام کړې دې او په کتابونو د شوافعو کښې دا هم دی چه عقيقه د امت په حق کښې خو مستحب ده او د رسول اللهﷺ په حق کښې واجب.

**﴿په عقيقه کښې په غلام او وينځه کښې فرق﴾**

يو بحث په دې مباحثو کښې دا دې چه په عقيقه کښې د هلک او جينئ حکم يوشان دې او که فرق دې؟ د جمهور او ائمه ثلاث رائې دا ده. لکه چه په حديث الباب کښې وضاحت دې چه د هلک د طرف نه شاتين او د جينئ د طرف نه صرف شاة واحدة. او د امام مالک رائې دا ده چه د دواړو د پاره يوه يوه بيزه ده پس هغوی په موطاء کښې د ابن عمرؓ دا عمل نقل کړې دې ﴿انه كان يعق عن ولد بشاة بشاة للذكور والاناث﴾ او په التعليق الممجد کښې دا دی چه د جمهور مسلک يعنی عن الغلام شاتان وعن الجارية شاة د رسول اللهﷺ نه په ډيرو طرقو سره ثابت دې، خو د رسول اللهﷺ په فعل کښې روايات مختلف دی يعنی د حسنينؓ په باره کښې دواړه قسم روايتونه دی په بعض رواياتو کښې ﴿كبشا كبشا﴾ دې او په بعض کښې ﴿كبشين كبشين﴾ پس په ترمذی کښې دی چه ﴿عن علی بن ابی طالبؓ قال عق رسول اللهﷺ بشاة الحديث﴾ قال ابوعيسى هذا حديث حسن غريب، وفی البذل عن الحافظ، واحتج مالک بما جآء ان النبیﷺ عق عن الحسن والحسين كبشا كبشا ولا حجة فيه فقد اخرج ابو الشيخ عن ابن عباس رضى الله عنهما بلفظ كبشين كبشين آهـ... زه وايم هم دغه شان د کبشينو والا روايت د ابن عباسؓ په نسائی کښې هم دې او په بعض کتابونو د مالکيانو کښې لکه ارشاد السالک کښې داسې دی ﴿العقيقة ذبح شاة﴾ او بيا وړاندې دی ﴿والافضل عن الذكر بشاتين﴾ يعنی اولی د هغوی په نزد هم دا ده چه د هلک د طرف نه شاتين اوکړې شی او د ابن رشد مالکی ميلان هم دې طرف ته دې لکه چه په اوجز کښې دی.

﴿عن ام كرز الكعبية رضى الله تعالى عنها قالت سمعت رسول اللهﷺ يقول عن الغلام شاتان مكافئتان وعن الجارية شاة﴾

[٢٨٣٤](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ حَبِيبَةَ بِنْتِ مَيْسَرَةَ، عَنْ أُمِّ كُرْزٍ الْكَعْبِيَّةِ، قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "عَنِ الْغُلَامِ شَاتَانِ مُكَافِئَتَانِ وَعَنِ الْجَارِيَةِ شَاةٌ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمِعْت أَحْمَدَ، قَالَ: مُكَافِئَتَانِ أَيْ مُسْتَوِيَتَانِ أَوْ مُقَارِبَتَانِ.

دام کرز الکعبية نه روايت دې فرمائی چه د نبیﷺ نه مې اوريدلی دی چه فرمائيل فينډهلک دطرف نه به دوه ګډان يوشان عمروالا ذبحه کولې شي اودجينئ دطرف نه به يوګډ ابوداود وائی چه داحمد نه مې اوريدلی دی چه وئيل ئې چه دمکافئتان نه مراد دادې چه يودبل سره مساوي وي يا ورته نژدې وي

امام ترمذیؒ د دې حديث نه پس فرمائی ﴿هذا حديث حسن صحيح والعمل عليه.... وروی عن النبیﷺ ايضا انه عق عن الحسن بن علی رضی الله عنهما بشاة﴾ آهـ

(١): سنن الترمذي/الأضاحي ١٧ (١٥١٦)، سنن النسائي/العقيقة ٢ (٤٢٢١)، سنن ابن ماجه/الذبائح ١ (٣١٦٢)، (تحفة الأشراف: ١٨٣٥٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣٨١، ٤٢٢)، سنن الدارمي/الأضاحي ٩(٢٠٠٩) (صحيح)

## شرح الحدیث:

یعنی د هلک د طرف نه عقیقة دوه بیزې دی او د جینئ د طرف نه یوه بیزه ده د (مکافئتان) په شرح کښې مختلف اقوال دی، تقریبا درې اقوال دی ۱: داسې دوه بیزې چه خپل مینځ کښې په عمر کښې برابر وی په عمر کښې (واړهٔ لوئې نه وې) حکاه المصنف عن الامام احمد ۲: داسې دوه بیزې چه برابر وی د هغه بیزو سره کومې چه په قربانئ کښې کولې شی یعنی د عمر په اعتبار سره د هغې نه کم نه وی، قال الزمحشری ۳: داسې دوه بیزې چه برابر وی په اعتبار د ذبح یعنی چه دواړه یو ځائې ذبح کړې شی، دا نه چه یو مثلا سحر ذبح کړی او دویم د ماښام په وخت روی ذلک زید بن اسلم هذا ما فهمت من الشروح. والحدیث اخرجه النسائی قال الشیخ محمد عوامه.

[۲۸۳۵]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي يَزِيدَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ سِبَاعِ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ أُمِّ كُرْزٍ، قَالَتْ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "أَقِرُّوا الطَّيْرَ عَلَى مَكِنَاتِهَا، قَالَتْ: وَسَمِعْتُهُ يَقُولُ: عَنِ الْغُلَامِ شَاتَانِ وَعَنِ الْجَارِيَةِ شَاةٌ لَا يَضُرُّكُمْ أَذُكْرَانًا كُنَّ أَمْ إِنَاثًا".

دام کرز الکعبیة نه روایت دی فرمائی چه دنبی ﷺ نه مې اوریدلی دی چه فرمائیل ئې مرغئ دخپلو جالونه مه شړئ ام کرز وائی چه ما ترې داهم واوریدل چه دهلك دطرف نه به دوه ګانو اورجینئ دطرف نه په یوګر عقیقه کولي شي، او په دې کښې باك نشته چه دواړه نران وي اوکه ښځې.

(عن ام کرز رضی الله تعالی عنها قالت سمعت رسول الله ﷺ یقول اقروا الطیر علی مکناتها) مکنات لره څو طریقو سره ضبط کړې شوې دې په فتحې د میم او کسرې د کاف سره، او د دواړو فتح، په دې صورت کښې د دې معنې لیکلې دی...... بیضه، په فتح د میم او په ضم د کاف سره د دې تفسیر کړې شوې دې په أماکن سره، لهذا په ړومبی صورت کښې به د حدیث معنی وی چه مارغان د هغوی په هګو باندې ناستې ته پرېږدئ او برقرار ئې اوساتئ او په دویم صورت کښې مارغانو لره ناست پرېږدئ د هغوی په جالو کښې، اوس دا چه په دې سره غرض د رسول الله ﷺ څه دې.... فقیل الغرض المنع عن زجر الطیر وتنفیرها من اماکنها اذفیه ایذاء الحیوان، یعنی هسې بغیر د څه وجې نه مارغانو لره مه پریشانه کوئ د هغوی په چیړلو باندې، وقیل الغرض المنع عن الصید لیلا لان اللیل وقت راحتها، یعنی په شپه کښې دې د مارغانو ښکار اونکړې شی، شپه دهغوی د آرام وخت دې که ښکار کول وی نو په ورځ کښې کوئ، وقیل الغرض المنع عن الطیرة یعنی د ښه او بد فال ویستلو دپاره هغوی لره د هغوی د ځائې نه مه پاسوئ، (اذ لا طیرة فی الاسلام)

(لایضرکم اذکراناکن ام اناثا) یعنی په دې کښې هیڅ باک نشته که هغه نران وی او که ښځې.

والحدیث عزاه المزی فی التحفة الی النسائی وابن ماجة قاله الشیخ محمد عوامه.

[1]): سنن النسائي/العقيقة ۳ (۴۲۲۳، ۴۲۲۲)، سنن ابن ماجه/الذبائح ۱ (۳۱۶۲)، (تحفة الأشراف: ۱۸۳۴۷)، وقد أخرجه: دي/الأضاحي ۹ (۲۰۱۱) (ضعيف)

[۲۸۳٦]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي يَزِيدَ، عَنْ سِبَاعِ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ أُمِّ كُرْزٍ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "عَنِ الْغُلَامِ شَاتَانِ مِثْلَانِ وَعَنِ الْجَارِيَةِ شَاةٌ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا هُوَ الْحَدِيثُ وَحَدِيثُ سُفْيَانَ وَهْمٌ.

دام کرز الکعبیة نه روایت دي فرمائي چه نبی ﷺ فرمائیلی دی: دهلك دطرف نه به دوه ګډان پوشان عمروالا ذبحه کولي شي اودجینئ دطرف نه به یو ګډ. ابوداود وائی چه حدیث هم دا معتمد دي اودسفیان حدیث وهم دې.

قال ابوداوٗد : هذا هو الحديث وحديث سفيان وهم.... د سفیان په روایت کښې د عبیدالله نه پس د عن ابیه زیادت دې کوم چه د حماد په روایت کښې نشته، مصنف هم د دې په باره کښې فرمائی چه دا زیادت وهم دې. والحديث اخرجه الترمذی مختصرا واخرجه النسائی بتمامه ومختصرا، واخرجه ابن ماجة مختصرا، قاله المنذری.

[۲۸۳۷]([2]) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ النَّمَرِيُّ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنْ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "كُلُّ غُلَامٍ رَهِينَةٌ بِعَقِيقَتِهِ تُذْبَحُ عَنْهُ يَوْمَ السَّابِعِ وَيُحْلَقُ رَأْسُهُ وَيُدَمَّى"، فَكَانَ قَتَادَةُ إِذَا سُئِلَ عَنِ الدَّمِ كَيْفَ يُصْنَعُ بِهِ قَالَ: إِذَا ذَبَحْتَ الْعَقِيقَةَ أَخَذْتَ مِنْهَا صُوفَةً وَاسْتَقْبَلْتَ بِهِ أَوْدَاجَهَا، ثُمَّ تُوضَعُ عَلَى يَافُوخِ الصَّبِيِّ حَتَّى يَسِيلَ عَلَى رَأْسِهِ مِثْلَ الْخَيْطِ، ثُمَّ يُغْسَلُ رَأْسُهُ بَعْدُ وَيُحْلَقُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا وَهْمٌ مِنْ هَمَّامٍ وَيُدَمَّى، قَالَ أَبُو دَاوُد: خُولِفَ هَمَّامٌ فِي هَذَا الْكَلَامِ وَهُوَ وَهْمٌ مِنْ هَمَّامٍ وَإِنَّمَا قَالُوا: يُسَمَّى، فَقَالَ هَمَّامٌ: يُدَمَّى، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَلَيْسَ يُؤْخَذُ بِهَذَا.

دسمره رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول پاک فرمائیلی دی هر یوهلك خپلې عقیقې پورې ګانړه کړې شوي دي دپیدائش په نومه ورځ به دهغه دطرف نه ذبحه وکړې شي اوسربه ئې وخریلې شي اودماشوم سربه دخاروي په وینه ګنده کړې شي، اودقتاده نه چه به کله تپوس وکړې شوددم په باره کښې چه څنګه کول پکاردي نوهغه به ورته وئیل: دخاروي دذبح کولو په وخت کښې دخاروي دورې نه لړه راواخلې اودرګونوپه وینه به خوشته کړې اودماشوم په سرباندې به ئې کیږدي تردې چه دتارپه شان وینه بهیدل دماشوم په سرباندې شروع شي نوبیابه ئې سروویئځل شي اوددې نه پس به اوخریل شي. ابوداود وائی چه د یدي لفظ دهمام وهم دي په اصل کښې دا لفظ ویسمی دي همام ترې یدمی جوړ کړې دي ابوداود وائی چه په دې باندې دهیچا عمل نشته.

﴿كل غلام رهينة بعقيقة تذبح عنه يوم السابع ويحلق راسه ويدمی﴾

## شرح الحديث:

او د ترمذی په روایت کښې داسې دی، الغلام مرتهن بعقيقته، مرتهن د اسم مفعول صیغه ده په معنی د ګانړه.

[1]: انظر حديث رقم: (۲۸۳٤)، (تحفة الأشراف: ۱۸۳٤۷) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الأضاحي ۲۳ (۱۵۲۲)، سنن النسائي/العقيقة ٤ (٤۲۲۵)، سنن ابن ماجه/الذبائح ۱ (۳۱٦۵)، (تحفة الأشراف: ٤۵۸۱)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/العقيقة ۲ (۵٤۷۲)، مسند احمد (۷/۵، ۸، ۱۲، ۱۷، ۱۸، ۲۲)، سنن الدارمي/الأضاحي ۹(۲۰۱۲) (صحيح)

د دې حديث په شرح کښې څو اقوال دی:
۱: عقيقة د هر نومولود دپاره لازم او ضروری ده څنګه چه د مرهون څيز د مرتهن په لاس کښې پاتې کيدل ضروری دی، تشبيه په اعتبار د لزوم ده ګويا مقصود تاکيد د عقيقې دې او په ظاهره د دې نه تائيد کيږی د قول وجوب **کما ذهب اليه بعضهم.**
۲: ماشوم د خپلو وينښتو په تکليف کښې ګاڼړه يعنی مقيد او بند دې ترڅو چه هغه زائل نه کړې شي (لهذا دا ګنده وينښته د هغه نه زر زائله کول پکار دی بعض خلق په دې کښې ډيره سستی او تاخير کوی مونږ د خپلو بعض استاذانو نه د دې حديث په شرح کښې واوريدل چه د ماشوم عقيقه کولو سره بغير د تاخير د هغه مصيبتونه لرې کول پکار دی.
۳: د امام احمد رحمه الله نه نقل دی چه دا حديث د شفاعت په باره کښې دې چه که د ماشوم د طرف نه عقيقه اونکړې شي او بيا هغه په وړوکوالی کښې مړ شی نو د خپل مور پلار په باره کښې شفاعت نه کوی.[1]
دا مخکښې تيره شوه چه د عقيقې اطلاق د ماشوم د سر په وينښتو او په قربانئ دواړو باندې کيږی، په دې معانی کښې هم د بعض تعلق د وينښتو سره دې او د بعضو د ذبيحې سره.

**عقيقه کښې د يوم السابع قيد:**

وړاندې په حديث کښې دی چه دا عقيقه دې په اوومه ورځ باندې ذبح کړې شی او هم دغه شان د سر وينښته هم په دې باندې امام ترمذی رحمه الله فرمائی چه غوره خو هم دا ده چه عقيقه دې په اوومه ورځ باندې اوکړې شی او که په اوومه ورځ باندې نه شی کولې نو بيا دې په څوارلسمه ورځ باندې اوکړې شی.
او که په دې کښې هم نه شی کولې نو بيا دې په يويشتمه ورځ اوکړې شی، د وخت په دې تعيين کښې د فقهاء کرامو اختلاف دې د يوم السابع قيد د مالکيانو په نزد خو معتبر او ضروری دې د هغوی په نزد عقيقه د يوم السابع نه مخکښې معتبر نه ده او نه د هغې نه روستو معتبر ده او د هغوی نه دا هم نقل دی چه کوم ماشوم د اوومې ورځ نه مخکښې مړ شی د هغه عقيقه ساقط ده او د ابن وهب رحمه الله روايت د امام مالک نه دا دې چه که په سابع اول کښې عقيقه اونکړې شوه نو بيا دې په سبع ثانی کښې اوکړې شی او په

---

[1] زما په يو يادداشت کښې د دې حديث معانی داسې ملاؤ شوې: **(کل غلام مترهن بعقيقته).**
۱: د عقيقه نه مراد ذبيحه بيزه وغيره چه ذبح کولې شی دا کناية ده د لزوم او وجوب نه د هر ماشوم دپاره عقيقه لازم ده څنګه چه د مرهون څي زد مرتهن په لاس کښې کيدل ضروری دی ترڅو پورې چه قرض نه وی ادا شوې.
۲: هر ماشوم د شيطان د تصرفاتو سره مقيد او تړلې شوې وی ترڅو چه د هغه عقيقه اونکړې شی نو ګويا عقيقه په منزله د فديې ده د هغې د وجې نه هغه ماشوم د شيطان د تصرفاتو نه خلاصې بيا مومی ۳: هر يو ماشوم د خپل مور پلار د سفارش نه بند وی ترڅو پورې چه د هغه مور پلار د هغه د طرف نه عقيقه کولو سره د هغه حق ادا نه کړی. دا تفسير امام احمد بن حنبل رحمه الله ته منسوب دې.
۴: د عقيقې نه مراد د ماشوم د سر وينښته دی، يعنی هر ماشوم د خپل سر د ګنده وينښتو سره مقيد او تړلې شوې دې ترڅو پورې چه هغه وينښته د هغه نه زائل نه کړې شی لهذا عقيقه په خپل وخت کښې کول پکار دی په دې کښې روستو والې نه دې پکار)

دریم کښې هم څه باک نشته، كذا فى الفتح وكذا فى الدسوقى.
د حنابله په نزد دا قید ضروری نه دې، د هغوی په نزد قبل السابع هم جائز دس (كما فى نيل المآرب) وفى الروض المربع : ولا يعتبر الاسبوع بعد ذلك فيعق فى اى يوم اراد او د شوافعو مذهب په شرح اقناع کښې لیکلې شوې دې ويدخل وقته من الولادة ويسن يوم السابع، ويسقط بعد اكثر مدة النفاس وفيما بينهما تردد، او د احنافو مسلک لکه چه په جنتی کالی کښې دی چه د اوومې ورځ رعایت مستحب دې، اګر چه هر څومره ورځې تیرې شی، او د هغې صورت ئې داسې لیکلې دې چه کله د ماشوم عقیقه اوکړې شی د ولادة د ورځې نه یو ورځ مخکښې اوکړې شی. مثلاً که د ماشوم د پیدائش د جمعې په ورځ وی نو چه کله هم عقیقه کوی نو د جمعې نه یو ورځ مخکښې د زیارت په ورځ دې اوکړې شی. (من هامش البذل)

﴿ ويدمى فكان قتادة اذا سئل عن الدم كيف يصنع به قال اذا ذبحت العقيقة الخ ﴾

## حديث العقيقة کښې د لفظ يدمى تحقيق

په دې روایت کښې لفظ د ﴿ یدمی ﴾ راغلې دې د تدمية نه، چه اخستلې شوې دې د ﴿دم﴾ نه یعنی وینه اومرلې شی، د قتادة رحمه الله نه سوال اوکړې شو چه د دې څه صورت کیدل پکار دی نو هغوی اووې چه کومه بیزه ته ذبح کړې نو د هغې لره شان وړئ دې واخلی او هغه وړئ دې د عقیقې د مرئ په رګونو باندې اولګوی او بیا دې دغه (مالوچ) وړئ د ماشوم په تالو باندې اومړی تردې چه د هغې د سر نه د وینې څاڅکی اوبهیږی او بیا دې د سر د وینځلو نه روستو د هغې حلق اوکړې شی.

[۲۸۳۸](¹) حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "كُلُّ غُلَامٍ رَهِينَةٌ بِعَقِيقَتِهِ تُذْبَحُ عَنْهُ يَوْمَ سَابِعِهِ وَيُحْلَقُ وَيُسَمَّى"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَيُسَمَّى أَصَحُّ كَذَا، قَالَ سَلَّامُ بْنُ أَبِي مُطِيعٍ، عَنْ قَتَادَةَ، وَإِيَاسُ ابْنُ دَغْفَلٍ، وَأَشْعَثُ، عَنْ الْحَسَنِ قَالَ: وَيُسَمَّى، وَرَوَاهُ أَشْعَثُ، عَنْ الْحَسَنِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَيُسَمَّى.

دسمرة بن جندب رضی الله عنه نه روایت دې دې چه رسول پاکا فرمائیلی دی هر یو هلك خپلې عقیقې پورې ګانړه کړې شوې دې دپیدائش په اومه ورځ به دهغه دطرف نه ذبحه کړې شی اوسربه ئې وخریلې شي اونوم به ورباندې کیخودلې شي. ابوداود وائی چه یسمی لفظ زیات درست دې اوهمدارنګې سلام بن ابی مطیع دقتاده په واسطه اوایاس بن دغفل او اشعث دحسن نه نقل کړی دی چه وئیلې ئې دې ویسي اواشعث هم دحسن نه اوهغه دنبی علیه السلام نه ویسمی لفظ نقل کړې دې

ورانديې په کتاب کښې دی مصنف فرمائی ﴿ ویدمی ﴾ لفظ د دې په روایت کښې د همام راوی وهم دې، پس د دې نه روستو والا روایت کښې چه هغې لره روایت کونکې سعید دې په ځائې د همام په دې کښې د ﴿ یدمی ﴾ په ځائې ﴿ یسمی ﴾ دې. امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی چه ﴿یسمی﴾ لفظ اصح دې.

¹): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٤٥٨١) (صحيح)

﴿ يدمى ﴾ لره د همام په وهم وئيلو باندې حافظ دا اشکال کړې دې چه دې ته وهم وئيل څنګه صحيح کيدې شي ځکه چه وړاندې په روايت کښې خو دا موجود دی، همام وائی چه کله به زمونږ د استاذ نه د دم په باره کښې سوال کولې شو چه د اځنګه اوکړې شي، نو په دې باندې به هغوی په دغه طريقه بيان فرمائيله، دا ټول خو په ضبط د همام باندې دلالت کوی نه د هغه په وهم باندې، مګر دا چه اوئيلې شي چه په اصل حديث کښې خو ﴿ يسمى ﴾ وو خو د هغې نه روستو قتاده د اهل جاهليت د دم ذکر اوکړلو نو بيا د همام په سوال باندې هغوی د هغې طريقه اوښودله، خو همام باندې وهم راغلو چه هغوی د ﴿يسمى ﴾ په ځائې د ﴿ يدمى ﴾ لفظ نقل کول شروع کړل، او بعض دا توجيه کړې چه دا منسوخ دې او يو توجيه د دې دا کړې شوې ده چه د دې نه مراد ﴿ يختن ﴾ دې چه ماشوم سنت کړې شي، خو د دې ټولو خبرو باوجود شراح ليکلې دی چه بعض علماء لکه ابن عمر، عطاء او قتاده رحمهم الله د استحباب تدمية قائل وو. (والحديث رواه الترمذي والنسائي وابن ماجة)

[۲۸۳۹](١) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ حَسَّانَ، عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيرِينَ، عَنْ الرَّبَابِ، عَنْ سَلْمَانَ بْنِ عَامِرٍ الضَّبِّيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَعَ الْغُلَامِ عَقِيقَتُهُ فَأَهْرِيقُوا عَنْهُ دَمًا وَأَمِيطُوا عَنْهُ الْأَذَى".

سلمان بن عامر رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول پاکﷺ فرمائيلی دی دهلك په پيداکيدوسره عقيقه کول مسنون دي تاسو دهلك دطرف نه وينه توی کړئ او ګندګی لرې کړئ.

[۲۸٤۰](٢) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ الْحَسَنِ أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ: إِمَاطَةُ الْأَذَى حَلْقُ الرَّأْسِ.

دحسن رحمه الله نه روايت دې فرمائي چه داماطة الاذي نه مراد سرخريل دي.

[۲۸٤۱](٣) حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَقَّ عَنِ الْحَسَنِ وَالْحُسَيْنِ كَبْشًا كَبْشًا.

ابن عباس رضی الله عنه نه روايت دې چه نبی عليه السلام دحسن اوحسين دطرف نه په يو يو ګوباندې عقيقه کړې وه..

﴿ عن ابن عباس رضى الله تعالى عنهما ان رسول اللهﷺ عق عن الحسن والحسين كبشا كبشا ﴾ د دې حديث په بعض طرقو کښې ﴿ کبشين کبشين ﴾ دې لکه چه مخکښې ذکر شو.

والحديث اخرجه النسائي، قاله المنذري.

---

١): صحيح البخاري/العقيقة ٢ (٥٤٧١)، سنن الترمذي/الأضاحي ١٧ (١٥١٥)، سنن النسائي/العقيقة ١ (٤٢١٩)، سنن ابن ماجه/الذبائح ١ (٣١٦٤)، (تحفة الأشراف: ٤٤٨٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/١٧، ١٨، ٢١٤)، سنن الدارمي/الأضاحي ٩ (٢٠١٠) (صحيح)

٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٥٥٦) (صحيح)

٣): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٠١١)، وقد أخرجه: سنن النسائي/العقيقة ٣ (٤٢٢٤) (صحيح) لكن في رواية النسائي:«كبشين كبشين»، وهو الأصح

[۲۸٤۲]() حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ قَيْسٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ح وَحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ يَعْنِي ابْنَ عَمْرٍو، عَنْ دَاوُدَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ أُرَاهُ، عَنْ جَدِّهِ قَالَ: سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْعَقِيقَةِ فَقَالَ: "لَا يُحِبُّ اللَّهُ الْعُقُوقَ"، كَأَنَّهُ كَرِهَ الِاسْمَ وَقَالَ: مَنْ وُلِدَ لَهُ وَلَدٌ فَأَحَبَّ أَنْ يَنْسُكَ عَنْهُ فَلْيَنْسُكْ عَنِ الْغُلَامِ شَاتَانِ مُكَافِئَتَانِ، وَعَنِ الْجَارِيَةِ شَاةٌ، وَسُئِلَ عَنِ الْفَرَعِ قَالَ: وَالْفَرَعُ حَقٌّ وَأَنْ تَتْرُكُوهُ حَتَّى يَكُونَ بَكْرًا شُغْزُبًّا ابْنَ مَخَاضٍ، أَوِ ابْنَ لَبُونٍ فَتُعْطِيَهُ أَرْمَلَةً أَوْ تَحْمِلَ عَلَيْهِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ خَيْرٌ مِنْ أَنْ تَذْبَحَهُ فَيَلْزَقَ لَحْمُهُ بِوَبَرِهِ، وَتُكْفِئَ إِنَاءَكَ وَتُولِهُ نَاقَتَكَ.

عمرو بن شعیب دخپل پلارنه اوهغه غالبا دده دنیکه نه روایت کوی فرمائی چه دنبی علیه السلام نه دعقیقې په باره کښې تپوس وکړې شونو اوئې فرمائیل: دالله تعالی عقوق خوښ نه وي، زما خیال دې چه دانوم ئې خوښ نه شو اوبیا ئې اوفرمائیل دچاچه بچې پیداشي اوهغه دخپل بچې دطرف نه قرباني کول غواړي نودهلك دطرف نه دې دوه چیلی ذبح کړې اودجینئ دطرف نه دې یوه چیلئ ذبح کړې بیا ترې دفرع متعلق تپوس اوکړې شو نووئې فرمائیل فرع حق ده که چرې تاسو داپرېږدئ تردې چه هغه اوښ دیوکال شي یاد دوو کالوشی اوبیا دغه اوښ غریبانانو اوکوندو ته ورکړئ یائې دجهاد دپاره صدقه کړئ نوهغه ددې نه بهترده چه تاسو دده دپیدائش نه پس دې ذبح کړئ اودده غوښه دده په وړئ پورې انختلې وي (یعنی کمه وي اوخپل لوښې اولټه کړئ اودده مور لیونئ کړئ.

﴿ عن عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده قال سئل النبی ﷺ عن العقیقة فقال لا یحب الله العقوق ﴾

## شرح الحدیث:

یعنی د رسول الله ﷺ نه د عقیقې په باره کښې تپوس اوکړې شو نو هغوی اوفرمائیل الله پاک عقوق لره نه خوښوی، عقیقه او عقوق دواړه د یو اصل طرف ته راجع دی یعنی عق چه د هغې معنی د عق او د شق دی او هم د دې نه اخستلې شوې دې عقوق الوالدین، وړاندې په روایت کښې دی د راوی کلام چه کیدې شی ستاسو دا نوم خوښ نه وی، د روای دا خیال صحیح دې ځکه چه هم په هغه حدیث کښې د دې نه پس رسول الله ﷺ د عقیقې حکم فرمائی خو د عقیقې په لفظ سره نه بلکه په لفظ د نسک سره، لهذا په دې کښې اشاره شوه دې طرف ته چه د عقیقې په ځائې دې نسیکه یا یو بل لفظ سره تعبیر اوکړې شي. کوم خلق چه د عقیقې د استحباب قائل نه دی بلکه دا مکروه ګڼړی هغوی د دې روایت نه هم استدلال کړې دې خو دا استدلال ضعیف دې، بیا وړاندې په حدیث کښې د فرع په باره کښې سوال او جواب دې چه د هغې شرح په ﴿ باب العتیرة ﴾ کښې تیره شوې ده، په هغې کښې یو لفظ ﴿ شغربا ﴾ دې د دې په باره کښې د شارحانو تحقیق دا دې چه دا لفظ مصحف دې او صحیح زخزبا دې ای غلیظا قویا، هم دغه شان په دې کښې یو لفظ دا دې ﴿ وتوله ناقتک﴾ دا تولة د وله نه ماخوذ دې وهو ذهاب العقل لاجل فقدان الولد... یعنی د بچی د مړ کیدو د وجې نه د هغه د مور لیونئ کیدل.

والحدیث اخرجه النسائی قاله المنذری.

(): سنن النسائي للعقيقة ۱ (٤٢١٧)، (تحفة الأشراف: ۱۹۱٦۹، ۸۷۰۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۸۲/۲، ۱۸۳، ۱۹٤) (حسن)

[۲۸۴۳]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ ثَابِتٍ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْحُسَيْنِ، حَدَّثَنِي أَبِي، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُرَيْدَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي بُرَيْدَةَ يَقُولُ: كُنَّا فِي الْجَاهِلِيَّةِ إِذَا وُلِدَ لِأَحَدِنَا غُلَامٌ ذَبَحَ شَاةً وَلَطَخَ رَأْسَهُ بِدَمِهَا، فَلَمَّا جَاءَ اللَّهُ بِالْإِسْلَامِ كُنَّا نَذْبَحُ شَاةً وَنَحْلِقُ رَأْسَهُ وَنُلَطِّخُهُ بِزَعْفَرَانٍ.

دعبدالله بن بریده رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دابوبریده نه مې اوریدلی دی چه وئیل ئې کله چه به دجاهلیت په زمانه کښې په مونږ کښې دیوکس څوئې اوشو نوچیلی به ئې ذبح کړله او د ماشوم سر به ئې ددې په وینه باندې ګنده کړو خوهرکله چه الله تعالی اسلام راوستلو نومونږبه چیلې حلال کړو اودماشوم سر به مو وخرلو او زعفران به مو پرې ولګول

﴿ سمعت ابی بریدة یقول کنا فی الجاهلیة اذا ولد لاحدنا غلام الخ ﴾

بریدة رضی الله عنه په ترکیب کښې بدل واقع شوې دې د﴿ ابی ﴾ نه یعنی عبدالله بن بریده فرمائی چه ما د خپل والد صاحب بریده نه واوریدل د دې روایت مضمون په شروع کښې تیر شو.

# كِتَابُ الصَّيْدِ

## دښکار داحکاموبیان

كذا فی بعض النسخ او مونږ سره چه کومه نسخه هندیه ده په هغې کښې دی ﴿ آخر الاضاحی، اول الصید ﴾

## بَابٌ فِي اتِّخَاذِ الْكَلْبِ لِلصَّيْدِ وَغَيْرِهِ

### دښکاروغیره دپاره دسپی ساتلوبیان

﴿ من اتخذ کلبا الا کلب ماشیة او صید او زرع انتقص من اجره کل یوم قیراط ﴾

[۲۸۴۴]() حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنِ اتَّخَذَ كَلْبًا إِلَّا كَلْبَ مَاشِيَةٍ أَوْ صَيْدٍ أَوْ زَرْعٍ انْتَقَصَ مِنْ أَجْرِهِ كُلَّ يَوْمٍ قِيرَاطٌ".

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی څوك چه سپې وساتي علاوه دهغه سپي نه چه دځاروو دنګهبانئ دپاره وي یادښکاردپاره یادز میداري دپاره وي، نودده داجرنه به هره ورځ دیو قیراط په مقدار باندې اجرکمولې شي

د حدیث نه معلومه شوه چه د ښکار دپاره سپې پاللې او بیا د هغې په ذریعه ښکار کول جائز دی. د ترجمة الباب نه د مصنف غرض هم دا دې، مسئله اجماعی ده خپله په قرآن کریم کښې موجود ده، ﴿ یسئلونک ماذا احل لهم قل احل لکم الطیبات وما علمتم من الجوارح مکلبین آلایة ﴾ په دې حدیث کښې دا دی چه څوک د امور ثلاثه مذکوره فی الحدیث نه علاوه په بل غرض سره سپې اوساتي نو هره ورځ به د هغه د ثواب نه یو قیراط کمولې شي.

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۹۶٤) (حسن صحیح)

[2]): صحیح مسلم/المساقاة ۱۰ (۱۵۷۵)، سنن الترمذي/الصید ٤ (۱٤۹۰)، سنن النسائي/الصید ۱٤ (٤۲۹٤)، (تحفة الأشراف: ۱۵۲۷۱، ۱۵۳۹۰)، وقد أخرجه: صحیح البخاري/الحرث ۳ (۲۳۲۳)، وبدء الخلق ۱۷ (۳۳۲٤)، سنن ابن ماجه/الصید ۲ (۳۲۰٤)، مسند احمد (۲/۲٦۷، ۳٤۵) (صحیح) ولیس عند (خ) »أو صید« إلا معلقًا

## د قیراط او قیراطان د اختلاف توجیه:

په دې روایت کښې قیراط په صیغه د مفرد دې، او د دې حدیث په دویم طریق کښې یعنی ﴿ من طریق الزهری عن سعید بن المسیب ﴾ چه د مسلم په روایت کښې دی په هغې کښې د قیراط په ځائې قیراطان دې، په دې باره کښې په بذل کښې داسې دی. واختلفوا فی اختلاف الروایتین فی القیراطین والقیراط فقیل الحکم للزائد لکونه حفظ مالم یحفظه الآخر.... یعنی د زیادت والا روایت راجح دې. یا دې داسې اونیلې شی چه په شروع کښې رسول اللهﷺ د یو قیراط په باره کښې اوفرمائیل وعید لره د سپکولو دپاره بیا ئې د نفرت د موکد کولو دپاره دوه قیراط اوفرمائیل خو یو روای صرف د یو قیراط والا روایت واوریدلو او دویم راوی د قیراطین والا لفظ واوریدو، فکل روی بما سمع (۱) ۳. کلاب مختلف وی قلیل الضرر او کثیر الضرر. په اول کښې د یو قیراط نقصان او په دویم کښې د دوه قیراطو نقصان ۴. د قیراطان والا روایت په مدنیه طیبه باندې محمول دې او د قیراط والا روایت په غیر مدینه باندې وغیر ذلک من التوجیهات.

والحدیث اخرجه مسلم والترمذی والنسائی قاله المنذری.

[۲۸۴۵](۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ، حَدَّثَنَا يُونُسُ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَوْلَا أَنَّ الْكِلَابَ أُمَّةٌ مِنَ الْأُمَمِ لَأَمَرْتُ بِقَتْلِهَا فَاقْتُلُوا مِنْهَا الْأَسْوَدَ الْبَهِيمَ".

دعبدالله بن مغفل رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی که چرې داسې نه و چه سپې هم یو مخلوق دې یعنی دوی هم دالله په عالم کښې یو عالم دې نو ما به خامخا ددوی دقتل کولو حکم کړې وو اوس تاسو په سپو کښې خالص تور رنګ والا سپی وژنئ.

﴿ عن عبدالله بن مغفل رضی الله عنه.... لولا ان الکلاب امة من الامم لامرت بقتلها الخ ﴾

## شرح الحدیث:

په شروع کښې رسول اللهﷺ د سپو په باره کښې شدت اختیار اوفرمائیلو او د ټولو د قتل کولو حکم ئې ورکړو پس د دې نه روستو روایاتو کښې راځی جابر رضی الله عنه فرمائی تر دې چه که د باندو نه راتلونکو زنانو سره به هم سپې وو نو مونږ به هغه هم قتل کولې بیا روستو د رسول اللهﷺ په حکم کښې بدلون راغلو او د مخکښې حکم نه ئې منع اوفرمائیله او دا ئې اوفرمائیل چه سپی هم د مخلوقاتو یو نوع ده نو اول خو د مخلوق پوره نوع قتلول د انسان د وس خبره نه ده، او دویم دا چه د الله پاک د هر مخلوق په پیدا کولو کښې مصلحت وی په دې وجه هم ټولو لره قتل کولو مناسب نه دی خو په دې کښې چه کوم یو ډیر زیات شریر او خبیث وی یعنی کلب اسود هغه قتل کوئ امام نووی رحمه الله فرمائی چه د کلب عقور په قتل باندې د

(۱) خو دا جواب به هله صحیح وې چه د حدیث راوی بیل بیل وې نو چه کله صحابی یو دې بیا به دا جواب صحیح نه وی او دا هم ده چه د سپی په سلسله کښې رومبی خو تشدید زیات کړې شوې وو روستو آسان کړې شوې وو.

(): سنن الترمذي/الصيد ٣ (١٤٨٦)، سنن النسائي/الصيد ١٠ (٤٣٨٥)، سنن ابن ماجه/الصيد ٢ (٣٢٠٥)، (تحفة الأشراف: ٩٦٤٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٨٥، ٨٦، ٥/٥٤، ٥٦، ٥٧)، دي/الصيد ٢ (٢٠٤٩) (صحيح)

ټولو علماء کرامو اتفاق دې خو چه کوم سپې بې ضرره وی د هغې په قتل کښې اختلاف دې د امام الحرمين رائې دا ده چه د شريعت استقرار د قتل په منسوخ کيدو باندې شوې دې اوس د هيڅ يو سپی قتل جائز نه دې تر دې چه د اسود بهيم قتل هم جائز نه دې خو په دې رائې باندې ملا علی قاری ته انشراح نشته هغوی فرمائی چه دا دليل ته محتاج دې. (بذل)

والحديث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجة قاله المنذری.

[۲۸۴۶]() حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: أَمَرَنَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَتْلِ الْكِلَابِ حَتَّى إِنْ كَانَتِ الْمَرْأَةُ تَقْدَمُ مِنَ الْبَادِيَةِ يَعْنِي بِالْكَلْبِ فَنَقْتُلُهُ، ثُمَّ نَهَانَا عَنْ قَتْلِهَا، وَقَالَ: "عَلَيْكُمْ بِالْأَسْوَدِ".

دجابر رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام حکم کړې وو دوژلو دسپو باندې تر دې پورې چه پوښځې به دځنګل نه ځان سره سپې راوستو نومونږ به سپې وژلو بيانبی عليه السلام دسپو دوژلونه منع او فرمائيله او وئې فرمائيل چه صرف تک تور سپې وژنئ.

## بَابٌ فِي الصَّيْدِ

### د ښکار کولو بيان

صيد کله د مصيد په معنی استعماليږی او کله په معنی مصدری کښې، دلته هم دا مراد دې، يعنی کلب معلم او د غشي ليندۀ وغيره په ذريعه د ښکار کولو په بيان کښې.

### د ذکاة دوه قسمونه اختياري او اضطراري:

په دې ځان پوهول پکار دی چه د ذکاة شرعا دوه قسمونه دی اختياري او اضطراري. اختياري د حيوان مقبوض او مانوس دپاره وی، او اضطراري د غير مقبوض او غير مانوس ځاروی دپاره لکه ښکار، او لکه چه د دې نه مخکښې هم تيره شوه چه ذکاة اختياري خو خاص دې د لبه او حلق سره او ذکاة اضطراري نوم دې د مطلق جرح دپاره که هغه په هر ځائې کښې وی د بدن نه او د جرح نه مراد د وينې بهيدل دی.

د دې تمهيد نه پس اوس په دې باندې ځان پوهه کړئ چه ذکاة اضطراري چه په کومو آلاتو باندې کيږی هغه درې دی. الحيوان الجارح، المحدد يعنی هر تيرۀ څيز لکه غشې، المثقل کالحجر والخشب. په دې کښې چه کوم رومبی دوه څيزونه دی په هغې باندې د څلور وارو امامانو په نزد ښکار کول جائز دی او دريم څيز ......... يعنی مثقل د دې په ذريعه ښکار کول د ائمه اربعه او جمهورو په نزد جائز نه دی، خو د بعض علماء شام لکه مکحول او اوزاعی رحمهما الله په نزد جائز دی، هم په دې وجه د هغوی په نزد صيد معراض او هم دغه شان صيد بندقه (يعنی د ټوپک ښکار) جائز دې. (سبل السلام)

بيا د دې نه پس ځان پوهول غواړی چه که ذکاة اضطراري د حيوان جارح په ذريعه وی نو په هغې کښې شرط دا دې چه هغه جارح معلم وی، او دا امر متفق عليه دې الله پاک فرمائی: ﴿ وما علمتم من الجوارح مكلبين ﴾ او علامت د تعليم په سپی کښې د دوه خبرو بيا

(): صحيح مسلم/المساقاة ۱۰ (۱۵۷۲)، (تحفة الأشراف: ۲۸۱۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۳۳۳) (صحيح)

موندل دی اول ﴿ امساک علی صاحبه ﴾ یعنی عدم الاکل چه هغه سپې د ښکار نه هیڅ او نه خوری او دویم څیز دا دې چه کله د ښکار طرف ته هغه پریخودلې شی نو فورا هغه طرف ته لاړ شی، او کله چه راوغوښتلې شی او منع کړې شی نو منع شی دا د دریږ امامانو مسلک دې او د امام مالک په نزد د تعلیم کلب دپاره امساک علی صاحبه ضروری نه دې، صرف د امر ثانی بیا موندل کافی دی، او علامت د تعلیم د طیر په شان د بازی وغیره کښې دا دې چه کله هم هغه راوبللې شی نو فورا راشی، او دلته امساک بالاتفاق ضروری نه دې. (بذل)

د ذکاة اضطراری شرطونه بالتفصیل په (بذل) کښې ذکر دی هلته دې اوکتلې شی.

**په تسمیة عند الذبح وعند الارسال کښې اختلاف د ائمة:**

او په دې هم ځان پوهه کول پکار دی چه دا ارسال کلب د ښکار په وخت اوهم داسې غشې چلول په منزله د چړې چلولو دی د ذبح په وخت کښې. په دې وجه ارسال او رمی سهم په وخت تسمیة ضروری ده لکه چه په احادیث الباب کښې مصرح ده، (وفی الهدایة ٤/ ١٦٨) واذا ارسل کلبه المعلم او بازیه وذکر اسم الله تعالی عند ارساله فاخذ الصید وجرحه فما حل اکله لما روینا من حدیث عدی رضی الله عنه ولان الکلب او البازی آلة والذبح لا یحصل بمجرد الآلة الا بالاستعمال، وذلک فیهما بالارسال فنزل (الارسال) منزلة الرمی وامرار السکین فلا بد من التسمیة عنده ولو ترکه ناسیا حل ایضا آه د نورو امامانو په دې کښې اختلاف هم دې او هغه دا دې لکه چه د (بذل) په حاشیه باندې دی واختلف نقلة المذاهب فیه، والصحیح من مذاهبهم ان ترک التسمیة عمدا لا یجوز عندنا وعند مالک ویجوز ان کان الترک سهوا فالتسمیة شرط عند الذکر وعند الشافعی یجوز مطلقا فی السهو والعمد فهی سنة عنده واما احمد فانه فرق بین الصید والذبیحة ففی الذبیحة هو معنا و فی الصید لا یجوز مطلقا (من الاوجز)

[٢٨٤٧](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ هَمَّامٍ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، قَالَ: سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قُلْتُ: إِنِّي أُرْسِلُ الْكِلَابَ الْمُعَلَّمَةَ فَتُمْسِكُ عَلَيَّ أَفَآكُلُ، قَالَ: "إِذَا أَرْسَلْتَ الْكِلَابَ الْمُعَلَّمَةَ وَذَكَرْتَ اسْمَ اللَّهِ فَكُلْ مِمَّا أَمْسَكْنَ عَلَيْكَ، قُلْتُ: وَإِنْ قَتَلْنَ، قَالَ: وَإِنْ قَتَلْنَ مَا لَمْ يَشْرَكْهَا كَلْبٌ لَيْسَ مِنْهَا، قُلْتُ: أَرْمِي بِالْمِعْرَاضِ فَأُصِيبُ أَفَآكُلُ، قَالَ: إِذَا رَمَيْتَ بِالْمِعْرَاضِ، وَذَكَرْتَ اسْمَ اللَّهِ فَأَصَابَ فَخَرَقَ فَكُلْ وَإِنْ أَصَابَ بِعَرْضِهِ فَلَا تَأْكُلْ".

دعدي بن حاتم رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دنبی علیه السلام نه مې تپوس اوکړو ماووئیل زه په ښکار پسې داسې سپې لیږم چه تعلیم ورته ورکړې شوې وي هغه په خوله کښې نیولې وي اوماته ئې راوړي ایا زه داخوړلې شم نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل کله چه ته تعلیم یافته سپې اولیږې او د الله نوم یاد کړې نو خوره هرهغه شی چه هغه ئې تاته راوړي ماووئیل که هغه ئې

(١): صحیح البخاري/الوضوء ٣٣ (١٧٥)، والبیوع ٣ (٢٠٥٤)، والصید ١ (٥٤٧٥)، ٢ (٥٤٧٦)، ٣ (٥٤٧٧)، ٧ (٥٤٨٣)، ٩ (٥٤٨٤)، ١٠ (٥٤٨٥)، صحیح مسلم/الصید ١ (١٩٢٩)، سنن الترمذي/الصید ١ (١٤٦٥)، ٣ (١٤٦٧)، ٤ (١٤٦٨)، ٥ (١٤٧٩)، ٦ (١٤٧٠)، ٧ (١٤٧١)، سنن النسائي/الصید ١ (٤٢٧٤)، ٢ (٤٢٧٥)، ٣ (٤٢٧٠)، ٨ (٤٢٨٥)، ٢١ (٤٣١٧)، سنن ابن ماجه/الصید ٣ (٣٢٠٨)، ٥ (٣٢١٢)، ٦ (٣٢١٣)، ٧ (٣٢١٥)، (تحفة الأشراف: ٢٠٤٥، ٩٨٥٥، ٩٨٧٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٥٦/٤، ٢٥٧، ٢٥٨، ٣٧٧، ٣٧٩، ٣٨٠)، سنن الدارمي/الصید ١ (٢٠٤٥) (صحیح)

مړ کړې وي نووئې فرمائيل اګر که مړ کړې وي ترخوچه غيرښکاري سپي ورسره شريک شوې نه وي، عدي وائی چه مابياتپوس اوکړو زه په غشي باندې ښکارولم نوايا داحلال دې نبی ﷺ اوفرمائيل کله چه ته په غشي ښکار اولي اودالله نوم دي پرې ياد کړې وي او په هغې اولړې اوشليدلی وي او په تيرو لګيدلې وي نوهغه خوره اوکه په تيرونه وي لګيدلې نومه ئې خوره.

﴿عن عدی بن حاتم رضی الله تعالی عنه قال سالت النبی ﷺ........ فکل مما امسکن عليک﴾

**د تعليم کلب په باره کښې د جمهورو او امام مالک رحمه الله دليل:**

دا حديث د ائمه ثلاثه دليل دې چه د کلب معلم په ذريعه ښکار کولو کښې عدم اکل ضروری دې، او دا روايت د مالکيانو خلاف دې د امام مالک رحمه الله استدلال د راروان حديث نه دې چه د ابوثعلبة الخشنی رضی الله عنه دې چه په هغې کښې داسې دی ﴿اذا ارسلت کلبک وذکرت اسم الله تعالی فکل وان اکل منه﴾ امام نووی رحمه الله په شرح د مسلم کښې فرمائی چه جمهور علماء کرامو د عدی بن حاتم رضی الله عنه حديث مقدم ساتلې دې د ابوثعلبه رضی الله عنه په حديث باندې، ځکه چه د عدی رضی الله عنه د دې نه اصح دې (متفق عليه) او بعض علماء کرامو د ابوثعلبة رضی الله عنه د حديث داسې تاويل کړې دې چه دلته د خوراک نه مراد عين د ښکار په وخت د هغه سپي خوراک مراد نه دې بلکه مراد دا دې چه په شروع کښې هغه سپي هغه ښکار لره د وژلو نه فارغ شو او بيا ئې چه روستو هغه ښکار هلته بيامونډو نو هغه وخت ئې د هغې نه خوراک شروع کړو، پس د هغه دا خوراک بد نه دې.

﴿قلت ارمی بالمعراض فاصيب افاکل﴾ الخ...د معراض په تفسير کښې اختلاف دې، ابن التين فرمائی يعنی هغه عصا چه د هغې په سوکه کښې تيرهٔ ځيز لګيدلې وی اوسپنه وغيره، او امام نووی رحمه الله فرمائی هغه يو درونډ لرګې وی، يا همساء چه د هغې په سوکه باندې تيرهٔ ځيز لګيدلې وی، او کله ساده وی بغير د تيره سوکې نه، زه وائم چه د دې مثال په نيزه (سوکې والا همسا) سره هم ورکولې شی هغه هم يو همسا وی چه د هغې په سوکه باندې تيره اوسپنه لګيدلې وی، بهر حال په حديث کښې دا دی چه که په معراض سره ښکار اوکړې شی نو که ښکاره لره د هغې تيرهٔ ځائې لګيدو سره زخمی شی او په هغې کښې نفوذ اوکړی نو بيا هغه ښکار حلال دې هغه خوړلې کيدې شی، او که هغه معراض په پلن والی په هغه ښکار باندې لګيدلې دې نو حرام دې، د هغې خوراک جائز نه دې، ځکه چه په دې صورت کښې به هغه وقيذ وی، الله پاک فرمائی ﴿والمنحنقة والموقوذة والمتردية﴾ او موقوذ هغه ښکار ته وئيلې شی چه په مثقل او بغير سوکه (پس ځيز) باندې اووژلې شی.

**د ټوپک ښکار او په هغې کښې اختلاف:**

جمهور د صيد بالندقة په حرمت باندې د دې حديث نه استدلال کړې دې او په دې کښې د اوزاعی او مکحول وغيره اختلاف دې لکه چه مخکښې تير شو. لهذا دا حديث د هغوی خلاف دې.

**فائده:** دا عدی بن حاتم رضی الله عنه د حديث راوی د مشهور سخی حاتم طائی ځوئې دې، دا په

معمرينو کښې دې، د هغوی په باره کښې ليکلي شوې دی چه هغوی د يو سل او اتيا کالو عمر بيا موندلې دې، هغوی د خپل ځان په باره کښې فرمائی چه د کله نه زه په اسلام کښې داخل شوې يم د هغه وخت نه اوسه پورې د يو مونځ اقامت هم نه دې شوې مګر دا چه زه به هغه وخت په اودس کښې اوم (تهذيب التهذيب)

والحديث اخرجه البخاری والترمذی والنسائی وابن ماجة وقاله المنذری

[۲۸۴۸]() حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، حَدَّثَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ، عَنْ بَيَانٍ، عَنْ عَامِرٍ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، قَالَ: سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قُلْتُ: إِنَّا نَصِيدُ بِهَذِهِ الْكِلَابِ، فَقَالَ لِي: "إِذَا أَرْسَلْتَ كِلَابَكَ الْمُعَلَّمَةَ وَذَكَرْتَ اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهَا فَكُلْ مِمَّا أَمْسَكْنَ عَلَيْكَ، وَإِنْ قَتَلَ إِلَّا أَنْ يَأْكُلَ الْكَلْبُ فَإِنْ أَكَلَ الْكَلْبُ فَلَا تَأْكُلْ فَإِنِّي أَخَافُ أَنْ يَكُونَ إِنَّمَا أَمْسَكَهُ عَلَى نَفْسِهِ".

دعدي بن حاتم نه روايت دې فرمائی چه دنبی عليه السلام نه مې تپوس اوکړوچه مونږ په دې سپوباندې ښکارکوو ماته ئې اوفرمائيل کله چه خپل پوهه کړې شوې سپې اوليږې اودالله نوم ورباندې واخلې نوخه چه درته هغه ساتلې راوړې نوخوره ئې اګرکه مړ وي مګرترڅوچه سپې پخپله نه وی خوړلې اوکه چرې سپې ترې خوړلې وي نوبيا ئې مه خوره ځکه چه په دې کښې دا احتمال دې چه دا ښکاربه دې سپې دخپل ځان دپاره کړې وي

﴿ عن عامر عن عدی بن حاتم رضی الله تعالی عنه قال : سالت رسول الله ﷺ الخ ﴾

## د صحيح مسلم د يو حديث د جملې تشريح:

د عدی بن حاتم رضي الله عنه دا حديث کوم لره چه د هغه نه روايت کونکې عامر شعبی دې په ډيرو طرقو سره په صحيح مسلم او نسائی کښې هم دې او په دې رواياتو کښې صحيح مسلم او نسائی کښې يو روايت داسې دې: ﴿ حدثنا الشعبی قال سمعت عدی بن حاتم وکان لنا جارا و دخيلا و ربيطا بالنهرين....... انه سال النبی ﷺ الحديث ﴾ په دې کښې د جار او د دخيل معنی خو ښکاره دی جار ګاونډی او دخيل هغه انسان چه د چا سره خصوص تعلق ساتی او د هغه په امورو کښې د دې معاون او مشير وی، خو د ربيط په باره کښې امام نووی داسې ليکلې دی: ﴿ والربيط ههنا بمعنی المرابط وهو الملازم والرباط الملازمة، قالوا والمراد هنا ربط نفسه علی العبادة وعن الدنيا ﴾ آه او قاضی عياض رحمه الله په خپله شرح کښې د ربيط صرف رومبې معنی ليکلې ده او هم په هغې ئې اکتفاء کړې ده. پس په هغې کښې دی ﴿ والربيط هنا المرابط الملازم من الرباط ﴾ آه په ظاهر کښې امام نووی رحمه الله هم دا معنی اختيار کړې ده پس هغوی رومبی دې معنی لره ليکلو سره نورې معنی چه ليکلی دی هغه ئې ﴿ قالوا ﴾ سره ليکلی دی يعنی د بعضو شارحانو رائې دا ده، مرابط وائی په سرحد باندې څوکئ کونکی ته لکه چه په کتابونو د احاديثو کښې دی او مشهوره ده، او نورې معنې کوم چه امام نووی رحمه الله ليکلی دی د هغې حاصل. يعنی هغه انسان چه زاهد او منقطع عن الدنيا وی، او هر وخت په عبادت کښې

(): صحيح البخاري/ الصيد ۷ (۵۴۸۳)، ۱۰ (۵۴۸۷)، صحيح مسلم/ الصيد ۱ (۱۹۲۹)، سنن ابن ماجه/ الصيد ۳ (۳۲۰۸)، (تحفة الأشراف: ۹۸۵۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۵۸/۴، ۳۷۷) (صحيح)

مشغول اوسيږي، خو د دې معنی د دخيل سره هيڅ جوړ نه پاتې کيږي. او د دې "ربيطا بالنهرين" تعلق، والله اعلم.... په ظاهره د سمعت نه دې يعني شعبي رحمه الله فرمائي چه ما دا حديث د عدي بن اتم نه چه زمونږ ګاونډی او دخيل وو هغه وخت واوريدو چه کله هغه په مقام د نهرين باندې مرابط وو. (١) يعني څوکۍ ئې کوله او کيدې شي چه مطلق د هغوی صفت بيانول مقصود وی د جار او دخيل په شان، او نهرين ظاهره هم دا ده چه دا د يو ځائې نوم دې چه د هغې وضاحت خو تر اوسه پورې يو ځائې کښې هم نه دې ملاؤ شوې خو په معجم البلدان کښې د "نهران" نوم راغلې دې چه د هغې په باره کښې هغوی ليکي ﴿من قرى اليمن من نحية ذمار﴾ اهـ کيدې شي چه په روايت کښې د نهرين نه مراد هم دا وی والله اعلم.

[۲۸٤۹](٢) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ عَاصِمٍ الأَحْوَلِ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِذَا رَمَيْتَ بِسَهْمِكَ وَذَكَرْتَ اسْمَ اللَّهِ فَوَجَدْتَهُ مِنَ الْغَدِ، وَلَمْ تَجِدْهُ فِي مَاءٍ وَلَا فِيهِ أَثَرٌ غَيْرَ سَهْمِكَ فَكُلْ، وَإِذَا اخْتَلَطَ بِكِلَابِكَ كَلْبٌ مِنْ غَيْرِهَا فَلَا تَأْكُلْ لَا تَدْرِي لَعَلَّهُ قَتَلَهُ الَّذِي لَيْسَ مِنْهَا".

دعدي بن حاتم رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دی کله چه خپل غشې اولې او دالله نوم واخلې اوښکار صبا پيدا کړې او په اوبو کښې نه وی پريوتلې اودغشي نه علاوه دبل زخم نښه هم په کښې نه وی نوهغه خوره خوکله چه ستادسپي سره بل سپي په کښې شريك شوې وي نوته هغه مه خوره ځکه چه تاته پته نشته کيدې شي چه دا ښکار دغه بل سپي وژلی وي.

﴿ اذا رميت سهمک وذکرت اسم الله فوجدته من الغدو لم تجده في ماء ولا فيه اثر غير سهمک فکل ﴾

## ښکار که د غشي د لګيدو نه پس غائب شي نو څه حکم دې:

يعني که يو انسان په ښکار باندې غشي اوچلوی او ښکار په هغې باندې او هم لګی خو هغه وخت ښکار د نظر نه غائب شي، بيا په بله ورځ هغه يو ځائې کښې مړ ملاؤ شي په دې شرط چه په اوبو کښې نه وی، او دويم شرط دا چه په هغه کښې ستا د غشي نه علاوه د بل غشي اثر نه وی نو هغه خوړلې شي.

په دې حديث کښې دوه شرطونه ذکر کړې شوې دی يو دا چه هغه ښکار اوبو ته او نه غورځيږي دا اوبو ته غورځيدل کله مضر دی؟ په دې کښې د امامانو اختلاف دی، د احنافو او حنابله په نزد هر صورت کښې مضر دې برابره خبره ده که هغه جراحت چه کوم ښکار ته رسيدلې دې د هلاکت سبب وی او که نه وی په دې شرط چه هغه اوبو په دومره مقدار کښې وی چه د ښکار دپاره قاتلې وی، د امام احمد رحمه الله مشهور روايت هم دا دې. او

(١) لکه چه د امام ابوداؤد په روايت کښې دی عن ابي سالم الجيشاني عن عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما يذکر ذلك وهو معه مرابط الجحصن باب اليون. دلته هم دا دی چه ابوسالم جيشاني دا حديث د عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما نه هغه وخت واوريدو چه کله هغه د هغوی سره په حصن باب اليون کښې څوکۍ کوله. (کتاب الطهارة باب ما ينهي عنه ان يستنجي به)

(٢) انظر حديث رقم: (۲۸٤۷)، (تحفة الأشراف: ۹۸٦۲) (صحيح)

دويم روايت د امام احمد نه دا دې چه که جراحت سبب د هلاکت وی نو بيا وقوع فی الماء مضر نه دې، هم دا قول دې د امام شافعی او د امام مالک رحمهما الله (اوجز) او دويم شرط کوم چه په دې حديث کښې ذکر شوې دې چه په هغې کښې ستا د غشی نه علاوه د بل د غشی اثر نه وی دا شرط متفق عليه بين الائمة الاربعة دې لکه دا خبره ښکاره ده د شارحينو د کلام او د کتب الفروع نه، د ښکار د غيبت والا مسئله کښې يو دا هم اختلاف دې چه څومره غيبت مغتفردې ددې وجې نه امام بخاری رحمه الله باب تړلې دې (باب الصيد اذا غاب عنه يومين او ثلاثة) په دې کښې د امام مالک رحمه الله مسلک لکه چه په موطا او مدونة کښې دی هغوی فرمائی چه کله د ښکاری نه د هغه ښکار غائب شی د مجروح کيدو نه پس، د هغې نه پس هغه بيا ملاؤ شی او په هغې کښې د هغه د ښکاری سپی يا د غشی اثر موجود وی نو هغه خوړلې شی ما لم يبت يعنی ترڅو چه شپه نه وی تيره شوې، او که شپه تيره شو نو د هغې خوراک جائز نه دې او دويم روايت د هغوی نه دا دې چه که هغه ښکار د غشی دې نو خوړلې کيدې شی او که د سپی خوړلې شوې ښکار دې نو د هغې خوراک جائز نه دې. آه او امام نووی په شرح د مسلم کښې فرمائی چه دا حديث دليل دې چه کله ښکاری د زخمی کيدو نه پس غائب شی او بيا د هغې نه روستو ملاؤ شی په دې شرط چه په هغې کښې د هغه د غشی نه علاوه بل څه اثر نه وی نو حلال دې د امام شافعی رحمه الله په يو قول کښې، او د امام مالک رحمه الله په نزد هم، او د امام شافعی رحمه الله قول ثانی دا دې چه حرام دې (وهو الاصح عند اصحابنا) او دريم قول دا دې چه د سپی په ښکار کښې ناجائز دې او د غشی په ښکار کښې جائز دی. بيا هغوی فرمائی يعنی مطلقا حل اقوی او اقرب الی الاحاديث الصحيحة دې، او د امام احمد رحمه الله قول مشهور دې د ښکار د غائب کيدو په صورت کښې صرف حلت دې او دويم روايت د هغوی نه دا دې (ان غاب نهارا فلا باس به وان غاب ليلا لم ياكله)، او دريم د هغوی نه دا دې (ان غاب مدة طويلة لم يبح وان كانت يسيرة ابيح، قيل له ان غاب يوما؟ قال يوم كثير) او د موفق د کلام نه معلوميږی چه غيبت د صيد په مسئله کښې د امام احمد رحمه الله په نزد اقتفاء او طلب شرط نه دې، او د مالکيانو په نزد په دې کښې دواړه روايتونه معلوميږی (ففی الاوجز ۱۸۲/٤) نقلا عن الباجي: قال القاضي ابوالحسن اذا كان مجدا في الطلب حتى وجده على هذه الحالة فانه يجوز اكله وان تشاغل عنه ثم وجده ميتا فانه لا يجوز اكله، وفيه بعد اسطر : وحكى القاضي ابومحمد عن مالك في الصيد بالكلب انه يوكل وان بات عنه سوآء كان صاحبه يطلبه او لايطلبه اهـ (اوجز تراجم البخاری) او د احنافو او شوافعو په نزد هم اقتفاء شرط ده لکه چه حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباری کښې وئيلې دی او هم دغه شان په فروعو د احنافو کښې هم دی، دا اقتفاء او طلب ګويا دريم شرط شو چه د هغې ذکر په راوړو حديث کښې راځی (احدنا يرمي في الصيد فيقتفى اثره اليومين والثلاثة الخ) يعنی د ښکار د غائب کيدو نه پس د هغې د حلال والی دپاره د دې اقتفاء هم ضروری ده، يعنی ښکاری د هغه ښکار په لټون او طلب کښې اولګی، د هغې نه دې فارغه نه کينی، او دا د اقتفاء او طلب شرط د احنافو او شوافعو د دواړو په نزد دې، د حنابله په نزد نه دې (وعن المالكية روايتان كما تقدم قريبا)

[٢٨٥٠] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ زَكَرِيَّا بْنِ أَبِي زَائِدَةَ، أَخْبَرَنِي عَاصِمٌ الأَحْوَلُ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِذَا وَقَعَتْ رَمِيَّتُكَ فِي مَاءٍ فَغَرِقَ فَمَاتَ فَلَا تَأْكُلْ".

دعدي بن حاتم رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي کله چه تاسو يوخاروې په غشي اولی او هغه خاروي په اوبو کښې ډوب شي او مړشي نو دغه ښکار مه خورئ.

[٢٨٥١] (٢) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ، حَدَّثَنَا مُجَالِدٌ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَا عَلَّمْتَ مِنْ كَلْبٍ أَوْ بَازٍ ثُمَّ أَرْسَلْتَهُ وَذَكَرْتَ اسْمَ اللَّهِ فَكُلْ مِمَّا أَمْسَكَ عَلَيْكَ، قُلْتُ: وَإِنْ قَتَلَ قَالَ: "إِذَا قَتَلَهُ وَلَمْ يَأْكُلْ مِنْهُ شَيْئًا فَإِنَّمَا أَمْسَكَهُ عَلَيْكَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد الْبَازُ: إِذَا أَكَلَ فَلَا بَأْسَ بِهِ وَالْكَلْبُ إِذَا أَكَلَ كُرِهَ، وَإِنْ شَرِبَ الدَّمَ فَلَا بَأْسَ بِهِ.

دعدي بن حاتم رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي کله چه تاسو کوم سپي يا باز ته دښکارکولو طريقه اوښايئ اوبيادالله نوم واخلئ او په ښکار پسې ئې اوشړئ نوتاسودغه ښکار خوړلې شئ کوم چه ئې ستاسودپاره نيولی وي اوساتلې ئې وي، عدي عرض اوکړو که چرې دغه ښکارئې مرکړې وي؟ نبي عليه السلام اوفرمائيل اګرکه مړ کړې وي ليکن چه ددغه ښکارنه ئې خوړلي نه وي ګويا کښې داښکار ئې ستاسو دپاره نيولې دې.

[٢٨٥٢] (٣) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ عَمْرٍو، عَنْ بُسْرِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِي إِدْرِيسَ الْخَوْلَانِيِّ، عَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي صَيْدِ الْكَلْبِ: "إِذَا أَرْسَلْتَ كَلْبَكَ وَذَكَرْتَ اسْمَ اللَّهِ فَكُلْ وَإِنْ أَكَلَ مِنْهُ وَكُلْ مَا رَدَّتْ عَلَيْكَ يَدَاكَ".

دابوثعلبة الخشني رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي په باره دښکاردسپي کښې چه کله تاسودالله نوم واخلئ او په ښکار پسې خپل سپي اوشړئ نوتاسودغه ښکار خوړلې شئ اګر که دغه سپي ددغه ښکارنه پخپله هم خوړلي وي اوهمدارنګې دغه خاروې هم خوړلی شي کوم چه ستاسو په غشي باندې لړيدلې وي خو په دې شرط چه دغشي دويشتلوسره مو بسم الله وئيلي وي.

﴿ عن ابی ثعلبة الخشنی رضی الله تعالی عنه قال قال النبی صلی الله علیه وسلم الخ ﴾

اوسه پورې د عدی بن حاتم رضي الله عنه د رواياتو سلسله روانه وه او دا روايت د ابوثعلبه الخشني رضي الله عنه دې کوم چه د مالکيانو دليل دې د تعليم کلب په مسئله کښې لکه چه په اول د کتاب کښې وو او د جمهورو استدلال د عدی بن حاتم رضي الله عنه حديث نه دې کوم چه د دې نه زيات صحيح دې ځکه چه هغه په بخاری او مسلم کښې دې

﴿ وکل ما ردت اليک يدک ﴾ اوخره نه هغه څيز کوم چه واپس کړی تاته ستا لاس، د دې نه مراد د ښکار غشي دې کوم انسان په خپل لاس سره چلوی

(١): صحيح البخاري/الذبائح ٨ (٥٤٨٤)، صحيح مسلم/الصيد ١ (١٩٢٩)، سنن الترمذي/الصيد ٣ (١٤٦٩)، سنن ابن ماجه/ الصيد ٦ (٣٢١٣)، (تحفة الأشراف: ٩٨٦٢) (صحيح)

(٢): سنن الترمذي/الصيد ٣ (١٤٦٧)، (تحفة الأشراف: ٩٨٦٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٢٥٧، ٣٧٩) (صحيح)

(٣): تفرد به أبو داود، وانظر ما يأتي برقم: (٢٨٥٥)، (تحفة الأشراف: ١١٨٧٨) (منكر)

[٢٨٥٣]( ) حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ بْنُ مُعَاذِ بْنِ خُلَيْفٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، حَدَّثَنَا دَاوُدُ، عَنْ عَامِرٍ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، أَنَّهُ قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَحَدُنَا يَرْمِي الصَّيْدَ فَيَقْتَفِي أَثَرَهُ الْيَوْمَيْنِ وَالثَّلَاثَةَ، ثُمَّ يَجِدُهُ مَيْتًا وَفِيهِ سَهْمُهُ أَيَأْكُلُ، قَالَ: "نَعَمْ إِنْ شَاءَ، أَوْ قَالَ: يَأْكُلُ إِنْ شَاءَ".

دعدي بن حاتم و نه روايت دي فرمائی چه دنبی علیه السلام په خدمت کښې مي عرض اوکړو چه اي دالله رسوله په کوم کښې چه يوکس ښکار اوولي اودوه يادرې ورځې پسې ګرځي اوبيا ئې مې پيدا کړي اوغشي په کښې پروت وي ايا خوړلې ئې شي نبی علیه السلام اوفرمائيل هو که چرې دده خوښه وي.

﴿عن عدى بن حاتم رضى الله تعالى عنه انه قال يا رسول الله ﷺ احدنا يرمى الصيد فيقتفى اثر اليومين والثلاثة الخ﴾ داقتفاء مسئله پورته ذکرشوه. والحديث اخرجه البخاری معلقا.

[٢٨٥٤]( ) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي السَّفَرِ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، قَالَ: قَالَ عَدِيُّ بْنُ حَاتِمٍ: سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمِعْرَاضِ فَقَالَ: "إِذَا أَصَابَ بِحَدِّهِ فَكُلْ وَإِذَا أَصَابَ بِعَرْضِهِ فَلَا تَأْكُلْ فَإِنَّهُ وَقِيذٌ، قُلْتُ: أُرْسِلُ كَلْبِي، قَالَ: إِذَا سَمَّيْتَ فَكُلْ وَإِلَّا فَلَا تَأْكُلْ، وَإِنْ أَكَلَ مِنْهُ فَلَا تَأْكُلْ فَإِنَّمَا أَمْسَكَ لِنَفْسِهِ، فَقَالَ: أُرْسِلُ كَلْبِي فَأَجِدُ عَلَيْهِ كَلْبًا آخَرَ، فَقَالَ: لَا تَأْكُلْ لِأَنَّكَ إِنَّمَا سَمَّيْتَ عَلَى كَلْبِكَ".

دعدي بن حاتم رضی الله عنه نه روايت دي فرمائی چه د نبی علیه السلام نه مې تپوس اوکړو په باره دهغه غشي کښې کوم چه دپر والا نه وی نووئې فرمائيل کله چه ښکارته په تيره طرف سره رسيدلې وي نوخوره ئې اوکه چرې په پلنو رسيدلی وي نومه ئې خوره ځکه چه داموقوضه ده ماورته اووئيل زه خپل سپې په ښکار پسې شرم راته ئې اوفرمائيل که بسم الله دي وئيلي وي نوخوره ئې اوکه نه دې وي وئيلي نه مه ئې خوره اوکه چرې سپي ترې خوړلې وي نوته ئې مه خوره ځکه چه دادخپل ځان دپاره نيولې دې ده ورته اووئيل زه په ښکار پسې خپل سپې اوشرم اوبل سپې ورسره هم بيامومم نوراته ئې اوفرمائيل مه ئې خوره ځکه چه تابسم الله په خپل سپي باندې وئيلې ده.

[٢٨٥٥]( ) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ، عَنْ حَيْوَةَ بْنِ شُرَيْحٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَبِيعَةَ بْنَ يَزِيدَ الدِّمَشْقِيَّ، يَقُولُ: أَخْبَرَنِي أَبُو إِدْرِيسَ الْخَوْلَانِيُّ عَائِذُ اللَّهِ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيَّ يَقُولُ: قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي أَصِيدُ بِكَلْبِي الْمُعَلَّمِ وَبِكَلْبِي الَّذِي لَيْسَ بِمُعَلَّمٍ، قَالَ: "مَا صِدْتَ بِكَلْبِكَ الْمُعَلَّمِ فَاذْكُرِ اسْمَ اللَّهِ، وَكُلْ وَمَا أَصَدْتَ بِكَلْبِكَ الَّذِي لَيْسَ بِمُعَلَّمٍ فَأَدْرَكْتَ ذَكَاتَهُ فَكُلْ".

دابوثعلبة الخشني رضی الله عنه نه روايت دي فرمائی چه ماعرض اوکړو اي دالله رسوله زه په خپل پوهه شوي سپي باندې ښکارکوم او په هغه سپي باندې چه نه وی. پوهه شوي راته ئې

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩٨٥٩)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/ الصيد ٨ (٥٤٨٥ تعليقًا) (صحيح)

[2]): صحيح البخاري/ الوضوء ٣٣ (١٧٥)، البيوع ٣ (٢٠٥٤)، الصيد ٢ (٥٤٧٦)، صحيح مسلم/ الصيد ١٩ (١٩٢٩)، سنن النسائي/الصيد ٧ (٤٢٧٧)، (تحفة الأشراف: ٩٨٦٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٨٠/٤)، دي/الصيد ١ (٢٠٤٥) (صحيح)

[3]): صحيح البخاري/الصيد ٤ (٥٤٧٨)، ١٠ (٥٤٨٨)، ١٤ (٥٤٩٦)، صحيح مسلم/الصيد ١ (١٩٣٠)، سنن الترمذي/ السير ١١ (١٥٦٠)، سنن النسائي/الصيد ٤ (٤٢٧١) سنن ابن ماجه/الصيد ٣ (٣٢٠٧)، (تحفة الأشراف: ١١٨٧٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٩٣/٤، ١٩٤، ١٩٥)، سنن الدارمي/السير ٥٦ (٢٥٤١) (صحيح)

اوفرمائیل کله چه ته ښکار کوي په پوهه شوي سپي باندې نودالله نوم واخله اوخوره ئې اوکله چه ته ښکارکوي په هغه سپي باندې چه پوهه شوې نه وی اوښکاردې ژوندې پیدا کړو نوذبح ئې کړه اوخوره ئې اوکه مور وي تو مه ئې خوره.

﴿ سمعت ابا ثعلبة الخشنی رضی الله عنه يقول......... وما اصدت بكلبک الذی ليس بمعلم فادركت ذكاته فكل ﴾

یعنی د کلب معلم ښکار خو جائز دې، او کله چه ښکار د کلب غیر معلم په ذریعه کولې شی نو په دې کښې دوه صورتونه دی که دا هغه سپی اوژلو نو بیا خو حرام دې او که او ئې نه وژلو تردې چه ښکاری هغه نیولو سره ذبح کړو نو بیا هغه جائز دې.

والحديث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی قاله المنذری، وقال الشيخ محمد عوامه: عزاه المزی الی الجماعة وهو عند ابن ماجة بزيادة، واما الترمذی فرواه بمثل اسناد المصنف اهـ

د دې نه په روستو روایت کښې را روان دی ﴿ فكل ذكيا وغير ذكی ﴾ یعنی په مذبوح او غیر مذبوح دواړو صورتونو کښې جائز دې، کوم ښکار چه د غشی یا د معلم سپی په وجه باندې مړ شی او د هغه د ذبح وخت رانشی هغه خو شو غیر ذکی، او کوم چه د غشی وغیره په ذریعه مړ نه وی بلکه هغه ژوندې دې تردې چه ښکاری هغه ته اورسیدو نو بیا د هغه دپاره ذبح کول ضروری دی هم دا مراد دې د ذکی نه.

[۲۸۵٦]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُصَفَّى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَرْبٍ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُصَفَّى، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، عَنْ الزُّبَيْدِيِّ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ سَيْفٍ، حَدَّثَنَا أَبُو إِدْرِيسَ الْخَوْلَانِيُّ، حَدَّثَنِي أَبُو ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيُّ، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا أَبَا ثَعْلَبَةَ كُلْ مَا رَدَّتْ عَلَيْكَ قَوْسُكَ وَكَلْبُكَ زَادَ عَنْ ابْنِ حَرْبٍ الْمُعَلَّمُ وَيَدُكَ فَكُلْ ذَكِيًّا وَغَيْرَ ذَكِيٍّ".

دابوثعلبه خشني نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام راته اوفرمائیل اې ابوثعلبه کوم ځناور چه ته په خپل غشي اولې هغه خوره اویائې پوهه شوي سپې ښکار کړې، دابن حرب په روایت کښې دا اضافه ده چه هغه سپې پوهه کړې شوې وي اوهغه ځناورخوړلې شي کوم چه ستاپه لاس باندې او ویشتلی شي برابره خبره ده چه ته دغه ذبح کړې او که ذبح ئې نه کړې اود ذبح کولونه مخکښې مړشي.

[۲۸۵۷]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمِنْهَالِ الضَّرِيرُ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا حَبِيبٌ الْمُعَلِّمُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ أَعْرَابِيًّا يُقَالُ لَهُ أَبُو ثَعْلَبَةَ، قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ لِي كِلَابًا مُكَلَّبَةً فَأَفْتِنِي فِي صَيْدِهَا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنْ كَانَ لَكَ كِلَابٌ مُكَلَّبَةٌ فَكُلْ مِمَّا أَمْسَكْنَ عَلَيْكَ، قَالَ: ذَكِيًّا أَوْ غَيْرَ ذَكِيٍّ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: فَإِنْ أَكَلَ مِنْهُ، قَالَ: وَإِنْ أَكَلَ مِنْهُ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَفْتِنِي فِي قَوْسِي، قَالَ: كُلْ مَا رَدَّتْ عَلَيْكَ قَوْسُكَ، قَالَ: ذَكِيًّا أَوْ غَيْرَ ذَكِيٍّ، قَالَ: وَإِنْ تَغَيَّبَ عَنِّي، قَالَ: وَإِنْ تَغَيَّبَ عَنْكَ مَا لَمْ يَصِلَّ أَوْ تَجِدْ فِيهِ أَثَرًا غَيْرَ سَهْمِكَ، قَالَ: أَفْتِنِي فِي آنِيَةِ الْمَجُوسِ إِنِ اضْطُرِرْنَا إِلَيْهَا، قَالَ: اغْسِلْهَا وَكُلْ فِيهَا".

---

[۱]. تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۸۷۷)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/ الصيد ۱ (۱۹۳۱)، سنن الترمذي/ الصيد ۱٦ (۱٤٤٦) (صحيح)

[۲]. تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۸٦۷۱)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الصيد ۱٦ (٤۳۰۱)، مسند احمد (۲/۱۸٤) (حسن)

عمرو بن شعیب د خپل پلار نه او هغه د ده دنیکه نه روایت کوي چه دا بو ثعلبه په نوم باندې یو باندچې ووئیل اې دالله رسوله زما سره سپي دي پوهه کړې شوي فتوي راکړه ما لره په ښکار ددي کښې نبی ﷺ اوفرمائیل که چرې ستا سره پوهه کړې شوي سپې وي نو خوره هغه څه کوم چه دوی ستاد پاره ساتلي وي ابو ثعلبه وویل چه ذبح شوي وي او که نه وی ذبح شوي دواړه نبی ﷺ اوفرمائیل هو ابو ثعلبه اووئیل که چرې خوړلي ئې ترینه وي نبی ﷺ اوفرمائیل اګر که ترینه ئې خوړلې وي بیا ئې عرض اوکړو اې دالله رسوله فتوي راکړه ماته په باره دښکار دلیندی زما کښې نبی ﷺ اوفرمائیل کوم چه ستادپاره ستا دغشو لیندہ اوګټي هغه خوره برابره خبره ده چه ته ئې ذبح کړې اوکه ذبح ئې نه کړی هغه اووئیل که چرې دا ښکار په غشي اولګی او دنظرنه غائب شي نبی ﷺ اوفرمائیل اګر که دنظر نه غائب هم وي ترڅوچه ورک شوې نه وی او ترڅوچه ستاد غشي نه علاوه بل زخم په کښې بیانه وموي ثعلبه اووئیل فتوي راکړه مانه په باره دلوښو د مجوسیانو کښې که چرې زه ورته مجبوره کړې شم نبی ﷺ اوفرمائیل ویسې وینزه اوخوراك په کښې کوه.

﴿وان تغیب عنک مالم یصل او تجد فیه اثر غیر سهمک﴾

## شرح الحدیث او د لحم منتن حکم:

یعنی د ښکار د غائب کیدو په صورت کښې هغې لره تر هغه وخته پورې خوړل جائز دی چه کله په هغې کښې دوه شرطونه بیا موندلې شی. یو دا چه هغه ښناور خراب شوې نه وی او دویم دا چه د هغه غشی نه علاوه د بل غشی اثر پکښې نه وی. ﴿ما لم یصل﴾ په فتح د یاء او کسرې د صاد سره دې او تشدید لام وئیلې شی ﴿صل اللحم صلولا اذا انتن﴾ یعنی چه کله په هغه غوښه کښې بدبوئی راتلل شروع شی، او د مسلم په حدیث کښې ﴿ما لم ینتن﴾ دي [1]..... د احنافو او شوافعو په نزد دا قید دپاره د استحباب دې، د هغوی په نزد د لحم منتن خوراک مکروه تنزیهی ده، او د مالکیانو په نزد حرام ده، د شوافعو استدلال د حدیث العنبر نه دې کوم چه صحابه کرامو رضی الله عنهم د نیمې میاشت نه زیات خوړلې وو، او په دومره موده کښې په غوښه کښې بدبوئی پیدا نه شی دا ډیره ګرانه ده، خو حافظ فرمائی ﴿یحتمل انهم ملحوه وقددوه﴾ چه ممکنه ده صحابه کرامو هغه ټکرې ټکرې کولو سره په هغې باندې مالګه مرولې وی (هامش البذل)

وفی الشمائل الترمذی فی باب تواضع رسول الله ﷺ من حدیث انس بن مالک رضی الله عنه کان رسول الله ﷺ یدعی الی خبز الشعیر والاهالة السخنة وکذا اخرجه البخاری فی البیوع والرهن، ولفظه فی البیوع فی باب شراء النبی ﷺ بالنسیئة عن انس رضی الله عنه انه مشی الی النبی بخبز شعیر واهالة سنخة الحدیث..... په دې حدیث کښې د رسول الله ﷺ د زړې بوئی والا وازګې خوړلو ذکر دې. حدیث الباب د ابو ثعلبه رضی الله عنه دا حدیث وراندې هم را روان دې هلته په بذل کښې لیکلې شوې دی. قال القاری قال علماؤنا: وهذا علی طریق الاستحباب والا فالنتن لا اثر له فی الحرمة.

[1]) بلکه خپله په ابوداؤد کښې هم په کتاب الصید کښې بالکل په آخری حدیث کښې هم دغه شان دی مالم ینتن)

قال ابن الملک وقد روى انه عليه الصلوة والسلام اکل متغير الريح الى آخره.

## د مشرکانو د لوښو استعمال کله جائز دي؟

**قوله**: قال: افتنى فى آنية المجوس اذا اضطررنا اليها قال اعسلها وكل فيها :

د رسول اللهﷺ نه د مجوسيانو د لوښو په باره کښې تپوس اوکړې شو چه آيا د مجبورئ په وخت هغه استعمالولې شو؟ هغوى اوفرمائيل چه د غسل نه پس هغه استعمالولې شو، د دې نه معلومه شوه چه د مشرکانو د لوښو استعمال پس د وينځلو نه د اضطرار په وخت جائز دې، او دا هم چه بغير د مجبورئ نه پس د غسل نه هم د دې استعمال مکروه دې حال دا چه د فقهاء کرامو د کلام نه معلوميږي چه د مشرکانو د لوښو استعمال پس د وينځلو ه مطلقا بغير د کراهت نه جائز دې، جواب د دې دا دې چه دلته په حديث کښې د مجوسو لوښو نه هغه لوښى مراد دى چه په هغې کښې د خنزير غوښه پخوى يا کوم چه د شرابو په څکلو کښې استعمالوى لکه چه د هغې تصريح د ابوداؤد په بعض روايتونو کښې ده او د فقهاء کرامو کلام د مطلق لوښو سره متعلق دې يعنى د هغه لوښو سره کوم چه هغوى په نجاستونو کښې نه شى استعمالولې (بذل) په دې سلسله کښې روايات په ابوداؤد او ترمذي وغيره کښې دوه قسمه دى بعض مطلق دى لکه حديث الباب، او بعض مقيد دى لکه چه حضرت په بذل کښې ليکلى دى. د حضرات مراد دا دې چه په روايت مطلقه کښې اختصار دې هغه هم په مقيده باندې محمول دى.

## باب فِي صَيْدٍ قُطِعَ مِنْهُ قِطْعَةٌ

### دژوندى ښاروى ديو اندام پريکولوبيان

[۲۸۵۸]() حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا هَاشِمُ بْنُ الْقَاسِمِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي وَاقِدٍ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا قُطِعَ مِنَ الْبَهِيمَةِ وَهِيَ حَيَّةٌ فَهِيَ مَيْتَةٌ".

دابو واقد الليثي نه روايت دې فرمائي چه نبى علية السلام فرمائيلى دى هغه اندام چه پريکړې شي. دښاروي نه اوهغه ژوندې وي دا مرداره ده.

**( ما قطع من البهيمة وهى حية فهى ميتة )**

يعنى چه د ژوندى ماکول ځناور يو اندام پرې کړې شى نو هغه حکم دې په حرام د ميتة کښې دې، دا روايت په ترمذى کښې هم دې د ابوداؤد د روايت نه اوږد، په هغې کښې دا دى چه کله رسول اللهﷺ هجرت کولو سره مدينې طيبې ته تشريف يوړو نو هلته هغوى اوکتل چه څه خلق د اوښانو قوبوبه، او هم دغه شان د ګډانو لمونه پرې کوى نو په دې باندې رسول اللهﷺ هغه اوفرمائيل کوم چه دلته په دې حديث کښې ذکر شوى دى.

**فائده**: فقهاء کرامو د نافجة المسک په باره کښې تصريح کړې ده چه هغه هم طاهر دې د

(): سنن الترمذي/الصيد ٤ (١٤٨٠) أتم منه، (تحفة الأشراف: ١٥٥١٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢١٨/٥)، سنن الدارمي/الصيد ٩ (٢٠٦١) (صحيح)

مشک په شان او ماکول دي لهذا د مسئلة الباب نه به د هغې استثناء کولې شي.[1]
والحديث اخرجه الترمذی اتم منه، واخرجه ابن ماجة من حديث عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما قاله المنذری.

## بَابٌ فِي اتِّبَاعِ الصَّيْدِ

### د ښکار کولو نه کسب جوړول

[۲۸۵۹](2) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، حَدَّثَنِي أَبُومُوسَى، عَنْ وَهْبِ بْنِ مُنَبِّهٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ مَرَّةً سُفْيَانُ، وَلَا أَعْلَمُهُ إِلَّا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ سَكَنَ الْبَادِيَةَ جَفَا، وَمَنِ اتَّبَعَ الصَّيْدَ غَفَلَ، وَمَنْ أَتَى السُّلْطَانَ افْتُتِنَ".

ابن عباس نه دنبی عليه السلام نه روايت کوی څوک چه په ځنګلو کښې اوسيږي دهغه زړه به سخت وي او څوک چه په ښکار پسې هروخت ور پسې وي نودي به په غفلت کښې پريوځي او څوک چه بادشاهانوته تګ راتګ کوي نو هغه به په کوم مصيبت کښې اخته کيږي.

**قوله:** ﴿من السكن البادية جفاء ومن اتبع الصيد غفل الخ﴾ يعنی په ځنګل کښې اوسيدونکی سخت مزاج کيږی، د خلقو سره د اوسيدو دکمی د وجې نه. ځکه چه څوک د خلقو سره يوځائې اوسيږی نو هغه د نورو تکليفونه او د مشقونو برداشت کولو عادی شی، او په دې وجه هم چه داسې خلق د حکومت او د هغې انتظام نه لرې وی.

او څوک چه په ښکار پسې لګيدلې وی، مراد توغل دې چه هم دې لره خپله مشغله جوړه کړی نو د هغه ژوند به په غفلت کښې تير شی او د مانځه او آذان ورته هيڅ خبر نه وی.

او کوم خلق چه امراء او بادشاهانو له ځی هغوی د دين او دنيا د دواړو په اعتبار سره په فتنه کښې مبتلا کيږی. (بذل) والحديث اخرجه الترمذی والنسائی مرفوعا قاله المنذری.

[۲۸۶۰](3) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الْحَكَمِ النَّخَعِيُّ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ شَيْخٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَعْنَى مُسَدَّدٍ، قَالَ: "وَمَنْ لَزِمَ السُّلْطَانَ افْتُتِنَ زَادَ، وَمَا ازْدَادَ عَبْدٌ مِنَ السُّلْطَانِ دُنُوًّا إِلَّا ازْدَادَ مِنَ اللهِ بُعْدًا".

دابوهريره من نه دتير شوی روايت په شان روايت منقول دې مګر ددې اضافي سره څوک چه د بادشاه سره ډير تګ راتګ ساتي نوپه فتنه کښې به پريوځی اوهيڅ يوبنده داسې نشته چه بادشاه ته ئې ځان نزدې کړې وی مګر دالله نه به ئې ځان جدا کړې وی.

[۲۸۶۱](4) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ خَالِدٍ الْخَيَّاطُ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِذَا رَمَيْتَ الصَّيْدَ فَأَدْرَكْتَهُ بَعْدَ ثَلَاثِ لَيَالٍ وَسَهْمُكَ فِيهِ فَكُلْهُ مَا لَمْ يُنْتِنْ".

---

[1] ففي نور الايضاح في بيان الدباغة رنافجة المسك طاهرة كالمسك واكله حلال آه.

[2] : سنن الترمذي/الفتن ٦٩ (٢٢٥٦)، سنن النسائي/الصيد ٢٤ (٤٣١٤)، (تحفة الأشراف: ٦٥٣٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٥٧/١) (صحيح)

[3] : تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٤٩٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٧١/٢، ٤٤٠) (ضعيف)

[4] : صحيح مسلم/الصيد ٢ (١٩٣١)، سنن النسائي/الصيد ٢٠ (٤٣٠٨)، (تحفة الأشراف: ١١٨٦٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٩٤/٤) (صحيح)

ابوتعلبه خشني رضي الله عنه د نبی علیه السلام نه روایت کوی چه فرمائیلي ئې دي کله چه ښکار په غشي اوولې او درې ورځې پس ئې بیاموي اوستاغشې په کښې موجودرې نوخوره ئې ترڅوچه بدبويه شوې نه وي.

﴿ عن ابی ثعلبة الخشنی رضي الله عنه عن النبی ﷺ اذا رمیت الصید فادرکته بعد ثلاث لیال وسهمک فیه فکل مالم ینتن ﴾:

دا حدیث په مصری نسخو کښې نشته او کیدل هم نه دی پکار، د مضمون په لحاظ سره دا حدیث مکرر دې، رومبی ځائې په دې کښې د ﴿ ما لم ینتن ﴾ په ځائې ﴿مالم یصل ﴾ لفظ راغلي دې.

# كِتَابُ الْوَصَايَا

## دوصیت د احکامو بیان

وصایا جمع ده د وصیة لکه هدایا جمع ده د هدیة، د وصیة استعمال په معنی مصدری یعنی ایصاء او مایوصی به یعنی د هغه څیز د وصیت په ځائې په دواړو کښې وی، د وصیة تعریف شرعا داسې کړې شوې دې هو عهد خاص مضاف الی ما بعد الموت..... یعنی هغه معامله چه د هغې تعلق د مابعد الموت سره وی، او د وصیت استعمال په معنی د نصیحت یعنی امر بالمعروف او نهی عن المنکر باندې هم کیږي. (من البذل)

## بَابُ مَا جَاءَ فِيمَا يُؤْمَرُ بِهِ مِنَ الْوَصِيَّةِ

### د وصیت د تاکید کولو بیان

زمونږ په دې نسخه کښې ﴿ یامر ﴾ په صیغه د معروف دې، او په بعض کښې ﴿ یومر ﴾ دې وهو الاصح ځکه چه د معروف صورت کښې د هغه دپاره فاعل مقدر منل راځی مثلا الشرع یا السلام.

[۲۸٦۲](1) حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنِي نَافِعٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ عُمَرَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَا حَقُّ امْرِئٍ مُسْلِمٍ لَهُ شَيْءٌ يُوصِي فِيهِ يَبِيتُ لَيْلَتَيْنِ إِلَّا وَوَصِيَّتُهُ مَكْتُوبَةٌ عِنْدَهُ".

دابن عمر رضي الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی دمسلمان دشان سره دانه ښائي چه دده سره دي داسې يوش وي کوم چه دوصیت قابل وي اودکوم دپاره چه وصیت کول ضروري وي اودې دوه شپې داسې تیري کړي چه ددغه شي متعلق وصیت دده سره لیکلې موجود نه وی.

﴿ عن عبیدالله بن عمر رضي الله عنهما عن رسول الله ﷺ قال ما حق امرئ مسلم له شئ یوصی فیه یبیت لیلتین الاوصیة مکتوبة عنده ﴾

(1): صحيح مسلم/الوصايا ١ (١٦٢٧)، (تحفة الأشراف: ٧٩٤٤، ٨١٧٦)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الوصايا ١ (٢٧٣٨)، سنن الترمذي/الجنائز ٥ (٩٧٤)، والوصايا ٣ (٢١١٩)، سنن النسائي/الوصايا ١ (٣٦٤٥)، سنن ابن ماجه/الوصايا ٢ (٢٦٩٩)، موطا امام مالك/الوصايا ١ (١)، مسند احمد (٢/٤، ١٠، ٣٤، ٥٠، ٥٧، ٨٠، ١١٣)، سنن الدارمي/الوصايا ١ (٣٢١٩) (صحيح)

## شرح الحديث وحكم الوصية :

﴿ يوصى فيه ﴾ په تركيب كښې د ﴿ شئ ﴾ صفت دې، او دا ﴿ يبيت ليلتين ﴾ د ((حق)) خبر دې، يعنې چه د كوم مسلمان يو داسې څيز وى چه قابل وصيت وى نو د هغه دپاره لائقه نه ده دا خبره چه دوه شپې تيرې كړى خو په دې حال كښې چه د هغه وصيت د هغه سره ليكلې وى. او په يو روايت كښې ليلة او ليلتين دې او د مسلم او د نسائى په روايت كښې يبيت ثلاث ليال دې، وهذا يدل على انه للتقريب لا للتحديد اى ولو زمانا قليلا (بذل) .

وصيت ظاهريه او بعض علماء كرامو لكه زهرى او عطاء او ابن جرير او د امام شافعى رحمه الله په قول قديم كښې مطلقا اى فى كل حال واجب دې او د جمهور په نزد كه ذمه ديون (قرضونه) يا حقوق العباد وى په هغې باندې وصيت واجب دې خو د هغې ليكل او په هغې كښې تعجيل كول دا مستحب دى، علامه شامى رحمه الله ليكلى دى چه د وصيت څلور قسمونه دى، واجب كالوصية برد الودائع الديون المجهولة، ومستحبة كالوصية للكفارات وفدية الصلوة ونحوها، ومباحة كالوصية للاغنياء من الاجانب والاقارب، ومكروهة كالوصية لاهل الفسوق والمعاصى وفى الهداية القياس يابى جواز الوصية لانه تمليك مضاف الى حال زوال مالكية الا انا استحسناه لحاجة الناس اليها الى اخره آهـ من التراجم[1]

والحديث اخرجه البخارى ومسلم والترمذى والنسائى وابن ماجة قاله المنذرى.

[٢٨٦٣](٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: مَا تَرَكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دِينَارًا وَلَا دِرْهَمًا وَلَا بَعِيرًا وَلَا شَاةً وَلَا أَوْصَى بِشَيْءٍ.

ام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائى چه نبى عليه السلام نه دينار پريښودلې دې اونه درهم اونه اوښ اونه ګډ (په ميراث كښې) اونه ئې په څه شي باندې وصيت كړې دې.

﴿ عن عائشة رضى الله تعالى عنها قالت ما ترك رسول الله ﷺ دينارا ولا درهما ولا بعيرا ولا شاة ولا اوصى بشئ ﴾

## شرح الحديث

او رسول الله ﷺ د هيڅ څيز وصيت نه دې كړې، يعنې د مال يا د خلافت په باره كښې، خو د كتاب الله په باره كښې او د خپل اهل بيت په باره كښې او د اخراج اليهود من جزيرة العرب وغيره ددې امورو رسول الله ﷺ يقينا وصيت فرمائيلې دې (كما فى الاحاديث الصحيحة)

د دراهم او دنانير په باره كښې په بذل كښې د سيرت حلبيه نه نقل كړى دى چه رسول الله

---

[1]) يعنې چونكه د وصيت تعلق د مابعد الموت سره دې او د مرګ نه پس انسان كښې د هيڅ فعل هم كه هغه تمليك وى او يا بل څه صلاحيت باقى نه پاتې كيږى لهذا د وصيت جواز خلاف قياس دې خو استحسانا او ضرورة هغه جائز كيږى، او هغه ضرورت دا دې چه انسان په خپل ژوند باندې مغرور وى او كارونه روستو كوى د ژوند په غرور كښې چه د هغې نه ډير واجب الاداء څيزونه په ذمه پاتې شى ناڅاپه د مرګ د راتلو د وجې نه. خو د هغې د مخ نيوى دپاره شريعت دا صورت راويستلې دې،

[2]): صحيح مسلم/الوصايا ٦ (١٦٣٥)، سنن النسائي/الوصايا ٢ (٣٦٥١)، سنن ابن ماجه/الوصايا ١ (٢٦٩٥)، (تحفة الأشراف: ١٧٦١٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٤٤) (صحيح)

ﷺ سره د وفات نه مخکښې شپږ یا اووۀ دیناره وو هغوی هغه په خپل لاس باندې عائشې رضي الله عنها ته ورکړل چه صدقه کړې شي، او په روایت کښې دي چه رسول الله ﷺ هغوی ته اوفرمائیل دا علی رضي الله عنه ته اولیږه چه هغه صدقه کړي، په دې حدیث کښې د بعیره او شاة هم نفی ده، د دې په باره کښې ملا علی قاري رحمه الله فرمائي چه بعض اهل سیر چه لیکلي دي چه د هغوی په ملک کښې ډیر اوښان وو. او شل اوښانې پیۍ ورکونکې وې د مدینې طیبې په طرفونو کښې، او اووۀ بیزې وې وغیره وغیره. د اهل سیر دا روایت د دې صحیح حدیث معارض نه شي کیدې فلا تعتبر او وړاندې فرمائي که صحیح هم اومنلې شي نو هغه به په دې باندې محمول کولې شي چه هغه اوښان د صدقې وو کوم چه رسول الله ﷺ د اهل صفه او غریبو صحابه کرامو رضي الله عنهم دپاره پریخودلې وو، او د دې نه علاوه چه د هغوی کومې بعض زمکې وې په خیبر او فدک کښې پس هغه خو رسول الله ﷺ په خپل ژوند کښې د مسلمانانو د ضروریاتو دپاره صدقه او وقف کړې وو. لکه چه د صحیحینو کښې حدیث دې ﴿ان رسول الله ﷺ قال لا یقتسم ورثتي دینارا ما ترکت بعد نفقة نسائي ومؤنة عاملي فهو صدقة﴾ وفي روایة..... ﴿ لا نورث ما ترکنا صدقة ﴾ آهـ (من البذل) یعنی د هغه زمکو په باره کښې خو چونکه هغوی په خپل ژوند کښې فیصله فرمائیلې وه، لهذا دې ته به وصیت نه شي وئیلې کیدې [1] والحدیث اخرجه مسلم والنسائي وابن ماجة، قاله المنذري.

## بَابُ مَا جَاءَ فِيمَا لَا يَجُوزُ لِلْمُوصِي فِي مَالِهِ

### باب د ناجائز وصیت بیان

یعنی مړ کیدونکې په خپل مال کښې څومره وصیت کولې شي.

[۲۸٦٤] [2] حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَابْنُ أَبِي خَلَفٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: مَرِضَ مَرَضًا، قَالَ ابْنُ أَبِي خَلَفٍ بِمَكَّةَ، ثُمَّ اتَّفَقَا أَشْفَى فِيهِ فَعَادَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ لِي مَالًا كَثِيرًا وَلَيْسَ يَرِثُنِي إِلَّا ابْنَتِي أَفَأَتَصَدَّقُ بِالثُّلُثَيْنِ؟ قَالَ: لَا، قَالَ: فَبِالشَّطْرِ قَالَ: لَا، قَالَ: فَبِالثُّلُثِ قَالَ: الثُّلُثُ، وَالثُّلُثُ كَثِيرٌ إِنَّكَ أَنْ تَتْرُكَ وَرَثَتَكَ أَغْنِيَاءَ خَيْرٌ مِنْ أَنْ تَدَعَهُمْ عَالَةً يَتَكَفَّفُونَ النَّاسَ، وَإِنَّكَ لَنْ تُنْفِقَ نَفَقَةً إِلَّا أُجِرْتَ بِهَا حَتَّى اللُّقْمَةَ تَرْفَعُهَا إِلَى فِي امْرَأَتِكَ، قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَتَخَلَّفُ عَنْ هِجْرَتِي؟ قَالَ: إِنَّكَ إِنْ تُخَلَّفْ بَعْدِي فَتَعْمَلَ عَمَلًا صَالِحًا تُرِيدُ بِهِ وَجْهَ اللَّهِ لَا تَزْدَادُ بِهِ إِلَّا رِفْعَةً وَدَرَجَةً لَعَلَّكَ أَنْ تُخَلَّفَ حَتَّى يَنْتَفِعَ بِكَ أَقْوَامٌ وَيُضَرَّ بِكَ آخَرُونَ، ثُمَّ قَالَ: اللَّهُمَّ أَمْضِ لِأَصْحَابِي هِجْرَتَهُمْ وَلَا تَرُدَّهُمْ عَلَى أَعْقَابِهِمْ"، لَكِنِ الْبَائِسُ سَعْدُ بْنُ خَوْلَةَ يَرْثِي لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ مَاتَ بِمَكَّةَ.

---

[1] لهذا اوس به دا اشکال نه واقع کیږي چه رسول الله ﷺ د زمکو په باره خو وصیت فرمائیلې دې، بیا په دې حدیث کښې د وصیت نفی کړې شوې ده.

[2]: صحيح البخاري/الجنائز ٣٦ (١٢٩٥)، الوصايا ٢ (٢٧٤٢)، ٣ (٢٧٤٤)، مناقب الأنصار ٤٩ (٣٩٣٦)، المغازي ٧٧ (٤٣٩٥)، النفقات ١ (٥٣٥٤)، المرضي ١٣ (٥٦٥٩)، ١٦ (٥٦٦٨)، الدعوات ٤٣ (٦٣٧٣)، الفرائض ٦ (٦٧٣٣)، صحيح مسلم/الوصايا ٢ (١٦٢٨)، سنن الترمذي/الجنائز ٦ (٩٧٥)، الوصايا ١ (٢١١٧)، سنن النسائي/الوصايا ٣ (٣٦٢٨)، سنن ابن ماجه/الوصايا ٥ (٢٧٠٨)، (تحفة الأشراف: ٣٨٩٠)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الوصايا ٣ (٤)، مسند احمد (١/١٦٨، ١٧٢، ١٧٦، ١٧٩)، دي/الوصايا ٧ (٣٢٣٨) (صحيح)

عامر بن سعد نه دخپل پلار سعد بن أبي وقاص رضي الله عنه نه روايت کوي فرمائي چه هغه يوځل ډيرسخت بيمار وو او نبي عليه السلام ئې دعيادت دپاره راغې عرض ئې اوکړوچه اې دالله رسوله زه يودولت مندسړې يم اود يوې لورنه علاوه بل وارث مې نشته ايازه دخپل مال په درې حصوکښې دوه حصې صدقه کړم؟ نبي عليه السلام اوفرمائيل نه بيا ئې عرض اوکړو ايانيم صدقه کړم؟ نبي عليه السلام اه فر مائيل نه، په دريم ځل ئې عرض اوکړو چه دريمه حصه صدقه کړم؟ نبي عليه السلام اوفرمائيل چه دريمه حصه صدقه کړه او په صدقه ورکولوکښې دمال دريمه حصه کافي ده، که چرې ته خپل وارثان دولت مند پريږدې داددې نه غوره دې چه ته ئې فقيران پريږدې اوبيادخلقونه سوالونه کوي، اوهرهغه شې چه ته دالله درضادپاره خرچ کوې تاته خامخا دهغې اجرملاويږي تردې پورې چه ته دخپلې ښځې په خوله کښې نوړئ ورکوي نوددې به هم درته اجرملاويږي سعد رضي الله عنه عرض اوکړو چه زه به دهجرت نه روسته پاتې شم نبي عليه السلام اوفرمائيل که چرې دهجرت نه روسته پاتې شې (نوښه خبره ده)الله درضا دپاره نيک عمل به وکړې اوستا مرتبه به نوره هم لوړه شي اوکيدې شي چه ژوندى پاتې شي تردې پورې ستاپه وجه به خلقو ته فائده ورسيږي اوځه نورخلق به ستاپه وجه باندې نقصاني شي ددې نه پس نبي عليه السلام دا دعاوغوښتله اې الله زمادملګرو هجرت مکمل کړې اودوى ددې هجرت نه واپس نکړې، ليکن بې وسه او مجبوره سعد بن خوله دې اورسول الله وربانديې ماتم کوي، ځکه چه هغه په مکه کښې وفات شوې وو.

﴿عن عامر بن سعد عن ابيه رضي الله عنه قال مرض مرضا اشفى فيه الخ﴾

## شرح الحديث:

عامر د خپل پلار سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه په باره کښې فرمائي چه يو ځل هغه سخت بيمار شو داسې چه مرګ ته نزدې شو، رسول الله صلى الله عليه وسلم هغوى ته د بيمار پرسئ نه پس تشريف راوړو نو زما پلار عرض اوکړو يا رسول الله صلى الله عليه وسلم! ما سره مال ډير زيات دې او زما د دې مال وارث هيڅ څوک نشته سوا زما د لور نه، نو آيا زه په دې صورت کښې د خپل مال دوه ثلثه صدقه کولې شم؟ هغوى اوفرمائيل نه! بيا هغوى د نيم په باره کښې تپوس اوکړو نو رسول الله صلى الله عليه وسلم د دې نه منع اوفرمائيله، او بيا ئې د يو ثلث په باره کښې اجازت اوفرمائيلو. او وې فرمائيل چه ته خپل وارثان مالدار پريږدې دا ډيره غوره ده د دې نه چه ته هغوى غريبانان پريږدې چه (بيا) خلقو ته د سوال دپاره لاسونه نيسي، په دې حديث کښې دى چه زما هيڅوک وارث نشته سوا د يوې لور نه، شراح فرمائي چه مراد دا دې چه د لور نه علاوه په ذوى الفروضو کښې زما هيڅوک وارث نشته، او مطلق نفي مراد نه ده ځکه چه د ذوى الفروض نه علاوه نور ورثاء عصبه د هغوى سره وو لکه چه خپله په دې حديث کښې دى ﴿ان تترک ورثتک اغنياء.... قلت يا رسول الله! اتخلف عن هجرتي قال انک ان تخلف بعدى فتعمل عملا تريد به وجه الله الخ﴾

د وصيت د مسئلې نه پس هغوى رسول الله صلى الله عليه وسلم ته عرض اوکړو چه زه د خپل هجرت نه روستو پاتې کولې شم، د دې مطلب دا دې چه چونکه دې په مهاجرينو کښې دې او په

مکه مکرمه کښې سخت بیمار شوې وو د حجة الوداع [1] په موقع باندې هغوی ته د خپل مرګ خطره پیدا شوه په مکه مکرمه کښې یعنی غیر مهاجر کښې [2] او د خپل هجرت د باطل کیدو ویره ورسره پیدا شوه په دې باندې رسول الله ﷺ هغوی ته تسلي ورکړه هغه دا چه انشاء الله داسې به نه کیږي بلکه ته به زما نه روستو ډیره موده ژوندې ئې او د اعمالو په ذریعه به ستا درجات اوچت شي، او بعض اقوام یعنی مسلمین به ستا نه فائده اخلی، او بعض نور یعنی مشرکان به ستا نه ضرر بیا مومی، او رسول الله ﷺ دا دعا هم اوفرمائیله ﴿ اللهم امض لاصحابی هجرتهم ولا تردهم علی اعقابهم ﴾ شراح لیکلی دی چه د رسول الله ﷺ دا پیشنګوئی الله پاک پوره اوفرمائیله، او دا صحابی د دې مرض نه روغ شو او تر ډیرې مودې ژوندې پاتې شو الله پاک د هغوی په لاسونو باندې عراق وغیره فتح کړو او د عراق ګورنر جوړ شو او د رسول الله ﷺ نه پس تقریبا څلوېښت کاله ژوندې وو وحتی مات خمسین علی المشهور وقیل غیر ذلک.

**تنبیه**: د سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه دا واقعه کومه چه مونږ مخکښې لیکلې ده د حجة الوداع ده لکه چه د صحیحینو په بعض روایتونو کښې د دې تصریح ده او د ترمذی په روایت کښې دې ته د عام الفتح واقعه وئیلې شوې ده، زمونږ د عربۍ په حاشیه کښې دا تیر شوې دی چه د حدیث حفاظو دې ته وهم وئیلې دې او د حافظ رائې د جمع بین الروایتین ده یعنی د تعدد واقعه، خو امام طحاوی رحمه الله د دې دوه روایتونو اختلاف لره په مشکل الاثار کښې باقاعده د دې دپاره مستقل باب تړلو سره بیان کړې دې او بیا ئې د یو روایت مفصله په ذریعه چه ډیر زیات واضح دې د عام الفتح واقعه کیدو ته ترجیح ورکړې ده ګویا د هغوی تحقیق د اکثر محدثینو د رائې خلاف دې روستو حافظ هم د دې روایت مفصله د وجې نه خپله رائې بدله کړې ده خو هغوی په ځائې د ترجیح ورکولو تعدد د واقعې لره اختیار کړې دې نو اوس ګویا په دې کښې درې رائې شوې د اکثر محدثینو کوم چه حافظ رحمه الله په اتفاق حفاظ سره تعبیر فرمائی، او دویم د امام طحاوی او دریم د حافظ ابن حجر، والله تعالی اعلم بالصواب.

﴿ لکن البائس سعد بن خولة یرثی له رسول الله ﷺ ان مات بمکة ﴾

## شرح الحدیث:

رسول الله ﷺ فرمائی چه د افسوس لائق حال خو د سعد بن خوله دې یا قابل رحم خو سعد بن خولة دې. وړاندې روای د دې وضاحت کولو سره وائی چه رسول الله ﷺ رحم کوی په سعد بن خولة باندې دې ځکه چه د هغه مرګ په مکه مکرمه کښې شوې وو. د سعد بن خوله رضی الله عنه په باره کښې اختلاف دې د بعضو رائې دا ده چه هغوی د مکې مکرمې نه هجرت

---

[1] او د ترمذی په روایت کښې عام الفتح دې کوم چه د ابن عیینه راوی وهم دې قال الحافظ واتفقوا علي انه وهم فیه ابن عیینة من اصحاب الزهري ثم قال ویمکن الجمع بین الروایتین بان یکون ذلك وقع له مرتین مرة عام الفتح ومرة عام حجة الوداع ففي الاولي لم یکن له وارث من الاولاد اصلا وفي الثانیة کانت ابنته فقط د دې په باره کښې نور وضاحت په شرح کښې را روان دې.

[2] مهاجر هغه ځائې او مقام چرته چه انسان هجرت کولو سره لاړ شی لکه چه د مهاجرین مکه مهاجر مدینه طیبه وه.

هم نه وو کړې تر دې چه هغوی هم هلته وفات شو، او د اکثرو رائې دا ده چه هغوی هجرت خو کړې وو خو وفات د هغوی د حجة الوداع په موقع په مکه مکرمه کښې اوشو. يغنی بغير د مهاجر نه بل ځائې کښې ﴿ بائس من اصابه بؤس ای ضرر ﴾ يعني نقصان اوچتونکې، شراح ليکلي دی چه په دې کښې صلاحيت د مذمت هم دې او د ترحم هم، لهذا ړومبې صورت په عدم الهجرة کښې د رسول اللهﷺ دا فرمان په طريقه د مذمت دې، او په دويم صورت کښې په طريقه د ترحم، دا يرثی د ورث نه ماخوذ دې
چه د هغې استعمال په ميت کښې کيږی، يعنی د مړی د محاسنو ذکر. (تحفة)
د علماء کرامو په دې کښې اختلاف دې که د مهاجر مرګ په مکه کښې واقع شي نو بعض وائی چه که داسې د هغه په اختيار باندې شوې وی نو د هغه د هجرت اجر حبط کيږی ګينې نه﴿وقيل يحبط مطلقا﴾ دوصيت متعلق بعض ضروری مسائل مونږ په حاشيه کښې ليکلی دی هغه دې اوکتلې شی(١) والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه،قاله المنذری.

---

(١) **د وصيت متعلق بعض ضروری مسائل او د ائمة اختلاف** : د حديث الباب نه معلوميږی چه د انسان دپاره زيات نه زيات د يو ثلث د غير وارث دپاره جائز دی، د امام بخاری ترجمة ده ﴿باب الوصية بالثلث﴾ په دې باندې حافظ ليکلی دی په دې باندې د علماء کرامو اجماع ده چه د ثلث نه په زيات باندې وصيت ممنوع دی (بيا مړی د دوه حالو نه خالی نه دې يا به د هغه وارثان وی يا به نه وی، په شق ثانی کښې خو هيڅ اختلاف نشته چه د داسې انسان دپاره د ثلث نه زيات وصيت جائز نه دې) او که شق اول دې يعنی د مړی ورثاء دی نو هغه وخت هم د ثلث نه زيات کښې وصيت لره جمهور علماء کرام ناجائز وائی خو احناف او اسحاق او احمد ﷺ په يو روايت کښې دې ته جائز ونيلې دې آهـ يعنی په دې شرط چه د وارثانو د طرف نه د دې خبرې اجازت وی پس په هداية کښې دی :ثم تصح للاجنبي في الثلث من غير اجازة الورثة ولا تجوز بما زاد علي الثلث الا ان تجيزها الورثة بعد موته وهم كبار لان الامتناع لحقهم وهم اسقطوه، ولا معتبر باجازتهم في حال حياته آهـ او په دې باندې هم ځان پوهول پکار دی د وصيت للوارث مسئله هم مختلف فيه ده د ظواهرو په نزد دا حکم مطلقا دې لحديث لاوصية لوارث اخرجه ابوداؤد والترمذي وغيرهما او د جمهورو په نزد وصية لبعض الورثة جواز موقوف دې د باقی وارثانو په اجازت باندې که باقی وارثان د موصي د مرګ نه روستو هغه ته اجازت ورکړی نو بيا وصية معتبر او جائز دې لرواية الدارقطني لاوصية لوارث الا ان يشآء الورثة، قال الحافظ ورجاله ثقات الا انه معلول (تراجم بخاري) او په عينی کښې دی قال المنذري انما يبطل الوصية للوارث في قول اكثر اهل العلم من اجل حقوق سائر الورثة فاذا اجازوها جازت كما اذا اجازوا الزيادة الزيادة علي الثلث، وذهب بعضهم الي انها لا تجوز وان اجازوها، لان المنع لحق الشرع وهذا قول اهل الظاهر (عمدة القاري ٢٧١/١١) وفي الهداية : ولا تجوز لوارثه الا ان يجيزها الورثة لان الامتناع لحقهم فتجوزها باجازتهم ولو اجاز بعض ورد بعض تجوز علي المجيز بقدر حصته لولايته عليه (آهـ ملخصا ملتقطا) او په دې باندې هم ځان پوهول پکار دی چه که يو انسان په مرض الوفات کښې خپل يو وارث ته يو څيز في الحال هبه کړی نو هغه د وصيت په حکم کښې دې وفي الهداية والهبة من المريض (مرض الموت) للوارث في هذا نظير الوصية لانها وصية حكمًا. او په حديث کښې دی ﴿ والثلث كثير ﴾ هم د دې وجې نه علماءکرامو فرمائيلي دی چه وصيت که د ثلث نه کم وی نو دا غوره ده ففي الهداية ويستحب ان يوصي الانسان بدون الثلث سوآء كانت الورثة اغنيآء او فقراء لان في التنقيص صلة القريب بترك ماله عليهم بخلاف استكمال الثلث لانه استيفاء تمام حقه فلاصلة ولا منة، بيا دا چه د مادون الثلث وصيت کول اولی دی يا که د هغې ترک اولي دې؟ په دې کښې دوه قوله دی يو دا چه که وارثان فقراء وی په دې صورت کښې د وصيت ترک اولی دې او که هغوی اغنياء وی نو وصيت کول اولی دی، او دويم قول دا دې چه موصی ته اختيار دې چه کوم شق غواړی اختيار دې کړی ځکه چه په هر شق کښې من وجه فضيلت دې آهـ مختصرا من الهداية)

## بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْإِضْرَارِ فِي الْوَصِيَّةِ

### په وصيت سره نورو خلقو ته د نقصان ورکولو د کراهت بيان

د اضرار نه مراد وارثان دی، يعنی خلاف قاعده وصيت کولو سره وارثانو ته ضرر او تکليف ورکول.

[۲۸٦۵] (١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، حَدَّثَنَا عُمَارَةُ بْنُ الْقَعْقَاعِ، عَنْ أَبِي زُرْعَةَ بْنِ عَمْرِو بْنِ جَرِيرٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَجُلٌ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَيُّ الصَّدَقَةِ أَفْضَلُ؟ قَالَ: "أَنْ تَصَدَّقَ وَأَنْتَ صَحِيحٌ حَرِيصٌ تَأْمُلُ الْبَقَاءَ وَتَخْشَى الْفَقْرَ وَلَا تُمْهِلَ حَتَّى إِذَا بَلَغَتِ الْحُلْقُومَ"، قُلْتَ لِفُلَانٍ كَذَا وَلِفُلَانٍ كَذَا وَقَدْ كَانَ لِفُلَانٍ.

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې - فرمائی چه يو سړی دنبی عليه السلام په خدمت کښې عرض اوکړو اې دالله رسوله کومه صدقه غوره وي؟ نبی عليه السلام اوفرمائيل کومه صدقه چه ته دروغ والی په حالت کښې اوکړې او په دغه وخت کښې ستادژوند نه اميد وي اودغريب کيدلودرسره انديخنه وي داسې نه چه ته منتظر ئې دداسې وخت چه کله روح ستامرئ ته راشي اوبيا ووائی چه فلاني ته دومره ورکړئ اوفلاني ته دومره ورکړئ ځکه چه دغه مال په دغه وخت کښې ئې ددې نه هم دبل چاحق جوړ شوې دې.

﴿ يا رسول الله! ای الصدقة افضل؟ قال ان تصدق وانت صحيح الخ ﴾

د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړې شو د افضل الصدقة په باره کښې نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل چه د ټول نه غوره صدقه هغه ده کومه چه په دې حال کښې اوکړې شی چه انسان صحت مند وی، او هغه کښې د مال حرص او مينه هم وی د صحت او طاقت د وجې نه کافی موده پورې ئې د خپل ژوندی پاتې کيدو توقع وی، او د فقر نه ويريږی نو کومه صدقه چه په داسې حال کښې اوکړې شی هغه به د ټولو نه افضل وی (٢) لهذا هم په دې حالت کښې انسان لره صدقه کول پکار دی، او بيا وړاندې د دې د ضد نه رسول الله صلی الله علیه وسلم منع فرمائی چه تاخير مه کوه او مهلت مه ورکوه خپل نفس لره د صدقه کولو نه تر دې چه روح حلق ته راورسی نو ته وائې (د وصيت په طور) چه فلانی ته دې دومره ورکړې شی او فلانی ته دې دومره ورکړې شی حال دا چه هغه د بل فلانی شوې دې يعنی وارث.

والحديث اخرجه البخاری ومسلم قاله المنذری

[۲۸٦٦] (٣) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، أَخْبَرَنِي ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ شُرَحْبِيلَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَأَنْ يَتَصَدَّقَ الْمَرْءُ فِي حَيَاتِهِ بِدِرْهَمٍ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَتَصَدَّقَ بِمِائَةِ دِرْهَمٍ عِنْدَ مَوْتِهِ".

---

١): صحيح البخاري/الزكاة ١١ (١٤١٩)، والوصايا ٧ (٢٧٤٨)، صحيح مسلم/الزكاة ٣١ (١٠٣٢)، سنن النسائي/الزكاة ٦٠ (٢٥٤٣)، الوصايا ١ (٣٦٤١)، (تحفة الأشراف: ١٤٩٠٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٣١، ٢٥٠، ٤١٥، ٤٤٧) (صحيح)

٢) ځکه چه د دې حالاتو تقاضه دا ده چه صدقه اونکړې شی خو هغه انسان د خپل نفس د مخالفت کولو سره صدقه کوی)

٣): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٠٧١) (ضعيف)

دابوسعید خدری رضی الله عنه نه روایت دي چه نبی علیه السلام فرمائیلي دی که چرې څوك په خپل ژوند کښې یو درهم صدقه کړي نو هغه ددې نه بهتر دې چه دژوند نه پس سل درهمه صدقه کړي.

[۲۸۶۷](¹) حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ، حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ الْحُدَّانِيُّ، حَدَّثَنَا الْأَشْعَثُ بْنُ جَابِرٍ، حَدَّثَنِي شَهْرُ بْنُ حَوْشَبٍ، أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ حَدَّثَهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ الرَّجُلَ لَيَعْمَلُ وَالْمَرْأَةُ بِطَاعَةِ اللَّهِ سِتِّينَ سَنَةً، ثُمَّ يَحْضُرُهُمَا الْمَوْتُ فَيُضَارَّانِ فِي الْوَصِيَّةِ فَتَجِبُ لَهُمَا النَّارُ"، قَالَ: وَقَرَأَ عَلَيَّ أَبُو هُرَيْرَةَ مِنْ هَاهُنَا مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصَى بِهَا أَوْ دَيْنٍ غَيْرَ مُضَارٍّ حَتَّى بَلَغَ ذَلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا يَعْنِي الْأَشْعَثَ بْنَ جَابِرٍ، جَدُّ نَصْرِ بْنِ عَلِيٍّ.

دابوهریره و نه روایت دي چه نبی علیه السلام فرمائیلي دی چه یو انسان سړې وي او که ښځه دشپیته کالو پورې دالله عبادت اوکړي او بیا دهغه دمرګ وخت راشي او ددې نه پس داسې وصیت اوکړي چه خلقو ته نقصان رسیږي دهغې په وجه نو دداسې کس دپاره دوزخ واجب دې شهر بن اوشب وائی ابوهریره رضی الله عنه زماپه وړاندې دا ایت کریمه : تلاوت کړو «من بعد وصية يوصى بها أو دين غير مضار»ابوداود وائی یعنی اشعث بن جابر دنضر بن علي نیکه.

﴿ ان الرجل ليعمل والمراة بطاعة الله ستين سنة ثم يحضرهما الموت فيضاران في الوصية فتجب لهما النار ﴾ : رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی: بیشکه بعض سړی او بعض ښځې داسې دی چه تر شپیتو کالو پورې د الله پاک په اطاعت او بندګئ ژوند تیروی، بیا چه کله د مرګ وخت راشی نو د وصیت په باره کښې وارثانو ته نقصان رسوی او د جهنم مستحق شی.

مصنف په دې باب کښې بعض احادیث د تصدق ذکر کړې دی څکه چه تصدق د مرګ په وخت د وصیت په حکم کښې وی او څنګه وصیت د ثلث نه د زیات دپاره جائز نه دې هم دغه شان تصدق هم جائز نه دې او که تصدق وارثانو ته د نقصان رسولو دپاره وی نو مطلقا جائز نه دې که هغه ثلث وی او که د ثلث نه کم وی. (بذل)

والحديث اخرجه الترمذي وابن ماجة قاله المنذري.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الدُّخُولِ فِي الْوَصَايَا

### د وصی جوړیدو او ذمه داری قبلولو بیان

یعنی د چا وصی جوړیدو سره د وصیتونو په مسائلو کښې داخلیدل او په ذمه داریانو کښې پریوتل.

[۲۸۶۸](²) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبُو عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمُقْرِئُ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي أَيُّوبَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي جَعْفَرٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي سَالِمٍ الْجَيْشَانِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا أَبَا ذَرٍّ إِنِّي أَرَاكَ ضَعِيفًا وَإِنِّي أُحِبُّ لَكَ مَا أُحِبُّ لِنَفْسِي، فَلَا تَأَمَّرَنَّ عَلَى اثْنَيْنِ وَلَا تَوَلَّيَنَّ مَالَ يَتِيمٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: تَفَرَّدَ بِهِ أَهْلُ مِصْرَ.

¹): سنن الترمذي/الوصايا ٢ (٢١١٧)، سنن ابن ماجه/الوصايا ٣ (٢٧٠٤)، (تحفة الأشراف:١٣٤٩٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٧٨/٢) (ضعيف)

²): صحيح مسلم/الإمارة ٤ (١٨٢٥)، سنن النسائي/الوصايا ٩ (٣٦٩٧)، (تحفة الأشراف:١١٩١٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٨٠/٥) (صحيح)

دابوذر نه روایت دي فرمائی چه نبی ﷺ راته اوفرمائیل ای ابوذره کمزورې راته ښکاري اوزه ستا دپاره خوښه وم هغه څه کوم چه دځان دپاره خوښوم یوداچه په دوه کسانوباندي مشر کیږه مه اودیتیم دمال ذمه وارمه جوړیږه. ابوداود وائی صرف مصریانو دا روایت نقل کړې دې.

## شرح الحدیث:

**قوله:** ﴿ یا اباذر انی اراک ضعیفا وانی احب لک ما احب لنفسی فلا تامرن علی اثنین ولا تولین مال یتیم ﴾ ابوذرغفاری رضی الله عنه فرمائی چه یو ځل رسول الله ﷺ ماته دا نصیحت اوفرمائیلو چه اې ابوذر! زه تا کمزورې وینم یعنی د امارت مصالح او د هغې د ذمه داریانو په پوره کولو کښې، لهذا چرته په دوه کسانو باندې هم امیر جوړ نه شې. (پاتې له په ډیرو باندې) او چرته هم د یو یتیم د مال متولی جوړ نه شې.

په دې باندې یو اشکال راځی چه تاسو خو اوفرمائیل چه ﴿ ما احب لک ما احب لنفسی ﴾ حال دا چه رسول الله ﷺ خو امیر الامراء او ولی الاولیاء وو، د دې ظاهر جواب دا دې چه د رسول الله ﷺ ابوذر رضی الله عنه لره د امارت او تولیة د قبول والی نه منع فرمائیل یو علت سره معلل دې یعنی د هغه ضعف او هغه علت په هغوی کښې مفقود دې، او بیا د رسول الله ﷺ امارت او تولیة وغیره د هغوی خپله اختیار کړې شوې لږ دې هغه خو د الله پاک د طرف نه ورکړه ده.

والحدیث اخرجه مسلم والنسائی، قاله المنذری

## بَابُ مَا جَاءَ فِي نَسْخِ الْوَصِيَّةِ لِلْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِينَ

### د مور او پلار او د نورو خپلوانو دپاره دوصیت دمنسوخ کیدو بیان

[۲۸۶۹](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنِ بْنِ وَاقِدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يَزِيدَ النَّحْوِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، إِنْ تَرَكَ خَيْرًا الْوَصِيَّةُ لِلْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِينَ سورة البقرة آیة ۱۸۰ فَكَانَتِ الْوَصِيَّةُ كَذَلِكَ حَتَّى نَسَخَتْهَا آيَةُ الْمِيرَاثِ.

دابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه ددې ایت کریمه: «إن ترك خيرا الوصية للوالدين والأقربين» حکم په ابتداء اسلام کښې وو چه دمور اوپلار اودنورو وارثانودپاره به وصیت کیدې شې ددې نه پس دا ایت دمیراث په ایت سره منسوخ شو.

د آیت په شروع کښې د میراث د نزول نه مخکښې د وصیت للوالدین والاقربین حکم وو قیل وجوبا وقیل استحبابا.... قال الله تعالی ﴿ یاایها الذین امنوا اذا جآء احدکم الموت ان ترک خیرا الوصیة للوالدین والاقربین بالمعروف الایة ﴾ بیا د ایت میراث د نزول سره دا حکم منسوخ شو. هم دا مضمون د ابن عباس رضی الله عنهما مذکوره فی الباب کښې دې.

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٢٦٠)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الوصايا ٢٨ (٣٣٠٦) (حسن صحيح)

## بَاب مَا جَاءَ فِي الْوَصِيَّةِ لِلْوَارِثِ

### د وارث دپاره د وصيت کولو بيان

[۲۸۷۰](¹) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ نَجْدَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ شُرَحْبِيلَ بْنِ مُسْلِمٍ، سَمِعْتُ أَبَا أُمَامَةَ، سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "إِنَّ اللَّهَ قَدْ أَعْطَى كُلَّ ذِي حَقٍّ حَقَّهُ فَلَا وَصِيَّةَ لِوَارِثٍ".

دابوامامه رضی الله عنه نه روايت دې فرمائي چه دنبی عليه السلام نه مې اوريدلی دی چه فرمائيل ئې دالله تعالى هريوحقدارته دهغه حق ورکړې دې اودوارث دپاره وصيت نشته

﴿ سمعت ابا امامة رضى الله تعالى عنه يقول سمعت رسول الله ﷺ يقول الخ ﴾

د وصيت متعلق بعض ضروری مسائل سره د اختلاف ائمة د وړاندې باب نه مخکښې باب کښې تير شوې دی چه په هغې کښې مسئلة الباب هم ده.

والحديث اخرجه الترمذی وابن ماجة قاله المنذری

## بَاب مُخَالَطَةِ الْيَتِيمِ فِي الطَّعَامِ

### د يتيم د خوراک سره د خپل خوراک د شريکولو بيان

[۲۸۷۱](²) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: لَمَّا أَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ: وَلَا تَقْرَبُوا مَالَ الْيَتِيمِ إِلَّا بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ سورة الأنعام آية ۱۵۲ وَإِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَى ظُلْمًا سورة النساء آية ۱۰ الْآيَةَ، انْطَلَقَ مَنْ كَانَ عِنْدَهُ يَتِيمٌ فَعَزَلَ طَعَامَهُ مِنْ طَعَامِهِ وَشَرَابَهُ مِنْ شَرَابِهِ، فَجَعَلَ يَفْضُلُ مِنْ طَعَامِهِ فَيُحْبَسُ لَهُ حَتَّى يَأْكُلَهُ أَوْ يَفْسُدَ فَاشْتَدَّ ذَلِكَ عَلَيْهِمْ فَذَكَرُوا ذَلِكَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ: وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْيَتَامَى قُلْ إِصْلَاحٌ لَهُمْ خَيْرٌ وَإِنْ تُخَالِطُوهُمْ فَإِخْوَانُكُمْ سورة البقرة آية ۲۲۰ فَخَلَطُوا طَعَامَهُمْ بِطَعَامِهِ وَشَرَابَهُمْ بِشَرَابِهِ.

دابن عباس رضی الله عنه نه روايت دې فرمائي چه کله الله تعالى دا ايت: «ولا تقربوا مال اليتيم إلا بالتي هي أحسن» نازل کړو اودويم داايت چه څوک ديتيمانو مال په ظلم سره خوري نو پخپلو خيټوکښې اور اچوي اونزدې ده چه داخلق دوزخ ته لاړ شي، نودکومو خلقوسره چه يتيمانان اوسيدل هغوی ددوی خوراک دخپل خوراک نه جداکړو نوچه کله به ديتيم مال دخوړلونه پاتې شو نوهغه به ساتلې شو تردې پورې چه پخپله به ئې اوخوړو يا دا چه بوئی به ئې اوکړو دا کار خلقوته ګران شو هغوی دنبی عليه السلام په خدمت کښې حاضرشول اوعرض ئې اوکړو: «ويسألونك عن اليتامى قل إصلاح لهم خير وإن تخالطوهم فإخوانكم» نازل شو، ددې نه پس خلقوددوی سره شريک خوراک څښاک شروع کړو.

﴿ عن ابن عباس رضى الله تعالى عنهما قال لما انزل الله عزوجل.... ولا تقربوا مال اليتيم الا بالتى هى احسن وان الذين ياكلون اموال اليتامى ظلما الاية الخ ﴾

د حديث مضمون واضح دې چه په شروع کښې داسې وه چه د کومو خلقو په ذمه

---

¹): سنن الترمذي/الوصايا ٥ (۲۱۲۰)، سنن ابن ماجه/الوصايا ٦ (۲۷۱۳)، (تحفة الأشراف:٤٨٨٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/۲٦۷)، ويأتي هذا الحديث برقم: ۳٥٦٥ (حسن صحيح)

²): سنن النسائي/الوصايا ۱۰ (۳٦۹۹)، (تحفة الأشراف:٥٥٦۹) (حسن)

داریٔ کښې به یتیمانو ماشومانو پرورش موندلو او د هغوی د مالونو متولي وو نو هغوی به د هغه یتیمو ماشومانو خوراک د خپل خوراک سره شرکت کښې تیارولو چه په هغې کښې د یتامی فائده وه نو هر کله چه دا دواړه آیتونه کوم چه په روایت کښې دی نازل شو نو هغه اولیاء احتیاطا داسې اوکړل چه د هغه یتیمانو د خوراک څکاک انتظام ئې مستقل بیل شروع کړو، د خلط بین الطعامین نه د بچ کیدو دپاره، نې چه کله خانله خوراک شروع کړو نو اوس به اکثر په هغه خوراک کښې بچ کیدله نو یا خو به هغه بچ کیدونکې خوراک هغه یتیمانو خوړلو او یا به خرابیدو، دا صورت حال په هغوی باندې ګران شو او رسول الله ﷺ ته ئې د دې ذکر اوکړو په دې باندې دویم آیت کریمه نازل شو کوم چه په حدیث کښې ذکر کړې شوې دې، په دې باندې حسب سابق هغه صحابه کرامو رضي الله عنهم د خوراک په باره کښې عمل شروع کړو. (والحدیث اخرجه النسائی، قاله المنذری)

## بَابُ مَا جَاءَ فِيمَا لِوَلِيِّ الْيَتِيمِ أَنْ يَنَالَ مِنْ مَالِ الْيَتِيمِ

### د یتیم د پرورش کونکی دپاره د یتیم د مال نه څومره خوړل جائز دی؟

ولی الیتیم یعنی وصی او متولی، حاصل ترجمه ئې دا ده چه آیا د یتیم متولی د مال یتیم د نګرانئ او د خدمت اجرت او وظیفه اخستلې شی که نه؟

[۲۸۷۲](۱) حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، أَنَّ خَالِدَ بْنَ الْحَارِثِ حَدَّثَهُمْ، حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ يَعْنِي الْمُعَلِّمَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: إِنِّي فَقِيرٌ لَيْسَ لِي شَيْءٌ وَلِي يَتِيمٌ، قَالَ: فَقَالَ: "كُلْ مِنْ مَالِ يَتِيمِكَ غَيْرَ مُسْرِفٍ وَلَا مُبَادِرٍ وَلَا مُتَأَثِّلٍ".

عمرو بن شعیب دخپل پلارنه اوهغه دده دنیکه نه روایت کوی چه یو سړې نبی علیه السلام ته راغې اوعرض ئې اوکړو چه زه فقیریم زما سره هیڅ نشته لیکن زما سره یو یتیم دې راوي وائی نبی علیه السلام اوفرمائیل ددې یتیم دمال نه خوره خوفضول خرچي مه کوه اودضرورت مطابق اوبغیرددې ویرې نه چه دې به لوي شي او بغیرددې ارادې نه چه مال دهغه نه وترولې شي.

﴿قال: فکل من مال یتیمک غیر مسرف ولا مبادر ولا متاثل﴾

### شرح الحدیث:

په ترجمة الباب والا مسئله کښې رسول الله ﷺ یو سرې اوفرمائیل چه او په دې صورت کښې د یتیم د مال نه حق الخدمت اخستلې شی په دې حال کښې چه اسراف کونکې نه وی او نه تیزی کونکې وی او نه سرمایه جمع کونکې وی.

دا اشاره ده د دې آیت کریمه د مضمون طرف ته، ﴿ولا تاکلوها اسرافا وبدارا ان یکبروا﴾ د "بدارا" مطلب چه د هغې نه منع کولې شی دا دې چه هغه د یتیم متولی زر زر د یتیم مال خرچ کړی د یتیم د بالغ کیدو نه مخکښې، څکه چه د هغه د بالغ کیدو نه پس خو تولیة ختمیږی، "متاثل" ای غیر متخذ منه اصل مال، دا د اثله نه دې، اثلة الشئ اصله یعنی داسې نه دی کیدل پکار چه د یتیم مال لره د خپل ځان دپاره ذخیره او راس المال جوړ کړې شی،

(۱): سنن النسائي/الوصایا ۱۰ (۳۶۹۸)، سنن ابن ماجه/الوصایا ۹ (۲۷۱۸)، (تحفة الأشراف: ۸۶۸۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۱۸۶، ۲۱۶) (حسن صحیح)

چه صرف حق الخدمت واخستلې شي او په شرح کښې د دې تفسير داسې کړې شوې دې چه هغه متولي د يتيم په مال کښې تجارت اوکړي او د هغه د راس المال نه ئې اوګټې او د يتيم د بالغ کيدو نه پس ربح خپله ساتلو سره صرف راس المال ورکړي. (والحديث اخرجه النسائي وابن ماجة، قاله المنذري)

## بَابُ مَا جَاءَ مَتَى يَنْقَطِعُ الْيُتْمُ

### د يتيم توب د عمر د حد بيان

[٢٨٧٣](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَدِينِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ خَالِدِ بْنِ سَعِيدِ بْنِ أَبِي مَرْيَمَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ بْنِ رُقَيْشٍ، أَنَّهُ سَمِعَ شُيُوخًا مِنْ بَنِي عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ، وَمِنْ خَالِهِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أَحْمَدَ، قَالَ: قَالَ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ: حَفِظْتُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُتْمَ بَعْدَ احْتِلَامٍ وَلَا صُمَاتَ يَوْمٍ إِلَى اللَّيْلِ.

علي رضي الله عنه د نبي عليه السلام نه روايت کوي چه د نبي عليه السلام نه مې ياد کړي ووچه فرمائيلي ئې وو نشته يتيم توب پس د احتلام نه او نه خاموشي شته پوره ورځ ترشپې پورې.

﴿ لا يتم بعد احتلام، ولا صمات يوم الى الليل ﴾

علي رضي الله عنه فرمائي چه ماته د رسول الله صلى الله عليه وسلم دا حديث ښه ياد دې چه د هغې ترجمه دا ده چه د احتلام نه پس يتيم، يتيم نه پاتې کيږي بلکه په هغه باندې د بالغين احکام جاري کيږي، او ګويا د ولي توليت د هغه نه لرې شي، هغه خپله د ځان او د خپل مال ذمه دار وي. او دويم خبره کومه چه ماته د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه محفوظ ده؟ دا ده چه د سحر نه مابنام پورې خاموش پاتې کيدل يعني صوم سکوت دا په سلام کښې نشته ﴿ لانه من عبادة الجاهلية ﴾ بلکه د اسلام تعليم خودا دې چه ذکر الله او کلمة الخير په ژبې سره اوئيلې شي.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي التَّشْدِيدِ فِي أَكْلِ مَالِ الْيَتِيمِ

### د يتيم د مال په خوړلو باندې د وعيد بيان

په حديث الباب کښې ناحق ديتيم مال خوراک لره په اووۀ کبائر چه هلاکونکې دي شمار کړې شوې دي.

[٢٨٧٤](٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الْهَمْدَانِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بِلَالٍ، عَنْ ثَوْرِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ أَبِي الْغَيْثِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "اجْتَنِبُوا السَّبْعَ الْمُوبِقَاتِ، قِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ وَمَا هُنَّ؟ قَالَ: الشِّرْكُ بِاللَّهِ، وَالسِّحْرُ، وَقَتْلُ النَّفْسِ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ، وَأَكْلُ الرِّبَا، وَأَكْلُ مَالِ الْيَتِيمِ، وَالتَّوَلِّي يَوْمَ الزَّحْفِ، وَقَذْفُ الْمُحْصَنَاتِ الْغَافِلَاتِ الْمُؤْمِنَاتِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: أَبُو الْغَيْثِ سَالِمٌ مَوْلَى ابْنِ مُطِيعٍ.

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي ځان بچ وساتئ دا وه هلاکونکو ګناهونونه عرض اوکړې شو چه هغه کوم ګناهونه دي وئې فرمائيل شريک

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠١٦٠) (صحيح)
(٢): صحيح البخاري/الوصايا ٢٣ (٢٧٦٦)، والطب ٤٨ (٥٧٦٤)، والحدود ٤٤ (٦٨٥٧)، صحيح مسلم/الإيمان ٣٨ (٨٩)، سنن النسائي/الوصايا ١١ (٣٧٠١)، (تحفة الأشراف: ١٢٩١٥) (صحيح)

جوړول د الله تعالى سره، او سحر کول، او وژل د هغه نفس دي کوم چه الله تعالى حرام کړي دي مګر په حق، او خوړل د سود دي، او خوړل د مال د يتيم، او په جهاد کښې د کافرو د مقابلې نه تښتيدل او تهمت وئيل په پاکو او نيکو ښځو باندې چه ناخبره وي او مومناني وي.

**شرح الحديث:**

﴿ اجتنبوا السبع الموبقات الخ ﴾ تولى يوم الزحف، د زحف نه مراد قتال او جنګ، يعنى د جنګ نه تيختنه کول. ﴿ وقذف المحصنات الغافلات ﴾ يعنى په پاکدامنو او ناخبره (ساده) زنانو باندې د زنا تهمت لګول، او په روستو روايت کښې داسې دى يا رسول الله ﷺ ما الكبائر؟ قال هن تسع فذكر معناه ﴿ وعقوق الوالدين المسلمين، واستحلال البيت الحرام قبلتكم احياء وامواتا ﴾ په دې حديث کښې د کبائرو تعداد رسول الله ﷺ نهه خودلې دي، د تيرو اووؤ نه علاوه د دوه نورو اضافه ده، عقوق الوالدين، او د كعبة الله استحلال يعنى د حرمت سپکاوې، کوم څيزونه چه په هغې کښې حرام کړې شوې دى د هغې نه نه بنديدل، وړاندې په روايت کښې دى چه هغه كعبه کومه چه ستاسو قبله ده د ژوندو دپاره هم او د مړو دپاره هم، پس په ژوند کښې انسان هغې طرف ته مخ کولو سره مونځ کوى، او د مرګ نه پس د مړى مخ لره هغې طرف ته متوجه کوى.

**په ګناهونو کښې د صغائرو او کبائرو بحث:**

په دې حديث کښې يو خو دا خبره معلومه شوه د ګناهونو تقسيم، يعنى بعض ګناهونه د شارع په نزد صغيره دى او بعض کبيره دى، دويم څيز د هغې تعداد، د جمهورو علماء کرامو رائې خو دا ده چه ګناه په دوه قسمه ده صغائر او کبائر، او بعض علماء کرام د دې تقسيم قائل نه دى، هغوى وائى چه د الله رب العالمين احكم الحاكمين هره يوه نافرمانى کبيره ګناه ده، خو د قرآن کريم او احاديثو د ظاهر نه د جمهورو د مسلک تائيد کيږى، او په حد د کبيره يعنى د دې په تعريف کښې د علماء کرامو اقوال مختلف دى، فقيل الكبيرة هى الموجبة للحد، وقيل ما يلحق الوعيد بصاحبه بنص الكتاب او سنة، يعنى د کومې ګناه په باره کښې چه په قرآن او حديث کښې څه وعيد راغلې وى، وقيل كل ذنب ادخل صاحبه النار وغير ذلک الى آخر ما فى البذل.

دويم څيز په حديث کښې تعداد د کبائرو دې، په ړومبى حديث کښې اووۀ او په دويم حديث کښې نهه بيان کړې شوې دې د دې نه علاوه هم په احاديثو کښې نور کبائر ذکر کړې شوې دى پس ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى ﴿ كل ما نهى الله تعالى عنه فهو كبيرة ﴾ او د هغوى نه تپوس اوکړې شوې وو چه آيا کبائر نهه دى نو هغوى اوفرمائيل هى الى سبعين يعنى د هغې تعداد اويا ته رسيږى او په يو روايت کښې د هغوى نه د اووۀ سوه لفظ دې.

علماء کرامو د کبائرو په نوم باندې مستقل تصنيفات هم کړې دى لکه الكبائر د امام ذهبى رحمه الله، الصغائر والكبائر لابن نجيم، الزواجر لابن حجر الهيثمى، الكبائر لابن عبدالوهاب (حديث ابوهريره رضى الله تعالى عنه اخرجه البخارى ومسلم والنسائى وحديث عمير رضى الله تعالى عنه اخرجه النسائى قاله المنذرى)

[۲۸۷۵]() حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ يَعْقُوبَ الْجُوزَجَانِيُّ، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هَانِئٍ، حَدَّثَنَا حَرْبُ بْنُ شَدَّادٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ سِنَانٍ، عَنْ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ حَدَّثَهُ وَكَانَتْ لَهُ صُحْبَةٌ، أَنَّ رَجُلًا سَأَلَهُ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا الْكَبَائِرُ؟ فَقَالَ: "هُنَّ تِسْعٌ"، فَذَكَرَ مَعْنَاهُ زَادَ، وَعُقُوقُ الْوَالِدَيْنِ الْمُسْلِمَيْنِ، وَاسْتِحْلَالُ الْبَيْتِ الْحَرَامِ قِبْلَتِكُمْ أَحْيَاءً وَأَمْوَاتًا.

عبيد بن عمير دخپل پلار عميرنه کوم چه صحابي دې روايت کوی يوکس دنبی ﷺ نه پوښتنه اوکړه چه اې دالله رسوله لوئې ګناهونه کوم کوم دي؟ نبی ﷺ اوفرمائيل هغه نبنه دي او دتيرشوي حديث په شان روايت ئې بيان کړو مګر ددې اضافي سره چه نافرمانی کول د مور او پلار چه مسلمانان وي او دکعبي دعزت خيال نه ساتل کوم چه دعزت والا کور دې او په مرګ او ژوند کښې ستاسو قبله ده.

# باب مَا جَاءَ فِي الدَّلِيلِ عَلَى أَنَّ الْكَفَنَ مِنْ جَمِيعِ الْمَالِ

## د کفن کپړه د مړی په مال کښې داخل ده

او په بعض نسخو کښې ﴿من راس المال﴾ يعنی د مړی د کفن تعلق د پوره مال سره دې، که پوره ترکه په دې کښې خرچ شی نو خرچ دې شی. لهذا کفن به مقدم وی په وصيت او ميراث په ټولو باندې، هم په دې سره د دې باب مناسبت هم د کتاب الوصية سره ظاهر شو.

[۲۸۷۶]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ خَبَّابٍ، قَالَ: مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ قُتِلَ يَوْمَ أُحُدٍ، وَلَمْ تَكُنْ لَهُ إِلَّا نَمِرَةٌ كُنَّا إِذَا غَطَّيْنَا بِهَا رَأْسَهُ خَرَجَتْ رِجْلَاهُ، وَإِذَا غَطَّيْنَا رِجْلَيْهِ خَرَجَ رَأْسُهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "غَطُّوا بِهَا رَأْسَهُ وَاجْعَلُوا عَلَى رِجْلَيْهِ مِنَ الْإِذْخِرِ".

د خباب نه روايت دې فرمائی چه مصعب بن عميره داحد په ورځ باندې شهيدشوې وو اوديوڅادرنه علاوه ورسره هيڅ نه وو کله چه به مونږ دده سر پټولو نو خپې به ئې ښکاره شوې اوچه خپې به موپټې کړې نوسر به ئې ښکاره شونبی ﷺ چه دا اوليدل نوئې فرمائيل چه سرئې پټ کړئ او په خپوباندې ئې سرګړې واچوئ.

﴿عن خباب رضی الله تعالى عنه قال : مصعب بن عمير قتل يوم احد ولم يكن له الانمرة الخ﴾

د ﴿قال﴾ فاعل ضمير مرفوع دې کوم چه خباب ته راجع دې، او مصعب په ترکيب کښې مبتداء او قتل د دې خبر دې. خباب ﷺ فرمائی چه مصعب بن عمير ﷺ په احد کښې په دې حال کښې شهيد کړې شو چه هغوی سره سوا د يو ورئ د څادر نه علاوه هيڅ هم نه وو، او هغه هم داسې وو چه که مونږ د هغوی سر پټولو نو د هغوی خپې ښکاره کيدې، او که خپې مو ورله پټولې نو سر ئې ښکاره کيدو، رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه دا د سر طرف ته کړئ، او په خپو ورته د سرګړې پانړې واچوې.

(والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری)

(): سنن النسائي/المحاربة ۳ (۴۰۱۷) (وعنده: «تسع»)، (تحفة الأشراف: ۱۰۸۹۵) (حسن)

(): صحيح البخاري/الجنائز ۲۷ (۱۲۷۶)، مناقب الأنصار ۴۵ (۳۸۹۷)، المغازي ۱۷ (۴۰۴۵)، ۲۶ (۴۰۸۲)، الرقاق ۷ (۶۴۳۲)، ۱۶ (۶۴۴۸)، صحيح مسلم/الجنائز ۱۳ (۹۴۰)، سنن الترمذي/المناقب ۵۴ (۳۸۵۳)، سنن النسائي/الجنائز ۴۰ (۱۹۰۴)، (تحفة الأشراف: ۳۵۱۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵/۱۰۹، ۱۱۲، ۶/۳۹۵) (صحيح)

## باب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يَهَبُ ثُمَّ يُوصَى لَهُ بِهَا أَوْيَرِثُهَا

**كه څوك يو څيزهبه كړي اوبيا ورته د ميراث يادوصيت په ذريعه بانديې ملاوشي**

[٢٨٧٧] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَطَاءٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ بُرَيْدَةَ، أَنَّ امْرَأَةً أَتَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: "كُنْتُ تَصَدَّقْتُ عَلَى أُمِّي بِوَلِيدَةٍ وَإِنَّهَا مَاتَتْ وَتَرَكَتْ تِلْكَ الْوَلِيدَةَ، قَالَ: قَدْ وَجَبَ أَجْرُكِ وَرَجَعَتْ إِلَيْكِ فِي الْمِيرَاثِ، قَالَتْ: وَإِنَّهَا مَاتَتْ وَعَلَيْهَا صَوْمُ شَهْرٍ أَفَيُجْزِءُ أَوْيَقْضِي عَنْهَا أَنْ أَصُومَ عَنْهَا قَالَ: نَعَمْ قَالَتْ: وَإِنَّهَا لَمْ تَحُجَّ أَفَيُجْزِءُ أَوْيَقْضِي عَنْهَا أَنْ أَحُجَّ عَنْهَا قَالَ: نَعَمْ".

دبريده رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه يوه ښځه دنبی عليه السلام په خدمت كښې حاضره شوه اووئې وئيل ماخپلې مور ته يوه وينځه هبه كړې وه اوهغه وفات شوه اودغه وينځه ترې پاتې شوه نبی عليه السلام اوفرمائيل ستادپاره اجرواجب شو او وينځه درته هم واپس شوه په ميراث كښې هغې اووئيل مورچه مې مړه كيده نود يوې مياشتې د روژو قضائې په ذمه باندې وه نوآيازه دهغې دطرف نه قضائې روژې اونيسم نووئې فرمائيل ضرور ئې ونيسه، عرض ئې اوكړو زمامور حج هم نه وو كړې نوآيازه دهغې دطرف نه حج كولې شم؟ نبی عليه السلام اوفرمائيل هو (دهغې دطرف نه حج وكړه).

**شرح الحديث:**

**قوله:** ﴿ عن عبدالله بن بريدة عن ابيه رضي الله عنه ان امراة اتت رسول الله ﷺ وقالت كنت تصدقت على امى بوليدة الخ ﴾: يعنى يو زنانه د رسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضره شوه او هغه عرض اوكړو چه زما د مور انتقال شوې دې او ما هغې ته په ژوند باندې يو وينځه هبه كړې وه او اوس هغې هغه وينځه په ميراث كښې پريخودله، يعنى آيا هغه زه اخستلې شم؟ نو رسول الله ﷺ اجازت وركړو او وې فرمائيل ستا اجر په خپل ځائې قائم دې او هغه تا ته په ميراث كښې واپس شوه. د جمهورو مسلک دا دې چه صدقه كړې شوې مال كه د ميراث په طور راشي نو هغې لره اخستل جائز دى، د بعض علماء كرامو په دې كښې اختلاف دې هغوى وائي چه د هغې د اخستلو نه پس صدقه كول ضرورى دى. (بذل)

بيا هم هغهزنانه دا سوال هم اوكړو چه زما د مور په ذمه د يوې مياشتې روژې هم دى نو آيا دا كافى ده چه د هغوى د طرف نه روژه اونيسم؟ هغوى اوفرمائيل : او..... او بيا هم دا سوال د حج په باره كښې وړاندې ذكر دې.

دا مسئله چه په عباداتو كښې نيابت جارى كيدې شى يا نه بالتفصيل كتاب الصوم او حج كښې تيره شوې ده. (والحديث اخرجه مسلم والترمذى والنسائى وابن ماجة قاله المنذرى)

## باب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يُوقِفُ الْوَقْفَ

**د كوم څيز د وقف كولو بيان**

**ذكر د وقف كښې د مصنفينو طرز عمل:**

دا باب د وقف سره متعلق دې كوم چه مصنف د كتاب الوصية په ضمن كښې راوړې دې.

١: انظر حديث رقم: (١٦٥٦)، (تحفة الأشراف: ١٩٨٠) (صحيح)

امام بخاري رحمه الله هم داسې کړې دی، او امام ترمذي رحمه الله د وقف باب د ابواب الاحکام په ضمن کښې اخستلې دې، او امام نسائي مستقل کتاب ﴿ کتاب الاحباس ﴾ په عنوان قائمولو باندې د هغې د لاندې ډير ابواب ذکر کړې دی او د هغې نه روستو ئې متصلا کتاب الوصايا ذکر کړې دې.

**د وقف په حقيقت کښې د امام صاحب رحمه الله او د جمهورو اختلاف:**

د دې نه پس په دې باندې ځان پوهول پکار دی چه د وقف حقيقت کښې د امام صاحب رحمه الله او د صاحبينو رحمهما الله اختلاف دې، او کوم مسلک چه د صاحبينو دې هم هغه د ائمه ثلاثه دې.
د وقف لغوی معنی د حبس ده او شرعا د دې تعريف داسې دې. ﴿ حبس العين علی ملک الواقف والتصدق بالمنفعة ﴾ يعنی اصل څيز لره په خپل ملکيت باندې باقی ساتلو سره د هغې منافع صدقه کول، په يو کس باندې يا په يو جماعت باندې، که هغه فقراء وی يا اغنياء، دا تعريف د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد دې او د صاحبينو په نزد د دې تعريف دا دې : حبس العين علی ملک الله تعالی والتصدق بمنفعتها....... يعنی د يو انسان خپل يو څيز لره د الله پاک ملکيت منلو سره د هغې د منفعت صدقه کول، د امام صاحب رحمه الله په نزد د واقف ملکيت وقف کړې شوې څيز باقی پاتې کيږی او د صاحبينو په نزد هغه څيز د مالک د ملکيت نه خارج شی، او بله دا چه وقف د امام صاحب په نزد جائز دې لازم نه دې په مثل د عارية دې. د واقف په حيات کښې هغه څيز د هغه په ملک کښې وی او د هغه د وفات نه پس ملک د ورثه شی بحيث يباع ويوهب، وکذا جاز رجوع الواقف عن الوقف في حياته مع الکراهة.... او د صاحبينو په نزد د واقف دپاره ابطال د وقف جائز نه دې بلکه هغه لازميږی، هم دغه شان په دې کښې ميراث هم نه جاري کيږی وعليه الفتوی (الدر المختار) د جمهور علماء کرامو او ائمة ثلاث مسلک هم دا دې.

[۲۸۷۸] (¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ ح وَحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ ح وَحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ ابْنِ عَوْنٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: أَصَابَ عُمَرُ أَرْضًا بِخَيْبَرَ فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: أَصَبْتُ أَرْضًا لَمْ أُصِبْ مَالًا قَطُّ أَنْفَسَ عِنْدِي مِنْهُ فَكَيْفَ تَأْمُرُنِي بِهِ قَالَ: "إِنْ شِئْتَ حَبَّسْتَ أَصْلَهَا وَتَصَدَّقْتَ بِهَا، فَتَصَدَّقَ بِهَا عُمَرُ أَنَّهُ لَا يُبَاعُ أَصْلُهَا وَلَا يُوهَبُ وَلَا يُورَثُ لِلْفُقَرَاءِ وَالْقُرْبَى وَالرِّقَابِ وَفِي سَبِيلِ اللَّهِ وَابْنِ السَّبِيلِ، وَزَادَ عَنْ بِشْرٍ، وَالضَّيْفِ ثُمَّ اتَّفَقُوا لَا جُنَاحَ عَلَى مَنْ وَلِيَهَا أَنْ يَأْكُلَ مِنْهَا بِالْمَعْرُوفِ وَيُطْعِمَ صَدِيقًا غَيْرَ مُتَمَوِّلٍ فِيهِ"، زَادَ عَنْ بِشْرٍ قَالَ: وَقَالَ مُحَمَّدٌ: غَيْرَ مُتَأَثِّلٍ مَالًا.

دعمر رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه عمر رضی الله عنه ته په خيبر کښې زمکه ملاوشوې وه هغه دنبی عليه السلام په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړواې دالله رسوله ماته يوه زمکه ملاوشوې ده چه دهغې نه ښه مال چرې ماته نه دې ملاوشوې په دې باره کښې ستاسو څه راې ده؟ نبی عليه السلام اوفرمائيل که چرې خوښه دې وي نوددې اصل پريږده او ددې نفع صدقه

(¹): صحيح البخاري/الشروط ۱۹ (۲۷۳۷)، والوصايا ۲۲ (۲۷٦٤)، ۲۸ (۲۷۷۲)، ۳۲ (۲۷۷۷)، صحيح مسلم/الوصايا ٤ (۱٦۳۲)، سنن الترمذي/الأحکام ۳٦ (۱۳۷۵)، سنن النسائي/الإحباس ۱ (۳٦۲۹)، سنن ابن ماجه/الصدقات ٤ (۲۳۹٦)، (تحفة الأشراف: ۷۷٤۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۵۵، ۱۲۵) (صحيح)

کړه عمر رضی الله عنه په دې باندې عمل اوکړو چه اصل زمکه به نه خرڅولې شي اونه به هبه کولې شي اونه به په وراثت کښې تقسیمولې شي اوددې نه به فقیران اومسکینان فائده حاصله وي اوهمدارنګې غلامان او مجاهدین مسافر اومیلمانه به ددې نه فائدې اخلي اوڅوك چه دوقف څیز اختیارمندوي نوهغه دې دې لره په مناسب طریقې سره استعمالوي اوپه خپلوغریبانانو ملګرودې اوخوروي داسې چه ددې نه مال جمع کونکې نه وي.

﴿ عن ابن عمر رضی الله عنهما قال اصاب عمر رضی الله عنه ارضا بخیبر فاتی النبی صلی الله علیه وسلم الخ ﴾

**مضمون د حدیث (وقف د عمر):**

مصنف په دې باب کښې دوه احادیث ذکر کړې دی د دواړو تعلق د عمر رضی الله عنه د وقف سره دې چا چه په خپلو دواړو زمکو ثمغ او صرمة ابن الاکوع د رسول الله صلی الله علیه وسلم د مشورې نه پس وقف کړې وې. په دې دواړو کښې رومبې حدیث خو لږ مختصر دې او په دویم مفصل چه په هغې کښې پوره وقف نامه یعنی کتاب الوقف ذکر دې، په رومبی حدیث کښې مضمون دا دې.

عمر رضی الله عنه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړو چه ما یو داسې زمکه حاصله کړې ده چه د هغې نه زیات نفیس مال ماته کله هم نه دې حاصل شوې، نو زه په دې څه اوکړم او څنګه ئې صدقه کړم په دې کښې ستاسو څه حکم دې؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه که ته غواړې نو اصل زمکه اوساته او د هغې منافع صدقه کړه، پس عمر رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د فرمان مطابق د هغې تصدق اوکړو په دې شرط سره ﴿ لا یباع اصلها ولا یوهب ولا یورث ﴾ چه اصل زمکه به نه خرڅولې شی او نه به په میراث کښې ورکولې شی، وړاندې د موقوف علیهم بیان دې ﴿للفقرآء والقربی والرقاب فی سبیل الله ﴾ د قربی نه مراد یا خو د واقف خپلوان دی، او کیدې شی چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم خپلوان مراد وی او د رقاب نه مراد فك رقاب یعنی د غلامانو آزادول وی او د مکاتبینو قرض ادا کول دی. ﴿ لا جناح علی من ولیها ان یاکل منها بالمعروف ﴾ یعنی دمتولی د وقف دپاره دا جائز دې چه د دې نه په معتاد او معروفې طریقې نه منتفع شی او پخپل دوست باندې هم اوخروی، خو دا دې نه وی چه په هغې کښې د خپل ځان دپاره کیخودلو سره جمع کړی، ګویا صرف د عادت مطابق د انفاق اجازت دې دجمع نه. ﴿غیر متاثل مالا ﴾ متاثل د اثله ء اخستلې شوې دې اثلهاصلې څیز ته وئیلې شی قال امرئ القیس ﴿ وقد یدرك المجد المؤثل امثالی ﴾ یعنی د وقف مال لره دې راس المال نه جوړوی.

د دې روایت نه په ظاهره دا نه معلومیږی چه په دې وقف کښې دا معلومیږی چه په دې وقف کښې دا شرطونه ﴿ لا یباع ولا یوهب ﴾ وغیره د عمر رضی الله عنه د طرف نه وو، او د بخاری د بعض روایتونو نه معلومیږی چه د دې شرطونو هدایت خپله رسول الله صلی الله علیه وسلم عمر رضی الله عنه ته کړې وو، د حافظ د کلام نه معلومیږی چه د دې شرطونو مرفوعا ثابت کیدل زیات صحیح دی ځکه چه د رفع والا روایت اتم او زیات واضح دې او صاحب تحفة الاخوذی ۵۲۲/٤ د روایتینو تعارض لیکلو نه پس دا توجیه کړې ده چه په دې دواړو کښې جمع په دې طریقه باندې ممکنه ده چه په کوم روایت کښې دا شرطونه د عمر طرف ته منسوب دی هغه روایتونه روستو دی اول خپله رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغه شرطونو هدایت فرمائیلې وو بیا عمر رضی الله عنه د رسول

الله ﷺ د حکم په تعمیل کښې هغه شرطونه اولیکل
دا دي او نه وئیلې شی چه دا حدیث د وقف په سلسله کښې د جمهورو او د صاحبینو موافق دې ځکه چه په دې کښې د ﴿لا يباع ولا يوهب ولا يورث﴾ وضاحت دې جمهور علماء کرام هم د وقف په باره کښې هم دا وائی او دا په دې وجه چه دا حدیث په دې خبره باندې دال نه دې چه دا امور د وقف په حقیقت کښې داخل دی هذا ما يخطر ببالي فليسئل... والله تعالى اعلم. (والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي وابن ماجة قاله المنذري)

[۲۸۷۹]() حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي اللَّيْثُ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ صَدَقَةِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: نَسَخَهَا لِي عَبْدُ الْحَمِيدِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ: بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ، هَذَا مَا كَتَبَ عَبْدُ اللَّهِ عُمَرُ فِي ثَمْغٍ فَقَصَّ مِنْ خَبَرِهِ نَحْوَ حَدِيثِ نَافِعٍ قَالَ: غَيْرَ مُتَأَثِّلٍ مَالًا فَمَا عَفَا عَنْهُ مِنْ ثَمَرِهِ فَهُوَ لِلسَّائِلِ وَالْمَحْرُومِ، قَالَ: وَسَاقَ الْقِصَّةَ قَالَ: وَإِنْ شَاءَ وَلِيُّ ثَمْغٍ اشْتَرَى مِنْ ثَمَرِهِ رَقِيقًا لِعَمَلِهِ وَكَتَبَ مُعَيْقِيبٌ وَشَهِدَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْأَرْقَمِ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ، هَذَا مَا أَوْصَى بِهِ عَبْدُ اللَّهِ عُمَرُ أَمِيرُ الْمُؤْمِنِينَ إِنْ حَدَثَ بِهِ حَدَثٌ، أَنَّ ثَمْغًا، وَصِرْمَةَ بْنَ الْأَكْوَعِ، وَالْعَبْدَ الَّذِي فِيهِ، وَالْمِائَةَ سَهْمٍ الَّتِي بِخَيْبَرَ، وَرَقِيقَهُ الَّذِي فِيهِ، وَالْمِائَةَ الَّتِي أَطْعَمَهُ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْوَادِي تَلِيهِ حَفْصَةُ مَا عَاشَتْ، ثُمَّ يَلِيهِ ذُو الرَّأْيِ مِنْ أَهْلِهَا أَنْ لَا يُبَاعَ وَلَا يُشْتَرَى يُنْفِقُهُ حَيْثُ رَأَى مِنَ السَّائِلِ وَالْمَحْرُومِ وَذَوِي الْقُرْبَى وَلَا حَرَجَ عَلَى مَنْ وَلِيَهُ إِنْ أَكَلَ أَوْ آكَلَ أَوِ اشْتَرَى رَقِيقًا مِنْهُ.

دیحی بن سعیدنه روایت دې وائی چه عبد الحمید بن عبد الله بن عبد الله بن عمر بن الخطاب زما دپاره لیکلې وو «بسم الله الرحمن الرحیم» داهغه کتاب دې کوم چه عبد الله بن عمر رضي الله عنه لیکلې وو دسمغ په باره کښې سمغ دهغه مال یاباغ نوم دې کوم چه عمر رضي الله عنه په مدینه کښې یابه خیبرکښې وقف کړې دې اوبیا ئې حدیث بیان کړو دپورتني روایت په شان یعنی مال جمع کولو والا به نه وی اوکومه میوه چه ددې نه راپریوځي نوهغه دفقیرانودپاره ده اودسوال کونکودپاره اودنه سوال کونکو دپاره، اوددې نه پس ئې قصه بیان کړه که چرې دسمغ متولي اوغواړی نوهغه ددې دمیوو دقیمت په بدل کښې غلام اغستلې شي «دباغ دخدمت دپاره»معیقیب لیکل اوکړل عبد الله بن ارقم شهادت اوکړو، چه دا دهغه وصیت تحریردې کوم چه دالله دبنده عمر وو که چرې ماته څه حادثه پیښه شي نوثمغ اوصرمه بن اکوع اوهلته چه کوم غلامان دي اوسل حصې دي په دغه علاقه کښې کوم چه خیبرته نزد پروت دې دغه ټول ماته نبی علیه السلام راکړي وو ددې ټولو متولي بن حفصه پاتې شي ترڅوچه ژوندې وي ددې نه پس چه څوک په دوی کښې صاحب الراي وي هغه به متولي وي په دې شرط چه دامال به نه شی خرڅولې اونه اخستلې او چرته چه مناسب ښکاره شي نوسوال کونکو او محرومو او ریښته داروباندې دې ئې خرڅ کړي اوڅوک چه دوقف مال متولي وي نوددې دپاره هیڅ قسم خرج نشته چه ددې نه خوراك اوکړي یاترې چاله ورکړی یاددې دامدن نه دې وقف مال حفاظت اوکړي اودخدمت دپاره غلام وغیره واخلي

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۵۸۹) (صحيح)

﴿عن یحیی بن سعید عن صدقة عمر بن الخطاب رضی الله عنه قال نسخها عبدالحمید ابن عبدالله بن عبدالله بن عمر بن الخطاب بسم الله الرحمن الرحیم هذا ما کتب عبدالله عمر فی ثمغ، فقص من خبره نحو حدیث نافع قال غیر متاثل ما لافما عفا عنه من ثمره فهو للسائل والمحروم﴾

## د کتاب الوقف شرح:

یحيٰ بن سعید روایت کوی د عمر رضی الله عنه د وقف په باره کښې چه هغه وقف نامه ئې ماته لیکلې راکړه یعنی د هغې نقل د عبدالله بن عمر رضی الله عنهما نمسی عبدالحمید، وړاندې د هغه کتاب الوقف (وقف نامې) عبارت دې. په دې عبارت کښې عمر، عبدالله نه بدل واقع شوې دې. ترجمه به دا وی دا هغه څیز دې کوم لله چه د الله بنده عمر لیکی د ثمغ په باره کښې، وړاندې مصنف د حوالې په طور وائی چه بیا یحيٰ بن سعید رحمه الله وړاندې د وقف په سلسله کښې هم دغه شان ذکر کړل لکه چه د دې نه مخکښې د نافع په روایت کښې راغلې وو او د یحيٰ په ورایت کښې غیر متاثل مالا دې، بیا په دې روایت کښې کوم چه د تیر شوی روایت نه زیات دې لره روایت کوی او هغه دا دې چه څه هم په دې ذکر کړې شوې مصارفو کښې د خرچ کولو نه پس بچ شی نو د هغې په میوو کښې خو د سائل او محروم ټولو دپاره دی. ﴿قال وساق القصة﴾ یعنی راوی نور هم څه بیان کړل، دغه شان هلته وائی چرته چه اختصار کول مقصود وی لکه چه الی اخره وئیلې شی وړاندې دا دی چه که د ثمغ متولی غواړی نو د هغه زمکې په امدنئ کښې د زمکې د خدمت او کار دپاره غلام اخستلې شی. ﴿وکتب معیقیب وشهد عبدالله بن الارقم﴾ یعنی دې وقف نامې لره لیکونکې معیقیب دې رضی الله عنه او گواه عبدالله بن الارقم دې، د لیک په آخر کښې لکه چه څنګه کاتب خپل نوم لیکی دا هم هغه دې، معیقیب د عمر رضی الله عنه خزانچی او منشی وو.

﴿بسم الله الرحمن الرحیم هذا ما اوصٰی به عبدالله عمر امیر المومنین ان حدث به حدث ان ثمغا وصرمة بن الاکوع الخ﴾: په ظاهره [1] دا د وقف نامې اصل او مسلسل عبارت دې، پورته چونکه مصنف د وقف نامې عبارت شروع کولو سره اختلاف د روایاتو بیانولو هلته پوره عبارت نه شو راتلې په دې وجه دلته هغه پوره عبارت نقل دې (هذا ما فهمت والله تعالی اعلم)

صرمة ابن الاکوع هم د ثمغ په شان د زمکې نوم دې. [2]

﴿والمائة التی اطعمه محمد صلی الله علیه وسلم بالوادی﴾ یعنی او هغه سل حصې (هغه هم په وقف کښې شاملوو) کومې چه ماته یعنی عمر رضی الله عنه ته رسول الله صلی الله علیه وسلم راکړې وې په وادئ کښې، د وادئ نه مراد وادی القرای ده کومه چه د مدینې او د تبوک ترمینځه ده.

﴿تلیه حفصة ما عاشت﴾ یعنی د هغه وقف تولیت به زما د لور حفصه رضی الله عنها دپاره وی ترڅو چه هغه ژوندئ وی بیا د هغې په خاندان کښې چه څوک د رائې خاوند وی.

---

[1] ، د دې د لیکلو ضرورت په دې وجه راپیښ شو چه دلته په عبارت کښې په ظاهره تکرار محسوسیږی.

[2] ، او صرمة بن قیس د یو انصاری صحابی رضی الله عنه نوم دې کوم چه د کتاب الصوم په شروع کښې تیر شوې دې، او د دې نه مخکښې ابواب الاذان ﴿احیلت الصلاة ثلاثة احوال﴾ د لاندې فتذکر.

## باب ما جاء في الصدقة عن الميت

### د مړی د طرف نه د ایصال ثواب دپاره د صدقې ورکولو بیان

[۲۸۸۰]()حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْمُؤَذِّنُ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ يَعْنِي ابْنَ بِلَالٍ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أُرَاهُ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِذَا مَاتَ الْإِنْسَانُ انْقَطَعَ عَنْهُ عَمَلُهُ إِلَّا مِنْ ثَلَاثَةِ أَشْيَاءَ مِنْ صَدَقَةٍ جَارِيَةٍ، أَوْ عِلْمٍ يُنْتَفَعُ بِهِ، أَوْ وَلَدٍ صَالِحٍ يَدْعُو لَهُ".

ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دی فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی کله چه یو انسان مړ شي نو دده عمل منقطع کیږی لیکن دری عملونه داسي دي دکومو چه اجرنه منقطع کیږی یو صدقه جاریه ده اودویم هغه علم دې دکوم نه چه خلق فائده واخلي اوبل نیك اولاد کوم چه دمور او پلار دپاره دعاغواړي

### شرح الحديث:

**قوله:** ﴿ اذا مات الانسان انقطع عنه عمله الا من ثلاثة اشياء من صدقة جارية او علم ينتفع به او ولد صالح يدعو له ﴾: یعنی د انسان په مرګ باندې د هغه ټول عملونه منقطع شی. هم دغه شان د ثواب سلسله ئې هم منقطع شی په انقطاع د عمل سره، خو په هغې کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم د دري عملونو استثناء اوفرمائیله چه هتله به سلسله د ثواب په انقطاع د عمل سره نه منقطع کیږی. ۱: صدقه جاریه یعنی داسې صدقه چه د هغې نفع په خلقو کښې جاری وی لکه اوقاف. ۲: داسې علم چه د هغې نه خلق فائده اخلی لکه تعلیم او تصنیف، قال التاج السبکی التصنیف اقوی من التعلیم لطول بقائه. ۳: نیک ولد کوم چه د خپل پلار دپاره دعا کوی، د صالح نه مراد مومن دې کما قال ابن حجر مکی، زمونږ یو استاد به فرمائیل مولانا امیر احمد کاندهلوی رحمه الله چه د ﴿ یدعو له ﴾ قید احترازی نه دې اتفاقی دې ځکه چه د انسان مومن اولاد د هغه دپاره هسې هم صدقه وی که دعا کوی او که نه کوی.

مصنف رحمه الله ترجمه قائم کړه صدقة عن المیت، په دې کښې د ایصال ثواب برائې موتی مسئله ده (۲) په دې باندې کلام په کتاب الزکوة باب فی فضل سقی الماء کښې تیر شوې دی، په دې مسئله باندې دلته په بذل کښې هم تفصیلی کلام کړې شوې دې که څوک کتل غواړی او دې ګوری. (والحديث اخرجه مسلم والترمذی والنسائی قاله المنذری)

## باب ما جاء فيمن مات عن غير وصية يتصدق عنه

### بیان دهغه کس چه بغیر د وصیت نه وفات شي دهغه د طرف نه صدقه کول څنګه دي؟

[۲۸۸۱]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ امْرَأَةً قَالَتْ: "يَا

---

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٠٢٦)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الوصايا ٣ (١٦٣١)، سنن الترمذي/الأحكام ٣٦ (١٣٧٦)، سنن النسائي/الوصايا ٨ (٣٦٨١)، مسند احمد (٣١٦/٢، ٣٥٠، ٣٧٢) (صحيح)

[2]) دردير ١٠/٢ الشرح الكبير ج ٤٢٣/١)

[3]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٨٨٣)، وقد اخرجه: صحيح البخاري/الوصايا ١٩ (٢٩٦٠)، صحيح مسلم/الزكاة ١٥ (١٠٠٤)، الوصية ٢ (١٦٣٠)، سنن النسائي/الوصايا ٧ (٣٦٧٩)، سنن ابن ماجه/الوصايا ٨ (٢٧١٧)، موطا امام

رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّ أُمِّي افْتُلِتَتْ نَفْسُهَا وَلَوْلَا ذٰلِكَ لَتَصَدَّقَتْ وَأَعْطَتْ أَفَيُجْزِءُ أَنْ أَتَصَدَّقَ عَنْهَا؟ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: نَعَمْ فَتَصَدَّقِي عَنْهَا".

دام المومنين عائشي رضي الله عنها نه روايت دې چه يوې زنانه دنبي عليه السلام په خدمت کښې عرض اوکړو زما مور په ناڅاپي مرګ باندې مړه شوه که چرې ناڅاپه نه وې مړه شوې نو دالله په لارکښې به په څه ورکړې وو ايا زه دهغې دطرف نه صدقه اوکړم اوهغې ته به اجرملاو شي؟ نبي عليه السلام اوفرمائيل هو، ته دهغې دطرف نه صدقه کوه.

[۲۸۸۲](¹) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، حَدَّثَنَا زَكَرِيَّا بْنُ إِسْحَاقَ، أَخْبَرَنَا عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَجُلًا قَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّ أُمِّي تُوُفِّيَتْ أَفَيَنْفَعُهَا إِنْ تَصَدَّقْتُ عَنْهَا؟ فَقَالَ: نَعَمْ، قَالَ: فَإِنَّ لِي مَخْرَفًا وَإِنِّي أُشْهِدُكَ أَنِّي قَدْ تَصَدَّقْتُ بِهِ عَنْهَا.

دابن عباس رضي الله عنه نه مروي دي چه يوکس دنبي عليه السلام په خدمت کښې حاضر شو اوعرض ئې اوکړو چه اې دالله رسوله زمامور وفات شوې ده که چرې زه دهغې دطرف نه صدقه اوکړم نوایاهغې ته به ثواب اورسيږي؟ نبي عليه السلام اوفرمائيل ضرور يعنې دصدقې ثواب ورته رسيږي دي بس عرض اوکړو چه زماسره يوباغ دې اوزه تاګواه کوم چه دغه باغ ما دخپلې مور دطرف نه صدقه کړو.

ترجمه او حديث الباب ظاهر دي چه تشريح ته نه دي محتاج.

(حديث عائشة رضي الله عنها اخرجه النسائي وابن ماجة، وحديث ابن عباس رضي الله عنهما اخرجه البخاري والترمذي والنسائي، قاله المنذري)

## بَابُ مَا جَاءَ فِي وَصِيَّةِ الْحَرْبِيِّ يُسْلِمُ وَلِيُّهُ أَيَلْزَمُهُ أَنْ يُنْفِذَهَا

**مسلمان دې د مړ کافر وصيت نه پوره کوي**

يعنې که يو کافر يو وصيت کولو سره مړ شي او حال دا چه د هغه وارث مسلمان شي نو آيا په دې صورت کښې په دې مسلمان وارث باندې دا لازم دی چه د دې کافر پلار وصيت پوره کړي.

د دې سوال جواب دا دې چه په هغه باندې د وصيت پوره کول لازم نه دی لکه چه د حديث الباب نه په فهم کښې راځي حديث الباب دا دې.

[۲۸۸۳](²) حَدَّثَنَا الْعَبَّاسُ بْنُ الْوَلِيدِ بْنِ مَزْيَدٍ، أَخْبَرَنِي أَبِي، حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ، حَدَّثَنِي حَسَّانُ بْنُ عَطِيَّةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ الْعَاصَ بْنَ وَائِلٍ أَوْصَى أَنْ يُعْتَقَ عَنْهُ مِائَةُ رَقَبَةٍ، فَأَعْتَقَ ابْنُهُ هِشَامٌ خَمْسِينَ رَقَبَةً، فَأَرَادَ ابْنُهُ عَمْرٌو أَنْ يُعْتِقَ عَنْهُ الْخَمْسِينَ الْبَاقِيَةَ، فَقَالَ: حَتَّى أَسْأَلَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّ أَبِي أَوْصَى بِعِتْقِ مِائَةِ رَقَبَةٍ، وَإِنَّ هِشَامًا أَعْتَقَ عَنْهُ خَمْسِينَ وَبَقِيَتْ عَلَيْهِ خَمْسُونَ رَقَبَةً، أَفَأُعْتِقُ عَنْهُ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّهُ لَوْ كَانَ مُسْلِمًا فَأَعْتَقْتُمْ عَنْهُ، أَوْ

---

مالك/الأقضية ٤١ (٥٣)، مسند احمد (٥١/٦) (صحيح)

¹): صحيح البخاري/الوصايا ٢٠ (٢٧٧٠)، سنن الترمذي/الزكاة ٣٣ (٦٦٩)، سنن النسائي/الوصايا ٨ (٣٦٨٥)، (تحفة الأشراف: ٦١٦٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٧٠/١) (صحيح)

²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٦٧٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٨١/٢) (حسن)

تَصَدَّقْتُمْ عَنْهُ، أَوْ حَجَجْتُمْ عَنْهُ" بَلَغَهُ ذَلِكَ.

عمرو بن شعیب دخپل پلارنه اوهغه دده دنیکه نه روایت کوی فرمائی چه عاص بن وائل وصیت کړي وو چه زمادطرف نه به سل غلامان ازاد کړئ نودده ځوی هشام پنځوس غلامان ازاد کړل دده بل ځوي عمرو غوښتل چه داباقی پاتې پنځوس دې ازاد کړي. نوونې وئیل یوځل به دنبی ﷺ نه تپوس کوم دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اوعرض ئې اوکړو اې دالله رسوله زماپلار دسلو غلامانو په ازادولوباندې وصیت کړې وو هشام دهغه دطرف نه پنځوس ازاد کړل او پنځوس پرې باقی دي ایاداباقی پاتې پنځوس زه ازاد کړم؟ نبی ﷺ اوفرمائیل که چرې ستاسو پلار مسلمان وې نوتاسوبه دهغه دطرف نه غلامان ازاد کړي وې یا خیرات به موکړې وې اویابه مودهغه دطرف نه حج کړې وې نوبیا ورته اجر ملاویدو.

﴿ان العاص بن وائل اوصى ان يعتق عنه مئة رقبة فاعتق ابنه هشام خمسين رقبة الخ﴾

یعنی عاص بن وائل چه کافر وو هغه اسلام قبول نه کړو اګر چه هغه د اسلام زمانه موندلې ده، هغه دا وصیت اوکړو چه د هغه د طرف نه سل غلامان ازاد کړې شی، نو د هغه یو ځوی هشام بن العاص رضی الله عنه خو پنځوس غلامان آزاد کړل او د هغه دویم ځوی عمرو بن العاص هم اراده اوکړه د باقی پنځوسو د آزادولو، نو هغه سوچ اوکړو چه اول دې د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړې شی، پس د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راتلو سره هغوی تپوس اوکړو او د هغوی په خدمت کښې ئې د خپل پلار د وصیت ذکر اوکړو او دا چه زما رور خو پنځوس د هغه د طرف نه آزاد کړل نو آیا باقی پنځوس زه د هغه د طرف نه آزاد کړم، رسول الله ﷺ اوفرمائیل که ستا پلار مسلمان وې او بیا تاسو د هغه د طرف نه غلام آزاد کړې وې یا صدقه کړې وې یا مو د هغه د طرف نه حج کړې وې نو بیا خو به د هغې ثواب هغه ته ملاویدو (خو په موجوده صورت کښې آزادول بیکاره دی) [1] اوګورئ اسلام څومره لوئې نعمت دې چه دهغې د وجې نه د مرګ نه پس هم مړی ته فوائد رسولې کیدې شی. ﴿ فالحمد لله الذی هدانا الاسلام ﴾

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يَمُوتُ وَعَلَيْهِ دَيْنٌ وَلَهُ وَفَاءٌ يُسْتَنْظَرُ غُرَمَاؤُهُ وَيُرْفَقُ بِالْوَارِثِ

### څوک چه د قرض د بوج سره مړ شی او مال ترې پاتې شوې وی نو د قرض دارو نه به د وارث دپاره مهلت اخستلې شی

یعنی که یو انسان په داسې حال کښې مړ شی چه د هغه په ذمه باندې قرض وی او هغه دومره مال پریخودلو سره هم مړی شی چه په هغې سره قرض ادا کیدې شو نو د هغه د قرض غوښتونکو نه دې مهلت طلب کړې شی او د وارث سره دې د نرمئ معامله اوکړې شی. دا ترجمه خو یا په طریقه د استفهام ده، په تقدیر د همزه استفهام او احتمال په دې کښې د

[1] مشکوة شریف د نصف اول دا آخری حدیث دې چه د هغې نسبت په هغې کښې صرف ابوداؤد ته دې

خبر هم دي (بذل)

[۲۸۸۴]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، أَنَّ شُعَيْبَ بْنَ إِسْحَاقَ حَدَّثَهُمْ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ وَهْبِ بْنِ كَيْسَانَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّهُ أَخْبَرَهُ، أَنَّ أَبَاهُ تُوُفِّيَ وَتَرَكَ عَلَيْهِ ثَلَاثِينَ وَسْقًا لِرَجُلٍ مِنْ يَهُودَ فَاسْتَنْظَرَهُ جَابِرٌ، فَأَبَى فَكَلَّمَ جَابِرٌ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَشْفَعَ لَهُ إِلَيْهِ، فَجَاءَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَلَّمَ الْيَهُودِيَّ لِيَأْخُذَ ثَمَرَ نَخْلِهِ بِالَّذِي لَهُ عَلَيْهِ فَأَبَى عَلَيْهِ، وَكَلَّمَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُنْظِرَهُ فَأَبَى، وَسَاقَ الْحَدِيثَ.

جابربن عبدالله نه روایت دي فرمائي چه زماپلار وفات شو اوديرش وسقه قرض ئې پريخودلې وو چه ديويهودي وو جابر ددغه یهودي نه مهلت اوغوښتو نوهغه انکار اوکړو جابرني علي السلام ته اووئيل چه دي یهودي ته زما دپاره سفارش اوکړه نونبی ﷺ راغې اوديويهودي سره ئې خبره کوله په دي باغ کښې چه څومره کجوري دي دادخپل قرض په بدل کښې واخله ده بياهم انکار اوکړو بیانبی ﷺ یهودي ته اووئيل چه جابر ته مهلت ورکړه ده بياهم انکار اوکړو راوي ددې نه پس پوره حديث بيان کړو.

﴿عن جابر رضي الله عنه انه اخبره ان اباه توفي وترک علیه ثلاثين وسقا لرجل من يهود الخ﴾

## د حديث دَين جابر رضي الله عنه شرح:

دې حديث ته دين جابر رضي الله عنه وائی، د هغوی د قرض قصه په روايتونو کښې مشهوره ده په بخاری کښې دا حديث په ډيرو ځايونو کښې دې، په کتاب البيوع، کتاب الصلح، کتاب الاستقراض، کتاب الهبة، كتاب الوصايا، علامات النبوة او الضيافة وغيره، کښې هم دغه شان په نسائی کښې هم بالتفصيل په ډيرو طرقو سره راغلې دې، چه د هغې خلاصه دا ده چه د جابر رضي الله عنه پلار عبدالله بن عمرو بن حرام رضي الله عنه د احد په جنګ کښې شهيد شوې وو او د هغوی په ذمه لکه چه د ابوداؤد په دې روايت کښې دی د يو یهودی ديرش وسقه کهجورې وې. حضرت په بذل کښې ليکلې دی چه د بخاری وغیره د روايت نه معلومیږی چه د هغوی قرض غوښتونکی ډير وو لهذا د ابوداؤد د روايت مطلب به دا اخستلې شی چه په هغه غرماء کښې ديرش وسقه کهجورې صرف د يو قرض غوښتونکی وې او د نورو قرض غوښتونکو چه کوم په ده باندې قرضونه وو هغه ددې نه علاوه وو غرض دا چه جابر رضي الله عنه اول خو د خپل پلار د قرض غوښتونکو سره د قرض د معاف کولو خبره اوکړه چه دا قرض پريخودلې شی، چه کله هغوی دا او نه منله نو بيا هغوی استنظار يعنى مهلت طلب کړو، چه کله هغوی د دې نه هم انکار اوکړو نو بيا د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او هغوی ته ئې عرض اوکړو چه تاسو لږ سفارش اوکړئ رسول الله ﷺ هغه قرض غوښتونکو ته د هغوی دپاره سفارش اوکړو، هغوی بيا هم او نه منله. جابر رضي الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ ماته اوفرمائيل لاړ شه باغ ته او کهجورې راوشوکوه او هر قسم کهجورې ځانله ځانله جمع کړه. يعنى هغه دې ګډې ودې نه کړې شی او کله چه ته دا ټول کار اوکړې نو بيا

[۱]: صحيح البخاري/البيوع ٥١ (٢١٢٧)، الاستقراض ٨ (٢٣٩٥)، ٩ (٢٣٩٦)، ١٨ (٢٤٠٥)، الهبة ٢١ (٢٦٠١)، الصلح ١٣ (٢٧٠٩)، الوصايا ٣٦ (٢٧٨١)، المناقب ٢٥ (٣٥٨٠)، المغازي ١٨ (٤٠٥٣)، سنن النسائي/الوصايا ٤ (٣٦٧٠)، سنن ابن ماجه/الصدقات ٢٠ (٢٤٣٤)، (تحفة الأشراف:٣١٢٦) (صحيح)

ماته خبر راکړه، جابر ﷜ فرمائی چه ما هم داسې اوکړل او د کهجورو ډیری لګولو نه پس مې رسول الله ﷺ ته خبر ورکړو، رسول الله ﷺ تشریف راوړو او په هغې ډیرو کښې په یو ډیری باندې کیناستلو او وې فرمائیل چه دې خلقو ته په ناپ ناپ سره کهجورې ورکول شروع کړه. هغه فرمائی ما هم هغه شان اوکړل او رسول الله ﷺ د برکت دعاء فرمائیله تردې چه د ټولو حق پورا ادا شو او زما د کهجورو حال دا وو چه ګویا د هغې نه بالکل څه هم نه دی اخستلې شوې، په یو روایت کښې دی چه مونږ دا ګڼړله چه زمونږ د باغ په څو کاله فصلونو باندې به دا قرض ادا شی، خو هغه د یو کال په فصل باندې ادا شو، او په روایت کښې دی چه زمونږ دوه باغونه وو یو وړوکې او یو لوئې، او دا ټول قرض په یو وړوکی باغ باندې ادا شو. ﴿ حتی وفینا جمیع حقه من اصغر الحدیقتین ﴾ او په یو روایت کښې دا هم دی چه کله د ټولو حقوق ادا شو نو رسول الله ﷺ جابر ﷜ ته اوفرمائیل چه لاړ شئ ابوبکر او عمر ﷠ ته هم د دې خبر ورکړه، هغوی فرمائی چه ما هغوی ته هم د دې خبر ورکړو هغوی دواړو اوفرمائیل چه مونږ د مخکښې نه پوهه وو چه هرکله رسول الله ﷺ پخپله باغ ته تشرف اوړی نو بیا به هم داسې کیږی، دا د رسول الله ﷺ ښکاره معجزه وه هم په دې وجه امام بخاری ﷫ دا په علامات النبوة کښې هم ذکر کړې ده. صلی الله تعالی علی سیدنا محمد واله وصحبه وسلم تسلیما کثیرا.

(والحدیث اخرجه البخاری والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری. وفی البذل والحدیث بتمامه مذکور فی البخاری ومسلم وغیرهما آهـ قلت لم اجده فی صحیح مسلم ولعله سبق قلم، والصواب بدله والنسائی فلیحرر)

# کتاب الفرائض

## د الله تعالی د مقرر کړې شوو حصو (میراث) بیان

## بَابُ مَا جَاءَ فِي تَعْلِيمِ الْفَرَائِضِ

### د علم میراث د زده کولو د فضیلت بیان

[۲۸۸۵]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ زِيَادٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ رَافِعٍ التَّنُوخِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "الْعِلْمُ ثَلَاثَةٌ وَمَا سِوَى ذَلِكَ فَهُوَ فَضْلٌ آيَةٌ مُحْكَمَةٌ، أَوْ سُنَّةٌ قَائِمَةٌ، أَوْ فَرِيضَةٌ عَادِلَةٌ".

عبدالله بن عمرو بن العاص ﷠ نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دي: ددین ضروري علم ددرې خیزونو دي او ددې نه علاوه ضروري نه دی یو آیات محکمات دي کوم چه منسوخ نه وي، اوبل صحیح حدیث اوبل دعلم فرائض مسائل دکوم په ذریعه چه دترکې صحیح تقسیم کیدې شي.

﴿ العلم ثلاثة وما سوی ذلک فهو فضل اية محکمة او سنة قائمة او فریضة عادلة ﴾

### شرح الحدیث:

یعنی علوم شرعیه معتبره درې دی. او د هغې نه علاوه چه کوم دی هغه د ضرورت نه زیاتی

[1]: سنن ابن ماجه/المقدمة ۸ (۵۴)، (تحفة الأشراف: ۸۸۷۶) (ضعیف)

او غیر ضروري دی وړاندې د هغه درېو بیان دې. ۱: ایات محکمه: یعني غیر منسوخه یا صریحه چه د تاویل احتمال نه لري. ۲: احادیث صحیحه ثابته ۳: فریضه عادله د فریضه نه مراد خو هغه احکام او اصول دي چه د هغې نه تقسیم بین الورثة په عدل سره یعني پوره پوره کیدې شي او دا خبره د علم الفرائض نه حاصلیږي او دویم احتمال دا دې چه د دې نه مراد مطلق هغه فرائض او احکام دي چه په هغې باندې عمل واجب دې، او د عادله نه مراد مساویه، یعني هغه احکام مستنبطه چه مساوي او موافق وي ﴿ما یوخذ من الکتاب والسنة﴾ والله تعالی اعلم. ففیه أشارة الی الاجماع والقیاس، لهذا په دې حدیث کښې د څلورو وارو ادله شرعیه کتاب وسنة واجماع وقیاس ذکر راغلو (۱) د دې حدیث په شرح کښې دا دواړه احتمالات د بذل او فتح الودود په حوالې سره لیکلې شوي دي، امام ترمذي د کتاب الفرائض په شروع کښې د ﴿باب فی تعلیم الفرائض﴾ د لاندې دا حدیث ذکر کړې دې ﴿عن ابی هریرة رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله ﷺ تعلموا الفرائض والقرآن وعلموا الناس فانی مقبوض وفی هامشه عن مجمع البحار قیل ای علم المیراث ولا دلیل علیه والظاهر ما فرض الله تعالی ویمکن ان یراد سننا صادرة منه مشتملة علی الاوامر والنواهی، ای تعلموا الکتاب والسنة﴾

## بَابٌ فِي الْكَلَالَةِ

### د کلاله بیان

کَلاله د جمهورو په نزد هغه مړې دې چه هغه پلار او بچې پریخودلو سره مړ نه شي یعني د هغه نه پلار وي او نه ځوئې، او په دې کښې دا هم وئیلې شوې دي هغه وارثان چه په هغوی کښې د مړي پلار او ځوئې نه وي، دا دواړه خو تقریبا یو دې، وقیل من لا والد له فقط وهو قول عمر رضی الله عنه او من له ا ولد ل فقط.

[۲۸۸۶](۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ الْمُنْكَدِرِ، أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرًا يَقُولُ: مَرِضْتُ فَأَتَانِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُودُنِي، هُوَ وَأَبُو بَكْرٍ مَاشِيَيْنِ وَقَدْ أُغْمِيَ عَلَيَّ فَلَمْ أُكَلِّمْهُ، فَتَوَضَّأَ وَصَبَّهُ عَلَيَّ فَأَفَقْتُ فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ كَيْفَ أَصْنَعُ فِي مَالِي وَلِي أَخَوَاتٌ؟ قَالَ: "فَنَزَلَتْ آيَةُ الْمَوَارِيثِ يَسْتَفْتُونَكَ قُلِ اللَّهُ يُفْتِيكُمْ فِي الْكَلَالَةِ سورة النساء آية ۱۷۶.

(۱) زما تقریر د ابوداؤد په یو کاپۍ کښې داسې ملاؤ شو: علوم شرعیه معتبره درې دی: ۱: آیات صریحه محکمه. ۲: احادیث صحیحه ثابته ۳: هغه احکام او فرائض کوم چه د قسمین اولین نه ماخوذ او مستنبط وي. (اشارة الي القياس والاجماع) العادلة یعني برابر یعني دا احکام او فرائض مستنبط په معتبر کیدو او واجب العمل کیدو کښې برابر دی د قسمین اولین، خو د مصنف مراد دا معنی نه ده بلکه دویمه معنه ئې مراد ده هغه دا چه د فریضه عادله نه مراد هغه احکام او اصول دی چه د هغې نه عدل بین الورثة في الحصص المعينة حاصل شي، او دا خبره د علم الفرائض نه حاصلیږي. وهذا المعني هم المطابق لغرض المصنف فمعني والعادلة علي الاول العادلة اي المستوية في الحجية وعلي الثاني بمعني العادلة في القسمة)

(۲): صحيح البخاري/تفسير النساء ۲۷ (۴۶۰۵)، المرضي ۵ (۵۶۵۱)، الفرائض ۱۳ (۶۷۴۳)، صحيح مسلم/الفرائض ۲ (۱۶۱۶)، سنن الترمذي/الفرائض ۷ (۲۰۹۷)، سنن ابن ماجه/الفرائض ۵ (۲۷۲۸)، (تحفة الأشراف: ۳۰۲۸)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الطهارة ۵۶ (۷۶۰) (صحيح)

دجابر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه زه یوځل سخت بیمارشوم نونبی علیه السلام په خپله او ابوبکرهم ورسره اوزمادعیادت دپاره پیدل راغلل ماورسره دبي هوشئ په وجه خبرې ونکړې نبی علیه السلام اودس وکړو او په مائي اوبه واړولې نو زه په هوش کښې شوم اوعرض مې وکړوچه اې دالله رسوله زه دخپل مال سره څه وکړم اوزماخویندې هم شته؟ نوپه دې وخت کښې د میراث آیت نازل شو: «يستفتونك قل الله يفتيكم في الكلالة».

﴿ انه سمع جابرا رضی الله تعالی عنه یقول مرضت فاتانی رسول الله ﷺ.......... یارسول الله ﷺ کیف اصنع فی مالی ولی اخوات قال فنزلت اية الميراث ﴾

## په وصیت کښې د حدیث جابر رضی الله عنه مضمون:

په دې باب کښې مصنف رحمه الله د جابر رضی الله عنه حدیث ذکر کړو چه په هغې کښې هغوی دا فرمائی چه یو ځل زه بیمار شوم نو رسول الله ﷺ زما تپوس ته راغلو نو زه هغه وخت بیهوشه اوم د رسول الله ﷺ سره مې خبرې اونکړې شوې، رسول الله ﷺ اودس اوفرمائیلو او د اودس نه پچ شوې اوبه یا غساله، (وبالاخير جزم الحافظ في الفتح كما في هامش البذل) ئې په ما باندې چړکاؤ کړې چه هغې سره زه په هوش کښې راغلم. هغه وخت ما هغوی ته عرض اوکړو چه یا رسول الله ﷺ زه په خپل مال کښې څه اوکړم؟ (یعنی که وصیت کول غواړم نو کولې شم) او زما په وارثانو کښې صرف زما خویندې دی، هغوی فرمائی چه په دې باندې آیت میراث نازل شو (د آیت دمیراث مصداق وړاندې مذکور دې) ﴿ يستفتونک قل الله يفتيكم فی الكلالة ﴾ او په بعض روایاتو کښې داسې دی: ﴿فنزلت يوصيكم الله فی اولادكم ﴾ او امام بخاری رحمه الله هم دې طرف ته اشاره فرمائیلې ده چه د آیت المیراث نه مراد ﴿ يوصيكم الله ﴾ دې.

## د جابر رضی الله عنه په باره کښې د کوم ایت نزول اوشو؟

بیا په دې باندې ځان پوهول پکار دی چه په دې باره کښې روایات مختلف دې چه د جابر رضی الله عنه په قصه کښې په دې دوه آیتونو کښې د کوم آیت کریمه نزول شوې دې. آیا هغه ﴿يوصيكم الله فى اولادكم ﴾ دې کوم چه د سورة النساء په شروع کښې ذکر شوې دې او ډیر مفصل دې د ټول وارثانو حصې په هغې کښې بیان کړې شوې دی. او د هغې په آخر کښې مجملا د کلاله ذکر هم دې، ﴿ وان كان رجل يورث كلالة او امرأة ﴾ او یا د دې مصداق ﴿يستفتونک قل الله يفتيكم فی الكلالة ﴾ دې کوم چه د سورة النساء په آخر کښې ذکر شوې دې چه په هغې کښې د کلاله د حکم بیان واضحه ذکر کړې شوې دې چه هغې ته آیة الصیف هم وئیلې شی پس د بعض روایتونو نه معلومیږی چه د دې مصداق اول سورة والا آیت دې او د بعض نه معلومیږی چه د دې مصداق د سورة آخری آیت دې، خو د جابر رضی الله عنه د حال مناسب چونکه هغه کلاله وو قول ثانی دې، حافظ رحمه الله فرمائی چه ابن العربی په دې سلسله کښې خپل شک ښکاره کولو سره آیت میراث ته ترجیح ورکړې ده یعنی ﴿ يوصيكم الله ﴾ بیا وړاندې حافظ خپله رائې لیکلې ده چه اولی دا ده چه داسې اوئیلې شی چه د جابر رضی الله عنه په قصه کښې د آیة الصیف نزول اوشو ﴿ يستفتونک قل الله يفتيكم فى الكلالة ﴾ او هم دغه شان

آیة المیراث د (یوصیکم الله) آخری ټکړه چه په هغې کښې د کلاله ذکر مجملا دې دا دواړه خو د جابر رضی الله عنه په قصه کښې نازل شو او د آیت میراث د شروع حصه دا د سعد بن الربیع د دوه ځامنو په قصه کښې نازل شوه (من البذل) زه وایم د سعد بن الربیع متعلق آیت په را روان باب کښې راځی چه په هغې کښې داسې دی ﴿عن جابر رضی الله عنه قال خرجنا مع رسول الله صلی الله علیه وسلم جئنا امرأة من الانصار فجاءت المرأة بابنتین فقالت یا رسول الله صلی الله علیه وسلم هاتان بنتا ثابت بن قیس (قال ابوداؤد : اخطاء بشر فیه انما هما ابنتا سعد بن الربیع) وافی اخره وقال نزلت سورة النساء یوصیکم الله فی اولادکم الایة (الحدیث) (والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة. قاله المنذری)

## بَابٌ مَنْ كَانَ لَيْسَ لَهُ وَلَدٌ وَلَهُ أَخَوَاتٌ[1]

### بیان دهغه چا چه صرف خوندې ئې وي او ځامن ئې نه وی

په دې باب کښې مصنف رحمه الله د جابر رضی الله عنه حدیث ذکر کړو، ځکه چه په جابر رضی الله عنه باندې دا روایت صادق راځی ﴿لیس له ولد وله اخوات﴾ او ﴿من لیس له ولد﴾ هم دا کلاله دې (په یو قول باندې) لهذا ړومبې باب او دا باب دواړه د کلاله سره متعلق دی، فالفرق بین الترجمتین بقوله ههنا وله اخوات، وهذا لیس بملحوظ فی الترجمة السابقة.

[۲۸۸۷](۲) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا كَثِيرُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ يَعْنِي الدَّسْتُوَائِيَّ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: اشْتَكَيْتُ وَعِنْدِي سَبْعُ أَخَوَاتٍ فَدَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَفَخَ فِي وَجْهِي فَأَفَقْتُ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَلَا أُوصِي لِأَخَوَاتِي بِالثُّلُثِ، قَالَ: أَحْسِنْ، قُلْتُ الشَّطْرَ، قَالَ: أَحْسِنْ، ثُمَّ خَرَجَ وَتَرَكَنِي فَقَالَ: يَا جَابِرُ لَا أُرَاكَ مَيِّتًا مِنْ وَجَعِكَ هَذَا، وَإِنَّ اللَّهَ قَدْ أَنْزَلَ فَبَيَّنَ الَّذِي لِأَخَوَاتِكَ فَجَعَلَ لَهُنَّ الثُّلُثَيْنِ، قَالَ: فَكَانَ جَابِرٌ يَقُولُ: أُنْزِلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ فِيَّ يَسْتَفْتُونَكَ قُلِ اللَّهُ يُفْتِيكُمْ فِي الْكَلَالَةِ سورة النساء آية ۱۷۶.

دجابر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه زه مریض شوم اوزماسره اوه خویندې وې نونبی علیه السلام زما خواته راغې اوزما مخ ته ئې پوکې اوکړو نو زه په هوش کښې شوم ما اووئیل اې دالله رسوله ایادخپلوخویندودپاره دخپل مال په دریمه حصه باندې وصیت اونکړم؟ راته ئې اوفرمائیل نیکي کوه ماووئیل ایا په نیم مال باندې وصیت اونکرم نبی علیه السلام اوفرمائیل نیکي کوه بیانبی علیه السلام روان شو اوزه ئې پریخودم اووئې فرمائیل اې جابره زماداخیال ئې

[1] تنبیه: مونږ د دې او د تیر شوی باب ترمینځه د تکرار نه د بچ کیدو دپاره فرق اګر چه ښکاره کړد خو دا باب په بعض نسخو کښې بالکل شته دې نه، بلکه د تیر شوی باب د لاندې ځلور احادیث ذکر کړې شوې دی. ۱: حدثنا احمد بن حنبل ۲: حدثنا عثمان بن ابی شیبة ۳: مسلم بن ابراهیم ٤: حدثنا منصور بن ابی مزاحم... کومې زمونږ د دې ترجمه ثانیه د لاندې راروان دی، او ځلور واړه روایات د ترجمة الباب مطابق دی. دویم اختلاف د نسخو دلته دا دې چه زمونږ په نسخه کښې د ترجمه ثانیه د لاندې چه کوم دریم حدیث دې حدثنا موسی بن اسمعیل او ځلورم حدثنا مسدد او پنځم حدثنا ابن السرح، په بعض نسخو کښې دا حدیث په راتلونکی باب یعنی ﴿باب ما جاء فی میراث الصلب﴾ د لاندې ذکر کړې شوې دې او کیدل هم داسې پکار دی چه ددې درې واړه روایتونو زمونږ د ترجمة الباب (من کان لیس له ولد وله اخوات) سره هیڅ مناسبت نشته بلکه د هغې منافی دی)

[2] تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۹۷۷)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبرى (۶۳۲۵)، مسند احمد (۳/۳۷۲) (صحيح)

چه ته ددی بیماری نه نه مري او الله تعالی خپل کلام نازل کړې دې اوستا دخویندو حصه ئې ښودلي ده ددې دپاره ئې په دريې حصو کښې دوه مقررکړې دی راوي وائی چه جابره به وئیل دا ايت کريمه: «يستفتونك قل الله يفتيكم في الكلالة» زما په باره کښې نازل شوې دې.

﴿ عن جابر رضی الله عنه قالت اشتكيت وعند سبع اخوات............ الا اوصی لاخواتی بالثلثين؟ قال احسن قلت الشطر؟ قال احسن ﴾

## شرح الحديث:

د حديث د ظاهری الفاظو نه معلوميږی چه جابر رضی الله عنه د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه آيا زه د خپلو خويندو دپاره د دوو ثلثو وصيت اوکړم؟ په دې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه نه بلکه د خپلو خويندو سره احسان اوکړه. هغوی عرض اوکړو چه د نصف وصيت اوکړم؟ رسول الله ﷺ بيا هم هغه شان اوفرمائيل..... احسن...... په دې حديث باندې په بادی الرائ کښې دوه اعتراضات کيږی اول دا چه د اخواتو دپاره وصيت چرته جائز دې هغوی خو وارثانې دی او د وارث دپاره وصيت نشته، دويم دا چه هغوی خو د ثلثينو د وصيت اجازت غوښتلو. رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ احسن الى الاخوات ﴾ په دې باندې هغوی د نصف د وصيت اجازت طلب کړو، په دې کښې احسان الى الاخوات کوم ځائې دې په دې کښې خو نور هم نقصان موندلې کيږی، د دې اشکال جواب دا دې چه اګر چه په باب د وصيت کښې لام په موصی له باندې داخليږی خو دلته په ﴿ لاخواتی ﴾ کښې لام د صلې نه دې او په موصی له باندې نه دې داخل بلکه دا لام اجليه دې يعنی ﴿ لاجل اخواتی ﴾، او مطلب دا دې چه زه چه تاسو نه د وصيت اجازت طلب کوم هغه د اخوات د موجود کيدو د وجې نه دې چونکه زما په وارثانو کښې زما خويندې موجود دی نو آيا د دوی په موجودګئ کښې د ثلثين وصيت کولې شم، ﴿ فزال الاشكال بحذافيره كذا سمعنا من الاساتذه ﴾ بيا په وړاندې روايت کښې دی: چه رسول الله ﷺ جابر رضی الله عنه ته اوفرمائيل زما دا خيال دې چه ته به په دې مرض کښې نه وفات کيږې.

**تنبيه:** د جابر رضی الله عنه کلاله کيدل او بيا د محدثينو د هغوی روايت لره په باب الکلالة کښې ذکر کول د هغوی د هغه موجوده حالت په اعتبار سره دې کوم چه د سوال په وخت وو ګينې چه روستو کله هغوی د دې مرض نه روغ شو نو وادۀ ئې اوکړو او اولاد ئې اوشو او تر ډيرې زمانې پورې ژوندې وو تردې چه په ۷۳ هجرئ کښې وفات شو هغه وخت د هغوی عمر څلور نوی (۹۴) کلونه وو وهو آخر من مات بالمدينة من الصحابة (كذا في التهذيب) والحديث اخرجه النسائي، قاله المنذری.

[۲۸۸۸] (۱) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: آخِرُ آيَةٍ نَزَلَتْ فِي الْكَلَالَةِ يَسْتَفْتُونَكَ قُلِ اللَّهُ يُفْتِيكُمْ فِي الْكَلَالَةِ سورة النساء آية ۱۷۶.

دبراء بن عازب نه روايت دې دکلاله په باره کښې چه کوم اخرى آيت نازل شوې دې هغه

(۱): صحيح البخاري/المغازي ٦٦ (٤٣٦٤)، والتفسير ٢٧ (٤٦٠٥)، ٣ (٤٦٥٦)، والفرائض ١٤ (٦٧٤٤)، صحيح مسلم/الفرائض ٣ (١٦١٨)، (تحفة الأشراف: ١٨٧٠)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/تفسير سورة النساء ٢٧ (٤٣٤٦) (صحيح)

دادي: «يستفتونك قل الله يفتيكم في الكلالة»)

﴿عن البراء بن عازب رضى الله تعالى عنه قال: اخر آيت نزلت فى الكلالة الخ﴾
نزلت....... د آيت صفت دې، يعنى آخرى آيت كريمه كوم چه د كلاله په باره كښې نازل شو هغه ﴿يستفتونک الخ﴾ دې، هم دې آيت كريمه ته آية الصيف وئيلې شى او كوم چه د سورة النساء په شروع كښې دې هغې ته آيت الشتاء وئيلې شى.

والحديث اخرجه البخارى ومسلم والنسائى قاله المنذرى

[۲۸۹۳](۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، حَدَّثَنِي أَبُو حَسَّانَ، عَنِ الْأَسْوَدِ بْنِ يَزِيدَ، أَنَّ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ، وَرَّثَ أُخْتًا وَابْنَةً فَجَعَلَ لِكُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا النِّصْفَ، وَهُوَ بِالْيَمَنِ وَنَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَئِذٍ حَيٌّ.

داسودبن يزيد رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه معاذبن - جبله خور اولورته ميراث په دې طريقه تقسيم كړو چه نيم مال ئې لور ته ملاؤ شو او نيم ئې خور ته، ځكه چه خور د لور سره عصبه جوړيږى، (اوهغه په يمن كښې وو، او د الله نبى صلى الله عليه وسلم دغه وخت ژوندې وو.

[۲۸۹۱](۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ عَقِيلٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى جِئْنَا امْرَأَةً مِنَ الْأَنْصَارِ فِي الْأَسْوَاقِ فَجَاءَتِ الْمَرْأَةُ بِابْنَتَيْنِ لَهَا، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ هَاتَانِ بِنْتَا ثَابِتِ بْنِ قَيْسٍ، قُتِلَ مَعَكَ يَوْمَ أُحُدٍ وَقَدِ اسْتَفَاءَ عَمُّهُمَا مَالَهُمَا وَمِيرَاثَهُمَا كُلَّهُ فَلَمْ يَدَعْ لَهُمَا مَالًا إِلَّا أَخَذَهُ، فَمَا تَرَى يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ فَوَاللَّهِ لَا تُنْكَحَانِ أَبَدًا إِلَّا وَلَهُمَا مَالٌ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَقْضِي اللَّهُ فِي ذَلِكَ قَالَ: وَنَزَلَتْ سُورَةُ النِّسَاءِ يُوصِيكُمُ اللَّهُ فِي أَوْلَادِكُمْ سورة النساء آية، الْآيَةَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ادْعُوا لِي الْمَرْأَةَ وَصَاحِبَهَا، فَقَالَ: لِعَمِّهِمَا أَعْطِهِمَا الثُّلُثَيْنِ، وَأَعْطِ أُمَّهُمَا الثُّمُنَ، وَمَا بَقِيَ فَلَكَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: أَخْطَأَ بِشْرٌ فِيهِ إِنَّمَا هُمَا ابْنَتَا سَعْدِ بْنِ الرَّبِيعِ، وَثَابِتُ بْنُ قَيْسٍ قُتِلَ يَوْمَ الْيَمَامَةِ.

دجابر بن عبد الله رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه يوځل مونږد نبى عليه السلام په ملګرتيا كښې روان وو تردې چه په اسواق مقام كښې د يوې ښځې سره ملا وشوهغې خپلې دوه لونړه راوستي اوعرض ئې وكړوچه اې دالله رسوله داد ثابت بن قيس لونړه دي كوم چه ستاسره په غزوه احد كښې شهيد شوي وو ددوى تره ددوى نه ټول مال اور اسباب اوتروړل او دوى ته ئې هيڅ پرې نخودل اوس ستاسويدې باره كښې څه راې ده؟ په الله قسم ددوى ودونه هم نه شى. كيدې ترڅوچه ددوى سره مال نه وى نبى عليه - السلام اوفرمائيل چه الله تعالى به ددې فيصله اوكړي ددې نه پس دا ايت كريمه: «يوصيكم الله في أولادكم» نازل شو، نبى عليه السلام دابښځه او ددې ليور راوغوښتونبى عليه السلام ددغه جينكوتره ته اورفرمائيل چه دوى ته په تركه كښې دوه ثلثه وركړه او مورته ئې اتمه حصه وركړه اوكوم چه پاتې شي هغه ته واخله، ابوداود وائى چه دبشرنه په روايت كښې غلطي شوي ده په اصل كښې دغه جينكۍ دسعد بن ربيع لونړه وي اوثابت بن قيس په غرزوه يمامه كښې شهيد شوې وو.

(۱): صحيح البخاري/الفرائض ٦، ١٢ (٦٧٣٤)، (تحفة الأشراف: ١١٣٠٧)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الفرائض ٤ (٢٩٢١) (صحيح)

(۲): سنن الترمذي/الفرائض ٣ (٢٠٩٢)، سنن ابن ماجه/الفرائض ٢ (٢٧٢٠)، (تحفة الأشراف: ٢٣٦٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٥٢/٣) (حسن)

﴿ فجاءت المراة بابنتين لها فقالت يا رسول اللهﷺ ﴾

د دي روايت ذکر مونږ سره په شروع کښي راغلي دي، مضمون د حديث دا دي چه د رسول اللهﷺ په خدمت کښي د سعد بن الربيع بي بي خپلي دوه لونړه پيش کړي او عرض ئي اوکړو چه دا دواړه د سعد بن الربيع لونړه دي چه هغه تاسو ﷺ سره په جنګ احد کښي وو او شهيد شوي وو، ددوی دواړو تره ددوی ټول مال او ميراث په قبضه کښي واخستلو، اوس څه اوکړي شی، بغير د مال نه به د دوی نکاح څنګه کولي شی رسول اللهﷺ د هغه زنانه خبره اوريدو سره اوفرمائيل چه الله پاک به د دي په باره کښي څه فيصله اوفرمائی. په دي باندي بيا د ميراث آيت ﴿ يوصيکم الله فی اولادکم ﴾ نازل شو، د دي آيت کريمه د نزول نه پس رسول اللهﷺ هغه زنانه لره او د هغي صاحب معامله راوغوښتل، او د هغوی د راتلو نه پس هغوی د هغه جينکو ترۀ ته اوفرمائيل چه دوه ثلث د ميراث دي دواړو ته ورکړه او ثمن د هغوی مور ته، چه څه پاتي شی هغه ستا دی. والحديث اخرجه الترمذی. قاله المنذری.

[۲۸۹۲]()حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ أَخْبَرَنِي دَاوُدُ بْنُ قَيْسٍ وَغَيْرُهُ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَقِيلٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ امْرَأَةَ سَعْدِ بْنِ الرَّبِيعِ، قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ سَعْدًا هَلَكَ وَتَرَكَ ابْنَتَيْنِ وَسَاقَ نَحْوَهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا هُوَ أَصَحُّ.

دجابر بن عبدالله نه روايت دي فرمائي چه دسعدبن ربيع ښځه دنبی عليه السلام په خدمت کښي حاضره شوه اوعرض ئي وکړو اي دالله رسوله سعد وفات شوي دي او دوه لونړه ئي پاتي شوي دي، اوباقی حديث ئي د تير حديث په شان بيان کړو. ابوداود وائی دا روايت کامل اودرست دي-

[۲۸۸۹]()حَدَّثَنَا مَنْصُورُ بْنُ أَبِي مُزَاحِمٍ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ يَسْتَفْتُونَكَ فِي الْكَلَالَةِ، فَمَا الْكَلَالَةُ؟ قَالَ: "تُجْزِيكَ آيَةُ الصَّيْفِ"، فَقُلْتُ لِأَبِي إِسْحَاقَ: هُوَ مَنْ مَاتَ وَلَمْ يَدَعْ وَلَدًا وَلَا وَالِدًا، قَالَ: كَذَلِكَ ظَنُّوا أَنَّهُ كَذَلِكَ.

دبراء بن عازب رضی الله عنه نه روايت دي فرمائي تونك يوکس د نبی عليه السلام په خدمت کښي حاضر شو اوعرض ئي اوکړو اي دالله رسوله په «يستفتونك في الكلالة» کښي دکلاله نه څه مراد دي؟ نبی عليه السلام اوفرمائيل ستادپاره هغه ايت کافی دي کوم چه ګرمئ کښي نازل شوي دي يعنی دسورة نساء ابتدائي ايت، راوي وائی مابواسحق ته اووئيل اياکلاله هغه دي د چا د مرګ نه پس چه نه پلار وي اونه څوي نوونئ فرمائيل هو، د خلقو هم داسي ګمان دي چه هغه دغسي وه.

قوله: ﴿ حدثنا منصور بن ابي مزاحم...... عن البراء بن عازب رضي الله عنه قال جآء رجل الى النبیﷺ الخ﴾: خطابی فرمائی چه الله پاک د کلاله په باره کښي دوه آيتونه نازل کړل يو د يخنئ په زمانه کښي او دا هغه آيت کريمه دي کوم چه د سورة النساء په شروع کښي دي چه په هغي کښي

[۱]): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۲۳٦٥) (حسن)

[۲]): صحيح مسلم/الفرائض ۲ عن عمر (۱٦۱۷)، سنن الترمذي/تفسير سورة النساء ۲۷ (۳۰٤۲)، (تحفة الأشراف: ۱۹۰٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۹۳/٤، ۲۹۵، ۳۰۱) (صحيح)

اجمال او ابهام دې بيا ئې دويم آيت كريمه نازل اوفرمائيلو د ګرمئ په زمانه كښې او دا هغه دې چه د سورة النساء په آخر كښې دې چه په هغې كښې تفصيل او وضاحت دې په دې وجه رسول اللهﷺ دې سائل ته هم د دې آية الصيف حواله وركړه چه هغه اولوله ستا دپاره به كافي شي.

## باب مَا جَاءَ فِي مِيرَاثِ الصُّلْبِ

### باب: د صلبی (حقیقی) اولاد د میراث بیان

[۲۸۹۰](۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ عَامِرِ بْنِ زُرَارَةَ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي قَيْسٍ الْأَوْدِيِّ، عَنْ هُزَيْلِ بْنِ شُرَحْبِيلَ الْأَوْدِيِّ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ، وَسَلْمَانَ بْنِ رَبِيعَةَ فَسَأَلَهُمَا، عَنِ ابْنَةٍ وَابْنَةِ ابْنٍ، وأخت لأب وأم، فقالا لابنته النصف، وللأخت من الأب، والأم النصف، ولم يورثا ابنة الإبن شيئا، وأت ابن مسعود فإنه سيتابعنا فأتاه الرجل فسأله وأخبره بقولهما، فقال لقد ضللت إذا وما أنا ولكني سأقضي فيها بِقَضَاءِ مِنَ الْمُهْتَدِينَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِابْنَتِهِ النِّصْفُ، وَلِابْنَةِ الِابْنِ سَهْمٌ تَكْمِلَةَ الثُّلُثَيْنِ، وَمَا بَقِيَ فَلِلْأُخْتِ مِنَ الْأَبِ وَالْأُمِّ.

دهزيل بن شرحبيل اودي نه روايت دې فرمائی چه يوكس ابوموسى اشعرى او سلمان بن ربيعه ته راغې اوتپوس ئې اوكړو په باره د يوې لور اوبوې نوسئ اودخورزې نو دوی دواړو ورته اووئيل چه دلوردپاره نيم مال دې اودخور دپاره نيم دې اودنوسئ هيڅ ميراث نشته او ورته ئې اووئيل ابن مسعود ته هم ورشه هغه به درته هم داسې فتوي دركوي نوهغه سړې ابن مسعوديه ته ورغې هغه ورته اووئيل كه چرې زه درته هم داسې جواب دركړم نوګمراه به شم اوپه هدايت به قائم پاتې نه شم ليكن ددې مسئلې متعلق به زه تاته هغه فتوي دركوم كوم چه نبی علیه السلام فرمائيلی دی اوهغه داده چه دلور دپاره نيم اودنوسئ دپاره شپږمه حصه دثلثينوپه مقداربانديې اوكوم چه پاتې شي هغه دحقيقي خورحصه ده ابوموسی وه چه دا واوريدل نووئې فرمائيل ترڅوچه دغه عالم په تاسوكښې موجود وي نو زمونږ نه دمسئلوتپوس مه كوئ بلكه ددوی په فتوي باندې عمل كوئ.

**مضمون الحديث:**

يو سړې ابو موسى اشعرىؓ ته كوم چه هغه وخت د عثمانؓ د طرف نه د كوفې امير وو او د سلمان ربيعه سره (چه د كوفې قاضي وو) راغلو او هغه د دې دواړو ه د فرائضو دا مسئله اوتپوسله چه يو سړې وفات شو او هغه يوه لور او يو نمسئ او يو حقيقي خور پريخودله دې دواړو دا فيصله اوفرمائيله چه نيم ميراث د لور دپاره دې ﴿ لقوله تعالى ان كانت واحدة فلها النصف ﴾ او نيمه د خور دپاره او نمسئ ته ئې هيڅ هم ورنكړل او هغه دواړو هغه سائل ته دا هم اوفرمائيل چه ابن مسعودؓ ته هم لاړ شه هغه به هم د دې مسئلې موافقت فرمائی، دا سائل د هغوی خدمت ته راغلو او د هغوی دواړو فيصله ئې ورته واوروله، هغوی اوفرمائيل ﴿ لقد ضللت اذا وما انا من المهتدين ﴾ چه كه زه فيصله

(۱): صحيح البخاري/الفرائض ۸ (۶۷۳۶)، سنن الترمذي/الفرائض ٤ (۲۰۹۳)، سنن ابن ماجه/الفرائض ۲ (۲۷۲۱)، (تحفة الأشراف: ۹۵۹٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۳۸۹، ٤۲۸، ٤٤۰، ٤٦۳)، سنن الدارمي/الفرائض ۷ (۲۹۳۲) (صحيح)

اوکړم نو زه به د نیغې لارې نه ګمراه شم، او بیا هغوی فیصله دا اوکړه چه نیمه د لور دپاره ده اوشپږمه حصه د نمسۍ دپاره ﴿ تكملة للثلثين ﴾ اوباقي يعنى ثلث د خور دپاره.

د ﴿ تكملة الثلثين ﴾ مطلب باندې سراجی لوستونکی (طالبان) پوهیږی چه د هغې حاصل دا دې چه په قرآن کریم کښې تصریح ده د دې خبرې چه که لور یوه وی نو د هغې دپاره نیم دې او که د یوې نه زیاتې وی نو بیا د هغوی حصه دوه ثلثه ده ﴿ لقوله تعالى فان كن نساء فوق اثنتين فلهن ثلثا ما ترك ﴾ دلته چونکه بنت یوه وه د کتاب الله د تصریح مطابق نصف خو د هغې شو او چونکه بنت الابن هم بنت ده خو لږه بعیده په دې وجه بنت ته د نصف ورکولو نه پس په ثلثین کښې چه کوم سدس باقی پاتې شوې وو هغه د دویمې درجې بنت ته ورکړې شو چه د مجموعه بنات حصه پوره دوه ثلثه شی او د دواړو آیتونو په مضمون باندې عمل راشی. هم دامطلب دې د﴿ تكملة للثلثين﴾. والحديث اخرجه البخارى والترمذى والنسائى وابن ماجة بنحوه، قاله المنذرى.

## بَابٌ فِي الْجَدَّةِ

### باب د نیا (د مور مور، یا د پلار مور) د میراث بیان

د جده نه مراد دلته د پلار مور او د مور مور دواړه مراد دی ځکه چه دواړه ذوی الفروض دی او د دواړو حصه هم یوه ده یعنی سدس، یعنی که په دواړو کښې یوه وی نو ځانله به شپږمه حصه اخلی او که دواړه وی نو په شپږمه حصه کښې به دواړه شریکې وی لکه چه په حدیث الباب کښې دی.

[۲۸۹۴] (¹)حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ إِسْحَاقَ بْنِ خَرَشَةَ، عَنْ قَبِيصَةَ بْنِ ذُؤَيْبٍ، أَنَّهُ قَالَ: جَاءَتِ الْجَدَّةُ إِلَى أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ تَسْأَلُهُ مِيرَاثَهَا، فَقَالَ: مَا لَكِ فِي كِتَابِ اللهِ تَعَالَى شَيْءٌ، وَمَا عَلِمْتُ لَكِ فِي سُنَّةِ نَبِيِّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا، فَارْجِعِي حَتَّى أَسْأَلَ النَّاسَ، فَسَأَلَ النَّاسَ، فَقَالَ الْمُغِيرَةُ بْنُ شُعْبَةَ: حَضَرْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْطَاهَا السُّدُسَ، فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: هَلْ مَعَكَ غَيْرُكَ؟، فَقَامَ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ فَقَالَ: مِثْلَ مَا قَالَ الْمُغِيرَةُ بْنُ شُعْبَةَ فَأَنْفَذَهُ لَهَا أَبُو بَكْرٍ، ثُمَّ جَاءَتِ الْجَدَّةُ الْأُخْرَى إِلَى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تَسْأَلُهُ مِيرَاثَهَا، فَقَالَ: مَا لَكِ فِي كِتَابِ اللهِ تَعَالَى شَيْءٌ، وَمَا كَانَ الْقَضَاءُ الَّذِي قُضِيَ بِهِ إِلَّا لِغَيْرِكِ، وَمَا أَنَا بِزَائِدٍ فِي الْفَرَائِضِ، وَلَكِنْ هُوَ ذَلِكَ السُّدُسُ فَإِنِ اجْتَمَعْتُمَا فِيهِ فَهُوَ بَيْنَكُمَا وَأَيَّتُكُمَا خَلَتْ بِهِ فَهُوَ لَهَا.

قبیصه بن ذویب وائی چه د مړی نیا (د مور مور) ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته په میراث کښې دخپلې حصې معلومات دپاره راغله، نو هغوی اووئیل د الله تعالی په کتاب (قرآن پاک) کښې ستا هیڅ حصه نشته، او ماته د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په سنت کښې هم ستا دپاره راته څه معلوم نه دی، ته لاړه شه زه به دخلقو نه تپوس کولو سره معلومه کړم تاته به اووائم، بیا هغوی دخلقو نه تپوس اوکړو نو مغیره بن شعبه رضی الله عنه اووئیل چه زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره ووم، هغوی صلی الله علیه وسلم هغې ته شپږمه حصه ورکړې وه، په دې باندې ابوبکر رضی الله عنه اووئیل: آیا تاسره بل هم څوک شته (چه هغه ددې معاملې نه خبروی)؟ نو محمد بن سلمه رضی الله عنه پاسیدو او

(¹): سنن الترمذي/الفرائض ۱۰ (۲۱۰۱)، سنن ابن ماجه/الفرائض ٤ (۲۷۲٤)، (تحفة الأشراف: ۱۱۲۳۲، ۱۱۵۲۲)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/ الفرائض ۸ (٤)، مسند احمد (٤/۲۲۵) (ضعيف)

هغوی هم دغه خبره اوکړه کومه چه مغیره رضي الله عنه کړې وه، نو ابوبکر رضي الله عنه دهغې دپاره دا خبره نافذ کړه، بیا د عمر رضي الله عنه په خلافت کښې نیا (د پلار مور) عمر رضي الله عنه ته راغله خپل میراث ئې غوښتلو، عمر رضي الله عنه اووئیل: د الله په کتاب (قرآن) کښې ستا د حصې ذکر نشته او مخکښې (د رسول الله صلی الله علیه وسلم او ابوبکر رضي الله عنه په زمانه کښې) چه کوم حکم شوې دې هغه د نیا (د مور مور) په معامله کښې شوې دې، زه دخپل طرفه په فرائضو (دمیراث په حصو) کښې څه نه شم زیاتولې، لیکن هم هغه شپږمه حصه ته هم واخله. که نیا (د مورمور) ئې هم وی نو تاسو دواړه (شپږمه حصه) تقسیم کړئ، او کومه یوه چه په تاسو کښې یواځې وی (یعنی صرف د مور مور وی یا صرف د پلار مور وی) نو هغې دپاره هم دغه شپږمه حصه ده.

## توضیح الحدیث

په دې ځای پوهول پکار دی چه ذوی الفروض یعنی هغه وارثان چه د هغوی حصې متعین دی هغوی دوه قسمونه دی اکثر خو هغه دی چه د هغوی د حصې وضاحت په کتاب الله کښې دې او بعض داسې دی چه د هغوی فرض او حصه د کتاب الله نه نه ده ثابته بلکه په حدیث کښې ده پس جده که ام الاب وی او که ام الام هم په دې دویم قسم کښې دی، پس په حدیث الباب کښې دی چه د یو مړی نیا د صدیق اکبر رضي الله عنه په خدمت کښې حاضره شوه د خپل میراث د طلب کولو دپاره، نو هغوی اوفرمائیل ﴿ ما لک فی کتاب الله شیٔ ﴾ یعنی په کتاب الله کښې ستا دپاره هیڅ حصه نه ده ذکر شوې او د یو حدیث نه هم ستا حصه ثابت ده که نه، دا زما په علم کښې نشته، خو زه به د دې په باره کښې د خلقو نه معلومات اوکړم، د هغوی په سوال کولو باندې مغیره بن شعبه رضي الله عنه عرض اوکړو چه زما مخکښې رسول الله صلی الله علیه وسلم نیا ته شپږمه حصه ورکړې ده، او محمد بن مسلمه رضي الله عنه هم د هغوی تائید اوفرمائیلو د دې دواړو صحابه کرامو په روایت باندې ابوبکرصدیق رضي الله عنه د دې حصې نفاذ اوفرمائیلو بیا وړاندې په روایت کښې دی چه بیا د عمر رضي الله عنه په زمانه کښې هم د دې مړی آخری جده راغله او خپل میراث ئې طلب کړو نو هغوی اوفرمائیل چه د جده صرف یو سدس دې که هغه ځانله وی نو ځانله دې واخلی، او که دوه وی (ام الاب او ام الام) نو هغه به پکښې مشترک وی.

د جده اطلاق چونکه په دواړو نیاګانو باندې کیږی او دواړو حکم هم یو دې په دې وجه دا به وئیلې شی چه که صدیق اکبر رضي الله عنه ته راتلونکې د دې مړی ام الاب وه نو فاروق اعظم رضي الله عنه ته راتلونکې به د هغه ام الام وی، او کیدې شی چه د دې عکس وی. والله تعالی اعلم والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجة. قاله المنذری

[۲۸۹۵](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ أَبِي رِزْمَةَ، أَخْبَرَنِي أَبِي، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ أَبُو الْمُنِيبِ الْعَتَكِيُّ، عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "جَعَلَ لِلْجَدَّةِ السُّدُسَ إِذَا لَمْ يَكُنْ دُونَهَا أُمٌّ".

دبریده ځوې دخپل پلارنه روایت کوی چه نبی علیه السلام دنیادپاره شپږمه حصه مقرر کړې ده

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۹۸۵) (ضعیف)

خوکله چه ددي دپاسه مور نه وي.

## باب مَا جَاءَ فِي مِيرَاثِ الْجَدِّ

### د نيکه د ميراث بيان

د جد نه مراد ابوالاب چه په ذوی الفروض کښې دي خو بالسنة نه بالکتاب، او د جد نه مراد ابوالام نه شی کیدې چه هغه ته جد فاسد وئيلې شی ځکه چه هغه په ذوی الارحام کښې دي چه د هغه په وارث جوړيدو کښې اختلاف دې او د هغه باب وړاندې را روان دې، د نيکهٔ ميراث د نيا په شان سدس دې.

[۲۸۹۶](¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: "إِنَّ ابْنَ ابْنِي مَاتَ فَمَا لِي مِنْ مِيرَاثِهِ، فَقَالَ: لَكَ السُّدُسُ فَلَمَّا أَدْبَرَ دَعَاهُ، فَقَالَ: لَكَ سُدُسٌ آخَرُ فَلَمَّا أَدْبَرَ دَعَاهُ، فَقَالَ: إِنَّ السُّدُسَ الْآخَرَ طُعْمَةٌ، قَالَ قَتَادَةُ: فَلَا يَدْرُونَ مَعَ أَيِّ شَيْءٍ وَرَّثَهُ قَالَ قَتَادَةُ: أَقَلُّ شَيْءٍ وَرِثَ الْجَدُّ السُّدُسُ".

دعمران بن حصين رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه يوسړي دنبی عليه السلام په خدمت کښې حاضر شو اوعرض ئې اوکړو چه زما نمسې وفات شوې دې اياز مادپاره دهغه په مال کښې څه حصه شته نبی عليه السلام اوفرمائيل ستاد پاره شپږمه حصه ده، هرکله چه روان شو نوواپس ئې راوغوښتو ورته ئې اوفرمائيل ستادپاره بل ثلث هم دې، هرکله چه دې بياروان شو نوواپس ئې راوغوښتو ورته ئې اوفرمائيل ستاد پاره بل ثلث تحفه ده قتاده وائی پته نه لګي چه په څه وجه ئې نيکه ته شپږمه حصه ورکړی ده قتاده وائی چه دنيکه په ميراث کښې کم ازکم شپږمه حصه ده.

﴿عن عمران بن حصين رضی الله عنه ان رجلا اتی النبی صلی الله علیه وسلم الخ﴾

### مضمون الحديث:

يو سړي د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو، يعنی د مړ کيدونکی نيکهٔ، هغه عرض اوکړو چه زما نمسیٔ مړ شوې دې ما ته به د هغه څومره ميراث ملاويږی، رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل سدس، چه کله هغه روان شو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه راطلب کړو او وې فرمائيل ستا دپاره يو سدس بل دې، بيا چه کله هغه روان شو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوی ته آواز اوکړو او وې فرمائيل چه دا دويم سدس ستا د معين حصې نه زيات دې

د نيکهٔ اصل حصه يعنی فرض خو سدس دې، او دلته سدس آخر چه کوم هغه ته ملاؤ شو هغه د تعصيب په طور باندې دې چه د هغې به په ظاهره شکل داسې وی چه مړ کيدونکی خپل نيکه پريخودلو او لونړو لره، د بنتين فرض دوه ثلثه دې نو باقی په يو ثلث کښې نصف يعنی سدس دا د نيکهٔ حصه وه هغه رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه ته ورکړه، او بيا چه کوم سدس بچ شو هغه هم روسل الله صلی الله علیه وسلم هغه ته ورکړه، او په شروع کښې ورته پوره ثلث ځکه ورنکړه چه هغه ته معلومه وی چه زما اصل فرض يو سدس دې.

¹): سنن الترمذي/الفرائض ۹(۲۰۹۹)، (تحفة الأشراف: ۱۰۸۰۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۲۸/۴، ۴۳۶) (ضعيف)

والحديث اخرجه الترمذي والنسائي، قاله المنذري.

[۲۸۹۷]() حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ يُونُسَ، عَنْ الْحَسَنِ، أَنَّ عُمَرَ قَالَ: "أَيُّكُمْ يَعْلَمُ مَا وَرَّثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْجَدَّ، فَقَالَ مَعْقِلُ بْنُ يَسَارٍ: أَنَا وَرَّثَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السُّدُسَ قَالَ: مَعَ مَنْ؟ قَالَ: لَا أَدْرِي، قَالَ: لَا دَرَيْتَ فَمَا تُغْنِي إِذًا؟".

دعمر رضي الله عنه نه روايت دې چه وئې فرمائيل په تاسو کښې چاته معلومه ده چه نبي عليه السلام نيکه ته څومره ميراث ورکړې دې نو معقل بن يسار رضي الله عنه اووئيل ماته، نبي عليه السلام ورته شپږمه حصه ورکړې وه عمر رضي الله عنه ورته اووئيل دکوم وارث سره؟ معقل اووئيل پته نشته، عمر رضي الله عنه اووئيل چه ته په څه پوهيږې او ددې پوهيدلو څه فائده ده؟

﴿عن الحسن ان عمر رضي الله عنه قال ايكم يعلم ما ورث رسول الله صلى الله عليه وسلم الجد الخ﴾

**مضمون الحديث:**

عمر رضي الله عنه يو ځل د حاضرين مجلس نه تپوس اوکړو چه په تاسو کښې چاته دا معلومه ده چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د نيکهٔ په ميراث کښې څومره حصه مقرر کړه، په دې باندې معقل بن يسار رضي الله عنه عرض اوکړو چه ماته معلومه ده چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د نيکهٔ حصه سدس لګولې ده، عمر رضي الله عنه تپوس اوکړو چه رسول الله صلى الله عليه وسلم نيکه ته سدس د کومو وارثانو په موجودګئ کښې ورکړو؟ په دې باندې معقل رضي الله عنه اووې چه دا خو ماته نه ده معلومه، عمر رضي الله عنه اوفرمائيل بيا تاته د دې هيڅ علم نشته، صرف دومره معلومول چه شپږمه ئې ورکړه دا مفيده نه ده، او دا په دې وجه چه په ميراث کښې ذوي الفروض ته د اصل حصې نه علاوه په بعض صورتونو کښې د عصبه کيدو په حيثيت سره څه زياتي هم ملاويږي لکه چه اوس پورته حديث کښې تير شو، نو ترڅو چه د ټولو وارثانو علم نه وي تر هغه وخته پورې خبره نه شي منقح کيدې.

په دې ځان پوهول پکار دي چه په ميراث الجد کښې يعنې د هغې په مقدار کښې د صحابه کرامو رضي الله عنهم اختلاف پاتې شوې دې، خپله د عمر رضي الله عنه نه هم په دې کښې مختلفې فيصلې نقل کړې شوې دي، په ابوداؤد کښې د کتاب الاشربة په شروع کښې د عمر رضي الله عنه دا حديث را روان دې، ﴿ثلث وددت ان النبي صلى الله عليه وسلم لم يفارقنا حتى يعهد الينا فيهن عهدا ننتهي اليه الجد والكلالة وابواب من ابواب الربا﴾ (ينظر البذل ٤/٣٣٩)

والحديث اخرجه النسائي، وابن ماجة بنحوه، قاله المنذري.

## بَابٌ فِي مِيرَاثِ الْعَصَبَةِ

### دعصباتو د ميراث بيان

ځان پوهول پکار دي چه د وراثت په اعتبار سره د وارثانو ترمينځه ترتيب داسې دې، اول ذوي الفروض، بيا العصبات النسبية، بيا العصبات السببية، يعني مولى العتاقة ځکه چه د وي عصبيت دنسب دوجې نه نه دې بلکه ديوبل سبب د وجې نه دې يعني عتاق ثم ذوي الارحام.

[1]: سنن النسائي/ الكبري (٦٣٣٥)، سنن ابن ماجه/الفرائض ٣ (٢٧٢٣)، (تحفة الأشراف: ١١٤٦٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٢٧) (صحيح)

عصبه هغه رشته دارو ته وائي چه د هغوی حصه ترلې شوې او متعین نه وی. (که وی نو هغوی ته ذوی الفروض وائی بلکه ذوی الفرض ته د ورکړې نه پس چه څه بچ شی هغه دې هغوی ته ورکړې شی.

[۲۸۹۸]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، وَمَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، وَهَذَا حَدِيثُ مَخْلَدٍ، وَهُوَ الْأَشْبَعُ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اقْسِمِ الْمَالَ بَيْنَ أَهْلِ الْفَرَائِضِ عَلَى كِتَابِ اللَّهِ، فَمَا تَرَكَتِ الْفَرَائِضُ فَلِأَوْلَى ذَكَرٍ".

دابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی مال په ذوي الفروض باندې تقسیم کړئ دالله دکتاب مطابق، بیاچه ددې نه څه پاتې شي نوهغه چاته ئې ورکړئ څوك چه مړي ته په رشته کښې ډیر نزدې وي.

﴿ عن ابن عباس رضی الله عنهما قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم اقسم المال بین اهل الفرائض علی کتاب الله، فما ترکت الفرائض فلا ولی ذکر ﴾ ([۲])

یعنی میراث دې اول په ذوی الفروض کښې تقسیم کړې شی د کتاب الله مطابق، پس ذوی الفروض ته د هغوی د حصو ورکولو نه پس چه څه پاتې شی هغه د مړی د نزدې رشته دارو دپاره دی، د دې نه مراد عصبه بنفسه دی کوم چه مروی وی، او د اولی معنی د اقرب ده چه اخستلې شوې دې د ﴿ ولی ﴾ نه په معنی د قرب. لکه چه د الله پاك قول دې ﴿ان اولی الناس بابرهیم للذین اتبعوه ﴾ وقوله علیه السلام ان اولی الناس بی یوم القیامة اکثرهم علی صلوة.........

یعنی د اولی نه مراد احق او ارجح نه دې، ځکه چه مونږ ته څه معلومه ده چه احق او ارجح څوک دې، او اقرب د نسب په لحاظ څوک دې دا هر څوک پیژنی. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة بنحوه، قاله المنذری

## بَابٌ فِي مِيرَاثِ ذَوِي الْأَرْحَامِ

### د ذوی الارحامو د میراث بیان

د ذوی الارحام تعریف دا لیکلې شوې دې چه د سړی هغه خپلوان چه د ذوی الفروض او عصبات نه علاوه دی.

### ترجمة الباب والا مسئله کښې د ائمة اختلاف او دلیل:

ځان پوهول پکار دی چه د ذوی الارحام په توریث کښې اختلاف دې د صحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعینو هم دغه شان د فقهاء کرامو ترمینځه هم، په امامانو کښې احناف او حنابله قائل دی، او شوافع او مالکیان قائل نه دی، وفی البذل ﴿ اما من نفی توریثهم استدل بایات المواریث

[۱]: صحيح البخاري/الفرائض ۵ (۶۷۳۲)، صحيح مسلم/الفرائض ۱ (۱۶۱۵)، سنن الترمذي/الفرائض ۸ (۲۰۹۸)، سنن ابن ماجه/الفرائض ۱۰ (۲۷۴۰)، (تحفة الأشراف: ۵۷۰۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۹۲/۱، ۳۱۳، ۳۲۵)، سنن الدارمي/الفرائض ۲۸ (۳۰۳۰) (صحيح)

[۲]) اي الاقرب في النسب الي المورث دون الابعد فان استووا اشتركوا واقرب العصبات البنون ثم بنوهم وان سفلوا، ثم الاب ثم الجد ابوالاب وان علوا، قال الخطابي اقرب العصبة الي الميت كالاخ والعم فان الاخ اقرب من العم، وكالعم وابن العم، فالاول اقرب من الثاني اهـ (عون المعبود)

بان الله سبحانه لم يذكر لذوى الارحام شيئا وما كان ربك نسيا وايضا توريثهم زيادة على كتاب الله وذلک لا يثبت بحبر الواحد والقياس، الى آخر ما قال ﴾ يعنى په آيتونو د ميراث کښې د ذوى الارحام هيڅ ذکر نشته، لهذا په خبر واحد يا قياس سره په کتاب الله باندې زيادت جائز نه دې، ومن قال بتوريثهم استدل بقوله تعالى واولوا الارحام بعضهم اولى ببعض فى كتاب الله، وهذا اثبات الاستحقاق بالوصف العام، وقال النبیﷺ الخال وارث من لا وارث له، وفى روايته الخال وارث من لا وارث له، يرثه ويعقل عنه الى آخر ما بسط فى البذل.

[۲۸۹۹]() حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ بُدَيْلٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ رَاشِدِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أَبِي عَامِرٍ الْهَوْزَنِيِّ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ لُحَيٍّ، عَنِ الْمِقْدَامِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ تَرَكَ كَلًّا فَإِلَيَّ، وَرُبَّمَا قَالَ إِلَى اللَّهِ وَإِلَى رَسُولِهِ، وَمَنْ تَرَكَ مَالًا فَلِوَرَثَتِهِ وَأَنَا وَارِثُ مَنْ لَا وَارِثَ لَهُ أَعْقِلُ لَهُ وَأَرِثُهُ وَالْخَالُ وَارِثُ مَنْ لَا وَارِثَ لَهُ يَعْقِلُ عَنْهُ وَيَرِثُهُ".

دمقدام نه روايت دې فرمائى چه نبى عليه السلام فرمائيلى دى: څوک چه قرض يابچي ياښځه پريږدي نوزه دهغې ذمه واريم اويائي داسې ووئيل چه ددې ذمه وار الله اودهغه رسول دې، او څوک چه مال په ميراث کښې پريږدي نوهغه دده دوار ثانودي اووارث دهغه چايم چاچه مال نه وى پريښې، زه دهغه نه ديت اداکوم او ترکه ئې وصول کوم، اوماما دهغه چا وارث دې دچاچه بل وارث نه وى ديت به هم دهغه دطرفه ورکوي اوميراث به ئې هم وړي

﴿ قال رسول اللهﷺ من ترک کلا فالى، ومن ترک مالا فلورثته وانا وارث من لا وارث له اعقل له وارثه والخال وارث من لا وارث له يعقل عنه ويرثه ﴾

## شرح الحديث:

كَلّ وئيلي شى ثقل او بوجهـ ته او دلته مراد د دې نه عيال او قرض دې، يعنى کوم انسان چه نابالغ ماشوم پريخودلو سره مړ شى يا قرض نو د هغه ذمه دارى په ما باندې ده، او څوک چه مال پريخودلو سره مړ شى نو هغه د وارثانو دپاره دې، او د کوم انسان چه څوک وارث نه وى د هغه وارث به زه يم پس د هغه د طرف نه به زه ديت ادا کوم او د هغه د مال وارث به زه يم، يعنى كه هغه څه مال پريخودلو سره مړ شى او د هغه څوک وارثان نه وى نو زه به د هغه د مال وارث يم. يعنى د بيت المال دپاره، دا وراثت درسول اللهﷺ د انتظام او د بيت المال په اعتبار سره دې. او دا چه کوم حديث دې چه ماما وارث دې د هغه چا چه د چا څوک وارث نه وى ديت به ادا کوى هغه ماما د خپل خورئى د طرف نه او د هغه وارث به وى، د دې جملې نه د احنافو او حنابله تائيد کيږى، خال (ماما) او خالة او عمة دا ټول ذوى الارحام دى او دا چه فرمائى چه ماما به ديت ادا کوى د خورئى د طرف نه، يعنى كه د يو سړى خورئى باندې جنايت وى او د هغه څوک عصبه نه وى نو د هغه د طرف نه به ديت د هغه ماما ادا کوى، څنګه چه عصبه ديت ادا کوى، زه وايم: او دغه شان په حديث کښې راځى ﴿ابن اخت القوم منهم ﴾ لهذا ماماګان خورئينه به د يو بل وارثان وى، خو هغه حضرات چه د

[۱] ): سنن ابن ماجه/الفرائض ۹ (۲۷۳۸)، والديات ۷ (۲۶۳۴)، (تحفة الأشراف: ۱۱۵۶۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴/۱۳۱، ۱۳۳) (حسن صحيح)

توریث ذوی الارحام قائل نه دی هغوی دا حدیث په وراثت باندې نه محمول کوی بلکه دا هغوی په حمایت او اعانت باندې محمول کوی، یعنی که د یو سړی خوږئې په حق باندې وی نو د هغه ماما له پکار دی چه د هغه امداد اوکړی، یعنی اعانت او نصرت د ذوی الفروض او عصبات سره خاص نه دې بلکه د ذوی الارحام هم کول پکار دی. (والله تعالی اعلم)

والحدیث اخرجه النسائی وابن ماجة، قاله المنذری

[۲۹۰۰]() حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، فِي آخَرِينَ قَالُوا: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ بُدَيْلٍ يَعْنِي ابْنَ مَيْسَرَةَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ رَاشِدِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أَبِي عَامِرٍ الْهَوْزَنِيِّ، عَنِ الْمِقْدَامِ الْكِنْدِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَا أَوْلَى بِكُلِّ مُؤْمِنٍ مِنْ نَفْسِهِ، فَمَنْ تَرَكَ دَيْنًا أَوْ ضَيْعَةً فَإِلَيَّ، وَمَنْ تَرَكَ مَالًا فَلِوَرَثَتِهِ، وَأَنَا مَوْلَى مَنْ لَا مَوْلَى لَهُ أَرِثُ مَالَهُ وَأَفُكُّ عَانَهُ، وَالْخَالُ مَوْلَى مَنْ لَا مَوْلَى لَهُ يَرِثُ مَالَهُ وَيَفُكُّ عَانَهُ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: رَوَاهُ الزُّبَيْدِيُّ، عَنْ رَاشِدِ بْنِ سَعْدٍ، عَنِ ابْنِ عَائِذٍ، عَنِ الْمِقْدَامِ، وَرَوَاهُ مُعَاوِيَةُ بْنُ صَالِحٍ، عَنْ رَاشِدٍ، قَالَ: سَمِعْتُ الْمِقْدَامَ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: يَقُولُ الضَّيْعَةُ مَعْنَاهُ عِيَالٌ.

دمقدام بن ابی کرب الکندی نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی زه په هر یو مسلمان باندې دهغه دذات نه زیات مهربان یم نوځوك چه قرضه پریږدي یا ښځه ماشومان پریږدي او مړشي نودهغه د بچو اوښځې پرورش اودقرض زه ذمه واریم او ځوك چه مال اودولت پریږدي هغه دهغه دوار ثانودپاره دې اودچاپه بل سرفرست نه وی نوزه دهغه کفیل او محافظ یم اودده دمال وارث یم اوماما دهغه چاوارث دې دچاچه بل وارث نه وی هغه به دده میراث حاصله وي اودده دیت به اداکوي ابوداود وائی چه دضیعه معنی اهل وعیال ده او وائی داروایت زبیدي هم نقل کړې دې دراشد بن سعد نه او هغه دابن عائذنه اوهغه دمقدام نه.

## د رسول الله ﷺ د امت سره ډیر زیات محبت:

قوله: ﴿ انا اولی بکل مومن من نفسه ﴾ رسول الله ﷺ فرمائی چه زه هر مسلمان ته د هغه د ذات نه هم زیات نزدې یم، یعنی د انسان د مرګ نه پس د هغه د امورو داسې ذمه داری اخلم او د هغه داسې نصرت کونکې یم چه که هغه مړې ژوندې کیدې نو هغه به خپله هم د خپل ځان دومره انتظام او انصرام نه کولې څومره چه د هغه د طرف نه کونکې یم، ډیره عجیبه خبره ده د رسول الله ﷺ د خپل امت د هر فرد سره دومره قوی او ژور تعلق دې چه انسان خپله د خپلو امورو خیال دومره نه شی ساتلې څومره چه هغوی ساتلې شی، د رسول الله ﷺ د امت سره د محبت احادیث خو ډیر زیات دی لکه چه په کتاب الحج کښې تیر شوی دی چه رسول الله ﷺ د حجة الوداع په خطباتو کښې بار بار اوفرمائیل ﴿ خذوا عنی مناسککم لعلی لا اراکم بعد عامی هذا ﴾ او په یو حدیث کښې دی ﴿ وددت انی رایت اخوانی ﴾ چه زما زړه غواړی چه خپل رونړه وینم، صحابه کرامو ﷺ عرض اوکړو چه آیا مونږ ستاسو رونړه نه یو، په دې باندې هغوی اوفرمائیل چه تاسو خو زما ملګری یئ او هر وخت ما سره پاتې کیدونکی یئ، زما مراد خو د اخوان نه هغه امتیان دی کوم چه به زما نه روستو راځی او پیدا کیږی

(): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۵۶۹) (حسن صحیح)

به، ﴿ صلى الله عليه وآله وسلم وجزاه الله عنا ما هو اهله ﴾

وړاندې په حديث کښې د ﴿ ضيعة ﴾ لفظ دې هم د دې نه مراد عيال يعنى واړهٔ ماشومان او زنانه دی ځکه که د هغوی خبر وانخستلې شی نو هغه زر ضائع کيږی هم په دې وجه دې ته ضيعة وئيلې شی

﴿ وانا مولى من لا مولى له ارث ماله وافک عانه ﴾

د مولى نه مراد وارث دې لکه چه په مخکښې حديث کښې تير شو ﴿ ارث ماله ﴾ اى لاجل بيت المال ﴿ وافک عانه ﴾ هغه د قيد نه خلاصوم د ﴿ عان ﴾ معنى قيد، په دې وجه قيدى ته عانى وئيلې شى لکه چه د کتاب الجنائز په يو حديث کښې راځى، ﴿اطعموا الجائع وعودوا المريض وفکوا العانى، قال سفيان والعانى الاسير ﴾ او دلته د قيد نه مراد ﴿ ما يلزمه من الحقوق مثل الدين والدية ﴾ ځکه چه دا څيزونه داسې دى چه انسان په هغې کښې مقيد او اينختلې وى، او په يو روايت کښې چه مخکښې راروان دې په هغې کښې د ﴿ عُنّى ﴾ لفظ دې ﴿ افک عُنِيّه ﴾. والحديث اخرجه النسائي وابن ماجة كما في التحفة، قاله الشيخ محمد عوامه.

[۲۹۰۱]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ عَتِيقٍ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُبَارَكِ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ حُجْرٍ، عَنْ صَالِحِ بْنِ يَحْيَى بْنِ الْمِقْدَامِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "أَنَا وَارِثُ مَنْ لَا وَارِثَ لَهُ أَفُكُّ عَانِيَهُ وَأَرِثُ مَالَهُ وَالْخَالُ وَارِثُ، مَنْ لَا وَارِثَ لَهُ يَفُكُّ عَانِيَهُ وَيَرِثُ مَالَهُ".

يحي بن مقدام دخپل پلارنه روايت کوی اوهغه دده دنيکه نه فرمائى چه دنبى عليه السلام نه مې اوريدلى دى چه فرمائيل ئې زه وارث يم دهغه چا دچاچه څوك وارث نه وى اوزه به دهغه دطرف نه ديت ادا کوم او زه دهغه دمال وارث يم اوماما دهغه چاوارث دې دچاچه بل وارث نه وى اوهغه به دده نه ديت اداکوي اوميراث به ئې وړي.

[۲۹۰۲]([2]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ. ح وحَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعُ بْنُ الْجَرَّاحِ، عَنْ سُفْيَانَ جَمِيعًا، عَنِ ابْنِ الْأَصْبَهَانِيِّ، عَنْ مُجَاهِدِ بْنِ وَرْدَانَ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّ مَوْلًى لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَاتَ وَتَرَكَ شَيْئًا وَلَمْ يَدَعْ وَلَدًا وَلَا حَمِيمًا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَعْطُوا مِيرَاثَهُ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ قَرْيَتِهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَحَدِيثُ سُفْيَانَ أَتَمُّ، وقَالَ مُسَدَّدٌ: قَالَ: فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هَاهُنَا أَحَدٌ مِنْ أَهْلِ أَرْضِهِ، قَالُوا: نَعَمْ قَالَ: فَأَعْطُوهُ مِيرَاثَهُ".

دام المومنين عائشې رضي الله عنها نه روايت دې فرمائى چه دنبى عليه السلام يو ازاد کړې شوې غلام مړ شو او څه شې ئې په ميراث کښې پريخې وو اونه ئې څوی وو اونه ئې څوك دوست رو نبى عليه السلام اوفرمائيل دده ميراث دده دکلې يو سړی ته ورکړئ. ابوداود وائى حديث دصفيان ډيرکامل دې اومسدد په روايت کښې دا اضافه ده چه نبى عليه السلام اوفرمائيل ايادلته دده دعلاقې څوك شته دې؟ خلقو اووئيل هو، نوونې فرمائيل دده ميراث ورته ورکړئ.

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۵۷۶) (حسن صحيح)

[2]): سنن الترمذي/الفرائض ۱۳ (۲۱۰۵)، سنن ابن ماجه/الفرائض ۷ (۲۷۳۳)، (تحفة الأشراف: ۱۶۳۸۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۳۷/۶، ۱۷۴، ۱۸۱) (صحيح)

﴿عن عائشة رضی الله عنها ان مولی للنبی ﷺ مات وترک شیئا ولم یدع ولدا ولا حمیما﴾

یعنی د رسول الله ﷺ د یو آزاد کړې شوې غلام انتقال اوشو او هغه څه میراث هم پریخودلو خو هغه خپل څوک اولاد او رشته دار نه وو پریخودلې، نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د هغه میراث دې د هغه په کلی والو کښې چاته ورکړې شی.

**الکلام علی الحدیث من حیث الفقه:**

د رسول الله ﷺ د دې مړی میراث لره یو کلی والا ته ورکول دا من حیث الاستحقاق نه وو بلکه من حیث المصرف وو، ځکه چه دا قسم میراث (چه د هغه هیڅوک وارث نه وی) په بیت المال کښې داخلیږی، او د بیت المال مال په عامو خلقو باندې او په ضرورت مندو باندې خرچ کیږی د دې وجې رسول الله ﷺ درومبی نه داسې انسان ته ورکړو.

**ایا رسول الله ﷺ د چا وارث کیدو؟:**

د دې نه پس په دې باندې ځان پوهول پکار دی چه دا توجیه په هغه صورت کښې ده چه کله دا اومنلې شی چه هر کله د رسول الله ﷺ څوک وارث نه کیږی، رسول الله ﷺ خپله هم د چا وارث نه کیږی لکه چه د بعض علماء کرامو رائې ده، خو که دویم قول واخستلې شی کوم چه بعض نورو علماء کرامو اختیار کړې دې او زمونږ حضرت ګنګوهی هم چه اګر که د رسول الله ﷺ څوک وارث نه کیږی خو خپله به رسول الله ﷺ د نورو وارث کیدو نو په دې صورت کښې به دا وئیلې شی دا د رسول الله ﷺ ورکول ﴿من حیث التبرع﴾ او تصدق وو د خپل طرف نه ځکه چه دا د هغوی خپل حق وو، که رسول الله ﷺ غوښتله نو خپله ئې هم اخستلې شو، حضرت ګنګوهی فرمائی هغه چه په بعض روایاتو کښې ﴿لا نورث﴾ سره ﴿لا نرث﴾ هم دې دا زیادت غلط دې، ثابت نه دی، کما فی البذل والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری.

[۲۹۰۳] (١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدٍ الْكِنْدِيُّ، حَدَّثَنَا الْمُحَارِبِيُّ، عَنْ جِبْرِيلَ بْنِ أَحْمَرَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ، فَقَالَ: "إِنَّ عِنْدِي مِيرَاثَ رَجُلٍ مِنَ الْأَزْدِ وَلَسْتُ أَجِدُ أَزْدِيًّا أَدْفَعُهُ إِلَيْهِ قَالَ: اذْهَبْ فَالْتَمِسْ أَزْدِيًّا حَوْلًا، قَالَ: فَأَتَاهُ بَعْدَ الْحَوْلِ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ لَمْ أَجِدْ أَزْدِيًّا أَدْفَعُهُ إِلَيْهِ، قَالَ: فَانْطَلِقْ فَانْظُرْ أَوَّلَ خُزَاعِيٍّ تَلْقَاهُ فَادْفَعْهُ إِلَيْهِ، فَلَمَّا وَلَّى قَالَ: عَلَيَّ الرَّجُلَ، فَلَمَّا جَاءَهُ قَالَ: انْظُرْ كُبْرَ خُزَاعَةَ فَادْفَعْهُ إِلَيْهِ".

عبدالله بن بریده د خپل پلار نه روایت کوی فرمائی چه نبی علیه السلام ته یو کس راغې اوعرض ئې اوکړو چه زما سره د یو کس میراث دې د ازد قبیلې والا، او ما ته د ازد قبیلې والا څوک نه ملاویږی چه دده میراث ورته ورکړم نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل لاړشه څوک ازدی ولټه وه اګر که یو کال وې. دې وائی کال چه تیر شو نبی علیه السلام ته ورغلم اواوې وئیل اې دالله رسوله څوک ازدې مې پیدا نکړو چه دده میراث ورته ورکړم نبی علیه السلام اوفرمائیل لاړ شه او اوګوره کله چه اولنې خزاعې درسره ملاو شی نو هغه ته ئې ورکړه هرکله چه دې روان شو نبی علیه السلام اوفرمائیل دا سړې راوګرځوئ دې چه کله راواپس شو نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل د بنی خزاعه کوم مشر ته ئې ورکړه

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٩٥٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٣٤٧) (ضعيف)

## شرح الحديث:

**قوله:** ﴿ عن عبدالله بن بريدة عن ابيه قال اتى رسول اللهﷺ رجل فقال ان عندى ميراث رجل من الازدولست اجد ازديا ادفعه اليه الخ ﴾: يو سړې د رسول اللهﷺ په خدمت کښې د قبيله ازد يو سړې حاضر شو چه ماسره د يو سړي ميراث دې خو ماته هيڅ ازدی سړی نه ملاويږي چاته چه زه دا مال ورکړم، رسول اللهﷺ اوفرمائيل او يو ازدی (١) لره تر يو کاله پورې اولټوه، د يو کال نه پس هغه سړې راغلو چه هيڅوک ازدی ملاؤ نه شو، رسول اللهﷺ اوفرمائيل ﴿فانطلق فانظر اول خزاعى تلقاه فادفعه اليه، فلما ولى قال علىّ الرجل فلما جاءه قال انظر كبر خزاعة فادفعه اليه ﴾ يعنى چه کله هغه ته هيڅوک ازدی ملاؤ نه شو نو هغوی اوفرمائيل چه ښه لاړ شه

يو خزاعی اولټوه چه تاته ملاؤ شي پس هغه ته دا ورکړه، اول په معنی د اقرب، يعنی کوم انسان چه د قبيله خزاعه د مورث اعلی سره زيات نزدې وی هغه ته دا مال ورکړه، بيا چه کله هغه روان شو نو رسول اللهﷺ اوفرمائيل هغه سړې راوغواړئ چه کله هغه راغلو نو رسول اللهﷺ اوفرمائيل ﴿ انظر كبر خزاعة ﴾ د رسول اللهﷺ داسې فرمائيل د تفسير په طور دی، يعنی اول د خزاعی تفسير او د هغې مراد رسول اللهﷺ په دې لفظ سره بيان کړو، کبر يعنی اکبر (٢) د اکبر نه مراد هم هغه اقرب دې، دلته سوال دا دې چه ازد چه د يمن په قبائلو کښې يوه قبيله ده د هغه ميراث يو خزاعی سړی ته ولې ورکولې شی د دې جواب شراح دا ورکړې دې چه قبيله خزاعه هم په اصل کښې د ازد نه ده يعنی د شروع په اعتبار سره چه کله دا ټول خلق په يمن کښې وو. بيا چه کله دا خلق د يمن نه وتلو سره مکې مکرمې ته راغلل نو هلته راتلو سره هغوی د بنوهاشم سره مخالفت اوکړو نو د هغوی نوم خزاعه شو، ففى القاموس الخزع القطع والخزاعة القطعة تقطع من الشئ حى من الازد سموا بذلك لانهم تخزعوا عن قومهم واقاموا بمكة.... الحمد لله د حديث مطلب واضح شو. والحديث اخرجه النسائى مسندا ومرسلا، قاله المنذرى.

[٢٩٠٤](٣) حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ بْنُ أَسْوَدَ الْعِجْلِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ جِبْرِيلَ بْنِ أَحْمَرَ أَبِي بَكْرٍ، عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: مَاتَ رَجُلٌ مِنْ خُزَاعَةَ فَأُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِيرَاثِهِ، فَقَالَ: "الْتَمِسُوا لَهُ وَارِثًا، أَوْ ذَا رَحِمٍ" فَلَمْ يَجِدُوا لَهُ وَارِثًا وَلَا ذَا رَحِمٍ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَعْطُوهُ الْكُبْرَ مِنْ خُزَاعَةَ"، وَقَالَ يَحْيَى: قَدْ سَمِعْتُهُ مَرَّةً يَقُولُ فِي هَذَا الْحَدِيثِ: انْظُرُوا أَكْبَرَ رَجُلٍ مِنْ خُزَاعَةَ.

عبدالله بن بريدة رضی الله عنه دخپل پلارنه روايت کوی فرمائی چه يوخزاعي مړشو اوميراث ئې نبی عليه السلام ته راوړې شونبی عليه السلام اوفرمائيل دده وارث يا څوک رشته دارئي اولټوئ نو دوی

---

(١) زما په يو کاپئ کښې داسې ملاؤ شوه ﴿ ينظر البذل فيه كلام الشيخ الجنجوهى..... او حاصل د دې دا دې چه د کومې ترکې څوک وارث نه وی هغه په حکم د لقطې کښې وی او د لقطی حکم چونکه د تصدق دې نو دا هم په طور د تصدق وه، او د اکبر خزاعه تخصيص په دې وجه دې چه هغه په نسبت د بل زيات اقرب دې.

(٢) كما في حديث القسامة كبر الكبر)

(٣) انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٩٥٥) (ضعيف)

ئي نه وارث پیدا کړو او نه رشته دار، نبی ﷺ اوفرمائیل دخزاعه کوم مشرته ئې ورکړئ.

[۲۹۰۵]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ، عَنْ عَوْسَجَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَجُلًا مَاتَ وَلَمْ يَدَعْ وَارِثًا إِلَّا غُلَامًا لَهُ كَانَ أَعْتَقَهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هَلْ لَهُ أَحَدٌ؟"، قَالُوا: لَا إِلَّا غُلَامًا لَهُ كَانَ أَعْتَقَهُ"، فَجَعَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِيرَاثَهُ لَهُ.

دابن عباس نه روایت دې فرمائی چه یو کس مړشواودیوغلام نه ئې علاوه څوك وارث نه ورکوم چه ئې ازاد کړي وو، نبی ﷺ اوفرمائیل ایاڅوك ئې شته؟ نو دوی ووئیل نه مګریوازاد کړي شوي غلام ئې شته، نونبی ﷺ دهغه مالك دي غلام نه حواله کړو.

﴿عن ابن عباس رضی الله تعالی عنهما ان رجلا مات ولم يدغ وارثا الا غلاما له كان اعتقه الخ﴾

یعنی یو سړې وفات شو او هغه خپل څوک وارث پرینخودلو خو خپل آزاد کړې شوې غلام پرېخودلو، رسول الله ﷺ ته د دې خبر ملاؤ شو نو رسول الله ﷺ د هغه سړی میراث هم هغه آزاد کړې شوې غلام ته ورکړو.

که د یو سړی آزاد کړې شوې غلام مړ شی او د هغه څوک وارث نه وی سوا د هغه د آقا او سید نه نو د هغه د میراث به د هغه آقا مالک وی چه هغې ته ولاء وائی. او دا مسئله اجماعی ده، لحديث الولاء لمن اعتق او دلته په دې حدیث کښې دا صورت نه دې بلکه د دې برعکس دې یعنی د آقا میراث د هغه آزاد کړې شوی غلام ته ورکړې شو، دا په څلورو امامانو کښې د چا مذهب هم نه دې سوا د شریح او طاؤس نه ﷺ، او دې دواړو هم د دې حدیث نه استدلال کړې دې او جمهور چه د دې قائل نه دی بلکه دا وائی چه ولاء منحصر ده د معتق په حق کښې د صحیح حدیث په بنیاد باندې هغوی د حدیث الباب تاویل کوی چه درسول الله ﷺ دا د میراث ورکول من حيث الاستحقاق نه وو بلکه من حيث التصدق والمصرف وو، لکه چه په حدیث کښې تیر شو یعنی د ازدی په حدیث کښې، والله تعالی اعلم

(والحديث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری)

## بَابُ مِيرَاثِ ابْنِ الْمُلَاعِنَةِ

### دلعان کړې شوې ښځې د ځوی د میراث بیان

په باب اللعان کښې دا مسئله تیره شوې ده چه د لعان نه پس چه دملاعنه نه کوم ماشوم پیدا شی د هغه نسب د هغه د مور یعنی ملاعنة نه خو ثابتیږی او د پلار نه نه ثابتیږی هم په دې وجه د مور او ځوی ترمنځه خو میراث جاری کیږی خو د هغه هلک او د هغه د پلار یعنی ملاعن ترمینځه نه جاری کیږی، او دا مسئله اجماعی ده.

[1]: سنن الترمذي/الفرائض ١٤ (٢١٠٦)، سنن ابن ماجه/الفرائض ١١ (٢٧٤١)، (تحفة الأشراف: ٦٣٢٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٢١/١، ٣٥٨) (ضعيف)

[۲۹۰٦]() حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنِي عُمَرُ بْنُ رُؤْبَةَ التَّغْلِبِيُّ، عَنْ عَبْدِ الْوَاحِدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ النَّصْرِيِّ، عَنْ وَاثِلَةَ بْنِ الْأَسْقَعِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "الْمَرْأَةُ تَحُوزُ ثَلَاثَةَ مَوَارِيثَ عَتِيقَهَا وَلَقِيطَهَا وَوَلَدَهَا الَّذِي لَاعَنَتْ عَنْهُ".

واثله بن اسقع دنبی علیه السلام نه روایت کوی چه فرمائیلي ئې ووښځه ددرې کسانو وراثت حاصلولي شي یودخپل ازاد کړي شوي غلام اودموندلې شوي هلك اودخپل هغه ماشوم د کوم په وجه چه لعان شوي وي.

﴿ المراءة تحرز ثلاث مواريث عتيقها ولقيطها وولدها الذى لا عنت عليه ﴾

## الكلام على الحديث من حيث الفقه :

یعنی زنانه درې قسمه میراث حاصلوی یو د خپل آزاد کړې شوې غلام دویم د خپل لقیط یعنی که یو زنانه یو ورک شوې ماشوم بیا مومی او هغه لوئې کړی او د هغه پالنه اوکړی او هغه لوئې شی نو د هغه دمال به هغه زنانه مالکه وی، او دریم میراث په حدیث کښې هم هغه دې چه په ترجمة الباب کښې ذکر دې.

د دې حدیث ړومبې جزء او آخری جزء دا خو متفق علیه دی او مینځ والا جزء یعنی د میراث د لقیط والا مسئله دا صرف د اسحاق بن راهویه مذهب دې. د جمهور علماء کرامو په نزد چه په هغوی کښې څلور امامان هم دی د لقیط میراث د بیت المال دپاره دې، مګر دا چه ملتقط فقیر وی نو بیا په حیثیت د مصرف دا هغه ته هم ملاویدې شی. د دې حدیث جواب د جمهورو په نزد یو خو دا دې چه د دې نه مراد استحقاق نه دې بلکه مقصود بیان د مصرف او تصدق دې او دویم جواب دا دې چه ﴿ ان هذا الحديث غير ثابت كما فى شرح السنة[۲] والحديث اخرجه الترمذى والنسائى وابن ماجة، قاله المنذرى.

[۲۹۰۷]() حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، وَمُوسَى بْنُ عَامِرٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جَابِرٍ، حَدَّثَنَا مَكْحُولٌ، قَالَ: جَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مِيرَاثَ ابْنِ الْمُلَاعَنَةِ لِأُمِّهِ وَلِوَرَثَتِهَا مِنْ بَعْدِهَا".

دمکحول نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام دملاعنې دځوی میراث دده مور ته ورکړې وو اوددې نه پس ئې ددې وارثانوته ورکړې دې.

[۲۹۰۸]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عَامِرٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، أَخْبَرَنِي عِيسَى أَبُو مُحَمَّدٍ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ.

عمرو بن شعیب د خپل پلارنه اوهغه دده دنیکه نه ددې روایت په شان روایت بیان کړې دې.

---

[۱]): سنن الترمذي/الفرائض ۲۳ (۲۱۱۵)، سنن ابن ماجه/الفرائض ۱۲ (۲۷٤۲)، (تحفة الأشراف: ۱۱۷٤٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/٤۹۰، ٤/۱۰٦) (ضعيف)

[۲]) قال الخطاب في المعالم هذا الحديث غير ثابت عند اهل النقل واذا لم يثبت الحديث لم يلزم القول به، وكان ما ذهب اليه عامة العلماء اولي آهـ وزاد عليه المنذري قال البيهقي لم يثبت البخاري ولا مسلم هذا الحديث لجهالة بعض رواته آهـ ﴾

[۳]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۷۷۱)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الفرائض ۲٤ (۳۰۱۰) (صحيح)

[٤]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۷۷۱) (صحيح)

## بَابٌ هَلْ يَرِثُ الْمُسْلِمُ الْكَافِرَ

### باب: آيا يو مسلمان د کوم مشرک وارث جوړيدې شي؟

[۲۹۰۹] (¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ عُثْمَانَ، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا يَرِثُ الْمُسْلِمُ الْكَافِرَ وَلَا الْكَافِرُ الْمُسْلِمَ".

اسامه بن زيد درسول پاک قا نه روايت کوی چه فرمائيلي ئې وو ميراث نه شي وړلې مسلمان دکافرنه اونه کافرد مسلمان نه.

په حديث الباب کښې د دې نفی ده پس د جمهور علماء کرامو او ائمه اربعه په دې باندې اتفاق دې او اتفاق د جانبينو نه دې چه د يو بل نه وارث کيږی، بعض صحابه کرام او تابعين رضی الله عنهم لکه معاذ بن جبل رضی الله عنه او سعيد بن المسيب رحمه الله وغيره فرمائی چه کافر خو د مسلمان وارث نه وی خو د دې عکس يعنی مسلمان د کافر وارث وی ﴿ لحديث الاسلام يزيد ولا ينقص، ولحديث الاسلام يعلو ولا يعلى كما سياتى فى آخر الباب ﴾

### د مرتد د وراثت مسئله:

دلته يو مسئله بله ده هغه دا چه د مرتد حکم څه دې هغه به د خپلو مسلمانانو رشته دارو وارث وی او که نه؟ نو په دې باندې خو اجماع ده چه مرتد نه وارث کيږی خو د دې عکس يعنی د مرتد د مړ کيدو نه پس د هغه مسلمان رشته دار به د هغه وارث وی يا نه؟ د امام مالک رحمه الله او شافعی رحمه الله په نزد نه وارث کيږی، او د احنافو مذهب دا دې چه مرتد کوم مال حاصل کړې وی د خپل ردت په حالت کښې هغه خو د بيت المال دپاره دې او کوم مال چه هغه حاصل کړې وی د ارتداد نه مخکښ، د اسلام په حالت کښې په هغې کښې به وراثت جاری کيږی، امام ترمذی رحمه الله هم دا مسئله هم د دې حديث په ضمن کښې بيان کړې ده.

(والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری)

[۲۹۱۰] (²) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ عُثْمَانَ، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، قَالَ: قُلْتُ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ أَيْنَ تَنْزِلُ غَدًا فِي حَجَّتِهِ؟ قَالَ: وَهَلْ تَرَكَ لَنَا عَقِيلٌ مَنْزِلًا؟، ثُمَّ قَالَ: نَحْنُ نَازِلُونَ بِخَيْفِ بَنِي كِنَانَةَ حَيْثُ تَقَاسَمَتْ قُرَيْشٌ عَلَى الْكُفْرِ يَعْنِي الْمُحَصَّبَ، وَذَاكَ أَنَّ بَنِي كِنَانَةَ حَالَفَتْ قُرَيْشًا عَلَى بَنِي هَاشِمٍ أَنْ لَا يُنَاكِحُوهُمْ وَلَا يُبَايِعُوهُمْ وَلَا يُئْوُوهُمْ"، قَالَ الزُّهْرِيُّ: وَالْخَيْفُ الْوَادِي.

داسامه بن زيد نه روايت دې فرمائی چه ما عرض اوکړو اې دالله رسوله صبا به ته چرته تشريف فرمايې؟ وې فرمائيل ايا عقيل زمونږ دپاره په مکه کښې کور پريخې دې اوبيا ئې اوفرمائيل مونږ به دبنو کنانه په خيف کښې يو چرته چه قريشو په کفراوشرک باندې قسم خوړلې وو يعنی په محصب کښې به قيام کوو څکه چه دبنو کنانه قبيلې خلقو د قريشو نه اقرار اغستې وو چه هغوی به دقريشوسره نه نکاح کوي اونه به ورسره اخستل

---

¹): صحيح البخاري/المغازي ٤٨ (٤٢٨٣)، الفرائض ٢٦ (٦٧٦٤)، صحيح مسلم/الفرائض (١٦١٤)، سنن الترمذي/الفرائض ١٥ (٢١٠٧)، سنن ابن ماجه/الفرائض ٦ (٢٧٣٠)، (تحفة الأشراف: ١١٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٠٠/٥، ٢٠١، ٢٠٨، ٢٠٩) (صحيح)

²): انظر حديث رقم: (٢٠١٠) (تحفة الأشراف: ١١٤) (صحيح)

خرخول کوي اونه به ورته دځان سره پناه ورکوي، زهري وئيلى دى خيف كلي ته وئيلې شي.

**شرح الحديث:**

قوله: ﴿عن اسامة بن زيد رضى الله تعالى عنهما قال قلت يا رسول الله ﷺ اين تنزل غدا فى حجته قال وهل ترک لنا عقيل منزلا الخ ﴾د دې حديث پوره شرح په كتاب الحج كښې تيره شوې ده او هلته دا هم تير شوى دى چه دا حديث په كتاب الفرائض كښې هم را روان دې او د دې وجه هم تيره شوې ده، د خلاصې په طور ځان پوهه كړئ چه د كوم منزل چه رسول الله ﷺ ذكر فرمائى د دې نه مراد د رسول الله ﷺ جدى مكان دې كوم لره چه عبد المطلب كله چه هغه بوډا شو په خپل ژوند كښې د خپلو ځامنو ترمينځه تقسيم كړې وو چه په هغې كښې د رسول الله ﷺ پلار عبدالله هم وو بيا په آخير كښې هغه كور د ابوطالب په قبضه كښې وو، رسول الله ﷺ او على رضي الله عنه دا دواړه خو هجرت كولو سره ړومبى مدينې طيبې ته راغلې وو، او د ابوطالب د وفات په وخت على او جعفر رضي الله عنه دواړو اسلام راوړې وو. هغه دواړه خو د هغه كور ځكه وراثان نه شو، او د ابوطالب يو دريم ځوئې په جنګ بدر كښې ورک شوې وو، او عقيل رضي الله عنه د ابوطالب د مرګه پورې اسلام نه وو راوړې په دې وجه هغه ځانله د دې وارث شو(١) خو هغوى دا كور وئيلې شوى دى چه خرڅ كړې وو هم د دې وجې نه رسول الله ﷺ فرمائى چه عقيل زمونږ دپاره كور چرته پريخودلې دې. يعنى كه هغه خرڅ كړې نه وې نو بيا د منى نه روانيدو باندې مكې مكرمې ته رسيدو سره به مونږ په هغې كښې قيام كړې وې، په دې وجه د رسول الله ﷺ رائې دا شوه چه د منى نه وتلو سره په محصب كښې شپه تيره كړې شى، بيا سحر د هغه ځائې نه مكې ته روانيدو سره د سحر مونځ او طواف وداع كولو نه پس مدينې ته لاړ شى، په دې صورت كښې به د قيام مكه ضرورت نه راځى او نه به قيام ګاه ته ضرورت راځى. (والحديث اخرجه البخارى ومسلم والنسائى وابن ماجة، قاله المنذرى)

[٢٩١١](٢) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ حَبِيبٍ الْمُعَلِّمِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَتَوَارَثُ أَهْلُ مِلَّتَيْنِ شَتَّى".

عمرو بن شعيب د خپل پلار نه اوهغه دده دنيكه عمرو بن العاص رضي الله عنه نه روايت كوى فرمائى چه نبى عليه السلام فرمائيلى وو چه ددوه جدا جدا دينونووالا ديوبل نه ميراث نه شى ورلې.

﴿قال رسول الله ﷺ لا يتوارث اهل ملتين شتى ﴾

**حديث الباب كښې مذاهب دائمة:**

د توارث دپاره د وارث او مورث ترمينځه اتحاد دملت بالاتفاق شرط دې، په دې حديث كښې هم دا مسئله ذكر شوې ده خو د دې باوجود د دې مسئله په تفصيل كښې اختلاف دې د احنافو او شوافعو مسلک خو دا دې چه ﴿ الكفر ملة واحدة ﴾ كه هغه كتابى وى يا مشرک يهودى وى او كه نصرانى د دې دواړو په نزد دا ټول يو دى، لهذا د يو بل وارثان به وى،

---

(١) هم د دې نه د ترجمة الباب سره مناسبت ښكاره كيږي.
(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٦٦٩)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الفرائض ١٦ (٢١٠٩)، سنن ابن ماجه/الفرائض ٦ (٢٧٣٢)، مسند احمد (١٧٨/٢، ١٩٥) (حسن صحيح)

اصل تقابل د اسلام او د کفر ترمینځه دې، هلته اختلاف د ملت دې او د مالکیانو او حنابله په نزد ادیان سماویه لکه یهودیت او نصرانیت دا په خپل مینځ کښې مختلف دی لهذا په هغوی کښې به یو د بل وارث نه وی، او د ادیان غیر سماویه په باره کښې امام مالک رحمه الله خو دا فرمائی چه د شرک انواع ټول ملت واحده دی، او امام احمد رحمه الله فرمائی مختلف انواع شرک مختلف ملل دی مثلاً بت پرست او آتش پرست دا ځانله ځانله دی لهذا توارث به نه وی او د امام مالک په نزد به توارث وی. (من هامش الکوکب ۲/۴۰)والحدیث اخرجه النسائي وابن ماجة، قاله المنذري

[۲۹۱۲](۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي حَكِيمٍ الْوَاسِطِيِّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُرَيْدَةَ، أَنَّ أَخَوَيْنِ اخْتَصَمَا إِلَى يَحْيَى بْنِ يَعْمَرَ يَهُودِيٌّ، وَمُسْلِمٌ فَوَرَّثَ الْمُسْلِمَ مِنْهُمَا، وَقَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو الْأَسْوَدِ، أَنَّ رَجُلًا حَدَّثَهُ، أَنَّ مُعَاذًا حَدَّثَهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "الْإِسْلَامُ يَزِيدُ وَلَا يَنْقُصُ فَوَرَّثَ الْمُسْلِمَ".

دبریده رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه یحیي بن یعمرته دوه رونړو جګړه راوړله په دې دواړوکښې یو مسلمان وو او بل یهودي وو هغه مسلمان ته دیهودي میراث ورکړو اووئې فرمائیل ماته ابوالاسود حدیث بیان کړې دې اوهغه دیوکس نه اوریدلی دی اوهغه دمعاذ بن جبل رضی الله عنه نه اوریدلی دی اوهغه دنبی علیه السلام نه اوریدلي دي چه فرمائیل ئې په مسلمانانو کښې زیاتوالی راځي اوکموالي نه راځي اوبیا ئې مسلمان ته دیهودي میراث ورکړو.

﴿ ان معاذا قال سمعت رسول الله یقول الاسلام یزید ولا ینقص ﴾

د معاذ رضی الله عنه مسلک او دا حدیث او په دې باندې کلام اوس نزدې تیر شوې دې، جمهور علماء وائی چه دا حدیث او هم دغه شان، ﴿ الاسلام یعلو ولا یعلی علیه ﴾ د دې تعلق د اسلام د عزت او غلبې سره دې، میراث سره د دې هیڅ تعلق نشته.

[۲۹۱۳](۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي حَكِيمٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ يَعْمَرَ، عَنْ أَبِي الْأَسْوَدِ الدِّيلِيِّ، أَنَّ مُعَاذًا أُتِيَ بِمِيرَاثِ يَهُودِيٍّ وَارِثُهُ مُسْلِمٌ بِمَعْنَاهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

د ابوالاسود نه روایت دې چه معاذ رضی الله عنه ته د یو یهودي میراث راوړلې شو اودورانت مطعي مسلمان وو او ددې نه پس ئې هغه حدیث بیان کړو کوم چه بره ذکرشو.

## بَابٌ فِي مَنْ أَسْلَمَ عَلَى مِيرَاثٍ

### که چرې د میراث د تقسیم نه مخکښې کوم وارث اسلام قبول کړی

### شرح الترجمة:

یعنی کوم انسان چه د میراث د تقسیم په موقع باندې اسلام راوړی، یعنی د مورث د مرګ نه پس.

(۱): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۱۳۱۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵/۲۳۰، ۲۳۶) (ضعیف)

(۲): انظر ماقبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۳۱۸) (ضعیف)

ځان پوهول پکار دی چه دا مسئله اوس تيره شوه چه د توراث دپاره اتحاد د ملت شرط دې د اختلاف ملت په وخت ميراث نه جاري کيږي په دې سلسله کښې ځان پوهول پکار دی چه اتحاد ملت هغه مفيد او معتبر دې کوم چه د مورث د مرګ په وخت وی، که روستو اتحاد بيا موندلې شي نو هغه مفيد او معتبر نه دې. هم دغه شان اختلاف ملت هغه مضر دې چه د مورث د مرګ په وخت وی او که د اختلاف تحقق د مورث د مرګ نه پس وی نو هغه مضر نه دې، اوس په هر يو باندې په مثال سره ځان پوهه کړئ د اول صورت مثال به دا وی چه د يو مسلمان وفات اوشو او حال دا چه د هغه يو ځوئې مسلمان وو او يو کافر، د پلار د وفات نه پس د ميراث د تقسيم نه مخکښې هغه کافر ځوی هم اسلام قبول کړو نو دلته دا اسلام راوړونکې ځوئې به وارث نه وی، چه د مخکښې نه مسلمان دې صرف هم هغه به وارث وی، او د دويم صورت مثال دا دې د يو کافر انتقال اوشو او حال دا چه د هغه يو ځوئې مسلمان وو او يو کافر، د ميراث د تقسيم نه مخکښې هغه کافر ځوئی هم اسلام راوړې دې، اوس به دا اسلام قبلونکې وارث وی، او څوک چه د مخکښې نه مسلمان وو د هغه د وراثت خو بالکل سوال نه پيدا کيږي.

[۲۹۱۴](¹) حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ أَبِي يَعْقُوبَ، حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ دَاوُدَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ أَبِي الشَّعْثَاءِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ، قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كُلُّ قَسْمٍ قُسِمَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَهُوَ عَلَى مَا قُسِمَ لَهُ، وَكُلُّ قَسْمٍ أَدْرَكَهُ الْإِسْلَامُ فَهُوَ عَلَى قَسْمِ الْإِسْلَامِ".

دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چه نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی دجاهليت په زمانه کښې چه به کوم تقسيم کيدو نو په اسلام کښې به هم ترکه په هم دغه حالت باندې قائم وي اوداسلام نه پس به هم ترکه داسلام دضابطې مطابق تقسيميږي.

﴿ عن ابن عباس رضي الله عنهما قال قال النبي ﷺ كل قسم قسم فی الجاهلية فهو علی ما قسم، وكل قسم ادركه الاسلام فانه علی قسم الاسلام ﴾

يعنی د کوم ميراث تقسيم چه د اسلام نه مخکښې د جاهليت په زمانه کښې شوې دې هغه به هم هغه شان باقی ساتلې شی، په هغې کښې به مداخلت نه شی کولې او کوم تقسيم چه د يو ميراث وغيره په اسلام کښې د داخليدو نه پس اوشی هغه به د اسلامی قانون مطابق کولې شی او هغه اسلامی قانون هم هغه دې چه کوم پورته ذکر شو چه د اتحاد دملت په صورت کښې توارث وی د اختلاف د ملت په صورت کښې نه.

والحديث اخرجه ابن ماجة، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الْوَلَاءِ

### دآزاد کړې شوی غلام د ترکې بيان

### د ولاء قسمونه سره د اختلاف د علماء کرامو:

دلته مصنف رحمه الله د ولاء په سلسله کښې دوه بابونه ذکر کړې دی يو دا او دويم د دې نه پس ﴿باب فی الرجل يسلم علی يدی الرجل ﴾ د دې نه پس يو دريم باب د دوه بابونو د فصل سره را

(¹): سنن ابن ماجه للرهن ۲۱ (۲۷۸۵)، (تحفة الأشراف: ۵۳۸۳) (صحيح)

روان دي ﴿ باب نسخ ميراث العقد بميراث الرحم ﴾ د دې درې واړو بابونو تعلق د ولاء سره دې ځکه چه د ولاء درې قسمونه دی، ولاء العتاقة، ولاء الاسلام، ولاء الموالاة، په رومبی باب کښې رومبې قسم ذکر کړې شوي دې او په دويم باب کښې قسم ثانی او په دريم باب کښې قسم ثالث، قسم اول يعنی ولاء العتق دا خو بالاتفاق معتبر او ثابت دې، او قسم ثانی يعنی ولاء الاسلام دا د جمهور علماء کرامو چه په هغوی کښې څلور امامان هم دی په نزد معتبر نه دې، د بعض نور علماء کرامو لکه ابراهيم نخعی رحمه الله، سعيد بن المسيب په نزد معتبر دې، او دريم قسم ولاء الموالاة دا د احناف په نزد معتبر دې، د جمهور په نزد د ولاء دا قسم منسوخ دې.

[۲۹۱۵]([1]) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، قَالَ: قُرِءَ عَلَى مَالِكٍ وَأَنَا حَاضِرٌ، قَالَ مَالِكٌ: عَرَضَ عَلَيَّ نَافِعٌ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ أَرَادَتْ أَنْ تَشْتَرِيَ جَارِيَةً تَعْتِقُهَا، فَقَالَ أَهْلُهَا: نَبِيعُكِهَا عَلَى أَنَّ وَلَاءَهَا لَنَا، فَذَكَرَتْ عَائِشَةُ ذَاكَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ "لَا يَمْنَعُكِ ذَلِكِ فَإِنَّ الْوَلَاءَ لِمَنْ أَعْتَقَ".

دابن عمر نه روايت دې فرمائی چه ام المومنين عائشې رضی الله عنها غوښتل چه يوه وينځه واخلي او ازاده ئې کړي نو دوينځې مالکانو اووئيل مونږ به درباندې وينځه په دې شرط خرڅه کړو چه ددې دولاحق به مونږ ته حاصل وي ام المومنين نبی عليه السلام ته ددې ذکراوکړو نبی عليه السلام اوفرمائيل دوينځې داخستلو اراده مه بدلوه ځکه چه دوينځې دولا حق هغه چاته حاصل وي چه څوك ئې ازاده کړي.

### د بريرة رضی الله عنها د شراء والا حديث باندې کلام:

**قوله**: ﴿ عن ابن عمر رضی الله عنهما ان عائشة رضی الله عنها ارادت ان تشترى جارية تعتقها فقال اهلها نبيعكها على ان ولاءها لنا الخ ﴾: د عائشې رضی الله عنها دا حديث د شراء بريرة په سلسلة کښې وړاندې په کتاب العتق کښې ﴿ باب بيع المكاتب اذا فسخت المكاتبه ﴾ د لاندې تفصيل سره راروان دې په دې باندې به کلام هم هلته راشی انشاء الله تعالى...... په دې حديث کښې دی ﴿ الولاء لمن اعتق ﴾ چه مسئله اجماعی ده او مطلب ئې دا دې چه که د يو سړی آزاد کړې شوې غلام مړ شی او هغه خپل څوك وارث پرې نږدی نو بيا په دې صورت کښې د هغه د ميراث مستحق به د هغه آزاد کړې وی غلام وی. په دې واقعه کښې يو مشهور اشکال دا کولې شی چه رسول الله صلی الله عليه وسلم عائشې رضی الله عنها ته اجازت ولې ورکړو په شراء د بريرة رضی الله عنها کښې د ولاء شرط چه هغه به د بائع دپاره وی لګول ځکه چه دا شرط بالاجماع جائز دې؟ جواب دا دې چه رسول الله صلی الله عليه وسلم داسې زجرا اوفرمائيل يعنی د دې شرط اجازت د دې د باقی پريخودلو دپاره رسول الله صلی الله عليه وسلم نه وو ورکړې بلکه د دې ابطال مقصود وو. دې وجې نه رسول الله صلی الله عليه وسلم د دې نه پس خطبه ورکړې وه چه په خلقو باندې څه چل شوې دې چه په بيع کښې د ولاء شرط لګوی، د خلقو شرط لګول باطل دی ﴿ وان كان مائة شرط، شرط الله احق ﴾ دا زيادت په روايت مفصله

[1]: صحيح البخاري/البيوع ۷۳ (۲۱۶۹)، والمكاتب ۲ (۲۵۶۲)، والفرائض ۱۹ (۶۷۵۲)، صحيح مسلم/العتق ۲ (۱۵۰۴)، سنن النسائي/البيوع ۷۶ (۴۶۴۸)، (تحفة الأشراف: ۸۳۳۴)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/العتق ۱۰ (۱۸)، مسند احمد (۲/۲۸، ۱۱۳، ۱۵۳، ۱۵۶) (صحيح)

کښې دي، دلته روایت مختصر دي.

[۲۹۱۶](¹) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعُ بْنُ الْجَرَّاحِ، عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْوَلَاءُ لِمَنْ أَعْطَى الثَّمَنَ وَوَلِيَ النِّعْمَةَ".

دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روایت دي فرمائي چه نبی علیه السلام فرمائيلي دی دولا حق به هغه چاته ورکولې شی څوك چه قیمت خرید اداکړي او په غلام باندې احسان اوکړي یعنی ازاد ئي کړي.

[۲۹۱۷](²) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرِو بْنِ أَبِي الْحَجَّاجِ أَبُو مَعْمَرٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ حُسَيْنٍ الْمُعَلِّمِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ رِئَابَ بْنَ حُذَيْفَةَ تَزَوَّجَ امْرَأَةً فَوَلَدَتْ لَهُ ثَلَاثَةَ غِلْمَةٍ، فَمَاتَتْ أُمُّهُمْ فَوَرَّثُوهَا رِبَاعَهَا، وَوَلَاءَ مَوَالِيهَا، وَكَانَ عَمْرُو بْنُ الْعَاصِ عَصَبَةَ بَنِيهَا فَأَخْرَجَهُمْ إِلَى الشَّامِ فَمَاتُوا، فَقَدِمَ عَمْرُو بْنُ الْعَاصِ وَمَاتَ مَوْلًى لَهَا وَتَرَكَ مَالًا لَهُ فَخَاصَمَهُ إِخْوَتُهَا إِلَى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، فَقَالَ عُمَرُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا أَحْرَزَ الْوَلَدُ أَوِ الْوَالِدُ فَهُوَ لِعَصَبَتِهِ مَنْ كَانَ"، قَالَ: فَكَتَبَ لَهُ كِتَابًا فِيهِ شَهَادَةُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، وَزَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، وَرَجُلٍ آخَرَ، فَلَمَّا اسْتُخْلِفَ عَبْدُ الْمَلِكِ اخْتَصَمُوا إِلَى هِشَامِ بْنِ إِسْمَاعِيلَ، أَوْ إِلَى إِسْمَاعِيلَ بْنِ هِشَامٍ فَرَفَعَهُمْ إِلَى عَبْدِ الْمَلِكِ، فَقَالَ: هَذَا مِنَ الْقَضَاءِ الَّذِي مَا كُنْتُ أَرَاهُ، قَالَ: فَقَضَى لَنَا بِكِتَابِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ فَنَحْنُ فِيهِ إِلَى السَّاعَةِ.

عمرو بن شعیب دخپل پلارنه اوهغه دده دنیکه نه روایت کوی چه رئاب بن خذیفه د یوې ښځې سره نکاح اوکړه اودرې هلکان ئي پیداشو اومورئي مړه شوه نوددې ځامن دخپلې مور د کورونو او ددې د آزادو کړو غلامانو د ولاء وارثان شول اوعمرو بن العاص نه ددې دځامنو عصبه وو یعنی وارث وو ددې نه پس عمروبن العاص نه ددې ځامن شام ته اولیږل اوهغوی هلته مړه شول عمرو بن العاص راغې اوپه دې دوران کښې دهغې ښځې یوازاد کړی شوې غلام مړ شو اومال ئي پاتې شو نوددې ښځې ورور ددې دځامنو دپاره عمرفاروق رضي الله عنه ته جګړه یوړله عمرفاروق رضي الله عنه اووئیل نبی علیه السلام فرمائيلي دی کله چه اولاد یاپلار میراث پرېږدي نوهغه به دهغه وارثانوته ورکولې شی اوبیاعمرفاروق په دې سلسله کښې یوه فیصله أولیکله او په دې باندې ئي عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه اوزید بن ثابت رضي الله عنه اود یوبل سړی ګواهی ئي پرې اولیکله، کله چه عبدالملك بن مروان خلیفه شو نو بیا دغه خلقو جګړه اوکړه، دې خلقو خپله مقدمه هشام بن اسماعیل یا اسماعیل بن هشام ته یوړله، هغوی دا مقدمه عبدالملك ته اولیږله، عبدالملك اووئیل: دا فیصله خو داسې معلومیږی لکه چه دا ما لیدلې وی، راوی وائی بیا عبدالملك د عمربن خطاب رضي الله عنه د فیصلې مطابق فیصله ورکړه او ولاء تر اوسه پورې مونږ سره دی.

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، قاله المنذری واخرجه الترمذی ایضا فی آخر کتاب الوصایا مفصلا وفی بیع الولاء وهبة مختصرا.

---

¹): صحيح البخاري/الفرائض ٢٠ (٦٧٦٠)، سنن النسائي/الطلاق ٣٠ (٣٤٧٩)، (تحفة الأشراف: ١٧٤٣٢، ١٥٩٩١)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/العتق ٢٠ (١٥٠٤)، سنن الترمذي/البيوع ٣٣ (٢١٢٦)، مسند احمد (٦/١٧٠، ١٨٦، ١٨٩) (صحيح)

²). سنن ابن ماجه/الفرائض ٧ (٢٧٣٢)، (تحفة الأشراف: ١٠٥٨١، ١٨٥٩٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٧) (حسن)

## شرح الحديث والكلام عليه بالبسط:

قوله:﴿ عن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده ان رياب بن حذيفه تزوج امرأة فولدت له ثلاثة غلمة فماتت امهم فورثوها رباعها وولاء مواليها ﴾ دا حديث د توريث الولاء په سلسله کښې دې، د دې مضمون دا دې چه يو سړی چه د هغه نوم رياب بن حذيفه دې هغه يوې زنانه سره واده اوکړو چه د هغې نوم ام وائل بنت معمر دې، د هغه د هغې زنانه نه درې ځامن پيدا شو څو ورځې پس د هغوی د مور انتقال اوشو او هغه هلکان د خپلې مور د رباع يعنی کورونو او جائداد وغيره او د هغې د موالي د ولاء وارثان شو(دې ځائې پورې خو په دې روايت باندې هيڅ اشکال نشته، مسئله صفا ده اوس وړاندې واورئ) وړاندې په روايت کښې دا دی چه عمرو بن العاص رضي الله عنه د دې هلکانو عصبه وو (په روايت کښې د رشتې هيڅ تعين نشته ممکنه ده چه عم يا ابن العم وی) نو دې عمرو بن العاص رضي الله عنه دا هلکان خپل ځان سره په سفر باندې شام ته بوتلل، هلته په دغه زمانه کښې طاعون خور شوې وو يعنی طاعون عمواس، کوم چه په تاريخ کښې مشهور دې او د عمر رضي الله عنه په زمانه کښې وو، دا درې واړه هلکان هم په دې طاعون کښې ختم شو، عمرو بن العاص رضي الله عنه چه کله د سفر نه را واپس شو نو په واپسئ باندې هغوی ته معلومه شوه چه د هغه زنانه يعنی ام وائل يو مولی يعنی آزاد کړې شوې غلام بل مړ دې او هغه مال هم پريخودلې دې، اوس په هغه ولاء کښې د ام وائل د رونړو او د عمرو بن العاص رضي الله عنه اختلاف پيدا شو، يعنی عمرو بن العاص رضي الله عنه مدعی وو چه دا ولاء ماته ملاويدل پکار دی او د ام وائل رونړو وئيل چه د دې مستحقين مونږ يو ځکه چه مونږ د دې زنانه عصبه يو چه د چا د غلام دا ولاء ده، او د عمرو بن العاص رضي الله عنه وينا دا وه چه زه د دې زنانه د ځامنو عصبه يم که هغه ځامن ژوندی وې نو د دې به هغوی وارثان وې نو اوس چونکه هغوی نشته نو د هغه ځامنو د عصبه کيدو په حيثيت سره زما وارث کيدل پکار دی، چونکه دا واقعه د عمر رضي الله عنه د خلافت د زمانې ده په دې وجه دا مقدمه هلته پيش شوه، عمر رضي الله عنه د مسئلې په صورت باندې د پوهيدو نه پس دا اوفرمائيل ﴿ قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ما احرز الولد او الوالد فهو لعصبته من كان ﴾ يعنی د مړی ځوئې يا پلار چه څه هم په ترکه کښې حاصل کړی هغه به د هغه نه پس د هغه د عصبه دپاره وی که هغه عصبه هر څوک وی، دلته د دې حديث په رڼړا کښې د عصبة الولد مصداق عمرو بن العاص رضي الله عنه جوړيدو پس عمر رضي الله عنه د عمرو بن العاص رضي الله عنه په حق کښې فيصله اوفرمائيله او خپله فيصله ئې اوليکله چه په هغې کښې د دوه کسانو يعنی عبد الرحمن بن عوف او زيد بن ثابت رضي الله عنهما او د يو دريم کس شهادت هم وو.

﴿ فلما استخلف عبدالملك اختصموا الى هشام بن اسماعيل فرفعه الى عبدالملك ﴾

چونکه اخوة المراة ته د عمر رضي الله عنه په فيصله باندې تسلی نه وه شوې اګر چه خاموش شوې وو په دې وجه کله چه د عبد الملک بن مروان زمانه راغله نو هغه وخت د مدينې طيبې امير هشام بن اسماعيل وو لهذا دې اخوة المراة دا خپله معامله هغه ته يوړه، هشام بن اسماعيل دا قضيه د عبد الملک مخې ته پيش کړه، عبد الملک په دې فيصله باندې د

ځآن پوهولو نه پس دا اووې: ﴿ هذا من القضاء الذى ما كنت اراه ﴾ په بذل كښې دا ليكلې دى چه په دې لفظ ما كښې دوه احتمالات دى يو دا چه زائده وى او يا نافيه، د زائده كيدو په صورت كښې خو به ئې مطلب دا وى چه زما رائې هم د عمر رضی الله عنه د هم دهغه فيصلې مطابق ده او د نافيه كيدو په صورت كښې به ئې مطلب دا وى چه عبدالملک دا وائى چه په دې فيصله كښې اګر چه زما رائې دا نه ده خو چونكه د عمرفاورق رضی الله عنه كړې شوې فيصله ده په دې وجه زه هم دا برقرار ساتم.

﴿ فنحن فيه الى الساعة ﴾ د نحن مصداق د عمرو بن العاص رضی الله عنه اولاد چه مونږ تر نن ورځې پورې په دې فيصله باندې يو، دا روايت په تفصيل سره په سنن ابن ماجة كښې دى لكه چه په بذل كښې دا نقل كړې شوې د هغې په كتلو باندې هم دا معلوميږى چه عبدالملک د عمر رضی الله عنه د فيصلې موافقت اوفرمائيلو، لهذا په ﴿ ما كنت اراه ﴾ كښې ما نافيه نه ده بلكه موصوله يا زائده ده.

د دې نه پس ځان پوهه كړئ چه دلته په روايت كښې دى ﴿ فقدم عمرو بن العاص رضی الله عنه ومات مولى لها ﴾ دا جمله ﴿ ومات مولى لها ﴾ تاويل ته محتاج ده ﴿ اى وقد مات مولى لها ﴾ [1] او دا جمله حاليه ده، يعنى عمرو بن العاص رضی الله عنه چه كله د ملک شام نه واپس راغلو نو دلته راتلو سره ورته معلومه شوه چه د هغې زنانه يو غلام مړ شوې دې يعنى د هغه هلكانو په ژوند كښ، او دا مطلب ئې نه دې چه د عمرو بن العاص رضی الله عنه د راتلو نه پس د هغه زنانه د يو ازاد كړې شوى غلام وفات اوشو، او دا تاويل په دې وجه ضرورى دې چه د عمر رضی الله عنه كوم استدلال چه په دې مقام باندې د﴿ ما احرز الولد ﴾ نه دې هغه صحيح شى او په دې واقعې باندې منطبق شى ځكه چه ظاهره ده احراز ولد. به هم د هغه په حيات كښې وى نه پس د وفات نه. دا اشكال او جواب د ابوداؤد په دې روايت باندې په ﴿ تذكرة الرشيد ﴾ كښې ذكر شوې دې، حضرت ګنګوهى رحمه الله نه دا سوال يو عالم كړې وو حضرت د دې جواب دا ارشاد اوفرمائيلو كوم چه پورته ذكر شو.

د دې نه پس ځان پوهه كړئ چه د عمر رضی الله عنه د دې فيصلې حاصل توريث الولاء دې يعنى دا چه كه په ولاء كښې هم ميراث جارى كيږى ځنګه چه په نورو امورو كښې جارى كيږى خو جمهور علماء كرام چه په كښې ځلور امامان هم دى د دې قائل نه دى نعم فى رواية عن احمد وكذا روى عن على دون الخلفاء الثلاثة، لكه چه د ابوداؤد په يو نسخه كښې دى كومه چه د بذل المجهود په حاشية باندې دى. د هغه نسخې عبارت دا دې: الناس يتهمون عمرو بن شعيب فى هذا الحديث، قال ابوداؤد: وروى عن ابى بكر وعمر وعثمان خلاف هذا الحديث الا انه روى عن على بن ابى طالب بمثل هذا، د جمهور علماء كرامو استدلال د دې حديث نه دې، ﴿ الولاء لحمة كلحمة النسب لا يباع ولا يورث ﴾ يعنى ولاء خو يو قسم نسب دې او د نسب بيع يا توريث لږ وى بلكه د جمهورو مسلک دا دې چه ولاء د مولى دپاره وى او

---

[1] ) كما في قوله تعالي جآؤكم حصرت صدورهم اي وقد حصرت صدورهم)

که هغه نه وی نو بیا اقرب العصبة الی المولی پشان دې، د نورو مالونو د پاره په دې کښې باقاعده میراث نه جاری کیږی چه په ټولو وارثانو کښې تقسیم شی، د امام ابوداؤد رحمه الله د جواب حاصل کوم چه مونږ د حاشیې نه نقل کړې دې. دا دې چه دا حدیث ضعیف دې بلکه ثابت نه دې ځکه چه دا د عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده په سند سره دې چه په هغې باندې کلام مشهور دې، او دویم په دې وجه هم چه دا د یو بل مشهور او صحیح حدیث خلاف دې یعنی ﴿الولاء لمن اعتق﴾ خو د حضرت گنگوهی رحمه الله په بعض تقاریرو کښې دا دی چه د عمر رضی الله عنه په حدیث کښې چه دا ذکر کړې شوې دی ﴿ما احرز الولد﴾ نو د احراز تعلق خو د ترکې سره وی د ولاء سره د هغې تعلق نه شی کیدې ﴿اذ هو لحمة کلحمة النسب فلا یمکن احرازه مثل النسب﴾ او وراثت جاری کیږی په مال کښې نه په نسب کښې، لهذا دا به وئیلې شی چه د عمر رضی الله عنه د فیصلې تعلق د رباع وغیره مالونو سره دې د ولاء سره نه دې آه..... قلت لکن فیه ما فیه.... دا حدیث ماته په سبق کښې ډیر گران معلوم شو الحمد لله چه حل شو. والحدیث اخرجه النسائی وابن ماجة، واخرجه النسائی ایضا مرسلا، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يُسْلِمُ عَلَى يَدَيِ الرَّجُلِ

### باب: ځوک چه د بل مسلمان په لاس مسلمان شی نو هغه به دده وارث وی

[۲۹۱۸] (¹) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ مَوْهَبٍ الرَّمْلِيُّ، وهِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا يَحْيَى، قَالَ أَبُو دَاوُد وَهُوَ ابْنُ حَمْزَةَ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ عُمَرَ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ مَوْهَبٍ، يُحَدِّثُ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنْ قَبِيصَةَ بْنِ ذُؤَيْبٍ، قَالَ هِشَامٌ، عَنْ تَمِيمٍ الدَّارِيِّ، أَنَّهُ قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَقَالَ يَزِيدُ: إِنَّ تَمِيمًا قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا السُّنَّةُ فِي الرَّجُلِ يُسْلِمُ عَلَى يَدَيِ الرَّجُلِ مِنَ الْمُسْلِمِينَ؟ قَالَ: "هُوَ أَوْلَى النَّاسِ بِمَحْيَاهُ وَمَمَاتِهِ".

تمیم داری رضی الله عنه وائی چه ما عرض اوکړو، اې د الله رسوله ﷺ! د هغه سړی باره کښې د شریعت څه حکم دې چا چه د یو مسلمان سړی په لاس باندې ایمان راوړلې وی؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: دغه سړې د نورو په نسبت د هغه مرگ او ژوند ته زیات نزدې دې (که د هغه بل څوک وارث نه وی نو هم دې به ئې وارث وی).

﴿ان تمیما رضی الله تعالی عنه قال یا رسول الله ﷺ! ما السنة فی الرجل یسلم علی یدی الرجل؟ قال هو اولی الناس بمحیاه ومماته﴾

### شرح الحدیث والکلام علیه من حیث الفقه:

یعنی د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړې شو چه د شریعت فیصله د هغه انسان په باره کښې څه ده چه د یو مسلمان په لاس باندې اسلام قبول کړی؟ (ښکاره خبره ده چه د هغه لوئې احسان دې په دې نوی مسلمان شوی باندې پس وړاندې فرمائی چه) هغه یعنی د کوم سړی په لاس باندې چه اسلام راوړې شو په ټولو خلقو کښې زیات مستحق دې د دې نوی مسلمان شوی په ژوند کښې هم او د هغه د مړ کیدو نه پس هم، چه هر کله په ټولو انسانانو

¹): سنن الترمذي/الفرائض ۲۰ (۲۱۱۲)، سنن ابن ماجه/الفرائض ۱۸ (۲۷۵۲)، (تحفة الأشراف: ۲۰۵۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۰۲/٤، ۱۰۳)، سنن الدارمي/الفرائض ۳٤(۳۰۷٦) (حسن صحیح)

کښې د تولو نه زیات هم هغه اولی او احق دې د هغه نوی مسلمان شوی نو د هغه ولاء به هم د هغه دپاره وی لکه د آزاد کړې شوی غلام ولاء چه د معتق دپاره وی.
دا حدیث چه کوم علماء کرام د ولاء الاسلام قائل دی د هغوی دلیل دې لکه عمر بن عبدالعزیز رحمه الله او سعید بن المسیب رحمه الله وغیره کما تقدم فی مبداء الباب او د جمهورو استدلال دمشهور حدیث ﴿ الولاء لمن اعتق ﴾ نه دې چه متفق علیه دې ځکه چه په هغه حدیث کښې په حصر سره بیان کړې شوې ده د ولاء د معتق دپاره کیدل، معلومه شوه د ولاء سبب صرف عتق دې اسلام یا بل څه نه دی، او د حدیث الباب جواب دا دې چه هغه ضعیف دې، امام ترمذی رحمه الله هم په دې باندې کلام کړې دې او نورو محدثینو هم، په دې کښې یو روای عبدالعزیز بن عمر دې هغه ضعیف دې دغه شان ابن وهب راوی غیر معروف دې، په خلاف د جمهور علماء کرامو د دلیل چه هغه متفق علیه حدیث دې، او دویم جواب د دې حدیث دا ورکړې شوې دې چه دا منسوخ دې، کیدې شی چه په شروع د اسلام کښې رسول الله ﷺ فرمائیلې وی، ځکه چه په ابتداء د اسلام کښې د اسلام او نصرت په بنیاد باندې توارث کیدلو کوم چه روستو منسوخ شو، بعض شارحانو د احنافو مذهب هم د دې حدیث موافق لیکلې دې چه احناف هم د ولاء الاسلام قائل دی، خو دا نقل مطلقا صحیح نه دې خو که د اسلام سره موالاة او محالفه هم مقترن شی نو امر اخر دې په دې صورت کښې به زمونږ په نزد معتبر دا وی او په دې صورت کښې د هغه دپاره ولاء وی، ځکه چه احناف د ولاء الموالاة قائل دی چه د هغې جمهور قائل نه دی کما تقدم من قبل ذلک..... ښه ځان پوهه کړئ کذا قال الشیخ فی البذل. والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری

## بَابٌ فِي بَيْعِ الْوَلَاءِ

### باب: د ولاء (میراث) خرڅولو بیان

[۲۹۱۹] (۱) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الْوَلَاءِ وَعَنْ هِبَتِهِ".

عبدالله بن عمر رضی الله عنه وائی چه رسول الله ﷺ د ولاء خرڅولو او ددې د هبه کولو نه منع فرمائیلې ده.

قوله: نهی رسول الله ﷺ عن بیع الولاء وعن هبته :

**شرح الحدیث:**

په زمانه د جاهلیت کښې به عربو د ولاء بیع کوله او د هغې به ئې اجرت اخستلو، اسلام چه راغلو نو د دې نه ئې منع اوکړه ځکه چه ولاء څه مال نه دې چه د هغې بیع اوکړې شی بلکه دا د حقوقو نه یو حق دې فلا یرد علیه البیع (بذل) یعنی ولاء د استحقاق ارث نوم دې یعنی د

(۱): صحیح البخاري/ العتق ۱۰ (۲۵۳۵)، الفرائض ۲۱ (۶۷۵۶)، صحیح مسلم/ العتق ۳ (۱۵۰۶)، سنن الترمذي/البیوع ۲۰ (۱۲۳۶)، الولاء ۱ (۲۱۲۶)، سنن النسائي/البیوع ۸۵ (۴۶۶۳)، (تحفة الأشراف: ۷۱۸۹)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/العتق والولاء ۱۰ (۲۰)، سنن ابن ماجه/الفرائض ۱۵ (۲۷۴۷) مسند احمد (۲/۹، ۷۹، ۱۰۷)، سنن الدارمي/البیوع ۳۶ (۲۶۱۴) (صحیح)

معتق (ازاد کړې شوې غلام) د میراث استحقاق کوم چه معتق ته حاصل وی د عتق په وجه، عتق یو احسان عظیم دې د مولی د طرف نه په خپل غلام باندې نو د دې په صله کښې شریعت معتق لره د معتق د میراث حق ورکړو چه د هغه د مرګ نه پس هغه د هغه مالک ته ملاؤ شی، لکه چه نسب سبب د استحقاق وی پس څنګه چه د نسب نه حق د میراث حاصلیږی هم دغه شان د عتق نه د میراث حق حاصلیږی چه د هغې نه په ولاء سره تعبیر کولې شی او ښکاره خبره ده بیع او هبه وغیره کیږی د جواهرو. نه د معانی او اعراضو، اصل معنی خو د ولاء هم دا ده، هسې د دې اطلاق او استعمال په میراث المعتق باندې کیږی. والله تعالی اعلم وهذا غاية تسهيل لهذا المقام والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الْمَوْلُودِ يَسْتَهِلُّ ثُمَّ يَمُوتُ

### که چرې يو ماشوم ژوندې پيدا شي او د څه نه پس مړ شي؟

[۲۹۲۰] (1) حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ يَعْنِي ابْنَ إِسْحَاقَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ قُسَيْطٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِذَا اسْتَهَلَّ الْمَوْلُودُ وُرِّثَ".

دابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی ماشوم چه کله د پیدا کیدو نه پس آواز اوکړي نو ده لره وارث ګرځولې شي.

﴿عن ابی هريرة رضی الله عنه عن النبی صلی الله علیه وسلم قال اذا استهل المولود ورث﴾

د استهلال اصل معنی خو د میاشت لیدو ده (روية هلال) د دې نه پس د دې استعمال اوشو په رفع الصوت یعنی چغه وهلو کښ، په دې مناسبت سره چه په ږومبئ شپه باندې د میاشت په لیدو باندې خلق شور کوی چه میاشت اولیدې شوه، بیا د دې نه پس د دې استعمال د ژوند آثار او د ماشوم په ژړا کښې شروع شو هم دا دلته په حدیث کښې مراد دې.

### حديث الباب کښې اختلاف دائمة :

او د حدیث مطلب دا دې چه د ماشوم د پیدا کیدو نه پس که په هغه کښې د ژوند آثار بیا موندلې شو او په دې دوران کښې څوک نزدې خپلوان مړ شو نو مولود به د هغه وارث وی او که بیا نه موندلې شی نو نه به وی، د احنافو او شوافعو په نزد خو هم دغه شان ده چه صرف د ژوند د آثارو موجود کیدل کافی دی، وقال مالک رحمه الله واحمد رحمه الله بشرط الرضاع كذا في هامش البذل عن الشعرانی.

دلته یوه بله مسئله ده او هغه ده د ﴿صلوة علی الطفل﴾ کومه چه په کتاب الجنائز کښې را روانه ده هغه دا چه په ماشوم باندې د مونځ کولو دپاره هم د ژوند آثار بیا موندل ضروری دی یا نه؟ دا مسئله مختلف فیه ده، د ائمه ثلاثه او جمهور په نزد خو هلته هم استهلال شرط دې، د امام احمد رحمه الله په دې کښې اختلاف دې د هغوی په نزد شرط نه دې، دليل به د مسئلې په خپل مقام کښې راشی، دلته تبعا راغلو.

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۴۸۴۰) (صحيح)

## بَابُ نَسْخِ مِيرَاثِ الْعَقْدِ بِمِيرَاثِ الرَّحِمِ

**په رشته دارئ د وارث کيدو په بنا د اقرار په ذريعه وارث کيدل منسوخ شول**

[۲۹۲۱]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ ثَابِتٍ، حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يَزِيدَ النَّحْوِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: «وَالَّذِينَ عَاقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ فَآتُوهُمْ نَصِيبَهُمْ»، كَانَ الرَّجُلُ يُحَالِفُ الرَّجُلَ لَيْسَ بَيْنَهُمَا نَسَبٌ فَيَرِثُ أَحَدُهُمَا الآخَرَ، فَنَسَخَ ذَلِكَ الأَنْفَالُ فَقَالَ تَعَالَى: «وَأُولُو الأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَى بِبَعْضٍ» سورة الأنفال آية ۷۵.

دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دي فرمائی چه دالله تعالى داقول: «والذين عقدت أيمانكم فآتوهم نصيبهم» په تيره زمانه کښې به خلقو يوبل ته قسم وکړو او ددوی په مينځ کښې به رشته داري نه وه اويوبه دبل وارث جوړ شو نوداحکم دسورة انفال په دې ايت: «وأولو الأرحام بعضهم أولى ببعض» باندې منسوخ شو.

[۲۹۲۲]() حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، حَدَّثَنِي إِدْرِيسُ بْنُ يَزِيدَ، حَدَّثَنَا طَلْحَةُ بْنُ مُصَرِّفٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ فِي قَوْلِهِ تَعَالَى: «وَالَّذِينَ عَاقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ فَآتُوهُمْ نَصِيبَهُمْ»، قَالَ: كَانَ الْمُهَاجِرُونَ حِينَ قَدِمُوا الْمَدِينَةَ تُوَرَّثُ الأَنْصَارَ دُونَ ذَوِي رَحِمِهِ لِلأُخُوَّةِ الَّتِي آخَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُمْ، فَلَمَّا نَزَلَتْ هَذِهِ الآيَةُ وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ مِمَّا تَرَكَ، قَالَ نَسَخَتْهَا وَالَّذِينَ عَقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ فَآتُوهُمْ نَصِيبَهُمْ سورة النساء آية ۳۳، مِنَ النَّصْرِ وَالنَّصِيحَةِ وَالرِّفَادَةِ وَيُوصِي لَهُ وَقَدْ ذَهَبَ الْمِيرَاثُ.

دابن عباس نه دالله پاك ددې قول: قوله «والذين عقدت أيمانكم فآتوهم نصيبهم» متعلق منقول دي چه کله مهاجرين مدينې ته راغلل نو انصاربه ددوی وارثان کيدل اودوی به دانصارو وارثان کيدل علاوه درشتنه دارئ. په وجه دهغه اخوت کوم چه نبی عليه السلام په دوی کښې قائم کړي ووهرکله چه دا ایة نازل شو «ولكل جعلنا موالي مما ترك» نازل نو پورتني ايت منسوخ شو.

### شرح الحديث وايضاح المسئلة:

دا د ولاء د سلسلې دريم باب دې چه د هغې ذکر په شروع کښې راغلې دې، د عقد نه مراد عقد بالموالاة چه هغې ته ولاء الموالات هم وئيلې شی، د مصنف رحمه الله دا ترجمه د ائمه ثلاثه د مسلك مطابق ده کوم چه دا وائی چه د عقد موالاة په ذريعه استحقاق د ارث اوس پاتې نه شو بلکه منسوخ شوې دې د ميراث د رحم په ذريعه، د رحم نه مراد رشته دار او خپلوان دی، يعنی د خپلوانو ميراث د عقد موالات ميراث منسوخ کړو د ناسخ او منسوخ دواړو بيان په حديث الباب کښې ذکر شوې دې، پس رومبی آيت کريمه ﴿ والذين عاقدت ايمانكم ﴾ کښې د ميراث موالات ثبوت دې لکه چه ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه په شروع کښې به داسې کيدل چه يو سړی د يو پردئ سره محالفت يعنی د دوستئ عهد اوکړو بغير د نسبی تعلق نه او بيا به د هغه عقد د وجې به هغوی د يو بل وارثان وو لکه چه د مهاجرينو او انصارو

---

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۶۲۶۱) (حسن صحيح)

(۲): صحيح البخاري/الكفالة ۲ (۲۲۹۲)، تفسير سورة النساء ۷ (۲۲۹۲)، الفرائض ۱۶ (۶۷۴۷)، (تحفة الأشراف: ۵۵۲۳) (صحيح)

ترمینځه داسې شوي وو، ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه دې آيت لره د سورة الانفال د آيت کريمه ﴿والوا الارحام بعضهم اولى ببعض﴾ سره منسوخ کړې شو او د ابن عباس رضي الله عنهما د دې نه روستو راتلونکې روايت کښې بعينه هم دا مضمون دې چه کله مهاجرين مدينه طيبې ته اورسيدل نو هغوی به د انصارو وارثان جوړيدل نه د هغوی خپلوان يعنی د انصارو وارثان به مهاجرين وو د خپلوانو په ځائې د خپلوانو د وارث کيدو، ﴿ فلما نزلت هذه الاية... ولكل جعلنا موالى مما ترک..... قال نسختها ﴾ يعنی چه کله دا دويم آيت کريمه ﴿ ولكل جعلنا موالى مما ترک ﴾ نازل شو نو هغه ړومبې آيت کريمه منسوخ شو، په دې عبارت کښې د نسخت فاعل دا آيت ثانيه يعنی ﴿ولكل جعلنا موالى ﴾ دې او ضمير منصوب راجع دې آيت اولى ته، ﴿ والذين عاقدت ايمانكم ﴾ طرف ته، او دا جمله هم دلته پوره شوه د ناسخ او منسوخ دواړو بيان راغلو، بيا د دې نه روستو په دويم ځل چه کوم آيت او عبارت راځی، ﴿ والذين عاقدت ايمانكم فاتوهم نصيبهم ﴾ من النصر والنصيحة الخ..... د دې نه مقصود د ابن عباس رضي الله عنهما دا بيان کول دی چه د دې آيت منسوخ کيدو نه پس اوس د دې آيت کريمه مفهوم چه په هغې باندې عمل کيدل پکار دی هغه صرف نصر ا دنصيحت باقی پاتې شو ﴿ وقد ذهب الميراث ﴾ يعنی د ميراث په باره کښې دا آيت کريمه نه دې منسوخ شوې صرف د ميراث په اعتبار سره منسوخ شوې دې د دې آيت د داسې وضاحت کولو ضرورت مونږ ته ځکه راغلو چه په بادی الرائ کښې عبارت داسې دې. ﴿ نسختها والذين عقدت ايمانكم ﴾ يعنی په ظاهره دا معلوميږی چه د نسخت فاعل ﴿ والذين عاقدت ايمانكم ﴾ دې. او ﴿ها ﴾ ضمير ﴿ ولكل جعلنا ﴾ طرف ته واپس کيږی، په دې صورت کښې مطلب بالکل برعکس کيږی، ښه ځان پوهه کړئ، د محنت او د غور کولو ضرورت دې بغير د هغې نه هيڅ نه حاصليږی، دا د ابن عباس رضي الله عنهما روايت او څه چه هغوی د نسخ په باره کښې فرمائيلي دی د ائمه ثلاثه موافق دی او د هغوی رائې هم دا ده. د دې خلاف احناف چه د ميراث العقد قائل دی هغوی وائی ﴿والذين عقدت ايمانكم ﴾ د دې آيت کريمه دپاره دويم آيت ﴿ والوا الارحام بعضهم اولى ببعض ﴾ ناسخ نه دې بلکه دواړه آيتونه معمول بها دی فرق دا دې چه په شروع کښې به په عقد موالاة باندې ميراث جاری کيده او خپلوانو لره به وارث نه شو جوړولې، بيا روستو چه کله دا آيت نازل شو نو د هغې مطلب هغوی دا اخلی چه اقارب په توريث کښې مقدم وی په عقد موالاة باندې يعنی د هغوی په موجودګئ کښې به مولى الموالاة وارث نه وی، او که په ذوی الارحام کښې څوک نه وی نو هغه وخت به مولى الموالاة وارث وی، د ذوی الارحام نه مراد اقارب او رشته دار دی.

هكذا ينبغي ان يفهم بهذا المقام فانه من مزال الاقدام..........

والحديث اخرجه البخاري والنسائي، قاله المنذري

[۲۹۲۳]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَعَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ يَحْيَى الْمَعْنَى، قَالَ أَحْمَدُ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ الْحُصَيْنِ، قَالَ: كُنْتُ أَقْرَأُ عَلَى أُمِّ سَعْدٍ بِنْتِ الرَّبِيعِ، وَكَانَتْ يَتِيمَةً فِي حِجْرِ أَبِي بَكْرٍ، فَقَرَأْتُ. وَالَّذِينَ عَاقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ، فَقَالَتْ: لَا تَقْرَأْ. وَالَّذِينَ عَاقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ. وَلَكِنْ وَالَّذِينَ عَقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ سورة النساء آية ۳۳، إِنَّمَا نَزَلَتْ فِي أَبِي بَكْرٍ، وَابْنِهِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ حِينَ أَبَى الْإِسْلَامَ، فَحَلَفَ أَبُو بَكْرٍ أَلَّا يُوَرِّثَهُ، فَلَمَّا أَسْلَمَ أَمَرَ اللَّهُ تَعَالَى نَبِيَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ أَنْ يُؤْتِيَهُ نَصِيبَهُ، زَادَ عَبْدُ الْعَزِيزِ فَمَا أَسْلَمَ حَتَّى حُمِلَ عَلَى الْإِسْلَامِ بِالسَّيْفِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: مَنْ قَالَ عَقَدَتْ جَعَلَهُ حِلْفًا، وَمَنْ قَالَ عَاقَدَتْ جَعَلَهُ حَالِفًا، وَالصَّوَابُ حَدِيثُ طَلْحَةَ عَاقَدَتْ.

دابوداود بن حصين نه روايت دې وائي چه مابه ام سعد بنت ربيع ته قران كريم لوستلو اوهغه يتيمه وه دابوبكر په نګرانئ كښې وه نوما دا ايت كريمه «والذين عقدت أيمانكم» ولوستلو نوهغې اووئيل دا آيت كريمه مه لوله ځكه چه دا دحكم په اعتبار سره منسوخ شوې دې دا ايت كريمه دابوبكر دځوي عبد الرحمن په باره كښې نازل شوې وو كله چه هغه د اسلام قبلولو نه انكار كړې وو نو ابوبكر رضي الله عنه قسم كړې وو چه زه به عبد الرحمن خپل وارث نه جوړوم كله چه هغه اسلام قبول كړو نو هغه ورته دحصې وركولو حكم اوكړو، دعبد العزيز په روايت كښې دا اضافه ده چه عبد الرحمن دتورې په زور مسلمان شوې وو.

## مضمون الحديث:

**قوله:** ﴿ عن داؤد بن الحصين قال كنت اقراء على ام سعد بنت الربيع وكانت يتيمة فى حجر ابى بكر رضي الله عنه الخ ﴾: داؤد بن الحصين وائي چه ما به د ام سعد رضي الله عنها سره قرآن لوستلو او د هغې نه به مې زده كولو او دا ام سعد رضي الله عنها د ابوبكرصديق رضي الله عنه كره لويه شوې وه، چونكه دا يتيمه شوې وه په دې وجه ئې هم هلته پالنه بيا موندله، نو يوه ورځ چه كله ما د هغوى خوا كښې قراءت كولو نو ما دا آيت كريمه داسې اولوستلو ﴿ والذين عاقدت ايمانكم ﴾ (د باب مفاعلة نه) نو هغې زه اوټوكلم چه داسې مه لوله بلكه ﴿ والذين عقدت ايمانكم ﴾ اولوله (يعنى د مجرد نه) او د دې وجه ئې دا بيان كړه چه ماته معلومه ده چه دا آيت كريمه د ابوبكرصديق رضي الله عنه او د هغوى د ځوى عبد الرحمن رضي الله عنه په باره كښې نازل شوې دې چه كله په شروع كښې عبد الرحمن د اسلام راوړلو نه انكار اوكړو نو ابوبكرصديق رضي الله عنه د هغوى نه ناراضه كيدو سره قسم خوړلې وو چه زه به تا نه وارث كوم، يعنى ته به په مونږ كښې د چا وارث هم نه ئې چه هر كله ته اسلام نه قبلوئ. هغه وائي چه كله عبد الرحمن رضي الله عنه اسلام قبول كړو نو رسول الله ﷺ ابوبكرصديق رضي الله عنه ته حكم وركړو چه هغه ته د هغه حصه وركړه او وراثت ئې جوړ كړه. ام سعد رضي الله عنها دا وئيل غواړي چه په دې آيت كريمه كښې د عقد نه مراد حلف دې او قسم كونكې ځانله ابوبكرصديق رضي الله عنه وو نو د هغه دپاره لفظ عقدت مناسب دې نه ﴿ عاقدت ﴾ ځكه چه باب مفاعله خو شركت او تعدد لره غواړي.

دا د ام سعد رضي الله عنها خبره په يو لحاظ سره خو په خپل ځائې باندې صحيح ده خو ﴿ عاقدت ﴾ خو مستقل يو قراءت دې كيدې شي چه هغوى ته د دې علم نه وى وراندې په روايت كښې دى

---

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۳۲۰) (ضعيف)

راوی وائی ﴿فما اسلم حتی حمل علی الاسلام بالسیف﴾ راوی د عبدالرحمن رضی الله عنه د اسلام حال بیانوی چه هغوی په شروع کښې خو اسلام نه وو قبول کړې په شروع کښې خو د مسلمانانو دشمن وو، د مسلمانانو خلاف ئې توره اوچته کړې وه (ځکه چه دې په جنګ بدر کښې د مشرکانو سره راغلې وو) ﴿ثم هداه الله تعالی فاسلم قبیل الفتح﴾ بیا الله پاک هغه ته د اسلام هدایت اوکړو د فتح مکه نه مخکښې.

[۲۹۲٤](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يَزِيدَ النَّحْوِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما، وَالَّذِينَ آمَنُوا وَهَاجَرُوا سورة الأنفال آية ٧٢، وَالَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يُهَاجِرُوا سورة الأنفال آية ٧٢، فَكَانَ الْأَعْرَابِيُّ لَا يَرِثُ الْمُهَاجِرَ، وَلَا يَرِثُهُ الْمُهَاجِرُ فَنَسَخَتْهَا فَقَالَ: وَأُولُو الْأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَى بِبَعْضٍ سورة الأنفال آية ٧٥.

دابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه دالله تعالی مخکښې حکم داوو: «والذین، آمنوا وهاجروا»، «والذین آمنوا ولم یهاجروا» کله چه ددې نه پس دا ایت نازل شو: «وأولو الأرحام بعضهم أولی ببعض» نو اولنې آیت منسوخ شو.

﴿عن ابن عباس رضی الله عنهما ......... فکانت الاعرابی لا یرث المهاجر ولا یرثه المهاجر الخ﴾

اعرابی وائی غیر مهاجر ته یعنی کوم سړې چه اسلام قبلولو سره په خپل کلی کښې پاتې شی او هجرت اونکړی یعنی په شروع کښې د وراثت مدار په نسب باندې نه وو بلکه په هجرت او نصرت باندې وو په دې وجه مهاجر د انصاری او انصاری به د مهاجر بغیر د نسب نه وارث وو، او مهاجر به د غیرمهاجر سره د نسب نه وارث نه وو.

## بَابٌ فِي الْحِلْفِ

### په څه خبره د قسم کولو بیان

دا حلف په کسرې دحاء او سکون دلام سره دې په معنی د مخالفت، پس په قاموس کښې دی، ﴿والحلف بالکسر العهد بین القوم اهـ﴾ او کوم حلف چه د قسم په معنی کښې دې هغه په قاموس کښې په درې طریقو سره لیکلې شوې دې حَلف، حلف او حلف

[۲۹۲۵](٢) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بِشْرٍ، وَابْنُ نُمَيْرٍ، وأبو أسامة، عَنْ زَكَرِيَّا، عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا حِلْفَ فِي الْإِسْلَامِ وَأَيُّمَا حِلْفٍ كَانَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ لَمْ يَزِدْهُ الْإِسْلَامُ إِلَّا شِدَّةً".

دزبیر بن مطعم رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی چه په اسلام کښې دکفر دزمانې قول لره اعتبارنشته اوهریوقسم چه دجاهلیت په زمانه کښې شوې وې اسلام هغې لره نه زیاتوې مګرسختوالې.

**شرح الحدیث:**

قوله: ﴿قال رسول الله ﷺ لا حلف فی الاسلام﴾ د جاهلیت په زمانه کښې قتال او ظلمونو

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٢٦٢) (حسن صحيح)

(٢): صحيح مسلم/فضائل الصحابة ٥٠ (٢٥٣٠)، (تحفة الأشراف: ٣١٨٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨٣/٤) (صحيح)

باندې به خپل مينځ کښې قومونو معاهده کوله نو ښکاره خبره ده چه په اسلام کښې د دې گنجائش چرته دې، رسول الله ﷺ هم دا خبره فرمائی : ﴿ لا حلف فی الاسلام وایما حلف كان فی الجاهلية لم يزده الاسلام الاشدة ﴾ په زمانه د جاهليت کښې به کله په خير او امور حقه باندې هم کيدو. په دې جمله کښې رسول الله ﷺ هم د هغې په باره کښې فرمائی چه داسې حلف اسلام نه دې مات کړې بلکه نورئې هم مضبوط کړې دې کوم معنی چه د حلف مونږ په دويمه جمله کښې اخستلې ده که دا معنی په ړومبئ جمله کښې هم واخستلې شی نو دا هم کيدې شی او په دې صورت کښې به مطلب دا وی چه په اسلام کښې په امور حقه او خير باندې محالفت ته حاجت نشته بلکه اخوت اسلامی بذات خود کافی دې په امور خير باندې د تعاون دپاره كذا قالوا.. والحديث اخرجه مسلم، قاله المنذرى

[۲۹۲۶](¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَاصِمٍ الْأَحْوَلِ، قَالَ: سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُولُ: حَالَفَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنْصَارِ فِي دَارِنَا، فَقِيلَ لَهُ: أَلَيْسَ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا حِلْفَ فِي الْإِسْلَامِ"، فَقَالَ: حَالَفَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنْصَارِ فِي دَارِنَا مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا.

دانس بن مالك بنه روايت دې فرمائی چه نبی ﷺ زمونږ په كور كښې دانصارو اود مهاجرينو په مينځ كښې ورور ولي قائم كړه په دې وخت كښې اووئيلې شول ايانبى ﷺ نه دی فرمائيلې چه داسلام په زمانه كښې دجاهليت قول لره اعتبار نشته هغه اووئيل نبی ﷺ زمونږ په كور كښې دمهاجرينو اودانصارو په مينځ كښې ورورولي قائم كړې وه دوه ځله يا درې ځله.

## بَابٌ فِي الْمَرْأَةِ تَرِثُ مِنْ دِيَةِ زَوْجِهَا

### ښځه د خاوند په ديت كښې حصه اخستلې شي

[۲۹۲۷](²) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدٍ، قَالَ: كَانَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ يَقُولُ: الدِّيَةُ لِلْعَاقِلَةِ وَلَا تَرِثُ الْمَرْأَةُ مِنْ دِيَةِ زَوْجِهَا شَيْئًا حَتَّى قَالَ لَهُ الضَّحَّاكُ بْنُ سُفْيَانَ كَتَبَ إِلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أُوَرِّثَ امْرَأَةَ أَشْيَمَ الضِّبَابِيِّ مِنْ دِيَةِ زَوْجِهَا فَرَجَعَ عُمَرُ، قَالَ أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ بِهَذَا الْحَدِيثِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدٍ، وَقَالَ فِيهِ، وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَعْمَلَهُ عَلَى الْأَعْرَابِ.

دسعيد نه روايت دې چه عمر رضي الله عنه به فرمائيل ديت دخاندان دخلقو دپاره وي اوښځه د خپل خاوند په ديت كښې وارثه نه شي جوړيدن تردې چه ضحاك بن سفيان دده نه نقل كړې دی چه نبی ﷺ ماته ليكلي وو چه زه داشيم ضبابي ښځې لره دهغې. دخاوند په ديت كښې وارثه مقرركړم كله چه عمر رضي الله عنه داخبره واوريده نو خپله رائي بدل كړه. احمد بن صالح

---

¹): صحيح البخاري/الكفالة ٢ (٢٢٩٤)، والأدب ٦٧ (٦٠٨٣)، والاعتصام ١٦ (٧٣٤٠)، صحيح مسلم/فضائل الصحابة ٥٠ (٢٥٢٩)، (تحفة الأشراف: ٩٣٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١١/٣، ١٤٥، ٢٨١) (صحيح)

²): سنن الترمذي/الديات ١٩ (١٤١٥)، سنن ابن ماجه/الديات ١٢ (٢٦٤٢)، (تحفة الأشراف: ٤٩٧٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٥٢/٣) (صحيح)

وئیلی دی چه دا حدیث عبد الرزاق دمعمرنه نقل کړې دې او هغه دزهري نه او هغه دسعیدنه.
﴿عن سعید قال کان عمر بن الخطاب ﷛ یقول : الدیة للعاقلة ولا ترث المراة من دیة زوجها شیئا﴾
یعنی په شروع کښې د عمر ﷛ دا رائې وه چه د مقتول دیت به د عصبة المقتول دپاره وی، او ښځه به د خپل خاوند د دیت وارثه نه وی، تردې چه د عمر ﷛ ته ضحاک بن سفیان ﷛ دا بیان نقل کړو چه د رسول الله ﷺ لیکل ماته راغلې وو ﴿ورث امراءة اشیم الضبابی من دیة زوجها﴾ یعنی اشیم ضبابی چه کله قتل شوې وو نو رسول الله ﷺ ضحاک ته اولیکل چه د هغه په دیت کښې د هغه ښځه وارثه کړه، نو په دې باندې عمر ﷛ د خپلې مخکښې رائې نه رجوع اوکړه.

دا ضحاک بن سفیان ﷛ هغه صحابی دې کوم چه رسول الله ﷺ د خپل قوم په صدقاتو وصول کولو باندې عامل مقرر کړې وو. په دې مسئله کښې چه کومه رائې د عمر ﷛ وه وئیلې شوې دی چه هغه د علی ﷛ هم وه، خو د عمر ﷛ رجوع ثابته شوه د جمهورو مسلک طرف ته د ضحاک بن سفیان ﷛ د روایت د وجې نه.

## د دیة په باره کښې په شروع کښې د عمر ﷛ رائې او بیا د هغې نه رجوع:

څان پوهول پکار دی چه د دیت مسئله او قاعده د جمهورو په نزد دا ده چه هغه واجب خو وی په عاقله یعنی عصبة القاتل باندې او ملاویږی د مقتول وارثانو ته. په دې کښې د عمر ﷛ رائې د جمهور خلاف وه هغه دا چه دیت واجب هم په عاقله باندې وی او ملاویږی هم عاقله ته، خو چونکه د هغوی مسلک دا وو هم د دې په وجه هغوی د خاوند په دیت کښې د ښځې د حصې قائل نه وو څکه چه زوجه په عاقله کښې نه دې، خو چه کله هغه ته د ضحاک بن سفیان روایت اورسیدو نو هغوی د خپلې رائې نه رجوع اوکړه. دلته دا سوال واردیږی چه د عمر ﷛ رائې دا ولې وه چه په دیت کښې وراثت نه جاری کیږی او هغه وارثانو ته نه ملاویږی بلکه صرف عاقله ته ملاویدل پکار دی؟

د دې وجه لکه چه شارحانو لیکلی دی علی ظاهر القیاس دا ده چه وراثت جاری کیږی په هغه مال کښې چه د مړی ملکیت وی (لکه چه عام مالونه وی د دیت نه علاوه) او د دیت وجوب او ثبوت چونکه وی د مقتول نه پس او په میت کښې د مالک کیدو صلاحیت نشته په دې وجه د دې تقاضه دا ده چه په دیت کښې وراثت هم نه دی کیدل پکار، پس دا صرف عاقله ته ملاویدل پکار دی د تحمل دیت د وجې نه، یعنی چونکه صرف عاقله د قاتل د طرف نه د مقتول د دیت متحمل وی د دې تحمل د وجې نه ملاویدل هم صرف عاقله ته پکار دی، لهذا نه ښځې ته ملاویدل پکار دی نه د هغې نه علاوه نورو وارثانو ته، خو بیا چه کله عمر ﷛ ته د ضحاک بن سفیان ﷛ په واسطې سره د رسول الله ﷺ د فیصلې علم اوشو چه هغوی په دیت کښې د ښځې حصه مقرر کړې ده نو په دې باندې هغوی خپله رائې او قیاس ترک کولو سره رجوع اوکړه.

والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری

تنبیه : د ضحاک بن سفیان ﷛ دا روایت د عمر ﷛ د رائې دیت زوج په سلسله کښې

زمونږ د سنن په رواياتو کښې په ابوداؤد او ترمذی کښې صرف دومره دې چه د هغې نه په بادئ الرائ سره دا فهميږی چه د عمر رضی الله عنه رائې صرف د زوجې سره متعلق دې حال دا چه داسې نه ده بلکه د عمر رضی الله عنه رائې د ديت په باره کښې مطلقاً دا وو چه هغه للعاقلة دې للورثة نه دې په خلاف د جمهور علماء کرامو چه د هغوی رائې دا ده چه ديت واجب خو وی په عاقله باندې او په وراثت کښې مستحق وی د هغه وارثان نو ګويا د عمر رضی الله عنه اختلاف د جمهورو سره په اصل مسئله کښې دې پس په نصب الرايه ۳۵۲/٤ کښې دی هم د دې سلسلې درواياتو د لاندې علامه زيلعی رحمه الله د سنن والا رواياتو د تخريج نه پس د مصنف عبدالرزاق نه دا روايت نقل کړې دې ﴿ ورواه عبدالرزاق فی مصنفه اخبرنا معمر عن الزهری عن ابيه عن ابن المسيب ان عمر بن الخطاب قال : ما اری الدية الا للعصبة لانهم يعقلون عنه، فهل سمع احد منکم من رسول الله صلی الله عليه وسلم فی ذلک شيئا؟ فقال الضحاک بن سفيان الکلابی وکان عليه السلام استعمله علی الاعراب... کتب الی رسول الله صلی الله عليه وسلم ان اورث امراءة اشيم الضبابی من دية زوجها، فاخذ به عمر اهـ ﴾ او همدغه شان په موطاء د امام محمد کښې ﴿ باب الرجل يرث من دية امراة والمراءة يرث من دية زوجها ﴾ کښې روايت داسې دې ﴿ ان عمر بن الخطاب رضی الله عنه نشد الناس بمنی : من کان عنده علم فی الدية ان يخبرنی به فقام الضحاک بن سفيان فقال کتب الخ ﴾ او دا چه په دې رواياتو کښې د زوجې تخصيص دې د هغې منشاء هم د بعض روايتونو نه معلوميږی، هغه چه يوې زنانه د عمر رضی الله عنه نه په منی کښې د خپل خاوند دپاره په ديت زوج کښې د حصې مطالبه کړې وه، پس په التعليق الممجد کښې دی ﴿ عن سعيد قال جاءت امرة الی عمر تساله ان يورثها من دية زوجها فقال ما اعلم لک شيئا فنشد الناس الحديث ﴾ بيا د دې نه پس هم په دې حاشيه کښې هغه روايت ذکر شوې دې کوم چه په شروع کښې مونږ د نصب الرايه نه نقل کړو. ﴿ نبهنی علی هذا التفصيل وان اختلاف عمر ليس فی هذه الجزئية فقط فی اصل المسئلة عزيزی المولوی حبيب الله المظاهری الجمبارنی ثم المدنی جزاه الله تعالی خيرا.

## اخر کتاب الفرائض

د مسائل ميراث تفصيل يو مستقل فن دې کوم چه د دې فن په کتابونو کښې مسطور او مذکور دې، خو د دې فن چه کوم بنياد دې يعنی د قرآن کريم آيتونه د ميراث زړه مې اوغوښتل چه کم از کم په دغه آيتونو کښې د ذکر کړې شوې وارثانو حصې خو مونږ په دې خپل کتاب کښې ذکر کړو چه په بنيادی علم کښې د راتلو نه پس لوستونکو ته د نور تفصيلاتو د معلومولو شوق پيدا شی، او دغه شان په حديث شريف ﴿ تعلموا الفرائض وعلموها الناس فانها نصف العلم ﴾ باندې د عمل توفيق هم آسان شی. بنده دا خدمت د خپلې مدرسې بعض فاضلانو ته اوسپارلو ماشاء الله هغوی دا په ډير ښکلی انداز سره ليکلې راوړو کوم چه په حاشيه کښې ليکلې شوې دې. [1]

---

[1] د وراثت په سلسله کښې د زړې زمانې نه په معاشره کښې موجود ظلمونو په وجه باندې الله پاک په قرآن کريم کښې دا مسئله ډير په اهميت او تفصيل سره بيان اوفرمائيله.........لـه

۴۰....پس دسورة النساء په آيت ۱۱ ، ۱۲ او۱۳ کښې ددې مسئلې بنيادی تفصيلات ډير په وضاحت سره موجود دی، مناسب معلوميږی چه د کتب تفسير او فقه په رڼړا کښې د مختصر تشريحاتو سره په دغه آيتونو کښې ذکر کړې شوې حصو لره او د هغې مستحقينو لره دلته په ترتيب سره ذکر کړې شی. ذکر کړې شوې آيتونو کښې د ټولو نه مخکښې حکم دا دې چه د ټول مال نه اول د هغوی قرض ادا کړې شی او د هغې نه بچ شوی مال نه د مال د دريمې حصې د وصيت تنفيذ اوکړې شی.
پس په آيت کريمه ۱۱ او ۱۲ دواړو کښې څه حصې او د هغې د مستحقينو د ذکر کولو نه پس ارشاد دې ﴿من بعد وصية يوصي بها او دين﴾ چه دا ټول تقسيم د ميراث به د دين د ادا کولو او د تنفيذ د وصيت نه پس وی.بيا په دې آيتونو کښې ټولې شپږ حصې بيان کړې شوې دی: نصف (د پوره حصې نيمه) ربع (څلورمه حصه) ثمن (اتمه حصه) ثلثان (دوه دريمې حصې) ثلث (دريمه حصه) سدس (شپږمه حصه)
او د هغې مستحقين اووۀ دی: ۱: اولاد (چه په هغې کښې مذکر او مونث ټول فروع داخل دی يعنی ځامن، لونړه، نمسی، نسمئ دغه شان لاندې نسل، خو واضحه دې وی چه د پورته فرع په موجودګئ کښې به لاندې فرع محروم وی، لکه د ځامنو او لونړو په موجودګئ کښې به نمسې او نمسئ محروم وی...... ۲: پلار (او د هغه د نه کيدو په وخت نيکه، دغه شان پورته نيکونه)..... ۳: مور: او د دې د نه کيدو په وخت دواړه نياګانې چه په يو درجه کښې دی هم دغه شان پورته نياګانې) خو په هغې کښې چه کومه اقرب الى الميت وی هغه به د ابعد الى الميت دپاره حاجب وی) ۴: خاوند، ۵: ښځه، ۶: اخيافی (په مور کښې شريک) رونړه خويندې ۷: حقيقی (په مور پلار کښې شريک) او ۷ علاتی (صرف په پلار کښې شريک رونړه خويندې.
ذکر کړې شوې حصې او د هغې د مستحقينو تفصيل د قرآن تصريح مطابق داسې دی.
**اولاد**: د دوی د وراثت څلور صورتونه دی:
۱: چه مذکر او مونث دواړه وی نو د دې صورت دپاره حکم دې: ﴿يوصيكم الله في اولادكم للذكر مثل حظ الانثيين﴾ چه مذکر ته به دوه حصې او مونث ته يوه حصه ملاويږی.
۲: چه صرف يو مونث وی نو ﴿وان كانت واحدة فلها النصف﴾ په بناء باندې به د نصف ترکه مستحق وی،
۳: که مونث اولاد د دوه يا د دوه نه زائد وی نو ﴿فان كن نسآء فوق اثنتين فلهن ثلثا ما ترك﴾ د وجې نه به د دويمې حصې مال مستحق وی، (واضحه دې وی چه دلته عبارة النص اګر چه د دوه نه زياتو دپاره وی خو اقتضاء النص او د احاديثو په رڼړا کښې هم دا حصه ثابتيږی، تفسير ابن کثير وغيره کښې د دې تفصيل موجود دې) ۴: څلورم صورت دا دې چه وارث صرف مذکر اولاد وی (يو يا زيات) هغه د عصبه کيدو په وجه د ذوی الفروض نه د بچ شوی ټول مال مستحق وی (کتب تفسير وسراجي)
۲: **پلار**: د هغه د وارث کيدو درې صورتونه کيدې شی.
۱: که د هغه سره د مړی څوک اولاد مذکر هم وی (که مونث وی او که نه وی) نو په دې صورت کښې ﴿ولابويه لكل واحد منهما السدس مما ترك ان كان له ولد﴾ په وجه باندې هغه د ټول مال د شپږمې حصې مالک وی.
۲: اول د مذکر نه کيدو په صورت کښې چه کله اولاد مونث وی (يو يا ډير) پلار به د فرض په طور د سدس او په طور د عصبه د ټول مال مستحق وی.
۳: چه د مړی هيڅ قسم اولاد نه وی نو د ذوی الفروض نه بچ شوی مال به ټول پلار ته ملاويږی د تعصيب په وجه باندې د دې دواړو صورتونو حکم په کتب تفسير او کتب فقه کښې اوګورئ)
۳: **مور**: ۱: د مړی اولاد (مذکر او مونث) د هر يو کيدو سره به د سدس مستحق وی ارشاد دې ﴿ولابويه لكل واحد منهما السدس﴾
۲: مړی په خويندو رونړو کښې د دوه يا د دوه نه زياتو سره وی نو بيا به هم هغې ته سدس ملاويږی ﴿فان كان له اخوة فلامه السدس﴾
۳: چه نه د مړی څوک اولاد وی نه په رونړو خويندو کښې د دوو نصاب وی نو ﴿فان يكن له ولد ورثه ابواه فلامه الثلث﴾ د حکم مطابق به ورته ثلث ورکولې شی. (بيا په دې ثلث کښې لږ اختلاف دې چه په کو

صورت کښې به د کل مال دریمه حصه ورکولې شي او کله به د ثلث ما بقی مستحق وي)
۴: **خاوند** : ۱: که د ښځې نه هر قسمه اولاد پاتې شوې دې که د دې خاوند نه وي او که د بل نه وي نو ﴿فان كان لهن ولد فلكم الربع مما تركن﴾ په وجه باندې به خاوند ته د مال څلورمه حصه ورکولې شي. ۲: او د اولاد نه کیدو په صورت کښې به خاوند ته نیم مال ملاویږي لقوله تعالي ﴿ولكم نصف ما ترك ازواجكم ان لم يكن لهن ولد﴾
۵: **ښځه** :۱: که د ښځې سره د مړ شوی خاوند څوک اولاد هم وي نو ﴿فان كان له ولد فلهن الثمن﴾ مطابق به ښځې ته د ټول مال اتمه حصه ملاویږي.
۲: او که اولاد نه وي نو د هغې په حصه کښې به څلورمه حصه راځي، ﴿ولهن الربع مما تركتم ان لم يكن لكم ولد﴾
**تنبیه**: که د مړي څوک اولاد نه وي (او د هغه په حقیقي او علاتي او اخیافي رونړو خویندو کښې څوک وي) نو داسې مړي ته کلاله وائی د ﴿ان امرو هلك ليس له ولد﴾ نه هم دا مراد دې.
**حقیقي و علاتي رونړه خویندې**: ۱: که مړې (کلاله) مذکر وي او د هغه حقیقي او علاتي صرف یوه خور وي نو هغې ته به د ټول مال نیمه حصه ملاویږي. ﴿وله اخت فلها النصف ما ترك﴾ ۲: که دوه یا د دوو نه زیاتې خویندې وي نو په دریو کښې د دوه حصو د مال مستحق کیدو سره به په هغې کښې برابر شریکې وي.. ﴿فان كانت اثنتين فلهن ثلثا ما ترك﴾.
واضحه دې وي چه دلته عبارت النص اگر چه د دوو دپاره دې خو د اقتضاء النص په رڼرا کښې قیاسا علی الاولاد الاناث او په طریق اولویت د دوو نه زیاتو دپاره هم دا حکم دې. (اوگوره کتب تفسیر او فقه) ۳: که مړې مونث دې او وارثان هم صرف رونړه دی (که یو وي یا زیات) هغوی به د عصبه په طور د کل مال مستحق وي. ﴿وهو يرثها ان لم يكن لها ولد﴾ ۴: او که رور خور دواړه دی نو ټول به عصبه جوړیږي. او رونړه به د دوو دوو او خویندې د یو یو حصې مستحق وي. ارشاد دې ﴿وان كانوا اخوة رجالا ونسآء فللذكر مثل حظ الانثيين﴾
**تنبیه**: د علاتي او حقیقي رونړو خویندو حکم په تقسیم د میراث کښې یو دې، خو حقیقي رونړه د علاتي رونړو خویندو دپاره حاجب دی هم دغه شان حقیقي خور هم چه هغه د مړی د زنانه اولاد د وجې نه عصبه وي او د یوې حقیقي خور په موجودگۍ کښې به علاتي خویندو ته سدس ملاویږي. ﴿تكملة للثلثين﴾
۷: **اخیافي رور خور**: ۱: په مور کښې شریک رور خور کښې که څوک یواځې وي نو هغه ته به سدس ملاویږي ﴿وله اخ او اخت فلكل واحد منهما السدس﴾ ۲: او که د یو نه زیات وي که صرف رونړه وي یا صرف خویندې یا گډوډ نو د هغه دپاره به ثلث مال وي چه په هغې کښې به هغوی برابر شریک وي. ﴿فان كانوا اكثر من ذلك فهم شركاء في الثلث﴾
**تنبیه** : ۱: دلته په آیت کریمه کښې ﴿وله اخ او اخت﴾ نه اخیافي رونړه خویندې مراد دی لکه چه د بعض صحابه کرامو رضي الله عنهم په قراءت کښې د ﴿من ام﴾ زیادت راغلې دې، او د دې هم دا تفسیر د ابوبکرصدیق رضي الله عنه نه روایت کړې شوې دې. (ابن کثیر)
۲: اخیافي رونړه خویندې په حصو کښې برابر شریک وي د ﴿فهم شركاء في الثلث﴾ د اطلاق د وجې نه لهذا د ﴿للذكر مثل حظ الانثيين﴾ کلیه به په دوی باندې نه جاري کیږي. (اوگوره کتب تفسیر او سراجي وغیره)
۳: حقیقي او علاتي رونړه خویندې هم دغه شان د مړی اصول مذکر او فروع مطلق دا ټول د اخیافي رونړو خویندو دپاره حاجب دی. **خاتمه** : د میراث حصې او د هغې د مستحقینو دا یو اجمالي بیان دې، کوم چه د قرآن کریم عبارت النص له مخک ښې کیخودلو سره پیش کړې شو. ظاهره ده چه کله د شریعت اصولو څلور دي (چه د هغې نه د ثابت شوې احکامو د مجموعې نوم فقه دې) نو د هغې څخه یوې مسئلې پوره وضاحت د دې څلورو اصولو د مراجعت نه بغیر نه شي کیدې. لهذا د میراث د مسئلې د نور وضاحت او تفصیل دپاره د دې فن مستقل کتابونو (مثلا سراجي وغیره) ته مراجعت ضروري دې)

بسم الله الرحمن الرحيم

# كِتَابُ الْخَرَاجِ وَالْفَيْءِ وَالْإِمَارَةِ

## د محصول، غنيمت او حکومت کولو بيان

د دې کتاب مناسبت په ماقبل کښې د کتاب الجهاد[1] نه ظاهر دې ځکه چه د جهاد په ذريعه چه کومې زمکې فتح کولې شی بعض خو په هغې کښې خراجی وی او بعض عشری وی په دې وجه ضرورت راغلو د خراج او د عشر وغيره د احکاماتو بيانولو، او چونکه د دې ټولو څيزونو د انتظام او انصرام د پاره د امير ضرورت وی، په دې وجه مصنف رحمه الله امارت هم په ترجمة الباب کښې واخستلو، او د فئ نه مراد د مصنف صرف د فئ (مسائل) نه دی بلکه غنيمت هم په دې کښې شامل دې ځکه چه مصنف په دې کتاب کښې غنيمت او د خمس د غنيمت مصارف بيان کړی او هم دغه شان ئې د خراج سره جزيه هم بيان کړې ده.

### د کتاب الخراج موضوع او حاصل:

ځان پوهول پکار دی چه خراج کوم چه د زمکې د ټيکس نوم دې او په جزيه باندې ځان داسې پوهه کړئ د نفس د ټيکس نوم دې کوم چه د هغه کفارو (ذميانو) نه اخستلې شی چه زمونږ په ملک دارالاسلام کښې اوسيږی، دا ټول څيزونه د ملک دننه ګټې دی نو په کتاب الخراج کښې هم دا احکام بيانولې شی، مثلا جزيه به د چا چا نه اخستلې شی او په څومره مقدار کښې به اخستلې شی او د کومې زمکې نه به خراج اخستلې شی، او د کومې نه به عشر اخستلې شی او بيا د دې ټولو څيزونو د وصول کولو نه پس به د دې ټولو ګټو مصارف څه وی کوم مال به چرته او په کوم ضرورت کښې خرچ کولې شی، ګويا د کتاب الخراج د موضوع حاصل دا دې چه هغه د اسلام د نظام اقتصادی يو حصه او شعبه ده او په دې موضوع باندې علماء کرامو مستقل تصنيفات ليکلی دی، مثلا کتاب الخراج للامام ابويوسف رحمه الله، الخراج ليحيٰی بن ادم، الاموال لابی عبيد القاسم بن سلام، کتاب الاموال لزنجويه وغيرها، او زمونږ د زمانې مولانا حفظ الرحمن صاحب سيوهاروی ناظم جمعيت العلماء هند چه يو جيد عالم او د ډيرو تصانيفو مصنف دې هغوی هم په دې موضوع باندې يو کتاب ليکلې دې چه د هغې نوم "د اسلام اقتصادی نظام" دې پس مولانا صاحب په دې خپل تصنيف کښې د پورته ذکر کړې شوې قديم تصنيفاتو نه خپل کتاب ته ترتيب ورکړې دې پس په هغې کښې ځائې په ځائې د دې کتابونو حواله ده او د هغې اقتباسات ليکلې شوې دی، هم دغه شان د مولانا سيد مناظر احسن ګيلانی کتاب "اسلامی معاشيات" هم په دې موضوع باندې دې، لهذا د ابوداؤد په دې کتاب الخراج باندې په ښه طريقه د پوهيدو د پاره د حديث طالبانو لره د اردو د هغه تصانيفو مطالعه کول پکار دی چه سبب د بصيرت دې. والله تعالی الموفق

[1] او د کتاب الجهاد نه پس متصلا چه کوم ابواب او کتابونه تير شو اضحيه، صيد، وصية، فرائض دا ټول هم د جهاد سره مربوط دی په لږ شان سوچ کولو سره ربط فهميږی)

## بَابُ مَا يَلْزَمُ الْإِمَامَ مِنْ حَقِّ الرَّعِيَّةِ

### د عوام کوم حقوق د حکومت په ذمه لازم دي؟

[۲۹۲۸](1) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "أَلَا كُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ، فَالْأَمِيرُ الَّذِي عَلَى النَّاسِ رَاعٍ عَلَيْهِمْ وَهُوَ مَسْئُولٌ عَنْهُمْ، وَالرَّجُلُ رَاعٍ عَلَى أَهْلِ بَيْتِهِ وَهُوَ مَسْئُولٌ عَنْهُمْ، وَالْمَرْأَةُ رَاعِيَةٌ عَلَى بَيْتِ بَعْلِهَا وَوَلَدِهِ وَهِيَ مَسْئُولَةٌ عَنْهُمْ، وَالْعَبْدُ رَاعٍ عَلَى مَالِ سَيِّدِهِ وَهُوَ مَسْئُولٌ عَنْهُ فَكُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ".

دعبدالله بن عمر رضی الله عنه نه روايت دي فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي خبردار په تاسو کښې هريو دخپل رعيت محافظ دي اوهريونه به دقيامت په ورځ دخپل رعيت په باره کښې تپوس کيږي، نو څوك چه په خلقوباندې امير وي هغه ددوی محافظ دي او ددوی په باره کښې به په قيامت کښې دده نه تپوس کيږي اوهرسړي دخپل کور په کسانوباندې مشر دي او ددوی په باره کښې به ترې تپوس کيږي اوښځه د خاوند داولاد محافظه ده او ددوی په برد کښې به ددې نه تپوس کيږي اونوکر دخپل مالك محافظ دي په قيامت کښې به ددنه تپوس کيږي او په تاسوکښې هريوڅاح بان دي اودقيامت په ورځ به دهرکس نه دهغه درعيت په باره کښې تپوس کولې شي.

په دې باب کښې مصنف رحمه الله دا مشهور حديث ﴿ الا کلکم راع وکلکم مسؤل عن رعيته ﴾ ذکر فرمائيلې دې، دا حديث ډير زيات اهم دې هر مشر لره د خپلو ماتحتو سره په معامله کښې دې خبرې ته خيال پکار دي، که هغه د پوره ملك ذمه دار وی يا د يوې ادارې يا د يوې محکمې يا د خپل کور د ټولو دپاره. والله تعالى الموفق

والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي طَلَبِ الْإِمَارَةِ

### د امارت د طلب کولو د ممانعت بيان

[۲۹۲۹](2) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا يُونُسُ، وَمَنْصُورٌ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: قَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ سَمُرَةَ لَا تَسْأَلِ الْإِمَارَةَ فَإِنَّكَ إِذَا أُعْطِيتَهَا عَنْ مَسْأَلَةٍ وُكِلْتَ فِيهَا إِلَى نَفْسِكَ وَإِنْ أُعْطِيتَهَا عَنْ غَيْرِ مَسْأَلَةٍ أُعِنْتَ عَلَيْهَا".

دعبدالرحمن بن سمره رضی الله عنه نه روايت دي چه نبي عليه السلام راته اوفرمائيل اي عبدالرحمن بن سمره حکومت او امارت مه غواړه که چرې تاته حکومت اوامارت په طلب کولوسره درکړې

(1): صحيح البخاري/الجمعة ١١ (٨٩٣)، والاستقراض ٢٠ (٢٤٠٩)، والعتق ١٧ (٢٥٥٤)، والوصايا ٩ (٢٧٥١)، والنكاح ٨١ (٥٢٠٠)، والأحكام ١ (٧١٣٨)، (تحفة الأشراف: ٧٢٣١)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الإمارة ٥ (١٨٢٩)، سنن الترمذي/الجهاد ٢٧ (١٥٠٧)، مسند احمد (٢/٥، ٥٤، ١١١، ١٢١) (صحيح)

(2): صحيح البخاري/الأيمان والنذور ١ (٦٦٢٢)، وكفارات الأيمان ١٠ (٦٧٢٢)، والأحكام ٥ (٧١٤٦)، صحيح مسلم/الأيمان ٣ (١٦٥٢)، سنن الترمذي/النذور ٥ (١٥٢٩)، سنن النسائي/آداب القضاة ٥ (٥٣٨٦)، (تحفة الأشراف: ٩٦٩٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٦١، ٦٢، ٦٣)، سنن الدارمي/النذور والأيمان ٩ (٢٣٩١)، ويأتي هذا الحديث برقم (٣٢٧٧، ٣٢٧٨) (صحيح)

شي نوته به خپل نفس ته حواله کړې شي (يعنى مدد الفي به درسره شامل نه وي)اوکه چرې تاته بغيرد طلب کولونه حکومت اوسپارلې شي نو په دې باره کښې به ستامدد کيږي (دالله دطرف نه).

دا امارت په کسرې د همزه سره دې، او کوم أمارت چه په فتحې سره دې د هغې معنی د علامت ده، په حديث الباب کښې د طلب امارت نه منع کړې شوې ده، او رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه کومه عهده او امارت په طلب کولو سره حاصله شی په هغې کښې د انسان د الله پاک د طرف نه امداد نه وی. ځکه چه طلب کول مقتضی دی د هغه د خپل نفس په اعتماد باندې، د الله پاک نصرت وی په اظهار د احتياج او افتقار باندې.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي مختصرا و مطولا بنحوه. قاله المنذري

[۲۹۳۰]()حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ، عَنْ أَخِيهِ، عَنْ بِشْرِ بْنِ قُرَّةَ الْكَلْبِيِّ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى، قَالَ: انْطَلَقْتُ مَعَ رَجُلَيْنِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَشَهَّدَ أَحَدُهُمَا، ثُمَّ قَالَ: جِئْنَا لِتَسْتَعِينَ بِنَا عَلَى عَمَلِكَ، وَقَالَ الْآخَرُ مِثْلَ قَوْلِ صَاحِبِهِ، فَقَالَ: إِنَّ أَخْوَنَكُمْ عِنْدَنَا مَنْ طَلَبَهُ، فَاعْتَذَرَ أَبُو مُوسَى إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ: لَمْ أَعْلَمْ لِمَا جَاءَا لَهُ فَلَمْ يَسْتَعِنْ بِهِمَا عَلَى شَيْءٍ حَتَّى مَاتَ.

دابوموسى اشعرى رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه زه ددوه کسانو سره دن نبى عليه السلام په خدمت کښې حاضر شوم نو يوکس په دوی کښې تشهد اولوستلو دې- وائى چه مونږ نبى عليه السلام ته ددې دپاره ورغلي وو چه مونږ ته دحکومت عهدې حواله کړې اوددې نه پس دويم کس هم دابې اووئيل نبى عليه السلام اوفرمائيل په تاسوتولو کښې زمونږ په نزد باندې لوئې خيانت ګر هغه څوک دې څوك چه د حکومت کو لوحواهش لرى ابوموسى نبى عليه السلام ته معزرت اوکړو چه ماته پته نه وه چه دوى دواړه دځه دپاره راځي اوکه نه نو زه به ددوى سره يوځائې نه وم راغلې ددې نه پس به نبى عليه السلام ددوى نه په څه کار کښې امداد نه غوښتو ترديې چه نبى عليه السلام وفات شو.

**قوله:** ﴿ عن ابی موسى رضى الله تعالى عنه قال انطلقت مع رجلين الى النبى ﷺ﴾: د دې روايت مضمون او حواله مونږ سره په کتاب الطهارت ﴿ باب کيف يستاک ﴾ په ضمن کښې تيره شوې ده هغه دې اوکتلې شی په دې حديث کښې يو لفظ دې ﴿ فقال ان اخونکم عندنا من طلبه﴾ اخون د خيانت نه أسم تفضيل دې يعنى عهده دعمل لره طلب کونکې په تاسو کښې د ټولو نه لوئې خائن دې. والحديث اخرجه البخارى ومسلم. قاله المنذرى زاد الشيخ محمد عوامه النسائى ايضا.

## بَابٌ فِي الضَّرِيرِ يُوَلَّى

### د روند د مشرئ (امارت) کولوبيان

يعنى روند انسان لره دمسلمانانوپه امورو کښې په يو کارباندې والى يا ذمه دار جوړول.

[۲۹۳۱]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْمُخَرِّمِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا عِمْرَانُ الْقَطَّانُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَخْلَفَ ابْنَ أُمِّ مَكْتُومٍ عَلَى الْمَدِينَةِ مَرَّتَيْنِ.

[1]: سنن النسائي /آداب القضاة ٤ (٥٣٨٤)، (تحفة الأشراف: ٩٠٧٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٩٣/٤، ٤١١) (منكر)

[2]: انظر حديث رقم: (٥٩٥)، (تحفة الأشراف: ١٣٢١) (صحيح)

دانس رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام دوه ېېري ابن ام مکتوم په مدینه کښې خلیفه مقرر کړې وو.

﴿عن انس رضی الله عنه ان النبی صلی الله علیه وسلم استخلف ابن ام مکتوم رضی الله عنه علی المدینة مرتین﴾

ابن ام مکتوم رضی الله عنه لره رسول الله صلی الله علیه وسلم په مدینه طیبه باندې خپل خلیفه جوړ کړو دوه کرته، خطابی فرمائی چه دا ولایت ولایت عامه نه وو، په احکاماتو او قضایا باندې، بلکه صرف دمانځه په باره کښې وو (۱) اودا درسول الله صلی الله علیه وسلم د جانب نه دهغوی اکرام وو د دې خاص واقعې په بناء باندې چه په هغې باندې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د هغوی په باره کښې خبرداري ورکړې شوې وو ﴿عبس وتولی ان جآءه الاعمی﴾ حافظ رحمه الله فرمائی چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم معمول په غزواتو کښې دتشریف اوړلو په وخت هغوی لره دخپل نائب جوړولو وود مانځه په امامت کښ. او دا استخلاف د هغوی په حق کښې دیارلس کرته راغلې، د هغه ټولو غزواتو نومونه په بذل کښې ذکر شوې دې، د دې نه پس حافظ لیکی چه په دې روایت کښې چه استخلاف مرتین ذکر شوې دې هغه راوی د خپل علم په اعتبار سره وئیلې دی.

## بَابٌ فِي اتِّخَاذِ الْوَزِيرِ

### دوزیرانو د مقرر کولو بیان

یعنی د خلیفه دپاره یو وزیر هم پکار دی او هغه څنګه پکار دی هغه وړاندې په حدیث کښې را روان دی. وزیر.... د وزر نه اخستلې شوې دې چه د هغې معنی د ثقل او بوجهـ ده وزیر هغه انسان ته وئیلې شی چه د امیر بوجهـ اوچتوی او کومې ذمه دارئ چه امیر اوچتې کړې دی هغه سره په بوجهـ اوچتولو کښې هغه هم شریک وی، ففی المجمع ﴿الوزیر من یوازر الامیر فیحمل عنه ما حمله من الاثقال، الی اخر ما فی البذل﴾

[۲۹۳۲](۲) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عَامِرٍ الْمُرِّيُّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا أَرَادَ اللَّهُ بِالْأَمِيرِ خَيْرًا جَعَلَ لَهُ وَزِيرَ صِدْقٍ إِنْ نَسِيَ ذَكَّرَهُ، وَإِنْ ذَكَرَ أَعَانَهُ، وَإِذَا أَرَادَ اللَّهُ بِهِ غَيْرَ ذَلِكَ جَعَلَ لَهُ وَزِيرَ سُوءٍ إِنْ نَسِيَ لَمْ يُذَكِّرْهُ، وَإِنْ ذَكَرَ لَمْ يُعِنْهُ".

دام المومنین عائشې رضی الله عنها نه روایت دې. فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلې دی کله چه الله تعالی په یو امیر (حکمران) باندې دخیر اراده اوکړي نوربښتونې وزیر ورله ورکړی که چرې دده نه هیربږي نوهغه ئې ورته رایادوی اوکه چرې د یوه خبره یاده کړي نوهغه ئې امداد کوې اوکله چه الله تعالی په کوم امیرباندې ددې برعکس اراده اوکړي نویوبد وزیر ورله ورکړی کله چه ددنه هیرشي نوهغه ئې ورته نه رایادوی اوکله چه دې دڅه خبرې ذکراوکړي نوهغه ئې مدد نه کوي.

په دې باب کښې مصنف رحمه الله دعائشې رضی الله عنها حدیث ذکر کړې دې چه دهغې مضمون واضح دې.

---

(۱) او هغه ځکه چه امارت عامه او امامت کبری دپاره کمال خلقت شرط دې، ففي هامش البذل: قال الموفق (في شرائط الامارة) يشترط كمال الخلقة فيكون متكلما بصيرا وقال بعض اصحاب الشافعي يجوز ان يكون اعمى لان شعيب عليه السلام كان اعمى الخ..... وفي الهداية يشترط فيه شرائط الشهادة وقال في باب الشهادة لا تقبل شهادة الاعمى آهـ)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۴۷۸)، وقد أخرجه: سنن النسائي/البيعة ۳۳(۴۲۰۹)، مسند احمد (۷۰/۶) (صحیح)

# بَابٌ فِي الْعِرَافَةِ
## د عرافت بیان

عرافه وائي عمل العريف ته، عريف يعني ملك وغيره د قوم ذمه دار، عرافت ملكي.

[۲۹۳۳](¹) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَرْبٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ سُلَيْمَانَ بْنِ سُلَيْمٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ جَابِرٍ، عَنْ صَالِحِ بْنِ يَحْيَى بْنِ الْمِقْدَامِ، عَنْ جَدِّهِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِ يكَرِبَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَرَبَ عَلَى مَنْكِبِهِ، ثُمَّ قَالَ: "لَهُ أَفْلَحْتَ يَا قُدَيْمُ إِنْ مُتَّ وَلَمْ تَكُنْ أَمِيرًا وَلَا كَاتِبًا وَلَا عَرِيفًا".

دمقدام بن معديكرب نه روايت دي فرمائي چه نبي عليه السلام دده په ولي وار اوكړو اوبيا ئي ورته اوفرمائيل اې قديمه تا نجات حاصل كړو خوچه ته مر شي په داسې حال كښې چه نه اميرئي اونه كاتب ئې اونه عريف ئې (عريف هغه چاته وئيلې شي چه درعيت په احوالو باندې بادشاه خبروي).

﴿ افلحت يا قديم ان مت ولم تكن اميرا ولا كاتبا ولا عريفا ﴾

قديم مصغر دې د مقدام په حذف د زوائدو سره، مطلب ئې ظاهر دې.

[۲۹۳٤](²) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، حَدَّثَنَا غَالِبٌ الْقَطَّانُ، عَنْ رَجُلٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّهُمْ كَانُوا عَلَى مَنْهَلٍ مِنَ الْمَنَاهِلِ، فَلَمَّا بَلَغَهُمُ الْإِسْلَامُ جَعَلَ صَاحِبُ الْمَاءِ لِقَوْمِهِ مِائَةً مِنَ الْإِبِلِ عَلَى أَنْ يُسْلِمُوا، فَأَسْلَمُوا وَقَسَمَ الْإِبِلَ بَيْنَهُمْ، وَبَدَا لَهُ أَنْ يَرْتَجِعَهَا مِنْهُمْ، فَأَرْسَلَ ابْنَهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَهُ: ائْتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْ لَهُ: إِنَّ أَبِي يُقْرِئُكَ السَّلَامَ، وَإِنَّهُ جَعَلَ لِقَوْمِهِ مِائَةً مِنَ الْإِبِلِ عَلَى أَنْ يُسْلِمُوا، فَأَسْلَمُوا وَقَسَمَ الْإِبِلَ بَيْنَهُمْ وَبَدَا لَهُ أَنْ يَرْتَجِعَهَا مِنْهُمْ، أَفَهُوَ أَحَقُّ بِهَا أَمْ هُمْ؟ فَإِنْ قَالَ لَكَ: نَعَمْ أَوْ لَا، فَقُلْ لَهُ: إِنَّ أَبِي شَيْخٌ كَبِيرٌ وَهُوَ عَرِيفُ الْمَاءِ وَإِنَّهُ يَسْأَلُكَ أَنْ تَجْعَلَ لِي الْعِرَافَةَ بَعْدَهُ، فَأَتَاهُ فَقَالَ: إِنَّ أَبِي يُقْرِئُكَ السَّلَامَ، فَقَالَ: "وَعَلَيْكَ وَعَلَى أَبِيكَ السَّلَامُ"، فَقَالَ: إِنَّ أَبِي جَعَلَ لِقَوْمِهِ مِائَةً مِنَ الْإِبِلِ عَلَى أَنْ يُسْلِمُوا فَأَسْلَمُوا وَحَسُنَ إِسْلَامُهُمْ، ثُمَّ بَدَا لَهُ أَنْ يَرْتَجِعَهَا مِنْهُمْ أَفَهُوَ أَحَقُّ بِهَا أَمْ هُمْ؟ فَقَالَ: إِنْ بَدَا لَهُ أَنْ يُسْلِمَهَا لَهُمْ فَلْيُسْلِمْهَا، وَإِنْ بَدَا لَهُ أَنْ يَرْتَجِعَهَا فَهُوَ أَحَقُّ بِهَا مِنْهُمْ، فَإِنْ هُمْ أَسْلَمُوا فَلَهُمْ إِسْلَامُهُمْ وَإِنْ لَمْ يُسْلِمُوا قُوتِلُوا عَلَى الْإِسْلَامِ، فَقَالَ: إِنَّ أَبِي شَيْخٌ كَبِيرٌ وَهُوَ عَرِيفُ الْمَاءِ وَإِنَّهُ يَسْأَلُكَ أَنْ تَجْعَلَ لِي الْعِرَافَةَ بَعْدَهُ، فَقَالَ: إِنَّ الْعِرَافَةَ حَقٌّ وَلَا بُدَّ لِلنَّاسِ مِنَ الْعُرَفَاءِ، وَلَكِنَّ الْعُرَفَاءَ فِي النَّارِ".

غالب القطان ديوكس نه اوهغه دده دپلار نه اوهغه دده دنيكه نه روايت كوي چه په عربوكښې څه خلق د يوې چينې په غاړه اوسيدل كله چه دوی ته دمذهب اسلام اطلاع ملا وشوه نو دچينې مالك خپل قوم ته په دې شرط باندې سل اوښان وركړل چه دوی به اسلام قبلوي چنانچه هغوی مسلمانان شول اودې كس هغه اوښان په دې خلقوباندې تقسيم كړل بيا ددې نه پس ده اوښان واپس كول اوغوښتل نوددې دپاره پر خپل خوي دنبي عليه السلام دربار ته اوليږو ده ورته اووئيل چه لاړ شه اونبي عليه السلام ته زماسلام اورسوه او ورته اووايه چه ماخپل قوم ته سل اوښان په دې وجه وركړي دی چه دوی اسلام قبول كړي، چنانچه هغوی اسلام قبول كړې دې اوزما پلار ورباندې اوښان تقسيم كړل اوس زماپلار غواړی چه دقوم نه اوښان واپس واخلي نوايا ددې اوښانوحقدار اوس زما پلاردې اوكه داخلق دي؟ نوكه

(¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٥٦٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٣٣/٤) (ضعيف)

(²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٧١٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١٦/٥) (ضعيف)

چرې هو درته اووائی اوکه نه ته ورته اووایه زماپلار بوډا او ضعیف دې اوهغه ددې چینې مشردې زمادا خواهش دې چه دهغه نه پس مادهغه په ځائې باندې عریف مقرر کړئ بهرحال هغه هلك دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اوعرض ئې اوکړو اې دالله رسوله زما پلار په تاباندې سلام وئیلې دې نبی ﷺ اوفرمائیل په تا اوستا په پلاردې سلام وې اوبیا ئې عرض اوکړو اې دالله رسوله زما پلار خپل قوم ته په دې شرط باندې سل اوښان ورکول مقرر کړې وو چه هغوی به اسلام قبلوې هغوی په صحیح طریقې سره اسلام قبول کړو اوس زما پلارغواړی چه اوښان ددوی نه واپس واخلې نودا راته اوایه چه داوښانو حقدار زماپلاردې اوکه دوی دې؟ نبی ﷺ اوفرمائیل که چرې ستاپلار اوغواړی چه اوښان دوی ته ورکړی نوورکولې شی اوکه چرې واپس کول غواړی نوحقداردې اوکوموخلقو چه اسلام قبول کړې دې هغوی به پخپله داسلام نه نفع حاصله وې اوکه چرې دوی اسلام نه قبلوې نوداسلام دپاره به ددوی سره جنګ کولې شي، بیادې هلك عرض اوکړو چه اې دالله رسوله زما پلار یوکمزورې اوبوډا سړې دې اوهغه ددې چینې عریف دې دهغه داخواهش دې چه دهغه دوفات نه پس دعرافت منصب تاسوماته حواله کړئ نبی ﷺ اوفرمائیل چه عرافت یوضروري شې دې خلقولره ددې نه بغیر څه چاره نشته لیکن عریفان به دوزخ ته داخلیږي

﴿ عن رجل عن ابيه عن جده انهم كانوا على منهل من المناهل فلما بلغهم الاسلام جعل صاحب الماء لقومه مئة من الابل على ان يسلموا فاسلموا الخ ﴾

د دې حدیث راوی صحابی او د دې نه لاندې راوی دواړه درې واړه مجهول دی.

**مضمون د حدیث:**

د حدیث مضمون دا دې چه یو نامعلوم الاسم صحابی وائی چه مونږ او زمونږ قوم په یو چینه باندې آباد وو د هغه ځائې ملک د خپل قوم سره یو وعده اوکړه چه که تاسو اسلام راوړو نو تاسو ته به سل اوښان درکړم. په دې باندې هغه ټولو اسلام راوړو او هغه ملک سل اوښان هم په هغوی باندې تقسیم کړل، خو بیا روستو د هغه رائې په خپله هبه کښې د رجوع کولو شوه، نو د رجوع کولو نه مخکښې ئې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې خپل ځوئې اولیږلو، او هغه ځوی ته ئې دا خبره اوکړه چه د رسول الله ﷺ خدمت کښې حاضریدو سره اوائی چه زما پلار تاسوته سلام عرض کړې دې او بیا ورته د دې واقعې ذکر اوکړه د قوم د اسلام راوړلو او په هغوی باندې د اوښانو د تقسیمولو، او دا تپوس ترې اوکړه چه اوس مې د پلار رائې په هغې کښې د رجوع ده نو آیا د هغه دپاره د رجوع کولو حق دې؟ او وې وئیل چه د دې جواب هغوی هر څه چه درکړی او یا نه. د هغې د اوریدو نه پس ترې نه دا تپوس اوکړه چه زما پلار اوس بوډا شوې دې او هغه د هغه چینې والو عریف دې، نو هغه تاسو ته درخواست کوی چه تاسو ما د خپل پلار په ځائې باندې عریف کړئ، پس د هغه ځوئې د دې ټولو خبرو سره د رسول الله ﷺ خدمت ته راورسیدلو، او اول ئې د خپل پلار سلام اورسولو رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿ وعليك وعلى ابيک السلام ﴾

**د رجوع فی الهبة د جواز دلیل:**

د دې نه پس د قوم د اسلام راوړلو او هغوی ته د سلو اوښانو ورکولو او بیا ئې په هبه کښې د رجوع کولو ټوله خبره رسول اللهﷺ ته عرض کړه، رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه که هغه اوښان هغوی ته ورکول غواړې نو ورديې کړې، او که رجوع کول غواړې نو اودې کړې بیا که هغوی په اسلام باندې باقي پاتې کیږي نو صحیح ده د هغوی اسلام دې هغوی ته مبارک وی او که د اسلام نه واپس شی نو د هغوی سره دې قتال اوکړې شی، د دې نه پس هغه د عرافت په باره کښې تپوس اوکړو، په دې باندې رسول اللهﷺ اوفرمائیل عرافت حق دې، څه ناجائز کار نه دې بلکه د خلقو دپاره د عرفاء کیدل ضروری هم دی، ﴿لکن العرفاء فی النار﴾ خو دا عریف خلق به اور ته ځی.

د رسول اللهﷺ د فرمان مقصد دا دې چه دا ملکان خلق چه وی هغوی په خپله ملکئ کښې په عامو خلقو باندې ظلم کوی.

والحدیث سکت علیه المنذری، وعزاه المزی الی النسائی وفیه طرف یسیر منه وهو عند المصنف ایضا (۵۱۸۹) قاله الشیخ محمد عوامه.

## بَاب فِي اتِّخَاذِ الْكَاتِبِ

### د منشی یا سیکرټری یا کاتب ساتلو بیان

د کتاب الخراج سرخئ کښې چونکه د فئ او د امارت ذکر هم دې په دې وجه ډیر څیزونه د امارت متعلق بیانیږی، په دې باب کښې دا بیانوی چه د امیر دپاره د یو کاتب او منشی ضرورت هم دې دا هم ساتل پکار دی.

[۲۹۳۵](1) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا نُوحُ بْنُ قَيْسٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ كَعْبٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الْجَوْزَاءِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: السِّجِلُّ كَاتِبٌ كَانَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه د نبی علیه السلام د کاتب نوم سجل وو.

﴿عن ابن عباس رضی الله عنهما قال: السجل کاتب کان للنبی ﷺ﴾

په قرآن کریم کښې چه راځی ﴿یوم نطوی السمآء کطی السجل للکتب﴾ په دې باره کښې ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه په دې آیت کریمه کښې د سجل نه مراد هغه سړې دې چه د رسول اللهﷺ کاتب وو، په دې صورت کښې به د آیت کریمه مطلب دا وی چه مونږ به د قیامت په ورځ آسمانونه داسې راټول کړو لکه څنګه چه سجل یعنی کاتب د لیکلو د فارغ کیدو نه پس ټولو منتشر اوراقو لره په یو ځائې باندې راټولولو نه پس کیږی، د سجل په تفسیر کښې دوه اقوال دی، وئیلې شی دا د یو ملائک نوم دې وقیل اسم الصحیفة او په دې صورت کښې به مطلب دا وی چه څنګه په لوئی رجسټر کښې اوراق راټولولې شی هم دغه شان به مونږ آسمانونه هم راټول کړو، په دې اقوالو کښې آخری قول ته اصح وئیلې شوې دې.

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۳۶۵) (ضعیف)

**د رسول الله ﷺ د کاتبین اسماء :**

دلته په (بذل المجهود) کښې د رسول الله ﷺ د کاتبین تعین او د هغوی نومونه لیکلي شوي دی، شل نومونه په هغې کښې ذکر دی.

## باب في السِّعَايَةِ عَلَى الصَّدَقَةِ

### د زکات د وصول کولو د فضیلت بیان

یعنی صدقات او هم دغه شان خراج وغیره وصول کولو دپاره د مستقل سړي ضرورت دې لهذا د امیر په فرائضو کښې د عاملینو مقرر کول هم دی، په حدیث الباب کښې د دیانت دار عامل فضیلت او د هغې ثواب ذکر شوي دي.

[۲۹۳۶](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الأَسْبَاطِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحِيمِ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ بْنِ قَتَادَةَ، عَنْ مَحْمُودِ بْنِ لَبِيدٍ، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "الْعَامِلُ عَلَى الصَّدَقَةِ بِالْحَقِّ كَالْغَازِي فِي سَبِيلِ اللَّهِ حَتَّى يَرْجِعَ إِلَى بَيْتِهِ".

درافع بن خدیج رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دنبی علیه السلام نه مې اوریدلی دی چه فرمائیل ئې دحق سره دزکات وصول کونکې داسې دې لکه څوك چه دالله په لارکښې جهاد کوي اوترڅوچه هغه خپل کور ته نه وی واپس شوي.

﴿ العامل على الصدقة بالحق كالغازى فى سبيل الله حتى يرجع الى بيته ﴾ یعنی هغه عاملینو ته هم هغه شان ثواب ملاویږی څنګه چه مجاهدینو ته په سفر د جهاد کښې ملاویږی، کور ته د واپس کیدو پورې، قلت ومثله سفراء المدارس فى هذا الزمان، په دې شرط چه په پوره دیانت دارئ او محنت سره کار اوکړی ﴿ والاعمال بالنيات ﴾

والحديث اخرجه الترمذي وابن ماجة، قاله المنذري

[۲۹۳۷](۲) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ شِمَاسَةَ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ صَاحِبُ مَكْسٍ".

دعقبة بن عامر رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه د نبی علیه السلام نه مې اوریدلی دی چه فرمائیلي ئې وو چه صاحب مکث (چونګی ټیکس وصول کونکې) به جنت ته داخل نکړې شي ځکه چه دوی اکثر ظلم کوي.

**شرح الحديث:**

**قوله:** ﴿ لا يدخل الجنة صاحب مكس ﴾: (مکس) یعنی ټیکس او صاحب مکس ته ماکس وائی. وهو العشار یعنی په چنګی باندې کیناستلو والا کوم چه مال اخستلوسره د تیریدونکو نه

(۱): سنن الترمذي/الزكاة ۱۸ (۶۴۵)، سنن ابن ماجه/الزكاة ۱۴ (۱۸۰۹)، (تحفة الأشراف: ۳۵۸۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۶۵/۳، ۱۴۳/۴) (صحيح)

(۲): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۹۹۳۵، ۱۹۲۸۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۴۳/۴، ۱۵۰)، سنن الدارمي/الزكاة ۲۸ (۱۷۰۸) (ضعيف)

ټیکس وصولوی، په ظاهره د دې حدیث نه د هغه ټیکسونو ذکر دې چه خلاف شرع طریقه باندې حکومتونه د رعایا نه وصولوی، او کوم خلق چه په دې باندې مقرر کولې شی هم هغوی صاحب مکس دی نو هرکله چه صاحب مکس ګناهګار دې نو هغه امیر د چا په حکم باندې چه هغه ټیکس وصولوی په طریق اولی ګنهګار دې، او عشر وغیره چه د شرعی قاعدې مطابق وصولوی هغه د دې نه مراد نه دې، د هغې فضیلت خو پورته حدیث کښې تیر شوې دی چه هغه په منزله د غازی دې. (بذل)

[۲۹۳۸](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْقَطَّانُ، عَنِ ابْنِ مَغْرَاءَ، عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ، قَالَ: الَّذِي يَعْشُرُ النَّاسَ يَعْنِي صَاحِبَ الْمَكْسِ.

دابن اسحق نه روایت دې فرمائی چه دصاحب مکس - نه مراد هغه کس دې څوک چه عشر وصول کوي.

## بَابٌ فِي الْخَلِيفَةِ يَسْتَخْلِفُ

### آیا خلیفه دځان په ځائې بل څوک مقرر کولې شی؟

[۲۹۳۹](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ دَاوُدَ بْنِ سُفْيَانَ، وَسَلَمَةُ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ عُمَرُ: إِنِّي إِنْ لَا أَسْتَخْلِفْ فَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَسْتَخْلِفْ وَإِنْ أَسْتَخْلِفْ فَإِنَّ أَبَا بَكْرٍ قَدِ اسْتَخْلَفَ، قَالَ: فَوَاللَّهِ مَا هُوَ إِلَّا أَنْ ذَكَرَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبَا بَكْرٍ، فَعَلِمْتُ أَنَّهُ لَا يَعْدِلُ بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحَدًا وَأَنَّهُ غَيْرُ مُسْتَخْلِفٍ.

دابن عمر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه کله عمر رضی الله عنه زخمي کړې شونوخلقوورته ووئیل چه دځان په ځائې څوک خلیفه مقررکړئ، عمر اوفرمائیل که چرې زه څوک خلیفه مقررنکړم نوځه باك نشته ځکه چه نبی علیه السلام هم څوك خلیفه نه ومقررکړې او که څوك خلیفه مقررکړم نوهم څه باك نشته ځکه چه ابوبکر خلیفه مقررکړې وو، ابن عمر ووئیل په الله قسم عمرهم دنبی علیه السلام اودابوبکر نه علاوه دبل چاذکر ونکړونوماته معلومه شوه چه د نبی علیه السلام سره هیڅوك نه برابروي اوچاله خلیفه هم نه مقررروي.

### شرح الحديث

**قوله: ﴿ عن ابن عمر رضی الله عنه قال قال عمر رضی الله عنه انی ان لا استخلف فان رسول الله ﷺ لم يستخلف وان استخلف فان ابابكر قد استخلف ﴾**: ابن عمر رضی الله عنه فرمائی چه زما والد صاحب عمر رضی الله عنه اوفرمائیل په خپل مرض الوفات کښې. که زه څوک خلیفه جوړ نه کړم (نو بیا هم صحیح ده) ځکه چه رسول الله ﷺ څوک هم خپل خلیفه نه وو جوړ کړې او که زه څوک خلیفه جوړ کړم (نو بیا هم صحیح ده) ځکه چه ابوبکرصدیق رضی الله عنه خلیفه جوړ کړې وو، وراندې دا دی، ابن عمر رضی الله عنه فرمائی چه د هغوی په دې یوه جمله باندې زه پوهه شوم چه هغوی به د رسول الله ﷺ طرز عمل د ابوبکرصدیق رضی الله عنه د عمل برابر نه ږدی بلکه هغوی به یقینا د رسول

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۹۹۳۵، ۱۹۲۸۶) (حسن)
(٢): صحيح مسلم/الإمارة ۲ (۱۸۲۳)، سنن الترمذي/الفتن ٤٨ (۲۲۲٥)، (تحفة الأشراف: ۱۰٥۲۱)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأحكام ٥١ (۷۲۱۸)، مسند احمد (۱/٤٣) (صحيح)

الله ﷺ عمل ته ترجیح ورکوی. دا روایت دلته مختصر دې په صحیح مسلم کښې مفصل دې هغې ته دې رجوع اوکړې شی، هلته دا هم دی چه خلقو هغوی ته عرض اوکړو چه څوک خلیفه کړئ نو هغوی اوفرمائیل ﴿ أتحمل امركم حيا وميتا ﴾ چه ستاسو بوجه به په ژوند هم اوچتوم او د مرګ نه پس هم، ﴿ لوددت ان حظي منها الكفاف لا علي ولالي ﴾ زه خو دا غواړم چه زما حصه په دې خلافت کښې برابر سرابر شی، چه نه ماته په دې څه ملاؤ شی یعنی اجر او ثواب او نه پرې زما مواخذه اوکړې شی یعنی که د الله پاک په نزد معامله برابر ختم شی نو زه دا غنیمت ګڼړم، الله اکبر! څه حال دې د دې ویرې او د دې اخلاص، ورسره امید او رجاء د بخښنې هم ده ﴿ الايمان بين الخوف والرجاء ﴾. د دې حدیث په شرح کښې امام نووی رحمه الله لیکلې دی چه د مسلمانانو په دې باندې اجماع ده چه په خلیفه باندې نه په خپل ژوند کښې استخلاف واجب دې او نه ترک د استخلاف دواړه صورتونه د هغه دپاره جائز دی او بیا وړاندې لیکی چه د علماء کرامو هم په دې باندې اجماع ده چه د خلافت انعقاد د خلیفه اول په استخلاف باندې هم کیږی او که هغه استخلاف نه کوی نو بیا د حل او عقد د خاوندانو په اختیار سره د هغه استخلاف هم کیږی، او د دې په جواز باندې هم اجماع ده چه خلیفه اول د خلافت امر لره یوجماعت ته حواله کړی، کما فعل عمر بالستة (۱)او هغوی دا هم لیکی چه دا حدیث دلیل دې په دې خبره باندې چه رسول الله ﷺ د یو خلیفه په خلافت باندې تصریح نه ده فرمائیلې او دا د تول اهل سنت اجماعی مسئله ده، قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چه هم د دې اجماع بعض خلقو مخالفت کړې دې، پس بکر بن اخت عبدالواحد دعوی کړې ده د ابوبکر رضي الله عنه په تنصیص باندې، او ابن الراوندی د عباس رضي الله عنه په تنصیص باندې، او شیعه ګان او روافض وائی د علی رضي الله عنه په باره، (وهذه دعاوى باطلة جسارة على الافتراء الى آخر ما ذكر مسلم ۱۲۰/۲) والحديث اخرجه مسلم والترمذي، قاله المنذري.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الْبَيْعَةِ

### د بیعت بیان

[۲۹٤۰](۲) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: كُنَّا نُبَايِعُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى السَّمْعِ وَالطَّاعَةِ وَيُلَقِّنُنَا فِيمَا اسْتَطَعْتَ.

۱) عمرفاروق رضي الله عنه د خپل شهادت په موقع باندې د ابولؤلؤ مجوسی د حملې نه پس د وفات نه مخکښې د خلافت مسئله په شپږو صحابه کرامو رضي الله عنهم باندې پریخودلې وه. عثمان او علی، عبدالرحمن بن عوف، طلحه بن عبیدالله، زبیر بن العوام، سعد بن ابی وقاص رضي الله عنهم چه دوی خپل مینځه کښې په مشوره سره چه څوک مناسب ګڼړی هغه دې خلیفه کړی، پس د مشورې په وخت دا اوشوه چه په هغوی کښې پنځو کسانو عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه فیصله کونکې مقرر کړو چه هغه به خپله رائې سره چاله غواړی خلیفه کړی هغوی دعثمان رضي الله عنه انتخاب اوفرمائیلو، د صحابه کرامو رضي الله عنهم په موجودګئ کښې او د عمر رضي الله عنه د وفات نه درې ورځې پس د خلقو بیعت اوشو. (نبراس شرح عقائد)

۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۱۹۳)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأحكام ٤٣ (۷۲۰۲)، صحيح مسلم/الإمارة ۲۲ (۱۸٦۷)، سنن الترمذي/السير ۳٤ (۱۵۹۳)، سنن النسائي/البيعة ۲٤ (٤۱۹۲)، موطا امام مالك/البيعة ۱ (۱)، مسند احمد (۲/ ٦۲، ۸۱، ۱۰۱، ۱۳۹) (صحيح)

دابن عمر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه مونږ به د نبي ﷺ سره بيعت کولو په غوږ ايخودلو اوتابعداري کولوباندې اونبي ﷺ به مونږته تعليم راکولوچه داجمله هم ورسره وايئ ترڅومره چه زمونږ طاقت وي.

[۲۹۴۱](۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنِي مَالِكٌ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْه أخبرته عن بَيْعَةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النِّسَاءَ، قَالَتْ: مَا مَسَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَدَ امْرَأَةٍ قَطُّ إِلَّا أَنْ يَأْخُذَ عَلَيْهَا فَإِذَا أَخَذَ عَلَيْهَا فَأَعْطَتْهُ، قَالَ: "اذْهَبِي فَقَدْ بَايَعْتُكِ".

دعروة ابن الزبير رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه ام المومنين عائشة رضي الله عنها راته دزنانوسره دنبي ﷺ دبيعت کولوخبر راکړې دې فرمائيل ئې چه هيڅکله نبي ﷺ دکومې زنانه د لاس سره دبيعت په وخت کښې خپل لاس نه دې لګولې، البته دزنانوونه به ئې اقرار اخستو، کله چه به ئې اقراروکړونو ورته به ئې اوفرمائيل چه زه اوس لاړه شه مادرسره بيعت وکړو.

**قوله:** ﴿ قالت ما مس النبي ﷺ بيده امراءة قط الا ان ياخذ عليها فاذا عليها اعطته قال اذهبي فقد بايعتک ﴾: عائشه رضي الله عنها فرمائي د بيعة النساء په باره کښې چه رسول الله ﷺ د بيعت په وخت په خپل لاس مبارک سره يو زنانه هم ده نه مسح کړې. پس هغوی به په ژبې سره عهد اخستلو، د ژبې عهد لره به چه کله هغې قبول کړو نو رسول الله ﷺ به هغې ته اوفرمائيل اوس لاړه شه ما تا سره بيعت اوکړو.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي، قاله المنذري

[۲۹۴۲](۲) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَزِيدَ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي أَيُّوبَ، حَدَّثَنِي أَبُو عَقِيلٍ زُهْرَةُ بْنُ مَعْبَدٍ، عَنْ جَدِّهِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ هِشَامٍ قَالَ: وَكَانَ قَدْ أَدْرَكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَذَهَبَتْ بِهِ أُمُّهُ زَيْنَبُ بِنْتُ حُمَيْدٍ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ بَايِعْهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هُوَ صَغِيرٌ فَمَسَحَ رَأْسَهُ".

زهير بن معبد دخپل نيکه عبدالله بن هشام (دچاچه دنبي ﷺ سره ملاقات شوې نه روايت کوي فرمائي چه ده لره خپلې مور زينب بنت حميد نبي ﷺ ته وړې وو، هغې عرض وکړوچه اې دالله رسوله دده سره بيعت وکړه نبي ﷺ اوفرمائيل داخوماشوم دې اوپه سرئې ورله لاس راښکل.

**قوله:** ﴿ حدثنا ابو عقيل زهرة بن معبد عن جده عبدالله بن هشام الخ ﴾: مضمون د حديث دا دې چه عبدالله بن هشام چا چه د رسول الله ﷺ زمانه موندلې وه هغوی په خپل وړوکوالی کښې د هغوی مور د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راوستلو، او وې وئيل يا رسول الله ﷺ دې بيعت کړئ، رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ هو صغير فمسح راسه ﴾ يعنی رسول الله ﷺ د هغه د

[۱]: صحيح مسلم/الإمارة ۲۱ (۱۸۶۶)، سنن الترمذي/تفسير القرآن ۶۰ (۳۳۰۶) (تحفة الأشراف: ۱۶۶۰۰)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/تفسير سورة الممتحنة ۲ (۴۸۹۱)، والطلاق ۲۰ (۵۲۸۸)، والأحكام ۴۹ (۷۲۱۴)، سنن ابن ماجه/الجهاد ۴۳ (۲۸۷۵)، مسند احمد (۱۱۴/۶) (صحيح)

[۲]: صحيح البخاري/الشركة ۱۳ (۲۵۰۱)، والأحكام ۴۶ (۷۲۱۰)، (تحفة الأشراف: ۹۶۶۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۳۳/۴) (صحيح)

بیعت نه عذر او فرمائیلو چه دا لا ماشوم دې، خو خپل لاس مبارک ئې د هغه په سر باندې راښکلو.
بیعت چونکه یو قسم معاهده ده چه د باب د تکلیف نه دې او نابالغ غیر مکلف وی په دې وجه رسول اللهﷺ ورسره بیعت اونکړو. والحدیث اخرجه البخاري، قاله المنذري

# بَابٌ فِي أَرْزَاقِ الْعُمَّالِ

## د عاملینو د اخراجاتو بیان

ارزاق یعنی وظائف چه عمالو ته د بیت المال نه ورکولې شي.

[۲۹۴۳](¹) حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ أَخْزَمَ أَبُو طَالِبٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنْ عَبْدِ الْوَارِثِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ حُسَيْنٍ الْمُعَلِّمِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنِ اسْتَعْمَلْنَاهُ عَلَى عَمَلٍ فَرَزَقْنَاهُ رِزْقًا فَمَا أَخَذَ بَعْدَ ذَلِكَ فَهُوَ غُلُولٌ".

عبد الله بن بریدة د خپل پلار نه روایت کوی او هغه د نبی علیه السلام نه روایت کوی چه فرمائیلي ئې وو: څوک چه مونږ په څه کار باندې عامل مقرر کړو مونږ نو هغه ته وظیفه هم ورکوو نو که چرې عامل د دې نه څه او ساتي نو دا غلا او خیانت دې.

﴿من استعملناه على عمل فرزقناه رزقا فما اخذ بعد ذلک فهو غلول﴾

رسول اللهﷺ فرمائی چه کوم انسان مونږ عامل جوړ کړو نو د هغه چه کومه تنخواه او وظیفه مونږ مقرر کړو نو د هغه د پاره حلال ده (خو) که د هغې نه زیاته هغه اخلی نو هغه به غلول او خیانت شمیرلې کیږي.

[۲۹۴۴](²) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا لَيْثٌ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْأَشَجِّ، عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنِ ابْنِ السَّاعِدِيِّ، قَالَ: اسْتَعْمَلَنِي عُمَرُ عَلَى الصَّدَقَةِ فَلَمَّا فَرَغْتُ أَمَرَ لِي بِعُمَالَةٍ، فَقُلْتُ: إِنَّمَا عَمِلْتُ لِلَّهِ، قَالَ: خُذْ مَا أُعْطِيتَ فَإِنِّي قَدْ عَمِلْتُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَمَّلَنِي.

د ابن ساعدي نه روایت دې فرمائی چه عمر رضی الله عنه زه په زکات باندې عامل مقرر کړم یعنی د زکات د وصول کولو د پاره کله چه زه د دې کار نه فارغ شوم نو هغه ماته د اجرت را کولو د پاره حکم او کړو ما ورته اووئیل دا کار ما صرف د الله د رضا د پاره کړې دې عمر رضی الله عنه راته اووئیل څه چه درته درکولې شي هغه واخله زه هم د نبی علیه السلام په زمانه کښې په زکات عامل مقرر شوې وم او نبی علیه السلام ماته د دې مزدوري - را کړه.

[۲۹۴۵](³) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ مَرْوَانَ الرَّقِّيُّ، حَدَّثَنَا الْمُعَافَى، حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ، عَنِ الْحَارِثِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنِ الْمُسْتَوْرِدِ بْنِ شَدَّادٍ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "مَنْ كَانَ لَنَا عَامِلًا فَلْيَكْتَسِبْ زَوْجَةً، فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ خَادِمٌ فَلْيَكْتَسِبْ خَادِمًا، فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ مَسْكَنٌ فَلْيَكْتَسِبْ مَسْكَنًا"، قَالَ: قَالَ أَبُو بَكْرٍ: أُخْبِرْتُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنِ اتَّخَذَ غَيْرَ ذَلِكَ فَهُوَ غَالٌّ أَوْ سَارِقٌ".

---

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۹۵۷) (صحيح)

²): صحيح البخاري/الزكاة ٥١ (۱٤٧٣) (٧١٦٣)، والأحكام ١٧ (٧١٦٣)، صحيح مسلم/الزكاة ٣٧ (١٠٤٥)، سنن النسائي/الزكاة ٩٤ (٢٦٠٥، ٢٦٠٧)، (تحفة الأشراف: ١٠٤٨٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٧/١، ٤٠، ٥٢)، سنن الدارمي/الزكاة ١٩ (١٦٨٩) (صحيح)

³): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٢٦٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٢٩/٤) (صحيح)

د مستورد بن شداد نه روایت دي فرمائي چه دنبی کریم ا نه مي اوریدلی دی چه فرمائیل ئې څوك چه زمونږه عامل وي نود یوې ښځې دپاره دي زمونږ نه خرچه اخلي که چرې دده سره خدمت ګارنه وي نویوخدمت ګاردي وساتي اوکه چرې دده داوسیدلو دپاره کور نه وی نویوکور دي داوسیدو دپاره واخلي مستورد وائی ابوبکر رضی الله عنه اووئیل ماته خبر راکړې شوې دي چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی څوك چه ددې څیزونونه علاوه دبل څیزدپاره خرچه واخلي نوهغه خیانت ګر اوغل دې (یعنی دمسلمانانو مال عبث خرچ کوي).

﴿ من كان لنا عاملا فليكتسب زوجة ﴾

کوم انسان چه مونږ عامل جوړ کړو نو هغه له پکار دی چه وادهٔ اوکړی یعنی د بیت المال په خرچه باندې او هم دغه شان که د هغه سره خادم نه وی نو یو خادم دې د بیت المال نه حاصل کړي، او که د اوسیدو دپاره ئې کور نه وی نو د یو کور انتظام دې اوکړی.

## بَابٌ فِي هَدَايَا الْعُمَّالِ

### دعاملانو دهدئې اخستلو بیان

یعنی عمال چه کله صدقات وصولولو دپاره لاړ شی او د صدقاتو نه علاوه هغوی ته د جرته نه څه هدیه کښې څه ملاؤ شی نو د هغې څه حکم دې، د ابن عبدالبر په التمهید کښې دی چه هدایا د عمالو د جمهورو په نزد په حکم د فئ کښې دی. پس هغې لره په بیت المال کښې داخلول پکار دی، په خلاف د رسول الله ﷺ چه د هغوی په خدمت کښې یوه هدیه پیش کړې شی نو هغه به د هغوی دپاره وی. (هامش البذل) وهكذا في السير الكبير

**تنبیه**: بعینه هم دا ترجمة الباب ﴿ باب في هدايا العمال ﴾ وړاندې په کتاب القضاء کښې هم را روان دي هلته مصنف یو بل حدیث ذکر کړې دې.

[۲۹۴٦](¹) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، وَابْنُ أَبِي خَلَفٍ، لفظه قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَعْمَلَ رَجُلًا مِنَ الْأَزْدِ يُقَالُ لَهُ ابْنُ اللُّتْبِيَّةِ، قَالَ ابْنُ السَّرْحِ: ابْنُ الْأُتْبِيَّةِ عَلَى الصَّدَقَةِ، فَجَاءَ فَقَالَ: هَذَا لَكُمْ وَهَذَا أُهْدِيَ لِي، فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَحَمِدَ اللَّهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ، وَقَالَ: مَا بَالُ الْعَامِلِ نَبْعَثُهُ فَيَجِيءُ فَيَقُولُ: هَذَا لَكُمْ وَهَذَا أُهْدِيَ لِي، أَلَا جَلَسَ فِي بَيْتِ أُمِّهِ أَوْ أَبِيهِ فَيَنْظُرَ أَيُهْدَى لَهُ أَمْ لَا؟ لَا يَأْتِي أَحَدٌ مِنْكُمْ بِشَيْءٍ مِنْ ذَلِكَ إِلَّا جَاءَ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، إِنْ كَانَ بَعِيرًا فَلَهُ رُغَاءٌ، أَوْ بَقَرَةً فَلَهَا خُوَارٌ، أَوْ شَاةً تَيْعَرُ، ثُمَّ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى رَأَيْنَا عُفْرَةَ إِبْطَيْهِ، ثُمَّ قَالَ: "اللَّهُمَّ هَلْ بَلَّغْتُ اللَّهُمَّ هَلْ بَلَّغْتُ".

دابوحمید ساعدي رضی الله عنه نه روایت دي فرمائي چه نبی علیه السلام یو ایزدي عامل مقرر کړو چه ابن اللتبية ورته وئیلې شول اوابن صرح وئیلی دی ابن الاتبیه دزکات دوصول کولو دپاره نوکله چه د خپل کارنه راغې وې رئیل داستاسومال دي اوداماته هدیه شوې دي نو نبی علیه السلام پاخیدو او په ممبراودریدو دالله حمد او ثنائي اووئیله اووئي فرمائیل چه د عامل دپاره دامناسب نه دی چه دې مونږ اولیږو اوزکات راوړي اوداسې وائی چه دا مال ستاسو دپاره

¹): صحيح البخاري/الزكاة ٦٧ (١٥٠٠)، الهبة ١٧ (٢٥٩٧)، الأيمان والنذور ٣ (٦٦٣٦)، الحيل ١٥ (٦٩٧٩)، الأحكام ٢٤ (٧١٧٢)، صحيح مسلم/الإمارة ٧ (١٨٣٢)، (تحفة الأشراف: ١١٨٩٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٤٢٣)، سنن الدارمي/الزكاة ٣١(١٧١١) (صحيح)

دي اودانور ماته هديه شوي دي که چرې دي دخپل مور او پلار په کور کښې ناست وي نوأياده ته هديه ملاويږي اوکه نه، په تاسوکښې چه څوك ددې نه څه شي واخلي نوهغه به دقيامت په ورځ باندې راوړي که چرې اوښ وي نواوازونه به کوي اوکه غواوي نوهم آوازونه به کوي اوکه ګډ وي نوهم آوازونه به کوي بيانبي ﷺ خپل لاسونه ډير اوچت کړل اووئې فرمائيل اې الله ايا ما دين ورسوو يعني لکه څنګه چه تاوئيلى دى يقينا مادين ورسوو اې الله يقينا مادين اورسوو.

## شرح الحديث:

**قوله:** ﴿عن ابى حميد الساعدى رضي الله عنه ان النبى ﷺ استعمل رجلا من الازد يقال له ابن اللتبية قال ابن السرح ابن الاتبية على الصدقة الخ﴾: د دې رجل ازدى عامل نوم عبدالله دې، دلته ئې نسبت د مور طرف ته دې، بنو لتب يوه قبيله ده د هغه د مور نوم نه دې معلوم کړې، رسول الله ﷺ هغه لره د هغوى په صدقاتو باندې عامل مقرر کړو، يو ځل هغه صدقات راوړل، او وې وئيل چه دا مال خو د صدقې دې او دا مال ماته په هديه کښې ملاؤ شوې دې، د رسول الله ﷺ چونکه عادت شريفه په دې موقع باندې د عام نصيحت فرمائيلو وو بغير د تخصيص نه په دې وجه هغوى منبر ته تشريف يوړو او د الله پاک د حمد او ثناء نه پس ئې دا خبردارې اوفرمائيلو چه بعض عاملان داسې دى چه مونږ هغوى ليږو او هغوى واپس راځى او وائى چه دا مال خو د صدقې دې او دا مال زما دپاره هديه دې، وړاندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه دا سړې د خپلې مور يا پلار په کور کښې ولې نه کيناستلو چه هغه ته هديه ورکولې کيده او که نه؟ بيا چه وړاندې رسول الله ﷺ څه اوفرمائيل د هغى حاصل دا دې چه داسې مال مال د غلول دې. او د غلول په باره کښې چه کوم وعيد راغلې دې هغه رسول الله ﷺ بيان اوفرمائيلو، هغه دا چه که په مال د غلول کښې اوښ وى نو په ميدان حشر کښې به هغه اوښ د هغه په شا باندې سور او آواز کونکى راځى، او که هغه مال غلول غوا وى نو بيا به هم دغه شان راځى. هم دغه شان بيزه... الى اخر الحديث.

د عمالو د هدايا په باره کښې شراح ليکلې دى چه هغه حرام دى او رشوت دې، او د نورو هدايا په شان نه دى، ځکه چه عاملينو ته چه کوم خلق هدايا پيش کوى د هغوى غرض فاسدوى چه هغوى په زکوة وصولولو کښې تخفيف اوکړى او پوره واجب حق د هغه نه وانخلى.

### کوم څيز چه د امر محظور ذريعه جوړه شى هغه هم محظور دې:

او شارحينو دا هم ليکلې دى چه د دې حديث نه دا هم معلوميږى چه کوم څيز ذريعه جوړه شى د يو امر محظور و ممنوع دپاره نو هغه ذريعه به هم ممنوع او محظور وى، ځکه چه رسول الله ﷺ فرمائى چه د دې قسم عامل ته پکار دى چه هغه دې خپل کور کښې کينى او اودې ګورى هغه ته هديه ملاويږى يا نه، ښکاره خبره ده چه نه به ملاويږى، نو د دې نه معلومه شوه چه هغه ته کومه هديه ملاويږى هغه هم هغه ده يعنى عدم استيفاء حق واجب يعنى پوره زکوة نه وصول کول، نو دا هديه ذريعه جوړيږى د عدم استيفاء د زکوة دپاره چه هغه يو امر محظور دې، والحديث اخرجه البخارى ومسلم، قاله المنذرى

# بَابٌ فِي غُلُولِ الصَّدَقَةِ

## د زکات د مال نه د غلا کولو بیان

[۲۹۴۷]() حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مُطَرِّفٍ، عَنْ أَبِي الْجَهْمِ، عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ، قَالَ: بَعَثَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَاعِيًا، ثُمَّ قَالَ: "انْطَلِقْ أَبَا مَسْعُودٍ وَلَا أُلْفِيَنَّكَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ تَجِيءُ عَلَى ظَهْرِكَ بَعِيرٌ مِنْ إِبِلِ الصَّدَقَةِ لَهُ رُغَاءٌ قَدْ غَلَلْتَهُ"، قَالَ: إِذًا لَا أَنْطَلِقُ، قَالَ: "إِذًا لَا أُكْرِهُكَ".

دابومسعود انصاري رضي الله عنه نه روایت دې فرمائي چه نبي علیه السلام زه عامل مقرر کړم اوبیا ئې اوفرمائیل اې ابومسعوده لاړ شه خوداسې نه چه دقیامت په ورځ دې اووینم چه په خیټه کښې دې دزکات اوښ راوړې وي او آوازونه کوي ابومسعود اووئیل که چرې داسې وی نوزه نه ځم نبي علیه السلام اوفرمائیل په تاباندې زور نه کوو چه خامخا لاړ شه مګر که ستا په خپل نفس باندې یقین وي تو لاړ شه اوکه نه وی نو نه تلل ستادپاره بهتردي.

﴿عن ابی مسعود الانصاری رضي الله عنه قال بعث النبی صلی الله علیه وسلم ساعیا الخ﴾

هم د غلول فی الصدقة په باره کښې دا حدیث دې او په دې باندې وعید دې، چه د هغې مضمون پورته تیر شو.

# بَابٌ فِيمَا يَلْزَمُ الْإِمَامَ مِنْ أَمْرِ الرَّعِيَّةِ وَالْحَجَبَةِ عَنْهُ

## په امام باندې د قوم څه حقونه دی او ددې دتکمیل بیان

یعنی په امام باندې چه د رعایا کوم حق واجب دې د هغوی خبر اخستل او ضروریات پوره کول وغیره.

[۲۹۴۸]() حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَمْزَةَ، حَدَّثَنِي ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ، أَنَّ الْقَاسِمَ بْنَ مُخَيْمِرَةَ، أَخْبَرَهُ أَنَّ أَبَا مَرْيَمَ الْأَزْدِيَّ أَخْبَرَهُ، قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى مُعَاوِيَةَ، فَقَالَ: مَا أَنْعَمَنَا بِكَ أَبَا فُلَانٍ، وَهِيَ كَلِمَةٌ تَقُولُهَا الْعَرَبُ، فَقُلْتُ حَدِيثًا سَمِعْتُهُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "مَنْ وَلَّاهُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ شَيْئًا مِنْ أَمْرِ الْمُسْلِمِينَ فَاحْتَجَبَ دُونَ حَاجَتِهِمْ وَخَلَّتِهِمْ وَفَقْرِهِمْ احْتَجَبَ اللَّهُ عَنْهُ دُونَ حَاجَتِهِ وَخَلَّتِهِ وَفَقْرِهِ"، قَالَ: فَجَعَلَ رَجُلًا عَلَى حَوَائِجِ النَّاسِ.

دابومریم ازدي نه روایت دې فرمائي چه زه معاویه بن أبی سفیان رضي الله عنه ته لاړم هغه اووئیل ډیرښه کار دې اوکړو چه دلته راغلې ماووئیل یوحدیث مې اوریدلې دې کوم چه تاته بیانوم ماد نبي علیه السلام نه اوریدلې وو چه فرمائیل ئې چاته چه دمسلمانانو کوم کار اوسپارلې شي اوبیاهغه سړې دخلقو ضرورتونه نه پوره کوي ترڅوچه دغه خلق ضرورت مند بافقیران وي نوالله تعالی تردغه وخته پورې ددغه کس ضرورتونه نه پوره کوي معاویه چه دا واوریدل نومعاویه یوکس نره دخلقو دضرورتونو د پوره کولو دپاره مقرر کړو.

### مضمون حدیث

قوله: ﴿ان ابا مریم الازدی اخبره قال دخلت علی معاویة رضي الله عنه قال انعمنا بک ......الخ﴾

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۹۹۸۹) (حسن)
[2]: سنن الترمذي/الأحكام ٦ (۱۳۳۳)، (تحفة الأشراف: ۱۲۱۷۳) (صحيح)

ابومریم ازدی رضی الله عنه فرمائی چه زه یو خل سیدنا معاویه رضی الله عنه ته لاړم نو هغوی زما په لیدو سره د خوشحالئ اظهار اوکړو او د عرب خلقو د عادت مطابق ئې ﴿ ما انعمنا بک ﴾ دا جمله استعمال کړه، دا صیغه د تعجب ده یعنی ستا زمونږ طرف ته راتلل د الله پاک څومره لوئې انعام دې. هغوی اوفرمائیل چه ما د رسول الله ﷺ نه یو حدیث اوریدلې وو هغه تاسو ته اوروم، هغه دا چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه کوم انسان الله پاک د مسلمانانو په کارونو کښې د یو کار ذمه دار مقرر کړی او بیا هغه د خلقو د ضرورت په وخت د خلقو مخې ته نه راځی په پرده کښې ناست وی نو د داسې انسان سره الله پاک هم داسې معامله فرمائی چه د هغه د حاجت او د ضرورت په وخت کښې په پرده کښې شی. وړاندې په روایت کښې دی چه ﴿ فجعل رجلا علی حوائج الناس ﴾ معاویه رضی الله عنه د دې حدیث په اوریدو باندې یو سړې مقرر کړو د خلقو په حاجت باندې، یعنی چه د هغوی حاجتونه او مطالبات هغوی ته اورسوی.

دا د معاویه رضی الله عنه کمال اتباع او انقیاد دې چه په رعایا کښې یو سړی د هغوی د تنبیه دپاره یو حدیث واورولو نو د هغې په اوریدو سره ئې فورا د هغې مطابق عمل شروع کړو بغیر د څه قسم ناخوښې او تندی تریو کولو نه، آخر خلیفه وو امیر وو، د معاویه رضی الله عنه داسې نور هم واقعات په کتب حدیث کښې کوم چه د هغوی په کمال حلم باندې دلالت کوی او د هغوی حلم مشهور هم دې. والحدیث اخرجه الترمذی. قاله المنذری

[۲۹۴۹](۱) حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ شَبِيبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ، قَالَ: هَذَا مَا حَدَّثَنَا بِهِ أَبُو هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا أُوتِيكُمْ مِنْ شَيْءٍ وَمَا أَمْنَعُكُمُوهُ إِنْ أَنَا إِلَّا خَازِنٌ أَضَعُ حَيْثُ أُمِرْتُ".

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی چه تاسو ته دخپل طرف نه نه څه درکوم اونه څه منع کوم زه دالله تعالی خزانچی یم چرته چه ماته حکم کیږي هلته خرچ کوم.

[۲۹۵۰](۲) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ عَطَاءٍ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَوْسِ بْنِ الْحَدَثَانِ، قَالَ: ذَكَرَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ يَوْمًا الْفَيْءَ، فَقَالَ: مَا أَنَا بِأَحَقَّ بِهَذَا الْفَيْءِ مِنْكُمْ، وَمَا أَحَدٌ مِنَّا بِأَحَقَّ بِهِ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا أَنَّا عَلَى مَنَازِلِنَا مِنْ كِتَابِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ، وَقَسْمِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَالرَّجُلُ وَقِدَمُهُ وَالرَّجُلُ وَبَلَاؤُهُ وَالرَّجُلُ وَعِيَالُهُ وَالرَّجُلُ وَحَاجَتُهُ.

دمالك بن اوس بن الحدثان نه روایت دې چه عمرفاروق رضی الله عنه یوه ورځ دمال ئې ذکر اوکړو اووئې فرمائیل چه زه ستاسونه زیات ددې مال ئې حقدارنه یم اونه په مونږ کښې یو کس دبل کس نه ددې مال ئې زیات حقداردې مګر دالله تعالی کتاب اود نبی علیه السلام دتقسیم په طریقې سره ئې مونږ په خپلو خپلو درجو باندې قائم یو څوک چه داسلام په اعتبارسره قدیم ئې یا بهادر وي یابال بچه داروي یا ضرورت مند وي نوهغه به ددې حقداروي.

۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۴۷۹۲)، وقد أخرجه: صحیح البخاري/فرض الخمس ۷ (۳۱۱۷)، مسند احمد (۲/ ۳۱۴، ۴۸۲) (صحیح)

۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۶۳۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/ ۴۲) (حسن)

(عن مالک بن اوس بن الحدثان قال ذکر عمر بن الخطاب رضی الله تعالی عنه یوما الفئ فقال ما انا باحق بهذا الفئ منکم وما احد منا احق به من احد الا انا علی منازلنا من کتاب الله عزوجل وقسم رسوله فالرجل وقدمه والرجل وبلاؤه وعیاله والرجل وحاجته)

## د مال فئ په باره کښې د عمر رضی الله عنه د اثر تشریح:

یعنی یو ورځ عمر رضی الله عنه د خلقو مخکښې د مال فئ ذکر اوکړو او دا ئې اوفرمائیل چه د دې مال فئ زه ستاسو نه زیات مستحق نه یم، بلکه څوک هم زمونږ نه زیات د دې مستحق نه دې،[1] بلکه دا مال مشترک دې ټول په دې کښې برابر شریک دی، بیا ئې وړاندې اوفرمائیل چه اګر که په نفس استحقاق کښې ټول شریک دی خو د مرتبو د فرق لحاظ ساتلو سره د کتاب الله مطابق او د رسول الله ﷺ د تقسیم عمل په رڼړا کښ، بیا وړاندې د دې وضاحت دې فرمائی چه یو سړې دې او د هغه عیال او اولاد یعنی یو سړې د عیال خاوند دې او دویم د عیال خاوند نه دې او یو سړې دې او د هغه حاجت، یعنی یو سړې واقعی حاجت مند دې او د دویم سړی داسې څه حاجت نشته الحاصل د دې ټولو څیزونو رعایت کول هم ضروری دی.

## مال فئ او غنیمت کښې فرق او د هر یو حکم او مصرف:

د عمر رضی الله عنه په دې حدیث کښې د مال فئ حکم ذکر شوې دې مال فئ هغه مال دې چه بغیر د قتال نه حاصل شی لکه هغه اراضی کوم چه مسلمانانو د مشرکانو نه د هغوی په شړلو باندې خالی کړې وی بغیر د قتال نه، لکه د بنو نضیر زمکه او فدک هم دغه شان هم دغه شان د هر یو مقام او ښهر د فتح کولو نه پس چه د هغه ښهر نه کوم څیزونه حاصلیږی لکه جزیه وغیره او معاون دا ټول مال فئ دې، د مال غنیمت حکم خو په قرآن کریم کښې منصوص دې چه د هغې دې تخمیس اوکړې شی، یعنی یو خمس خو دې ځانله کړې شی او باقی اربعة اخماس دې په غانمینو کښې تقسیم کړې شی. بیا د دې خمس په باره کښې دا دی چه دا دې پنځه ځایه تقسیم کړې شی لکه چه په دې آیت کریمه کښې ذکر شوې دی. (واعلموا انما غنمتم من شئ فان لله خمسه وللرسول ولذی القربی والیتامی والمساکین وابن السبیل) د دې په شروع کښې د الله پاک نوم خو د برکت دپاره دې وړاندې باقی پنځه پاتې شو نو ګویا دا خمس په پنځه ځایونو کښې تقسیمولې شی، په دې صورت کښې د هر یو په حصه کښې خمس الخمس راځی. وړاندې یو مستقل باب را روان دې، (باب بیان مواضع قسم الخمس) وړاندې به د دې نور تفصیل انشاء الله راشی، دلته خو تبعاً د فئ د تقابل د وجې نه بیان کړې شوې ده.

د فئ په باره کښې چه کومه رائې د عمر رضی الله عنه ذکر شوې ده هم هغه د جمهور علماء کرامو او

---

[1] د ارض مفتوحه په باره کښې د عمر رضی الله عنه رائې: هم دغه شان د ارض مفتوحه په باره کښې د عمر رضی الله عنه رائې دا وه چه دا دې تقسیم نه کړې شی چه د ټولو مسلمانانو د ضرورتونو دپاره دا محفوظ اوساتلې شی چه ټول خلق ترې نه منتفع شی کیني د تقسیم په صورت کښې خو به په دې کښې د اشخاصو ملکیت شی. پس د هغوی دا حدیث وړاندې راروان دې باب (ما جاء فی حکم ارض خیبر) په آخری حدیث کښې هم دا دی، (لولا اخر المسلمین ما فتحت قریة الا قسمتها کما قسم رسول الله ﷺ خیبر)

ائمه ثلاثه رائي ده په دې کښې د امام شافعي رحمه الله اختلاف دې، د هغوی په نزد چه کوم حکم د غنیمت دې هم هغه د فئ دې یعنی د مال فئ دې تخمیس اوکړې شی بیا دې هغه خمس په مصارف خمس کښې صرف کړې شی، او باقی اربعة اخماس دې په مقاتلینو باندې تقسیم کړې شی، پس په شرح اقناع کښې دی ﴿ یخمس الفیء فیصرف الخمس مصارف الخمس، ویصرف اربعة اخماسه علی المقاتلة ای المرتزقة للقتال خلافا للائمة الثلاثة اذ قالوا لا یخمس الفیء بل جمیعه لمصالح المسلمین ﴾ (۱)

دا اختلافی مسئله په کتاب الجهاد کښې باب دعاء المشرکین کښې د حدیث د لاندې داسې تیره شوې ده چه د شوافعو په نزد په بیت المال کښې مال په دوه قسمه وی، د هر قسم مصرف ځانله دې:

۱: د زکوٰة او صدقاتو مال، دا د عامة المسلمین چه غازیان نه وی دپاره دې.

---

(۱) **د فئ دحکم په باره کښې نور تحقیق**: وفي الجوهر النقي ۲۹۴/٦ ذکر النووي ان جماعة العلماء سوي الشافعي قالوا لا خمس في الفيء وقال ابن المنذر لا نعلم احدا قبل الشافعي قال بالخمس في الفيء. وقال ابوعمر في التمهيد وهو قول ضعيف لا وجه له من جهة النظر الصحيح ولا الاثر، وفي العالم للخطابي كان رائ عمر في الفيء ان لا يخمس لكن يكون لجماعة المسلمين لمصالحهم، واليه ذهب عامة اهل الفتوي غير الشافعي فان كان يري ان يخمس الخ وفي قواعد ابن رشد. قال قوم الفيء يصرف الجميع المسلمين الفقير والغني ويعطي الامام منه المقاتلة والولاة والحكام وينفق منه في النوائب التي تنوب المسلمين كبناء القناطر واصلاح المساجد، ولا خمس في شيء منه وبه قال الجمهور، وهو الثابت عن ابي بكر وعمر رضي الله عنهما ولم يقل احد بتخميس الفيء قبل الشافعي وانما حمله علي ذلك انه رائ الفيء قسم في الاية علي عدد الاصناف الذي قسم عليهم (الخمس) فاعتقد ان فيه (الفيء) الخمس لانه ظن ان هذه القسمة مختصة بالخمس وليس ذلك باظاهر بل الظاهر ان هذه القسمة تخص جميع الفيء لا جزء منه، وفي التجريد للقدوري ما ملخصه قال اصحابنا الفيء كل مال وصل الينا من المشركين بلا قتال كالاراضي التي اجلوا عنها وهو والخراج والعشر والجزية تصرف الي مصالح المسلمين وقال الشافعي اربعة اخماسه للنبي صلی الله علیه وسلم وخمسه يقسم كما يقسم خمس الغنيمة، الي آخر ما ذكر من الدليل للحنفية) او په بیان القرآن کښې دی چه کوم مال د اهل حرب نه بغیر د قتال نه حاصل شوې وی هغه فئ دې کذا في الهداية اموال بنو نضیر هم د دې قبیلې نه دی او فدک او نصف خیبر هم، په مال فئ کښې د امام صاحب په نزد خمس نشته، او د دې مالونو حکم دا دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم لکه د روایاتو د الفاظو نه معلومیږی د دې مالک وو او په دې کښې چه کوم مصارف رسول الله صلی الله علیه وسلم ته بیان کړې شو وجوبا او ندبا هغه داسې دی لکه چه د مالونو په مالکانو باندې صدقه وی، خو دا اموال مملوکه د هغوی نه پس د میراث محل نه و بلکه وقف وو او دا خصوصیت وو د رسول الله صلی الله علیه وسلم رواه الشیخان، پس رسول الله صلی الله علیه وسلم د بنو نضیر د مالونو اکثر حصه مهاجرینو او انصارو کښې بعضو ته تقسیم کړه، رواه البیهقي، او په باقی کښې به خپل اهل وعیال ته د ټول کال د خرچې ورکولو نه پس چه څۀ بچ شو هغه به ئې په جهادی سامان او د اسلحې په اخستلو باندې خرچ کوله اخرجه الشیخان وغیرهما، او د خیبر د کټې نه به ئې د فقراء مهاجرینو او د فدک د مسافرو امداد کولو اخرجه ابوداؤد وابن مردویة، او د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ژوند نه روستو د دې مصارف صرف مصالح عامه دی مثل سد سغور وبناء قناطر وجسور او قضاة وعمال وعلماء المسلمین ورزاق مقاتلین وذراري مقاتلین كذا في الهداية او په دې مصالحو کښې مصارف خمس د غنیمت یتامی و مساکین، ......... او ابن السبیل هم په کښې داخل دې وفیه بعد ذلك: او دا ذکر کړې شوې تقریر (کوم چه مونږ مختصر کړو) د احنافو په مسلک باندې دې او د امام شافعي رحمه الله په نزد په فئ کښې هم خمس دې او څلور به اخماس په مصارف مذکوره کښې صرف کیږی آهـ.. مختصرا خو د هغې پوره عبارت چه پوره په یو صفحه کښې دې د د طالبانو او مدرسینو دپاره قابل مطالعه او په دې مقام باندې د پوهیدو دپاره ډیر زیات مفید دې)

۲: مال فئ دا صرف د غازیانو او مجاهدینو دپاره وی، صرح به النووی وقال ایضا : ولم یفرق بینهما ابوحنیفة ومالک.

مصنف له پکار وو چه د عمر رضی الله عنه حدیث ئې په را روان باب کښې ذکر کړې وې چه په هغې کښې هم دا مسئله ذکر ده د تقسیم فئ، خو زما په ذهن کښې دا خبره ده چه مصنف ډیره کرته داسې کوی چه د مخکښې باب په آخر کښې داسې حدیث راوړی چه د راتلونکی باب سره مناسب.وی په منزله د تمهید والله اعلم.

## بَابٌ فِي قَسْمِ الْفَيْءِ

### د مال فئ د تقسیم بیان

[۲۹۵۱](١) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَبِي الزَّرْقَاءِ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ، دَخَلَ عَلَى مُعَاوِيَةَ، فَقَالَ: حَاجَتَكَ يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ، فَقَالَ: عَطَاءُ الْمُحَرَّرِينَ فَإِنِّي رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوَّلَ مَا جَاءَهُ شَيْءٌ بَدَأَ بِالْمُحَرَّرِينَ.

دزید بن اسلم به روایت دې فرمائی چه عبدالله بن عمر رضی الله عنهما معاویه رضی الله عنه ته ورغې معاویه ورته ووئیل که څه ضرورت دې وې نو اووایه ابن عمر ورته ووئیل چه دازادکړې شور غلامانوحصه ادا کړه یقیناما نبی علیه السلام لیدلې ووچه کله به ورته مال ئې راغې نو اول به ئې دهغې نه دازادوغلامانو حصه اوښکله.

### مضمون الحدیث :

قوله: ﴿ ان عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دخل علی معاویة رضی الله عنه فقال حاجتک یا ابا عبدالرحمن؟ فقال عطاء المحررین الخ ﴾: ابن عمر رضی الله عنهما معاویه رضی الله عنه ته لاړو هغوی ترې نه تپوس اوکړو چه څه حاجت دې، څنګه راغلې ئې؟ هغوی اوفرمائیل د محررینو دپاره مې حصه راوړې ده، ځکه چه ما رسول الله صلی الله علیه وسلم لیدلې دې چه کله به هغوی ته دچرته نه مال راغلو نو دهغې د تقسیم شروع به ئې د محررینو نه کوله، دمحررین په مصداق کښې درې قول، په بذل کښې لیکلې شوې دی
۱: معتقین یعنی آزاد کړې شوې غلام ‹ځکه چه د دې ضرورت ښکاره دې اوس خو آزاد شوی دی د ژوند تیرولو دپاره د روزګار بندوبست سمدستی څنګه کیدې شی.
۲: مکاتبین : چه هغه خپل بدل د کتابت ادا کړې شی ۳: عبادت ګزار د الله پاک بندګان چه ددې ته شوې وی.

د حدیث مناسبت د ترجمة الباب نه ښکاره دې ځکه چه اول ﴿ ما جآء شئ ﴾ د دې نه صرف مال فئ مراد دې.

[۲۹۵۲](٢) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا عِيسَى، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ نِيَارٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُتِيَ بِظَبْيَةٍ فِيهَا خَرَزٌ فَقَسَمَهَا لِلْحُرَّةِ وَالْأَمَةِ، قَالَتْ عَائِشَةُ: كَانَ أَبِي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقْسِمُ لِلْحُرِّ وَالْعَبْدِ.

١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۶۷۲۹) (حسن)
٢): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۶۳۵۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۱۵۶، ۱۵۹، ۲۳۸) (صحیح)

دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام ته دغمو يوه بوجئ راوړل شوه نوهغه په اصيلو اووينځو باندې تقسيم كړې ام المومنين وائي چه زما والدصاحب به هم غلام او ازادته حصه وركوله.

﴿ عن عائشة رضي الله عنها ان النبي صلى الله عليه وسلم اتى بظبية فيها خرز فقسمها للحرة والامة ﴾ يعنى هغوى ته يو تيلئ راغله چه په هغې كښې هيرې او ملغلرې وې نو رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه په زنانو كښې په آزادو او وينزو ټولو كښې تقسيم كړه، وړاندې عائشة رضي الله عنها فرمائي چه هم دغه شان به زما پلار هم په آزاد او غلام ټولو كښې تقسيمولو، يعنى مال فئ لره، او د عائشې رضي الله عنها په روايت مرفوعه كښې حرة او امة د تخصيص حرز په لحاظ سره دې چه هنه هم د هغوى د كار څيزونه وې.

[۲۹۵۳](١) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ. ح وحَدَّثَنَا ابْنُ الْمُصَفَّى، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو الْمُغِيرَةِ جَمِيعًا، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَانَ إِذَا أَتَاهُ الْفَيْءُ قَسَمَهُ فِي يَوْمِهِ، فَأَعْطَى الْآهِلَ حَظَّيْنِ وَأَعْطَى الْعَزَبَ حَظًّا"، زَادَ ابْنُ الْمُصَفَّى: فَدُعِينَا وَكُنْتُ أُدْعَى قَبْلَ عَمَّارٍ فَدُعِيتُ فَأَعْطَانِي حَظَّيْنِ وَكَانَ لِي أَهْلٌ، ثُمَّ دُعِيَ بَعْدِي عَمَّارُ بْنُ يَاسِرٍ فَأَعْطَى لَهُ حَظًّا وَاحِدًا.

دعوف بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه كله به نبي عليه السلام ته مال ئې راغې نو په هم دغه ورځ به ئې تقسيم كړو، او متاهل (بال بچه دار)ته به ئې دوه حصې وركولې او مجرد ته به ئې يوه حصه وركوله. دابن المصفي په روايت كښې ورسره دا اضافه ده چه دوى راوبلل شول اوزه دعمارنه مخكښې را اوبللې شوم اوماته دوه حصې راكړې شوې اوزه شادي شده وم، بيازمانه پس عمار بن ياسر را اوبللى شو اويوه حصه ورته وركړې شوه.

﴿ عن عوف بن مالك رضى الله تعالى عنه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم كان اذا اتاه الفئ قسمه في يومه فاعطى الاهل حظين واعطى العزب حظا ﴾

يعنى چه كله به رسول الله صلى الله عليه وسلم ته مال فئ راتلو نو هغه ورځ به رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغې تقسيم كولو، د بې وادۀ كړې دپاره يو حصه، او وادۀ كړې ته به ئې دوچند وركولو.

## بَابٌ فِي أَرْزَاقِ الذُّرِّيَّةِ

### د مسلمانانو اولاد ته د حصې وركولو بيان

[۲۹۵٤](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ جَعْفَرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "أَنَا أَوْلَى بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنْفُسِهِمْ مَنْ تَرَكَ مَالًا فَلِأَهْلِهِ وَمَنْ تَرَكَ دَيْنًا أَوْ ضَيَاعًا فَإِلَيَّ وَعَلَيَّ".

دجابربن عبد الله رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام به فرمائيل چه زه په مومنانو باندې

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٠٩٠٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٢٥، ٢٩) (صحيح)

(٢): سنن ابن ماجه/المقدمة ٧ (٤٥)، والصدقات ١٣ (٢٤١٦)، (تحفة الأشراف: ٢٦٠٥)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الجمعة ١٣ (٨٦٧)، سنن النسائي/العيدين ٢١ (١٥٧٩)، والجنائز ٦٧ (١٩٦٤)، مسند احمد (٣/٣٧١) (صحيح)

دهغوی نه زیات مهربان یم که چرې دچانه مال پاتې شي نوهغه دده داهل اوبال بچ حق دي اوکه چرې څوك په خپله ذمه قرض یابال بچ پرېږدي نودهغې زه ذمه واریم.

د ذریت نه مراد یتیم او نابالغ ماشومان، مطلب دا دي که هغه فقیر وی نو د هغه نفقه به د بیت المال نه وی، د حدیث الباب مضمون ړومبی تیر شوي دې، د خطابی رحمه الله په شرح کښې دی چه زنانه هم په دې حکم کښې دی یعنی کونډې او ضرورت مند.

والحدیث اخرجه ابن ماجة، قاله المنذری

[٢٩٥٥](١) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ تَرَكَ مَالًا فَلِوَرَثَتِهِ وَمَنْ تَرَكَ كَلًّا فَإِلَيْنَا".

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی که چرې دچانه مال پاتې شي نوهغه دده دوارثانو حق دي اوکه چرې څوك تاوان پرېږدي نودهغې زه ذمه واریم

[٢٩٥٦](٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، كَانَ يَقُولُ: "أَنَا أَوْلَى بِكُلِّ مُؤْمِنٍ مِنْ نَفْسِهِ فَأَيُّمَا رَجُلٍ مَاتَ وَتَرَكَ دَيْنًا فَإِلَيَّ وَمَنْ تَرَكَ مَالًا فَلِوَرَثَتِهِ".

دجابربن عبدالله نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام به فرمائیل: چه زه په هرمومن باندې دهغه نه زیات مهربان یم که چرې هریومومن مرشي اوقرض پرېږدي نودهغې زه ذمه واریم اوکه چرې څوك مال پرېږدي نوهغه دده دوارثانو حق دي،

احادیث الباب کتاب الفرائض کښې تیر شوي دې، نو وضاحت ته ئې حاجت نشته

## بَابُ مَتَى يُفْرَضُ لِلرَّجُلِ فِي الْمُقَاتِلَةِ

### دکوم عمر والا سړی دپاره به حصه مقررولې شي؟

### شرح الحدیث:

﴿المقاتلة﴾ په کسرې د تاء سره او صیغه د مونث په اعتبار د جماعت سره، د دې نه مراد مقاتلین او غازیان دی، او دا د ذریت مقابل دی کوم چه په باب سابق کښې تیر شوي دي، فرض وائی هغه مقرره حصې ته کوم چه د بیت المال نه مجاهدینو ته ملاویږی او په جهاد کښې هغه انسان تلې شی چه بالغ وی، نو د ترجمة الباب حاصل دا شو چه انسان لره په مقاتلین کښې شمیرلو سره کله یعنی په کوم عمر کښې به د هغه حصه مقرر کولې شي؟ او جواب ئې دا دې چه کله هغه بالغ شی، او د بلوغ نه مخکښې نه خو هغه د مقاتلینو په فهرست کښې راتلې شی او نه به هغه ته د مقاتلینو حصه ملاویږی.

(١): صحیح البخاري/الاستقراض ١١ (٢٣٩٨)، الفرائض ٢٥ (٦٧٦٣)، صحیح مسلم/الفرائض ٤ (١٦١٩)، (تحفة الأشراف: ١٣٤١٠)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الجنائز ٦٩ (٢٠١٩)، سنن النسائي/الجنائز ٦٧ (١٩٦٥)، سنن ابن ماجه/الصدقات ١٣ (٢٤١٦) مسند احمد (٢/٢٩٠، ٤٥٣، ٤٥٥) (صحیح)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣١٥٩) (صحیح)

[۲۹۵۷](¹) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ أَخْبَرَنِي نَافِعٌ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُرِضَهُ يَوْمَ أُحُدٍ وَهُوَ ابْنُ أَرْبَعَ عَشْرَةَ، فَلَمْ يُجِزْهُ وَعُرِضَهُ يَوْمَ الْخَنْدَقِ وَهُوَ ابْنُ خَمْسَ عَشْرَةَ سَنَةً، فَأَجَازَهُ.

دابن عمر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه داحد په ورځ زه نبی ﷺ ته پیش کړې شوم اوزه دڅوارلسو کالووم نوزه ئې دجهاد دپاره قبول نکړم کله چه دخندق په ورځ باندې ورته پیش کړې شوم نو دپنځلسو کالو وم نوبیا ئې دجهاد دپاره قبول کړم.

په دې باب کښې مصنف د ابن عمر رضی الله عنهما واقعه ذکر کړې دې چه د هغه کور والو د جنګ احد په موقع باندې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې پیش کړو یعنی په جهاد کښې د شرکت دپاره په داسې حال کښې چه هغه د پوره څوارلس کالو وو نو رسول الله ﷺ اجازت ورنکړو، او بیا په بل کال چه کله د غزوه خندق په موقع باندې چه کله په هغوی باندې پیش کړو نو هغه وخت رسول الله ﷺ هغه ته اجازت ورکړو چه هغه د پنځلسو کالو شوې وو.

د ائمه ثلاثه او صاحبینو مسلک هم دا دې چه حد د بلوغ پنځلس کاله دې.

وعند الامام ابی حنیفة خمس عشرة سنة للانثی، وثمانیة عشر للذکر، وفی (البذل) هذا اذا لم یحتلم واما اذا احتلم قبل ذلک حکم ببلوغه من الاحتلام آهـ

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری

## بَابٌ فِي كَرَاهِيَةِ الِافْتِرَاضِ فِي آخِرِ الزَّمَانِ

### په آخری دور کښې د حصې د وصول کولو د کراهیت بیان

افتراض یعنی اخذ الفرض والحصته، یعنی د بیت المال نه د غازی خپله حصه او وظیفه اخستل، دفرض معنی حصه ورکول او دافتراض معنی حصه اخستل، مثل الکیل والاکتیال.

[۲۹۵۸](²) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي الْحَوَارِيِّ، حَدَّثَنَا سُلَيْمُ بْنُ مُطَيْرٍ شَيْخٌ مِنْ أَهْلِ وَادِي الْقُرَى، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي مُطَيْرٌ، أَنَّهُ خَرَجَ حَاجًّا حَتَّى إِذَا كَانَ بِالسُّوَيْدَاءِ إِذَا بِرَجُلٍ، قَدْ جَاءَ كَأَنَّهُ يَطْلُبُ دَوَاءً وَحُضُضًا، فَقَالَ: أَخْبَرَنِي مَنْ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ وَهُوَ يَعِظُ النَّاسَ وَيَأْمُرُهُمْ وَيَنْهَاهُمْ؟ فَقَالَ: "يَا أَيُّهَا النَّاسُ خُذُوا الْعَطَاءَ، مَا كَانَ عَطَاءً فَإِذَا تَجَاحَفَتْ قُرَيْشٌ عَلَى الْمُلْكِ وَكَانَ عَنْ دِينِ أَحَدِكُمْ فَدَعُوهُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد، وَرَوَاهُ ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ سُلَيْمِ بْنِ مُطَيْرٍ.

سلیم بن ابی مطیر دخپل پلار ابومطیر نه روایت کوی فرمائی چه ابومطیر حج ته روان شو کله چه سویداء مقام ته ورسیدو نو یو کس دسترګو ددوائی دغوښتلو دپاره راغې اووئې وئیل ما دهغه کس نه اوریدلي دي چاچه دنبی ﷺ نه په حجة الوداع کښې اوریدلي وو چه خلقو ته ئې دښه کارونو حکم کولو اودبدو کارونونه ئې منع کول اودائې ورته هم اوفرمائیل اې خلقو دوخت دحاکم تحفه قبلوئ ترڅوچه دشریعت مطابق وي څوکله چه د

¹): صحیح البخاري/الشهادات ۱۸ (۲۶۶۴)، والمغازي ۲۹ (۴۰۹۷)، سنن النسائي/الطلاق ۲۰ (۳۴۶۱)، (تحفة الأشراف: ۷۸۳۳، ۸۱۱۵، ۸۱۵۳)، وقد أخرجه: صحیح مسلم/الإمارة ۲۳ (۱۸۶۴)، سنن الترمذي/الأحكام ۲۴ (۱۳۱۶)، والجهاد ۳۱ (۱۷۱۱)، سنن ابن ماجه/الحدود ۴ (۲۵۴۳)، مسند احمد (۱۷/۲) ويأتي هذا الحديث في الحدود (۴۴۰۶) (صحيح)

²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۵۴۶) (ضعيف)

قریشو په مینځ کښې دیوبل سره په حکومت باندې جنګ کول شروع شي اوتحفې دقرض بدل جوړ شي نو ددې داخستونه انکار اوکړئ. ابوداود وائي چه داروایت محمدبن یسار بن سلیم بن مطیر په واسطه دابن مبارك سره هم نقل کړې دې.

## شرح الحديث :

**قوله:** ﴿ حدثني ابى مطيرانه خرج حاجا حتى اذا كان بالسويداء ءاذا انا برجل قد جآء كانه يطلب دواء لو حضضا ﴾: سلیم بن مطیر وائي چه ماته بیان کړې دې زما پلار مطیر چه هغوی حج دپاره روان وو، چه کله مقام سویداء ته اورسیدل نو مطیر وائي چه ما سره یو سړې ملاؤ شو چه هغه یو دوائی لټوله، یا ئې دا اوئیل حضض ئې لټولو، دا هم د یوې دوایئ نوم دې چه هغې ته رسوت (ترخه دواء) وائي، عطاریان ئې پیژني، مطیر وائي چه هغه سړي ماته یو حدیث واورولو کوم چه هغوی ته د رسول اللهﷺ نه بالواسطه رسیدلې وو، هغه دا چه رسول اللهﷺ خلقو ته وعظ او نصیحت فرمائیلو په حجة الوداع کښ، په دې کښې رسول اللهﷺ دا هم اوفرمائیل ﴿ یاایها الناس خذوا العطاء ماکان عطاء فاذا تجا حفت قریش علی الملک وکان عن دین احدکم، فدعوه ﴾ یعنی رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه عطاء اخلئ ترڅو چه هغه عطاء عطاء ده، د دې نه مراد هغه وظیفه ده چه د بیت المال نه غازیانو او مجاهدینو ته ملاویږي، پس هر کله چه قریش په حکومت او بادشاهت باندې جهګړې شروع کړي او هغه ورکړه د قرض په مقابله او بدله کښې شي نو بیا هغه پریږده، او د دې نه په وړاندې روایت کښې دی ﴿ وعاد العطاء رشا فدعوه ﴾ (١) یعنی چه کله وظیفه وظیفه پاتې نه شي بلکه رشوت جوړ شي نو بیا هغه پریږدئ، یعنی چه کله حکومت فوج لره په باطل او د ظلم په حمایت کښې استعمال کړي حق او ناحق ته او نه کتلې شي نو د هغه وخت د وظیفې نوعیت به د رشوت شي او رشوت اخستل جائز نه دی.

[٢٩٥٩](٢) حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ، حَدَّثَنَا سُلَيْمُ بْنُ مُطَيْرٍ مِنْ أَهْلِ وَادِي الْقُرَى، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ حَدَّثَهُ قَالَ: سَمِعْتُ رَجُلًا يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ فَأَمَرَ النَّاسَ وَنَهَاهُمْ، ثُمَّ قَالَ: "اللَّهُمَّ هَلْ بَلَّغْتُ" قَالُوا: اللَّهُمَّ نَعَمْ، ثُمَّ قَالَ: إِذَا تَجَاحَفَتْ قُرَيْشٌ عَلَى الْمُلْكِ فِيمَا بَيْنَهَا وَعَادَ الْعَطَاءُ أَوْكَانَ رِشًا فَدَعُوهُ"، فَقِيلَ: مَنْ هَذَا؟ قَالُوا: هَذَا ذُو الزَّوَائِدِ صَاحِبُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

سلیم بن ابی مطیر دخپل پلار ابومطیر نه روایت کوی فرمائي چه هغه دیوکس نه اوریدلی دی اوهغه دنبی ﷺ نه په حجة الوداع کښې اوریدلي وو چه خلقوته ئې دښه کارونوحکم کوو اودبدو کارونونه ئې منع کول اوددې نه پس ئې اوفرمائیل اې الله ایاماستا پیغام اورسوو؟ خلقو عرض اوکړوهو ضرور، بیانبی ﷺ اوفرمائیل کله چه په قریشوکښې په حکومت باندې جنګ شروع شي اودهدې نه رشوت جوړ شي اودمستحق په ځائې باندې غیر مستحق ته ملاویږي نوتاسو هدیه اخستل پریږدئ خلقو اوونیل داسې به څوك وي؟ نواووئیلې شول چه ذوالزوائد له صاحب رسول صلي الله علیه وسلم.

(١) رشا جمع رشوة والرشوة ما يعطي لا حقاق باطل او ابطال حق)
(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٥٤٦) (ضعيف)

# باب فِي تَدْوِينِ الْعَطَاءِ

## په شاهی دفتر کښې د مستحقینو د نومونو لیکلو بیان

يعنی د مجاهدینو د نومونو د لیکلو دپاره دیوان مرتب کول یعنی رجسټر.

قیل اول من دون الدیوان عمر، یعنی د ټولو نه اول دا کار عمر رضی الله عنه اوکړو، دیوان په معنی د رجسټر چه د هغې جمع دواوین راځی. د مجاهدین (فوج) نومونه باقاعده په رجسټر لیکلې شی .یا هم د هغې مطابق هغوی ته وظیفه ورکولې شی، او بله دا چه د هغوی بدلی هم کیږی کال په کال لکه چه په حدیث کښې دی.

[ ۲۹۶۰ ](۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ يَعْنِي ابْنَ سَعْدٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ الأَنْصَارِيِّ، أَنَّ جَيْشًا مِنَ الأَنْصَارِ كَانُوا بِأَرْضِ فَارِسَ مَعَ أَمِيرِهِمْ، وَكَانَ عُمَرُ يُعْقِبُ الْجُيُوشَ فِي كُلِّ عَامٍ فَشُغِلَ عَنْهُمْ عُمَرُ، فَلَمَّا مَرَّ الأَجَلُ قَفَلَ أَهْلُ ذَلِكَ الثَّغْرِ فَاشْتَدَّ عَلَيْهِمْ وَتَوَاعَدَهُمْ وَهُمْ أَصْحَابُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا: يَا عُمَرُ إِنَّكَ غَفَلْتَ عَنَّا وَتَرَكْتَ فِينَا الَّذِي أَمَرَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ إِعْقَابِ بَعْضِ الْغَزِيَّةِ بَعْضًا.

دعبدالله بن کعب بن مالك انصاري نه روایت دي فرمائی چه دانصارو یولښکردخپل امیرسره په فارس علاقه کښې وو، اوعمر به هرکال لښکرونه بدلول نویو ځل ددوی نه عمر رضی الله عنه مشغول کړی شو په نورو امورو کښې کله چه نیټه تیره شوه نودغه لښکروالا واپس راغلل نوعمر رضی الله عنه ورسره سختې وکړله اردوی ئې اویرول اوحال دادې چه دوی دنبی علیه السلام صحابه کرام وو، دوی عرض وکړوچه اې عمر ته خوزمونږنه غافله شوې ئې اوهغه طریقه دې پریخودلې ده کومه چه به نبی علیه السلام کوله چه په یو لښکر پسې به ئې بل لښکرلیږلوددې دپاره مخکښې کسان راشي اودمه وکړي.

﴿ عن عبدالله بن کعب بن مالک الانصاری رضی الله عنه ان جیشا من الانصار کانوا بارض فارس مع امیرهم وکان عمر یعقب الجیوش فی کل عام فشغل عنهم عمر فلما مر الاجل قفل اهل ذلک الثغرالخ ﴾

### مضمون حدیث :

یعنی د انصارو یو لښکر د خپل امیر سره د فارس زمکې ته د جهاد دپاره تلې وو. د جنګ سلسله چونکه مسلسل وه په دې وجه به عمر رضی الله عنه هر کال لښکرې بدلولې، یعنی د کال په پورا کیدو باندې دویم لښکر او نه لیږلې شو. چه کله د هغه لښکر موده پوره شوه نو د هغه د هغه ځائې راغلل، چه کله عمر رضی الله عنه هغوی اولیدل نو هغوی ته غصه شو او سخت الفاظ ئې ورته استعمال کړل، راوی وائی ﴿ وهم اصحاب رسول الله صلی الله علیه وسلم ﴾ یعنی هغوی آخر د اوچتې درجې صحابه کرام رضی الله عنهم وو. چه کله هغوی ډیر زیات اورتلو نو هغه حضراتو اووې (لږ همت کولو سره) ﴿ یا عمر انک غفلت عنا ﴾ اې عمر اوګورئ ! غفلت او هیره ستاسو د طرف نه شوې ده. تاسو هغه څیز چه د هغې رسول الله صلی الله علیه وسلم حکم کړې دې یعنی متبادل فوج روانول تاسو داسې ولې اونکړل.

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۶۱۵) (صحیح الإسناد)

دلته ټوکلو والا رټلو والا او رټلو اوریدو والا ټول داخلاص والا وو. د هر یو په بل باندې اطمینان او اعتماد وو، دې جماعت ته معلومه وه چه د عمر رضی الله عنه شان ﴿ انه کان وقافا عند کتاب الله تعالی ﴾ چه هغوی به د حق خبرې مخکښې فورا سر ښکته کولو هم دغه شان د هغه حضراتو د جواب همت پیدا شو، پس هم داسې اوشوه چه په عمر رضی الله عنه باندې د هغوی خبره بالکل بده او نه لګیده، رضی الله تعالی عنهم ورزقنا شیئا من اتباعهم.

## مناسبة الحدیث للترجمة:

دلته دا سوال واردیږی چه د دې حدیث د ترجمة الباب سره څه تعلق دې. په ظاهر کښې خو هیڅ نه دې، باقي دا وئیلې کیدې شی چه ممکنه ده چه د عمر رضی الله عنه په اعقاب جیش کښې چه کوم روستو والې اوکړو هغه کیدې شی هم په دې وجه اوشو چه هغوی د دیوان په تیارولو کښې مشغول وو. کذا فی البذل عن فتح الودود للعلامة السندی یا داسې اوایئ چه په وخت چه کوم اعقاب جیش او نه شو په دې کښې هم د دې دخل وو چه تر اوسه پورې داسې دیوان نه وو تیار شوې چه په هغې کښې به د لښکرو نومونه وې په دې وجه د متبادل جماعت په لیږلو کښې هیره اوشوه او بیا د دې واقعې په پیښیدو باندې هغه مرتب کړې شو.

[۲۹۶۱] (۱) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَائِذٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنِي فِيمَا حَدَّثَهُ ابْنٌ لِعَدِيِّ بْنِ عَدِيٍّ الْكِنْدِيِّ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيزِ، كَتَبَ إِنَّ مَنْ سَأَلَ عَنْ مَوَاضِعِ الْفَيْءِ فَهُوَ مَا حَكَمَ فِيهِ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فَرَآهُ الْمُؤْمِنُونَ عَدْلًا مُوَافِقًا لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَعَلَ اللَّهُ الْحَقَّ عَلَى لِسَانِ عُمَرَ وَقَلْبِهِ فَرَضَ الْأَعْطِيَةَ، وَعَقَدَ لِأَهْلِ الْأَدْيَانِ ذِمَّةً بِمَا فَرَضَ عَلَيْهِمْ مِنَ الْجِزْيَةِ لَمْ يَضْرِبْ فِيهَا بِخُمُسٍ وَلَا مَغْنَمٍ.

دعدي بن حاتم هدیوځوي نه روایت دې فرمائی چه عمر بن عبد العزیزیو خط اولیکلو چه څوك دامعلومول غواړی چه مال ئې دې چرته خرچ کړې شي نوددې جواب دادې لکه څنګه عمرفاروق رضی الله عنه د مال ئې دخرچ کولو حکم کړې وو او مومنانودا عدل اوګڼلو په وجه ددې دقول دنبی علیه السلام چه الله تعالی حق لره دعمر په ژبه اوزړه کښې اچولې دې، عمر رضی الله عنه بخششونه مقررکړل اودجزیه په بدل کښې ئې د ټولو مذاهبو خلقو ذمه وارې واخستله اونه ئې ددې نه خمس واخستواونه ئې دغنیمت په شان اوګڼلو.

﴿ ان عمر بن عبدالعزیز کتب ان من سال عن مواضع الفی فهو ما حکم فیه عمر بن الخطاب رضی الله عنه فراه المومنون عدلا موافقا لقول النبی صلی الله علیه وسلم جعل الله الحق علی لسان عمر وقلبه فرض الاعطیة وعقد لاهل الادیان ذمة بما فرض علیهم من الجزیة لم یضرب فیها بخمس ولا مغنم ﴾ (۲)

## شرح الحدیث:

یعنی عمر بن عبد العزیز عمر ثانی رحمه الله د خپلو عمال په نوم باندې دا مضمون اولیږو چه کوم انسان ستا نه تپوس اوکړی دتقسیم فئ په باره کښې (چه هغه چا چا ته ورکولې شی) نو تاسو هغوی ته جواب ورکوئ چه مواضع فئ هم هغه دی د کومو چه عمر بن الخطاب رضی الله عنه فیصله فرمائیلې ده او ټولو مسلمانانو هغه تسلیم کړه او هغه ئې د رسول الله صلی الله علیه وسلم ددې قول

(۱): تفرد به أبو داود (ضعیف الإسناد)

(۲) د مغنم نه مراد مال فئ دې)

مطابق بیا موندله ﴿ جعل الله الحق علی لسان عمر وقلبه ﴾ (د دې نه پس د عمر ﷺ طرز عمل ذکر شوې دې) هغوی د لښکرو وظیفې مقرر کړې او د اهل ادیان یعنی اهل کتاب دپاره ئې د عهد او امان معامله اوکړه د جزئې په بدل کښې، هغوی په دې جزیه کښې (او هم دغه شان په نور اموال فئ کښې) خمس نه دې مقرر کړې، د عدم تخمیس مطلب هم دا دې چه هغوی مال فئ په بیت المال کښې پریخودلو د عام مسلمانانو د مصالحو دپاره، او هم دا عمر ثانی عمر بن عبدالعزیز رحمه الله اختیار کړه. په دې کښې د امام شافعی رحمه الله اختلاف پورته تیر شوې دې چه هغوی په مال فئ کښې د تخمیس او په غازیانو کښې د تقسیم قائل دې.

[۲۹۶۲]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنْ غُضَيْفِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "إِنَّ اللَّهَ وَضَعَ الْحَقَّ عَلَى لِسَانِ عُمَرَ يَقُولُ بِهِ".

د ابوذر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دنبی کریم ﷺ نه مې اوریدلی دی چه فرمائیل ئې الله تعالی دعمرفاروق په ژبه باندې حق جاری کړې دې نودې چه څه وائی حق وائي.

## بَابٌ فِي صَفَايَا رَسُولِ اللَّهِ صلی الله علیه وسلم مِنَ الْأَمْوَالِ

**دهغومالونوبیان کوم چه به نبی علیه السلام**
**دغنیمت د مال نه دځان دپاره منتخب کول**

دا باب ډیر زیات اورد دې او وضاحت ته هم محتاج دې زما په نزد ډیر ګران دې.

### د ترجمة الباب تشریح او غرض د مصنف رحمه الله:

صفایا دصفی جمع ده، د څو بابونو نه روستو یو باب را روان دې، ﴿ ما جآء في سهم الصفي ﴾ خو هغه دې تکرار اونه ګنړلې شي دواړه صفی ځانله ځانله دی، دلته خو د صفایا نه مراد مطلق اموال مراد دی ځکه چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې چه به کوم مال فئ حاصلیدو هغه د قرآن کریم د تصریح مطابق خپله د رسول الله ﷺ دپاره وو.([2]) ﴿ وما افاء الله على رسوله منهم فما اوجفتم عليه من خيل ولا ركاب ولكن الله يسلط رسله على من يشآء ﴾ په دې وجه دلته صفایا د جمع صیغه استعمال کړې شوه او د هغې اضافت رسول الله ﷺ ته اوکړې شو.

په تیر باب کښې د مال فئ چه کوم حکم بیان شوې دې هغه د رسول الله ﷺ د زمانې نه پس دپاره دې، اوس چه هر کله دا خبره ده چه د رسول الله ﷺ د زمانې مال فئ خالص د هغوی ملک وه په هغې کښې د رسول الله ﷺ اختیار وو چه چرته ئې غوړی خرچ کولې ئې شی، نو اوس دا سوال پیدا کیدو چه دا قسم صفایا یعنی خالص مالونه د رسول الله ﷺ دپاره کړې شوې دې، او بله دا چه رسول الله ﷺ به په خپل ژوند کښې په هغه مالونو کښې چه څنګه تصرف کولو چرته او څنګه به ئې چه غوښتل خرچ کولې ئې شو او دا چه په دې کښې د بعد الوفات دپاره رسول الله ﷺ فیصله اوفرمائیله دا حاصل دې د ترجمة الباب چه د هغې تفصل وړاندې را روان دې.

[1]: سنن ابن ماجه/المقدمة ۱۱ (۱۰۸)، (تحفة الأشراف: ۱۱۹۷۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۴۵/۵، ۱۶۵، ۱۷۷) (صحیح)
[2]، د دې تشریح او تفصیل وړاندې په کتاب کښې را روان دې،

**د رسول الله ﷺ د پاره به په غنیمت کښې درې حصې وې :**

او هغه سهم صفی چه د هغې ذکر په وړاندې باب کښې را روان دې هغه بیل څیز دې څکه چه مشهوره ده چه د رسول الله ﷺ دپاره درې حصې وې. ١: سهم کسهم احد الغانمین ٢: خمس الخمس یعنی خمس مال غنیمت لره چونکه په پنځو ځایونو کښې تقسیمولې شی په دې کښې یوه حصه د رسول الله ﷺ ده چه خمس الخمس ده. ٣: سهم صفی... صفی په معنی د منتخب او غوره یعنی رسول الله ﷺ ته د دې خبرې حق وو چه هغه په مال غنیمت کښې یو څیز کوم چه هغوی خوښ ګڼړی که سورلئ وی، که وینزه وی یا که وسله وی اخستلې شی. په دې درې حصو کښې خو د رومبی دوو په باره کښې په روایتونو کښې تصریح او د علماء کرامو اتفاق دې چه هغه د هغوی دپاره په هر حال کښې وې که هغوی په هغه غزوه کښې شریک شوې وو او که نه وو ﴿شهد القتال او لم یشهد﴾ او په دریم قسم کښې روایات مختلف دی، په دې راتلونکی باب په یو روایت کښې خو تصریح ده چه سهم صفی شرکت فی الغزوة په صورت کښې دهغوی دپاره وو هم داسې نه، او هم د هغه باب د آخری روایت نه معلومیږی چه مطلقا وو. د ګنګوهی ﷫ رائې هم دا ده چه هغه هم د رسول الله ﷺ دپاره مطلقا وه، خو سهارنپوری په بذل کښې فرمائیلې دی چه ﴿لم اجد التصریح فی کتب الفقه بذلک﴾

**د رسول الله ﷺ د صفایا مصداق او تعیین :**

اوس د موجوده باب په باره کښې یعنی صفایا په سلسله کښې واورئ، دا صفایا څه وه، د دې تفصیل په دې پوره باب کښې چه ښه کافی اوږد دې د مختلفو روایاتو په ضمن کښې خور دې، پس وړاندې په یو روایت کښې داسې راځی چه ﴿کانت لرسول الله ﷺ ثلاث صفایا بنو النضیر وخیبر وفدک الی اخر الحدیث﴾ خو صرف په دې دریو کښې انحصار نه دې بلکه د دې نه علاوه هم دی، د دې باب د ټولو روایتونو او د شارحینو د کلام نه چه د رسول الله ﷺ د صفایا کوم تفصیل په فهم کښې راځی هغه لاندې لیکلې شی.

١: هبه کړې شوې باغونه یعنی هغه خو باغونه کوم چه بعض یهودو د اسلام قبلولو نه پس رسول الله ﷺ ته هبه کړې وو په طریقه د وصیت، او هم دغه شان بعض زمکې کومې چه بعض انصارو رسول الله ﷺ ته هبه کړې وې

٢: نیمه زمکه د فدک چه کله د خیبر د یهودو سره جنګ شروع وو او مسلمانانو هغه فتح کولو نو هغه وخت د فدک یهودو د رسول الله ﷺ سره د فدک د زمکې په نیم امدن باندې صلح کړې وه رسول الله ﷺ دا صلح قبول کړې وه او هلته د قتال وغیره ضرورت نه وو راغلې په دې وجه دا د فدک نیمه زمکه مال فئ شوه او مال فئ به وو هم د رسول الله ﷺ ملک لکه چه مخکښې تیر شو، زمونږ د اردو په کتابونو کښې دا د فدک د باغ په نوم مشهور دې.

٣: د خیبر نیمه زمکه، رسول الله ﷺ د خیبر زمکه فتح کولو سره نیمه زمکه خو د غانمینو ترمینځه تقسیم فرمائیلې وه او نیمه ئې باقی پریخودلې وه [1]

---

[1] دا مسئله چه د ارض مفتوحه تقسیم ضروری دې یا غیر ضروری مختلف فیه ده د امامانو ترمینځه چه وړاندې به راشی)

۴: د بنو نضیر زمکه بنو نضیر د یهودو یوه مشهوره قبیله وه چه مدینې ته نزدې متصلا د دوه میلو په فاصله باندې یوه بانډه کښې آباده وه، رسول اللهﷺ د صحابه کرامو رضی الله عنهم سره هلته د قتال دپاره تشریف یوړو، د معمولی جنګ نه پس هغوی د خپلو ځانونو بچ کولودپاره په قلعه کښې بند شو هلته د مسلمانانو محاصره وه، ﴿ ثم نزلو علی الجلاء ﴾ یعنی په دې شرط باندې هغوی لاندې راکوز شو چه مونږ به دا کلې پریږدو او لاړ به شو او د هغوی سره دا فیصله شوې وه چه هغوی په خپل منقوله مالونو کښې چه څومره اوړې شي اوړلې شي سوا د وسلې نه نو چونکه د بنو نضیر د زمکې په فتح کولو کښې هم باقاعده د آسونو زغلولو حاجت نه وو راغلې مدینې ته بالکل د نزدې کیدو د وجې نه دا هم مال فئ شو نو دا د بنونضیر زمکه د رسول اللهﷺ ملک شو، او بعض نور اموال منقوله هغوی د خپل ځان سره یونړلي شو هغه رسول اللهﷺ په مسلمانانو باندې تقسیم کړل.

۵: ثلث ارض وادی القری، چونکه د وادی القری یهودو سره په ثلث ارض باندې رسول اللهﷺ مصالحت اوکړو، لهذا د فدک د زمکې په شان دا هم مال فئ شو.

۶: خمس غنائم خیبر: یعنی نصف خیبر کوم چه رسول اللهﷺ تقسیم کړلو د هغې خمس (بذل المجهود عی القاضی عیاض) دا دی د رسول اللهﷺ هغه صفایا او املاک چه په هغې باندې مصنف ترجمة قائم کړې ده.

**د هغه صفایا د مصارفو بیان په ژوند د رسول اللهﷺ او پس د وفات نه:**

د مصنف رحمه الله غرض د ترجمې نه یو خو دا دې چه د هغه صفایا تعین اوشي، دویم دا چه رسول اللهﷺ به د هغه صفایا سره په ژوند کښې څه معامله کوله، او د وفات نه روستو ئې څه فیصله فرمائیلې وه، نو د احادیث الباب نه معلومیږی چه ﴿ کان رسول اللهﷺ یصرفها علی ازواجه وعلی المسلمین عامة ای فی حیاته، وجعلها صدقة بعد وفاته حیث قال ما ترکت بعد نفقة نسائی ومؤنة عاملی فهو صدقة ﴾ وفی روایة کما فی الصحیحین ﴿ ان رسول اللهﷺ قال لا یقتسم ورثتی دینارا، وفی روایة لا نورث ما ترکنا صدقة ﴾ یعنی رسول اللهﷺ هغه ټول مالونه او هغه زمکې او د هغې آمدنۍ خو په خپل حیات مبارک کښې د مسلمانانو په مصالحو او په اسونو جهاد وغیره کښې او د ازواج مطهرات په نفقاتو کښې خرچ کولې، او د خپل وفات نه پس ئې هم د دې مصرفونو دپاره وقف کړې. او د دې زمکو نه رسول اللهﷺ خپل جاګیر او داسې ذاتی مال چه په هغې کښې د رسول اللهﷺ په طور د میراث تقسیم جاری شی داسې اونه کرزولېوقف فیصله ئې اوفرمائیله.

**د رسول اللهﷺ د بعض وارثانو میراث طلب کول:**

خو د دې باوجود د رسول اللهﷺ بعض وارثانو د خلیفه اول نه د میراث مطالبه اوکړه، په هغې کښې بعض علي او عباس رضی الله عنهما دی. د عباس رضی الله عنه مطالبه په حیثیت د عصبه کیدو او د علی رضی الله عنه مطالبه د خپلې زوجې د رسول اللهﷺ د لور فاطمه رضی الله عنها د طرف نه وه. د دې دواړو د میراث د طلب کولو روایات هم دې باب کښې را روان دی بلکه د باب په ړومبی حدیث کښې دی چه ښه کافی او تفصیلی دې.

وړاندې يو روايت دا هم را روان دې چه ازواج مطهرات هم په ميراث کښې د خپلې حصې د مطالبې اراده کړې وه او عثمان رضي الله عنه ئې د صديق اکبر رضي الله عنه په خدمت کښې ليږل غوښتل خو چه کله عائشې رضي الله عنها ته د دې خبرې معلومات اوشو نو هغوی د رسول الله ﷺ حديث وړيادولو سره هغوی د دې مطالبې نه منع کړل او هغوی دا خبره تسليم کړله. رضی الله تعالی عنهن

[۲۹۶۳]([1]) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، وَمُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، الْمَعْنَى قَالَا: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ عُمَرَ الزَّهْرَانِيُّ، حَدَّثَنِي مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَوْسِ بْنِ الْحَدَثَانِ، قَالَ: أَرْسَلَ إِلَيَّ عُمَرُ حِينَ تَعَالَى النَّهَارُ فَجِئْتُهُ فَوَجَدْتُهُ جَالِسًا عَلَى سَرِيرٍ مُفْضِيًا إِلَى رِمَالِهِ، فَقَالَ حِينَ دَخَلْتُ عَلَيْهِ: يَا مَالِ إِنَّهُ قَدْ دَفَّ أَهْلُ أَبْيَاتٍ مِنْ قَوْمِكَ وَإِنِّي قَدْ أَمَرْتُ فِيهِمْ بِشَيْءٍ فَأَقْسِمْ فِيهِمْ، قُلْتُ: لَوْ أَمَرْتَ غَيْرِي بِذَلِكَ فَقَالَ: خُذْهُ فَجَاءَهُ يَرْفَا فَقَالَ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ: هَلْ لَكَ فِي عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، وَالزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ، وَسَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ؟ قَالَ: نَعَمْ فَأَذِنَ لَهُمْ فَدَخَلُوا، ثُمَّ جَاءَهُ يَرْفَا فَقَالَ: يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ هَلْ لَكَ فِي الْعَبَّاسِ، وَعَلِيٍّ؟ قَالَ: نَعَمْ فَأَذِنَ لَهُمْ فَدَخَلُوا، فَقَالَ الْعَبَّاسُ: يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ اقْضِ بَيْنِي وَبَيْنَ هَذَا يَعْنِي عَلِيًّا فَقَالَ بَعْضُهُمْ: أَجَلْ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ اقْضِ بَيْنَهُمَا وَارْحَمْهُمَا، قَالَ مَالِكُ بْنُ أَوْسٍ: خُيِّلَ إِلَيَّ أَنَّهُمَا قَدَّمَا أُولَئِكَ النَّفَرَ لِذَلِكَ فَقَالَ عُمَرُ رَحِمَهُ اللَّهُ: اتَّئِدَا ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَى أُولَئِكَ الرَّهْطِ، فَقَالَ: أَنْشُدُكُمْ بِاللَّهِ الَّذِي بِإِذْنِهِ تَقُومُ السَّمَاءُ وَالْأَرْضُ، هَلْ تَعْلَمُونَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا نُورَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ" قَالُوا: نَعَمْ، ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَى عَلِيٍّ، وَالْعَبَّاسِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا فَقَالَ: أَنْشُدُكُمَا بِاللَّهِ الَّذِي بِإِذْنِهِ تَقُومُ السَّمَاءُ وَالْأَرْضُ، هَلْ تَعْلَمَانِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا نُورَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ"، فَقَالَا: نَعَمْ قَالَ: فَإِنَّ اللَّهَ خَصَّ رَسُولَهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِخَاصَّةٍ لَمْ يَخُصَّ بِهَا أَحَدًا مِنَ النَّاسِ، فَقَالَ اللَّهُ تَعَالَى: وَمَا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ مِنْهُمْ فَمَا أَوْجَفْتُمْ عَلَيْهِ مِنْ خَيْلٍ وَلَا رِكَابٍ وَلَكِنَّ اللَّهَ يُسَلِّطُ رُسُلَهُ عَلَى مَنْ يَشَاءُ وَاللَّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ سورة الحشر آية ۶، وَكَانَ اللَّهُ أَفَاءَ عَلَى رَسُولِهِ بَنِي النَّضِيرِ فَوَاللَّهِ مَا اسْتَأْثَرَ بِهَا عَلَيْكُمْ وَلَا أَخَذَهَا دُونَكُمْ، فَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْخُذُ مِنْهَا نَفَقَةَ سَنَةٍ أَوْ نَفَقَتَهُ وَنَفَقَةَ أَهْلِهِ سَنَةً وَيَجْعَلُ مَا بَقِيَ أُسْوَةَ الْمَالِ ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَى أُولَئِكَ الرَّهْطِ فَقَالَ: "أَنْشُدُكُمْ بِاللَّهِ الَّذِي بِإِذْنِهِ تَقُومُ السَّمَاءُ وَالْأَرْضُ هَلْ تَعْلَمُونَ ذَلِكَ؟ قَالُوا: نَعَمْ، ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَى الْعَبَّاسِ، وَعَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا فَقَالَ: أَنْشُدُكُمَا بِاللَّهِ الَّذِي بِإِذْنِهِ تَقُومُ السَّمَاءُ وَالْأَرْضُ هَلْ تَعْلَمَانِ ذَلِكَ؟ قَالَا: نَعَمْ، فَلَمَّا تُوُفِّيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ أَبُو بَكْرٍ: أَنَا وَلِيُّ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجِئْتَ أَنْتَ وَهَذَا إِلَى أَبِي بَكْرٍ تَطْلُبُ أَنْتَ مِيرَاثَكَ مِنَ ابْنِ أَخِيكَ وَيَطْلُبُ هَذَا مِيرَاثَ امْرَأَتِهِ مِنْ أَبِيهَا، فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ رَحِمَهُ اللَّهُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا نُورَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ". وَاللَّهُ يَعْلَمُ إِنَّهُ لَصَادِقٌ بَارٌّ رَاشِدٌ تَابِعٌ لِلْحَقِّ فَوَلِيَهَا أَبُو بَكْرٍ، فَلَمَّا تُوُفِّيَ أَبُو بَكْرٍ قُلْتُ: أَنَا وَلِيُّ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَوَلِيُّ أَبِي بَكْرٍ فَوَلِيتُهَا مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ أَلِيَهَا فَجِئْتَ أَنْتَ وَهَذَا وَأَنْتُمَا جَمِيعٌ وَأَمْرُكُمَا وَاحِدٌ فَسَأَلْتُمَانِيهَا، فَقُلْتُ: إِنْ شِئْتُمَا أَنْ أَدْفَعَهَا إِلَيْكُمَا عَلَى أَنَّ عَلَيْكُمَا عَهْدَ اللَّهِ أَنْ تَلِيَاهَا بِالَّذِي كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَلِيهَا فَأَخَذْتُمَاهَا مِنِّي عَلَى ذَلِكَ، ثُمَّ جِئْتُمَانِي لِأَقْضِيَ بَيْنَكُمَا بِغَيْرِ ذَلِكَ وَاللَّهِ لَا أَقْضِي بَيْنَكُمَا بِغَيْرِ ذَلِكَ حَتَّى تَقُومَ السَّاعَةُ فَإِنْ عَجَزْتُمَا عَنْهَا فَرُدَّاهَا إِلَيَّ، قَالَ أَبُو دَاوُد: إِنَّمَا سَأَلَاهُ أَنْ يَكُونَ يُصَيِّرُهُ بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ لَا أَنَّهُمَا جَهِلَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا نُورَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ" فَإِنَّهُمَا كَانَا لَا يَطْلُبَانِ إِلَّا الصَّوَابَ، فَقَالَ عُمَرُ: لَا أُوقِعُ عَلَيْهِ اسْمَ الْقَسْمِ أَدَعُهُ عَلَى مَا هُوَ عَلَيْهِ.

---

[1]): صحيح البخاري/الجهاد ۸۰ (۲۹۰٤)، فرض الخمس ۱ (۳۰۹٤)، المغازي ۱٤ (٤۰۳۳)، تفسير القرآن ۳ (٤۸۸۰)، النفقات ۳ (۵۳۵۸)، الفرائض ۳ (۶۷۲۸)، الاعتصام ۵ (۷۳۰۵)، صحيح مسلم/الجهاد ۵ (۱۷۵۷)، سنن الترمذي/السير ٤٤ (۱۶۱۰)، الجهاد ۳۹ (۱۷۱۹)، (تحفة الأشراف: ۱۰۶۳۲، ۱۰۶۳۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۲۵) (صحيح)

دمالك بن اوس بن حدثان رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه عمر رضي الله عنه د ورځې په مينځ کښې په ما پسې څوك راوليږلو نوزه دهغه په خدمت کښې حاضرشوم اوما اوليدو چه دبسترې نه بغير په يوتخت باندې ناست وو زه چه کله نزدې وروړسيدم اوزه ئې اوليدلم نوماته ئې اوفرمائيل ستاد قوم څه کسان ماته راغلي وو او مادهغوي دپاره دڅه ورکړې حکم کړې دې ته دا په هغوي باندې تقسيم کړه ماعرض اوکړو څومره ښه خبره به و چه داکا ردې بل چاته حواله کړې وې عمر رضي الله عنه اوفرمائيل کوم مال چه مايه دغه خلقو باندې د تقسيمولو دپاره مقررکړې دې هغه واخله، په دې وخت کښې پرفاء (څوك چه دعمر رضي الله عنه څوکيدار او ازاد کړې شوې غلام وو) راغې اووئې وئيل چه عثمان بن عفان، عبدالرحمن بن عوف، زبير بن العوام، اوسعد بن أبي وقاص رضي الله عنهم، په دروازه کښې ناست دي که اجازت وې نو دوى به دننه راشي عمر رضي الله عنه اووئيل دننه ئې راپريږده چه راشي کله چه راغلل نويرفاء ورسره هم راغې اوعرض ئې اوکړو اې اميرالمومنين عباس اوعلي رضي الله عنهما هم راغلي دى او راتلل غواړى هغه اوفرمائيل هغوى هم راپريږده چه راشي کله چه راغلل نوعباس رضي الله عنه اووئيل اې اميرالمومنين زمااودده (علي) په مينځ کښې فيصله اوکړه، په دې وخت کښې نورو خلقوهم آوازونه اوکړل اې اميرالمومنين ددوى په مينځ کښې فيصله اوکړه اوارام ورته اورسوه، مالك بن اوسه وائى ماته داسې ياد دي چه علي اوعباس دغه نور کسان عمر رضي الله عنه ته ددې فيصلې دپاره راليږلي وو عمر رضي الله عنه اوفرمائيل صبر اوکړئ اوبيادې نورو صحابه کراموته متوجه شو اووئې وئيل: تاسوته په هغه الله باندې قسم درکوم دچاپه حکم چه زمکه اواسمان قائم دي ايا تاسو ته معلومه ده چه نبي عليه السلام فرمائيلي وو چه مونږ (انبياء) ميراث نه پريږدو مونږ چه څه پريږدو هغه صدقه وي هلته چه کوم صحابه کرام موجود وو هغوى اووئيل يقينا نبي عليه السلام داسې فرمائيلي وو، بياعمر د علي اوعباس طرف ته متوجه شو اووئې فرمائيل: تاسوته په هغه الله باندې قسم درکوم دچاپه حکم چه زمکه اواسمان قائم دي، اياتاسو ته معلومه ده چه نبي عليه السلام فرمائيلي وو چه مونږ (انبياء) ميراث نه پريږدو مونږ چه څه پريږدو هغه صدقه وي هغوى اووئيل هو، عمر رضي الله عنه اووئيل الله تعالى نبي عليه السلام ته داسې خصوصيت ورکړې وو کوم چه ئې بل چاته نه وو ورکړې الله تعالى فرمائيلي دي: («وما أفاء الله على رسوله منهم فما أوجفتم عليه من خيل ولا ركاب ولكن الله يسلط رسله على من يشاء والله على كل شيء قدير») يعنى الله تعالى چه خپل رسول ته ددې خلقونه څه مال ورکړې وو تاسوپه هغې پسې خپل اسونه اواوښان نه وو زغلولي ليکن الله تعالى چه خپل رسولان په چاباندې غالب کوې نوغالب ئې کړي او الله تعالى په هرڅه باندې قادر دې اوالله تعالى خپل رسول ته د بنو نظير مال ورکړو په الله مې دې قسم وي نبي عليه السلام هغه مال دخپل ځان دپاره نه وو ساتلې مګر ددينه ئې دخپل ځان دپاره ديوکال خرچه اخستلې وه اوکوم چه راته پاتې شوې وو په هغې کښې ئې ټول خلق برابر شريك ګرځولي وو ددې نه پس عمر صحابه کراموته متوجه شو اووئې فرمائيل: تاسوته په هغه الله باندې قسم درکوم دچاپه

حکم چه زمکه اواسمان قائم دي، ایا تاسوپه دې باندې خبر ئې اوکه نه؟ صحابه کرامو اووئیل مونږ خبریو بیا عمر علي اوعباس ته متوجه شو اووئې وئیل تاسوته په هغه الله باندې قسم درکوم دچاپه حکم چه زمکه اواسمان قائم دي، ایا تاسو په دې باندې خبرئ؟ هغوی اووئیل هو یقینامونږ خبریو کله چه نبی علیه السلام وفات شو نوصدیق اکبره اوفرمائیل چه زه دنبی علیه السلام دمالونو متولي یم نوتاسو(علي اوعباس)ابوبکرصدیق ته ورغلی اودخپل وراره اودخپل صحر دمیراث غوښتودپاره آبوبکراوفرمائیل چه نبی علیه السلام فرمائیلی وو زمونږ څوك وارث نه وی اومونږ چه څه پریږدو هغه صدقه وي او الله تعالی ته ددې علم دې چه ابوبکر رضي الله عنه رینښتوني اوهدایت اودحق دلارې تابع وو اوبیاابوبکر ددې مال متولي پاتې شو کله چه ابوبکر وفات شو نوما اووئیل چه زه د نبی علیه السلام اودابوبکرمتولي یم بیازه ددې مالونو تردې وخته پورې متولي پاتې شوم ترڅوچه الله تعالی ته منظور وه، نوبیاته اې عباس اودا صاحب یعنی علي راغلئ او تاسو متحد وي اوستاسومقصد هم یورو تاسودواړوماته اووئیل چه دغه مال مونږ ته حواله کړه مااووئیل که چرې ستاسو زړه غواړی نوزه به ئې درته حواله کړم مګرپه دې شرط سره چه تاسوته په الله تعالی قسم درکوم چه تاسوبه په دې مال کښې داسې تصرف کوئ لکه څنګه چه نبی علیه السلام کولونو تاسودغه مال زمانه به دی شرط بانده. واخستو نواوس تاسوماته راغلئ چه زه ستاسوپه مینځ کښې ددې طریقې نه علاوه په بله طریقه فیصله اوکړم، په الله مې دې قسم وي چه زه به هیڅ کله ددې طریقې نه علاوه په بله طریقه فیصله اونکړم البته که چرې ستاسونه ددې مالونو اهتمام اوانتظام اونه شي نودرنه به ئې واپس کړم. ابوداود وائی چه دوی واړو ددې خبرې متعلق درخواست کړې وو چه ددې مالونو انتظام دې په مونږ باندې تقسیم کړې شي داغرض ئې نه وو چه دادې مونږ ته راکړې شي نوپه دې خبره باندې عمر رضي الله عنه اوفرمائیل چه زه به دې باندې د تقسیم نوم نه ږدم بلکه په مخکښې حالت باندې به وي.

﴿ عن مالك بن اوس بن الحدثان قال ارسل الی عمرو حين تعالی النهار فجئته فوجدته جالسا علی سرير مفضيا الی رماله (۱) فقيل حسن دخلت عليه يا مال انه قد دف اهل ابيات من قومك ﴾

**دعمر رضي الله عنه اورد حدیث دتصام د علی او عباس رضي الله عنهما په باره کښې او د هغې تفصیلي وضاحت**

مالك بن اوس رضي الله عنه فرمائی چه عمر رضي الله عنه زما د رابللو دپاره یو قاصد راولیږلو د نمر د راختلو په وخت، زه د هغوی په خدمت کښې حاضر شوم نو ما هغوی په داسې حال کښې بیا موحین چه یو تخت چه په هغې باندې ټاټ خور شوې وو په هغې باندې ناست وو، رمال الحصیر وائی د کهجورې د ټاټ پټو ته، د دې حاصل دا دې چه هغوی په خالص ټاټ باندې ناست وو او په هغې باندې بل څه څادر وغیره خور نه وو، عمر رضي الله عنه ما ته کتلو سره اوفرمائیل چه ما ته د دې دپاره راغلوښتلې ئې چه ستاسو د قوم څه کورنئ راغلې دي او زه

(۱) د عمر رضي الله عنه بدن رسیدونکی وو رمال حصیر ته یعنی بدن ئې لګیدلې وو، رمال سره، د رمال اضافت دتله په ظاهر د کټ طرف ته دې چه د ادنی ملابست د وجې نه دې څکه رمال د سریر نه وی بلکه د حصیر وی خو چونکه حصیر په تخت باندې خور شوې وو په دې وجه د دې اضافت د سریر طرف ته کړې شوې دي، هذا ما خطر ببالي والله تعالی اعلم)

هغوی باندې سئا په ذریعه څه تقسیمول غواړم، ما هغوی ته عذر اوکړو خو هغوی قبول نه کړو بلکه ما ته ئې د تقسیم دپاره راکړل، د مصنف د ترجمې په لحاظ سره دا دومره مضمون ضمني او غیر مقصود دې، د مصنف اصل خبره اوس شروع کیږي.

**﴿ فجاءه یرفاه فقال یا امیر المومنین هل لک فی عثمان بن عفان وعبدالرحمن بن عوف والزبیر بن العوام؟ قال نعم ﴾**

یرفاء د عمر رضی الله عنه د حاجب نوم دې، مالک بن اوس د حدیث راوی دا فرمائی چه زما په موجودګئ کښې د عمر رضی الله عنه دربان راغلو او عرض ئې اوکړو او د دې ذکر کړې شوې څلورو واړو صحابه کرامو رضی الله عنهم نومونه اخستلو سره ئې دا اوفرمائیل چه دا حضرات ولاړ دی د راتلو اجازت غواړي. عمر رضی الله عنه اجازت ورکړو او هغوی دننه داخل شو، لږ وخت پس یرفاء دوباره راغلو او وې وئیل یا امیر المومنین ﴿هل لک فی العباس وعلی﴾ یعنی عباس او علی رضی الله عنهما ولاړ دی او اجازت غواړي پس هغوی ته هم اجازت ورکړې شو. او دننه داخل شو عباس رضی الله عنهما عرض اوکړو چه زما او د دۀ ترمینځه فیصله اوکړئ.

## د عباس رضی الله عنه د علی رضی الله عنه په باره کښې سخت الفاظ او د هغې توجیه:

د ابوداؤد په روایت کښې صرف ﴿بین هذا﴾ دې. [1] او د مسلم په روایت کښې دی ﴿بینی وبین هذا الآثم الکاذب الغاد﴾ مراد علی رضی الله عنه دې لکه چه په حدیث کښې تصریح ده هم دغه شان هم په دې حدیث کښې وړاندې تلو سره د عمر رضی الله عنه په کلام کښې راځی ﴿فقال ابوبکر قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لا نورث ما ترکنا صدقة﴾ د دې نه پس په ابوداؤد کښې خو دا دی ﴿والله یعلم انه صادق بار راشد تابع للحق﴾ او په مسلم کښې د دې نه مخکښې دا جمله ده کومه چه مصنف حذف کړې ده ﴿فرایتماه کاذبا آثما خائنا﴾ په دې باره کښې زما په یو کاپئ کښې په دې باندې داسې اشکال او جواب لیکلې شوې دې، چه عباس رضی الله عنه د علی رضی الله عنه په باره کښې دا اوفرمائیل چه دې کاذب دې خائن دې غادر دې، هم دغه شان د عمر رضی الله عنه په

---

[1] **د مصنف یو عادت شریفه د کمال ادب**: د مصنف عادت دا دې چه کله په یو حدیث کښې د یو سړی دپاره څه سخت وعید یا سخت لفظ راشي نو مصنف رحمه الله هغه د ادب د وجې نه حذف کوي، او کله هغې طرف ته اجمالی اشاره هم کوی لکه چه په کتاب الجنائز کښې مصنف داسې اوکړل لکه چه په باب التعزیة کښې یو حدیث دې چه په هغې کښې دی یو صحابی فرمائی چه مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د مړی د دفن کولو نه پس د قبرستان نه واپس کیدو رسول الله (ص) چه کله خپلې دروازې ته اورسیدلو نو اودریده، او وې کتل چه د وړاندې نه یو زنانه راروانه ده. راوی وائی چه زمونږ خیال دې رسول الله (ص) دا پیژندلې وه. چه کله هغه نزدې راغله نو معلومه شوه چه هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم لور فاطمه رضی الله عنها ده، رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغې نه معلومات اوکړو چه ته د کوم ځائې نه راغلې؟ نو هغې عرض اوکړو چه دلته په ګاونډ کښې چه کوم مړې شوې وو هلته تلې اوم د تعزیت دپاره، رسول الله صلی الله علیه وسلم تپوس اوکړو چه ته هغوی سره قبرستان ته خو نه وې تلې، هغې عرض اوکړو نه! معاذالله نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل ﴿لو بلغت معهم الکدی فذکر تشدیدا فی ذلک﴾ دلته هم مصنف رحمه الله داسې کار کړې دې حال دا چه د نسائی په روایت کښې داسې دی ﴿فقال لها لو بلغتها معهم ما رایت الجنة حتی یراها جدابیک﴾ یعنی که ته د هغوی سره قبرستان ته تلې وې نو ته هغه وخته پورې به جنت ته نه شوې تلې تر څو چه ستا د پلار نیکۀ جنت ته نه وې لیدلې)

کلام کښې دی چه تاسو دواړو ابوبکر خائن غادر او کاذب اوګڼړلو. اوس په دې روایت کښې اشکال ښکاره دې چه یو صحابی دې د بل صحابی په باره کښې داسې سخت الفاظ او بدګمانی اوکړی. امام نووی رحمه الله ۹۰/۲ باندې د مازری نه نقل کوی چه بعض علماء کرامو خو دا د راویانو وهم طرف ته منسوب کړې دې او دا ئې د خپل کتاب نه حذف کړې هم دې. خو که تسلیم کړې شی نو د اول جواب دا دې چه عباس رضی الله عنه د علی رضی الله عنه مشر وو په منزله د پلار او ډیر کرته چه یو مشر خپل کشر ته خبرداري ورکوی نو هغه ته بعض داسې خبرې هم اوکړی چه د هغې په باره کښې هغه پخپله هم پوهیږی چه هغه په هغه کښې نشته. ﴿ وذلک علی جهة الادلال ﴾ او یا دا اوئیلې شی چه مطلب دا دې چه اې علی څه چه تاسو کوئ که دا ټول هر څه تاسو په هغه صورت کښې کړې وی چه ستاسو په ذهن کښې هم هغه هر څه وې څه چه زما په ذهن کښې دی او ستاسو رائې د هغې مال په باره کښې هم هغه وې کومه چه زما ده او بیا تاسو هغه څه کړې وې کوم چه اوس کوئ نو یقینا خائن او کاذب او غادر به وې، او وړاندې د عمر رضی الله عنه په کلام کښې چه راغلی دی د هغې توجیه دا ده چه د عمر رضی الله عنه مقصد دا دې چه ستاسو د دواړو د ابوبکرصدیق رضی الله عنه نه داسې سوال کول او د خپل حق داسې مطالبه کول او ستاسو د هغه نه خفه کیدل د دې ټولو مقتضی خو داده چه هغه ستاسو په نزد داسې او داسې دې والله تعالی اعلم (هکذا فی البذل والحل المفهم) ﴿ فقال بعضهم اجل یا امیر المومنین ﴾ په دې باندې بعض خلقو د چا ذکر چه مخکښې تیر شوې دې اوئیل جی اې امیر المومنین ضرور فیصله اوکړئ. ﴿ قال مالک بن اوس الخ ﴾ چه کله هغه حاضرینو د هغوی دواړو تائید اوکړو نو په دې باندې مالک بن اوس رضی الله عنه وائی چه زما په ذهن کښې دا خبره راغله چه دا جماعت هم دې دواړو د خپل راتلو نه مخکښې دربار عمری ته رالیږلې وو (د سفارش په طور) ﴿ فقال عمر اتئدا ثم اقبل علی اولئک الرهط فقال انشدکم بالله الذی باذنه تقوم السمآء والارض ﴾ اوس عمر رضی الله عنه د فیصلې کولو دپاره تیاریدو سره د حاضرینو طرف ته متوجه شو او هغه دواړو ته ئې خطاب کولو سره اوفرمائیل چه ګورئ تندی مه کوئ اطمینان ساتئ. او هغه جماعت ته ئې خطاب کولو سره اوفرمائیل چه زه تاسو ته په الله پاک باندې قسم درکوم د چا په حکم چه زمکه او آسمان قائم دی، آیا تاسو ته د دې خبرې علم دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپل ژوند کښې دا فرمائیلې وو ﴿ لا نورث، ما ترکنا صدقة ﴾ چه زمونږ (د انبیاء کرامو علیهم السلام) هیڅ څوک وارث نه وی مونږ چه څه هم پریږدو هغه صدقه وی، په دې باندې هغوی ټولو د دې خبرې تصدیق اوکړو، بیا امیر المومنین رضی الله عنه علی او عباس رضی الله عنهما ته متوجه شو او هغوی ته ئې هم دغه شان د الله پاک قسم ورکړلو او د رسول الله صلی الله علیه وسلم د حدیث په باره کښې ئې هم دا سوال اوکړو ﴿ فقالا نعم ﴾ هغوی هم د دې حدیث د پیژندګلو اعتراف اوکړو.

﴿ قال فان الله خص رسوله صلی الله علیه وسلم ﴾ د عمر رضی الله عنه د طرف نه دا بیان دې د هغه څیز په باره کښې کوم چه رسول الله صلی الله علیه وسلم صدقه کولو سره پریخودلو. او په دې موقع باندې هغوی د

بنونضير د مالونو ذكر اوفرمائيلو(١)

﴿ فوالله ما استاثر بها عليكم ولا اخذها دونكم ﴾ يعني رسول الله ﷺ د بنو نضير په دې زمكه نه خو ستاسو نه علاوه بل چا ته ترجيح وركړه او نه ئې تاسو پرېخودلئ او پخپله ئې واخستله، كوم چه وړاندې په روايت كښې ذكر شوې دى، ﴿ وكان رسول الله ﷺ ياخذ منها نفقة سنة الخ ﴾(٢) يعني رسول الله ﷺ به د دې مال نه د خپل ځان او د ازواج مطهرات د يو كال نفقه اخستله ﴿ ويجعل ما بقي اسوة المال ﴾ او د دې نفقې نه علاوه به ئې ټول د مال غنيمت برابر كړو يعني د خمس غنيمت برابر، په اعتبار د صرف چه څنګه خمس غنيمت لره په كراع او مصالحو د مسلمانانو او وسله كښې خرچ كولو، هم دغه شان به ئې دا مال فئ هم خرچ كولو.

﴿ ثم اقبل على اولئک الرهط........ ثم اقبل على العباس وعلى ﴾ يعني عمر ﷛ د رسول الله ﷺ د طرز عمل د بيانولو نه پس اول د صحابه كرامو ﷡ د جماعت نه او په دويم ځل هغوى دواړو نه د دې خپل بيان تصديق طلب كړو هغوى ټولو د عمر ﷛ تصديق او تائيد اوكړو چه هلته واقعى د رسول الله ﷺ طرز عمل د دې مال فئ سره وو. ﴿فلما توفى رسول الله ﷺ قال ابوبكر انا ولى رسول الله ﷺ ﴾ اوس د دې ځائې نه عمر ﷛ په هغه دواړو حضراتو باندې حجت قائموى چه ګورئ تاسو هر څه پېژندلو باوجود هم خليفه اول ته د ميراث طلب كولو دپاره راغلئ، عباس ﷛ خپل ميراث (د عصبه كيدو د وجې نه) او على ﷛ د فاطمې ﷱ په ميراث پسې، په دې باندې هغوى تاسو ته د رسول الله ﷺ پورته ذكر كړې شوې ﴿ لانورث، ما تركنا صدقة ﴾ تاسو ته درياد كړو ﴿ والله يعلم انه صادق بار راشد تابع للحق ﴾ دلته د دې مقابل محذوف دې چه د هغې ذكر مخكښې شوې دې ﴿ فوليها ابوبكر ﴾ پس د بنو نضير ددې زمكې ابوبكر ﷛ متولى پاتې شوې وو يعني هغوى نه هغه زمكه تاسو ته د ميراث په طور دركړه او نه په طريقه د توليت. ﴿ فلما توفى ابوبكر ﴾ بيا چه كله د ابوبكرصديق ﷛ وفات اوشو او زه د هغه په ځائې راغلم او څه زمانه زما د خلافت تيره شوه پس هغه وخت تاسو او دا دواړه ما ته راغلي وئ، هغه وخت تاسو دواړه خپل مينځ كښې متفق وئ او راغلئ او زما نه مو د دې زمكې غوښتنه اوكړه. دلته د دې تصريح نشته چه دا سوال او مطالبه په كوم لحاظ سره وه، ايا په طور د ميراث يا په طريقه د توليت؟ خو وړاندې د عمر ﷛ په كلام كښې په طريقه د توليت تصريح راروانه ده، ﴿ فقلت ان شئتما ان ادفعها اليكما على ان عليكما عهد الله ان تلياها بالذى كان رسول الله ﷺ يليها ﴾ يعني ما تاسو ته هغه وخت وئيلي وو چه كه تاسو غواړئ چه تاسو ته هغه زمكه په دې عهد سره دركړم چه تاسو به د هغې ولايت او انتظام هم هغه شان كوئ څنګه به چه رسول الله ﷺ كولو نو دركولې

(١) د عمر ﷛ د دې كلام نه دا خبره مستفاد كيږى چه آيت كريمه ﴿ وما افاء الله على رسوله منهم فما اوجفتم عليه من خيل الخ ﴾ كښې د بنو نضير د زمكې چه مال فئ وو ذكر دې، په دې باندې يو اشكال هم دې چه وړاندې راځى.

(٢) اي انه ﷺ لم يجعل هذا الفئ وهو مال بني النضير ملكا لنفسه خاصة بل بعد اخذه حسب الحاجة يصرفه في مصالح المسلمين)

شم، پس تاسو زما نه هغه زمکه په هغه عهد باندې اخستلې وه يعنی په مشترک توليت باندې بغير د تقسيم نه. ﴿ ثم جئتمانی لاقضی بينکما بغير ذلک، ﴾ اوس په دويم ځل ماته راغلي يئ چه د ږومبئ فيصلې خلاف فيصله اوکړم، يعنی چه د مشترک توليت په ځائې د هر يو توليت ځانله ځانله شی، ﴿ والله لا اقضی بينکما بغير ذلک ﴾ يعنی قسم په الله چه زه به اوس د خپلې ږومبئ فيصلې خلاف هيڅ فيصله نه کوم ترقيامته پورې، خو که تاسو د دې قسم توليت نه عاجز يئ نو بيا دا زمکه ما ته راواپس کړئ.

وړاندې په روايت کښې دی ﴿ قال ابوداؤد ان لا يوقع عليه اسم قسم ﴾ مصنف رحمه الله فرمائی چه د عمر رضي الله عنه دا منشاء وه چه دلته د تقسيم نوم هم رانشی، يعنی هغه په طريقه د توليت ولې نه وې چه د تطاول زمان نه پس او د خبرې د زړيدو نه پس به خلق دا اوګڼړی چه دا د ميراث مال دې خصوصا چه کله د ميراث په تقسيم کښې هم د لور او د ترۀ ترمينځه هم نيم نيم دې.

**د طلب ميراث په سلسله کښې بعض اشکال او جواب:**

ځان پوهول پکار دی چه په توضيح او تنقيح کښې دوه سوالونه دی، اول دا چه د دې دواړو رسول الله ﷺ د حديث کيدو باوجود د صديق اکبر رضي الله عنه نه د ميراث مطالبه ولې اوکړه؟ جواب د دې دا ورکړې شوې دې چه ممکنه ده د دې دواړو په علم کښې دا حديث نه وی راغلې، او دا هم ممکنه ده چه د اوريدو باوجود ذهول شوې وی [1] خو کله چه صديق اکبر رضي الله عنه هغوی دواړو ته دا حديث واورولو نو هغوی خبر شو او بيا خاموش شو، اوس به دويم اشکال دا وی چه کله ورته حديث مستحضر شو نو د عمرفاروق رضي الله عنه نه ئې د هغوی په خلافت کښې دوباره مطالبه ولې اوکړه؟ د دې جواب اول خو دا دې چه د عمر رضي الله عنه نه د دې دواړو حضراتو مطالبه د ميراث نه وه بلکه د توليت وه او قرينه په دې باندې دا ده چه که مطالبه د ميراث وې نو علی رضي الله عنه کم از کم د خپل خلاف په زمانه کښې خو په دې باندې قادر وو چه هغې ته ئې ميراث وئيلې وې او تقسيم کړې ئې وې، خو هغوی داسې اونکړل حال دا چه په نور بعض مسائلو کښې چه په هغې کښې د رائې اختلاف وو په هغې کښې علی رضي الله عنه په خپله رائې باندې قائم وو لکه د متعة الحج په مسئله کښې چه عمر او عثمان رضي الله عنهما وغيره به د دې نه منع فرمائيله خو د علی رضي الله عنه رائې د جواز وه هغوی په دې مسئله کښې په خپله رائې باندې قائم وو او د عمر رضي الله عنه وغيره ئې په دې باب کښې هيڅ پرواه اونکړه لهذا هيڅ د اشکال خبره نه ده او که دا اومنلې شی چه عمر رضي الله عنه ته د ميراث د طلب دپاره راغلی وو نو د هغې منشاء د ګنګوهی رحمه الله په تقرير (الکوکب الدری ۴۲۳) کښې دا ليکلې شوې دې چه اصل کښې خبره دا ده چه د دې حضراتو په ذهن کښې د دې حديث ﴿ لا نورث، ما ترکنا صدقة ﴾ محمل عام نه وو بلکه هغوی دا حديث صرف په منقولاتو باندې محمول کولو د هغوی په نزد غير منقولات يعنی اراضی د دې حديث په مفهوم کښې داخل نه وو، هم په دې وجه دا

---

[1] ) کذا قال الشراح، خوپه حديث الباب کښې تصريح ده چه دحضرت عمر (رض) په سوال باندې دې دواړو حضراتو بلکه ټولو حاضرينو ددې حديث په علم کښې دکيدو اقرار کړې دې. فالاولي في الجواب ماسياتي من تقرير الشيخ الکنکوهي رحمه الله تعالي.

حضرات په دې توقع باندې چه ممکنه ده چه د عمرفاروق رضي الله عنه به زمونږ د رائې سره اتفاق راشي چه دا حديث عام نه دې بلکه خاص دې هغوی ته د ميراث د طلب دپاره راغلل خو د عمر رضي الله عنه د هغوی د دې رائې سره هم اتفاق رانغلو.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي مطولا ومختصرا، قاله المنذري

[۲۹٦٤]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ ثَوْرٍ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَوْسٍ بِهَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ: وَهُمَا يَعْنِي عَلِيًّا، وَالْعَبَّاسَ رضي الله عنهما يختصمان فيما أفاء الله على رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَمْوَالِ بَنِي النَّضِيرِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: أَرَادَ أَنْ لَا يُوقَعَ عَلَيْهِ اسْمُ قَسْمٍ.

د مالك بن اوس رضي الله عنه نه ددې واقعې په سلسله کښې روايت منقول دې فرمائی چه دوی دوارو يعنی عباس اوعلي رضي الله عنهما فيصله طلب کوله په باره دهغه مال کښې کوم چه الله تعالی دمال ئې په حيثيت سره دبنونضير دمالونونه خپل رسول ته ورکړې وو. ابوداود وائی چه عمر رضي الله عنه داغوښتل چه دتقسيم نوم په دې باندې کينه خودلې شي.

[۲۹٦٥]([2]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَأَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ، الْمَعْنَى أَنَّ سُفْيَانَ بْنَ عُيَيْنَةَ أَخْبَرَهُمْ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَوْسِ بْنِ الْحَدَثَانِ، عَنْ عُمَرَ، قَالَ: كَانَتْ أَمْوَالُ بَنِي النَّضِيرِ مِمَّا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ مِمَّا لَمْ يُوجِفِ الْمُسْلِمُونَ عَلَيْهِ بِخَيْلٍ وَلَا رِكَابٍ، كَانَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَالِصًا يُنْفِقُ عَلَى أَهْلِ بَيْتِهِ، قَالَ ابْنُ عَبْدَةَ: يُنْفِقُ عَلَى أَهْلِهِ قُوتَ سَنَةٍ فَمَا بَقِيَ جَعَلَ فِي الْكُرَاعِ وَعُدَّةً فِي سَبِيلِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ، قَالَ ابْنُ عَبْدَةَ: فِي الْكُرَاعِ وَالسِّلَاحِ.

مالك بن اوسه دعمر رضي الله عنه نه روايت کوی فرمائی چه دبنونظير مال داسې دې کوم چه الله تعالی خپل نبی ته ورکړې وو او ددې دحاصلولودپاره مسلمانانو خپل اسونه اوخپل څانونه، نه وو زغلولي نودغه مال د نبی عليه السلام دپاره محصوص شو دابه نبی عليه السلام په خپله کورنئ باندې صرف کولو اوابن عبده وئيلی دی چه نبی عليه السلام به دخپل کور والاو دپاره ددې نه ديوکال خرچه اخستله اوباقی پاتې به ئې دځاروو په خريدارئ باندې اودجهاد په تيارې باندې خرچ کول ابن عبده وائی چه باقی پاتې به ئې په ځاروو او اصلحوباندې خرچ کول.

﴿ عن مالک بن اوس الحدثان عن عمر رضي الله عنه قال کانت اموال بنی النضير مما افاء الله علی رسوله مما لم يوجف المسلمون ليه بخيل ولا رکاب ﴾

سيدنا عمر رضي الله عنه فرمائی چه د بنو نضير زمکه او د هغوی مالونه د دې آيت کريمه مصداق دی ﴿ وما افاء الله علی رسوله منهم فما اوجفتم عليه من خيل ولا رکاب ﴾ يعنی د بنو نضير زمکه داسې ده چه د هغې په حصول او فتح کولو کښې مسلمانانو ته د آسونو زغلولو ضرورت نه دې راغلې لهذا دا مال فئ شو کوم چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم دپاره خالص وو چه د هغې نه به رسول الله صلى الله عليه وسلم په خپلو بيبيانو باندې خرچه کوله د ټول کال، او څه چه به باقی بچ کيدل هغه به ئې په کراع يعنی د جهادی سامانونو په تيارئ باندې خرچ کوله.

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۰٦۳۲، ۱۰٦۳۳) (صحيح)
[2]: انظر حديث رقم: (۲۹٦۳)، (تحفة الأشراف: ۱۰٦۳۱) (صحيح)

## د بنو النضير د زمکې په مال فئ کيدو کښې اختلاف:

خان پوهه کړئ چه په اموالو د بنو نضير په فئ کښې کيدو په کتب تفسير وغيره کښې اعتراض کړې شوې دې هغه دا چه د بنو نضير د زمکې د فتح کولو دپاره د قتل او قتال او محاصرې وغيره ټولو څيزونو ضرورت راغلې دې په دې باندې هغوی د هغه ځائې نه په تلو باندې صلح اوکړه لهذا دا مالونه خو د غنيمت د قبيلې نه شو نه د مال فئ. په دې وجه د بعض مفسرينو رائې خو دا ده چه د پورته ذکر کړې شوی آيت کريمه نزول د بنو النضير د زمکې په باره کښې نه دې ځکه چه هلته خو اسونه زغلولې شوې دی. بلکه د دې مصداق د فدک زمکه ده (۱) هلته د دې څيزونو واقعی څه ضرورت نه دې راغلې، او د بعضو رائې دا دې چه د دې مصداق د بنو النضير زمکه ده. ځکه چه هلته د ډيرې منډې تړړې او قتل و قتال حاجت نه وو راغلې. او نه ورپسې د زيات مزل ضرورت راغلو ځکه چه دا خلق د مدينې طيبې نه دوه ميله لرې آباد وو صحابه کرام رضی الله عنهم هلته پيدل رسيدلې وو بغير د سورلو نه، او د رسول الله ﷺ نه علاوه هيڅوک سور نه وو. په دې وجه دا د هغه مالونو نه شمار کړې شو کوم چه بغير د قتال نه حاصل کړې شوې وی (من البذل ۱۴۳)

والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری)

[۲۹۶۶](۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، أَخْبَرَنَا أَيُّوبُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: قَالَ عُمَرُ: وَمَا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ مِنْهُمْ فَمَا أَوْجَفْتُمْ عَلَيْهِ مِنْ خَيْلٍ وَلَا رِكَابٍ سورة الحشر آية ۶، قَالَ الزُّهْرِيُّ، قَالَ عُمَرُ: هَذِهِ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاصَّةً قُرَى عُرَيْنَةَ فَدَكَ وَكَذَا وَكَذَا مَا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ مِنْ أَهْلِ الْقُرَى فَلِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ وَلِذِي الْقُرْبَى وَالْيَتَامَى وَالْمَسَاكِينِ وَابْنِ السَّبِيلِ سورة الحشر آية ۷، وَلِلْفُقَرَاءِ الَّذِينَ أُخْرِجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ وَأَمْوَالِهِمْ وَالَّذِينَ تَبَوَّءُوا الدَّارَ وَالْإِيمَانَ مِنْ قَبْلِهِمْ وَالَّذِينَ جَاءُوا مِنْ بَعْدِهِمْ فَاسْتَوْعَبَتْ هَذِهِ الْآيَةُ النَّاسَ، فَلَمْ يَبْقَ أَحَدٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ إِلَّا لَهُ فِيهَا حَقٌّ، قَالَ أَيُّوبُ، أَوْ قَالَ حَظٌّ: إِلَّا بَعْضَ مَنْ تَمْلِكُونَ مِنْ أَرِقَّائِكُمْ.

د زهري نه روايت دې چه عمر رضی الله عنه فرمائيلي دی الله تعالی فرمائيلی دی، الله تعالی چه کوم مال نبی عليه السلام ته ورکړې وو په دې پسې تاسوخپل اوښان او اسونه نه دی زغلولي، په دې ايت کريمه سره دنبی عليه السلام دپاره دعرينه څه کې دنبی عليه السلام دپاره خاص شوي دي لکه د فدک باغونه وغيره، اوپه نورو اياتونو کښې لکه: «ما أفاء الله على رسوله من أهل القرى فلله وللرسول ولذي القربى واليتامى والمساكين وابن السبيل» اوهمدارنګې «للفقراء الذين أخرجوا من ديارهم وأموالهم» اوهمدارنګې «والذين تبوءوا الدار والإيمان من قبلهم» اوهمدارنګې «والذين جاءوا من بعدهم» دا ايت ټولو مسلمانانو ته شامل دې کومو چه ددې نه مخکښې ايمان راوړې اوکوم چه ددې نه پس ايمان راوړي اوس هيڅ يو مسلمان داسې باقی پاتې نه شو دچاچه په مال ئې کښې حق نه وی علاوه دغلامانو او وينځونه

---

(۱) پس د هغې موافق يو حديث وړاندې راروان دې

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۶۳۸) (صحيح)

﴿عن الزهری قال قال عمر رضي الله عنه وما افاء الله علی رسوله منهم فما اوجفتم علیه من خیل ولا رکاب قال الزهری قال عمر رضي الله عنه هذه لرسول الله ﷺ خاصة قری عرینة [1] وفدک وکذا وکذا..... ما افآء الله من اهل القری فلله وللرسول﴾

## شرح الحديث :

عمر رضي الله عنه دلته دوه آیتونه ذکر فرمائیلي دي د ړومبی آیت کریمه شروع د ﴿وما افاء الله﴾ نه ده د حرف عطف سره او د دویم آیت کریمه ابتداء ﴿وما افاء الله علی رسوله﴾ نه ده بغیر د حرف عطف نه، او په دې دویم آیت کښې په ځائې د ﴿منهم﴾ ﴿من اهل القری﴾ دي. عمر رضي الله عنه د ړومبی آیت کریمه په باره کښې فرمائی چه په دې آیت کریمه کښې د هغه مال فئ ذکر دې کوم چه خالص د رسول الله ﷺ په باره کښې وو، او د هغې مصداق هغوی هغه مقاماتو لره بیان کړو قری عرینه او فدک، او د هغې نه علاوه ئې اموالو ته هم اشاره اوکړه، په کذا وکذا سره اشاره د بنو النضیر مالونو ته ده لکه چه د دې نه پورته حدیث کښې ذکر شوي دی او د عمر رضي الله عنه نه روایت دې او د دویم کذا نه نیم خیبر ته هم اشاره کیدې شی چه رسول الله ﷺ نه وو تقسیم فرمائیلې ځکه چه هغه په صلح باندې فتح شوې وو لکه چه وئیلې شوې دی؟ (د دې نه پس عمر رضي الله عنه د دویم آیت کریمه په باره کښې فرمائی چه په هغې کښې د رسول ذکر دې او ذوی القربی، یتامی او مساکین او ابن السبیل او فقراء مهاجرین او انصار او د هغې نه روستو د راتلونکو) چه دې آیت کریمه د ټولو مسلمانانو استیعاب او احاطه اوکړه، او اوس په مسلمانانو کښې هیڅ یو فرد بشر باقی پاتې نه شو چه د هغه په دې مال فئ کښې حق نه وی سوا د غلامانو نه (ځکه چه په غلام کښې د مالک جوړیدو صلاحیت نه وی هغه خو خپله د نورو مملوک وی په ابوداؤد کښې خو دا اثر د عمر هم دومره دې او په سنن نسائی کښې د دې نه پس دا زیادت دې، ﴿ولئن عشت ان شاء الله لیاتین علی کل مسلم حقه او قال حظه﴾ عمر رضي الله عنه فرمائی چه که زه ژوندې پاتې شوم نو هر مسلمان ته به د هغه حق ضرور رسیږی.

په بادی الرائ (په ظاهر) کښې د دې حدیث نه دا معلومیږی چه په ړومبی آیت کریمه کښې صرف د دې مال فئ ذکر دې چه د رسول الله ﷺ سره خاص وو او د هغوی ملک وو، او په نورو آیتونو کښې د هغه اموال فئ ذکر دې د رسول الله ﷺ او باقی مصارف

---

[1] ) دا لفظ زمونږ په هندی نسخه کښې داسې دې عرَینه بالنون بعد الیا التحتانیه تصغیر عرنة، او په نسخه د عون المعبود کښې هم داسې دی او شارح دې لره هم داسې ضبط کړې هم دې او بیا ئې وړاندې لیکلې دی موضع به قري کانه بنوا حي الشام یعنی څه علاقه ده چه په هغې کښې ډیر کلی دی کیدې شی چه د شام په طرفونو کښې وی اه او د ابوداؤد په اکثر مصری نسخو کښې دی قری عربیه او صرف په یوه نسخه کښې هلته عرینه دې، شیخ محمد عوامه دا اختلاف ښه په تفصیل سره لیکلې دې او وائی چه په نسائی سنن کبری او صغری دې دواړو کښې هم عرینه دې. د نورو ډیرو تفسیری کتابونو حواله ئې هم ورکړې ده چه په هغې کښې په بعضو کښې عرینه دې او بعضو کښې عربیه او د دې کلو نومونه ئې دا نقل کړی دی الصفرآء والینبوع ووادي القري آهـ ملخصا مونږ سره چه کومه د نسائی نسخه ده په هغې کښې ځنګه چه شیخ محمد عوامه لیکلی دی قری عربیه دې او د هغې په حاشیې باندې د نسخه علامت لګولو سره عرینه لیکلې شوې دې)

سبعه مذکوره فی الایة ترمينځه مشترک دی، حال دا چه داسې نه ده ځکه چه کوم مال فئ د رسول الله ﷺ په حيات کښې حاصليږی هغه به هم د هغوی ملک وی او د هغې تقسيم به د رسول الله ﷺ رائې ته سپارلې شوې وی چه د مالک په طور هغه چرته غواړی او خصوصا په هغه مصارفو کښې کوم چه په آيت کريمه کښې ذکر شوې دی تقسيم اوفرمائی، د هر هغه مال فئ هم دا حکم دې کوم چه د رسول الله ﷺ په حيات کښې حاصل شی، او د هيڅ مال فئ په باره کښې به دا وئيل صحيح نه وی چه فلانې د هغوی ملک خاص دې او فلانې ستاسو او ستاسو په غير کښې مشترک دې، بيا آيتونو کښې دوه قسمونه کولو سره ولې بيان کړې شوې دی د دې جواب ذهن ته دا راځی چه په رومبی آيت کريمه کښې د هغه اموال فئ ذکر دې کوم چه د نزول آيت په وخت خاصل شوې وو، او په دويم آيت کريمه کښې دا بيان کړې شوې ده چه د دې اموال فئ نه علاوه هم د هغې نه پس چه حاصليږی د هغې هم دا حکم دې هغه د رسول الله ﷺ په ملک کښې دی هغوی چه په خپله خوښه څنګه غواړی په دغه مصارف مذکوره کښې مالکانه تصرف او اختيار سره تقسيمولې شی. (مستفاد من بيان القرآن للشيخ التهانوی)

**فائده** : په دې حديث عمر رضی الله عنه کښې، د قری عرينه ذکر راغلو او په بعض نسخو کښې قری عربيه دې په دې باره کښې دې تفصيل په حاشيه کښې اوکتلې شی، دلته يو لفظ بل دې ﴿ وادی القری ﴾ هغه هم په ابوداؤد کښې په څو مقاماتو کښې راغلې دې مثلا کتاب الجهاد باب فی تعظيم الغلول وفيه ﴿ قال فوجه رسول الله ﷺ نحو وادی القری الخ ﴾ هم دغه شان وړاندې په کتاب الخراج کښې په باب ﴿ اخراج اليهود من جزيرة العرب ﴾ کښې دی ﴿ قال مالک : عمر اجلی اهل نجران ولم يجلوا من تيماء لانها ليست من بلاد العرب، فاما الوادی فانی اری انما لم يجل من فيها من اليهود انهم لم يروها من ارض العرب﴾ په بذل کښې د دې وادئ شرح په وادی القری سره کړې ده، هم دغه شان د باب احياء الموات د يو اوږد حديث په آخر کښې ﴿ فلما اتينا وادی القری قال للمراة کم کان فی حديقتک الحديث ﴾ او مونږ سره چه دلته په حاشيه کښې چه کوم تحقيق ذکر شوې دې په هغې کښې د قری عرينه په مصاديقو کښې وادی القری هم ذکر شوې ده، وقد ذکرت هذا المزيد فائدة الطلاب.

[۲۹۶۷](١) حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ، حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ. ح وحَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ. ح وحَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا صَفْوَانُ بْنُ عِيسَى، وَهَذَا لَفْظُ حَدِيثِهِ كُلُّهُمْ، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَوْسِ بْنِ الْحَدَثَانِ، قَالَ: كَانَ فِيمَا احْتَجَّ بِهِ عُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّهُ قَالَ: كَانَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثُ صَفَايَا بَنُو النَّضِيرِ وَخَيْبَرُ وَفَدَكُ، فَأَمَّا بَنُو النَّضِيرِ فَكَانَتْ حُبُسًا لِنَوَائِبِهِ، وَأَمَّا فَدَكُ فَكَانَتْ حُبُسًا لِأَبْنَاءِ السَّبِيلِ، وَأَمَّا خَيْبَرُ فَجَزَّأَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةَ أَجْزَاءٍ جُزْأَيْنِ بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ وَجُزْءًا نَفَقَةً لِأَهْلِهِ فَمَا فَضَلَ عَنْ نَفَقَةِ أَهْلِهِ جَعَلَهُ بَيْنَ فُقَرَاءِ الْمُهَاجِرِينَ.

دمالك بن اوس بن حدثان رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی عمر رضی الله عنه چه دکومې خبرې استدلال

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٦٣٥) (حسن الإسناد)

کړې وو هغه داده چه دنبی ﷺ دپاره درې صفایا وې بنونضیر، فدك، خیبر، یعنی کوم مال چه به ددې خلقودزمکونه حاصلیدو هغه دنبی ﷺ دضرورتونودپاره مقرر کړې شوې وو مثلا دمیلمنو د میزبانی دپاره او د مجاهدینوداصلحې دپاره او ددې دسورلۍ دپاره وغیره اوکوم مال چه دفدك نه حاصلیدو هغه دضرورتمندو اومسافرو خلقودپاره وو اګرچه ددې مسافرینو په وطن کښې مالونه وو او نبی ﷺ دخیبر مالونه درې حصې کړې وو دوه حصې ئې دمسلمانانو دپاره مقررکړې وې اویوه حصه ئې دځان اودخپلوبچو اودښځو داخراجاتودپاره اوکوم چه به دهغوی دخرچ نه زیاتې شو هغه به ئې په غریبانانو او هجرت کرنکوباندې خرچ کولو.

﴿ عن مالک بن اوس بن الحدثان قال کان فیما احتج به عمر انه قال کانت لرسول ﷺ ثلاث صفایا بنو النضیر وخیبر وفدک، فاما بنو النضیر الخ ﴾

دا هم د مالک بن اوس روایت دې اصل کښې د باب په شروع کښې د عباس او علی رضی الله عنهما د منازعت والا اوږد روایت تیر شوې دې د هغې راوی هم مالک بن اوس دې، د دې نه پس هم د مالک بن اوس څو روایتونه تیر شوې دی، اوس دا هم د هغوی روایت دې دې نه معلومیږی چه مصنف رحمه الله ته دا حدیث په ډیر سندونو او طرقو سره را رسېدلې دې، او په دې روایاتو کښې کمې زیاتې دې هم په دې وجه امام ابوداؤد رحمه الله دا روایت په مختلفو طرقو سره راوړی دې دپاره چه کوم زیادات دی هغه مخې ته راشی.

## شرح الحدیث:

د دې روایت مضمون دا دې چه د عباس او علی رضی الله عنهما خپل مینځ کښې د اختلاف په سلسله کښې عمر رضی الله عنه چه تقریر او استدلال د هغوی مخکښې فرمائیلې وو، په هغې کښې دا هم وه چه د رسول الله ﷺ دپاره درې صفایا وو. فلانې او فلانې، او بیا د هر یو باره کښې د رسول الله ﷺ طرز عمل چه هغه به ئې څرنګه خرچ کولو، د هر یو تعین بالتفصیل هغوی بیان کړو، او په ظاهر کښې غرض د عمر رضی الله عنه د دې ټولو نه دا دې چه رسول الله ﷺ به د دې خپلو صفایا او اموال خالصه نه صرف په اندازه د ضرورت اخستلو، د خپل ضرورت او د بیبیانو د ضرورت، باقی به ئې په کراع او وسلې او د مسلمانانو په مصلحتونو کښې خرچ کولو، او رسول الله ﷺ د هغه څیزونو نه خپل ملک او جاګیر نه وو جوړ کړې، یعنی داسې ملک او جاګیر چه په هغې کښې میراث جاری شی، دا خو شو د رسول الله ﷺ طرز عمل، او قولا رسول الله ﷺ داسې تصریح اوکړه ﴿ما ترکت بعد نفقة نسائی ومؤنة عاملی فهو صدقة ﴾ والله تعالی اعلم بالصواب

[۲۹٦۸](۱) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَوْهَبٍ الْهَمْدَانِيُّ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ عُقَيْلِ بْنِ خَالِدٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهَا أَخْبَرَتْهُ، أَنَّ فَاطِمَةَ بِنْتَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَرْسَلَتْ إِلَى أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تَسْأَلُهُ مِيرَاثَهَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ

(۱): صحیح البخاري/الخمس ۱ (۳۰۹۲)، وفضائل الصحابة ۱۲ (۳۷۱۱)، والمغازي ۱٤ (٤۰۳٥)، ۳۸ (٤۲٤۱)، والفرائض ۳ (٦۷۲٥)، صحیح مسلم/الجهاد ۱٦ (۱۷٥۹)، سنن النسائي/الفيء (٤۱٤٦)، (تحفة الأشراف: ٦٦۳۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/٤، ٦، ۹، ۱۰، ٦/۱٤٥، ۲٦۲) (صحیح)

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِمَّا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَيْهِ بِالْمَدِينَةِ وَفَدَكَ وَمَا بَقِيَ مِنْ خُمُسِ خَيْبَرَ، فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا نُورَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ"، إِنَّمَا يَأْكُلُ آلُ مُحَمَّدٍ مِنْ هَذَا الْمَالِ وَإِنِّي وَاللَّهِ لَا أُغَيِّرُ شَيْئًا مِنْ صَدَقَةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، عَنْ حَالِهَا الَّتِي كَانَتْ عَلَيْهِ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَأَعْمَلَنَّ فِيهَا بِمَا عَمِلَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَبَى أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنْ يَدْفَعَ إِلَى فَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَام مِنْهَا شَيْئًا.

دام المومنین عائشي رضي الله عنها نه روایت دي فرمائي چه فاطمة بنت رسول الله ابوبکرته یوکس اولیږلو ددي دپاره چه دخپل میراث حصه ترې اوغواړي کومه چه ددې دنبی علیه السلام په ترکه کښې کیدله کوم چه ورته الله تعالی په مدینه اوفدك کښې ورکړی وواوکوم چه دخیبرد خمس نه باقی پاتې شوي وو په هغې کښې، ابوبکر رضي الله عنه او فرمائیل یقینا نبی علیه السلام فرمائیلی وو زمونږ څوك وارث نه وی کوم چه مونږئي پریږدو هغه صدقه وي او یقیناد محمد خاندان به ددې مال نه بقدر ضرورت خوري، او په الله قسم زه دنبی علیه السلام دصدقې حالت بدلیدوته نه پریږدم په هم هغه حال به وي په کوم حال چه دنبي علیه السلام په زمانه کښې وه. اوزه به هغه کارکوم، کوم چه نبی علیه السلام کړي وو، بهرحال ابوبکر رضي الله عنه انکار وکړوچه فاطمة رضي الله عنها ته ددې نه څه ورکړي

﴿عن عائشة رضي الله عنها زوج النبی صلی الله علیه وسلم انها اخبرته ان فاطمة بنت رسول الله صلی الله علیه وسلم ارسلت الی ابی بکر الصدیق رضي الله عنه تساله میراثها الخ﴾

## شرح الحدیث

په دې روایت کښې دا دی چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم لور فاطمه رضي الله عنها صدیق اکبر رضي الله عنه ته د خپل میراث د طلب کولو دپاره څوك قاصد اولیږلو. په ظاهر کښې به دا قاصد د هغې خاوند علی رضي الله عنه وی، لکه چه د مخکښې روایت نه معلومیږی د هغه مال فئ په باره کښې کوم چه د هغوی په مدینه طیبه ک شدې یعنی د بنو نضیر زمکه او د فدك زمکه او د خیبر د غنیمتونو د خمس نه، یعنی کومه نیمه حصه د خیبر چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د مسلمانانو ترمینځه تقسیم کړې وه په هغه مال غنیمت کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم حصه خمس المخس وه، د هغې میراث، بیا وراندې په حدیث کښې د صدیق اکبر جواب ذکر کړې شوې دې چه د هغې خلاصه دا ده چه هغوی فاطمې رضي الله عنها ته د میراث ورکولو نه انکار اوفرمائیلو

[۲۹۶۹](1) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ الْحِمْصِيُّ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا شُعَيْبُ بْنُ أَبِي حَمْزَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، حَدَّثَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ، أَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخْبَرَتْهُ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: وَفَاطِمَةُ عَلَيْهَا السَّلَام حِينَئِذٍ تَطْلُبُ صَدَقَةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّتِي بِالْمَدِينَةِ وَفَدَكَ وَمَا بَقِيَ مِنْ خُمُسِ خَيْبَرَ، قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا نُورَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ"، وَإِنَّمَا يَأْكُلُ آلُ مُحَمَّدٍ فِي هَذَا الْمَالِ يَعْنِي مَالَ اللَّهِ لَيْسَ لَهُمْ أَنْ يَزِيدُوا عَلَى الْمَأْكَلِ.

دام المومنین عائشې رضي الله عنها نه همدا روایت منقول دې مګریدې کښې دا اضافه ده فرمائي چه فاطمة بنت رسول الله و دنبی علیه السلام دصدقې هغه مال غوښتلو کوم چه په مدینه اوفدك کښې

(1): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۶۶۳۰) (صحیح)

وو اوکوم چه دخیبرد خمس نه باقي پاتې شوي وو: ام المومنين فرمائی ابوبکر رضی الله عنه او فرمائیل یقینا نبی علیه السلام فرمائیلي وو زمونږ څوك وارث نه وی کوم چه مونږئي پریږدو هغه صدقه وي اویقینا دمحمد خاندان به ددې مال نه (یعنی دالله دمال نه) بقدر ضرورت خوري.

[۲۹۷۰] (١) حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ أَبِي يَعْقُوبَ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ سَعْدٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ صَالِحٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ، أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَخْبَرَتْهُ بِهَذَا الْحَدِيثِ قَالَ فِيهِ: فَأَبَى أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَلَيْهَا ذَلِكَ، وَقَالَ: لَسْتُ تَارِكًا شَيْئًا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْمَلُ بِهِ إِلَّا عَمِلْتُ بِهِ، إِنِّي أَخْشَى إِنْ تَرَكْتُ شَيْئًا مِنْ أَمْرِهِ أَنْ أَزِيغَ فَأَمَّا صَدَقَتُهُ بِالْمَدِينَةِ فَدَفَعَهَا عُمَرُ إِلَى عَلِيٍّ، وَعَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا فَغَلَبَهُ عَلِيٌّ عَلَيْهَا وَأَمَّا خَيْبَرُ وَفَدَكُ فَأَمْسَكَهُمَا عُمَرُ وَقَالَ: هُمَا صَدَقَةُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَتَا لِحُقُوقِهِ الَّتِي تَعْرُوهُ وَنَوَائِبِهِ وَأَمْرُهُمَا إِلَى مَنْ وَلِيَ الْأَمْرَ، قَالَ: فَهُمَا عَلَى ذَلِكَ إِلَى الْيَوْمِ.

د عروة بن الزبير رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه ام المومنين عائشې رضی الله عنها راته خبر راکړې دې په دې حدیث چه فرمائیل ئي او په دې کښې دا اضافه ده ابوبکر رضی الله عنه انکار وکړو چه فاطمة رضی الله عنها ته ددې نه څه ورکړی او وي وئیل چه ددې صدقې متعلق دنبی کریم صلي الله علیه وسلم څه معمول روزه دهغې پریخودونکی نه یم یقینازه ویریږم که چرې دهغه دعمل نه څه شي پریږدم هسې نه چه ګمراه نشم، اوهرچه دنبی علیه السلام مال ووپه مدینه کښې نوهغه خوعمر ورکړی دی علي - اوعباس رضی الله عنهما ته اوعلي پرې غالب شوي وو، اوهرچه دخیبر اوفدك مال دي هغه عمر بندکړې دې اووئیلي ئې دي چه دا د نبی علیه السلام صدقې دي دهغه په امورو باندې به خرچ کیږی ددې اختیار به دهغه چاسره وي څوك دنبی علیه السلام د امورو متولي وي یعنی خلیفه وي راوي وائی بیا دغه مالونه په همدغه حال باندې پاتې شول.

د عائشې رضی الله عنها حدیث په طریق عروه رحمه الله دې، دا مصنف رحمه الله وړاندې هم په دوه طریقو سره ذکر کړې دې د دې په یو طریق کښې وړاندې دا راځي ﴿ فاما صدقته بالمدينة فدفعها عمر الى علي وعباس فغلبه علي عليها ﴾

## د علی او عباس رضی الله عنهما ترمینځه په تولیت کښې د اختلاف منشاء:

یعنی په مدینه طیبه کښې چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم کومه وقف کړې شوې زمکه وه یعنی د بنو نضیر زمکه هغه عمر رضی الله عنه په طریقه د تولیت علی او عباس رضی الله عنهما دواړو ته حواله کړه خو د علی رضی الله عنه د هغه زمکې په تولیت باندې غلبه پاتې شوه یعنی د هغې په انتظام او انصرام کښې ئې ښه حصه واخستله، ګویا علی رضی الله عنه په وړاندې روان وو د هغې په انتظاماتو کښ، ما د حضرت شیخ زکریا صاحب رحمه الله نه په سبق کښې دلته اوریدلې وو چه اصل کښې د علی رضی الله عنه په مزاج کښې ډیر زیات سخاوت وو، هغوی به د دې ګټه ښه خیرات کوله، واخله روره او واخله روره، هر څائې، او د عباس رضی الله عنهما په طبیعت کښې دا خبره نه وه هغوی ډیر په احتیاط خرچ کول غوښتل، خو په دې معامله کښې د هغوی خبره او نه منلې شوه، هم په دې وجه په دواړو کښې اختلاف ته خبره اورسیدله چه هغې لره اخستلو سره هغوی د فاروق اعظم رضی الله عنه په خدمت کښې حاضر شو دتولیت د تقسیم دپاره لکه چه تفصیلا مخکښې تیر

١): انظر حديث رقم: (٢٩٦٨)، (تحفة الأشراف: ٦٦٣٠) (صحيح)

شو د باب په ړومبی حدیث کښ، وړاندې په روایت کښې دی ﴿واما خیبر وفدک فامسکها عمر الخ﴾ یعنی د هغوی دواړو په تولیت کښې صرف د بنو نضیر زمکه راغلې وه او د خیبر او د فدک زمکه عمر ﷺ د خپل انتظام د لاندې اوساتله د هغوی په تولیت کښې ئې ورنکړه.

[۲۹۷۱](¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ ثَوْرٍ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، فِي قَوْلِهِ: فَمَا أَوْجَفْتُمْ عَلَيْهِ مِنْ خَيْلٍ وَلَا رِكَابٍ سورة الحشر آية ٦، قَالَ: صَالَحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَهْلَ فَدَكَ وَقُرًى قَدْ سَمَّاهَا لَا أَحْفَظُهَا وَهُوَ مُحَاصِرٌ قَوْمًا آخَرِينَ، فَأَرْسَلُوا إِلَيْهِ بِالصُّلْحِ قَالَ: فَمَا أَوْجَفْتُمْ عَلَيْهِ مِنْ خَيْلٍ وَلَا رِكَابٍ سورة الحشر آية ٦، يَقُولُ: بِغَيْرِ قِتَالٍ، قَالَ الزُّهْرِيُّ: وَكَانَتْ بَنُو النَّضِيرِ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَالِصًا لَمْ يَفْتَحُوهَا عَنْوَةً افْتَتَحُوهَا عَلَى صُلْحٍ، فَقَسَمَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ الْمُهَاجِرِينَ لَمْ يُعْطِ الْأَنْصَارَ مِنْهَا شَيْئًا إِلَّا رَجُلَيْنِ كَانَتْ بِهِمَا حَاجَةٌ.

دزهري نه روایت دې فرمائی چه د الله تعالی داقول: «فما أوجفتم عليه من خيل ولا ركاب» نبی علیه السلام صلحه کړې وه داهل فدك اودنورو کلووالاسره دکومونومونه چه ئې اخستلي وو اوماته یاد نه دی، اونورخلق ئې محاصره کړي وو اوهغوی ورته مال راولیږلودصلح دپاره بغیردجنګ نه. راوي وائی چه دبنونضیر مال هم دنبی علیه السلام په اختیارکښې ووځکه چه هغه بغیردجنګ نه حاصل شوي ووا و نبی علیه السلام په مهاجرینوباندې تقسیم کړو اوانصاروته ئې ترې هیڅ ورنکړل علاوه ددوه کسانونه چه حاجت مند وو.

﴿ قال صالح النبی ﷺ اهل فدک وقری.... قد سماها لا احفظها، وهو محاصر قوما اخرین فارسلوا الیه بالصلح ﴾

د قرى نه مراد هم هغه قرى عرينه ده، راوى وائى چه د دې قرى نوم ماته ياد نه دې.

د روايت مضمون دا دې چه رسول الله ﷺ د اهل فدك سره مصالحت په داسې وخت کښې اوفرمائيلو چه کله هغوی د يو بل قوم يعنی اهل خيبر محاصره کړې وه نو هم په دې دوران کښې اهل فدك هغوی ته د صلح پيغام راوليږو، پس هغوی دا صلح قبوله کړه، يعنی کوم وخت چه هغوی د خيبر په جنګ کښې مشغول وو او لا تر دغه وخته پورې فدك طرف ته رسول الله ﷺ رخ نه وو فرمائيلې خو الله پاک په هغوی باندې داسې هيبت او رعب راوستلو چه هغوی په خپله د مصالحت پيشکش اوکړو او ويره سره ئې هم هلته د دې کار دپاره يو سړې اوليږلو. په دې وجه د فدك زمکې ته مال فئ وئيلې شی. ﴿ قال فما اوجفتم عليه من خيل ولا رکاب يقول بغير قتال ﴾

## د سورة حشر د ايت نزول د ارض فدک په باره کښې:

د زهری رحمه الله د دې اثر د سياق نه دا فهميږی چه دا آيت کريمه د فدك په باره کښې دې نه د بنو نضير د زمکې په باره کښ، پس د بعض مفسرينو رائې هم دا ده ځکه چه هغوی وائی چه د بنو نضير په فتح کولو کښې خو جنګ ته خبره رسيدلې وه او په دې باندې مخکښې خبره تيره شوه، خو د دې نه پس امام زهری رحمه الله د بنو نضير د زمکې په باره کښې هم دا فرمائی چه دا هم صلحا فتح کړې شوې وه اوس د دې دواړو خبرو د يو ځائې کولو نه دا نتيجه راووتله چه د دې آيتونو نزول خو د فدك په باره کښې شوې وو خو حال د بنو نضير هم دا دې.

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩٣٧٩) (صحيح الإسناد)

ورانديږ د بنو نضير د مالونو په باره کښې دا دي چه هغه رسول الله ﷺ په مهاجرينو باندې تقسيم اوفرمائيلو. انصارو ته رسول الله ﷺ د هغې نه هيڅ هم ورنکړل سوا د دوه کسانو نه چه حاجت مند وو، د دې په باره کښې دلته په بذل کښې ليکلي شوي دي ﴿ لم اقف على تسميتها ﴾ خو ورانديږ ﴿ باب في خبر بنى نضير ﴾ کښې د هغه انصارو تسميه په بذل کښې حضرت د تفسير کبير نه نقل فرمائيلي ده او هلته دري نومونه ذکر کړي شوي دي. ابو دجانة رضي الله عنه، سهل بن حنيف، الحارث بن الصمة.

[۲۹۷۲](۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْجَرَّاحِ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ الْمُغِيرَةِ، قَالَ: جَمَعَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ بَنِي مَرْوَانَ حِينَ اسْتُخْلِفَ، فَقَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَتْ لَهُ فَدَكُ فَكَانَ يُنْفِقُ مِنْهَا وَيَعُودُ مِنْهَا عَلَى صَغِيرِ بَنِي هَاشِمٍ وَيُزَوِّجُ مِنْهَا أَيِّمَهُمْ، وَإِنَّ فَاطِمَةَ سَأَلَتْهُ أَنْ يَجْعَلَهَا لَهَا فَأَبَى فَكَانَتْ كَذَلِكَ فِي حَيَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى مَضَى لِسَبِيلِهِ، فَلَمَّا أَنْ وُلِّيَ أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَمِلَ فِيهَا بِمَا عَمِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَيَاتِهِ حَتَّى مَضَى لِسَبِيلِهِ، فَلَمَّا أَنْ وُلِّيَ عُمَرُ عَمِلَ فِيهَا بِمِثْلِ مَا عَمِلَا حَتَّى مَضَى لِسَبِيلِهِ، ثُمَّ أَقْطَعَهَا مَرْوَانُ، ثُمَّ صَارَتْ لِعُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، قَالَ عُمَرُ: يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ الْعَزِيزِ فَرَأَيْتُ أَمْرًا مَنَعَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَام لَيْسَ لِي بِحَقٍّ وَأَنَا أُشْهِدُكُمْ أَنِّي قَدْ رَدَدْتُهَا عَلَى مَا كَانَتْ يَعْنِي عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَلِيَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ الْخِلَافَةَ وَغَلَّتُهُ أَرْبَعُونَ أَلْفَ دِينَارٍ، وَتُوُفِّيَ وَغَلَّتُهُ أَرْبَعُمِائَةِ دِينَارٍ وَلَوْ بَقِيَ لَكَانَ أَقَلَّ.

د مغيره نه روايت دي فرمائي چه کله عمربن عبد العزيز رحمة الله عليه خليفه شو نودمروان خامن ئې راجمع کړل او وئې وئيل چه دفدك مال دنبى عليه السلام په اختيار او تصرف کښې وودهغې نه به ئې په اهل وعيال او غريبانو مسکينانوخرچ کولو او ددې نه به ئې دبنوهاشم په ماشومانو احسان کولو او د غيرشادي شده ښځو په نکاح کانوباندې به ئې ترې خرچ کولو، فاطمه رضي الله عنها دنبى عليه السلام نه دفدك مال دځان دپاره غوښتلي وولېکن ورئې نکړواوبيادنبى عليه السلام به ټول ژوند مبارك کښې په همدې حال باندې ووتردې چه نبى عليه السلام وفات شو او ابوبکر خليفه شونودده هم دفدك متعلق هغه طريقه کار وو کوم چه دنبى عليه السلام روتردې چه ابوبکر رضي الله عنه هم وفات شو اوعمر رضي الله عنه خليفه شو، کله چه عمر خليفه شو نودده هم داطرز عمل ووتردې چه عمرهم وفات شو، بياچه کله مروان حکمران شو نودا مال ئې دخپل ځان اودخپل جماعت جاګير جوړ کړوبياد فدك مال دعمربن عبد العزيز په تصرف کښې راغي او اوئې وئيل چه ددې مال متعلق مادااسلافو داعمل ليدلي دي چه دا نبى عليه السلام فاطمې ته هم نه وو ورکړى نو دا زما دپاره هم مناسب نه دى زه تاسو په دې باندې ګواه کوم چه داّمال ماپه هغه حال پريخودو په کوم حال کښې چه دنبى عليه السلام په زمانه کښې ووېعنى وقف ئې کړو.

﴿ عن المغيرة رضي الله عنه قال جمع عمر بن عبدالعزيز بنى مروان حين استخلف فقال ان رسول الله ﷺ ﴾

### د عمر بن عبدالعزيز رحمه الله کمال انصاف:

د روايت مضمون دا دي چه عمر بن عبد العزيز بن مروان بن الحکم چه کله خليفه کړې شو نو هغوى د خپل خاندان خلق راجمع کړل او يو تقرير ئې اوفرمائيلو چه په هغې کښې ئې دا

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۹۱٤۷) (ضعيف)

بیان کړه چه د فدک زمکه د رسول الله ﷺ دپاره وه چه د هغې ګټه به رسول الله ﷺ د بنوهاشم په ماشومانو باندې خرچ کوله او د کونډو په ودونو کښې...... او د رسول الله ﷺ لور فاطمې رضي الله عنها دا فدک د رسول الله ﷺ نه غوښتلې وو هغوی انکار کړې وو، تردې چه رسول الله ﷺ په خپل ژوند کښې د دې نه هم دغه شان خرچه کوله بیا د هغوی نه روستو چه کله ابوبکر صدیق رضي الله عنه خلیفه شو نو هغوی هم په دې کښې هم هغه طرز عمل اوساتلو کوم چه د رسول الله ﷺ وو او د هغوی نه روستو بیا هم هغه شان عمر رضي الله عنه هم، بیا چه کله زمونږ نیکهٔ یعنی مروان خلیفه جوړ شو نو هغوی په دې باندې مالکانه قبضه اوکړله [۱] بیا اوس منتقل کیدو کیدو سره دا د عمر بن عبدالعزیز رحمه الله دپاره شوه. په دې باندې هغوی فرمائی چه ما دا سوچ اوکړو چه کوم څیز رسول الله ﷺ خپلې لور ته ورنکړو نو زه د هغې حقدار څنګه کیدې شم، ګورئ! زه تاسو ټول ګواهان جوړوم چه زه دا د فدک باغ په خپل زوړ حالت باندې واپس کوم چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې وو. د عمر بن عبدالعزیز رحمه الله عدل او انصاف زهد او تورع خشیت او انابت الله پاک ته کول ضرب المثل دې، چه د هغې واقعات د تاریخ په کتابونو کښې معروف دی. خاص د هغوی په سیرت باندې هم کتابونه لیکلې شوې دی. ابن عبدالحکم کوم چه د امام مالک بغیر د واسطې نه شاګرد دې هغوی هم د هغوی په ژوند باندې کتاب لیکلې دې کوم چه د اردو ترجمې سره شائع کیږی [۲] هم دغه شان امام ابن الجوزی رحمه الله هم په مناقب د عمر بن عبدالعزیز رحمه الله کښې لیکلی دی، امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی چه:

چه کله ته اوګورئ چه یو انسان د عمر بن عبدالعزیز رحمه الله سره مینه کوی د هغه د محاسنو ذکر او د هغې د اشاعت اهتمام کوی نو د هغه نتیجه انشاء الله تعالی صرف خیر دې.

د ابوداؤد په بعضو نسخو کښې دی چه دلته یو عبارت دې چه د بذل المجهود په حاشیه باندې د نسخې علامت جوړولو سره لیکلې شوې دې.

﴿ قال ابوداؤد ولی عمر بن عبدالعزیز الخلافة وغلته اربعون الف دینار، وتوفی وغلته اربع مائة دینار ولو بقی لکان اقل ﴾ یعنی د عمر بن عبدالعزیز رحمه الله د کال ټوله امدنی څلویښت زره

---

[۱] د خطابی په شرح معالم السنن کښې دی ﴿ انما اقطعها مروان في ايام حياة عثمان بن عفان رضي الله عنه ﴾ یعنی مروان د فدک اقطاع د خپل خان دپاره د عثمان رضي الله عنه په زمانه کښې کړې وه او دا هم د هغه ټولو اعتراضاتو نه دی کوم چه په هغوی باندې کړې شوې دی. بیا وړاندې هغوی د دې د عثمان رضي الله عنه د طرف نه تاویل او توجیه کړې ده هغه دا چه د دې مقصد کیدې شی د رسول الله ﷺ دا حدیث وی کوم چه هغوی ته رسیدلې وی ﴿ اذا اطعم الله نبيا طعمة فهي للذي يقوم من بعده ﴾ یعنی کله چه الله پاک یو نبی ته څه خاص مال ورکړی نو هغه د هغه نبی نه پس د هغه چا دې کوم چه د هغه قائم مقام جوړ شی. او چونکه رسول الله ﷺ به د فدک د زمکې نه په خپل ځان باندې هم خرچه کوله اوس چه کله د رسول الله ﷺ نه پس د قائم مقام کیدو حد عثمان رضي الله عنه ته راورسیدلو نو د فدک په دې زمکه کښې د هغوی هم استحقاق اوشو هغوی د دې نه په خپل خان باندې هم خرچ کولې شو خو چونکه هغوی د خپلې ذاتی مالدارۍ د وجې نه مستغنی وو په دې وجه هغوی دا ګټه د خپلو خپلوانو دپاره روا اوګڼړله.

[۲] مکتبهٔ خلیلیه سهارنپور شائع کړې دې.

دیناره وو (١) او د خلیفه کیدو نه پس هغه آمدنی په کمیدو کمیدو څلور سوو دینارو ته راغلې وه، او که لږ نور ژوندې وې نو د دې نه به هم کمه پاتې شوې وې.

[٢٩٧٣](٢) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْفُضَيْلِ، عَنِ الْوَلِيدِ بْنِ جُمَيْعٍ، عَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ، قَالَ: جَاءَتْ فَاطِمَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا إِلَى أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تَطْلُبُ مِيرَاثَهَا مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ إِذَا أَطْعَمَ نَبِيًّا طُعْمَةً فَهِيَ لِلَّذِي يَقُومُ مِنْ بَعْدِهِ".

دابو الطفیل نه روایت دې فرمائی چه فاطمة رضي الله عنها ابوبکر ته راغله او دنبی علیه السلام په مال کښې ئې دخپل میراث حق غوښتو ابوبکر رضي الله عنه ورته اووئیل چه دنبی علیه السلام نه مې اوریدلی دی چه فرمائیل ئې: کله چه الله تعالی کوم نبی ته څه قسم دمعاش ذریعه ورکړې نو هغه به دهغه دوفات نه پس دهغه چا په اختیار کښې وي څوک چه دهغه قائم مقام جوړشي.

﴿ جآءت فاطمة الی ابی بکر رضي الله عنهما تطلب میراثها من النبی ﷺ قال فقال ابوبکر الخ ﴾

یعنی سیده فاطمة رضي الله عنها صدیق اکبر رضي الله عنه ته راغله د میراث اخستلو دپاره نو هغوی اوفرمائیل چه ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل هغوی فرمائی چه الله پاک کله یو نبی لره د یو څیز مالک جوړ کړې نو بیا هغه د هغه دپاره شی کوم چه د هغه نبی پس د هغه قائم مقام وی، یعنی په اعتبار د انتظام او تولیت (بذل) په دې روایت کښې د فاطمې رضي الله عنها د صدیق اکبر رضي الله عنه نه د میراث د طلب کولو ذکر دې.

**د فاطمې رضي الله عنها د صدیق اکبر رضي الله عنه نه خفه کیدل او خبرې پریخودل او د هغې توجیه**

دلته د ابوداؤد په روایت کښې خو صرف د صدیق اکبر رضي الله عنه جواب ذکر کړې شوې دې چه هغوی ورته حدیث واورولو او د ورکړې نه ئې انکار اوکړو او د دې نه پس هیڅ هم نشته، او په صحیح بخاری کتاب الجهاد ﴿ باب فرض الخمس ٤٣٥ ﴾ کښې د دې خبرې زیادت دې چه ﴿ فغضبت فاطمة بنت رسول الله ﷺ فهجرت ابابکر فلم تزل مهاجرته حتی توفیت الحدیث ﴾ یعنی فاطمې رضي الله عنها د صدیق اکبر رضي الله عنه په دې جواب باندې ناراضه شوه او د صدیق اکبر رضي الله عنه سره ئې ترک کلام اوکړو د ژوند د آخری لمحاتو پورې، د فاطمې رضي الله عنها په دې طرز باندې د مسلمان سره هجران کول مشهور اشکال دې چه د مسلمان هجران حرام دې. په دې باندې لامع کښې او د لامع حاشیه کښې حضرت شیخ رحمه الله تفصیلی کلام کړې دې او بیا په آخر کښې حضرت شیخ رحمه الله خپله رائې هم لیکلې ده: د حدیث شراح د دې اشکال مختلف جوابونه ورکړې دی، بعض شراح بنیادی طور د هجران مسلم جواب دا ورکړې دې چه هجران مسلم کوم چه حرام دې هغه خو دا دې چه ﴿ ان یلتقیا فلا یسلم احدهما علی صاحبه ﴾ چه اتفاقا چرته دا دواړه په یو لار باندې تیریږی نو یو بل ته کتلو سره مخونه واړوی او د سلام او کلام نه اعراض اوکړی او صرف د ملاقات پریخودل، یعنی قصدا د ملاقات دپاره

(١) عمر بن عبدالعزیز رحمه الله د مدینې منورې گورنر پاتې شوې دې او د هغوی پلار د مصر گورنر وو او نور جائدادونه به ئې هم وُو. په دې وجه دا څه بعیده نه ده)

(٢): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٦٥٩٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/١، ٦، ٩) (حسن)

نه تلل او هغه پرېخودل دا ممنوع نه دی، او دلته د دې دواړو ترمينځه دا ثابت نه دی چه په څه موقع باندې دوی دواړه جمع شوې وی او بيا فاطمې رضي الله عنها د صديق اکبر رضي الله عنه ترک د سلام و کلام او اعراض کړې وی، او پاتې شوه مسئله د ملاقات پرېخودلو نو د هغې منشاء غضب او ناراضتيا نه ده بلکه د دې منشاء انقباض طبعی دې دا جواب علامه عينی د بخاری د مشهور شارح مهلب نه نقل کړې دې، دا جواب خو شو د ترک کلام او د هجران، پاتې شوه خبره د هغې د غصې کومه چه د بخاری په روايت کښې مصرح ده د هغې منشاء دا ده چه د هغوی په نزد د ابوبکرصديق رضي الله عنه استدلال صحيح نه وو ځکه چه د فاطمې رضي الله عنها په نزد حديث موؤل وو او هغه په دې باره کښې د تخصيص قائل وه او ابوبکرصديق رضي الله عنه قائل بالعموم وو، د عموم او خصوص نه مراد هم فرق او عدم فرق د منقولاتو او غير منقولاتو دې کوم چه وړاندې عمر رضي الله عنه د دحديث په شرح کښې تير شو. او دويم جواب د دې دا ورکړې شوې دې چه د فاطمې رضي الله عنها د هجران نه مراد کوم چه د بخاری روايت دې ــــــــــ ترک کلام فی المال والميراث دې لکه چه د عمر بن شبه په روايت کښې دی په طريق د معمر ﴿ فلم تکلمه فی ذلک المال ﴾ حافظ فرمائی چه هم دغه شان امام ترمذی رحمه الله د خپلو بعضو مشائخو نه نقل کړې دی، په دې جواب باندې د بعض شراحو اشکال دې چه په روايت کښې د عضبت تصريح ده چه د هغې نه معلومېږی چه ترک کلام مطلقا وو خو دا اشکال قوی نه دې ځکه چه مونږ دا وايو چه د غصې د وجې نه ئې خو دوباره د ميراث سوال نه دې کړې چه ښه مه راکوه مونږ به هم بيا وړاندې چرته سوال نه کوو. او يو جواب دا ورکړې شوې دې چه دا عضب او ترک کلام وختی طور وو او روستو صلح شوې وه، لکه چه بيهقی روايت کړې دې په طريق د شعبی رحمه الله چه صديق اکبر رضي الله عنه د فاطمې رضي الله عنها د پوښتنې دپاره د هغوی دروازې ته اورسيدو په دې باندې علی رضي الله عنه فاطمې رضي الله عنها ته اووې چه ﴿ هذا ابوبکر يستاذن عليک ﴾ چه دا ابوبکر رضي الله عنه د دننه راتلو اجازت غواړی، په دې باندې هغې اووې چه ستاسو په نزد دا مناسب ده چه زه هغوی ته د دننه راتلو اجازت ورکړم، علی رضي الله عنه د دې جواب په اثبات کښې ورکړو پس فاطمې رضي الله عنها اجازت ورکړو ﴿ فدخل عليها فترضاها حتی رضيت ﴾ چه ابوبکرصديق رضي الله عنه هغې ته ورغلو او هغه ئې رضا کړه او پوخلا ئې کړه. ﴿ قال الحافظ وهو وان کان مرسلا فاسناده الی الشعبی صحيح وبه يزول الاشکال فی تمادی فاطمة رضي الله عنها علی هجر ابی بکر رضي الله عنه ﴾ د دې ټولو نه پس په حاشيه د لامع باندې شيخ خپله رائې دا بيان کړې ده چه که دا پورته ذکر کړې شوې توجيهات نظر انداز هم کړې شی او دا اومنلې شی چه د فاطمې رضي الله عنها خفګان او ترک د سلام کلام د ميراث د وجې نه وو نو بيا هم څه اشکال نشته بلکه دا د فاطمې رضي الله عنها تصلب فی الدين دې او د هغې حق شرعی چه د هغې په نزد شرعا واجب او ثابت دې د هغې مطالبه وه او دا خبره د صحابه کرامو رضي الله عنهم د احوالو نه معلوم او معروف ده چه هغوی د دين په معامله کښې ډير مضبوط او کلک ؤو، او هغوی به په دې کښې د لومة لائم هيڅ پرواه نه کوله، چونکه د فاطمې رضي الله عنها په ذهن کښې دا خبره وه چه حديث ارث عام نه دې لهذا په ميراث کښې حق شرعی ثابت دې په دې وجه هغوی د خپل

شرعی حق په طلب کښې اصرار کونکي شوه او د صديق اکبر رضي الله عنه په نه ورکولو باندې ناراضه شوه، پس د هغې دا ناراضګی الله مه کړه د څه حرص او طلب دنيا په لحاظ نه وه. د هغې زهد او قناعت او اعراض عن الدنيا خو اظهر من الشمس دي بلکه د هغې دا ناراضګی د صديق اکبر رضي الله عنه د حق شرعی په انکار باندې وه. والله تعالى اعلم بالصواب

[۲۹۷۴] (¹) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا تَقْتَسِمُ وَرَثَتِي دِينَارًا مَا تَرَكْتُ بَعْدَ نَفَقَةِ نِسَائِي وَمُؤْنَةِ عَامِلِي فَهُوَ صَدَقَةٌ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: مُؤْنَةُ عَامِلِي يَعْنِي أَكَرَةَ الْأَرْضِ.

ابوهريره د نبی علیه السلام نه روايت نقل کوي چه فرمائيلي ئي وو زما دتري نه به يو دينار هم نه شي تقسيمولي زما ترکه کومه چه زما د بيبيانو د اخراجاتو او د عاملانو د مزدورئ نه زياته شي هغه صدقه ده.

﴿عن ابی هريرة رضي الله عنه عن رسول الله صلی الله علیه وسلم قال لا يقتسم ورثتی دينارا، ما ترکت بعد نفقة نسائی ومؤنة عاملی فهوصدقة﴾: رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی چه زما وارثان دې زما مال د ميراث په طور نه اخلی، ځکه چه زه څه پريږدم هغه پس د ازواجو د نفقې نه او پس د مؤنة د عامل نه ټول صدقه دي.

د عامل په تفسير کښې اختلاف دې، فقيل المراد به الخليفة، وقيل العامل على الصدقة، او خادمه صلی الله علیه وسلم والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی، قاله المنذری

[۲۹۷۵] (²) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مَرْزُوقٍ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ أَبِي الْبَخْتَرِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ حَدِيثًا مِنْ رَجُلٍ فَأَعْجَبَنِي، فَقُلْتُ: اكْتُبْهُ لِي فَأَتَى بِهِ مَكْتُوبًا مُذَبَّرًا، دَخَلَ الْعَبَّاسُ، وَعَلِيٌّ عَلَى عُمَرَ، وَعِنْدَهُ طَلْحَةُ وَالزُّبَيْرُ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ، وَسَعْدٌ، وَهُمَا يَخْتَصِمَانِ فَقَالَ عُمَرُ: لِطَلْحَةَ، وَالزُّبَيْرِ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَسَعْدٍ: أَلَمْ تَعْلَمُوا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "كُلُّ مَالِ النَّبِيِّ صَدَقَةٌ إِلَّا مَا أَطْعَمَهُ أَهْلَهُ وَكَسَاهُمْ إِنَّا لَا نُورَثُ؟" قَالُوا: بَلَى قَالَ: فَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُنْفِقُ مِنْ مَالِهِ عَلَى أَهْلِهِ وَيَتَصَدَّقُ بِفَضْلِهِ ثُمَّ تُوُفِّيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَوَلِيَهَا أَبُو بَكْرٍ سَنَتَيْنِ فَكَانَ يَصْنَعُ الَّذِي كَانَ يَصْنَعُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ ذَكَرَ شَيْئًا مِنْ حَدِيثِ مَالِكِ بْنِ أَوْسٍ.

د ابو البختري نه روايت دې فرمائی چه د يو سړی نه مې يو عجيب حديث واوريدو ورته مې ووئيل چه ليکلې ئې راته راکړه نو هغه راته په خوشخطئ سره ليکلې راوړو چه. عباس او علي رضي الله عنهما عمر ته راغلل او د هغه سره طلحه، زبير، وعبدالرحمن، او سعد رضي الله عنهم موجود وو او د دوی دواړو په مينځ کښې اختلاف وونو عمر رضي الله عنه طلحه، زبير، او عبدالرحمن، وسعد رضي الله عنهم ته ووئيل ايا تاسو ته معلومه نده چه نبی علیه السلام فرمائيلی وو زما ټول مال صدقه ده؟ علاوه د هغه نه کوم چه زما په اهل عيال باندې خرڅ کيږی هغوی ووئيل ولې نه اې امير المومنين مونږ ته معلومه ده چه فرمائيلي ئې وو عمر رضي الله عنه ووئيل چه نبی علیه السلام به د دې مال نه په خپل اهل عيال

¹): صحيح البخاري/الوصايا ۳۲ (۳۰۹۶)، فرض الخمس ۳ (۲۷۷۶)، الفرائض ۳ (۶۷۲۹)، صحيح مسلم/الجهاد ۱۶ (۱۷۶۰)، (تحفة الأشراف: ۱۳۸۰۵)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/ الكلام ۱۲ (۲۸)، مسند احمد (۲/۳۷۶) (صحيح)

²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۶۴۹، ۳۹۵۲) (صحيح)

خرچ کولو اوچه کوم به زياتي شو هغه به ئي صدقه کولو، بيا ددې نه پس نبی ﷺ وفات او د
دوه کالو دپاره ابوبکر رضی الله عنه ددې مال متولي جوړ شو هغه به هم داسې کول څنګه چه نبی ﷺ
کړي وو اوبيائي دمالك بن اوسه دحديث څه حصه ذکر کړله

﴿عن البختری قال سمعت حديثا من رجل فاعجبنی فقلت اكتبه لی، فاتی به مكتوبا مذبرا﴾

ابوالبختری وائی چه ما ديو سړي يو حديث واوريدو نو زما هغه ډير زيات خوښ شو په دې وجه ما هغه ته اووې چه دا حديث ما ته اوليکه، پس هغه حديث ليکلي راوړو ډير غوره، وړاندې په روايت کښې د هغه حديث بيان دې دا هم هغه د علی او د عباس رضی الله عنهما د اختلاف حديث دې ـــ کوم چه دلته د باب په شروع کښې تفصيلي تير شوې دې. او بيا روستو په مختلفو رواياتو کښې د هغې قطعات تير شوې دی، چه د هغې راوی مالک بن اوس بن الحدثان دې، په دې روايت کښې د رجل مبهم نه هم دا مراد دې.

[۲۹۷۶](¹) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا قَالَتْ: إِنَّ أَزْوَاجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ تُوُفِّيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرَدْنَ أَنْ يَبْعَثْنَ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ إِلَى أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ فَيَسْأَلْنَهُ ثُمُنَهُنَّ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ لَهُنَّ عَائِشَةُ: أَلَيْسَ قَدْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا نُورَثُ مَا تَرَكْنَا فَهُوَ صَدَقَةٌ".

د ام المومنين عائشة رضی الله عنها نه روايت دې فرمائی چه کله نبی ﷺ وفات شونود نبی ﷺ ازواج مطهراتو اوغوښتل چه عثمان رضی الله عنه ابوبکر الصديق ته اوليږي چه ددوی دپاره ترې دنبی ﷺ په مال کښې اتمه حصه راوړي نوپه دې وخت کښې ورته ام المومنين عائشې رضی الله عنها اوفرمائيل ايا تاسو ته نده معلومه چه نبی ﷺ فرمائيلی وو: زمونږ څوک وارث نشته او څه چه مونږ پريږدو هغه صدقه ده.

﴿عن عائشة رضی الله عنها قالت ان ازواج النبی ﷺ حين توفی الخ﴾

د دې روايت مضمون دلته بالکل د باب په شروع کښې تير شوې دې چه د رسول الله ﷺ ازواج مطهرات هم د صديق اکبر رضی الله عنه د خپل ميراث د طلب کولو اراده کړې وه د عائشې رضی الله عنها په حديث وريادولو باندې هغوی خپله اراده ملتوی کړې وه.

والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری

[۲۹۷۷](²) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ حَمْزَةَ، حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، بِإِسْنَادِهِ نَحْوَهُ قُلْتُ: أَلَا تَتَّقِينَ اللَّهَ أَلَمْ تَسْمَعْنَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "لَا نُورَثُ مَا تَرَكْنَا فَهُوَ صَدَقَةٌ"، وَإِنَّمَا هَذَا الْمَالُ لِآلِ مُحَمَّدٍ لِنَائِبَتِهِمْ وَلِضَيْفِهِمْ فَإِذَا مِتُّ فَهُوَ إِلَى مَنْ وَلِيَ الْأَمْرَ مِنْ بَعْدِي.

او همدا رنګې دا روايت ابن شهاب زهري نه په بل سند سره هم دتيرروايت په شان منقول دې مګر ددې اضافي سره چه عائشه رضی الله عنها وائی ما امهات المومنين ته ووئيل ايا تاسو دالله تعالی نه نه ويريږئ. او ايا تاسو ته نده معلومه چه نبی ﷺ فرمائيلی وو: زمونږ څوک وارث

¹): صحيح البخاري/المغازي ١٤ (٤٠٣٤)، الفرائض ٣ (٦٧٣٠)، صحيح مسلم/الجهاد ١٦ (١٧٥٨)، موطا امام مالك/ الكلام ١٢ (٢٧)، (تحفة الأشراف: ١٦٥٩٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٥، ٢٦٢) (صحيح)

²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٤٠٧)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الشمائل (٤٠٢)، مسند احمد (١٤٥/٦) (حسن)

نشته او څه چه مونږ پريږدو هغه صدقه ده. الحمد لله تعالى چه ﴿ باب فی صفایا رسول ﷺ ﴾ چه دا يو اوږد او اهم باب وو. د هغې د احاديثو شرح او بحث پوره شو.

## بَابٌ فِي بَيَانِ مَوَاضِعِ قَسْمِ الْخُمُسِ وَسَهْمِ ذِي الْقُرْبَى

### نبی علیه السلام به خمس چرته اوپه کومو رشته دارانو تقسیمولو؟

د تير شوی باب او د هغې د احاديثو تعلق خو د مال فئ سره وو. په دې باب کښې د خمس غنيمت حکم او دا چه هغه به اوس په کومو کومو مصارفو کښې تقسيمولې شی.

### د تقسيم غنيمت په باره کښې اية کريمه:

د مال غنيمت د تقسيم طريقه خپله په قرآن کريم کښې منصوص او مصرح ده. ﴿ واعلموا انما غنمتم من شئ فان لله خمسه وللرسول ولذى القربى واليتامى والمساكين وابن السبيل ﴾ يعنى اول د دې ټول مال غنيمت تخميس اوکړې شی يعنى د هغې دې برابر پنځه حصې کړې شی او بيا دې يوه حصه په هغه مواقعو کښې کوم چه په دې آيت کريمه کښې ذکر کړې شوې دی په هغوی کښې دې تقسيم کړې شی. او باقى اربعة اخماس دې ښکاره ده چه په مجاهدينو تقسيم کړې شی، په دې آيت کريمه کښې د تقسيم خمس شپږ ځايونو ذکر شوې دی. چه هغې کښې د ټولو نه اول د الله پاک نوم دې، په دې باره کښې د جمهورو رائې دا ده چه هر څه خو د الله پاک دی، د الله پاک نوم دلته د برکت دپاره ذکر شوې دې. امام نسائی رحمه الله په خپل سنن صغرى کښې د دې پوره آيت کريمه د ذکر کولو نه پس چه خپله د دې آيت کومه تشريح په خپل کلام سره کړې ده، کافى مفصل کلام دې هغوى د الله پاک د نوم د ذکر کولو هم دا وجه بيان کړې ده او يوه خبره ئې بله ليکلې ده ﴿ولعله انما استفتح الكلام فى الفئ والخمس بذكر نفسه لانها اشرف الكسب ولم ينسب الصدقة الى نفسه عزوجل لانها اوساخ الناس ﴾ يعنى الله پاک د صدقې مصارف چه چرته بيان کړې دی هلته ئې په شروع کښې خپل نوم نه دې ذکر کړې بلکه داسې ئې فرمائيلې دی ﴿ انما الصدقات للفقراء والمساكين والعاملين عليها الخ ﴾ په خلاف د غنيمت کښې چه هغه د اشرف المکاسب نه دې.(١)

---

(١) **د اشرف المكاسب بحث** : په دې سلسله کښې امام بخاری رحمه الله هم په کتاب البيوع کښې يو باب قائم فرمائيلې دې. ﴿ باب كسب الرجل وعمله بيده ﴾ ﴿ واخرج فيه عن المقدام عن النبي ﷺ قال ما اكل احد طعاما قط خيرا من ان ياكل من عمل يده وان نبي الله داؤد كان ياكل من عمل يديه، وايضا اخرج حديث عائشة رضي الله عنها قالت لما استخلف ابوبكر الصديق رضي الله عنه قال لقد علم قومي ان حرفتي لم تكن تعجز عن مؤنة اهلي وشغلت بامر المسلمين فسياكل آل ابي بكر من هذا المال ويحترف للمسلمين فيه (البخاري ٢٧٨/١) وفي (الابواب والتراجم ٢٣٤/٢) عن الحافظ قد اختلف العلماء في افضل المكاسب، قال الماوردي : اصول المكاسب الزراعة والتجارة والصنعة، والاشبه بمذهب الشافعي ان اطيبها التجارة قال والارجح عندي ان اطيبها الزراعة لانها اقرب الي التوكل، وتعقبه النووي بحديث المقدام، وان الصواب ان اطيب الكسب ما كان بعمل اليد، قال فان كان زراعا فهو اطيب المكاسب لما يشتمل عليه من كونه عمل اليد ولما فيه من التوكل الي آخر ما قال. قال الحافظ : وفوق ذلك من عمل اليد ما يكتسب من اموال الكفار بالجهاد وهو مكسب النبي ﷺ واصحابه وهو اشرف المكاسب لما فيه من اعلاء كلمة الله تعالي ، خذلان كلمة اعدائه، والنفع الاخروي، قال ومن لم يعمل بيده فالزراعة في حقه افضل. الي آخر ما في الابواب والتراجم من اقوال الشراح في ذلك وفيه قلت وظاهر الترجمة الاشارة الي ترجيح الحرفة وبه صرح العيني والقسطلاني. الي آخر ما فيه فارجع اليه لو شئت التفصيل ﴾

په دې وجه ئې د دې شروع د خپل نوم نه اوکړه، او صدقات چونکه اوساخ الناس دی هلته الله پاک خپل نوم نه دې ذکر کړې او بیا وړاندې هغوی د بعض علماء کرامو دا مذهب نقل کړې دې چه د هغوی رائې دا ده چه د غنیمت په مال کښې دې د الله پاک په نوم هم ویستلې شی او بیا دې هغه په خانه کعبه باندې خرچ کړې شی، الی آخر ما ذکر او د دې بعض نه مراد ابو العالیه دې.

## د ترجمة الباب والا مسئله کښې مذاهب د امامانو:

د دې نه پس تاسو د ترجمة الباب سره متعلق د خلاصې په طور څان په دې باندې پوهه کړئ هغه دا چه د غنیمت د خمس په باره کښې په امامانو کښې د امام مالکؒ رائې دا ده چه د دې تقسیم د امام په رائې باندې دې. ټول مصارف ذکر کړې شوې په آیت کښې خرچ کول ضروری نه دی خو د ذوی القربی هغه حصه به ضرور لګولې شی، او د شوافعو او د حنابله مسلک دا دې چه خمس د غنیمت به د رسول اللهﷺ د وفات نه پس هم پنځه ځایه تقسیم کولې شی، پس د رسول اللهﷺ حصه به هم ویستلې شی کومه چه به امام المسلمین هلته خرچ کوی کوم ځائې چه به خپله رسول اللهﷺ خرچ کوله، په مصالح مسلمین کښې، او باقی څلور حصې به هغوی ته ورکولې شی کوم چه په آیت کریمه کښې ذکر کړې شوې دی، او د احنافو مسلک په دې کښې دا دې چه د رسول اللهﷺ حصه د هغوی د وفات نه پس ساقط شوه، هم دغه شان د سهم د ذوی القربی په باره کښې هم د دې رائې دا دې چه هغوی ته به د فقر د وجې نه ورکولې شو، لهذا فقراء او ذوی القربی ته به ورکولې شی اغنیاء ته نه. لهذا باقی درې چه کومې پاتې شوې (یتامی، مساکین، ابن السبل) هم په دوی کښې به دا تقسیم کولې شی، او هغوی درې واړو ته هم د هغوی په نزد د مستحق کیدو په حیثیت سره نه بلکه د مصرف کیدو په حیثیت سره ورکولې شی، حتی لو صرف الی صنف واحد منهم جاز، امام نسائیؒ هم د سهم د ذوی القربی په باره کښې خپله رائې هم داليکلې ده کومه چه د احنافو ده، پس هغوی فرمائی ﴿ وقد قیل انه للفقیر منهم دون الغنی کالیتامی وابن السبیل وهو اشبه القولین بالصواب عندی، والله اعلم آهـ

او په دې باندې هم څان پوهول پکار دی چه د خمس په تقسیم کښې د ذوی القربی په مصداق کښې د بنو هاشم سره بنو المطلب هم داخل دی لکه چه حدیث الباب کښې د دې ذکر را روان دې خو د زکوة په مسئله کښې د بنوهاشم سره د بنوالمطلب داخلیدل مختلف فیه دی وقد مر فی کتاب الزکوة.

[۲۹۷۸](١) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْمُبَارَكِ، عَنْ يُونُسَ بْنِ يَزِيدَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ، أَخْبَرَنِي جُبَيْرُ بْنُ مُطْعِمٍ، أَنَّهُ جَاءَ هُوَ وَعُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ يُكَلِّمَانِ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيمَا قَسَمَ مِنَ الْخُمُسِ بَيْنَ بَنِي هَاشِمٍ وَبَنِي الْمُطَّلِبِ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ قَسَمْتَ لِإِخْوَانِنَا بَنِي الْمُطَّلِبِ، وَلَمْ تُعْطِنَا شَيْئًا وَقَرَابَتُنَا وَقَرَابَتُهُمْ مِنْكَ وَاحِدَةٌ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ

١): صحيح البخاري/الخمس ١٧ (٣١٤٠)، المناقب ٢ (٣٥٠٢)، المغازي ٣٩ (٤٢٢٩)، سنن النسائي/الفيء (٤١٤١)، سنن ابن ماجه/الجهاد ٤٦ (٢٨٨١)، (تحفة الأشراف: ٣١٨٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨١/٤، ٨٣، ٨٥) (صحيح)

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّمَا بَنُو هَاشِمٍ وَبَنُو الْمُطَّلِبِ شَيْءٌ وَاحِدٌ"، قَالَ جُبَيْرٌ: وَلَمْ يَقْسِمْ لِبَنِي عَبْدِ شَمْسٍ وَلَا لِبَنِي نَوْفَلٍ مِنْ ذَلِكَ الْخُمُسِ كَمَا قَسَمَ لِبَنِي هَاشِمٍ وَبَنِي الْمُطَّلِبِ، قَالَ: وَكَانَ أَبُو بَكْرٍ يَقْسِمُ الْخُمُسَ نَحْوَ قَسْمِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، غَيْرَ أَنَّهُ لَمْ يَكُنْ يُعْطِي قُرْبَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْطِيهِمْ، قَالَ: وَكَانَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ يُعْطِيهِمْ مِنْهُ وَعُثْمَانُ بَعْدَهُ.

دجبیر بن مطعم نه روایت دي فرمائی چه زه اوعثمان بن عفانه دنبی عليه السلام په خدمت کښې ددې خمس متعلق دګفتګو دپاره حاضرشوکوم چه نبی عليه السلام په بنوهاشم اوبنوعبد المطلب باندې تقسیم کړې ووما عرض وکړوچه اې دالله رسوله زمونږ ورونړو بنوعبد المطلب ته دې حصه ورکړه او مونږته دې هیڅ رانکړل او زمونږ اودهغوی درسره یوبرابر رشته ده نبی عليه السلام اوفر مائیل بنوعبد المطلب اوبنوهاشم یوشې دې جبیر وائی چه نبی عليه السلام بنوعبد شمس اوبنی نوفل ته ددې خمس نه څه نه وو ورکړی لکه څنګه چه ئې بنوعبد المطلب اوبنوهاشم ته ورکړی وو، ددې نه بعد ابوبکر الصدیق نه به هم په دې طریقه باندې دنبی عليه السلام دتقسیم په شان تقسیم کولو، لیکن هغه به دنبی عليه السلام رشته دارونه دومره څه نه ورکول لکه څنګه چه څومره به ورته نبی عليه السلام ورکول، جبیره وائی چه عمر رضی الله عنه به ورته ددې خمس نه ورکول اودهغه نه پس عثمانه به ورته هم ورکول

﴿ اخبرنی جبیر بن مطعم انه جآء هو وعثمان بن عفان رضی الله عنه یکلمان رسول الله صلی الله علیه وسلم فی ما قسم من الخمس بین بنی هاشم وبنی المطلب الخ ﴾

## مضمون الحدیث:

د حدیث په مضمون باندې د پوهیدو نه مخکښې تاسو څان پوهه کړئ چه رسول الله صلی الله علیه وسلم خمس د ذوی القربی لره د بنوهاشم او بنو المطلب ترمینځه تقسیم فرمائیلې وو، په دې باندې جبیر بن مطعم رضی الله عنه چه نوفلی وو د نوفل بن عبدمناف په اولاد کښې دې، او عثمان رضی الله عنه چه عبشمی دې چه د عبدشمس بن عبدمناف په اولاد کښې دې، دا دواړه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شواو دا عرض ئې اوکړو چه تاسو زمونږ د رور بنو المطلب دپاره په خمس کښې حصه لګولې ده او مونږ دواړو ته مو هیڅ رانه کړل حال دا چه خپلولی د بنوالمطلب چه تاسو سره ده هم هغه بنونوفل او بنو عبدشمس هم ده [1] رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل ﴿ انما بنوهاشم وبنو المطلب شئ واحد ﴾ په دې روایت کښې خو صرف هم دا دی او وړاندې دا راځی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه بنوهاشم او بنو المطلب همیشه په جاهلیت کښې هم او په اسلام کښې هم یو ځائې پاتې شوې دی ﴿وانما نحن وهم شئ واحد وشبک بین اصابعه ﴾ یعنی هغوی په خپلو ګوتو کښې ګوتې داخلولو سره اوفرمائیل چه دا دواړه قبیلې همیشه داسې پاتې شوې دی، د رسول الله صلی الله علیه وسلم د دې جواب حاصل دا شو چه دا خو صحیح ده

[1] د رسول الله صلی الله علیه وسلم د څلورم نیکه عبدمناف څلور ځامن وو، هاشم، مطلب، نوفل، عبدشمس، لهذا دا څلور خاندانونه شو، بنوهاشم چه په هغې کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم دې، بنوالمطلب، بنونوفل، بنو عبدشمس. د جبیر سلسله نسب دادې جبیر بن مطعم بن عدی بن نوفل بن عبدمناف، د عثمان رضی الله عنه دا دې، عثمان بن عفان بن ابی العاص بن امیة بن عبدشمس بن عبدمناف،

چه د خپلولئ په اعتبار سره څلور واړه خاندانونه برابر دی، خو بنو المطلب ته چه څه ورکړې شوې دی هغه صرف د خپلولئ په وجه باندې نه دی بلکه د قرابت مع النصر والاعانة په وجه باندې، کوم چه په بنو المطلب کښې موندلې شی، باقی دواو کښې مفقود دی.

وړاندې په روایت کښې دی ﴿وكان ابوبكر يقسم الخمس نحو قسم رسول الله ﷺ غير انه لم يكن يعطى قربى رسول الله ﷺ ما كان النبى ﷺ يعطيهم قال فكان عمر بن الخطاب يعطيهم منه وعثمان بعده﴾ یعنی ابوبکر رضی الله عنه هم د خمس هم داسې تقسیم فرمائیلو څنګه چه رسول الله ﷺ تقسیمولو، بس فرق دا وو چه رسول الله ﷺ خو به ذوی القربی ته د هغوی حصه ورکوله، خو ابوبکرصدیق رضی الله عنه به نه ورکوله. هم دغه شان به عمر او عثمان رضی الله عنهما هم د رسول الله ﷺ په شان ورکړه کوله.

د صدیق اکبر رضی الله عنه د دې عمل نه د احنافو د ذوی القربی د مسئلې تائید کیږی چه د هغوی مستقل حصه نه وه بلکه د حاجت اوفقر په وخت کښې (بذل) کښې لیکلې دی چه غالبًا د صدیق اکبر رضی الله عنه هغوی ته نه ورکول هم په دې وجه وو چه هغوی د ابوبکر رضی الله عنه په زمانه کښې مالدار وو، او هغوی غیر ذوی القربی لره احوج اوګڼړل د هغوی نه په دې وجه ئې هغوی له ورکړه والحديث اخرجه البخاري والنسائي وابن ماجة مختصرا. قاله المنذري

[۲۹۷۹]([1]) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، حَدَّثَنَا جُبَيْرُ بْنُ مُطْعِمٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَقْسِمْ لِبَنِي عَبْدِ شَمْسٍ وَلَا لِبَنِي نَوْفَلٍ مِنَ الْخُمُسِ شَيْئًا كَمَا قَسَمَ لِبَنِي هَاشِمٍ وَبَنِي الْمُطَّلِبِ، قَالَ: وَكَانَ أَبُو بَكْرٍ يَقْسِمُ الْخُمُسَ نَحْوَ قَسْمِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، غَيْرَ أَنَّهُ لَمْ يَكُنْ يُعْطِي قُرْبَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، كَمَا كَانَ يُعْطِيهِمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ عُمَرُ يُعْطِيهِمْ وَمَنْ كَانَ بَعْدَهُ مِنْهُمْ.

د جبیر بن مطعم رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام بنوعبد شمس اوبنی نوفل ته د دې خمس نه هیڅ نه وو ورکړی لکه څنګه چه ئې بنوعبد المطلب اوبنوهاشم ته ورکړی وو، جبیره وائی چه ابوبکر الصدیق رضی الله عنه به هم په دې طریقه باندې دنبی علیه السلام دتقسیم په شان تقسیم کولو، لیکن هغه به دنبی علیه السلام رشته داروته پداسې شان څه نه ورکول لکه څنګه چه به ورته نبی علیه السلام ورکول، او عمر رضی الله عنه به ورته د دې خمس نه ورکول اوچاچه دده نه پس خلافت کړې دې هغوی به ورته هم ورکول.

[۲۹۸۰]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، أَخْبَرَنِي جُبَيْرُ بْنُ مُطْعِمٍ، قَالَ: لَمَّا كَانَ يَوْمُ خَيْبَرَ وَضَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَهْمَ ذِي الْقُرْبَى فِي بَنِي هَاشِمٍ وَبَنِي الْمُطَّلِبِ وَتَرَكَ بَنِي نَوْفَلٍ وَبَنِي عَبْدِ شَمْسٍ، فَانْطَلَقْتُ أَنَا وَعُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ حَتَّى أَتَيْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ هَؤُلَاءِ بَنُو هَاشِمٍ لَا نُنْكِرُ فَضْلَهُمْ لِلْمَوْضِعِ الَّذِي وَضَعَكَ اللَّهُ بِهِ مِنْهُمْ، فَمَا بَالُ إِخْوَانِنَا بَنِي الْمُطَّلِبِ أَعْطَيْتَهُمْ وَتَرَكْتَنَا وَقَرَابَتُنَا وَاحِدَةٌ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّا وَبَنُو الْمُطَّلِبِ لَا نَفْتَرِقُ فِي جَاهِلِيَّةٍ وَلَا إِسْلَامٍ وَإِنَّمَا نَحْنُ وَهُمْ شَيْءٌ وَاحِدٌ وَشَبَّكَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ".

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۳۱۸۵) (صحيح)

دجبیر بن مطعم رضي الله عنه نه روایت دي فرمائي چه کله دغزوه خیبر نه فراغت حاصل شونونبي عليه السلام دذوي القربي حصه په بني هاشم اوبنو عبد المطلب باندې تقسیم کړه اوبني نوفل اوبني عبد شمس ئې پریخودل نوزه اوعثمان څه دنبي عليه السلام په خدمت کښې حاضرشواوعرض موکړوچه اې دالله رسوله داهغه بنوهاشم دي دچادفضیلت نه چه مونږ انکارنه کووپه وجه ددې چه الله تعالی ته ددوی نه پیداکړې ئې لیکن دبنو عبد المطلب په باره کښې ستاڅه راې ده؟ چه هغوی ته دې حصه ورکړه او مونږ ته دې رانکړه حالانکه زمونږ اودهغوی درسره یوشان رشته ده؟نبي عليه السلام اوفرمائیل: مونږ اوبنوعبد المطلب هیڅ کله نه یوجداشوي نه په جاهلیت کښې اونه په اسلام کښې او مونږ اوهغوی یو شي یواودیولاس ګوتي ئې دبل لاس په ګوتوکښې ننویستلې.

[۲۹۸۱](۱) حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ الْعِجْلِيُّ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ عَنْ الْحَسَنِ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ السُّدِّيِّ فِي ذِي الْقُرْبَى، قَالَ: هُمْ بَنُو عَبْدِ الْمُطَّلِبِ.

دسدي نه روایت دي چه فرمائیل ئې په قران کریم کښې دذوي القربي نه مراد بني عبد المطلب دي.

﴿ عن السدی فی ذوی القربی قال هم بنو عبدالمطلب ﴾: حضرت په بذل کښې لیکلي دي چه ټولو مطبوعه او قلمي نسخو کښې داسې دي، خو نسخه مصریه کښې د دې په ځائې بنو مطلب دي، که بنو المطلب وی (۲) په دې صورت کښې به مطلب دا وی چه د بنوهاشم سره په دې کښې صرف بنو المطلب شامل دي یعني بنو نوفل او بنو عبد الشمس د ذوی القربی په مصداق کښې داخل نه دي، او که دلته په روایت کښې بنو عبد المطلب دي نو چونکه هغه خو په بنو هاشم کښې هم اخص دې پاتې لا دا چه بنو المطلب ته شامل وی، په دې وجه داسې به وئیلي شي چه د دې تفسیر نه مقصود حصر نه دي.

[۲۹۸۲](۳) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ، حَدَّثَنَا يُونُسُ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، أَخْبَرَنِي يَزِيدُ بْنُ هُرْمُزَ، أَنَّ نَجْدَةَ الْحَرُورِيَّ. حِينَ حَجَّ فِي فِتْنَةِ ابْنِ الزُّبَيْرِ أَرْسَلَ إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ يَسْأَلُهُ عَنْ سَهْمِ ذِي الْقُرْبَى، وَيَقُولُ: لِمَنْ تَرَاهُ؟ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: لِقُرْبَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَسَمَهُ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ كَانَ عُمَرُ عَرَضَ عَلَيْنَا مِنْ ذَلِكَ عَرْضًا رَأَيْنَاهُ دُونَ حَقِّنَا فَرَدَدْنَاهُ عَلَيْهِ وَأَبَيْنَا أَنْ نَقْبَلَهُ..

د یزیدبن هرمزنه روایت دي فرمائي کله چه دابن الزبیردشهادت په وخت کښې نجدة الحروري دخوارجو مشر) حج کولونوذوی القربی د معلومولودپاره ئې ابن عباس ته یوکس ورولیږلو او وئې وئیل: چه ستاپه خیال ددې به څوك مراد دي کوم چه په دې آیت کریمه واعلموا انما غنمتم کښې ذکردي؟ ابن عباس رضي الله عنه اوفرمائیل ددې نه دنبي عليه السلام رشته دار مراد

---

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸٤۳۸) (ضعيف)

(۲) بنو المطلب او بنو عبدالمطلب ترمنیځه فرق ښکاره ده چه عبدالمطلب د هاشم خوئې دي او المطلب د هاشم رور دي.

(۳): صحيح مسلم/الجهاد ٤٨ (۱۸۱۲)، سنن الترمذي/السير ۸ (۱۵۵٦)، سنن النسائي/الفيء (٤۱۳۸)، (تحفة الأشراف: ٦۵۵۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲٤۸/۱، ۲۹٤، ۳۰۸، ۳۲۰، ۳٤٤، ۳٤۹، ۳۵۲) (صحيح)

دي، او عمر هغوی ته د دې حصه پیش کړې وه او دهغې نه ئې څه حصه مونږ ته هم پیش کړې وه لیکن مونږ هغه کمه وګڼله او ورته مو ورواپس کړه او دهغې د بلولو نه مو انکار وکړو.

﴿ اخبرنا یزید بن هرمز ان نجدة الحروری حین حج فی فتنة ابن الزبیر ارسل الی ابن عباس رضي الله عنهما یساله عن سهم ذی القربی ویقول لمن تراه؟ ﴾

**مضمون د حدیث:**

حروري یعنی خارجي او دا نجدة رئیس الخوارج وو. د عبدالله بن زبیر رضي الله عنهما د قتال په کال کښې چه کله هغه حج اوکړو نو ابن عباس رضي الله عنهما ته ئې یو قاصد اولیږلو او د سهم ذوی القربی په باره کښې ترې نه تپوس اوکړو چه چاته ملاویدل پکار دی ستاسو رائې څه ده؟ ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه د رسول الله ﷺ د خپلوانو دپاره لکه څنګه چه به خپله رسول الله ﷺ د هغوی حصه لګوله. وړاندې ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه یو ځل عمر رضي الله عنه هم په دې حصه کښې مونږ ته هم پیش کړې وه خو مونږ هغې لره د خپل حق نه کم ګڼړلو سره رد کړې وه.

په دې روایت سره یو حیثیت سره د احنافو تائید کیږی د سهم ذوی القربی په سلسله کښې هغه دا چه د هغه حق او حصه د حاجت په وخت او په اندازه د حاجت ده نو عمر رضي الله عنه په اندازه د حاجت پیش فرمائیلې وه. او د ابن عباس رضي الله عنهما د طرز عمل نه د شوافعو او حنابله د مسلک تائید کیږی چه د هغوی په نزد د هغوی حصه مطلقا په هر صورت کښې واجب ده. دا د قتال ابن الزبیر واقعه او د دې بیان په کتاب الحج کښې تیر شوې دي.

والحدیث اخرجه مسلم والنسائی، قاله المنذری

[۲۹۸۳](1) حَدَّثَنَا عَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْعَظِيمِ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي بُكَيْرٍ، حَدَّثَنَا أَبُو جَعْفَرٍ الرَّازِيُّ، عَنْ مُطَرِّفٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، قَالَ: سَمِعْتُ عَلِيًّا يَقُولُ: وَلَّانِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُمُسَ الْخُمُسِ فَوَضَعْتُهُ مَوَاضِعَهُ حَيَاةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَحَيَاةَ أَبِي بَكْرٍ، وَحَيَاةَ عُمَرَ فَأُتِيَ بِمَالٍ فَدَعَانِي، فَقَالَ: خُذْهُ فَقُلْتُ: لَا أُرِيدُهُ قَالَ: خُذْهُ فَأَنْتُمْ أَحَقُّ بِهِ، قُلْتُ قَدِ اسْتَغْنَيْنَا عَنْهُ فَجَعَلَهُ فِي بَيْتِ الْمَالِ..

د علی رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام ماته د خمس پنځمه حصه راکړه نو ما به هغه په خپلو امور و او ضروریاتو کښې خرچ کوله ترڅو چه نبی علیه السلام او ابوبکر او عمر رضي الله عنهما ژوندي وو، بیا چه کله یو ځل عمر رضي الله عنه ته ډیر مال راغې نوزه ي را اوغوښتلم او راته ئې اووئیل چه دا مال ته واخله ما ورته ووئیل چه زه دا نه اخلم هغه راته اووئیل چه واخله ته ددې حقدار ئې ما عرض وکړو چه ماته ددې ضرورت نشته بیا هغه عمر رضي الله عنه په بیت المال کښې جمع کړو.

**د علی رضي الله عنه تولیة په خمس الخمس کښې:**

﴿ عن عبدالرحمن بن ابی لیلی قال سمعت علیا رضي الله عنه یقول ولانی رسول الله ﷺ خمس الخمس فوضعته مواضعه حیاة رسول الله ﷺ وحیاة ابی بکر وحیاة عمر الخ ﴾: په دې حدیث کښې چه په خمس غنیمت کښې چه کومه حصه د ذوی القربی ده خمس الخمس، رسول الله ﷺ هغه د علی رضي الله عنه په تولیة کښې ورکړې وو یعنی ذوی القربی کښې د تقسیمولو دپاره، ستاسو په

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۲۲٤) (ضعیف الإسناد)

ژوند کښې هم داسې وه، او د ابوبکر او عمر رضي الله عنهما په ژوند کښې هم، يعنې هغوی دواړو هم په خپله زمانه د خلافت کښې د علي په توليه کښې هغه نه ورکړې وو. پس علي رضي الله عنه فرمائي چه ما دا تقسيموله. د رسول الله ﷺ په حيات کښې هم او د شيخينو په حيات کښې هم، وړاندې هغه فرمائي چه يو ځل عمر رضي الله عنه زه راوغوښتلم او ماته ئې اوفرمائيل واخله خپله حصه، ما اووې چه زما اراده نه ده د اخستلو، هغوی دوباره اووې په دې ما باندې ما عرض اوکړو چه دې کال مونږ ته د دې نه استغناء حاصله ده، پس هغوی هغه بيا په بيت المال کښې داخل کړو د دې نه هم د احنافو د مسلک تائيد کيږي چه اوګورئ علي رضي الله عنه د عدم حاجت په وخت دا نه وو اخستلي

**تنبيه** : د علي رضي الله عنه د دې روايت نه هم معلوميږي چه علي رضي الله عنه ته د دې ذوی القربی د حصې توليت د رسول الله ﷺ او د شيخينو رضي الله عنهما د طرف نه ملاؤ شوې وو. او د دې نه مخکښې د جبير بن مطعم رضي الله عنه په دواړو روايتونو کښې دا تير شوی دی چه صديق اکبر رضي الله عنه د خپل خلافت په زمانه کښې ذوی القربی ته د هغوی حصه په خمس کښې ورنکړه، فالحديثان متعارضان ______ شيخ ابن الهمام رحمه الله د دې تعارض جواب د حافظ منذري رحمه الله نه دا نقل کړې دی ﴿ الصحيح حديث جبير وحديث علي لا يصح ﴾ پس صحيح دا ده چه د رسول الله ﷺ او عمرفاروق او عثمان رضي الله عنهما د طرف خو علي رضي الله عنه متولي جوړ کړې شوې وو او د صديق اکبر رضي الله عنه د طرف نه وو جوړ کړې شوې. (بذل)

د دې نه روستو روايت کښې هم داسې راروان دی دې ته به هم داسې وئيلې شي، او په دې کښې به دا هم راځي چه ﴿ حتى اذا كانت اخر سنة من سنى عمر فانه اتاه مال كثير فعزل حقنا ثم ارسل الى فقلت : بناعنه العام غنى، وبالمسلمين اليه حاجة ﴾ دا مضمون د دې نه په مخکښې روايت کښې تير شوې دې.

[۲۹۸۴]([1]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ، حَدَّثَنَا هَاشِمُ بْنُ الْبَرِيدِ، حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ مَيْمُونٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، قَالَ: سَمِعْتُ عَلِيًّا عَلَيْهِ السَّلَامُ يَقُولُ: اجْتَمَعْتُ أَنَا، وَالْعَبَّاسُ، وَفَاطِمَةُ، وَزَيْدُ بْنُ حَارِثَةَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنْ رَأَيْتَ أَنْ تُوَلِّيَنِي حَقَّنَا مِنْ هَذَا الْخُمُسِ فِي كِتَابِ اللَّهِ، فَأَقْسِمْهُ حَيَاتَكَ كَيْ لَا يُنَازِعَنِي أَحَدٌ بَعْدَكَ فَافْعَلْ، قَالَ: فَفَعَلَ ذَلِكَ قَالَ: فَقَسَمْتُهُ حَيَاةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ وَلَّانِيهِ أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حَتَّى إِذَا كَانَتْ آخِرُ سَنَةٍ مِنْ سِنِي عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فَإِنَّهُ أَتَاهُ مَالٌ كَثِيرٌ فَعَزَلَ حَقَّنَا، ثُمَّ أَرْسَلَ إِلَيَّ فَقُلْتُ: بِنَا عَنْهُ الْعَامَ غِنًى وَبِالْمُسْلِمِينَ إِلَيْهِ حَاجَةٌ فَارْدُدْهُ عَلَيْهِمْ فَرَدَّهُ عَلَيْهِمْ، ثُمَّ لَمْ يَدْعُنِي إِلَيْهِ أَحَدٌ بَعْدَ عُمَرَ، فَلَقِيتُ الْعَبَّاسَ بَعْدَ مَا خَرَجْتُ مِنْ عِنْدِ عُمَرَ، فَقَالَ: يَا عَلِيُّ حَرَمْتَنَا الْغَدَاةَ شَيْئًا لَا يُرَدُّ عَلَيْنَا أَبَدًا وَكَانَ رَجُلًا دَاهِيًا.

د علي رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه زه اوعباس اوفاطمه اوزيدبن حارثه رضي الله عنهم يوځل د نبي عليه السلام په خدمت کښې جمع شوماعرض وکړوچه اې دالله رسوله د قران کريم مطابق چه زمونږ په خمس کښې کوم حق دې هغه مونږته په خپل ژوند کښې راکړه ددې دپاره چه ستانه پس

[1] : تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۲۱٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۸٤/۱) (ضعيف الإسناد)

ځوك پرې راسره جګړه ونكړي چنانچه نبی علیه السلام همداسې وكړل نوترڅوچه نبی علیه السلام ژوندې وو مابه داتقسیموو، دهغه نه پس بیا ابوبكرهم زه ددې اختیارمند كړې وم تردې چه دعمر ددورخلافت آخرى كال راغې نو ډېرمال ورته راغې په هغې كښې ئې زمونږ حصه مقرركړه اوزه ئې طلب كم ماعرض وكړو سږكال مونږته دمال ضرورت نشته نورو مسلمانانو ته ددې ضرورت دي نوعمردغنيمت په نور مال كښې شامل كړوبيادعمرنه پس زه هيڅادې مال دپاره نه يم راغوښتلي نوكله چه زه دعمرنه راووتلم نوعباس رضي الله عنه نه سره مې ملاقات اوشوهغه ووئيل اې عليه دنن نه پس تامرنزله ديوشى نه محروم كړوددې نه پس به هيڅكله داحصه مونږته ملاو نه شي، اوعباس ډيرذكي او دانشمند سړې وو

په وړاندې روايت كښې دا دى ﴿ ثم لم يدعنى اليه احد بعد عمر، فلقيت العباس بعد ما خرجت من عند عمر : فقال يا علي : حرمتنا الغداة شيئا لا يرد علينا ابدا، وكان رجلا داهيا ﴾

سيدنا علی رضي الله عنه فرمائى چه زما د يو ځل رد كولو نه پس چا هم زه د هغې طرف ته نه يم بللې، د عمر رضي الله عنه نه پس، وړاندې دا هم دى چه كله زه د عمر رضي الله عنه د مجلس نه راووتلم نو زما ملاقات د عباس رضي الله عنه سره اوشو نو هغوى ماته اوفرمائيل اې علی! نن تا مونږ د خپلې حصې نه محروم كړو، اوس به كله هم مونږ ته نه ملاويږى، علی رضي الله عنه فرمائى چه حقيقت دا وو چه عباس رضي الله عنه ډير فهيم او تجربه كار انسان وو.

[۲۹۸۵] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ، حَدَّثَنَا يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَخْبَرَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْحَارِثِ بْنِ نَوْفَلٍ الْهَاشِمِيُّ، أَنَّ عَبْدَ الْمُطَّلِبِ بْنَ رَبِيعَةَ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ أَخْبَرَهُ، أَنَّ أَبَاهُ رَبِيعَةَ بْنَ الْحَارِثِ، وَعَبَّاسَ بْنَ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، قَالَا: لِعَبْدِ الْمُطَّلِبِ بْنِ رَبِيعَةَ، وَلِلْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ ائْتِيَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُولَا لَهُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ قَدْ بَلَغْنَا مِنَ السِّنِّ مَا تَرَى وَأَحْبَبْنَا أَنْ نَتَزَوَّجَ، وَأَنْتَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَبَرُّ النَّاسِ وَأَوْصَلُهُمْ وَلَيْسَ عِنْدَ أَبَوَيْنَا مَا يُصْدِقَانِ عَنَّا فَاسْتَعْمِلْنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ عَلَى الصَّدَقَاتِ فَلْنُؤَدِّ إِلَيْكَ مَا يُؤَدِّي الْعُمَّالُ وَلْنُصِبْ مَا كَانَ فِيهَا مِنْ مَرْفَقٍ، قَالَ: فَأَتَى عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ وَنَحْنُ عَلَى تِلْكَ الْحَالِ، فَقَالَ لَنَا: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا وَاللَّهِ لَا نَسْتَعْمِلُ مِنْكُمْ أَحَدًا عَلَى الصَّدَقَةِ"، فَقَالَ لَهُ رَبِيعَةُ: هَذَا مِنْ أَمْرِكَ قَدْ نِلْتَ صِهْرَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ نَحْسُدْكَ عَلَيْهِ، فَأَلْقَى عَلِيٌّ رِدَاءَهُ، ثُمَّ اضْطَجَعَ عَلَيْهِ فَقَالَ: أَنَا أَبُو حَسَنٍ الْقَرْمُ وَاللَّهِ لَا أَرِيمُ حَتَّى يَرْجِعَ إِلَيْكُمَا ابْنَاكُمَا بِجَوَابِ مَا بَعَثْتُمَا بِهِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ عَبْدُ الْمُطَّلِبِ: فَانْطَلَقْتُ أَنَا وَالْفَضْلُ إِلَى بَابِ حُجْرَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى نُوَافِقَ صَلَاةَ الظُّهْرِ قَدْ قَامَتْ فَصَلَّيْنَا مَعَ النَّاسِ ثُمَّ أَسْرَعْتُ أَنَا وَالْفَضْلُ إِلَى بَابِ حُجْرَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَوْمَئِذٍ عِنْدَ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ فَقُمْنَا بِالْبَابِ حَتَّى أَتَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخَذَ بِأُذُنِي وَأُذُنِ الْفَضْلِ، ثُمَّ قَالَ: "أَخْرِجَا مَا تُصَرِّرَانِ"، ثُمَّ دَخَلَ فَأَذِنَ لِي وَلِلْفَضْلِ فَدَخَلْنَا فَتَوَاكَلْنَا الْكَلَامَ قَلِيلًا، ثُمَّ كَلَّمْتُهُ أَوْ كَلَّمَهُ الْفَضْلُ قَدْ شَكَّ فِي ذَلِكَ عَبْدُ اللَّهِ قَالَ: كَلَّمَهُ بِالْأَمْرِ الَّذِي أَمَرَنَا بِهِ أَبَوَانَا، فَسَكَتَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَاعَةً وَرَفَعَ بَصَرَهُ قِبَلَ سَقْفِ الْبَيْتِ حَتَّى طَالَ عَلَيْنَا أَنَّهُ لَا يَرْجِعُ إِلَيْنَا شَيْئًا حَتَّى رَأَيْنَا زَيْنَبَ تَلْمَعُ مِنْ وَرَاءِ الْحِجَابِ بِيَدِهَا تُرِيدُ أَنْ لَا تَعْجَلَا وَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي أَمْرِنَا ثُمَّ خَفَضَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأْسَهُ، فَقَالَ لَنَا: "إِنَّ هَذِهِ الصَّدَقَةَ إِنَّمَا هِيَ أَوْسَاخُ النَّاسِ وَإِنَّهَا لَا تَحِلُّ لِمُحَمَّدٍ وَلَا لِآلِ مُحَمَّدٍ ادْعُوا لِي نَوْفَلَ بْنَ الْحَارِثِ، فَدُعِيَ لَهُ نَوْفَلُ بْنُ الْحَارِثِ فَقَالَ: يَا نَوْفَلُ أَنْكِحْ عَبْدَ الْمُطَّلِبِ

[1]: صحيح مسلم/الزكاة ٥١ (١٠٧٢)، سنن النسائي/الزكاة ٩٥ (٢٦١٠)، (تحفة الأشراف: ٩٧٣٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٦٧٤) (صحيح)

فَأَنْكَحَنِي نَوْفَلُ، ثُمَّ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ادْعُوا لِي مَحْمِيَةَ بْنَ جَزْءٍ وَهُوَ رَجُلٌ مِنْ بَنِي زُبَيْدٍ، كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَعْمَلَهُ عَلَى الْأَخْمَاسِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِمَحْمِيَةَ: أَنْكِحِ الْفَضْلَ فَأَنْكَحَهُ، ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: قُمْ فَأَصْدِقْ عَنْهُمَا مِنَ الْخُمُسِ كَذَا وَكَذَا"، لَمْ يُسَمِّهِ لِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْحَارِثِ.

عبد المطلب بن ربیعة بن حارث دخپل پلار ربیعه بن حارث او عباس بن عبد المطلب دخپل پلار عبد المطلب بن ربیعه او فضل بن عباس نه روایت کوی فرمائی چه دوی دواړو مونږ ته اووئیل چه دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شئ او عرض وکړئ چه اې دالله رسوله دا وخت زمونږه دواړه ګولودې او ته ددې نه واقف ئې چه مونږ دواړه لائق يو او مونږ غواړوچه نکاح وکړو او اې دالله رسوله ته په ټولوخلقوکښې زيات نيکي کونکې ئې اوصلح رحمي پالونکې ئې زمونږ د مور او پلار سره د مهراداکولو طاقت نشته ته مونږ لره په صدقه باندې عاملين مقرر کړه څومره مال چه تاته نور عاملان راوړي دومره به مونږ هم راوړو او مونږ ته به هم منافع حاصليږي، عبد المطلب وائی مونږ په دې ګفتګوکښې مصروف وو کتل مو چه علي كرم الله وجهه راغې اووئې وئيل په الله مې دې قسم وي په تاسوکښې هيڅوك نبی ﷺ دصدقې عامل نه جوړوي ربيعه چه دا واوريدل نووئې وئيل چه ته خود حسد دوجې نه داسې وائی ته دنبی ﷺ زوم ئې مونږ خو په تاباندې حسد نه دې کړې علی رضی الله عنه داخبره واوريده نوڅادر ئې وغوړوو او څملاستو اووئې فرمائيل زه ابو الحسن يم په پوهه کښې دهرچانه زيات يم په الله مې دې قسم وي ترهغه وخته به ددې ځائې نه ونه خوزم ترڅوچه ستاسو ځامن ددې کار نه نااميده رانشي د کوم کا ردپاره ئې چه تاسو نبی ﷺ ته ليږئ عبد المطلب وائی زه اوفضل بن عباس رضی الله عنه دواړه لاړو کله چه مونږ ورسيدو نودماسپخين دمونځ دپاره تکبير اوشو مونږ دنبی ﷺ سره يوځائې مونځ اداکړو، زه او فضل په جلتئ سره دنبی ﷺ دکور طرف ته روان شو هغه ورځ نبی ﷺ دزينب بنت جحش په کور کښې تيروله مونږه دکمرې د دروازې سره اودريدو تردې چه نبی ﷺ راغې دشفقت دوجې نه ئې زما اودفضل غوږونه اونيول اووئې فرمائيل ستاسو په زړه کښې چه څه دې هغه اووائی او ددې نه پس کور ته داخل شو او مونږ ته ئې هم داخل کيدو اجازت راکړو مونږ هم ورداخل شو مونږ په خپل مينځ کښې يوبل ته وئيل خومادخبرې شروع اوکړه (معاوي شك دې چه دا خبره عبد المطلب وکړه اوکه فضل) اوهم هغه خبره مې وکړه کومه چه مونږ ته زمونږ مور او پلار کړې وه نبی ﷺ چه دا واوريدل نويوشيبه خاموش پاتې شو او نظر ئې پورته کړو دچت طرف ته ئې کتل تردې چه مونږ ګمان اوکړو چه ګني مونږ ته جواب نه راکوي نومونږ دزينب طرف ته وکتل چه دپردې دشاته طرف نه ئې مونږ ته اشارې کولې چه تيزي مه کوئ نبی ﷺ ستاسو د مطلب په فکرکښې دې ددې نه پس نبی ﷺ خپل سر مبارك ښکته کړو اووئې فرمائيل صدقه خويوخيرې دې اودمحمداوده دخاندان دپاره جائز نه ده تاسو نوفل بن حارث راوغواړئ چنانچه هغه راوغوښتلې شو نبی ﷺ ورته اوفرمائيل ته خپله لور عبد المطلب ته په نکاح ورکړه نو نوفل ماته په نکاح راکړه، اوبيا ئې

محمئه بن جزء راوغوښتو اودې دزبيد قبيلې والاوو څوک چه نبی ﷺ دخمس دوصول کولو دپاره عامل مقرر کړې وو نبی ﷺ ورته اوفرمائيل خپله لور فضل ته په نکاح ورکړه چناچه هغه زمونږ نکاحونه اوکړل ددې نه پس نبی ﷺ اوفرمائيل پاڅي او ددوی دواړو دطرف نه دخمس په مال کښې دومره دمره مهروركړئ، ابن شهاب وائي چه عبدالله بن حارث ماته دمهر مقدار نه دې بيان کړې چه څومره وو.

﴿ اخبرنی عبدالله بن الحارث بن نوفل الهاشمی ان عبدالمطلب بن ربيعة بن الحارث بن عبدالمطلب اخبره ان اباه ربيعة بن الحارث وعباس بن عبدالمطلب قالا لعبدالمطلب بن ربيعة وللفضل بن عباس ائتيا رسول الله ﷺ فقولا يا رسول الله ﷺ قد بلغنا من السن ما ترى واحببنا ان نتزوج الخ ﴾

## په حديث کښې د ودونو د مسائلو متعلق يو ښکلې واقعه:

دا حديث اوږد دې چه د هغې مضمون دا دې چه د ربيعة بن الحارث څوئی عبدالمطلب وائي چه ماته زما پلار ربيعه، او فضل بن عباس رضی الله عنهما ته د هغه پلار عباس رضی الله عنه اووې چه لاړ شئ رسول الله ﷺ ته او هغوی ته عرض اوکړئ چه يا رسول الله ﷺ مونږ دواړه چه کوم عمر ته رسيدلي يو هغه تاسو وينئ (يعنی د وادۀ قابل شوی يو) اوس مونږ وادۀ کول غواړو، او تاسو په خلقو کښې د ټولو نه زيات احسان او صله رحمی کونکی يئ، او زمونږ د دواړو پلارانو سره دومره مال نشته چه هغوی زمونږ د طرف نه د مهر انتظام اوکړې شی لهذا تاسو مونږ دواړه د صدقاتو په وصول کولو باندې عامل مقرر کړئ څنګه چه د زکوة د مال عاملان مالونه راوړلو سره تاسو ته رارسوی مونږ به ئې هم رارسوو او څه چه زمونږ حق وی هغه به مونږ ته ملاويږی. يعنی د عامل تنخواه او وظيفه، دا ربيعه چه د هغه څوئې عبدالمطلب دې د رسول الله ﷺ د ترۀ څوئې دې او د عباس رضی الله عنه د رسول الله ﷺ ترۀ کيدل خو مشهور دی، نو ګويا دا عبدالمطلب د رسول الله ﷺ د ترۀ د څوئی څوئې شو او فضل رضی الله عنه ئې د ترۀ څوئې. دا قصه هم د دې دواړو سره متعلق ده، وړاندې په روايت کښې دی عبدالمطلب وائي چه په کوم مجلس کښې زمونږ دا خبرې او مشوره کيده هلته علی بن ابی طالب رضی الله عنه اتفاقًا راورسيدو (چه کله د هغوی په علم کښې هغه خبره راغله کومه چه په مجلس کښې شروع وه) نو په دې باندې هغوی اوفرمائيل چه قسم په الله چه رسول الله ﷺ به په تاسو کښې يو هم په صدقه باندې عامل نه کړی په دې باندې د عبدالمطلب پلار ربيعه اووې چه تاته چه د رسول الله ﷺ څوم توب ملاؤ شوې دې نو مونږ خو تاسره کله هم په دې کښې حسد نه دې کړې (مطلب دا چه بيا ته ولې زمونږ په دې مشوره باندې پريشانه کيږې او سوزې) ﴿ فالقى على رداءه ثم اضطجع عليه فقال انا ابو حسن القرم ﴾ يعنی علی رضی الله عنه ته ربيعه په جمله اوريدو باندې غصه ورغله او خپل کوم څادر ئې چه پسر کړې هغه ئې خور کړو او په هغې باندې سملاستو او د سملاستو په وخت ئې اوفرمائيل (څه زه هم چرته نه څم) زه هم د خپل نوم ابو حسن بهادر يم، والله زه به د دې ځائې نه نۀ خوزم چه ترڅو پورې ستاسو د دواړو ځامنو د رسول الله ﷺ جواب نه وی راوړې (حور په معنی د جواب) عبدالمطلب وائي چه زه او فضل رضی الله عنهما دواړه د مشورې مطابق د رسول الله ﷺ خدمت ته

لاړو، چه کله مونږ هلته اورسیدو نو د ماسپخین جماعت ولاړ وو، مونږ د خلقو سره مونځ اوکړو، د مونځ نه چه فارغ شو نو زه او فضل دواړه د حجرې دروازې طرف ته لاړو، هغه ورځ د زینب رضي الله عنها نمبر وو په دې وجه هغوی هلته وو غرض دا چه مونږ د رسول الله ﷺ نه مخکښې د دروازې سره اودریدلي وو، لږ ساعت پس رسول الله ﷺ تشریف راوړو، او په مونږ دواړو کښې ئې د هر یو غوږ اونیولو او وې فرمائیل چه د خپل زړه خبره اوکړئ چه څه ده؟ (مونږ خاموش وو) بیا رسول الله ﷺ دننه تشریف یوړو او دننه رسیدو سره ئې مونږ ته هم د دننه راتلو اجازت راکړو، مونږ دننه لاړو، مونږ دواړو کښې هر یو بل ته وې چه رسول الله ﷺ ته خبره عرض کړه، غرض دا چه په مونږ دواړو کښې یو کس د روای په تعین کښې شک راغې. د رسول الله ﷺ مخې ته هم هغه خبره کیخودله د کومې چه زمونږ پلارانو حکم کړې وو، رسول الله ﷺ زمونږ خبره اوریدو سره خاموش شو او خپلې سترګې مبارکې ئې چهت طرف ته اوچتې کړې وې (لکه چه بعض وخت انسان په سوچ کښې کوی) چه په هغې کښې ډیر وخت تیر شو، مونږ دا اوګنړله چه کیدې شی هیڅ جواب رانشی (مونږ لږ نا امیده شو) تردې چه سیده زینب رضي الله عنها مونږ اولیده چه مونږ ته مخامخ د پردې نه شاته وه هغوی په خپل لاس سره اشاره اوکړه چه د هغې مفهوم دا وو چه تندی مه کوئ رسول الله ﷺ ستاسو د مسئلې د حل په باره کښې سوچ کوی، بیا ډیر ساعت پس رسول الله ﷺ خپل سر مبارک د پورته نه ښکته کړو او وې فرمائیل ګورئ دا د صدقې مال د خلقو خیری دی دا د محمد (ﷺ) او آل محمد (ﷺ) دپاره حلال نه دی (بیا رسول الله ﷺ چه د هغوی د مسئلې کوم حل راویستلې وو هغه ئې هغوی ته بیان اوفرمائیلو) او وې فرمائیل چه ته نوفل بن الحارث راوبله، پس نوفل ته رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د عبد المطلب نکاح اوکړه. نوفل زما نکاح اوکړه. او وې فرمائیل راوغواړئ ماته محمیه بن جزء لره، راوی وائی چه دا محمیه د رسول الله ﷺ د طرف نه د اخماس منتظم وو. نو رسول الله ﷺ او فرمائیل محمیه! د فضل نکاح اوکړه او بیا ئې عامل ته اوفرمائیل چه د دې دواړو د طرف نه د خمس نه مهر ادا کړه.

دا چه د دې حدیث آخری جمله ده ﴿ اصدق عنهما من الخمس ﴾ هم د دې نه ترجمة الباب ثابتیږی، په داسې موقع باندې شراح لیکی فیه الترجمة، د مصنف رحمه الله غرض دلته د دې قصې د بیانولو نه دادې چه رسول الله ﷺ به د خمس نه د خپلو ذوی القربی حصه راویستله، ځکه چه عبد المطلب بن ربیعه او فضل بن عباس رضي الله عنهما دواړه په ذوی القربی کښې دی، د دې قصې نه دا هم په فهم کښې راځی چه په وادهٔ کولو کښې زیات د فکر څیز بس مهر دې (او د خرچ مسئله) ده او دویم څیز ولیمه ده چه د هغې ذکر به وړاندې د علی رضي الله عنه په قصه کښې راشی، نور لوازمات فضول دی والحدیث اخرجه مسلم. قاله المنذری

[۲۹۸٦] (¹) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَخْبَرَنِي عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ، أَنَّ حُسَيْنَ بْنَ عَلِيٍّ أَخْبَرَهُ، أَنَّ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ، قَالَ: كَانَتْ لِي شَارِفٌ مِنْ نَصِيبِي مِنَ الْمَغْنَمِ يَوْمَ بَدْرٍ،

¹): صحيح البخاري/البيوع ۲۸ (۲۰۸۹)، المساقاة ۱۳ (۲۳۷۵)، فرض الخمس ۱ (۳۰۹۱)، المغازي ۱۲ (٤۰۰۳)، اللباس ۹ (۵۷۹۳)، صحيح مسلم/الأشربة ۱ (۱۹۷۹)، (تحفة الأشراف: ۱۰۰٦۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱٤۲/۱) (صحيح)

وَكَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْطَانِي شَارِفًا مِنَ الْخُمُسِ يَوْمَئِذٍ، فَلَمَّا أَرَدْتُ أَنْ أَبْنِيَ بِفَاطِمَةَ بِنْتِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاعَدْتُ رَجُلًا صَوَّاغًا مِنْ بَنِي قَيْنُقَاعٍ أَنْ يَرْتَحِلَ مَعِي فَنَأْتِيَ بِإِذْخِرٍ أَرَدْتُ أَنْ أَبِيعَهُ مِنَ الصَّوَّاغِينَ فَأَسْتَعِينَ بِهِ فِي وَلِيمَةِ عُرْسِي، فَبَيْنَا أَنَا أَجْمَعُ لِشَارِفَيَّ مَتَاعًا مِنَ الْأَقْتَابِ وَالْغَرَائِرِ وَالْحِبَالِ وَشَارِفَايَ مُنَاخَانِ إِلَى جَنْبِ حُجْرَةِ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ أَقْبَلْتُ حِينَ جَمَعْتُ مَا جَمَعْتُ فَإِذَا بِشَارِفَيَّ قَدِ اجْتُبَّتْ أَسْنِمَتُهُمَا وَبُقِرَتْ خَوَاصِرُهُمَا وَأُخِذَ مِنْ أَكْبَادِهِمَا، فَلَمْ أَمْلِكْ عَيْنَيَّ حِينَ رَأَيْتُ ذَلِكَ الْمَنْظَرَ، فَقُلْتُ: مَنْ فَعَلَ هَذَا قَالُوا: فَعَلَهُ حَمْزَةُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ وَهُوَ فِي هَذَا الْبَيْتِ فِي شَرْبٍ مِنَ الْأَنْصَارِ غَنَّتْهُ قَيْنَةٌ وَأَصْحَابَهُ، فَقَالَتْ فِي غِنَائِهَا: أَلَا يَا حَمْزُ لِلشُّرُفِ النِّوَاءِ، فَوَثَبَ إِلَى السَّيْفِ فَاجْتَبَّ أَسْنِمَتَهُمَا وَبَقَرَ خَوَاصِرَهُمَا، وَأَخَذَ مِنْ أَكْبَادِهِمَا قَالَ عَلِيٌّ: فَانْطَلَقْتُ حَتَّى أَدْخُلَ عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَعِنْدَهُ زَيْدُ بْنُ حَارِثَةَ، قَالَ: فَعَرَفَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِي لَقِيتُ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا لَكَ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ مَا رَأَيْتُ كَالْيَوْمِ عَدَا حَمْزَةُ عَلَى نَاقَتَيَّ فَاجْتَبَّ أَسْنِمَتَهُمَا وَبَقَرَ خَوَاصِرَهُمَا وَهُوَ ذَا فِي بَيْتٍ مَعَهُ شَرْبٌ فَدَعَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرِدَائِهِ فَارْتَدَاهُ، ثُمَّ انْطَلَقَ يَمْشِي وَاتَّبَعْتُهُ أَنَا وَزَيْدُ بْنُ حَارِثَةَ. حَتَّى جَاءَ الْبَيْتَ الَّذِي فِيهِ حَمْزَةُ فَاسْتَأْذَنَ فَأُذِنَ لَهُ فَإِذَا هُمْ شَرْبٌ فَطَفِقَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَلُومُ حَمْزَةَ فِيمَا فَعَلَ، فَإِذَا حَمْزَةُ ثَمِلٌ مُحْمَرَّةٌ عَيْنَاهُ، فَنَظَرَ حَمْزَةُ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ صَعَّدَ النَّظَرَ فَنَظَرَ إِلَى رُكْبَتَيْهِ ثُمَّ صَعَّدَ النَّظَرَ فَنَظَرَ إِلَى سُرَّتِهِ ثُمَّ صَعَّدَ النَّظَرَ فَنَظَرَ إِلَى وَجْهِهِ، ثُمَّ قَالَ: حَمْزَةُ وَهَلْ أَنْتُمْ إِلَّا عَبِيدٌ لِأَبِي، فَعَرَفَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ ثَمِلٌ فَنَكَصَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى عَقِبَيْهِ الْقَهْقَرَى فَخَرَجَ وَخَرَجْنَا مَعَهُ.

د علی کرم الله وجهه نه روایت دي فرمائي چه زما سره یوه څربه او ځوانه اوښه وه کومه چه ماته په غزوه بدر کښې دغنیمت په طورملاوشوي وه او یوه بله څربه او ځوانه اوښه راته هم نبی ﷺ په خمس کښې راکړې وه کله چه دفاطمې رضی الله عنها ولیمه کول اوغوښتل اودبنی قینقاع قبیلې یوکس مې دځان سره بوتلوته تیار کړې ووزما دا اراده وه چه سرګرې به راوړم او خرڅ به ئې کړم دولیمې د مصارفو د پوره کولو دپاره نوپه دې وخت کښې دسامان په جمع کولو پسې لاړم او اوښې دیوانصاري دکورمخې ته ولاړې وې چه کله مې سامان راجمع کړو او راغلم نو وې کتل چه ددواړو اوښوکوبونه پرېکړې شوي دي او شاکانې ئې غوڅې کړې شوي دي اوجګرونه ئې چا راویستلي دي ماچه کله داحالت اولیدو نومانشو برداشت کولې ماووئیل داد چا حرکت دې راته ووئیلې شول چه حمزه بن عبد المطلب اوهغه داچه هغه د یوڅو انصاریانوسره په یوکورکښې شراب څکي وو اوبوي سندرغاړې ښځې ورته په سندره کښې داسې وئیل: الا یاحمزة للشرف النواء، یعنی اې حمزه پاڅه په دې اوښانو پسې کوم چه په دې میدان کښې تړلي دي او په مرئ ئې چاړه کېږده او په وینوکښې ئې اولمبوه او ددوی پاکې غوښې دشرابیانودپاره سرې کړه حمزه چه دا واورېدل نوپه جلتی اوښانوته ورپاڅیدواو ددوی شاکانې ئې څیرې کړې او ددوی جګرونه ئې را وویستل،

علي رضی الله عنه فرمائي چه زه نبی ﷺ ته روان شوم کله چه ورته حاضر شوم نوزید بن حارثه هم هلته ناست ووکله چه نبی ﷺ زما طبیعت ناساز اولیدو نو اوئې فرمائیل څه درباندې شوي دي؟ما عرض وکړ واې دالله رسوله دننی ورځې په شان ورځ مې کله نده لیدلې، حمزه زماپه اوښانوظلم کړې دې زماداوښانوکوبونه ئې زخمي کړي دي اوخیټې ئې ورله شلولې دي او په یوکورکښې دشرابیانوسره ناست دي، نبی ﷺ خپل څادر راوغوښتو بیا ئې

واغوستو اوروان شو اوزه هم ور پسې شاته شاته روان شوم تردې چه هغه کورته ورسیدوچرته چه حمزه ناست وو، نبی ﷺ ته دننوتو دپاره اجازت ورکړی شو اوداخل شونواوئي لیدل چه ټولوشراب څکلي دي اونشه دي، نبی ﷺ په دې کارباندې حمزه ملامت کرولیکن هغه په نشه کښې اوسترګي ئې سري وي حمزه نبی ﷺ ته اوکتل اوبیائي دنبی ﷺ مخ مبارك ته اوکتل او اوئې وئیل ته خوزمادپلارغلام ئې، په دې خبره نبی ﷺ ته معلومه شوه چه حمزه په نشه کښې دي نونبی ﷺ په الته خپودهغه ځائې نه واپس راروان شواوراووتو او مونږ هم ورسره راروان شو.

## د حضرت علی رضی الله عنه د ولیمې سره متعلق یوه واقعه

قوله: ﴿ ان الحسین بن علی رضی الله عنهما اخبره ان علی بن ابی طالب رضی الله تعالی عنه قال کان لی شارف من نصیبی من المغنم یوم بدر وکان رسول الله ﷺ اعطانی شارفا من الخمس یومئذ الخ ﴾ دا هم یوه اوږده قصه ده هم د دې قسم هغه دا چه حسین بن علی رضی الله عنهما فرمائي چه ماته زما والد صاحب علی رضی الله عنه بیان اوکړو چه زما په ملک کښې یوه ځوانه اوښه وه کومه چه د جنګ بدر د مال غنیمت نه ماته ملاؤ شوې وه او هم دغه شان یوه اوښه بله وه چه رسول الله ﷺ ما ته د خمس په حصه کښې راکړې وه (ترجمة الباب خو هم د دې نه ثابت شو وړاندې مصنف رحمه الله د قصې تکمیل کوی) چه کله زما اراده اوشوه فاطمې رضی الله عنها لره د نکاح نه پس دواده کولو (چه هغې ته رخصتی وائي) نو د ولیمې په تیاریٔ کښې ما دا منصوبه جوړه کړه کومه چه وړاندې بیانوی، هغه دا چه ما د یو صواغ یعنی زرګر نه دا وعده واخستله چه هغه ماسره ځنګل ته لاړ شی چه مونږ د هغه ځائې نه اذخر جمع کولو سره راوړو او د صواغینو په لاس هغه خرڅ کړو چه د هغې په ګټې باندې د ولیمې بندوبست اوشی. پس ما هم داسې اوکړل چه دواړه اوښې مې د یو انصاری د کور مخې ته کینولې او خپله زه په هغه اوښانو باندې د ترلو دپاره د کیجاوې، بوریا او رسو وغیره د جمع کولو دپاره لاړم. چه کله ما هغه ټول څیزونه جمع کړل او راغلم نو ګورم چه زما د هغه دواړو اوښانو قوبونه پرې کړې شوې دی او د هغوی د اړخونو نه غوښه هم پرې کړې شوې ده، او د هغوی اینې راویستلې شوې دی، ما چه دا منظر اولیدو نو بې اختیاره ژړا راغله، بیا ما د خلقو نه تپوس اوکړو چه داسې چا اوکړل؟ هغوی اووې چه حمزه بن عبدالمطلب رضی الله عنه کړې دی، او مخامخ ئې یو کور طرف ته اشاره اوکړه چه هغه په دې کښې دې د ډیرو شراب څکونکو سره، په دې مجلس کښې یو سندرې ویونکې هغوی ته او د هغوی ملګرو ته په خپل آواز کښې دا شعر اولوستلو!

الا یا حمز للشرف النواء و هن معقلات بالفناء

ضع المسکین فی اللبات منها وضرجهن حمزة بالدماء

چه د هغې ترجمه دا ده چه دا مخامخ ځوانې او څربې اوښې دی کومې چه د کور مخې ته ترلې شوې دی د هغوی په مرو باندې چاړهٔ اوچلوه او هغه په وینو کښې لت پت کړه، شرف جمع د شارف ده په معنی د ځوانې اوښې، او نواء جمع د ناویة ده په معنی د څربې، یعنی حمزه د سندرې ویونکې په دې شعر اوریدو سره توره راواخستله او دا ټول کارونه ئې

اوکړل، علی رضی الله عنه فرمائی چه دا هر څه اوریدو سره زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم، هغه وخت د هغوی سره زید بن حارثه رضی الله عنه وو هغوی زما د مخ نه زما د پریشانئ اندازه اولګوله او تپوس ئې اوکړو څه اوشو؟ ما عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ د نن په شان د خفګان منظر ما مخکښې نه وو لیدلې او ټوله واقعه ئې بیان کړه. او ما دا هم بیان کړه چه هغه په یو کور کښې مجلس کیږی د شرابو څکلو په هغې کښې دی (د شرابو د حرامیدو نه مخکښې واقعه ده) په دې باندې رسول الله ﷺ خپل څادر راوغوښتلو هغه ئې واغوستلو او روان شو، زه او زید په هغوی پسې، تردې چه رسول الله ﷺ هغه کور ته اورسیدو چه په کوم کښې حمزة وو رسول الله ﷺ د اجازت طلب کولو نه پس دننه داخل شو چه هلته ټول خلق موجود وو، رسول الله ﷺ حمزة رضی الله عنه په دې حرکت باندې ملامته کړو، د حمزه رضی الله عنه دا حال وو چه هغوی د شرابو په نشه کښې مست وو او سترګې ئې سرې وې، اوس حمزه رضی الله عنه رسول الله ﷺ ته په تیزو سترګو سره کتل شروع کړل، او د نشې په یو خاص انداز کښې ئې رومبی خو د رسول الله ﷺ خپو ته کتل لږ ساعت پس ئې نظر لږ پورته اوچت کړو او د هغوی کونډو ته ئې کتل، بیا ئې نه نظر نور هم اوچت کړو د رسول الله ﷺ نوم ته نزدې، هلته ئې کتل، دغه شان ئې بیا مخ ته کتل. دا کتل خو ئې بالکل د خاموشئ سره وو، او بیا ئې په آخره په تیزه لهجه کښې اوئیل ﴿وهل انتم الا عبید لابی﴾ تاسو ټول زما د پلار غلامان ئې (چونکه د حمزه رضی الله عنه پلار د رسول الله ﷺ هم او د علی رضی الله عنه هم نیکهٔ او مشر وو، او ګویا سردار وو، او حمزه رضی الله عنه د دوی نه په نسبت کښې هغه ته زیات نزدې وو په دې وجه ئې د فخر په طور دا جمله اوئیله) علی رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ پوهه شو چه دې خو مست دې (او معامله ګډه وډه ده) په دې وجه رسول الله ﷺ راواپس شو (چه چرته لاس ئې خطا نه شي) او غرض دا چه رسول الله ﷺ د هغه ځائې نه راوتلو او مونږ هم د رسول الله ﷺ سره.

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم، قاله المنذری

دا قصه زمونږ دپاره ډیره د عبرت ده چه د رسول الله ﷺ د لور رخصتی کیږی چه د هغې د ولیمې دپاره د رسول الله ﷺ زوم محترم د ځنګل نه ګیا راجمع کوی او په هغې کښې هم د مقصود مطابق کامیابی حاصله نه شي

[۲۹۸۷] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنِي عَيَّاشُ بْنُ عُقْبَةَ الْحَضْرَمِيُّ، عَنِ الْفَضْلِ بْنِ الْحَسَنِ الضَّمْرِيِّ، أَنَّ أُمَّ الْحَكَمِ أَوْ ضُبَاعَةَ ابْنَتَيِ الزُّبَيْرِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ حَدَّثَتْهُ، عَنْ إِحْدَاهُمَا، أَنَّهَا قَالَتْ: أَصَابَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْيًا فَذَهَبْتُ أَنَا وَأُخْتِي وَفَاطِمَةُ بِنْتُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَشَكَوْنَا إِلَيْهِ مَا نَحْنُ فِيهِ وَسَأَلْنَاهُ أَنْ يَأْمُرَ لَنَا بِشَيْءٍ مِنَ السَّبْيِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "سَبَقَكُنَّ يَتَامَى بَدْرٍ لَكِنْ سَأَدُلُّكُنَّ عَلَى مَا هُوَ خَيْرٌ لَكُنَّ مِنْ ذَلِكَ تُكَبِّرْنَ اللَّهَ عَلَى إِثْرِ كُلِّ صَلَاةٍ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ تَكْبِيرَةً وَثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ تَسْبِيحَةً وَثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ تَحْمِيدَةً وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ"، قَالَ عَيَّاشٌ: وَهُمَا ابْنَتَا عَمِّ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دفضل بن حسن ضمري نه روایت دې فرمائی چه ام الحکم یا ضباعه کوي چه دزبیر بن

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٩١٢، ١٥٣١٤)، ویأتي هذا الحدیث في الأدب (٥٠٦٦) (ضعیف)

عبدالمطلب لوڼره دي راته روایت بیان کړې دي چه نبی ﷺ ته قیدیان راغلل زه اوزماخور اودنبی ﷺ فاطمه لور مونږ درې واړه دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو مونږ ورته دخپل حالت شکایت وکړو او مونږ ورته اووئیل چه مونږ ته په دې قیدیانو کښې یوتن راکړه (دخدمت دپاره) نبی ﷺ اوفرمائیل ستاسو نه مخکښې هغه جینکۍ زیاتې خقداري دي دچاچه پلرونه په غزوه بدرکښې شهیدان شوي دي البته زه تاسوته یوه مفیده خبره ښایم کومه چه ستاسو دپاره بهترده تاسودهرمونځ نه پس درې دیرش ځله الله اکبر اودرې دیرش ځله سبحان الله اودرې دیرش ځله الحمد لله اویوځل: «لا إله إلا الله وحده لا شريك له له الملك وله الحمد وهو على كل شيء قدير» وائی ایساش وئیلی دی ضباعه اوحکم دواړه دنبی ﷺ دتره لوڼره وي.

﴿ حدثنی عیاش بن عقبة الحضرمی عن الفضل بن الحسن الضمری ان ام الحکم او ضباعه ابنتی الزبیر بن عبدالمطلب حدثته عن احداهما ﴾

## د سند تحقیق :

دا سند تحقیق او تفتیش ته محتاج دې. دلته نسخې مختلف دی پس دوه اختلافات په لیدو کښې راغلل زمونږ په دې نسخه کښې ﴿ ان ام الحکم او ضباعة ﴾ دې او د ابن داسه په نسخه کښې (کما فی تعلیق الشیخ محمد عوامه) د دې په ځائې ﴿ ان ابن ام الحکم او ضباعة ﴾ دې. او د دې نه پس دویم اختلاف په لفظ د ﴿ حدثته ﴾ کښې دې.زمونږ په دې نسخه کښې په صیغه د مونث دې او په یو بله نسخه کښې کما علی الهامش ﴿ حدثه ﴾ په صیغه د مذکر دې، دا روایت په ابوداؤد کښې مکرر دې دوباره مصنف رحمه الله دا روایت په کتاب الادب ﴿باب فی التسبیح عند النوم ﴾ هم ذکر کړې دې بعینه هم په دې سند سره خو هلته د ابن داسه د نسخې په شان دې. ﴿ ان ابن ام الحکم او ضباعة ابنتی الزبیر حدثه عن احداهما ﴾ او په تهذیب الکمال کښې چه حافظ مزی رحمه الله دا حدیث په خپل سند سره ذکر کړو نو په هغې کښې هم داسې دی، لهذا ترجیح به د ابن داسه والا نسخې روایت لره وی، او په دې صورت کښې به د سند مطلب داوی، فضل بن الحسن وائی چه ما ته د ام الحکم ځوئی یا د ضباعه ځوئی بیان اوکړو، په دې دواړو (ام الحکم او ضباعه) کښې د یو نه روایت کوی [۱] او زمونږ د موجوده نسخې په موجودګۍ کښې به مفهوم دا وی چه فضل بن الحسن وائی چه ماته أم الحکم یا ضباعة کښې یوې روایت اوکړو د بلې نه، یعنی د فضل شک دې چه زما استاد په دې حدیث کښې یا ام الحکم ده یا ضباعة او په هر صورت په دوی کښې یوه د بلې نه روایت کوی، چونکه د صاحب عون المعبود نسخه هم دا ده په دې وجه هغوی د سند شرح هم داسې کړې ده، خو که دا نسخه اختیار کړې شی نو په دې کښې د معنی په لحاظ سره دا اشکال دې چه کله د رسول الله ﷺ په خدمت کښې تلونکې دا دواړه زنانه وې لکه چه په روایت کښې تصریح ده ﴿ فذهبت انا واختی ﴾ نو بیا د یو بل نه د روایت کولو څه وجه؟ دواړه صاحب واقعه دی او بله دا چه په کتب رجال کښې هم د دې دواړو د یوې بلې نه

[۱] لهذا راوی ځوئې شو او مروی عنه د هغه مور یا تروږ)

روایت کول ثابت نه دی. (کما فی البذل) په خلاف د نسخې ثانیې چه هغه د اشکال نه محفوظ ده، خو شیخ الهند په خپله حاشیه کښې زمونږ د موجوده نسخې داسې توجیه او تاویل فرمائیلې دې چه په هغې باندې دا اشکال نه واردیږی، د شیخ الهند د تاویل حاصل دا دې چه ﴿عن احداهما﴾ په طور د لب لباب بدل واقع کیږی د خپل سابق نه چه فضل بن الحسن روایت کوی په دې دواړو زنانو کښې د یوې نه، د بدل مقرر کیدو په صورت کښې دا پورته اشکال نه پیدا کیږی، زمونږ حضرت سهارنپوری رحمه الله د سند مفهوم خو هم دا متعین کړې دې کوم چه د ابن داسه والا نسخې د سند دې خو په هغې کښې دا توضیح او تشریح نشته چه زمونږ دا سند تاویل ته محتاج دې یا نه دې، بلکه د هغې نه فهمیږی چه زمونږ دنسخې دعبارت مفهوم هم هغه دې کوم چه د دویمې نسخې د عبارت دې، والامر کما فی حاشیة شیخ الهند رحمه الله تعالی،وهذا جهد المقل فی شرح هذا السند والله تعالی اعلم بالصواب.

د حدیث مضمون واضح دې چه دا دواړه او دریمه فاطمه رضی الله عنها په خمس د غنیمت کښې د خادم د طلب کولو دپاره تلې وې نو رسول الله ﷺ عذر اوفرمائیلو ﴿سبقکن یتامی بدر﴾ چه د بدر یتیمان چونکه ستاسو نه مخکښې طلب کولو له راغلې وو په دې وجه ټول غلامان هغوی ته ورکړې شو او یا مطلب دا دې چه د بدر یتیمان د استحقاق په اعتبار سره په تاسو باندې مقدم او راجح وو په دې وجه هغوی ته ورکړې شو یا به ورکړې شی، په دې صورت کښې حدیث د احنافو مؤید کیدې شی، چه هغوی په دې مسئله کښې د ذوی القربی د حق بنیاد د هغوی په فقر او حاجت باندې ږدی. بیا رسول الله ﷺ د هغه درې واړو د زړه ساتلو او نقصان پوره کولو دپاره د خادم بدل، یعنی بدل معنوی تجویز اوفرمائیلو کوم چه د تسبیحات فاطمه رضی الله عنها په نوم سره معروف دی.

[۲۹۸۸](١) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الأَعْلَى، عَنْ سَعِيدٍ يَعْنِي الْجُرَيْرِيَّ، عَنْ أَبِي الْوَرْدِ، عَنِ ابْنِ أَعْبُدَ، قَالَ: قَالَ لِي عَلِيٌّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: أَلَا أُحَدِّثُكَ عَنِّي وَعَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَكَانَتْ مِنْ أَحَبِّ أَهْلِهِ إِلَيْهِ؟ قُلْتُ: بَلَى قَالَ: إِنَّهَا جَرَّتْ بِالرَّحَى حَتَّى أَثَّرَ فِي يَدِهَا، وَاسْتَقَتْ بِالْقِرْبَةِ حَتَّى أَثَّرَ فِي نَحْرِهَا وَكَنَسَتِ الْبَيْتَ حَتَّى اغْبَرَّتْ ثِيَابُهَا، فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَدَمٌ، فَقُلْتُ: لَوْ أَتَيْتِ أَبَاكِ فَسَأَلْتِيهِ خَادِمًا، فَأَتَتْهُ فَوَجَدَتْ عِنْدَهُ حُدَّاثًا فَرَجَعَتْ فَأَتَاهَا مِنَ الْغَدِ فَقَالَ: مَا كَانَ حَاجَتُكِ؟ فَسَكَتَتْ، فَقُلْتُ أَنَا أُحَدِّثُكَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ جَرَّتْ بِالرَّحَى حَتَّى أَثَّرَتْ فِي يَدِهَا وَحَمَلَتْ بِالْقِرْبَةِ حَتَّى أَثَّرَتْ فِي نَحْرِهَا فَلَمَّا أَنْ جَاءَكَ الْخَدَمُ أَمَرْتُهَا أَنْ تَأْتِيَكَ فَتَسْتَخْدِمَكَ خَادِمًا يَقِيهَا حَرَّ مَا هِيَ فِيهِ، قَالَ: "اتَّقِي اللَّهَ يَا فَاطِمَةُ وَأَدِّي فَرِيضَةَ رَبِّكِ وَاعْمَلِي عَمَلَ أَهْلِكِ، فَإِذَا أَخَذْتِ مَضْجَعَكِ، فَسَبِّحِي ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ وَاحْمَدِي ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ وَكَبِّرِي أَرْبَعًا وَثَلَاثِينَ فَتِلْكَ مِائَةٌ فَهِيَ خَيْرٌ لَكِ مِنْ خَادِمٍ"، قَالَتْ: رَضِيتُ عَنِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ، وَعَنْ رَسُولِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

(١): تفرد به أبو داود بهذا السياق: (اتقي الله يا فاطمة، وأدي فريضة ربك، واعملي عمل أهلك)، وأما البقية من الحديث فقد رواه كل من :صحيح البخاري/فرض الخمس ٦ (٣١١٣)، فضائل الصحابة ٩ (٣٧٠٥)، النفقات ٦ (٥٣٦١)، الدعوات ١١ (٦٣١٨)، صحيح مسلم/الذكر والدعاء ١٩ (٢٧٢٧)، سنن الترمذي/الدعوات ٢٤ (٣٤٠٨)، (تحفة الأشراف: ١٠٢٤٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٩٦)، ويأتي هذا الحديث في الأدب (٥٠٦٢) (ضعيف)

دابن اعبد نه روایت دې چه علیه راته اوفرمائیل چه خپله اودفاطمې یوه واقعه درته بیان نکړم کومه چه نبی ﷺ ته په خپل ټول خاندان کښې ډیره محبوب وه ماعرض اوکړو ولې نه هغه اووئیل فاطمې به په لاس میچن ګرځوله تردې پورې چه دهغې په لاسونو کښې نشانونه جوړ شوي وو او په شابه ئې داوبو مشکونه راوړل تردې چه په ملا کښې ئې دزخم نشان جوړ شوې وو او په کور کښې به ئې جارو وهله تردې چه دجامورنګ ئې بدل شوې وو نو یوخل نبی ﷺ ته غلامان او وینځې راغلي ما ورته اووئیل که چرې خپل پلار ته ورشې اویوه وینځه ترې اوغواړې نو په تابه اساني راشي نو چه کله فاطمه ورغله نو دهغه سره ئې خلق ناست اولیدل چه خبرې ئې کولې تو واپس راغله بله ورځ بیاورغله نبی ﷺ تپوس اوکړو چه څه خبره ده هغه خاموش شو ماعرض اوکړو اې دالله رسوله زه به درته اووایم میچن ئې په لاس کښې نشانونه جوړ کړي دي اوداوبو مشکونو ئې په شاه کښې زخمونه جوړ کړي دي اوس تاته وینځې اوغلامان راغلي دي مادې ته اووئیل چه دنبی ﷺ نه یوخادم اوغواړه چه دې ته دکور په خدمت کښې آساني ملاو شي، نبی ﷺ اوفرمائیل اې فاطمې دالله نه اویریږه اودخپل رب حکم اومنه اودخپل کور کارونه سر ته رسوه اوکله چه اوده کیږې نو څلور دیرش ځله الله اکبر أودرې دیرش ځله سبحان الله اودرې دیرش ځله الحمدلله اوابه کله چه داتعداد سل پوره شي نوداستاد پاره دیوخادم نه بهتردې فاطمې اووئیل زه دالله اودرسول نه راضي یم.

﴿عن ابن اعبد قال قال على رضي الله عنه لا احدثک عنی وعن فاطمة الخ﴾

د دې حدیث او د وړاندې حدیث مضمون تقریبا یو دې، او په هغې کښې دی چه علی فاطمې رضي الله عنها ته اوفرمائیل چه خپل پلار ته لاړه شه او د هغوی نه یو خادم اوغواړه، په دې باندې هغه رسول الله ﷺ ته لاړه، (الی آخر القصة وقد اخرج البخاری ومسلم وابوداؤد والنسائی من حدیث عبدالرحمن بن ابی لیلی عن علی رضي الله عنه هذا الحدیث بنحوه) وسیجیء ان شاء الله تعالی فی کتاب الادب من کتابنا هذا، قاله المنذریج

[۲۹۸۹](۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ بِهَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ: وَلَمْ يُخْدِمْهَا.

دا حدیث دتیرحدیث په شان دې لیکن په دې کښې دا اضافه ده چه نبی ﷺ ورته خادم ورنکړو.

[۲۹۹۰](۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ بْنُ عَبْدِ الْوَاحِدِ الْقُرَشِيُّ، قَالَ أَبُو جَعْفَرٍ يَعْنِي ابْنَ عِيسَى: كُنَّا نَقُولُ إِنَّهُ مِنَ الأَبْدَالِ قَبْلَ أَنْ نَسْمَعَ أَنَّ الأَبْدَالَ مِنَ الْمَوَالِي، قَالَ: حَدَّثَنِي الدَّخِيلُ بْنُ إِيَاسِ بْنِ نُوحِ بْنِ مُجَّاعَةَ، عَنْ هِلاَلِ بْنِ سِرَاجِ بْنِ مُجَّاعَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ مُجَّاعَةَ أَنَّهُ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَطْلُبُ دِيَةَ أَخِيهِ قَتَلَتْهُ بَنُو سَدُوسٍ مِنْ بَنِي ذُهْلٍ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَوْ كُنْتُ جَاعِلاً لِمُشْرِكٍ دِيَةً جَعَلْتُ لأَخِيكَ، وَلَكِنْ سَأُعْطِيكَ مِنْهُ عُقْبَى"، فَكَتَبَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِائَةٍ مِنَ الإِبِلِ مِنْ أَوَّلِ خُمُسٍ يَخْرُجُ مِنْ مُشْرِكِي

(۱): انظر ما قبله (ضعیف)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۲۱۲) (ضعیف الإسناد)

بَنِي ذُهْلٍ فَأَخَذَ طَائِفَةً مِنْهَا وَأَسْلَمَتْ بَنُو ذُهْلٍ فَطَلَبَهَا بَعْدُ مُجَّاعَةُ إِلَى أَبِي بَكْرٍ، وَأَتَاهُ بِكِتَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَتَبَ لَهُ أَبُو بَكْرٍ بِاثْنَيْ عَشَرَ أَلْفَ صَاعٍ مِنْ صَدَقَةِ الْيَمَامَةِ أَرْبَعَةَ آلَافٍ بُرًّا وَأَرْبَعَةَ آلَافٍ شَعِيرًا وَأَرْبَعَةَ آلَافٍ تَمْرًا، وَكَانَ فِي كِتَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِمُجَّاعَةَ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ هَذَا كِتَابٌ مِنْ مُحَمَّدٍ النَّبِيِّ لِمُجَّاعَةَ بْنِ مَرَارَةَ مِنْ بَنِي سُلْمَى إِنِّي أَعْطَيْتُهُ مِائَةً مِنَ الْإِبِلِ مِنْ أَوَّلِ خُمُسٍ يَخْرُجُ مِنْ مُشْرِكِي بَنِي ذُهْلٍ عُقْبَةً مِنْ أَخِيهِ.

روایت دي چه مجاعه دخپل قتل شوي ورور ددیت غوښتلو دپاره دنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضر شو څوك چه سدوسیانو قتل کړې وو اودده تعلق دبنی ذهیل قبیلې سره وو نبی علیه السلام اوفرمائیل که چرې ما د کوم مشرك دیت ورکولې نوستادورور دیت به مې ورکړې وو لیکن دهغه بدله به تاته درکړم، بیانبی علیه السلام دده دپاره دا ولنې خمس نه دسلو اوښانو ورکولو خط اولیکلو دهغه مال نه کوم چه نبی علیه السلام ته دبنی ذهل دمشرکانونه حاصل شوي وو مجاعه ته په دې اوښانوکښې یوڅو ملاو شول، ددې نه پس قبیله بن ذهل اسلام قبول کړو او مجاعه خپل باقي اوښان دابوبکرنه اوغوښتل دهغه دخلافت په زمانه کښې اوابوبکرته ئې دنبی علیه السلام خط راوړو، ابوبکر ورته داوښانو په بدل کښې دیمامې په صدقه کښې دولس زره صاع ورکړل په دې کښې څلور زره صاع غنم او څلور صاع وربشې او څلور زره صاع کجورې وې اود نبی علیه السلام دخط مضمون داسې وو: شروع کوم په نوم دالله باندې چه بې حده رحم کونکې اومهربان دې داخط دمحمد رسول الله و دطرف نه دمجاعه بن مراره دپاره د څوك چه دبنی سلمه قبیلې والا دې مادده دپاره سل اوښان مقررکړی دی په اولنې هغه خمس کښې کوم چه به دبنی ذهل دمشرکینونه حاصل شي دا معوضه ده دده دورور څوك چه قتل کړې شوې دې۔

﴿ حدثنا محمد بن عيسى نا عنبسة بن عبدالواحد القرشي، قال ابوجعفر يعني ابن عيسى ____ كنا نقول انه من الابدال قبل ان نسمع ان الابدال من الموالي ﴾

محمد بن عیسی د مصنف رحمه الله استاد چه د هغه کنیت ابوجعفر دې هغوی د خپلې استاد عنبسه په باره کښې وائی چه مونږه به دا ګڼړله د عنبسه په باره کښې چه هغه د ابدال د جماعت نه دې مخکښې د دې نه چه مونږ دا واورو چه ابدال د موالی نه وی یعنی د آزاد کړې شوې غلامانو نه.

مطلب دا دې چه عنبسه خو د موالی نه نۀ دې لهذا هغه د ابدال نه هم نه دې، لهذا زمونږ رومبې خیال غلط راوتلو اختار هذا شيخنا فى البذل، او صاحب د عون المعبود موالی لره د ممالیک په معنی کښې نه دې اخستلې بلکه د سادات په معنی ئې اخستلې دې یعنی مولی اعلی، او عنبسه قرشی دې په ساداتو کښې دې، په دې صورت کښې به مطلب دا وی چه په شروع کښې خو زمونږ دا صرف ګمان وو روستو بیا هغه ګمان په یقین سره بدل شو او مونږ ته د هغه د ابدالو نه د کیدو یقین پیدا شو، هذا المعنى عكس المعنى السابق.

## د ابدالو او اوتاد ثبوت د احادیثو نه:

دلته د دې روایت په سند کښې د ابدال ذکر راغلې دې، د ابدال ذکر په ابوداؤد کښې د کتاب الفتن نه پس په باب ذکر المهدی کښې هم راغلې دې چه د هغې لفظ دا دې ﴿ فاذا رای الناس

ذلک اتاه ابدال الشام وعصائب اهل العراق فیبایعونه ﴾ چه د هغې مضمون دا دې چه په آخر زمانه کښې به چه کله د امام مهدی په لاس باندې مکه مکرمه کښې د حجر اسود او مقام ابراهیم علیه السلام ترمینځه خلق د هغوی سره بیعت اوکړی نو د هغې نه پس به د هغوی د مخالفینو یو لښکر اوچت شی د ملک شام نه کوم چه به هغوی سره د د جنګ کولو دپاره ځی نو هغوی به الله پاک په لاره کښې د مکې مکرمې او مدینې طیبې ترمینځه په زمکه کښې ښخ کړی، چه کله خلقو ته دا معلومه شی نو په دې سره به د خلقو په زړونو کښې د هغوی ډیر عظمت پیدا شی، پس د عراق عابدان او زاهدان او د ملک شام ابدال به راشی او د هغوی په لاس باندې به بیعت شی. حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې د علامه سیوطی رحمه الله نه نقل کړی دی چه په صحاح سته کښې د ابدال ذکر نشته سوا د ابوداؤد د دې روایت نه. (واخرج الحاکم وصححه) و ورد فی غیر الصحاح ذکرهم فی عدة احادیث جمعتها فی مولف، حضرت شیخ په دې خپله حاشیه کښې ډیر روایات دکتب حدیث او تصوف او رجال تاریخ په حواله سره لیکلې دی. (۱) په دغه حاشیه کښې دی چه د علامه شامی هم یوه رساله ده چه د هغې نوم دې (اجابة الغوث ببیان حال النقباء والنجباء والابدال والاوتاد والغوث) هم دغه شان دعلامه سیوطی رحمه الله په الحاوی للفتاوی کښې یورساله ده (الخبرالدال علی وجود القطب والاوتاد والنجباء والابدال)اوسیوطی رحمه الله په (التعقبات علی الموضوعات) کښې د حدیث الابدال په باره کښې لیکلې دی: ﴿صحیح وان شئت قلت متواتر﴾ آهـ

﴿ حدثنی الدخیل بن ایاس بن نوح بن مجاعة بن هلال بن سراح بن مجاعة عن ابیه عن جده مجاعة انه اتی النبی صلی الله علیه وسلم یطلب دیة اخیه قتلته بنو سدوس من بنی ذهل ﴾

**مضمون د حدیث:**

د دې حدیث راوی مجاعه بن مراره دې چه په یمامه کښې د اوسیدونکې قبیلې بنوحذیفه نه وو، دا په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې دی د خپلو قوم سردار وو. د هغوی کافر رور لره بنوسدوس قتل کړې وو نو د هغې دیت ئې د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه غوښتلو، کیدې شی چه د بیت المال نه اخستل مراد وی، رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه که د مشرک دیت وې نو ما به ستا د رور دیت هم درکړې وې، خو زه به د دیت په عوض کښې څه درکوم یعنی د هغوی د زړه ساتلو دپاره، ځکه چه دې د خپل قوم سردار وو، چه د هغوی قوم هم اسلام ته مائل شی، او ښکاره خبره ده چه مجاعه د دې طلب دیت په وخت اسلام کښې داخل شوې وو (بذل) د دې وجې نه رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغوی دپاره یو خط اولیکلو چه مشرکان د بنو ذهل د قبیلې د غنیمت نه چه ړومبی کوم خمس اویستلې شی نو په هغې کښې دې سل اوښان دوی ته ورکړې شی، په هغه سلو کښې خو څه حصه هغوی ته ورکړې شوه او څه ئې باقی پاتې شوه، او دلته دا اوشوه چه بنو ذهل اسلام قبول کړو، بیا د صدیق اکبر رضی الله عنه په زمانه کښې دا

---

(۱) ماته محب مکرم مولانا حکیم سعود صاحب المعروف به حکیم اجمیری ذکر کړل چه ما هم د ابدالو متعلق تقریبا اویا روایات جمع کړی دی.

مجاعه هغوی ته راغلو د رسول اللهﷺ خط سره، نو هغوی د باقی دیت په باره کښې اولیکل دولس زره صاع د هغه صدقې نه چه د یمامه نه وصول شی، څلور زره صاع غنم، څلور زره صاع جوار، او څلور زره صواع کهجورې، او د رسول اللهﷺ خط کوم چه هغوی ته ورکړې وو داسې وو ﴿ بسم الله الرحمن الرحيم هذا كتا ب من محمدﷺ لمجاعة بن مرارة من بنی سلمی انی اعطيته مئة من الابل من اول خمس يخرج من مشركی بنی ذهل عقبة من اخيه﴾

## بَابُ مَا جَاءَ فِي سَهْمِ الصَّفِيِّ

### د صفی په نوم د حصې بیان

[۲۹۹۱](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مُطَرِّفٍ، عَنْ عَامِرٍ الشَّعْبِيِّ، قَالَ: كَانَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَهْمٌ يُدْعَى الصَّفِيَّ إِنْ شَاءَ عَبْدًا وَإِنْ شَاءَ أَمَةً وَإِنْ شَاءَ فَرَسًا يَخْتَارُهُ قَبْلَ الْخُمُسِ.

دشعبی نه روایت دې فرمائی چه دنبی علیه السلام دپاره یوه خاص حصه مقرر وه کوې ته چه به صفې وئیلې کیدل کله چه به نبی علیه السلام مناسب او ګنړل دمال غنیمت نه دخمس ویستلو نه مخکښې به ئې دځان دپاره غلام یا وینځه یا اس خوښ کړو

[۲۹۹۲](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، وَأَزْهَرُ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ، قَالَ: سَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ سَهْمِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالصَّفِيِّ، قَالَ: "كَانَ يُضْرَبُ لَهُ بِسَهْمٍ مَعَ الْمُسْلِمِينَ وَإِنْ لَمْ يَشْهَدْ وَالصَّفِيُّ يُؤْخَذُ لَهُ رَأْسٌ مِنَ الْخُمُسِ قَبْلَ كُلِّ شَيْءٍ".

دابن عون نه روایت دې فرمائی چه دمحمد بن سیرین نه مې تپوس اوکړو په باره دبرخې دنبی علیه السلام کښې او په باره دصفې کښې راوي وائی دنبی علیه السلام دپاره به دنورو مسلمانانو سره حصه مقررولې شوه اګرچه په جنګ کښې به نه وو شریك شوې اودهغه دپاره به دهرڅه نه مخکښې په پنځمه حصه کښې صفې بیلولې شو.

په دې باب باندې کلام په ﴿ باب فی الصفایا ﴾ کښې تیر شوې دې، او د صفی سره متعلق مسائل هم، د دې باب په رومبی حدیث کښ، ﴿ يختاره قبل الخمس ﴾ چه رسول اللهﷺ به سهم صفی اخستلو، د خمس راویستلو نه مخکښ، یعنی د اصل غنیمت نه مخکښ، په بذل کښې لیکلې شوې دی چه زمونږ مذهب هم دا دې خو د دې نه په روستو روایت کښې را روان دی ﴿ والصفی یوخذ له راس من الخميس قبل كل شئ ﴾ دا رومبې حدیث خلاف دې، او دفع تعارض داسې کیدې شی چه په رومبی روایت کښې قبل الخمس نه مراد قبل تقسیم الخمس مراد واخستلې شی، یعنی په خمس کښې سهم صفی مراد اخستلو نه پس د هغې تقسیم کولې شی، پس تعارض دفع شو

[۲۹۹۳](٣) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ السُّلَمِيُّ، حَدَّثَنَا عُمَرُ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ الْوَاحِدِ، عَنْ سَعِيدٍ يَعْنِي ابْنَ بَشِيرٍ، عَنْ قَتَادَةَ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا غَزَا كَانَ لَهُ سَهْمٌ صَافٍ يَأْخُذُهُ مِنْ حَيْثُ شَاءَهُ فَكَانَتْ صَفِيَّةُ مِنْ ذَلِكَ السَّهْمِ، وَكَانَ إِذَا لَمْ يَغْزُ بِنَفْسِهِ ضُرِبَ لَهُ بِسَهْمِهِ وَلَمْ يُخَيَّرْ.

١): سنن النسائي/الفيء ١ (٤١٥٠)، (تحفة الأشراف: ١٨٨٦٨) (ضعيف الإسناد)
٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩٢٩٥) (ضعيف الإسناد)
٣): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩٢١٤) (ضعيف الإسناد)

د قتاده نه روايت دې فرمائي چه كله به نبي عليه السلام پخپله په جنګ كښې شركت اوكړو نو چه دكوم ځائې نه به ئې خوښه وه دځان دپاره به ئې يوه حصه منتخب كړه او صفيه رضي الله عنها دنبي عليه السلام په حصه كښې په غزوه خيبر كښې راغلي وه، اونبي عليه السلام چه به كله پخپله په جنګ كښې نه وو شريك شوې، نودهغه دپاره به يوه حصه تعين كړې شوه او پخپله به ئې انتخاب نه كولو.

د باب دريم حديث دا دې ﴿عن قتادة رضي الله عنه قال كان رسول الله ﷺ اذا غزا كان له سهم صاف الخ﴾ په دې روايت كښې د سهم صافي په باره كښې دا دی چه دا به د هغوی دپاره هغه وخت وو چه كله رسول الله ﷺ په هغه غزا كښې شريک وو او د هغوی چه كومه دويمه حصه په غنيمت كښې هغه مطلقا وه. كه د په غزوه كښې به د رسول الله ﷺ شركت وو او كه به نه وو خو د دې باب چه كوم آخرى حديث را روان دې د هغې نه معلوميږي چه سهم صافي اوسهم غنيمت دواړه عام وو دا ټول بحث په باب الصفايا كښې تير شوې دې.

[۲۹۹٤](١) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كَانَتْ صَفِيَّةُ مِنَ الصَّفِيِّ.

دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې چه ام المومنين صفيه رضي الله عنها په صفي كښې وه.

﴿عن عائشة رضي الله عنها قال كانت صفية من الصفى﴾

يعنى د رسول الله ﷺ زوجه محترمه صفية رضي الله عنها رسول الله ﷺ ته په سهم صافى كښې وركړې شوې وه،دا روايت د راتلونكى مفصل روايت خلاف دې، او صحيح خبره هم هغه ده لهذا د دې روايت دې دا تاويل اوكړې شى چه مراد من حيث المال دې او كوم چه را روان روايت دې په هغې كښې داسې دى

[۲۹۹٥](٢) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الزُّهْرِيُّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي عَمْرٍو، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَدِمْنَا خَيْبَرَ فَلَمَّا فَتَحَ اللَّهُ تَعَالَى الْحِصْنَ ذُكِرَ لَهُ جَمَالُ صَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيٍّ وَقَدْ قُتِلَ زَوْجُهَا وَكَانَتْ عَرُوسًا فَاصْطَفَاهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِنَفْسِهِ فَخَرَجَ بِهَا حَتَّى بَلَغْنَا سُدَّ الصَّهْبَاءِ حَلَّتْ فَبَنَى بِهَا.

دانس ابن مالك نه روايت دې فرمائي چه مونږه خيبر ته راغلو كله چه الله تعالى فتح كړو نوخلقو نبي عليه السلام ته دصفية بنت حيي دښائست ذكراوكړو دچاچه خاوند قتل كړې شوې وو اوناوې وه نونبي عليه السلام دخپل ځان دپاره منتخب كړه اوبيانبي عليه السلام دخپل ځان سره بوتله تردې چه نبي عليه السلام سد الصهباء مقام ته اورسيدو هلته هغه حلاله (دحيض نه پاكه شوه او صحبت ئې ورسره وكړو.

[۲۹۹٦](٣) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: صَارَتْ صَفِيَّةُ لِدِحْيَةَ الْكَلْبِيِّ، ثُمَّ صَارَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٩١٨) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/البيوع ١١١ (٢٢٣٥)، الجهاد ٧٤ (٢٨٩٣)، المغازي ٣٩ (٤٢١١)، الأطعمة ٢٨ (٥٤٢٥)، الدعوات ٣٦ (٦٣٦٣)، وانظر حديث رقم (٢٠٥٤)، (تحفة الأشراف: ١١١٧) (صحيح)

[3]: سنن ابن ماجه/ النكاح ٤٢ (١٩٥٧)، (تحفة الأشراف: ١٠١٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٢٨٠) وانظر حديث رقم (٢٠٥٤) (صحيح)

دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه صفيه رضي الله عنها اول د دحيه كلبي په حصه كښې راغلې وه بيا هغه دنبی عليه السلام په حصه كښې راغله

[۲۹۹۷]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ خَلَّادٍ الْبَاهِلِيُّ، حَدَّثَنَا بَهْزُ بْنُ أَسَدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا ثَابِتٌ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: وَقَعَ فِي سَهْمِ دِحْيَةَ جَارِيَةٌ جَمِيلَةٌ، فَاشْتَرَاهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَبْعَةِ أَرْؤُسٍ ثُمَّ دَفَعَهَا إِلَى أُمِّ سُلَيْمٍ تَصْنَعُهَا وَتُهَيِّئُهَا، قَالَ حَمَّادٌ: وَأَحْسِبُهُ قَالَ: وَتَعْتَدُّ فِي بَيْتِهَا صَفِيَّةُ بِنْتُ حُيَيٍّ.

دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه د دحية الكلبي په حصه كښې يوه بهترينه خائسته جينئ راغله نبی عليه السلام داوه غلامانو په بدل كښې دحية الكلبي نه واخستله او بيائې ام سليم رضي الله عنها ته حواله كړه چه سنګارئې كړي اوتياره ئې كړي حماد وائې چه زما خيال دې چه داسې ئې ووئيل چه دام سليم په كوركښې عدت تيركړه.

[۲۹۹۸]()حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ. ح وحَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْمَعْنَى، قَالَ: حَدَّثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: جُمِعَ السَّبْيُ يَعْنِي بِخَيْبَرَ فَجَاءَ دِحْيَةُ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَعْطِنِي جَارِيَةً مِنَ السَّبْيِ، قَالَ: "اذْهَبْ فَخُذْ جَارِيَةً فَأَخَذَ صَفِيَّةَ بِنْتَ حُيَيٍّ، فَجَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ أَعْطَيْتَ دِحْيَةَ، قَالَ يَعْقُوبُ: صَفِيَّةَ بِنْتَ حُيَيٍّ سَيِّدَةَ قُرَيْظَةَ وَالنَّضِيرِ، ثُمَّ اتَّفَقَا مَا تَصْلُحُ إِلَّا لَكَ، قَالَ: ادْعُوهُ بِهَا، فَلَمَّا نَظَرَ إِلَيْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ: خُذْ جَارِيَةً مِنَ السَّبْيِ غَيْرَهَا"، وَإِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْتَقَهَا وَتَزَوَّجَهَا.

دانس رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه د خيبر ټول قيديان يوځائې ته راجمع كړې شول اوهلته دحية الكلبي راغې او وئې وئيل اې دالله رسوله په دې قيديانو كښې يوه وينځه ماته راكړه نبی عليه السلام اوفرمائيل ورشه اويوه وينځه واخله نو ورغې اوصفية بنت حي ئې واخستله په دې وخت كښې يوكس نبی عليه السلام ته راغې اووئې وئيل يا رسول الله تادبنونضير اوبنوقريظه ديهوديانو دسردار لوردحية كلبي ته وركړه داخوستانه علاوه دبل چاسره نه ښائې نبی عليه السلام اوفرمائيل را اوئې غواړئ كله چه نبی عليه السلام صفيه اوليدله نودحيه ته ئې اوفرمائيل دځان دپاره كومه بله وينځه واخله بيانبی عليه السلام دې لره ازاده كړه اونكاح ئې ورسره وكړه.

﴿عن انس رضي الله عنه قال جمع السبى بخيبر فجاء دحية فقال يارسول الله صلى الله عليه وسلم اعطنى جارية من السبى، قال اذهب فخذ جارية فاخذ صفية ابنه حيى الخ﴾

**صفية رضي الله عنها د رسول الله صلى الله عليه وسلم په حصه كښې څنګه راغله؟**:

يعنى د خيبر قيديان چه كله جمع كړې شو نو دحية كلبى رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت كښې حاضر شو او د هغوى نه ئې په هغه قيديانو كښې د يوې وينځې فرمائش اوكړو، رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه ته اختيار وركړو چه يو وينځه واخله، هغوى صفيه رضي الله عنها واخستله، نو سړې د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت كښې حاضر شو او عرض ئې اوكړو يا رسول الله صلى الله عليه وسلم تاسو دحية ته صفيه وركړه هغه خو د بنوقريظه او بنو نضير سرداره ده او د دحية دپاره مناسب نه

[1]): تفرد به أبو داود، وانظر حديث رقم (٢٠٥٤) (تحفة الأشراف: ٣٧٧، ٣٩٠) (صحيح)

[2]): صحيح البخاري/ الصلاة ١٢ (٣٧١)، صحيح مسلم/ النكاح ١٤ (١٣٦٥)، سنن النسائي/ النكاح ٦٤ (٣٣٤٢)، (تحفة الأشراف: ٩٩٠، ١٠٥٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٠١/٣، ١٨٦) (صحيح)

ده ستاسو دپاره مناسب ده. په دې باندې رسول الله ﷺ دحية رضي الله عنه د صفيې رضي الله عنها سره راوغوښتلو، او هغوی په هغې باندې نظر اچولو سره اوفرمائيل چه بله وينځه واخله، او بيا ئې صفيه رضي الله عنها آزاده کړه او د هغې سره ئې نکاح اوکړه.

په دې رواياتو کښې يو روايت کښې دا هم دی د صفيې رضي الله عنها په باره کښې چه ﴿وقد قتل زوجها وكانت عروسا﴾ او دا هم دی چه ﴿تخرج بها حتى بلغنا سد الصهباء حلت فبنى بها﴾ يعنی د خيبر نه په واپسئ باندې چه کله رسول الله ﷺ مقام د سد الصهباء ته راورسيدلو نو هغه د رسول الله ﷺ دپاره حلاله شوه، د دې نه مراد طهارت دې د حيض نه، يعنی استبراء حاصله شوه. د دې نه پس رسول الله ﷺ د هغې سره بناء اوکړه (تخليه)

او په روايات الباب کښې په يو کښې دا هم دی د دحية په حصه کښې يو جاريه جميله راغلې وه ﴿فاشتراها رسول الله ﷺ بسبعة رؤس﴾ يعنی رسول الله ﷺ يوه وينځه د اووه وينځو په عوض کښې واخستله. د دې نه مراد دا دې چه رسول الله ﷺ د دحيه رضي الله عنه صفيه اخستلو سره هغه ته د دې په بدل کښې اووه وينځې ورکړې، او دا چه په روايت کښې راغلی دی چه يو صحابي رضي الله عنه راغلو او رسول الله ﷺ ته ئې عرض اوکړو چه هغه ستاسو دپاره ډيره مناسبه ده او د دحيه رضي الله عنه مناسب نه ده مطلب دا دې چه د دې دحيه ته تلل د مصلحت خلاف دی، ځکه چه په صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې د دحيه رضي الله عنه په شان بلکه د هغوی نه افضل ډير زيات وو او دا يو اوچت شان والا جاريه وه نو دحيه رضي الله عنه سره د کيدو د وجې نه به نور ته احساس کيدو او د بشريت د تقاضې مطابق دا د تنافس مقام وو، او د رسول الله ﷺ سره د کيدو په صورت کښې به د چا هم دا آشکال نه وو.

وئيلې شوې دی چه د صفيه نوم د رسول الله ﷺ د اصطفاء نه مخکښې زينب وو بيا چه کله په سهم صفی کښې راغله نو د هغې نوئې صفيه کيخودلو، (كذا فی البذل) خو په عون المعبود کښې د امام نووی رحمه الله نه نقل کړې شوې دی چه صحيح خبره دا ده چه د هغې نوم د مخکښې نه صفيه وو.

[۲۹۹۹](١) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا قُرَّةُ، قَالَ: سَمِعْتُ يَزِيدَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: كُنَّا بِالْمِرْبَدِ فَجَاءَ رَجُلٌ أَشْعَثُ الرَّأْسِ بِيَدِهِ قِطْعَةُ أَدِيمٍ أَحْمَرَ، فَقُلْنَا: كَأَنَّكَ مِنْ أَهْلِ الْبَادِيَةِ، فَقَالَ: أَجَلْ قُلْنَا: نَاوِلْنَا هَذِهِ الْقِطْعَةَ الْأَدِيمَ الَّتِي فِي يَدِكَ، فَنَاوَلَنَاهَا فَقَرَأْنَاهَا فَإِذَا فِيهَا مِنْ مُحَمَّدٍ رَسُولِ اللَّهِ إِلَى بَنِي زُهَيْرِ بْنِ أُقَيْشٍ: "إِنَّكُمْ إِنْ شَهِدْتُمْ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ وَأَقَمْتُمُ الصَّلَاةَ، وَآتَيْتُمُ الزَّكَاةَ، وَأَدَّيْتُمُ الْخُمُسَ مِنَ الْمَغْنَمِ وَسَهْمَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّفِيَّ أَنْتُمْ آمِنُونَ بِأَمَانِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ"، فَقُلْنَا مَنْ كَتَبَ لَكَ هَذَا الْكِتَابَ؟ قَالَ: رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

د يزيد بن عبد الله نه روايت دې فرمائی چه مونږه په مربد مقام کښې وو په دې وخت کښې يو کس راغې اودسر ويخته ئې ګډ وډ وو او په لاس کښې ئې سره څرمن نيولې وه مونږ ورته اووئيل ته خوداسې ښکارې لکه زنګل نه چه راغلې يې هغه اووئيل هو مونږ ورته اووئيل دا څرمن مونږ ته راکړه کومه چه ستا په لاس کښې ده نومونږ ته ئې راکړه نومونږ

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٥٦٨٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٧٧، ٧٨، ٣٦٣) (صحيح الإسناد)

ولوستله اوپه هغې کښې داليکلې شوي وو دالله درسول محمد دطرف نه بنی زهير بن أقيش قبيلې ته که چرې تاسو ددې کلمې ګواهي ورکړئ لا إله إلا الله وأين محمدا رسول الله اومونځونه قائم کړئ او زکاتونه اداکړئ او غنيمت کښې خمس ورکړئ اود نبی ﷺ حصه اودصفي حصه ورکړئ نو تاسو ته دالله اودرسول دطرف نه امن دې مونږ ورته اووئيل دادرله چاليکلې دې هغه اووئيل رسول الله ﷺ

**مضمون الحديث:**

﴿سمعت يزيد بن عبدالله قال كنا بالمربد فجآء رجل اشعث الراس بيده قطعة اديم احمر فقلنا كانك من اهل البادية﴾:دا دې باب آخرى حديث دې چه د هغې ذکر مونږ سره اوس نژدې راغلې وو، د دې مضمون دا دې يزيد بن عبدالله وائی چه مونږ په مقام مربد کښې وو (په بصره کښې يو ځائې دې) نو يو سړې د خورو ورو ويښتو والا راغلو چه د هغه په لاس کښې د سرې څرمنې يو ټکړه وه (چه په هغې باندې څه ليکلې شوې دی) مونږ هغه ته اووې چه ته کلې وال معلوميږې هغه اووې او، مونږ اووې ستا په لاس کښې چه دا کومه ټکړه ده دا لږه مونږ ته راکړه هغه مونږ ته راکړې نو مونږ اوکتل چه په هغې کښې ليکلې شوې وو ﴿من محمد ﷺ الى بنى زهير بن اقيش انكم ان شهدتم ان لا اله الا الله وان محمدا رسول الله واقمتم الصلوة واتيتم الزكوة واديتم الخمس من المغنم وسهم النبى ﷺ وسهم الصفى انتم امنون بامان الله ورسوله﴾

په دې ليک کښې د رسول الله ﷺ د دوه حصو ذکر دې چه حصه د غنيمت او دويم سهم صفی، او د دې دواړو په باره کښې دا دی چه که تاسو دواړه دا ادا کوئ (سره د هغه باقی امورو نه کوم چه په خط کښې ذکر دی) نو تاسو زمونږ د طرف نه په امن يئ د دې نه معلوميږی چه د رسول الله ﷺ دپاره دواړه حصې مطلقا وې، په غزا کښې د شرکت کولو قيد نه وو، د سهم غنيمت په باره کښې نو په روايت کښې هم اتفاق دې او د علماء کرامو ترمينځه هم خو د سهم صفی په باره کښې د باب په شروع کښې چه کوم حديث کښې تير شوی دی هغه د دې خلاف دی، د حضرت ګنګوهی رحمه الله رائې د دې حديث د وجې نه د عدم تقييد ده او په تير شوی باب کښې دا تير شوی دی چه حضرت په بذل کښې ليکلې دی چه په کتب فقه کښې ماته د دې تصريح نه ده ملاؤ شوې

حديث يزيد بن عبدالله سكت عليه المنذرى وكتب الشيخ محمد عوامه ان المزی رحمه الله عزاه الى النسائى.

## بَابُ كَيْفَ كَانَ إِخْرَاجُ الْيَهُودِ مِنَ الْمَدِينَةِ

**د مدينې نه د يهوديانو ويستل په څه وجه دی؟**

**مختصر تاريخ د يهودو د غزواتو متعلق:**

ترجمة الباب يعنی كيفيت اخراج يهود من المدنية په باره کښې تاسو په دې ځآن پوهه کړئ چه يهود د چا سره چه د رسول الله ﷺ د جنګ ضرورت راغلو دوه قسمونه وو، بعض خو هغه وو کوم چه د مدينې نه بهر په خيبر کښې آباد وو، دا خيبر چه يو لوئې کلې دې د

مدينې نه په شمال مغرب کښې تقريبا د يونيم سل کلوميټر په فاصله باندې واقع دې، او بعض قبائل د يهودو وې کوم چه د مدينې او د هغې خوا په خوا علاقو کښې خورې شوې وې. په دې وجه اول خو د غزوې ضرورت راغلو د مدينې د يهودو سره چه هغوی د مدينې نه خارج کړې شو يا قتل کړې شو چه د هغې تفصيل وړاندې را روان دې، او د خيبر د يهودو سره د قتال حاجت روستو راغلو خو د فتح نه روستو هغوی د هغه ځائې نه او نه ويستلې شو بلکه د رسول الله ﷺ د هغوی سره معاهده اوشوه چه کله مسلمانان اوغواړی تاسو به اوباسی.

د دې نه پس ځان پوهه کړئ چه کله رسول الله ﷺ هجرت کولو سره مدينې طيبې ته اورسيدلو نو هغه وخت د هغه ځائې آبادی لکه چه په حديث الباب کښې را روانه ده مخلوط وه د مسلمانانو مشرکانو او يهوديانو، د مشرکانو دوه مشهور قبيلې وې اوس او خزرج چه د هغوی لقب د هغوی د مشرف باسلام کيدو نه پس انصار شو. او د يهودو درې لوئې قبيلې هلته آبادې وې بنو نضير (چه د کومو شمير په اشرافو کښې وو) او بنو قريظه (چه د کمې درجې ګنړلې کيدل) او بنو قينقاع (د عبدالله بن سلام رضي الله عنه قوم) رسول الله ﷺ مدينې طيبې ته د رسيدلو نه پس د هجرت په ړومبو وختونو کښې د مدينې د يهودو سره معاهده کړې وه د امن وامان د قائمولو. خو دې خلقو عهدونه ماتول چه په هغې باندې هغوی سره قتال کيدو، پس د ټولو نه اول بې لوظی قينقاع اوکړه دا د شوال ۲ هجری واقعه ده چه رسول الله ﷺ هغوی سره د قتال اراده اوفرمائيله نو خلق د مقابله نه بچ کيدو دپاره په قلعه ګانو کښې بند شو. رسول الله ﷺ د هغوی محاصره اوکړه، چه کله هغه د محاصرې نه تنګ شو نو جلاوطنی ئې منظور کړه او د قلعه نه راکوز شو او شام ته لاړل، د دې نه پس په ۴ هجرئ کښې د بنو نضير يهودو د مسلمانانو سره بد عهدی اوکړه د هغوی د بد عهدئ واقعه په را روان باب ﴿ باب فی خبر النضير ﴾ په متن کښې راروانه ده، پس هغوی سره مقابلې ته ضرورت راغلو نو هغه هم په قلعه ګانو کښې بند شو تردې چه عاجز کيدو سره ئې جلاوطنی قبول کړه او دا خلق د مدينې طيبې نه وتلو سره په خيبر کښې آباد شو او خيبر ګويا د يهودو مرکز او د هغوی د سازشونو اډه جوړه شوه، د بنو قريظه سره په دې موقع باندې مصالحت شوې وو، پس وړاندې په روايت کښې راځی ﴿ عن ابن عمر رضي الله عنهما ان يهود النضير وقريظة حاربوا رسول الله ﷺ فاجلی رسول الله ﷺ بنی النضير واقر قريظه ﴾ الحديث يعنی په دې موقع باندې رسول الله ﷺ بنو قريظه په مدينه طيبه کښې برقرار اوساتل، خو دې خلقو د غزوه احزاب په موقع باندې د مشرکانو ملګرتيا اوکړه پس رسول الله ﷺ د عزوه احزاب د فراغت نه پس په ۵ هجرئ کښې په هغوی باندې حمله اوکړه هغوی قلعه بند شو او هغوی مجبور کيدو سره قبيله اوس لره په مينځ کښې اچولو سره سيدنا سعد بن معاذ رضي الله عنه لره حکم جوړ کړو، هغوی د دوی د قتل فيصله ورکړه چه په هغې باندې د بنو قريظه سړی چه د هغوی تعداد په روايتونو کښې څلور سوه راځی ټول په مدينه طيبه کښې قتل کړې شو، آو دې پورته معلومه شوه چه بنو نضير د مدينې نه جدا کيدو سره په خيبر کښې

اباد شوي وو او هر وخت به ئې د مسلمانانو خلاف سازشونه کول تر دې چه په ۷ هجرئ کښې رسول الله ﷺ په هغوی پسې ور اوتلو مسلمانانو ته فتح حاصله شوه، په غنیمت کښې مسلمانانو ته ډیر زیات مال او دولت حاصل شو، علی رضي الله عنه فاتح خیبر باندې مشهور دې، باقی په دې فتح کښې هغوی د هغه ځائې نه او نه ویستلې شو بلکه معاهده اوشوه چه هغوی به هم هلته د ذمیانو په شکل اوسیږی، او د دې سره هغوی رسول الله ﷺ ته درخواست اوکړو چه تاسو خو د خپل دین د کار نه اوزګار نه یئ ستاسو کار کرونده کول نه دی، دا باغونه او زمکې مونږ ته حواله کړئ مونږ به په دې زمکو کښې کرونده کوو او تاسو ته به تیاره غله ملاویږی. رسول الله ﷺ هغوی سره په دې باندې د مزارعت معامله اوکړه چه هغې ته مخابره وائی، او د باغونو معامله ئې ورسره هم اوکړه چه هغې ته مساقات وائی دا ډیر زیاتو کهجورو باغونه وو (<sup>۱</sup>) او هغوی سره هغه وخت فیصله دا اوشوه چه تاسو دلته اوسیدو سره کرونده وغیره کوئ چه کله مسلمانان غواړی تاسو به د دې ځائې نه اوباسی، د ابوبکر صدیق رضي الله عنه د خلافت پورې خو هلته اوسیدل، چه کله د عمر رضي الله عنه د خلافت زمانه راغله نو هغوی دوی د اریحاء او تیماء طرف ته جلا وطن کړل لکه چه وړاندې په روایت کښې دی.

په شروع کښې دا مختصر تاریخ د یهودو د غزواتو او د هغوی سره جهاد اجمالی طور اولیکلې شو د دې دپاره چه په راروانو بابونو کښې او د هغې د احادیثو په فهم کښې سهولت پیدا شی. والله تعالی الموفق والمیسر

[۳۰۰۰](۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، أَنَّ الْحَكَمَ بْنَ نَافِعٍ حَدَّثَهُمْ، قَالَ: أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ أَبِيهِ، وَكَانَ أَحَدَ الثَّلَاثَةِ الَّذِينَ تِيبَ عَلَيْهِمْ، وَكَانَ كَعْبُ بْنُ الْأَشْرَفِ يَهْجُو النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيُحَرِّضُ عَلَيْهِ كُفَّارَ قُرَيْشٍ، وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ قَدِمَ الْمَدِينَةَ وَأَهْلُهَا أَخْلَاطٌ مِنْهُمُ الْمُسْلِمُونَ وَالْمُشْرِكُونَ يَعْبُدُونَ الْأَوْثَانَ وَالْيَهُودُ، وَكَانُوا يُؤْذُونَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابَهُ فَأَمَرَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ نَبِيَّهُ بِالصَّبْرِ وَالْعَفْوِ فَفِيهِمْ أَنْزَلَ اللَّهُ: وَلَتَسْمَعُنَّ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِكُمْ سورة آل عمران آية ۱۸۶ الْآيَةَ، فَلَمَّا أَبَى كَعْبُ بْنُ الْأَشْرَفِ أَنْ يَنْزِعَ عَنْ أَذَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَعْدَ بْنَ مُعَاذٍ أَنْ يَبْعَثَ رَهْطًا يَقْتُلُونَهُ، فَبَعَثَ مُحَمَّدَ بْنَ مَسْلَمَةَ وَذَكَرَ قِصَّةَ قَتْلِهِ، فَلَمَّا قَتَلُوهُ فَزِعَتِ الْيَهُودُ وَالْمُشْرِكُونَ فَغَدَوْا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالُوا: طُرِقَ صَاحِبُنَا فَقُتِلَ، فَذَكَرَ لَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِي كَانَ يَقُولُ: وَدَعَاهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى أَنْ يَكْتُبَ بَيْنَهُ كِتَابًا يَنْتَهُونَ إِلَى مَا فِيهِ، فَكَتَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُمْ وَبَيْنَ الْمُسْلِمِينَ عَامَّةً صَحِيفَةً.

کعب بن مالك نه د خپل پلار نه روایت کوی اودې په هغه درې کسانو کښې وو چه توبه ئې قبوله شوې وه (په غزوه تبوك کښې دنه شریک کیدو په وجه)او کعب بن اشرف یهودې به د نبی عليه السلام بد بیانول اوقریشو مشرکان به ئې جنګ ته راپارول نبی عليه السلام چه کله مدینې ته

<sup>۱</sup>) پس په دې باغونو کښې د یو باغ نوم کتیبه وو چه د هغې ذکر په (باب ما جآء في حکم ارض خیبر) په یو روایت کښې داسې دې چه د امام مالك رحمه الله نه د هغه شاګرد تپوس اوکړو چه کتیبه څه څیز دې؟ نو هغوی جواب ورکړو چه د خیبر یو باغ دې چه په هغې کښې د څلویښت زره د کهجورو اونې وې.

<sup>۲</sup>): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۵۲) (صحيح الإسناد)

راغي نو دهغه په وخت کښې په مدينه کښې هرمذهب والاخلق موجود وو په هغې کښې مسلمانان هم وو او مشرکين هم وو چاچه به دبتانو عبادت کرو اوبعضې يهوديان چه نبی ﷺ اوصحابه کراموته به ئې تکليفونه رسول الله تعالى خپل پيغمبرته دصبر حکم اوکړو په دې سلسله کښې دا ايت: «ولتسمعن من الذين أوتوا الکتاب من قبلکم» نازل شو کله چه کعب بن اشرف نبی ﷺ ته دتکليف رسولونه منع نه شو نونبی ﷺ سعد بن معاذ به ته حکم اوکړو چه دکعب بن اشرف دوژلو دپاره يوځوکسان اوليږي نوهغه محمد بن مسلمه اوليږو، اودقتل واقعه ئې داسې بيان کړه کله چه دوی کعب بن اشرف قتل کړو نومشرکين او يهوديان اويريدل اوسحر دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شول اووئې وئيل چه زمونږ مشر کعب بن اشرف دشپې قتل کړې شوې دې نبی ﷺ دوی ته هغه خبرې بيان کړې کوم چه به ده حجره کوله ددې نه پس نبی ﷺ دې خلقوته اوفرمائيل چه اوس زمونږه اوستاسوپه مينځ کښې يوه معاهده ليکل پکاردي په کومې باندې چه به دواړه ډلې قائم وي، نونبی ﷺ ددې خلقو اودخپل ځان اودنورو مسلمانانو دپاره يوعام قرار داد تحريرکړو.

﴿عن عبدالرحمن بن عبدالله بن کعب بن مالک عن ابيه... وکان احد الثلاثة الذين تيب عليهم﴾

عبدالرحمن د خپل پلار عبدالله بن کعب نه روايت کوی، وړاندې په روايت کښې دی ﴿وکان احد الثلاثة﴾ ضمير په ظاهر کښې د عبدالله طرف ته واپس کيږی، خو هغه مراد نه دې بلکه د هغه پلار کعب بن مالک مراد دې (دا امر قابل تنبيه دې ګڼې د عبارت د ظاهر نه د حقيقت د خلاف شبه پيدا کيږی)

## د کعب بن اشرف يهودی د قتل قصه:

دا کعب بن الاشرف يهودی د بنوقينقاع نه وو ډير د لوئې شان والا او شعر قسم سړې وو او ډير زيات ضرری وو، د رسول الله ﷺ به ئې په شعرونو کښې بدی بيانوله (والعياذ بالله)، او د قريشو کفار به ئې د مسلمانانو خلاف راپاسول، وړاندې راوی وائی چه کله رسول الله ﷺ مدينې طيبې ته تشريف راوړو نو د هغه ځائې آبادی مخلوط (يعنی خلق پکښې ګډ وډ اوسيدل) مسلمانان او مشرکان او يهوديان ټول پکښې اوسيدل او دې يهودی به رسول الله ﷺ او صحابه کرامو ﷺ ته تکليف ورکولو، الله پاک خپل نبی ﷺ ته د عفو او صبر حکم کولو، پس رسول الله ﷺ هم هغوی معاف کول ﴿فلما ابی کعب بن الاشرف ان ينزع عن اذی النبی ﷺ امر النبی ﷺ سعد بن معاذ ان يبعث رهطا يقتلونه فبعث محمد بن مسلمة﴾

يعنی هر کله کعب بن اشرف رسول الله ﷺ ته د تکليف ورکولو نه قلار نه شو نو رسول الله ﷺ سعد بن معاذ ﷺ ته حکم اوکړو چه يو جماعت د هغه په قتل پسې اوليږی، پس هغوی محمد بن مسلمة ﷺ وغيره اوليږلو، وړاندې په روايت کښې دی چه کله کعب بن الاشرف قتل کړې شو کوم چه د هغوی د يو اهم سړی قتل وو نو په دې باندې يهود او مشرکين ټول اويريدل او چونکه دا قصه د هغه د قتل د شپې راغلې وه په دې وجه دا خلق سحر وختی د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او هغوی ته ئې شکايت اوکړو چه د شپې زمونږ فلانې سړې قتل کړې شوې دې. نو رسول الله ﷺ هغوی ته د هغه د شرارتونو او

د هغه د تکلیف ورکولو تذکره اوکړه، بیا رسول الله ﷺ د هغوی مخې ته د معاهدې خبره اوکړه، پس عهد نامه اولیکلې شوه، په روایت کښې هم دومره دی.

خو صرف په دې سره ترجمة الباب ښکاره نه شو په دې وجه دا به وئیلې شی چه په دې حدیث کښې د معاهدې ذکر دې نو سبب جوړ شو د هغوی د اخراج ځکه چه هغوی په خپله معاهده باندې قائم پاتې نه شو او عهد ئې مات کړو هم په دې باندې هغوی سره قتال اوشو او هغوی ویستلې شو.

په دې روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ د کعب د قتل حکم سعد بن معاذ رضی الله عنه ته ورکړو، حال دا چه د دې نه مخکښې په کتاب الجهاد کښې ﴿ باب العدو یوتی علی غرة ﴾ کښې دا تیر شوی دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿ من الکعب بن الاشرف؟ فقام محمد بن مسلمة بطوله ﴾ چه په هغې کښې د هغه د قتل تفصیل ذکر کړې شوې دې، د دې اشکال جواب به په ظاهر کښې هلته تیر شوې وی هغه دا چه اصل خو هم روایت دې کوم چه مخکښې تیر شو خو چه کله محمد بن مسلمة د قتل دپاره تیار شو نو رسول الله ﷺ اوغوښتل چه د هغوی سره څو کسان نور کړی پس سعد بن معاذ رضی الله عنه وغیره ئې د هغوی سره اولیږل.

دا قتل د کعب په ربیع الاول ۳ هجرئ کښې راپیښ شو. او په دې روایت کښې دی چه د یهودو سره معاهده د هغه واقعې نه پس اوشوه، د دې نه دا نتیجه راووتله چه د یهودو سره د معاهدې شروع د ۳ هجرئ نه ده.

وقد اخرج البخاری ومسلم وابوداؤد والنسائی قتل کعب بن الاشرف اتم من هذا، وقد تقدم فی کتاب الجهاد، قاله المنذری

[۳۰۰۱](۱) حَدَّثَنَا مُصَرِّفُ بْنُ عَمْرٍو الْأَيَامِيُّ، حَدَّثَنَا يُونُسُ يَعْنِي ابْنَ بُكَيْرٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي مُحَمَّدٍ مَوْلَى زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، وَعِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: لَمَّا أَصَابَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُرَيْشًا يَوْمَ بَدْرٍ وَقَدِمَ الْمَدِينَةَ جَمَعَ الْيَهُودَ فِي سُوقِ بَنِي قَيْنُقَاعَ، فَقَالَ: "يَا مَعْشَرَ يَهُودَ أَسْلِمُوا قَبْلَ أَنْ يُصِيبَكُمْ مِثْلُ مَا أَصَابَ قُرَيْشًا"، قَالُوا: يَا مُحَمَّدُ لَا يَغُرَّنَّكَ مِنْ نَفْسِكَ أَنَّكَ قَتَلْتَ نَفَرًا مِنْ قُرَيْشٍ كَانُوا أَغْمَارًا لَا يَعْرِفُونَ الْقِتَالَ إِنَّكَ لَوْ قَاتَلْتَنَا لَعَرَفْتَ أَنَّا نَحْنُ النَّاسُ وَأَنَّكَ لَمْ تَلْقَ مِثْلَنَا، فَأَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ فِي ذَلِكَ: قُلْ لِلَّذِينَ كَفَرُوا سَتُغْلَبُونَ سورة آل عمران آية ١٢ قَرَأَ مُصَرِّفٌ إِلَى قَوْلِهِ فِئَةٌ تُقَاتِلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ سورة آل عمران آية ١٣ بِبَدْرٍ وَأُخْرَى كَافِرَةٌ سورة آل عمران آية ١٣.

دابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه کله نبی علیه السلام په غزوه بدر کښې په مشرکینو غالب شواومدینې ته واپس راغې نودبنی قینقاع په بازارکښې ئې یهودیان جمع کړل او وې فرمائیل ای یهودیانو ددې نه مخکښې چه ستاسوهم هغه حالت شي کوم چه دقریشوشو اسلام قبول کړئ هغوی ووئیل ای محمد ﷺ ته په دې خبره باندې مه غره کیږه چه تادقریشویو څوکسان قتل کړل څوک چه دجنګ نه ناواقفه وو او تجربه ئې نه وه که چرې تازمونږ په شان خلقوسره جنګ کړې وې نوتاته به معلومه شوې وه چه مونږ څومره بهادر او تجربه کاریو اوتربیت یافته یوستازمونږ په شان خلقوسره واسطه نده راغلې نوپه دې وخت

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٦٠٦) (ضعيف الإسناد)

کښې الله تعالی دا ایت: «قل للذین کفروا ستغلبون» نازل کړو
﴿عن ابن عباس رضي الله عنهما قال لما اصاب رسول الله ﷺ قریشا یوم بدر وقدم المدینة جمع الیهود فی سوق بنی قینقاع فقال : یا معشر یهود اسلموا قبل ان یصیبکم مثل ما اصاب الخ﴾

**مضمون الحدیث :**

یعنی رسول الله ﷺ چه کله په جنګ بدر کښې په قریشو باندې برې بیا موندلو او د بدر نه مدینې طیبې ته واپس شو نو رسول الله ﷺ یهود جمع کړل او وې فرمائیل چه تاسو اسلام راوړئ مخکښې د دې نه چه په تاسو هم هغه مصیبت راشی کوم چه په قریشو باندې راغلو، په دې باندې هغوی جواب ورکړو چه ګوره تاسو دې دا څیز په دهوکه کښې نه اچوی چه تاسو د قریشو څو افرادو لره قتل کړل، ﴿کانوا اغمارا﴾ (دا د غمر جمع ده په معنی د ناتجربه کار او ناپوهه) چه ناپوهه وو، په جنګ باندې نه پوهیدل، د جنګ د طریقو نه خبر نه دی، تاسو مونږ سره جنګ اوکړئ نو تاسو ته به پته اولګی چه صرف مونږ یعنی یهود انسانان یو، او ستاسو هم لا زمونږ په شان خلقو سره مقابله نه ده راغلې په دې باندې دا آیت کریمه نازل شو ﴿قل للذین کفروا ستغلبون وتحشرون الی جهنم﴾

[۳۰۰۲](۱) حَدَّثَنَا مُصَرِّفُ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا يُونُسُ، قَالَ ابْنُ إِسْحَاقَ حَدَّثَنِي مَوْلًى لِزَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، حَدَّثَتْنِي ابْنَةُ مُحَيِّصَةَ، عَنْ أَبِيهَا مُحَيِّصَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ ظَفِرْتُمْ بِهِ مِنْ رِجَالِ يَهُودَ فَاقْتُلُوهُ"، فَوَثَبَ مُحَيِّصَةُ عَلَى شَبِيبَةَ رَجُلٍ مِنْ تُجَّارِ يَهُودَ كَانَ يُلَابِسُهُمْ فَقَتَلَهُ وَكَانَ حُوَيِّصَةُ إِذْ ذَاكَ لَمْ يُسْلِمْ وَكَانَ أَسَنَّ مِنْ مُحَيِّصَةَ، فَلَمَّا قَتَلَهُ جَعَلَ حُوَيِّصَةُ يَضْرِبُهُ، وَيَقُولُ: يَا عَدُوَّ اللَّهِ أَمَا وَاللَّهِ لَرُبَّ شَحْمٍ فِي بَطْنِكَ مِنْ مَالِهِ.

د محیصة رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی په یهودیانو کښې چه څوک تاسو ته ملاو شی نو قتل ئې کړئ نو محیصة دیهودیانو په تاجرانو کښې په یو تاجر حمله وکړه اوقتل ئې کړو، په دې وخت کښې د محیصة دیهودیانو سره تعلق وو اوتردې وخته پورې دمحیصه ورور اسلام هم نه وو قبول کړې اوهغه دمحیصه نه مشروو کله چه محیصه دا سړې قتل کړونودې به ئې وهلو ټکولو او ورته به ئې وئیل چه اې دالله دشمنه ستا په خیټه کښې دهغه دمال ډیره چربی ده.

﴿حدثنی بنت محیصة عن ابیها محیصة ان رسول الله ﷺ قال من ظفرتم به من رجال الیهود فاقتلوه﴾
یعنی یوه ورځ رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د یهودو په سړې کښې چه څوک هم ملاؤ شی هغه قتل کړئ، نو د حدیث راوی محیصه خپله د ځان په باره کښې وائی چه یو یهودی شبیبه نومې چه په سوداګرو یهودیانو کښې وو او د هغه د محیصه سره استوګنه او لین دین وو (خو چونکه د رسول الله ﷺ ارشاد وو په دې وجه محیصه) هغه قتل کړو او د محیصه مشر رور حویصه چه هغه وخت ئې اسلام نه وو راوړې هغه ته په دې باندې ډیره غصه ورغله، هغه راولګیدو د محیصه په وهلو باندې او وئیل به ئې ﴿ای عدوالله اما والله لرب شحم فی بطنک من ماله﴾ چه اې د الله پاک دشمنه ستا په خیټه کښې ډیره وازګه د هغه

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۲۴۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵/۴۳۷، ۴۳۵) (ضعیف)

د مال نه پيدا شوې ده څوک چه تا قتل کړو.

[۳۰۰۳]() حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّهُ قَالَ: بَيْنَا نَحْنُ فِي الْمَسْجِدِ إِذْ خَرَجَ إِلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: "انْطَلِقُوا إِلَى يَهُودَ، فَخَرَجْنَا مَعَهُ حَتَّى جِئْنَاهُمْ، فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَادَاهُمْ فَقَالَ: يَا مَعْشَرَ يَهُودَ أَسْلِمُوا تَسْلَمُوا، فَقَالُوا: قَدْ بَلَّغْتَ يَا أَبَا الْقَاسِمِ، فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَسْلِمُوا تَسْلَمُوا فَقَالُوا: قَدْ بَلَّغْتَ يَا أَبَا الْقَاسِمِ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ذَلِكَ أُرِيدُ، ثُمَّ قَالَهَا الثَّالِثَةَ: اعْلَمُوا أَنَّمَا الْأَرْضُ لِلَّهِ وَرَسُولِهِ وَإِنِّي أُرِيدُ أَنْ أُجْلِيَكُمْ مِنْ هَذِهِ الْأَرْضِ فَمَنْ وَجَدَ مِنْكُمْ بِمَالِهِ شَيْئًا فَلْيَبِعْهُ وَإِلَّا فَاعْلَمُوا أَنَّمَا الْأَرْضُ لِلَّهِ وَرَسُولِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

دابوهريره نه روايت دې فرمائی چه مونږ په جومات کښې ناست وو او يکدم نبی ﷺ مونږ ته راغې اومونږ ته ئې اوفرمائيل چه ديهوديانو طرف ته لاړ شئ مونږ دنبی ﷺ سره روان شو تردې چه ديهوديانو رهائش ګاهونو ته اورسيدو چه نبی ﷺ پاڅيدو او هغه خلق ـ ئې راوغوښتل اووئې فرمائيل اې يهوديانو اسلام قبول کړئ ددې دپاره چه محفوظ پاتې شئ مونږ جواب ورکړو چه اې ابوالقاسم تاخلقوته خپل پيغام اورسوو نبی ﷺ خپله خبره دغه خلقوته دوباره اوفرمائيله مونږ هم هغسې جواب ورکړو ددې نه پس بيانبی ﷺ اوفرمائيل همداز مامقصد وو او په دريم ځل ئې بيا هم هغسې اوفرمائيل، يقينا زمکه دالله ده اودهغه درسول ده اوزماستاسو دشړلو اراده ده نو په تاسو کښې چه دچا دخپل مال سره محبت وي هغه دې خپل مال خرڅ کړي ګنی داسې وګڼړئ چه زمکه دالله اودرسول ده.

﴿ عن ابی هريرة ﷺ انه قال بينا نحن فی المسجد اذ خرج الينا رسول الله ﷺ فقال انطلقوا الی يهود فخرجنا معه حتی جئناهم ﴾

## مضمون د حديث:

ابوهريره ﷺ فرمائی چه مونږ ډير خلق په مسجد کښې ناست وو، ناڅاپه رسول الله ﷺ تشريف راوړو زمونږ طرف ته، پس وې فرمائيل چه ځائې د يهودو طرف ته، مونږ د هغوی سره روان شو تر دې چه رسول الله ﷺ هغوی ته اورسيدلو، رسول الله ﷺ هلته اودريدلو او هغوی ته ئې آواز ورکولو سره اوفرمائيل ﴿ يا معشر يهود اسلموا تسلموا ﴾ چه اې يهوديانو! اسلام راوړئ چه صحيح و سالم پاتې شئ (ګينې ستاسو خير نشته) هغوی اووې چه ﴿ قد بلغت اباالقاسم (ﷺ) ﴾ چه تا خپله خبره مونږ ته رارسولې ده، رسول الله ﷺ بيا هم دا اوفرمائيل هغوی بيا هم دا د رسول الله ﷺ په جواب کښې اووې، په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ ذلک اريد ﴾ چه او ما هو دا غوښتله (چه تاسو زما د تبليغ اقرار اوکړئ) او د دې نه پس بيا رسول الله ﷺ اوفرمائيل: پوهه شئ چه دا زمکه د الله او د هغه د رسول ﷺ ده، او زه ستاسو د دې نه د ويستلو اراده لرم، پس کوم سړې چه په تاسو کښې د خپل مال په بدله کښې څه حاصلول غواړی، نو هغه دې خرڅ کړی، يعنی کوم مال چه ستاسو داسې دې چه تاسو ئې په اوړولو سره اوړې شئ هغه ځان سره يوسئ، او کوم چه نه

[1]): صحيح البخاري/الجزية ٦ (٣١٦٧)، والإكراه ٢ (٦٩٤٤)، والاعتصام ١٨ (٧٣٤٨)، صحيح مسلم/الجهاد ٢٠ (١٧٦٥)، (تحفة الأشراف: ١٤٣١٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٤٥١) (صحيح)

شئ اوړي او د هغې عوض تاسو ته دلته ملاويدې شي يعنى د يو اخستونكى نه نو هغه خرڅ كړئ، او كه نه ئې خرڅوې نو نقصان به هم ستاسو وى او په دې خو ځان ښه پوهه كړئ چه زمكه خو زمونږ ده.

بنو نضير چه د مسلمانانو په محاصره باندې قلعه بند شوې وو نو هغوى د جلاوطنئ شرط منلو سره لاندې راكوز شو په دې طريقه چه كوم سامان د نقل قابل دې چه هغه تاسو هرڅنګه چه اوړئ يوسئ، زمكه چه ده هغه خو د الله پاك د رسول ﷺ شوه، پس هغوى د هغه منقولاتو په منتقل كولو كښې هيڅ كمې پرې نخودلو، دروازې او چوكاټونو پورې ئې ځان سره يوړل په دې آيت كريمه كښې دې طرف ته هم اشاره ده ﴿يخربون بيوتهم بايديهم وايدى المومنين﴾

**يو اشكال او جواب:**

په دې حديث كښې په ظاهره دا دى چه د بنو نضير د يهودو ذكر دې، د روايت د سياق نه هم دا معلوميږى. ځكه چه هغوى نه خو خالص په مدينه طيبه كښې وو او نه په زياته فاصله باندې چه د هغې دپاره اوږد مزل اوكړې شى يا د سورلئ ضرورت راشى، مختصر شان مزل وو چه پيدل تلو سره هلته اورسيدل لكه چه د روايت نه معلوميږى، خو په دې باندې اشكال دا راځى چه د هغوى اجلاء په څلورمه هجرئ كښې شوې وه او دلته د دې قصې راوى ابوهريره رضي الله عنه دې چه د هغه اسلام په اوومه هجرئ كښې دې نو بيا د ابوهريره رضي الله عنه خروج د رسول الله ﷺ څنګه كيدې شى. د دې توجيه دا كړې شوې ده چه د دې نه ټول بنو نضير نه دى مراد بلكه په هغوى كښې بعض او بقايا چه كوم هلته پاتې شوې وى او يا دې بيا دا اوئيلې شى چه حديث مرسل صحابى دې، ﴿كما تقدم هذا التوجيه فى حديث ذى اليدين﴾

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي، قاله المنذري

## بَابٌ فِي خَبَرِ النَّضِيرِ

### د بنو نضير د جلاوطن كولو بيان

﴿اى فى بيان ما فعلوا بالنبى ﷺ واصحابه وما آل اليه امرهم من اخراجهم واجلائهم من المدينة﴾

په دې باب كښې مصنف رحمه الله هغه حديث ذكر كوى چه په هغې كښې د بنو نضير د عهد ماتولو او د غدارئ ذكر دې چه د هغې په نتيجه كښې رسول الله ﷺ او صحابه كرامو رضي الله عنهم په هغوى باندې حمله اوكړه، چه په هغې باندې هغوى عاجز كيدو سره هغوى د جلاوطنئ په شرط باندې لاندې راكوز شو او مدينه طيبه ئې پريخودله او لاړل، مسلمانانو سره هغوى څنګه دهوكه كول غوښتل هغه به وړاندې راشى.

[۳۰۰٤](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ دَاوُدَ بْنِ سُفْيَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَنَّ كُفَّارَ قُرَيْشٍ كَتَبُوا إِلَى ابْنِ أُبَيٍّ وَمَنْ كَانَ يَعْبُدُ مَعَهُ الْأَوْثَانَ مِنَ الْأَوْسِ وَالْخَزْرَجِ، وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَئِذٍ بِالْمَدِينَةِ قَبْلَ وَقْعَةِ بَدْرٍ: إِنَّكُمْ آوَيْتُمْ صَاحِبَنَا وَإِنَّا نُقْسِمُ بِاللهِ لَتُقَاتِلُنَّهُ أَوْ لَتُخْرِجُنَّهُ أَوْ لَنَسِيرَنَّ إِلَيْكُمْ بِأَجْمَعِنَا حَتَّى نَقْتُلَ مُقَاتِلَتَكُمْ وَنَسْتَبِيحَ

(١) تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٦٢٢) (صحيح الإسناد)

نِسَاءَكُمْ، فَلَمَّا بَلَغَ ذَلِكَ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ أُبَيٍّ وَمَنْ كَانَ مَعَهُ مِنْ عَبَدَةِ الْأَوْثَانِ اجْتَمَعُوا لِقِتَالِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمَّا بَلَغَ ذَلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقِيَهُمْ فَقَالَ: "لَقَدْ بَلَغَ وَعِيدُ قُرَيْشٍ مِنْكُمُ الْمَبَالِغَ مَا كَانَتْ تَكِيدُكُمْ بِأَكْثَرَ مِمَّا تُرِيدُونَ أَنْ تَكِيدُوا بِهِ أَنْفُسَكُمْ تُرِيدُونَ أَنْ تُقَاتِلُوا أَبْنَاءَكُمْ وَإِخْوَانَكُمْ، فَلَمَّا سَمِعُوا ذَلِكَ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَفَرَّقُوا، فَبَلَغَ ذَلِكَ كُفَّارَ قُرَيْشٍ فَكَتَبَتْ كُفَّارُ قُرَيْشٍ بَعْدَ وَقْعَةِ بَدْرٍ إِلَى الْيَهُودِ إِنَّكُمْ أَهْلُ الْحَلْقَةِ وَالْحُصُونِ وَإِنَّكُمْ لَتُقَاتِلُنَّ صَاحِبَنَا أَوْ لَنَفْعَلَنَّ كَذَا وَكَذَا وَلَا يَحُولُ بَيْنَنَا وَبَيْنَ خَدَمِ نِسَائِكُمْ شَيْءٌ وَهِيَ الْخَلَاخِيلُ، فَلَمَّا بَلَغَ كِتَابُهُمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَجْمَعَتْ بَنُو النَّضِيرِ بِالْغَدْرِ، فَأَرْسَلُوا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اخْرُجْ إِلَيْنَا فِي ثَلَاثِينَ رَجُلًا مِنْ أَصْحَابِكَ وَلْيَخْرُجْ مِنَّا ثَلَاثُونَ حَبْرًا حَتَّى نَلْتَقِيَ بِمَكَانِ الْمَنْصَفِ فَيَسْمَعُوا مِنْكَ فَإِنْ صَدَّقُوكَ وَآمَنُوا بِكَ آمَنَّا بِكَ فَقَصَّ خَبَرَهُمْ، فَلَمَّا كَانَ الْغَدُ غَدَا عَلَيْهِمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْكَتَائِبِ فَحَصَرَهُمْ فَقَالَ: لَهُمْ إِنَّكُمْ وَاللَّهِ لَا تَأْمَنُونَ عِنْدِي إِلَّا بِعَهْدٍ تُعَاهِدُونِي عَلَيْهِ"، فَأَبَوْا أَنْ يُعْطُوهُ عَهْدًا فَقَاتَلَهُمْ يَوْمَهُمْ ذَلِكَ، ثُمَّ غَدَا الْغَدُ عَلَى بَنِي قُرَيْظَةَ بِالْكَتَائِبِ وَتَرَكَ بَنِي النَّضِيرِ وَدَعَاهُمْ إِلَى أَنْ يُعَاهِدُوهُ فَعَاهَدُوهُ فَانْصَرَفَ عَنْهُمْ وَغَدَا عَلَى بَنِي النَّضِيرِ بِالْكَتَائِبِ فَقَاتَلَهُمْ حَتَّى نَزَلُوا عَلَى الْجَلَاءِ فَجَلَتْ بَنُو النَّضِيرِ وَاحْتَمَلُوا مَا أَقَلَّتِ الْإِبِلُ مِنْ أَمْتِعَتِهِمْ وَأَبْوَابِ بُيُوتِهِمْ وَخَشَبِهَا، فَكَانَ نَخْلُ بَنِي النَّضِيرِ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاصَّةً أَعْطَاهُ اللَّهُ إِيَّاهَا وَخَصَّهُ بِهَا فَقَالَ: وَمَا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ مِنْهُمْ فَمَا أَوْجَفْتُمْ عَلَيْهِ مِنْ خَيْلٍ وَلَا رِكَابٍ سورة الحشر آية ٦، يَقُولُ: بِغَيْرِ قِتَالٍ، فَأَعْطَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكْثَرَهَا لِلْمُهَاجِرِينَ، وَقَسَمَهَا بَيْنَهُمْ وَقَسَمَ مِنْهَا لِرَجُلَيْنِ مِنَ الْأَنْصَارِ، وَكَانَا ذَوِي حَاجَةٍ لَمْ يَقْسِمْ لِأَحَدٍ مِنَ الْأَنْصَارِ غَيْرِهِمَا، وَبَقِيَ مِنْهَا صَدَقَةُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّتِي فِي أَيْدِي بَنِي فَاطِمَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا.

عبدالرحمن بن كعب بن مالك په صحابه كرامو كښې ديو كس نه روايت كوى چه د قريشو كافرانو ابن أبى او هغه چاته اوليكل چه دده سره ئې دبوتانو عبادت كوو داوس اودخزرج قبيلې نه اونبى عليه السلام په دغه وخت كښې په مدينه كښې وو دغزوه بدرد واقعې نه مخكښې چه خلقو زمونږ ملګرې ته ځائې وركړې دې او مونږ په الله باندې قسم كوو چه مونږ به ورسره جنګ كوو اويادا چه تاسو به ئې اوباسئ اويادا چه مونږ به په شريكه په تاسو باندې حمله كوو تردې چه په تاسو كښې چه څوك جنګ كولې شى هغه به مره كړو او ستاسې ښځې به مونږ ته پاتې شي هركله چه داخبر عبدالله بن أبى او هغه كسانو ته اورسيدو چه دهغه سره ئې دبانو عبادت كوو دنبى عليه السلام سره دجنګ دپاره راجمع شول هركله چه نبى عليه السلام ته داخبر ورسيدو نبى عليه السلام دوى ته ورغې اودوى ته ئې اووئيل دقريشو خلقو چه تاسو ته كومه دهمكې دركړې ده هغه ستاسو په خيال كښې لويه دهمكې ده اوحال دادې چه قريشيان تاسو ته دومره نقصان نه شى درسولى څومره نقصان چه تاسو پخپله ځان ته رسوئ ځكه چه تاسو به په خپل مينځ كښې دخپلو ورنړو اوخامنو سره اوجنګيږئ، كله چه دې خلقو دنبى عليه السلام داخطاب واوريدو نوجدا جدا شول بيا د قريش كافرانو ته داخبر اورسيدو نو هغوى دغزوه بدرنه پس يهوديانو ته خطونه اوليږل چه تاسو دمضبوطو قلاګانو او كورونو والا ئې (يعنى مال واسباب درسره موجود دې) تاسو زمونږ ددې ملګرې سره جنګ وكړئ ګنى مونږ به داسې اوكړو يعنى مونږ به مومره كړو اوهيڅوك به ستاسو دښځو پانزيب زمونږ نه بچ نكړې، كله چه دبنونضير قبيلې يهوديانو ته داتحرير ورسيدو نو دوى دمكر وفريب جوړولو دپاره ئې په دوكه كولو باندې اتفاق اوكړو اونبى عليه السلام ته ئې جواب راوليږلو

چه دخپلو ديرشو ملګرو سره راشه اوزمونږ به هم ديرش کسان علماء درشي اود دريمګړوپه ځائ کښي به ديوبل سره مخامخ شو هغوی به ستا خبره واوري که چرې ستا خبره ئې ريښتيا وګڼله او په تائې ايمان راوړو نومونږ به هم په تا ايمان راوړو نبی ﷺ داخبر ټولو صحابه کراموته ورسوو هرکله چه بله ورځ سحر شو نو نبی ﷺ دځان سره لښکر بوتلو او بيرته ئې اوفرمائيل په الله تعالی مې دي قسم وي ترڅوچه تاسوماته اقرار اونکړئ زماپه تاسو اعتبار نشته دوی داقرار اولوظ کولونه انکار اوکړو ځکه چه ددوی نيت خراب وو،نبی ﷺ ددوی سره ټوله ورځ جنګ اوکړو اوبله ورځ نبی ﷺ دبنی قريضه يهوديانوته ديولري لښکر سره لاړو اوبنی نضيرئې پريښودو اودوی ته ئې اوونيل تاسو لوظ اوکړئ چنانچه دوی معاهده اوکړه بله ورځ سحر بيانبی ﷺ دخپلو فوجونوسره بنی نضيرته واپس راغلل او ددوی سره ئې جنګ اوکړو تردې چه هغوی په وطن پريښودوباندې راضي شو، بيا هغوی وطن پريښودو او ددوی اوښانوچه څومره سامان اوړې شو هغه سامان اودکورونودروازي اوکړکياني ماتي کړي اودځان سره ئې يوړل او ددوی دکجورو باغونه دنبی ﷺ لاس ته راغلل کوم چه الله تعالی په خاص طور سره دوی ته ورکړل او وئې فرمائيل : «وما أفاء الله على رسوله منهم فما أوجفتم عليه من خيل ولا ركاب» يعنی دغه مال تاسوته بغيردجنګ نه حاصل کړو،بيانبی ﷺ ددې مال زياته حصه مهاجرينوته ورکړه او په دوی ئې تقسيم کړو اودوه انصاريانوته ئې هم ورکړو کوم چه ضرورت مند وو اونورو انصاريانوته ئې ورنکړو اوڅومره چه باقي پاتې شو هغه دنبی ﷺ صدقه وګرځولې شوه، کومه چه دفاطمې ﷺ په استعمال کښي راغلې وه هغه صدقه وه.

﴿ عن رجل من اصحاب النبیﷺ ان كفار قريش كتبوا الى ابن ابی ومن كان يعبد معه من الاوثان من الاوس والخزرج ﴾

## مضمون د حديث :

دا د د جنګ بدر نه مخکښې واقعه ده چه کفار قريش رئيس المنافقين عبدالله بن ابی چه د مشرکانو نه وو او کوم چه د هغه سره نور مشرکان وو په اوس او خزرج کښې، هغوی ته ئې دا اوليکل چه تاسو زمونږ سړی ته پناه ورکړې ده او هغه ځان مو سره ساتلی دې (يعنی رسول اللهﷺ) مونږ تاسو ته خبرداريځ درکوو چه يا خو تاسو د هغه سره قتال اوکړئ او يا هغه د دغه ځائې نه اوباسئ، ګينې مونږ ټول قسم خورو چه مونږ د مکې خلق به په تاسو باندې حمله اوکړو، ستاسو مقاتلين يعنی سړی به قتل کړو او ستاسو زنانه به د خپل ځان دپاره مباح کړو، چه کله عبدالله بن ابی ته د هغوی دا خط او دهمکی راورسيدله نو هغوی د رسول اللهﷺ سره د جنګ دپاره جمع شو، چه کله رسول اللهﷺ ته د دې خبرې خبر اوشو نو رسول اللهﷺ هغوی ته تشريف يوړو د ملاقات دپاره، چه کله هغوی هلته اورسيدل نو رسول اللهﷺ د خلقو مخې ته دا خبره کيخودله چه ماته معلومه شوې ده چه تاسو ته د قريشو د طرف نه حد درجه وعيد رارسيدلې دې، ګورئ دا قريش تاسو ته دومره نقصان نه شي در رسولې څومره چه تاسو خپل ځان ته د نقصان رسولو اراده لرئ، بيا په وړاندې

جملې سره رسول اللهﷺ د دې وضاحت اوکړو ﴿تریدون ان تقاتلوا ابناءکم واخوانکم ﴾ یعنی تاسو په خپل لاس باندې خپل اولاد او رونړه قتلول غواړئ، مطلب دا وو چه په تاسو کښې د بعضو رونړه او د بعضو اولاد او نور خپلوان اسلام راوړلو سره زمونږ ملګری شوی دی نو په دې صورت کښې په مسلمانانو باندې حمله کول خپله په خپلو خلقو باندې حمله کول دی. وړاندې په روایت کښې دی چه کله هغه خلقو د رسول اللهﷺ تقریر واوریدو نو هغه ټول خلق چه د قتال دپاره جمع شوې وو منتشر شو د دې ټولې خبرې خبر کفار قریش ته هم اوشو، نو اوس کفار قریش دوباره لیکل اوکړل او دا د جنګ بدر نه روستو خبره ده، او دې ځل په ځائې د مشرکینو یهودو طرف ته ئې هغه خط اولیکلو چه د هغې مضمون دا دې چه بیشکه تاسو د وسلې والا او قلعه ګانو والا یئ (داسې یئ او داسې یئ) یا خو تاسو زمونږ سړې قتل کړئ ګینې مونږ به ستاسو سره داسې او داسې اوکړو او زمونږ ترمینځهٔ او ستاسو د ښځو د پازیبونو ترمینځه به هیڅ یو څیز حائل نه شی، یعنی د هغوی عزت به لوټ کړو، (خدم جمع د خدمة ده یعنی پازیب کوم چه راوی بیانوی) وهی الخلاخیل......

﴿فلما بلغ کتابهم النبی ﷺ ﴾ یعنی کله چه د هغوی دا خط رسول اللهﷺ ته راغلو، دلته دا اشکال دې چه هغه خط خو د یهودو په نوم وو نو رسول اللهﷺ ته څنګه راورسیدو پس د درمنثور په روایت کښې دی چه ﴿ فلما بلغ کتابهم الیهود ﴾ جواب دا دې چه دلته تقدیر د عبارت دا دې ﴿ فلما بلغ خبر کتابهم ﴾ اصل خط مراد نه دې بلکه د هغې خبر. وړاندې روایت کښې دې﴿اجتمعت بنو نضیر بالغدرفارسلوا الی النبی ﷺ اخرج الینا فی ثلاثین رجلا من اصحابک﴾

## د بنو نضیر د رسول اللهﷺ سره د دهوکې اراده:

یعنی د بنونضیر یهودو د کفار قریش په وینا باندې رسول اللهﷺ سره د دهوکې کولو اراده اوکړه، یعنی د رسول اللهﷺ د قتل ئې پټ سازش جوړ کړو، پس د رسول اللهﷺ مخې ته دا خبره کیخودلې شوه د اسلام د مذهب قبلولو او نه قبلولو، هغه دا چه هغوی رسول اللهﷺ ته دا پیغام اولیږلو چه د دیرشو کسانو سره تاسو روان شئ او دیرش کسان به زمونږ احبار یعنی یهود عالمان راوځی، او په یو معین ځائې کښې دې ملاقات اوکړی او زمونږ علماء دې ستاسو خبرې واوری، پس که هغوی ستاسو تصدیق اوکړو او په تاسو باندې ئې ایمان راوړو نو مونږ ټول به هم په تاسو باندې ایمان راوړو، مصنفرحمه الله دا واقعه هم دومره ذکر کړې ده، وړاندې ځه اوشو هغه ئې په دې وینا باندې پریخودله ﴿ فقص خبرهم ﴾ [1] یعنی راوی پوره قصه بیان کړه، دا قصه حضرت په بذل کښې د سیوطیرحمه الله نه نقل کړې ده چه د قرارداد مطابق د دواړو طرفو نه دیرش دیرش کسان روان شو، په دې منظر لیدو باندې بعض یهود متردد شو چه هر کله د رسول اللهﷺ دیرش داسې کسان وی نو بیا به تاسو هغوی ته څنګه ځان رسوئ په هغوی کښې د هر یو دا حال دې او غواړی چه د رسول اللهﷺ نه مخکښې د هغه مرګ راشی، نو هغوی رسول اللهﷺ ته پیغام اولیږلو چه مونږ ټول خو

[1] د قص ضمیر راوی ته راجع دې او صاحب د عون المعبود نه دلته خطاء شوې ده چه هغوی د دې ضمیر رسول اللهﷺ ته راجع کړې دې. (کذا فی البذل)

شپیتهٔ کسان شو، د شپیتو کسانو ترمینځه به فیصله ځنګه حل کیږي، یعني دا خو ډیر لوئي جماعت شو په دوی کښې د ټولو په یو رائې باندې اتفاق مشکل معلومیږي، لهذا د سرو په تعداد کښې دې کمې اوکړې شی، د دیرشو په ځائې درې تاسو واخلئ، درې مونږ، پس بیا هم دغه شان اوشوه صرف درې درې شو، خو دې خبیثانو ځان سره خنجرې پټې اونیولې ځکه چه فی الواقع مناظره کول مقصود نه وو بلکه په دهوکې سره ئې رسول الله ﷺ قتل کول غوښتل، الله پاک د غیب نه د رسول الله ﷺ د حمایت دا صورت پیدا کړو چه د یوې یهودی زنانه رور مسلمان شوې وو هغې سره د خپل رور فکر پیدا شو نو هغې په پټه باندې خپل رور ته د یهودو د دې پټ سازش خبر ورکړو، د هغې رور فورا په منډه د رسول الله ﷺ خدمت ته اورسیدو او هغوی سره ئې په دې باره کښې پټه خبره اوکړه، رسول الله ﷺ لا تراوسه پورې یهودو ته رسیدلې نه وو په دې وجه راواپس شو، او بیا ئې په بله ورځ په هغوی باندې سحر وختی حمله اوکړه لکه چه دلته په روایت کښې دی.

﴿ فلما كان الغد غدا عليهم رسول الله ﷺ بالكتائب وحصرهم ﴾ ټوله ورځ د هغوی سره قتال اوشو او بیا په بله ورځ سحر په بنو قریظه باندې رسول الله ﷺ حمله اوکړه، او بنو نضیر چه قلعه بند شوې وو هغوی ئې هم په دې حال باندې پریخودل، او د بنو قریظه مخې ته ئې د معاهدې خبره کیخودله هغوی د معاهدې دپاره تیار شو، لهذا رسول الله ﷺ د هغه ځائې نه راواپس شو او په بله ورځ د بنو نضیر طرف ته متوجه شو د قتال دپاره ﴿ حتى نزلوا على الجلاء فجلت بنو النضير اى الى الشام وبعضهم الى خيبر ﴾ او خپلو سامانونه ئې په اوښانو باندې یوړل، د دوازو د لرګو پورې، وړاندې راوی وائی چه ﴿ فكان نخل بنى نضير لرسول الله ﷺ خاصة ﴾ وړاندې چه کوم د روایت مضمون دې هغه لږ؛آز تیر شوې دې.

[۳۰۰۵]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ: يَهُودَ بَنِي النَّضِيرِ وَقُرَيْظَةَ حَارَبُوا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَجْلَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَنِي النَّضِيرِ وَأَقَرَّ قُرَيْظَةَ وَمَنَّ عَلَيْهِمْ حَتَّى حَارَبَتْ قُرَيْظَةُ بَعْدَ ذَلِكَ، فَقَتَلَ رِجَالَهُمْ وَقَسَمَ نِسَاءَهُمْ وَأَوْلَادَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ إِلَّا بَعْضَهُمْ لَحِقُوا بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَّنَهُمْ وَأَسْلَمُوا وَأَجْلَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَهُودَ الْمَدِينَةِ كُلَّهُمْ بَنِي قَيْنُقَاعَ وَهُمْ قَوْمُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَلَامٍ وَيَهُودَ بَنِي حَارِثَةَ وَكُلَّ يَهُودِيٍّ كَانَ بِالْمَدِينَةِ.

دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه دقبیله بنونضیر اوبنوقریضه یهودیان دنبی علیه السلام سره اوجنګیدل نبی علیه السلام بنونضیر اوشړل اوبنوقریضه ئې پریښودل ددوی سره ئې داحسان معامله اوفرمائیله تردې چه دوي. بې لوظې اوکړه اود نبی علیه السلام سره ئې جنګ اوکړو نبی علیه السلام ددوی سړی قتل کړل او ددوی ښځې اوبچې ئې په مسلمانانو تقسیم کړل لیکن په دوی کښې ئې هغه سړی قتل نکړه څوک چه مسلمانانوته راغلې وو او ددوی سره یوځائې شوې وو نبی علیه السلام دوی ته امان ورکړو او اسلام ئې قبول کړو او نبی علیه السلام ټول

---

[1]: صحيح البخاري/المغازي ١٤ (٤٠٢٨)، صحيح مسلم/الجهاد ٢٠ (١٧٦٦)، (تحفة الأشراف: ٨٤٥٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤٩/٢) (صحيح)

یهودیان دمدینې نه وشړل قبیله بنی قینقاع کوم چه دعبدالله بن سلام قوم وو، اوقبیله بنی حارثه اونور یهودیان کوم چه په مدینه کښې اوسیدل ټول ئې وشړل

﴿ عن ابن عمر رضي الله عنهما ان یهودا النضیر وقریظة حاربوا رسول الله ﷺ ﴾ په دې روایت کښې مضمون مخکښې تیر شوې دې، د دې روایت په آخیر کښې دې دی چه په مدینې کښې څومره یهودیان وو بنو قینقاع (قوم د عبدالله بن سلام رضي الله عنه) او یهود بنو حارثه او هر هغه یهودی چه په مدینه کښې وو رسول الله ﷺ ټول بهر کړل.

(والحدیث اخرجه البخاری ومسلم، قاله المنذری)

## بَابُ مَا جَاءَ فِي حُكْمِ أَرْضِ خَيْبَرَ

### د خیبر د زمکې بیان

**د باب سره متعلق مباحث اربعه مفیده:**

د ترجمة الباب او د هغې د احادیثو د پوهې د پاره د څو څیزونو په طور د تمهید پیژندل ضروری دی: ۱: رسول الله ﷺ د خیبر یهود سره څه معامله اوفرمائیله، او خیبر ئې څنګه فتح کړو صلحا یا عنوة

۲: د فتح نه پس ئې د خیبر زمکه څنګه تقسیم اوفرمائیله

۳: د ارض مفتوحه حکم، آیا د هغې تقسیم ضروری دې یا نه؟

۴: د خیبر زمکه عشری ده او که خراجی، کومه زمکه عشری وی او کومه خراجی، دا ټول علمی مباحث دی اوس مونږ دا امور په ترتیب سره د الله پاک امداد لیکو، وهو الموفق والمیسر.

**بحث اول:**

د تیرو روایاتو په ضمن کښې دا راغلې ده چه رسول الله ﷺ کله د یهودو د مدینې طیبې د اخراج نه فارغ شو نو بیا په ۷ هجری کښې خیبر ته متوجه شو هغوی سره د قتال او محاصرې وغیره ټولو څیزونو حاجت راغلو او آخر د الله پاک په فضل باندې مسلمانونو یهودو ته شکست ورکړو او خیبر ئې فتح کړو، په دې کښې د علماء کرامو اختلاف دې چه پوره خیبر عنوة فتح شو یا صلحا، د بحث د دې باب په رومبی حدیث کښې را روان دې

**دویم بحث:**

رسول الله ﷺ د خیبر نیمه زمکه په مجاهدینو کښې تقسیم کړه، په کتاب الجهاد کښې د مجمع بن جاریه الانصاری رضي الله عنه روایت تیر شوې دې، او وړاندې دلته هم را روان دې په دې کښې د تقسیم تفصیل داسې لیکلې شوې دې چه د مجاهدینو ټول تعداد پنځلس سوه وو چه په هغې کښې دولس سوه راجل او درې سوه فارس وو، او چونکه د فارس (یعنی په اس باندې سور جهاد کونکې) حصه د احنافو په نزد دوچند په دې وجه درې سوه فارس د شپږ سوو راجل (پیاده تلونکو) برابر شو (۱) دولس او شپږ ټول اتلس شو نو دا نیمه زمکه رسول

(۱) او که د فارس دپاره درې حصې وې کما قال الائمة الثلاثة والصاحبان، نو بیا د دې مقتضی دا وه چه د خیبر زمکه په یویشتو حصو باندې تقسیم کړې شوې وې دا بحث په کتاب الجهاد کښې تیرشوې دی)

الله ﷺ په اتلسو حصو کښې تقسیم اوفرمائیله، او هره یوه حصه په سلو حصو باندې مشتمل وه، او په کوم روایت کښې چه دا راغلي چه رسول الله ﷺ د خیبر زمکه په شپږ دیرشو حصو کښې تقسیم کړې وه هغه هم په خپل ځائې صحیح دې یعنی د ټولو زمکې په اعتبار سره، او نیمه زمکه رسول الله ﷺ د خپل ځان او خپلو بیبیانو او د مسلمانانو د مصالحو دپاره باقي پریخودله.

## بحث ثالث:

د ارض مفتوحه تقسیم د امام شافعي رحمه الله په نزد ضروري دې او د امام مالک رائې دا ده چه دا به نه شي تقسیمولې، بلکه وقف کول ئې ضروري دی یعنی د دې امدن به په بیت المال کښې وی او د مسلمانانو په مصالحو کښې به دا خرچ کولې شی، او د احنافو او حنابله په نزد د دې تقسیم او عدم تقسیم د امام رائې ته سپارلې شوې دې هغه ته د دواړو اختیار دې. په دې کښې د عمر رضي الله عنه عمل د ایقاف او عدم تقسیم وو. او د رسول الله ﷺ نه د تقسیم او عدم تقسیم دواړو ثبوت شته، لهذا د احنافو او حنابله په مسلک باندې خو هیڅ اشکال نه واردیږی، هم دغه شان د امام شافعي رحمه الله په مسلک باندې هم څه خاص اشکال نه واردیږی ځکه چه د رسول الله ﷺ نه دواړه طریقې ثابتې دی، خو د امام مالک رحمه الله په مسلک باندې به اشکال وی د عمر رضي الله عنه د عمل نه د دې جواب دا ورکولې شی چه ﴿لم یقسم عمر برضا الغانمین﴾ یعنی عمر رضي الله عنه به هغه زمکه نه تقسیموله د غانمینو په اجازت او رضا سره، خو په دې باندې اشکال دې (۱) پس ابن القیم رحمه الله فرمائی ﴿ولا یصح ان یقال انه استطاب نفوسهم ووقفها برضاهم فانهم قد نازعوه فی ذلک وهو یابی علیهم ودعا علی بلال واصحابه. یعنی بلال رضي الله عنه او د هغه بعضو ملګرو ته چه کله هغوی د عمر رضي الله عنه په فعل باندې راضی نه شو نو هغوی ورته بد دعا هم اوکړه.

---

(۱) **د ارض مفتوحه د تقسیم او عدم تقسیم بحث:** ابن القیم رحمه الله فرمائی چه د جمهور صحابه کرامو رضي الله عنهم او د هغوی نه پس د ائمه رائې دا ده چه ارض مفتوحه په غنائمو کښې داخله نه ده، پس د خلفاء راشدینو هم دا طرز وو په دې وجه بلال رضي الله عنه او د هغه اصحابو چه کله د عمر رضي الله عنه نه مطالبه اوکړه د دې خبرې چه هغه زمکه کومه چه هغوی عنوة فتح کړې وه او هغه د شام زمکه او د هغې ماحول چه د هغې خمس ویستلو سره باقی لره تقسیم کړئ، نو په دې باندې عمر رضي الله عنه اوفرمائیل چه خمس لره ویستلو سره باقی تقسیمول زمکه په دې کښې داخله نه ده په دې وجه دا خو به څه بنده ساتم ستاسو او د ټولو مسلمانانو د ضرورتونو دپاره، خو د دې نه پس هم بلال رضي الله عنه او د هغه اصحابو په تقسیم باندې اصرار اوکړو نو په دې باندې عمر رضي الله عنه اوفرمائیل ﴿اللهم اکفني بلالا وذویه﴾ د باقی صحابه کرامو رضي الله عنهم د عمر رضي الله عنه د دې رائې سره اتفاق اوشو، بیا وراندې ابن قیم رحمه الله د عمر رضي الله عنه د رائې ډیر زیات تعریف کړې دې او د دې ډیر فوائد ئې لیکلې دی، د عمر رضي الله عنه په دې طرز باندې د بلال وغیره، بعض صحابه کرامو رضي الله عنهم د خفګان طرف ته اشاره د عمر رضي الله عنه په کلام کښې د صحیح بخاری په روایت کښې هم موجود ده د هغه په یو اوږد حدیث کښې دی ﴿ایم الله انهم لیرون اني قد ظلمتهم﴾ الحدیث (بخاری کتاب الجهاد ۴۳۰ ﴿باب اذا اسلم قوم في دار الحرب﴾ وفي الهدایة اذا فتح الامام بلادا عنوة فهو بالخیار ان شاء قسم بین المسلمین کما فعل علیه الصلوة والسلام بخیبر وان شاء اقر اهله ووضع الجزیة علیهم وعلي اراضیهم الخراج کما فعل عمر رضي الله عنه بسواد العراق بموافقة من الصحابة اوفي العقار خلاف للشافعي رحمه الله الي اخره اهـ من هامش البذل مختصرا)

## بحث رابع :

د زمکې د عشرى او خراجى کيدو په اعتبار سره چه کوم تفصيل دې هغه داسې دې د نور تفصيل دپاره دې د موالاة طرف ته رجوع اوکړې شی، د شيخ په حاشيه کښې دې باره کښې په بذل کښې دې باره د ډيرو کتابونو حوالې او څه عبارتونه ليکلې شوې دی. صاحب د بدائع هم په دې باندې تفصيل سره کلام کړې دې

ځان پوهول پکار دی چه د ارض رومبی دوه قسمونه دی، مفتوحه او غير مفتوحه، غير مفتوحه نه مراد هغه زمکه چه د هغې د فتح کولو حاجت نه وی راغلې بلکه د هغې اوسيدونکی په خپله اسلام کښې داخل شوې وی لکه اهل يمن او مدينه او طائف او بحرين، دا دويم قسم د زمکې عشرى دې، او قسم اول يعنى ارض مفتوحه د دې بيا دوه قسمونه دی، ارض عنوة او ارض صلح. عنوة : چه د قتال په ذريعه فتح کړې شوې وی، لکه د عراق زمکه او مصر او شام او خيبر، او دويمه هغه ده چه په خراج معين باندې صلح کولو سره فتح کړې شوې وی لکه د نجران زمکه [1] د دې قسم ثانى حکم دا دې چه په کوم څيز باندې د هغوی سره صلح شوې وی بس هم هغه به د هغوی نه اخستلې شی، هم هغه د هغه خراج دې او قسم اول يعنى ارض عنوة د دې دوه قسمونه دی يو هغه کوم چه د غانمينو ترمينځه تقسيم کړې شوې وی لکه نيمه زمکه د خيبر، او دويمه هغه چه د فتح نه پس د کفارو نه نۀ وی اخستلې شوې بلکه هم په هغوی ته پريخودلې شوې وی لکه باقى نيمه زمکه د خيبر هم دغه شان د عراق زمکه وغيره [2] په دې دواړو کښې اول عشرى وه او نورې خراجى (ملخصا من البدائع)

او په بدائع کښې دا هم ليکلې شوې دی چه د ټول عرب زمکی عشرى دې چه د هغې نه مراد د حجاز، تهامه، يمن، مکه مکرمه او د طائف زمکې دی، او دا زمکې عشرى په دې وجه دی چه رسول اللهﷺ او د هغوی خلفاء راشدين د عربو د زمکې نه خراج نه دې وصول کړې، د دې نه ثابتيږى چه هغه عشرى ده ځکه چه زمکه د احدى المؤونتين نه خالى نه وی يا به د هغې نه عشر وصولولې شی يا خراج.

## د هندوستان زمکى عشرى دى که خراجى :

دلته دا سوال پيدا کيږی چه د هند زمکی څنګه دی عشرى که خراجى؟ د دې په باره کښې په فتاوى رشيديه کښې داسې دی،

---

[1] د نجران نصارو سره مصالحت د کپړو په دوه زره جوړو باندې شوې وو لکه چه وړاندې ﴿باب في اخذ الجزية﴾ کښې را روان دی ﴿صالح رسول اللهﷺ اهل نجران علي الفي حلة﴾ النصف في صفر والنصف في رجب يؤدونها الي المسلمين الحديث.)

[2] هم دغه شان د مکې مکرمې زمکه هم. ځکه چه مکه مکرمه عنوة فتح کړې شوه او د هغې زمکه د هغې په مالکانو باندې پريخودلې شوه، په غانمينو کښې تقسيم نه کړې شوه، لهذا د قياس تقاضه خو هم دا ده چه هغه دې خراجى وی خو چونکه په خراج کښې د صغار يعنى د ذلت معنى موندلې کيږی کومه چه د مکې مکرمې د شان خلاف ده په دې وجه هغه خراجى نه کړې شوه، د مکې د زمکې په باره کښې وړاندې مستقل باب راروان دې)

**مسئله** : زمونږ د دې ځائې زمکې یا عشری دی یا خراجی او عملداری جائز ده یا نه ده؟
**الجواب** : د هند بعض زمکې عشری دی او بعض خراجی، فقط والله تعالی اعلم. رشید احمد عفی عنه. او په دې کښې دا سوال او جواب هم ذکر شوې دی
**مسئله** : دلته په زمکو کښې سرکاری جمع ده او معافی هم دی، لهذا په داسې زمکو کښې عشر شته یا نه؟
**الجواب** : که زمکه معافی وی یا په دې کښې مالګذاری سرکاری وی، محصول په ځائې د خراج خو کافی دې خو په ځائې د عشر کافی نه دې، پس که زمکه عشری ده نو عشر جدا ادا کول پکار دی، او که خراجی وی نو خراج د هغې مالګذاری سرکاری کښې محسوب کیدې شی، فقط والله اعلم.

## د ګنګوهی رحمه الله رائې :

د ګنګوهی رحمه الله په جواب کښې خو اجمال دې چه د هندوستان بعض زمکې عشری دی او بعض خراجی، اوس دا چه کومې عشری دی او کومې خراجی، د دې د پیژندګلو دپاره نورو کتب فتاوی ته رجوع کول پکار دی، خپله په فتاوی رشیدیه کښې چه د عشر او خراج کوم مسائل لیکلې شوې دی د هغې نه هم په دې کښې استفاده کیدې شی وړاندې د العرف الشذی نه د ګنګوهی رحمه الله نوره رائې راغی، فتاوی محمودیه جلد ۳ کښې دا سوال او جواب په مختلف انداز کښې مفصل او مجمل په مختلفو زمانو کښې لیکلې شوې موجود دې، د دې پوره مجموعې کتلو سره په دې کښې بصیرت حاصلیدې شی. بهر حال یو ځائې (صفحه ۸۳) کښې هم ددې سوال په جواب کښې چه د هندوستان زمکې عشری دی که خراجی داسې لیکلې دی، کومې زمکې چه د بادشاه اسلام د وخت نه د مسلم په ملک او قبضه کښې دی په هغې کښې عشر دې، او کومې زمکې چه د دې وخت کښې د مسلمان په ملک او قبضه کښې دی او د یو غیر مسلم نه منتقل کیدو سره په ملک مسلم کښې راتلل معلوم نه دی نو د استصحاب حال په بناء په هغې باندې د مسلمان قبضه مستمر منلو سره هغه هم عشری منلې شی حکومت چه کوم محصول اخلی هغه په خراج کښې محسوب کیدې شی خو د عشر په حق کښې نه شی محسوب کیدې، په فتاوی رشیدیه حصه سوم صفحه ۵۵ کښې د دې تصریح موجود ده.

بعض علماء کرامو د هندوستان زمکې لره د دارالحرب کیدو په جه باندې د دې ځائې زمکو لره د دواړو قسمه مؤنثونو عشر او خراج نه مستثنی کړې ده..... حکومت که د ارض عشریه نه خراج وصول کړی نو دا ناجائز دې او په دې سره عشر نه ادا کیږی ځکه چه حکومت د زکوة مصرف نه دې، (فقط والله سبحانه وتعالی اعلم حرره العبد محمود جنجوهی عفا الله عنه) معین مفتی مظاهر العلوم سهارنپور ۱۸/۴/ سنه ۷۰ هجری الجواب صحیح سعید احمد غفرله مفتی مدسه مظاهر العلوم سهارنپور (فتاوی محمودیه ۸٤/۳)

## د مولانا انور شاه صاحب رائې :

او د مولانا انور شاه صاحب رحمه الله رائې په العرف الشذی صفحه ۲۷۲ کښې دا ليکلې شوې ده چه د هندوستان په زمکو کښې عشر واجب نه دې ځکه چه هغه د دارالحرب زمکې دی ﴿ هكذا حصل من كتب الفقه ﴾ او وړاندې ئې د دارالحرب تعريف دا فرمائيلې دې چه دار الحرب هغه مقام دې چه په هغې کښې فصل الامور يعنی د خصوماتو او مقدمو فيصله د کفارو په لاس کښې وی (يعنی د کفارو د قانون مطابق اګر که فيصله کونکی مسلمانان وی) او هغه چه بعض خلقو د دار الحرب تعريف دا کړې دې چه دار الحرب هغه ملک دې چه په هغې کښې مسلمانانو ته د فرض يعنی مونځ او روژې وغيره نه منع کولې شی، دا صحيح نه ده او د دې تعريف هيڅ اصل نه نشته او مولانا محمد اعلی تهانوی رحمه الله په خپل تصنيف کښې ذکر کړې دی چه د هندوستان زمکې نه عشری دی او نه خراجی، بلکه حوزه زمکې دی يعنی د بيت المال والمملكة زمکې، او ما اوريدلې دی چه مولانا ګنګوهی رحمه الله مرحوم دا فتوی ورکړې ده چه د کوم انسان په ملک کښې چه هغه وخت کومه زمکه ده او د هغه انسان په علم کښې دا خبره نشته چه د هغه دا زمکه د کفارو د طرف نه منتقل کيدو سره راغلې ده، نو په هغې باندې عشر واجب دې، آهـ په دې موضوع باندې يو مستقل تصنيف د شيخ جلال الدين تهانيسری رحمه الله هم دې پس په فتاوی محموديه (صفحه ٤٥) کښې د يو سائل سوال دې : د هندوستان د زمکو د عشری کيدو او غير عشری کيدو تحقيق اوکړئ، علماء کرامو دا مسئله داسې ګرانه کړې ده چه د مسئلې يو اړخ هم واضحه نه ښکاری.

**الجواب** : حامدا ومصليا : علماء کرامو خو ډيره اسانه کړې ده . نن نه سل سوه کاله مخکښې شيخ جلال الدين تهانيسری رحمه الله چه خليفه خاص وو د شيخ عبدالقدوس رحمه الله په دې مسئله باندې ئې په خپل وخت کښې يو مستقل رساله تصنيف اوفرمائيله چه د هغې نوم رساله اراضی هند دې، په هغې کښې د زمکو اقسام او د هغې احکامات تفصيلا ذکر شوې دی، په موجوده دور کښې هم مختلفې رسالې ليکلې شوې دی. (۱) مولانا محمد حفظ الرحمن صاحب رحمه الله هم په خپل تصنيف "د اسلام اقتصادی نظام" په اخير کښې په دې مسئله باندې په تفصيل سره ليکل کړې دی. د ډيرو علماء کرامو او د فتاوی عبارتونه په هغې کښې ليکلې شوې دی.

اوس د دې تمهيدی (۲) امورو د پيژندګلو نه پس حديث الباب ته ګورئ.

---

(۱) د دې نه پس مختصرا عرض دې چه کومه زمکه د مسلمان ملک نه وی لکه چه د زميندارئ د ختميدونه پس ددې خانې د زمکو حال دې په هغې کښې عشر واجب نه دې فقط والله سبحان وتعالی اعلم)

(۲) د دې نه معلومه شوه چه دا باب ډير زيات اهم دې په دې وجه د دې دپاره د دومره اوږد تمهيد ضرورت راغلو. په اصل کښې دا کتاب الخراج والفئ تول ډير ګران او اهم دې په دې باندې د پوهې دپاره بنده ډير زيات محنت اوکړو، د احقر څه علم دې، اشرف علی تهانوی رحمه الله د سورة حشر د هغه آيتونو په تفسير کښې چه په هغې کښې د اموال فئ حکم ذکر کړې شوې دې هم دا ليکلې دی پس حضرت ليکی : دا مقام د سورة براءت په شان احقر ته ډير زيات ګران معلوم شوې وو........ لـه

[۳۰۰۶]() حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَبِي الزَّرْقَاءِ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، قَالَ: أَحْسَبُهُ عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَاتَلَ أَهْلَ خَيْبَرَ فَغَلَبَ عَلَى النَّخْلِ وَالْأَرْضِ وَأَلْجَأَهُمْ إِلَى قَصْرِهِمْ فَصَالَحُوهُ عَلَى أَنَّ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّفْرَاءَ وَالْبَيْضَاءَ وَالْحَلْقَةَ وَلَهُمْ مَا حَمَلَتْ رِكَابُهُمْ عَلَى أَنْ لَا يَكْتُمُوا وَلَا يُغَيِّبُوا شَيْئًا، فَإِنْ فَعَلُوا فَلَا ذِمَّةَ لَهُمْ وَلَا عَهْدَ فَغَيَّبُوا مَسْكًا لِحُيَيِّ بْنِ أَخْطَبَ وَقَدْ كَانَ قُتِلَ قَبْلَ خَيْبَرَ كَانَ احْتَمَلَهُ مَعَهُ يَوْمَ بَنِي النَّضِيرِ حِينَ أُجْلِيَتِ النَّضِيرُ فِيهِ حُلِيُّهُمْ، قَالَ: فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لِسَعْيَةَ أَيْنَ مَسْكُ حُيَيِّ بْنِ أَخْطَبَ؟ قَالَ: أَذْهَبَتْهُ الْحُرُوبُ وَالنَّفَقَاتُ؟"، فَوَجَدُوا الْمَسْكَ فَقَتَلَ ابْنَ أَبِي الْحُقَيْقِ وَسَبَى نِسَاءَهُمْ وَذَرَارِيَّهُمْ وَأَرَادَ أَنْ يُجْلِيَهُمْ، فَقَالُوا: يَا مُحَمَّدُ دَعْنَا نَعْمَلُ فِي هَذِهِ الْأَرْضِ وَلَنَا الشَّطْرُ مَا بَدَا لَكَ وَلَكُمُ الشَّطْرُ، وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْطِي كُلَّ امْرَأَةٍ مِنْ نِسَائِهِ ثَمَانِينَ وَسْقًا مِنْ تَمْرٍ وَعِشْرِينَ وَسْقًا مِنْ شَعِيرٍ.

دعبدالله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه نبی علیه السلام دخیبر اوسیدونکوسره جنګ اوکړو ددغه خلقو زمکه او ونې ئې قبضه کړې او دوی ئې په خپلوکورونوکښې قید کړل، بیادوی دنبی علیه السلام سره په شرطونو صلح اوکړه چه نبی علیه السلام ته به یومقدار سره اوسپین زر اواصلح ورکوي اوباقی پاتې ددوی اوښان چه څومره سامان اوچتولې شي هغه به دځان سره وړي خوپه دې شرط چه دوی به ددې نه څه څیز نه پټوي اوکه چرې داسې اوکړي نوداهل اسلام دمه به ددوینه پورته شي اومعاهده به باقی پاتې نه شی، بیادې خلقو دڅمرې یوه بوجۍ کومه چه دحیئ بن احطب په لاس کښې وه غائبه کړه اودې دخیبر دوتلونه مخکښې قتل کړې شو حیي و دغه بروجۍ دبنونضیر دزیوراتونه ډکه کړې وه اودځان سره ئې وړله کله چه بنی نضیر شړلې کیدل، ۰ راوي وائی چه نبی علیه السلام سعیة نومې یهودي ته اووئیل چه دحیی بن احطب هغه بوجۍ چرته ده؟ هغه اووئیل په جنګ کښې ضائع شوي ده او په خرچونوکښې مصرف شوي ده، بیاصحابه کراموته هغه بوجۍ ملا وشوه نبی علیه السلام ابن حقیق قتل کړو کوم چه ددوی دیهودیانونه وو او ددوی زنانه ئې ګرفتارې کړې او ددوی بچی ئې غلامان کړل اودملك نه ئې ددوی دشړلو اراده اوکړه دوی اووئیل اې محمد مونږ هم دلته اوسیدوته پریږده مونږ به په زمکه کښې محنت کوو اوڅومره پیداوار چه حاصلیږي ددې نیم به تاته درکوو اونیم به مونږ اخلو، نبی علیه السلام دخیبر په امدن کښې پخپلوب بیانوکښې هرې یوې ته اتیا اتیا وسقه کجوري او شل وسقه وربشي دیو کال دخرچي دپاره ورکړې

﴿عن ابن عمر رضی الله عنهما ان النبی صلی الله علیه وسلم قاتل اهل خیبر فغلب علی الارض والنخل والجاهم الی قصرهم فصالحوه علی ان لرسول الله صلی الله علیه وسلم الصفراء والبیضاء والحلقة، ولهم ما حملت رکابهم﴾

۳..... د سیرت او احادیث او د فقه د کتابونو د مراجعت نه پس د انتهائې کوشش نه پس چه څۀ په فهم کښې راغلل هغه دلته او لیکلې شو دلته هم عرض دې چه که د دې نه احسن او اتقن تفسیر ممکن وی نو هغې ته دې ترجیح ورکړې شی آهـ صفحة ۱۲۳ جلد ۱۱)

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۸۷۷) (حسن الإسناد)

## د غزوه خيبر بيان :

په دې حديث کښې د غزوه خيبر او فتح خيبر بيان دې. ابن عمر رضي الله عنهما فرمائي چه رسول الله ﷺ د اهل خيبر سره قتال اوکړو، او د هغوی په زمکو او باغونو باندې ئې غلبه بيا مونده او هغوی ئې مجبور کړل په قلعه بند کيدو باندې، په قلعه کښې د محصور کيدو نه پس هغوی د رسول الله ﷺ سره په دې شرطونو باندې صلح اوکړه چه څه مونږ سره سره زر او سپين زر او وسله ده هغه د مسلمانانو دپاره ده او د هغوی دپاره به هغه سامان وی کوم چه هغوی اوړلې شی په دې طريقه دا صلح اوشوه چه يو څيز (سره زر او سپين زر) به نه پټوی او هغه به نه غائبوی، او که هغوی داسې اوکړل نو بيا به د هغوی دپاره هيڅ عهد او ذمه نه وی. ﴿ فغيبوا مسكًا لحيي بن اخطب قد كان قتل قبل خيبر كان احتمله معه يوم بني النضير حين اجليت النضير فيه حليهم ﴾ يعنی د معاهدې خلاف د حيي بن اخطب د څرمنې مشک چه په هغې کښې د هغوی کالی سره زر او سپين زر وو غائبه کړه، ليکلې ئې دی چه په هغې کښې د لسو زرو دينارو په اندازه سره زر وو، دا حيي بن اخطب د صفيه رضي الله عنها پلار دې د بنو قريظه سردار، نو چونکه د خپل قوم ملک وو هم په دې وجه به غالبا د ټول قوم کالی د هغه سره محفوظ وی، راوی وائی چه دا بن اخطب د خيبر نه مخکښې وژلې شوې وو، چونکه په بنو قريظه کښې وو په دې وجه به د هغوی سره په ۵ هجری کښې قتل شوې وی. د بنو نضير جنګ کوم چه د هغوی نه يو کال مخکښې شوې وو چه کله هغوی جلا وطن کيدل هغه وخت هغوی هغه مشک اوچت کړې وو. په روايت کښې دی چه رسول الله ﷺ سعيه داد يهودی نوم دې نه تپوس اوکړو چه د حيي بن اخطب مشک چرته دې؟ نو هغه اووې ﴿ اذهبت الحروب والنفقات ﴾ يعنی په جنګونو او نورو ضروورياتو کښې خرچ شو خو روستو هغه ملاؤ شوې وو لکه چه په روايت کښې ذکر دی. ﴿ فقتل ابن ابي الحقيق ﴾ يعنی رسول الله ﷺ ابن ابی الحقيق (چه د قبيله بنو نضير په سردارانو کښې وو او د صفيه رضي الله عنها رومبې خاوند هم وو) هغه خو قتل کړو او د هغوی زنانه او ماشومان ئې قيد کړل، چه کله د خيبر د يهودو د اخراج اراده رسول الله ﷺ اوکړه نو هغوی اووې ﴿ يا محمد دعنا نعمل في هذه الارض ﴾ دا مضمون وړاندې تير شوې دې يعنی د خيبر يهودو ډير په منت سره عرض اوکړو چه بيشکه اوس د دې ټولو زمکو ته مالک يئ خو کرونده ستاسو د وس خبره نه ده تاسو مونږ ته دلته د پاتې کيدو اجازت راکړئ چه په دې زمکه کښې کرونده کوو او د دې باغونو خدمت کوو او د دې په پيداوار کښې به نيم زمونږ وی او نيم ستاسو، رسول الله ﷺ په دې شرط سره د هغوی دا رائې منظور کړه چه کله مونږ اوغواړو نو تاسو به د دې ځائې نه اوباسو. ﴿وكان رسول الله ﷺ يعطى كل امراة من نسائه ثمانين وسقا من تمر، وعشرين وسقا من شعير ﴾ يعنی رسول الله ﷺ به د خيبر د خمس نه خپلې هرې بی بی ته د کال خرچه اتيا وسقه کهجورې او شل وسقه اوربشې ورکولې، او په وړاندې روايت کښې د سلو وسقو کهجورو ذکر دی، نو کيدې شی چه په شروع کښې اتيا وسقه وی او روستو ئې سل کړې وی، او يا داسې اوايه چه د احد العددين ذکر بالتخمين (تقريبي) او د بل بالتحقيق دې، يا دا چه يو کال يو مقدار

او بل کال بل مقدار، د پیداوار د کمی زیاتی په لحاظ سره.

**د خیبر فتح عنوة ده یا صلحا :**

د دې روایت په شروع کښې تصریح ده چه د اهل خیبر سره قتال اوکړو او دا چه هغوی مجبور کیدو سره د رسول اللهﷺ سره مصالحت اوکړو. حضرت په بذل کښې لیکلې دی چه دې ته به فتح صلحا نه شی وئیلې کیدې اګر چه صورة صلح لیکلې شوې ده، په حقیقت کښې دا هم فتح عنوة ده، زه وایم چه هسې خو مسئله مختلف فیه ده وړاندې روایت کښې د دې تصریح راروانه ده ﴿عن ابن شهاب ان خيبر كان بعضها عنوة وبعضها صلحا والكتيبة اكثرها عنوة وفيها صلح﴾ او په یو روایت کښې وړاندې صرف عنوة هم راځی هم په دې وجه یو جماعت امام طحاوی، امام شافعی او د امام بیهقی ﷺ رائې هم دا ده، یعنی بعض صلحا او بعض عنوة او بیا په دې باندې یو اختلافی مسئله متفرع ده چه د امام شافعیؒ په نزد د ارض مفتوحه عنوة تقسیم ضروری دې حال دا چه رسول اللهﷺ صرف د خیبر زمکه تقسیم کړې ده. نو د دې جواب امام شافعیؒ هم دا ورکوی چه کوم نیم خیبر عنوة فتح شوې وو هغه رسول اللهﷺ تقسیم اوفرمائیلو او نیم باقی کوم چه صلحا فتح شوې وو هغه مال فئ شو هغه رسول اللهﷺ تقسیم نه کړو، او د احنافو او حنابله په نزد د ارض مفتوحه تقسیم ضروری نه دې هغوی د رسول اللهﷺ د دې فعل نه استدلال کوی. وقد تقدم هذا الاختلاف فی اول الباب وهو البحث الثالث..... حضرت په ﴿بعضها صلحا﴾ باندې لیکلې دی چه ﴿لعل المراد بالصلح على ان يخرجهم﴾ (متى شآء لا فى الحال) ويحقن دمائهم وليس هذا بالصلح الاصطلاحى [1] بل هو ايضا فتح عنوة، په دې باندې په حاشیه د بذل کښې لیکی: وبه جزم ابن قيم فى الهدى وتبعه ابن الهمام فى الفتح ۳۰۴/۴.

[۳۰۰۷]([2]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي نَافِعٌ مَوْلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ عُمَرَ قَالَ: أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ عَامَلَ يَهُودَ خَيْبَرَ عَلَى أَنَّا نُخْرِجُهُمْ إِذَا شِئْنَا فَمَنْ كَانَ لَهُ مَالٌ فَلْيَلْحَقْ بِهِ فَإِنِّي مُخْرِجٌ يَهُودَ فَأَخْرَجَهُمْ.

دعبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه عمر رضي الله عنه اوفرمائیل اې خلقو یقینا رسول پاک و دخیبر دیهودیانوسره په دې خبره معاهده کړې وه کله چه مونږ اوغواړو نو تاسو به اوباسو نود چاچه دهغوی سره څه مال وي هغه دې وصول کړي زه دیهودیانوویستونکې یم (دجزیرة العرب نه) او بیا ئې اوویستل

﴿ عن عبدالله بن عمر رضي الله عنهما ان عمر قال يايها الناس ان رسول اللهﷺ كان عامل يهودخيبر على ان نخرجهم اذا شئنا، ومن كان له مال فليلحق به فانى مخرج يهود فاخرجهم﴾

---

[1] یعنی فتح صلحا خو دا ده چه د قتال ضرورت رانشی او که د قتال د پیښیدو نه پس عاجز راتلو سره صلح اوکړې شی نو دا فتح صلحا نه ده بلکه عنوة ده.

[2] صحيح البخاري/ الشروط ١٤ (٢٧٣٠)، (تحفة الأشراف: ١٠٥٥٤) (حسن صحيح)

**مضمون د حديث :**

يعني عمر رضي الله عنه په خپل دور خلافت کښې يوه ورځ دا اعلان اوکړو چه رسول الله ﷺ د خيبر يهودو سره دا معامله کړې وه چه کله مونږ غواړو نو تاسو به اوباسو عمر رضي الله عنه فرمائي : اوس زه يهود اوباسم لهذا چه د چا باغ يا زمکه د چا يهودي سره وي هغه دې لاړ شي او د هغه نه دې واخلي او خپل څيز دې سنبهال کړي، پس د دې اعلان نه پس عمر رضي الله عنه د هغوی اخراج اوفرمائيلو او د دې نه وړاندې روايت کښې دا هم راروان دی چه عمر رضي الله عنه ازواج مطهرات ته يو مستقل سړې وراوليږلو چه که دوی غواړي چه په څومره مقدار کښې غله او کهجورې رسول الله ﷺ هغوی ته ورکولې هغه غله او کهجورې هغوی ته ورليږم او که دا غواړي چه د هغې په اندازه د کروندې زمکه او د کهجورو اونې هغوی ته ورکړم نو داسې به اوکړم، په دې باندې بعضو خو اوساق غله او کهجورې اختيار کړې او بعضو زمکه، ﴿وكانت عائشة منها اى ممن اخذ الارض والنخل﴾

په وړاندې روايت کښې راروان دی ﴿وكان التمر يقسم على السهمان من نصف خيبر ويأخذ رسول الله ﷺ الخمس﴾ يعني د خيبر د نيمو کهجورو تقسيم د حصو مطابق کيدلو، او رسول الله ﷺ به هم خپله حصه يو خمس اخستله د دې نصف خيبر نه مراد هغه نصف دې کوم چه رسول الله ﷺ د غانمينو ترمينځه نه وو تقسيم کړې بلکه د خپلو ضرورتونو د پاره ئې پريخودلې وه او کوم نيم تقسيم چه ئې کړې وو نو هغه خو ښکاره دې چه د غانمينو ملک شو، او د دې تقسيم نه مراد تقسيم في مصارف الفئ هم دې نه تقسيم على الغانمين ځکه چه دا نصف مال فئ وو (على قول) والحديث اخرجه مسلم، قاله المنذری

[۳۰۰۸]([1]) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ اللَّيْثِيُّ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، قَالَ: لَمَّا افْتُتِحَتْ خَيْبَرُ، سَأَلَتْ يَهُودُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُقِرَّهُمْ عَلَى أَنْ يَعْمَلُوا عَلَى النِّصْفِ مِمَّا خَرَجَ مِنْهَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أُقِرُّكُمْ فِيهَا عَلَى ذَلِكَ مَا شِئْنَا فَكَانُوا عَلَى ذَلِكَ"، وَكَانَ التَّمْرُ يُقْسَمُ عَلَى السُّهْمَانِ مِنْ نِصْفِ خَيْبَرَ وَيَأْخُذُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْخُمُسَ وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَطْعَمَ كُلَّ امْرَأَةٍ مِنْ أَزْوَاجِهِ مِنَ الْخُمُسِ مِائَةَ وَسْقٍ تَمْرًا وَعِشْرِينَ وَسْقًا شَعِيرًا، فَلَمَّا أَرَادَ عُمَرُ إِخْرَاجَ الْيَهُودِ أَرْسَلَ إِلَى أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لَهُنَّ: مَنْ أَحَبَّ مِنْكُنَّ أَنْ أَقْسِمَ لَهَا نَخْلًا بِخَرْصِهَا مِائَةَ وَسْقٍ فَيَكُونَ لَهَا أَصْلُهَا وَأَرْضُهَا وَمَاؤُهَا وَمِنَ الزَّرْعِ مَزْرَعَةَ خَرْصِ عِشْرِينَ وَسْقًا، فَعَلْنَا وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ نَعْزِلَ الَّذِي لَهَا فِي الْخُمُسِ كَمَا هُوَ فَعَلْنَا.

دعبد الله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه کله چه خيبر فتح شو يهوديانو د نبي عليه السلام نه مطالبه اوکړه چه مونږ په دې شرط باندې دلته اوسيدوته پريږده چه مونږ به محنت کوو اوکوم پيداوار چه حاصليږي د دې نيم به د ځان سره ساتو اوباقي نيم به تاته درکوو نبي عليه السلام اوفرمائيل سمه ده په دې شرط باندې به زه تاسو دلته پريږدم ديوخته پورې خوچه کله مونږ اوغواړو بيا دغه خلق په هم دغه شرط باندې اوسيدل اودخيبر نه حاصليدونکي نيمې

[1]): صحيح مسلم/المساقاة ۱ (۱۵۵۱)، (تحفة الأشراف: ۷٤۷۲)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الحرث ۸ (۲۳۲۸)، سنن الترمذي/الأحكام ٤۱ (۱۳۸۳)، سنن ابن ماجه/الرهون ۱٤ (۲٤٦۷)، مسند احمد (۲/۱۷، ۲۲، ۳۷) (صحيح)

کجوري به په څو حصو باندې تقسيميدې او دهغې نه به پنځمه حصه نبي علیه السلام وصول کوله او په خپلو بيانوکښې به ئې هرې بيوي ته ددې پنځمې حصې نه سل وسقه کجوري اوشل وسقه وربشې ورکولې، کله چه عمر رضی الله عنه دجزيرة العرب نه د يهوديانو دويستلو اراده اوکړه نو امهات المومنين ته ئې اووئيل چه په تاسوکښې دچاچه زړه غواړي زه به ورته دومره ونفې ورکړم سره دجررو او اوبو اوزمکې په څومره ونوکښې چه سل وسقه کجوري کيږي او دومره زمکه به هم ورکړم چه شل وسقه وربشې پکښې کيږي
اوکه چرې څوك د خمس نه اخستل غواړي نوزه به ئې ورته د خمس نه ورکړم.

[۳۰۰۹]([1]) حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ. ح وحَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، وَزِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ، أن إسماعيل بن إبراهيم حدثهم، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَزَا خَيْبَرَ فَأَصَبْنَاهَا عَنْوَةً فَجُمِعَ السَّبْيُ.

دانس بن مالك رضی الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي علیه السلام دخيبرجهاد وکړو اوخيبر مونږ په جنګ حاصل کړو اوقيديان موراجمع کړل.

قوله: ﴿عن انس بن مالك رضی الله عنه............ فاصبناها عنوة﴾

په دې روايت کښې د صلح ذکر نشته، بلکه مطلقا دا دی چه خيبر عنوة فتح کړې شو.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي، باتم منه، قاله المنذري

[۳۰۱۰]([2]) حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْمُؤَذِّنُ، حَدَّثَنَا أَسَدُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ زَكَرِيَّا، حَدَّثَنِي سُفْيَانُ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ بُشَيْرِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ، قَالَ: "قَسَمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ نِصْفَيْنِ، نِصْفًا لِنَوَائِبِهِ وَحَاجَتِهِ، وَنِصْفًا بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ قَسَمَهَا بَيْنَهُمْ عَلَى ثَمَانِيَةَ عَشَرَ سَهْمًا".

دسهل بن حثمة رضی الله عنه نه روايت ذې فرمائي چه نبي علیه السلام دخيبرغنيمت په دوه حصو تقسيم کړې وويوه حصه ئې دخپلو حادثو اوضرورتونودپاره منتخب فرمائيلې وه اوبله حصه به ئې په مسلمانانو تقسيموله اودغه حصه ئې اتلس حصې کړې وه.

﴿ قسمها بينهم على ثمانية عشر سهما ﴾ او د هغې نه په روستو روايت کښې دی ﴿قسمها على ستة وثلاثين سهما ﴾: په ړومبي روايت کوم کښې چه د اتلسو حصو ذکر دې هلته د نصف ارض تقسيم مراد دې او په بل روايت کښې د ټولې زمکې تقسيم مراد دې، او د دې ټولو تفصيل په ابتدائي مباحثو کښې تير شوې دې.

[۳۰۱۳]([3]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدٍ الْكِنْدِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ يَعْنِي سُلَيْمَانَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ بُشَيْرِ بْنِ يَسَارٍ، قَالَ: لَمَّا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَى نَبِيِّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ قَسَمَهَا عَلَى سِتَّةٍ وَثَلَاثِينَ سَهْمًا جَمْعٌ كُلُّ سَهْمٍ مِائَةُ سَهْمٍ فَعَزَلَ نِصْفَهَا لِنَوَائِبِهِ، وَمَا يَنْزِلُ بِهِ الْوَطِيحَةَ وَالْكُتَيْبَةَ وَمَا أُحِيزَ مَعَهُمَا، وَعَزَلَ النِّصْفَ الْآخَرَ فَقَسَمَهُ بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ الشِّقَّ وَالنَّطَاةَ وَمَا أُحِيزَ مَعَهُمَا، وَكَانَ سَهْمُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيمَا أُحِيزَ مَعَهُمَا.

[1]: صحيح البخاري/الصلاة ١٢ (٣٧١)، صحيح مسلم/الجهاد ٤٣ (١٣٦٥)، سنن النسائي/النكاح ٦٤ (٣٣٤٠)، (تحفة الأشراف: ١٠٥٩) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٦٤٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٤) (حسن صحيح)

[3]: انظر حديث رقم: (٣٠١١)، (تحفة الأشراف: ١٥٥٣٥، ١٨٤٥٦) (صحيح)

دبشير بن يسار نه روايت دې فرمائي کله چه الله تعالى نبي عليه السلام ته خيبر په طور دغنيمت ورکړونونبي عليه السلام په شپږديرش حصو باندې تقسيم کړواوهره يوه حصه به په سلو حصو باندې مشتمله وه، نيم په دې کښې نبي عليه السلام دخپلوضروورياتو دپاره محفوظ کړوپه کوموکښې چه وطيحه اوکتيبه او ددې خواه اوشاه مقامات هم شامل وو اوباقي پاتې نيم به ئې به مسلمانانوباندې تقسيمولو اوپه دې جائداد کښې شق او نطاة مقامات شامل وو اوکومه زمکه چه ددې کيرچاپيره وه اود نبي عليه السلام حصه ددې مقاماتونه وه.

﴿فعزل نصفها لنوائبه وما ينزل به الوطيحة والكتيبة (والسلالم (كما فى الرواية الاتية) وما احيز معهما﴾

## شرح الحديث:

يعنى نصف ارض خيبر لره د خپلو ضروورياتو دپاره او هغه وفدونه او ميلمانۀ چه به رسول الله ﷺ ته راتلل د هغوى دپاره اوساتله او دا وطيحه او كتيبه چه د زمكو وغيره نومونه دى دا د هم دې نصف مصداق دى کوم چه رسول الله ﷺ تقسيم نه کړل، ﴿ وما احيز معهما ﴾ مطلب دا دې چه کومې زمکې وطيحه او د کتيبې سره ملحق وى ﴿ الشق والنطاة وما اجيز معهما ﴾ دا هم هغه زمکې دى کومې چه هغوى د غانمينو ترمينځه تقسيم کړې وې، وړاندې راوى وائى چه د رسول الله ﷺ حصه په هغه زمکو کښې وه چه ملحق بالشق والنطاة وى، وړاندې هغه د مجمع بن جاريه انصارى رضي الله عنه روايت دې کوم چه په كتاب الجهاد کښې تير شوې دې. په دې وجه هغه مونږ دلته نه ذکر کوو.

[۳۰۱۱](١) حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ عَلِيِّ بْنِ الْأَسْوَدِ، أَنَّ يَحْيَى بْنَ آدَمَ حَدَّثَهُمْ، عَنْ أَبِي شِهَابٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ بُشَيْرِ بْنِ يَسَارٍ، أَنَّهُ سَمِعَ نَفَرًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالُوا: فَذَكَرَ هَذَا الْحَدِيثَ، قَالَ: فَكَانَ النِّصْفُ سِهَامَ الْمُسْلِمِينَ وَسَهْمَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَزَلَ النِّصْفَ لِلْمُسْلِمِينَ لِمَا يَنُوبُهُ مِنَ الْأُمُورِ وَالنَّوَائِبِ.

بشير بن يسار په صحابه کراموکښې ديوخو کسانونه روايت کوى فرمائي چه هغوى داحديث بيان کړو چه په نيم امدن کښې ئې ټول مسلمانان شريک کړل او نبي عليه السلام پخپله هم په دې حصه کښې شامل وو اوباقي چه کومه نيمه حصه پاتې کيده هغه ئې دمسلمانانو داجتماعي امورو دپاره محفوظ کړه چه کله به دوى ته مسائل پيښيدل لکه جهاد وغيره نودغه اخراجات به ئې ترې پوره کول

[۳۰۱۲](٢) حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ بُشَيْرِ بْنِ يَسَارٍ مَوْلَى الْأَنْصَارِ، عَنْ رِجَالٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا ظَهَرَ عَلَى خَيْبَرَ قَسَمَهَا عَلَى سِتَّةٍ وَثَلَاثِينَ سَهْمًا جَمَعَ كُلُّ سَهْمٍ مِائَةَ سَهْمٍ، فَكَانَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلِلْمُسْلِمِينَ النِّصْفُ مِنْ ذَلِكَ، وَعَزَلَ النِّصْفَ الْبَاقِيَ لِمَنْ نَزَلَ بِهِ مِنَ الْوُفُودِ وَالْأُمُورِ وَنَوَائِبِ النَّاسِ".

بشير بن يسار (دانصارو ازاد کړې شوې غلام) په صحابه کرامو کښې ديوخوکسانونه روايت

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٥٣٥، ١٨٤٥٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٦٧/٤) (صحيح الإسناد)

(٢): انظر حديث رقم: (٣٠١١)، (تحفة الأشراف: ١٥٥٣٥، ١٨٤٥٦) (صحيح الإسناد)

کوي هرکله چه نبي ﷺ په خیبر والاباندې غالب شو نوخیبر ئې په شپږ دیرشو حصو تقسیم کړو اوهره یوه حصه په سلو حصو مشتمله وه نیم په دې کښې دنبي ﷺ اودعامو مسلمانانو وو اوباقي پاتې نیم دوندونو دخدمت دپاره اودنورو اجتماعي خدمتونودپاره استعمالیدو.

[۳۰۱۴] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مِسْكِينٍ الْيَمَامِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَسَّانَ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ يَعْنِي ابْنَ بِلَالٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ بُشَيْرِ بْنِ يَسَارٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَيْهِ خَيْبَرَ قَسَمَهَا سِتَّةً وَثَلَاثِينَ سَهْمًا جَمْعًا، فَعَزَلَ لِلْمُسْلِمِينَ الشَّطْرَ ثَمَانِيَةَ عَشَرَ سَهْمًا يَجْمَعُ كُلُّ سَهْمٍ مِائَةً النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَهُمْ لَهُ سَهْمٌ كَسَهْمِ أَحَدِهِمْ، وَعَزَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَمَانِيَةَ عَشَرَ سَهْمًا وَهُوَ الشَّطْرُ لِنَوَائِبِهِ وَمَا يَنْزِلُ بِهِ مِنْ أَمْرِ الْمُسْلِمِينَ، فَكَانَ ذَلِكَ الْوَطِيحَ وَالْكُتَيْبَةَ وَالسَّلَالِمَ وَتَوَابِعَهَا، فَلَمَّا صَارَتِ الْأَمْوَالُ بِيَدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْمُسْلِمِينَ لَمْ يَكُنْ لَهُمْ عُمَّالٌ يَكْفُونَهُمْ عَمَلَهَا، فَدَعَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْيَهُودَ فَعَامَلَهُمْ.

بشیر بن یسارپه صحابه کرامو کښې دیوڅو کسانونه روایت کوي فرمائي کله چه الله تعالی نبي ﷺ ته خیبر په طور دغنیمت ورکړونونبي ﷺ په شپږدیرش حصوباندې تقسیم کړو، یوه حصه ئې دمسلمانانو داجتماعي خدماتو دپاره مختص کړه چه هغه اتلس حصې وې اوهره یوه حصه به په سلو حصو باندې مشتمله وه، او بعضې په دې کښې نبي ﷺ دخپلو ضروریاتو دپاره محفوظ کړه په کوموکښې چه وطیح اوکتیبه اوسلالم او ددې خواه اوشاه مقامات هم شامل وو، هرکله چه دنبي ﷺ په تصرف کښې دامالونه راغلل او مسلمانانو ته داسې کارکونکي نه ملاویدل څوك چه ددوی دطرف نه محنت اومشقت ته دوام ورکړي نو نبي ﷺ یهودیان محنت اومشقت کولوته تیارکړل نونبي ﷺ ددوی نه کار واخستو.

[۳۰۱۵] (٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا مُجَمِّعُ بْنُ يَعْقُوبَ بْنِ مُجَمِّعِ بْنِ يَزِيدَ الْأَنْصَارِيُّ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي يَعْقُوبَ بْنَ مُجَمِّعٍ يَذْكُرُ لِي، عَنْ عَمِّهِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ عَمِّهِ مُجَمِّعِ بْنِ جَارِيَةَ الْأَنْصَارِيِّ، وَكَانَ أَحَدَ الْقُرَّاءِ الَّذِينَ قَرَءُوا الْقُرْآنَ، قَالَ: "قُسِمَتْ خَيْبَرُ عَلَى أَهْلِ الْحُدَيْبِيَةِ، فَقَسَمَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى ثَمَانِيَةَ عَشَرَ سَهْمًا، وَكَانَ الْجَيْشُ أَلْفًا وَخَمْسَ مِائَةٍ فِيهِمْ ثَلَاثُ مِائَةِ فَارِسٍ، فَأَعْطَى الْفَارِسَ سَهْمَيْنِ وَأَعْطَى الرَّاجِلَ سَهْمًا".

دمجمع بن جاریه انصاري نه روایت دې کوم چه دقران قاري وو فرمائي چه نبي ﷺ خیبر په هغه کسانو په اتلسو حصو تقسیم کړو څوك چه په صلح حدیبیه کښې شریك وو اودټول لښکر تعداد ۱۵۰۰ وو په دې کښې ۳۰۰ سواره وو ۱۲۰۰ پیدل وونبي ﷺ سورو ته دوه دوه حصې ورکړې او پیدل ته یوه یوه.

[۳۰۱۶] (٣) حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ الْعِجْلِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى يَعْنِي ابْنَ آدَمَ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، وبعض ولد محمد بن مسلمة، قَالُوا: بَقِيَتْ بَقِيَّةٌ مِنْ أَهْلِ خَيْبَرَ تَحَصَّنُوا، فَسَأَلُوا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَحْقِنَ دِمَاءَهُمْ وَيُسَيِّرَهُمْ فَفَعَلَ، فَسَمِعَ بِذَلِكَ أَهْلُ فَدَكَ فَنَزَلُوا عَلَى مِثْلِ ذَلِكَ فَكَانَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاصَّةً لِأَنَّهُ لَمْ يُوجَفْ عَلَيْهَا بِخَيْلٍ وَلَا رِكَابٍ.

[1]: انظر حديث رقم: (٣٠١١)، (تحفة الأشراف: ١٥٥٣٥، ١٨٤٥٦) (صحيح)
[2]: انظر حديث رقم: (٢٧٣٦)، (تحفة الأشراف: ١١٢١٤) (حسن)
[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٨٨٦) (ضعيف الإسناد)

دعبدالله بن أبي بكر اود محمد بن مسلمه په څامنو کښې ديو کس روايت دې دوی وائی کله چه مسلمانانو خيبر فتح کړو نود خيبر يوڅوقلاګاني دفتح کيدونه باقي پاتې شوي اوهغوی په خپلوقلاګانو کښې محاصره شول، هغې دنبی عليه السلام نه مطالبه اوکړه چه مونږ ته امن راکړه او مونږته دې لاره راکړې شي نبی عليه السلام دهغوی مطالبه منظور کړه نوفدك والاو ته هم داخبر ورسيد و نوهغوی هم په دې شرط باندې روان شول بيابه فدك په خصوصي طور سره دنبی عليه السلام دپاره شميرلې شو ځکه چه په دې پسې أسونه او اوښان نه وو زغلولې شوي (مطلب دادې چه فدك د خيبر په قلاګانو کښې يوه قلاوه مسلمانانوته بغيردجنګ نه حاصله شوه که چرې په جنګ حاصله شوې وې نوبيابه په دې کښې ټول مسلمانان يوبرابر حقدار وي).

﴿بقيت بقية من اهل خيبر فتحصنوا﴾ يعنى بعض قلعه ګانې دخيبر خو رسول الله ﷺ فتح کړل او بعض د فتح نه باقي پاتې شو د دې نه مراد وطيح او سلالم دی، نو دا باقي يهوديان په دې قلعه ګانو کښې د ځان د بچ کولو دپاره داخل شو (تحصن العدو ای دخل فی الحصن) او قلعه کښې د داخليدو نه پس هغوی د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه تاسو زمونږ نفسونه محفوظ کولو سره مونږ د دې ځائې نه اوباسئ، رسول الله ﷺ دا منظوره کړه، چه کله اهل فدك ته د دې خبر ملاؤ شو نو هغوی هم د رسول الله ﷺ سره هم دغه شان د صلح معامله اوکړه، ﴿فكانت لرسول الله ﷺ خاصة﴾ د دې تعلق په ظاهر د سياق د وجې د فدك او باقی اهل خيبر دواړو سره دې او د دې تائيد کيږی د هغه حضراتو چه د فتح خيبر په باره کښې د بعضها عنوة او بعضها صلحا قائل دی، په هغوی کښې يو امام طحاوی دې، خو حضرت د دې کانت تعلق صرف د فدك سره وئيلې دې او د دې دپاره هم يوه وجه ده ځکه چه اقرب هم داده، او دويمه خبره دا هم ده چه په خيبر کښې خو د جنګ سلسله قائمه وه او په فدك کښې نه وه، والله تعالى اعلم

[۳۰۱۷](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ جُوَيْرِيَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، أَنَّ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ أَخْبَرَهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، افْتَتَحَ بَعْضَ خَيْبَرَ عَنْوَةً، قَالَ أَبُو دَاوُد، وَقُرِءَ عَلَى الْحَارِثِ بْنِ مِسْكِينٍ وَأَنَا شَاهِدٌ، أَخْبَرَكُمُ ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي مَالِكٌ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَنَّ خَيْبَرَ كَانَ بَعْضُهَا عَنْوَةً وَبَعْضُهَا صُلْحًا وَالْكَتِيبَةُ أَكْثَرُهَا عَنْوَةٌ وَفِيهَا صُلْحٌ، قُلْتُ لِمَالِكٍ: وَمَا الْكَتِيبَةُ؟ قَالَ: أَرْضُ خَيْبَرَ وَهِيَ أَرْبَعُونَ أَلْفَ عَذْقٍ.

دسعيد بن مسيب نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام دخيبر څه حصه په زور حاصله کړه. ابوداود وائی چه دحارث بن مسکين په وړاندې دا روايت بيان شو اوزه موجود ووم چه ابن وهب په واسطه مالك دابن شهاب نه نقل کړې وو چه دخيبر څه حصه خوپه جنګ حاصله شوې وه او څه حصه په صلح حاصله شوې وه کتيبه چه په خيبر کښې ده کلې دې په زور فتح شو ابن وهب وئيلی دی چه ما دمالك نه اوهغه دابن شهاب نه تپوس اوکړو چه کتيبه څه شې دې هغه اووئيل چه کتيبه يوه علاقه ده دخيبرپه زمکو کښې په کومه کښې چه دکجورو څلويښت زره ونې وې.

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۷۳۲، ۱۹۳۶۷) (ضعيف)

﴿قال ابوداؤد : وقرئ علی الحارث بن مسکین وانا شاهد﴾

## د مصنف رحمه الله د حارث بن مسکین نه د روایت کولو طرز :

دا د حارث بن مسکین والا سند په نسائی کښې ډیر زیات راځی، هلته هم دغه شان راځی ﴿قراءة علیه وانا اسمع﴾ او دلته په ابوداؤد کښې هم تقریبا هم دغه شان دی، په نسائی کښې چونکه په کثرت سره راځی په دې وجه د دې په باره کښې مشهوره ده چه د حارث بن مسکین د امام نسائی رحمه الله نه څه خفګان وو چه د هغې په وجه باندې به امام نسائی رحمه الله په مجلس کښې د هغوی مخې ته نه کیناستلو بلکه په پټه باندې به ئې په ګوټ کښې اوریدل، هم په دې وجه چه کله امام نسائی د هغه نه روایت کوی نو د هغه په باره کښې فرمائی، زما په دې باندې دا اشکال راځی چه که د امام نسائی رحمه الله د تعبیر هم دا وجه وی نو آیا حارث بن مسکین د امام ابوداؤد رحمه الله نه هم خفه وو؟ په دې باندې نور کلام د (الفیض السمائی علی سنن النسائی) په مقدمه کښې کړې شوې دې.

﴿قلت لمالک: وما الکتیبة؟ الخ﴾ د امام مالک رحمه الله شاګرد وائی چه ما د امام مالک رحمه الله نه تپوس اوکړو چه کتیبه دکوم ذکرچه په روایت کښې دې څه څیزدې؟ نو هغوی اوفرمائیل چه د خیبر د یو باغ نوم دې چه په هغې کښې څلویښت زره د کهجورو اونې دی.

[۳۰۱۸](۱) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ بْنُ يَزِيدَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: بَلَغَنِي أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ افْتَتَحَ خَيْبَرَ عَنْوَةً بَعْدَ الْقِتَالِ، وَنَزَلَ مَنْ نَزَلَ مِنْ أَهْلِهَا عَلَى الْجَلَاءِ بَعْدَ الْقِتَالِ.

دابن شهاب نه روایت دې فرمائی چه ماته داخبره معلومه شوه چه نبی علیه السلام خیبر په طاقت اوپه زور فتح کړې وو اودهغه ځائې اوسیدونکی به دجلاوطنئ په شرط باندې دخپلو قلاګانونه لاندې راکوزیدل.

[۳۰۱۹](۲) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ بْنُ يَزِيدَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: خَمَّسَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ، ثُمَّ قَسَمَ سَائِرَهَا عَلَى مَنْ شَهِدَهَا وَمَنْ غَابَ عَنْهَا مِنْ أَهْلِ الْحُدَيْبِيَةِ.

دابن شهاب نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام دخیبر دمال نه خمس اوویستلو اوکوم چه باقی پاتې شو هغه ئې په هغه خلقو تقسیم کړو څوک چه په جنګ کښې موجود وو او څوک چه په دې وخت کښې موجود نه وو مګرپه صلح حدیبیه کښې موجود روز په صلح حدیبیه اوغزوه خیبر په مینځ کښې یوکال تیرشوې دې.

﴿عن ابن شهاب قال خمس رسول الله ﷺ خیبر ثم قسم سائرها علی من شهدها ومن غاب عنها من اهل الحدیبیة﴾

یعنی رسول الله ﷺ د خیبر په غنیمتونو کښې خمس ویستلو نه پس باقی اربعة اخماس لره چه په جنګ خیبر کښې شریک وو او کوم چه غائب وو د اهل حدیبیه نه د ټولو ترمینځه تقسیم اوفرمائیلو.

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۹۴۰۲) (ضعيف)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۹۴۰۱) (حسن)

﴿من اهل الحديبية﴾ په دې وجه راوی اوئيل چه جنګ خيبر کښې شرکت کونکی ټول په ټول هم هغه اهل حديبيه وو هغه داسې چه کله رسول الله ﷺ د غزوه حديبيه نه مدينې طيبې ته راواپس شو نو مدينې طيبې ته د رسيدو سره د جبرائيل عليه السلام په اشاره باندې د خيبر د فتح دپاره سره د خپلو ټولو ملګرو روان شو، بيا په دې روايت کښې دی چه په هغوی کښې چه کوم صحابه کرام رضي الله عنهم د رسول الله ﷺ سره په فتح خيبر کښې شريک وو رسول الله ﷺ د هغوی حصه هم اولګوله، او کوم چه غائب وو د هغوی هم، په بذل المجهود کښې د تاريخ خميس نه نقل کړې شوې دی چه جابر بن عبدالله رضي الله عنهما په هغه غائبينو کښې دې چه د هغه رسول الله ﷺ حصه مقرر کړه، هم دغه شان بعض هغه صحابه کرام رضي الله عنهم کوم چه دحبشې نه واپس مدينې طيبې ته راغلل اوبيا خيبر ته اورسيدل پس د قتال د فراغت نه يعنی جعفر رضي الله عنه او دهغوی ملګری د اهل سفينه نه. (کما تقدم فی کتاب الجهاد) دهغوی هم رسول الله ﷺ حصه مقرر کړه دصحابه کرامو رضي الله عنهم په رضامندئ سره. (البذل)

[۳۰۲۰](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُمَرَ، قَالَ: لَوْلَا آخِرُ الْمُسْلِمِينَ مَا فُتِحَتْ قَرْيَةٌ إِلَّا قَسَمْتُهَا كَمَا قَسَمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ.

دعمر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی که چرې زما سره دهغه مسلمانانو فکرنه وې کوم چه زمونږ نه وروسته پيدا کيدونکی دې يعنی ددوی دضرورتونو نوهريو کلې اوښار چه فتح کيږی مابه داسې تقسيمولې لکه څنګه چه نبی عليه السلام خيبر تقسيم کړې وو.

﴿عن عمر رضي الله عنه قال لولا اخر المسلمين ما فتحت قرية الا قسمتها کما قسم رسول الله ﷺ خيبر﴾

## د ارض مفتوحه په باره کښې د عمر رضي الله عنه اثر او د هغې شرح :

عمر رضي الله عنه فرمائی چه که د روستو راتلونکو مسلمانانو ما سره غم نه وې او د هغوی رعايت کول مې مقصود نه وې نو د هرې قريې د فتح کولو نه پس به مې هغه د هغه قريې په غانمينو کښې تقسيمولې، څنګه چه رسول الله ﷺ خيبر تقسيم کړې وو (خو چونکه د روستو راتلونکو رعايت مقصود وو په دې وجه ئې نه تقسيموم) په دې وجه چه د زمکې د تقسيم نه پس خو د اشخاصو ملکيت شی او ورانډې په دې کښې ميراث وغيره جاری کيږی، د حاجت او عدم حاجت وغيره هلته هيڅ لحاظ نه وی، په خلاف د دې چه په دې صورت کښې د زمکو آمدنی په بيت المال کښې محفوظ وی او بيا هميشه د حاجت مطابق حاجتمندو ته ملاويږی هم دا مطلب دې د عمر رضي الله عنه د دې ارشاد... جزاه الله تعالی عن الاسلام والمسلمين خيرا الجزاء.

اصل کښې بعض خلقو د عمر رضي الله عنه نه د تقسيم مطالبه کړې وه نو هم په دې موقعه باندې عمر رضي الله عنه د عدمت تقسيم په معذرت کښې داسې خبره اوکړه، دا مضمون هم نزدې تير شوې دې. والحديث سکت عليه المنذری وقال الشيخ محمد عوامه ، اخرجه البخاری

(1): صحيح البخاري/الحرث ١٤ (٢٣٣٤)، فرض الخمس ١٤ (٣١٢٥)، المغازي ٣٨ (٤٢٣٥)، (تحفة الأشراف: ١٠٣٨٩)، وقد أخرجه: مسند أحمد (٣١/١، ٣٢) (صحيح)

الحمد لله په دې باب او احاديثو باندې کلام پوره شو، چه په هغې باندې بنده ډير محنت اوکړو. والله الموفق وهو الميسر

# بَابُ مَا جَاءَ فِي خَبَرِ مَكَّةَ

## د فتح مکې بيان

**فتح مكة نه پس د مكې د زمكې سره رسول الله ﷺ څۀ معامله اوفرمائيله:**

يعنى د فتح مكه قصه او بيان. د مكې فتح د جمهورو په نزد عنوة شوې ده، او د امام شافعي رحمه الله په رائې كښې صلحا شوې ده، د مكې زمكه رسول الله ﷺ د غانمينو ترمينځه تقسيم نه كړه بلكه هغه ئې د هم هغه ځائې دخلقو په لاسونو كښې پريخودله، د هغې د اوچت شان او دارالنسک كيدو د وجې نه. او دويمه خبره دا هم ده چه د ارض مفتوحه تقسيم د جمهور په نزد لازم هم نه دې، خو د امام شافعي رحمه الله په نزد د ارض مفتوحه تقسيم ضروري دې. خو د هغوى په مسلک باندې به هم اشكال د دې وجې نه نه وى چه د هغوى په نزد د مكې مكرمې فتح صلحا ده، د هغوى په نزد تقسيم خو د هغه زمكې واجب دې چه مفتوحه عنوة وى. اوس پاتې شوه دا خبره چه ارض مكه خراجي ده يا كه عشرى؟ دې په باره كښې مخكښې تير شوې دى چه د قياس تقاضا خو هم دا ده چه هغه خراجي وى خودمكې داوچت شان په بناء باندې خلاف قياس هغه خراجي نه كړې شوه.

دلته يو بحث بل دې چه په كتاب الحج كښې ﴿ الا نبى لک بمنى بيتا ﴾ الحديث د لاندې تير شوې دې هغه دا چه د حرم زمكه موقوف ده يا مملوک؟ او په دې كښې د علماء كرامو اختلاف بالتفصيل تير شوې دې. فتح مكه په رمضان ۸ هجرئ كښې اوشوه.

[۳۰۲۱](1) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْفَتْحِ جَاءَهُ الْعَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ بِأَبِي سُفْيَانَ بْنِ حَرْبٍ، فَأَسْلَمَ بِمَرِّ الظَّهْرَانِ، فَقَالَ لَهُ الْعَبَّاسُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ أَبَا سُفْيَانَ رَجُلٌ يُحِبُّ هَذَا الْفَخْرَ فَلَوْ جَعَلْتَ لَهُ شَيْئًا، قَالَ: "نَعَمْ مَنْ دَخَلَ دَارَ أَبِي سُفْيَانَ فَهُوَ آمِنٌ، وَمَنْ أَغْلَقَ عَلَيْهِ بَابَهُ فَهُوَ آمِنٌ"..

دابن عباس نه روايت دې چه دفتح مكې په كال باندې عباس به ابوسفيان بن حرف نبى عليه السلام ته راوستنو اوپه مر الظهران مقام كښې ئې اسلام قبول كړو په دې وخت كښې عباس رضي الله عنه عرض اوكړو اې دالله رسوله ابوسفيان يوداسې سړې دې چه نوم (شهرت) او مشرې خوښوى دابوسفيان دپاره كه چرې څه امتياز مقرر كړئ نوښه به وي ددې دپاره چه دې په هغې باندې فخر وكړې شي نبى عليه السلام اوفرمائيل څوك چه دابوسفيان كور ته داخل شي هغه ته پناه حاصل ده او څوك چه دخپل كور دروازه بنده كړي هغه ته هم پناه حاصل ده يعنى مونږ به ئې نه وژنو.

﴿ عن ابن عباس رضي الله عنهما ان رسول الله ﷺ عام الفتح جآءه العباس بن عبدالمطلب بابى سفيان فاسلم بمرالظهران ﴾

---

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٨٥٤) (حسن)

د باب دا ړومبې روايت خو مختصر دې، هم دا حديث په دويمې طريقې سره د دې نه پس را روان دې، په هغې کښې تفصيل دې.

[۳۰۲۲]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا سَلَمَةُ يَعْنِي ابْنَ الْفَضْلِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنِ الْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَعْبَدٍ، عَنْ بَعْضِ أَهْلِهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: لَمَّا نَزَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ الظَّهْرَانِ، قَالَ الْعَبَّاسُ: قُلْتُ: وَاللَّهِ لَئِنْ دَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ عَنْوَةً قَبْلَ أَنْ يَأْتُوهُ فَيَسْتَأْمِنُوهُ إِنَّهُ هَلَاكُ قُرَيْشٍ، فَجَلَسْتُ عَلَى بَغْلَةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْتُ: لَعَلِّي أَجِدُ ذَا حَاجَةٍ يَأْتِي أَهْلَ مَكَّةَ فَيُخْبِرُهُمْ بِمَكَانِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيَخْرُجُوا إِلَيْهِ فَيَسْتَأْمِنُوهُ فَإِنِّي لَأَسِيرُ إِذْ سَمِعْتُ كَلَامَ أَبِي سُفْيَانَ وَبُدَيْلِ بْنِ وَرْقَاءَ، فَقُلْتُ: يَا أَبَا حَنْظَلَةَ، فَعَرَفَ صَوْتِي، فَقَالَ أَبُو الْفَضْلِ: قُلْتُ: نَعَمْ قَالَ: مَا لَكَ فِدَاكَ أَبِي وَأُمِّي، قُلْتُ: هَذَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّاسُ، قَالَ: فَمَا الْحِيلَةُ؟ قَالَ: فَرَكِبَ خَلْفِي وَرَجَعَ صَاحِبُهُ فَلَمَّا أَصْبَحَ غَدَوْتُ بِهِ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَسْلَمَ، قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ أَبَا سُفْيَانَ رَجُلٌ يُحِبُّ هَذَا الْفَخْرَ فَاجْعَلْ لَهُ شَيْئًا، قَالَ: "نَعَمْ مَنْ دَخَلَ دَارَ أَبِي سُفْيَانَ فَهُوَ آمِنٌ وَمَنْ أَغْلَقَ عَلَيْهِ دَارَهُ فَهُوَ آمِنٌ وَمَنْ دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَهُوَ آمِنٌ"، قَالَ: فَتَفَرَّقَ النَّاسُ إِلَى دُورِهِمْ وَإِلَى الْمَسْجِدِ.

دابن عباس نه روايت دې چه کله نبي عليه السلام مرظهران ته راغي عباس ته وائي چه ما په زړه کښې سوچ اوکړو که چرې نبي عليه السلام دالښکر دځان سره بوځي اومکې ته داخل شي مخکښې ددې نه چه دوی ورته راشي او امن تري وغواړي نو دوی به هلاك شي بيا عباس رضي الله عنه اووئيل چه زه دنبي عليه السلام په قچر باندې په دې اراده سور شوم او روان شول چه کيدې شي چه څوك دضرورت دپاره وتلی وي اومکې ته روان وي او ماته ملاؤشي چه دمکې خلقوته خبر ورکړی ددې دپاره چه هغوی دمکې نه بهر راوځي اونبي عليه السلام ته حاضر شي اوپناه واخلي زه په دې خيال کښې روان ووم چه ماابوسفيان اوبديل بن ورقاء آواز واوريدو ما په تيز آواز سره اووئيل اې ابوحنظله هغه زما آواز او پيژندو نو وئې وئيل ابوالفضل ئې؟ ما ووئيل هو، ما ورته اووئيل په تاسوڅه شوي دي ستاسونه دې زمامور او پلارقربان شي مالووئيل دانبي عليه السلام دې اوداهغه لښکردې ابوسفيان اووئيل ما ورته اووئيل نوبيازه دبچ کيدو دپاره څه تدبير اختيارکړم؟ عباس نه ده لره په ځان پسې شاته سور کړو اودده ملګرې بديل بن ورقاء واپس شو عباس رضي الله عنه وائي چه کله سحر شوما ابوسفيان دنبي عليه السلام په خدمت کښې حاضرکړو اوده اسلام قبول کړو عباس اووئيل اې دالله رسوله ابوسفيان غواړي چه دده دپاره دې څه امتياز وي تاسودده دپاره دڅه امتياز حکم ورکړئ نبي عليه السلام اوفرمائيل څوك چه دابوسفيان کور ته داخل شي هغه ته پناه حاصل ده او څوك چه دخپل کور دروازه بنده کړي دوی ته هم پناه حاصل ده څوك چه مسجد ته داخل شي هغه ته پناه حاصل ده (يعنې مونږ به ئې نه وژنو)خلقو چه دا واوريدل نوپه خپلو خپلو کورونو او مسجد کښې پټ شول.

### مضمون د حديث او فتح مكه مكرمه:

مضمون د حديث دا دې، ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د غزوة الفتح په سفر

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۱۳۲) (حسن)

کښې مر الظهران ته اورسیدو چه مکې ته نزدې دې نو زما والد عباس ﷺ فرمائی چه ما په زړه کښې سوچ اوکړو چه که رسول الله ﷺ د دې لښکر سره په دې حال کښې عنوة داخل شو او اهل مکه د رسول الله ﷺ نه د امن د طلب کولو دپاره رانغلل نو بیا په دې کښې د قریشو یقینا هلاکت دې. هغوی فرمائی چه زه په دې فکر کښې اوم چه رسول الله ﷺ په خپله سورلئ باندې سوریدو سره یو خوا بل خوا داسې یو کس لټولو چه د خپل څه ضرورت دپاره مکې ته روان وی پس هغه تلو سره اهل مکه ته د رسول الله ﷺ هلته د رسیدو خبر ورکړی چه اهل مکه دلته د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راتلو سره د هغوی نه امن طلب کړی، زه هم په دې تلاش کښې اوم چه ناڅاپه ما د ابوسفیان ﷺ او د بدیل بن ورقاء د خبرو کولو آواز واوریدو. (دا دواړه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې مدینې طیبې ته د بیا دپاره د صلح یا د جنګ د خبرې برابرولو دپاره را روان وو. (۱) (کما فی الطبرانی) چه کله ما د هغه آواز واوریدو نو ما اووې ﴿ یا ابا حنظلة ! ﴾ هغه زما آواز اوپیژندلو، فورا ئې اووې ابوالفضل یعنی ته ابوالفضل ئې؟ (لا یو بل ته مخامخ شوې نه وو) ما اووې او. هغه اووې څه خبره ده زما مور پلار دې په تا باندې قربان وی؟ عباس ﷺ وائی ما اووې ﴿ هذا رسول الله ﷺ والناس ﴾ ما اووې نزدې طرف ته اشاره کولو سره چه دلته رسول الله ﷺ او د هغه مجمع موجود ده، هغه هم په اوریدو سره اویریدو ﴿ فما الحیلة؟ ﴾ وړاندې په روایت کښې دی عباس ﷺ فرمائی چه ما هغه په ځان پسې شاته سورلئ باندې کینولو او بدیل مکې ته واپس شو. چه کله سحر شو نو ما ابوسفیان ﷺ د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر کړو او هغه اسلام قبول کړو. ما عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ ابوسفیان داسې انسان دې چه فخر خوښوی (شیخی کوی) لهذا تاسو هغه سره لږ کرام اوفرمایئ، یعنی هغه ته داسې څیز ورکړئ چه د هغه دپاره د فخر سبب وی، نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل ښه، او بیا ئې اوفرمائیل ﴿ من دخل دار ابی سفیان فهو آمن ومن اغلق علیه داره فهو آمن ﴾ چه په اهل مکه کښې چه څوک د ابوسفیان کور ته ننوتل هغوی زمونږ د طرف نه په امن دی، او هم دغه شان په اهل مکه کښې چه کوم انسان د خپل کور دروازه بنده کړی، یعنی مسلمانانو سره د جنګ کولو دپاره بهر نه راوځی، هغه هم په امن دې، په دې باندې خلق خپلو خپلو کورونو ته لاړل او بعض مسجد حرام ته.

د دې نه روستو روایت کښې دا هم دی چه ﴿ ومن القی السلاح فهو امن وعمد صنادید قریش فدخلوا الکعبة فغصّ بهم ﴾ چه په دې اعلان باندې د قریشو سرداران کعبې ته داخل شو، کعبه د هغوی نه ډکه شوه، او رسول الله ﷺ د بیت الله طواف اوکړو، مقام ابراهیم سره ئې د

(۱) او په خپله دحضرت عباس (رض) باره کښې منقول دی چه هغه سره دخپل اهل وعیال دحضور اکرم (ص) مدینې ته د روانیدو نه مخکښې دهجرت په نیت سره دمکې نه وتلې وو څکه ددوی ملاقات دحضور پاک (ص) سره په لاره کښې په جحفه یا ذوالحلیفه کښې اوشو کله چه حضور (ص) د فتح مکې دپاره تلو، نوبیا حضرت عباس (رض) دحضور (ص) سره مکې ته واپس راغې او خپل اهل وعیال ئې مدینې ته اولیږل (بذل القوة فی حوادث سنی النبوة ص ۲۲۱).

طواف دوه رکعته مونځ اوکړو، د دې نه پس رسول اللهﷺ د بيت الله د دروازې دواړو طرفونو لره نيولو سره اودريدو، په دې باندې هغه خلق د دننه نه راووتل او د رسول اللهﷺ په لاس ئې بيعت اوکړو په اسلام باندې.

[۳۰۲۳](¹) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الصَّبَّاحِ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ الْكَرِيمِ، حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ عَقِيلِ بْنِ مَعْقِلٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ وَهْبِ بْنِ مُنَبِّهٍ، قَالَ: سَأَلْتُ جَابِرًا هَلْ غَنِمُوا يَوْمَ الْفَتْحِ شَيْئًا؟ قَالَ: لَا.

وهب بن منبه وائی دجابرنه مې تپوس اوکړو ايا صحابه کرامو دفتح مکې په ورځ څه غنيمت حاصل کړې وو؟ هغه اوفرمائيل نه.

﴿ سالت جابرا هل غنموا يوم الفتح شيئا قال لا ﴾ يعنې په دې فتح مکه کښې رسول اللهﷺ ته څه مال غنيمت حاصل نه شو ځکه چه د دې دپاره باقاعده د جنګ کولو حاجت رانغلو، اګر چه د رسول اللهﷺ د طرف نه د جنګ تيارې او انتظامات داسې اوشو څنګه چه په جنګ کښې وې خو هغوی ښکاره مقابلې ته رانغلل او اګر چه د هغوی د طرف نه د امن مطالبه هم نه وه چه داسې اوئيلې شي چه مکه صلحا فتح شوه د مسلمانانو د بعضو دستو سره څه اندازه د مقابلو ضرورت راغلو او په احترام مکه کښې د هغوی سره ډير رعايت اوکړې شو بيا به مال غنيمت څنګه حاصل شوې وې.

[۳۰۲۴](²) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا سَلَّامُ بْنُ مِسْكِينٍ، حَدَّثَنَا ثَابِتٌ الْبُنَانِيُّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَبَاحٍ الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا دَخَلَ مَكَّةَ سَرَّحَ الزُّبَيْرَ بْنَ الْعَوَّامِ، وَأَبَا عُبَيْدَةَ بْنَ الْجَرَّاحِ، وَخَالِدَ بْنَ الْوَلِيدِ عَلَى الْخَيْلِ، وَقَالَ: يَا أَبَا هُرَيْرَةَ اهْتِفْ بِالْأَنْصَارِ قَالَ: اسْلُكُوا هَذَا الطَّرِيقَ فَلَا يُشْرِفَنَّ لَكُمْ أَحَدٌ إِلَّا أَنَمْتُمُوهُ فَنَادَى مُنَادٍ لَا قُرَيْشَ بَعْدَ الْيَوْمِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ دَخَلَ دَارًا فَهُوَ آمِنٌ وَمَنْ أَلْقَى السِّلَاحَ فَهُوَ آمِنٌ". وَعَمَدَ صَنَادِيدُ قُرَيْشٍ فَدَخَلُوا الْكَعْبَةَ فَغَصَّ بِهِمْ وَطَافَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَصَلَّى خَلْفَ الْمَقَامِ، ثُمَّ أَخَذَ بِجَنْبَتَيِ الْبَابِ فَخَرَجُوا فَبَايَعُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْإِسْلَامِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ سَأَلَهُ رَجُلٌ قَالَ: مَكَّةُ عَنْوَةً هِيَ، قَالَ: إِيشْ يَضُرُّكَ مَا كَانَتْ؟ قَالَ: فَصُلْحٌ قَالَ: لَا.

دابوهريره نه روايت دې فرمائې کله چه نبي عليه السلام مکې ته داخل شو نوزبير بن عوام او ابوعبيده بن الجراح او خالد بن وليد ئې په اسونو باندې پريخودل او ابوهريره ځوک چه دابوسفيان کور ته داخل شي هغه ته پناه حاصل ده، ماته ئې حکم اوکړو و چه ته په انصاروکښې آواز اوکړه چه ددې لارې نه لار شي او ځوک چه د مخامخ طرف نه راځي هغه دې قتل کړې په دې وخت کښې يو آواز کونکې آواز اوکړو دنن نه پس به قريش نه وی نبی عليه السلام اوفرمائيل ځوک چه په خپل کور کښې کښېني هغه ته امن دې اوځوک چه اصلحه اوغورځوي هغه ته امن دې اودقريشو سرداران بيت الله ته داخل شول-اوبيت الله ددوی نه ډک شو نبی عليه السلام دبيت د الله طواف اوکړو او دمقام ابراهيم نه ئې شاته مونځ اوکړو اوبيا ئې دبيت الله د دروازې دوه چوکاټونه اونيول په دې وخت کښې چه په بيت الله کښې کوم خلق دننه وو بهر راو... ل اود نبی عليه السلام سره ئې په اسلام باندې بيعت اوکړو

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۱۳۵) (صحيح الإسناد)
²): صحيح مسلم/الجهاد ۳۱ (۱۷۸۰)، (تحفة الأشراف: ۱۳۵۶۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۲۹۲، ۵۳۸) (صحيح)

﴿ عن ابی هريرة ﷺ ان النبی ﷺ لما دخل مكة سرح الزبير ابن العوام ﷺ وابا عبيدة بن الجراح ﷺ وخالد بن الوليد ﷺ على الخيل ﴾

## د رسول الله ﷺ د طرف نه د لښکر په مکه مکرمه کښې د دخول ترتيب:

د ابوداؤد په دې روايت کښې اختصار دې، د مسلم په روايت کښې تفصيل دې، مضمون ددې حديث دا دې چه کله رسول الله ﷺ مکې مکرمې ته د داخليدو اراده اوفرمائيله [1] په کفارو باندې د حملې دپاره خو چونکه مکې مکرمې ته د داخليدو لارې ډيرې وې او د ټولو لارو ناکه بندی کول وو په دې وجه رسول الله ﷺ د لښکر ډيرې دستې جوړې کړې په دې دستو کښې بعض سوارۀ وو او بعض پياده، او د هرې دستې دپاره رسول الله ﷺ يو نګران تجويز کړو او هر امير ته ئې د هغه د داخليدو دپاره د لارې تعين اوفرمائيلو، يعنی فلانې امير دې د خپلې دستې سره په فلانئ لاره باندې داخل شی مثلاً د مکې د اعلیٰ حصې نه دې فلانې او د ښکته حصې نه دې فلانې داخل شی، د ابوداؤد په دې روايت کښې خو دی چه رسول الله ﷺ زبير، ابوعبيده او خالد بن الوليد ﷺ درې واړه په کسانو اميران کړل چه په آسونو باندې سوارۀ وو او اوئې ليږل، خو د مسلم په روايت کښې دی چه ﴿وبعث اباعبيدة على الحسر ﴾ چه ابوعبيده ﷺ رسول الله ﷺ په هغه دستې باندې امير کړو چه پياده وو او په هغوی باندې زغرې وغيره نه وې ﴿ وقال يا اباهريرة ﷺ اهتف بالانصار قال اسلكوا هذا الطريق فلا يشرفن لكم احدالا انمتموه ﴾ يعنی رسول الله ﷺ ابوهريره ﷺ ته اوفرمائيل چه انصارو ته آواز اوکړه او راوئې غواړه پس هغوی ټول حاضر شو نو رسول الله ﷺ هغوی ته يوې دستې طرف ته اشاره اوکړه او وې فرمائيل چه تاسو به په دې لاره باندې ځئ او دويمه خبره ئې ورته دا اوفرمائيله چه په دې مشرکينو کښې چه کوم ستاسو طرف ته سټ اوچت کړی تاسو هغوی هم هلته اوده کړئ، يعنی څوک چه د قتال دپاره مخکښې راشی هم هغه قتل کړئ او څوک چه ستاسو په ليدو باندې سره ښکته کړی يا روستو شی هغه ته هيڅ هم

---

[1] په سيرت المصطفیٰ ﷺ کښې دی چه رسول الله ﷺ په کداء مقام باندې تيريدو سره په پورته طرف باندې مکې ته داخل شو او خالد بن الوليد ته ئې د اسفل مکه مقام کدی نه د داخليدو او زبير ﷺ ته ئې د پورته طرف يعنی مقام کداء نه د داخليدو حکم ورکړو او دا تاکيد ئې ورته اوفرمائيلو چه تاسو پخپله په قتال شروع مه کوئ کوم سرې چه تاسو سره تعرض کوی د هغه سره جنګ کوئ، په صحيح مسلم کښې د ابوهريره ﷺ نه نقل دی چه رسول الله ﷺ انصار راوغوښتل او دا ئې ورته اوفرمائيل چه قريشو څه بدمعاشان ستاسو د مقابلې دپاره جمع کړی دی که هغوی د مقابلې دپاره راغلل نو د فصل په شان ئې پرې کړئ، صفوان بن اميه او عکرمة بن ابی جهل او سهيل بن عمرو په مقام خندمه کښې د مقابلې په قصد څه بدمعاشان جمع کړل، د خالد بن الوليد ﷺ سره ئې مقابله اوشوه، په مسلمانانو کښې دوه کسان شهيدان شو، خنيس بن خالد او کرز بن جابر فهری ﷺ، او په مشرکانو کښې دولس يا ديارلس کسان اووژلې شو، باقی ټول اوتختيدل، دا د ابن اسحاق روايت دې، او په مغازی د موسی بن عقبه کښې دی چه خالد بن الوليد ﷺ چه کله د اسفل مکه نه داخل شو نو بنو بکر او بنو حارث او څه خلق د قبيله هذيل او څه بدمعاشان د قبيله قريش نه راجمع وو، د خالد ﷺ د رارسيدو سره هغه خلقو حمله اوکړه، خالد بن وليد ﷺ چه کله د هغوی مقابله اوکړه نو هغوی ئې طاقت اونلرلې شو، شکست خوړلو سره اوتختيدل، د بنو بکر تقريبا شل کسان او د هذيل درې يا څلور کسان قتل شو او باقی اوتختيدل څوک په کور کښې پټ شو، او څوک غر ته اوختلو. آه)

مه وایئ ﴿ فنادی منادی : لا قریش بعد الیوم ﴾ او یو اعلان کونکی اعلان اوکړو چه د نن پس د قریشو خاتمه ده، یعنی که هغوی مقابلې ته راغلل. ګینې رسول الله ﷺ خو هغوی ته د امان پروانه ورکړې وه د عدم قتال په صورت کښې.

حدیث ابی هریرة رضی الله عنه اخرجه مسلم بنحوه مطلقا، قاله المنذری

## بَاب مَا جَاءَ فِي خَبَرِ الطَّائِفِ
### د فتح طائف بیان

**غزوه طائف :**

د غزوه طائف مختصر قصه داسې لیکلې شوې ده : رسول الله ﷺ د حنین د مال غنیمت او د قیدیانو متعلق دا حکم ورکړو چه په جعرانه کښې دې جمع کړې شی او خپله ئې د طائف قصد اوکړو، اوطائف ته د تلو نه مخکښې ئې طفیل بن عمرو الدوسی رضی الله عنه د ځو موحدینو سره د یو بت (چه د هغه نوم ذوالکفین وو) د سیزلو دپاره اولیږل، د رسول الله ﷺ طائف ته د رسیدو نه څلورورځې پس طفیل بن عمروهم راورسیدو او یو دبابه (ټینک) او منجنیق ئې راوړل. مالک بن عوف نصری د هوازن سپه سالار سره د خپل فوج نه د رسول الله ﷺ د رسیدو نه مخکښې د طائف په قلعه کښې داخلیدو سره دروازه بنده کړې وه او د ځو کالو غله او د خوراک څکاک سامان ئې په قلعه کښې کیخودلې وو، رسول الله ﷺ طائف ته د رسیدو سره د هغوی محاصره اوکړه او د منجنیق په ذریعه ئې په هغوی باندې کاڼړی اوروِل، هغه خلقو د قلعه په دیوال باندې غشی ویشتونکی کینول هغوی داسې سخت غشی اُووَرول چه ډیر مسلمانان زخمی شو، او دولس صحابه کرام شهیدان شول، خالد بن الولید رضی الله عنه لاس په لاس مقابلې دپاره راوبلل خو جواب ورته دا ملاؤ شو چه مونږ ته د قلعه نه د کوزیدو ضرورت نشته، د کلونو غله مونږ سره موجود ده چه کله دا ختمه شی نو بیا به مونږ توري اخستلو سره درکوزیږو. مسلمانانو په دبابونو کښې کیناستلو سره د قلعه د دیوال ماتولو کوشش اوکړو، هغوی د بره نه د اوسپنې ګرم سیخونه راویشتل چه په هغې باندې مسلمانان شاته شو، په دې لیدو باندې رسول الله ﷺ د باغونو د پرې کولو حکم ورکړو، د قلعه والا خلقو رسول الله ﷺ ته د الله او د خپلولئ واسطه ورکړه نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه زه دا د الله پاک او د خپلولئ دپاره پریږدم، د دې نه روستو ئې د دیوال د قلعه سره دا اعلان اوکړو چه کوم غلام د قلعه نه کوزیدو سره مونږ ته راشی هغه آزاد دې. پس دولس دیارلس غلامان بهر ته راغلل، هم هغه وخت رسول الله ﷺ یو خوب اولیدو چه د پیو یو پیاله رسول الله ﷺ ته پیش کړې شوه یو چرګ راغلو او په هغې کښې ئې مخوکه اووهله چه په هغې باندې هغه پئ پریوتل رسول الله ﷺ دا خوب صدیق اکبر رضی الله عنه ته بیان کړو، هغوی اوفرمائیل غالبا دا قلعه به اوس نه فتح کیږی هغوی نوفل بن معاویه دیلمی راوبللو او دهغوی نه ئې تپوس اوکړو چه ستاسو څه رائې ده؟ نوفل اووې یا رسول الله ﷺ! لومبړه په خپله سوړه کښې ده که ایسار شو نو او به ئې نیسو او که پرې ئې ږدو نو ستاسو هیڅ نقصان نشته. د ابن سعد په روایت کښې دی چه عمر رضی الله عنه راغلو او عرض ئې اوکړو یا

نبی الله ﷺ د دوی په حق کښې بد دعا اوکړئ، رسول الله ﷺ اوفرمائیل الله پاک ماته اجازت نه دې راکړې، بیا عمر رضی الله عنه اوفرمائیل چه مونږ ته دوی سره د جنګ کولو څه ضرورت دې، رسول الله ﷺ د روانیدو حکم ورکړو او د تلو په وخت ئې دا دعا اوکړه ﴿اللهم اهد ثقیفا وات بهم﴾ پس روستو هغه قلعه پخپله فتح شوه ټول خلق مسلمانان شول او د مالک بن عوف نصری د هغوی سردار د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضریدو سره په اسلام باندې مشرف شو.

**تنبیه**: مونږ سره په ابوداؤد کښې په باب الاقطاع کښې هم د دې غزوه طائف متعلق په یو روایې کښې هم دغه شان دی چه یو صحابی صخر بن عیله الاحمسی رضی الله عنه فرمائی چه کله ما واوریدل چه رسول الله ﷺ د ثقیف سره غزوه کوی نو زه هم د یو جماعت سره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم هلته مې اوکتل چه رسول الله ﷺ واپس تشریف اوړې دې او رسول الله ﷺ هغه فتح نه کړو نو ما عهد اوکړو د الله پاک سره چه دا قلعه به ضرور فتح کوم، پس بیا هم دغه شان اوشوه، الحدیث. خو کوم کتابونه چه مونږ د غزوه طائف متعلق اوکتل په هغې کښې د صخر بن عیله رضی الله عنه قصه چرته هم ملاؤ نه شوه، فلیفتش... د دې نه پس په البدایة والنهایة ۳۵۱/٤ کښې دا ملاؤ شو چه هغوی د غزوه طائف د پوره قصې لیکلو نه پس په آخیر کښې د ابوداؤد دا روایت (د صخر بن عیله رضی الله عنه والا) نقل کولو نه پس فرمائیلي دی: تفرد به ابوداؤد، وفی اسناده اختلاف. آه.

[۳۰۲۵] (¹) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الصَّبَّاحِ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ الْكَرِيمِ، حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ يَعْنِي ابْنَ عَقِيلِ بْنِ مُنَبِّهٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ وَهْبٍ، قَالَ: سَأَلْتُ جَابِرًا عَنْ شَأْنِ ثَقِيفٍ إِذْ بَايَعَتْ، قَالَ: اشْتَرَطَتْ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ لَا صَدَقَةَ عَلَيْهَا وَلَا جِهَادَ، وَأَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ ذَلِكَ يَقُولُ: "سَيَتَصَدَّقُونَ وَيُجَاهِدُونَ إِذَا أَسْلَمُوا".

دوهب نه روایت دې فرمائی چه دجابر رضی الله عنه نه مې تپوس اوکړو کله چه ثقیف قبیلې بیعت کولو نو هغوی څه شرطونه پیش کړي وو؟ هغه اووئیل چه هغوی په نبی علیه السلام باندې داشرط لګولو چه په دوی باندې به زکات نه وی اونه جهاد ددې نه پس بیا ما دنبی علیه السلام نه واوریدل چه فرمائیل ئې کله چه دا خلق مسلمانان شي نوامید دې چه زکات به هم ورکوي اوجهاد به هم کوي.

﴿سالت جابرا عن شان ثقیف اذا بایعت﴾ مضمون د حدیث دا دې چه قبیله ثقف چه کله د رسول الله ﷺ په خدمت کښې مدینې طیبې ته حاضر شو او د رسول الله ﷺ په لاس مبارک هغوی بیعت علی الاسلام اوکړو نو هغوی هغه وخت دا شرط اولګولو چه په مونږ باندې به زکوة او جهاد هیڅ نه وی، رسول الله ﷺ د هغوی دا شرط هغه وخت منظور کړو، په روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ روستو اوفرمائیل چه دا خلق به د اسلام د راوړلو نه پس صدقه او جهاد هر څه کوی، په بل حدیث کښې دی ﴿فاشترطوا علیه ان لا یحشروا ولا یعشروا ولا یجبوا﴾ هغوی دا شرط اولګولو چه هغوی دې نه په جهاد کښې بوتللې شي، نه دې رانه نه

¹): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۳۱۳٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۴۱/۳) (صحیح)

عشر او زکوة واخستلې شی، او نه به مونځ کوی، لا يجبوا مثلا لا يصلوا لفظا و معنى والتجبية ان يكون كهيئة الركوع، يعنی داسې ښکته کیدل څنګه چه په رکوع کښې ښکته کیږی.

[۳۰۲٦]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَلِيِّ بْنِ سُوَيْدٍ يَعْنِي ابْنَ مَنْجُوفٍ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ، أَنَّ وَفْدَ ثَقِيفٍ لَمَّا قَدِمُوا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْزَلَهُمُ الْمَسْجِدَ لِيَكُونَ أَرَقَّ لِقُلُوبِهِمْ فَاشْتَرَطُوا عَلَيْهِ أَنْ لَا يُحْشَرُوا وَلَا يُعْشَرُوا وَلَا يُجَبُّوا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَكُمْ أَنْ لَا تُحْشَرُوا وَلَا تُعْشَرُوا وَلَا خَيْرَ فِي دِينٍ لَيْسَ فِيهِ رُكُوعٌ".

دعثمان بن ابی العاص نه روایت دې فرمائی چه کله نبی علیه السلام ته دثقیف وفد راغې نوجومات ته ئې بوتلل ددې دپاره چه ددوی زړونه نرم شي اودوی په نبی علیه السلام باندې داشرط لګول غوښتل چه په زبردستي سره دې مونږ جهادتلوته تیارنه یو، اونه مونږ بالفعل زکواة ورکولو ته نیاریو، اونه مونږ مونځ کولوته تیار یو، نبی علیه السلام اوفرمائیل جهاد ته تلل خوڅه خبره نده ځکه چه نورخلق موجوددي اودزکوة ورکولو دپاره کال تیریدل ضروري دي اوس خولا کال نه دې تیرشوي لیکن هغه دین څه ښه دین نه وی په کوم کښې چه رکوع (مونځ نه وي.

**په اسلام کښې د ټولو نه زیات اهمیت د مانځه دي:**

رسول الله ﷺ د هغوی مخکښې دواړه شرطونه منظور کړل او د دریم شرط په باره کښې ئې اوفرمائیل ﴿ لا خير في دين ليس فيه ركوع ﴾ چه په داسې دین کښې څه خیر کیدې شی چه په هغې کښې رکوع او سجدې (مونځ) نه وی.

د دې حدیث نه په اسلام کښې د مانځه چه کوم اهمیت معلومیږی هغه ښکاره دې، دا حدیث مونږ د کتاب الصلوة د شروع په بحثونو کښې ذکر کړې دي.

دا باب د خبر طائف سره متعلق وو، اهل طائف چونکه پخپله په اسلام کښې داخل شوي وو په دې وجه دا زمکه عشری شوه (کما مر قبل ذلک فی بیان الانواع الاراضی المفتوحة)

# بَابُ مَا جَاءَ فِي حُكْمِ أَرْضِ الْيَمَنِ

## د یمنیا نواو د یمن د زمکې بیان

اهل یمن هم چونکه په خپله خوښه اسلام کښې داخل شو په دې وجه ارض یمن هم عشری ده.

[۳۰۲۷]() حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، عَنْ أَبِي أُسَامَةَ، عَنْ مُجَالِدٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ عَامِرِ بْنِ شَهْرٍ، قَالَ: خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ لِي هَمْدَانُ: هَلْ أَنْتَ آتٍ هَذَا الرَّجُلَ وَمُرْتَادٌ لَنَا فَإِنْ رَضِيتَ لَنَا شَيْئًا قَبِلْنَاهُ وَإِنْ كَرِهْتَ شَيْئًا كَرِهْنَاهُ؟ قُلْتُ: نَعَمْ، فَجِئْتُ حَتَّى قَدِمْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَضِيتُ أَمْرَهُ وَأَسْلَمَ قَوْمِي، وَكَتَبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذَا الْكِتَابَ إِلَى عُمَيْرٍ ذِي مَرَّانٍ، قَالَ: وَبَعَثَ مَالِكَ بْنَ مِرَارَةَ الرَّهَاوِيَّ إِلَى الْيَمَنِ جَمِيعًا، فَأَسْلَمَ عَكٌّ ذُو خَيْوَانَ، قَالَ: فَقِيلَ لِعَكٍّ: انْطَلِقْ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخُذْ مِنْهُ الْأَمَانَ عَلَى قَرْيَتِكَ وَمَالِكَ، فَقَدِمَ وَكَتَبَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ مِنْ مُحَمَّدٍ رَسُولِ اللَّهِ لِعَكٍّ ذِي خَيْوَانَ إِنْ كَانَ صَادِقًا فِي أَرْضِهِ وَمَالِهِ وَرَقِيقِهِ فَلَهُ الْأَمَانُ وَذِمَّةُ اللَّهِ وَذِمَّةُ مُحَمَّدٍ رَسُولِ اللَّهِ، وَكَتَبَ خَالِدُ بْنُ سَعِيدِ بْنِ الْعَاصِ.

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۹۷٦٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۱۸/٤) (ضعيف)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۰٤۳) (ضعيف الإسناد)

دعامربن شهرنه روایت دې فرمائی هرکله چه نبی ﷺ لاړونو ماته دهمدان قبیلې خلقو ووئیل ایانه به دومره وکړې شي چه دغه سړی (محمد)ته ورشي اوزمونږ متعلق ورسره خبرې اترې وکړي؟ که چرې تا زمونږ دپاره څه خبره خوښه کړه نومونږ به ئې قبول کړواوکه چرې تاکومه خبره خوښه نکړه نو مونږبه ئې هم نه خوښوو ماووئیل ولي نه ددې نه زه نبی ﷺ ته روان شوم تردې مسجدنبوی ته ورسیدم اودنبی ﷺ کار(دین اسلام)مې خوښ شو اوزماد قوم خلقو اسلام قبول کړو، اونبی ﷺ عمیر ذي مران ته یوخط ولیګلو، راوي وائی چه نبی ﷺ ددین اسلام دتبلیغ دپاره مالك بن مراره رهاوي ټول اهل یمن والا ته ولیږلواود عك ذوخیوان په نوم یوکس وو چه اسلام ئې قبول کړو، خلقوورته ووئیل چه ته نبی ﷺ ته ورشه اودهغه نه دخپل مال اوکلي دپاره امان واخله نودغه کس دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضرشو،نبی ﷺ دده دپاره خط اولیکلو: بسم الله الرحمن الرحیم د محمد رسول الله دطرف نه دپاره دعك ذوخیوان، که چرې دې رښتوني وي نوده ته امان دې دده دزمکو اوغلامانو اومالونوپه باره کښې اودغه هرڅه دالله اودهغه درسول په ذمه کښې دي اوداتحریر خالد بن سعیدبن العاص لیکلې وو.

﴿ عن عامر بن شهر قال خرج رسول اللهﷺ فقالت لی همدان : هل انت ات هذا الرجل ومرتاد لنا فان رضیت لنا شیئا قبلناه ﴾

## شرح الحدیث :

عامر بن شهر یمنی همداني وائی چه د رسول اللهﷺ د نبوت او بعثت ظهور اوشو نو ما ته زما قوم همدان اووې چه آیا ته هغه سړی ته تلې شې او زمونږ دپاره ترې نه څه څیز طلب کولې شې یعنی د خیر خبره او حق. پس که تاسو یو څیز خوښ کړو (دین اسلام طرف ته اشاره ده) نو مونږ به هم هغه قبول کړو. او که تا ناخوښه کړو نو مونږ به ئې هم ناخوښه کړو، ما جواب ورکړو چه او زه دا کار کولې شم، پس زه د رسول اللهﷺ په خدمت کښې حاضر شوم او د رسول اللهﷺ خبره زما ډیره زیاته خوښه شوه چه په هغې باندې زما قوم (همدان) اسلام قبول کړو. او رسول اللهﷺ یو خط اولیکلو او د عمیر ذی مران طرف ته ئې اولیږلو، دا هم همدانی دې چا چه د رسول اللهﷺ په زمانه کښې اسلام راوړې وو چه په ظاهره د همدان قوم رئیس وو. او مالک بن مراره ئې هم اولیږلو د ټولو اهل یمن طرف ته یعنی د دعوت اسلام دپاره، پس په دې باندې عک ذو خیوان اسلام راوړو دا سړې هم همدانی او یمنی وو، ذوخیوان د هغه لقب دې، دا هم د قوم لوئې سړې وو، پس هغه ته اوئیلې شو چه ته هم لاړ شه او د رسول اللهﷺ نه کتاب الامان حاصل کړه د خپل ټول کلی او مال په باره کښې، پس هغه د رسول اللهﷺ په خدمت کښې حاضر شو او رسول اللهﷺ هغه ته دا خط اولیکلو ﴿ بسم الله الرحمن الرحیم من محمد رسول الله ﷺ لعک ذی خیوان ان کان صادقا فی ارضه وماله ورقیقه فله الامان وذمة الله وذمة محمد رسول اللهﷺ، وکتب خالد بن سعید بن العاص ﴾ یعنی د دې لیک په آخره کښې کاتب خپل نوم اولیکلو، دا خالد بن سعید د رسول اللهﷺ په کاتبینو کښې دې.

د دې روايت نه معلومه شوه چه چونکه عک ذو خيوان، هم دغه شان عمير ذو مران په خپله اسلام کښې داخل شو، د مسلمانانو هغوی سره د غزوې او فتح ضرورت رانغلو لهذا دا خلق د خپلو زمکو او د خپلو املاکو خپله مالکان پاتې شو او هغوی ته په دې خبره باندې د رسول الله ﷺ د طرف نه عهدنامه او کتاب الامان (سرټيفکيټ) حاصل شو، او دا هم ثابته شوه چه دا زمکه عشری ده،

[۳۰۲۸]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَحْمَدَ الْقُرَشِيُّ، وَهَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ الزُّبَيْرِ حَدَّثَهُمْ، قَالَ: حَدَّثَنَا فَرَجُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنِي عَمِّي ثَابِتُ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِيهِ سَعِيدٍ يَعْنِي ابْنَ أَبْيَضَ، عَنْ جَدِّهِ أَبْيَضَ بْنِ حَمَّالٍ، أَنَّهُ كَلَّمَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الصَّدَقَةِ حِينَ وَفَدَ عَلَيْهِ، فَقَالَ: يَا أَخَا سَبَإٍ لَا بُدَّ مِنْ صَدَقَةٍ"، فَقَالَ: إِنَّمَا زَرْعُنَا الْقُطْنُ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَقَدْ تَبَدَّدَتْ سَبَأٌ وَلَمْ يَبْقَ مِنْهُمْ إِلَّا قَلِيلٌ بِمَأْرِبَ، فَصَالَحَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى سَبْعِينَ حُلَّةَ بَزٍّ مِنْ قِيمَةِ وَفَاءِ بَزِّ الْمَعَافِرِ كُلَّ سَنَةٍ عَمَّنْ بَقِيَ مِنْ سَبَإٍ بِمَأْرِبَ فَلَمْ يَزَالُوا يُؤَدُّونَهَا حَتَّى قُبِضَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَإِنَّ الْعُمَّالَ انْتَقَضُوا عَلَيْهِمْ بَعْدَ قَبْضِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيمَا صَالَحَ أَبْيَضُ بْنُ حَمَّالٍ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْحُلَلِ السَّبْعِينَ، فَرَدَّ ذَلِكَ أَبُو بَكْرٍ عَلَى مَا وَضَعَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى مَاتَ أَبُو بَكْرٍ، فَلَمَّا مَاتَ أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ انْتَقَضَ ذَلِكَ وَصَارَتْ عَلَى الصَّدَقَةِ.

د ابيض بن حمال رضی الله عنه نه روايت دې فرمائي چه زه په وفد کښې راغلي وم او دنبی علیه السلام سره مې د صدقې متعلق خبرې وکړې، نبی علیه السلام اوفرمائيل اې سبا والارو (سباپه يمن کښې ديوښارنوم دې) زکوة اداکول لازمی دي ابيض بن حمال ووئيل اې دالله رسوله زمونږ فصل خوصرف قنبه (مالوچ) وي اودسبا خلق يوځائې بل ځائې ته تلي دي البته دقوم سبا يوڅه افراد په مارب مقام کښې پاتې شوي دي نبی علیه السلام دهغوی سره په اوياجوړو معافري کپړوباندې مصالحت وکړواودغه خلقوبه هميشه ددې جوړو ادائگی کوله تردې چه نبی علیه السلام وفات شو او دنبی علیه السلام دوفات نه پس عاملينو داوياجوړو مصالحت نامه ماته کړې کومه چه ابيض بن حمال دنبی علیه السلام سره کړې وه بياچه کله ابوبکر داخبره واوريدله نوهغه دوباره دنبی علیه السلام فرمان بحال کړوکله چه ابوبکر رضی الله عنه وفات شونو معاهده فسخ شوه اودنورو خلقو په شان به ددوی نه هم صدقه وصول کيدله.

﴿عن ابيض بن حمال انه كلم رسول الله ﷺ في الصدقة حين وفد عليه فقال يا اخا سبا لا بد من صدقة فقال انما زرعنا القطن يا رسول الله ﷺ وقد تبددت سبا ولم يبق منهم الا قليل بمارب﴾

## شرح الحديث:

مارب د بلاد يمن نه دې او سبا د يو قوم نوم دې کوم چه هلته آباد وو، دا ابيض بن حمال ماربی سبائی وو هغه د رسول الله ﷺ سره چه کله د هغوی په خدمت کښې حاضر شو (په ظاهره د اسلام راوړلو دپاره) خو هغوی رسول الله ﷺ سره د صدقې په باره کښې خبرې اوکړې يعنی دا چه هغه معاف کړې شي يا دې په هغې کښې تخفيف اوکړې شي نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل اې سبا والا! صدقه خو په اسلام کښې ضروری ده هغوی خپل اقتصادی حالت او کمزورئ بيان کړې، هغه دا چه زمونږ پيدا وار خو مالوچ دې يا رسول الله ﷺ!

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢) (ضعيف الإسناد)

(یعنی معمولی شان) او زمونږ قوم سبا منتشر شو او په هغوی کښې لږ شان باقي پاتې شو په مارب کښې. د دې نه پس په حدیث کښې رسول اللهﷺ چه د هغوی سره په کوم څیز باندې صلح اوکړه د هغې ذکر دې ﴿ فصالح النبی ﷺ علی سبعین حلة من قیمة وفاء بز المعافر کل سنة عمن بقی من سبا بمارب ﴾ یعنی رسول اللهﷺ چه په دوی باندې کومه صدقه واجب کیدله د هغې په باره کښې په اویا جوړو باندې مصالحت اوفرمائیلو، یعنی هر کال به د کپړو اویا جوړې تاسو ورکوئ، د قبیلې سبا د هغه ټولو خلقو د طرف نه چه په موضع مارب کښې باقی پاتې شوې دی، حله چونکه د قیمت په اعتبار سره کمیږی او زیاتیږی نو په دې وجه رسول اللهﷺ د هغه جوړې قیمت متعین کړو چه مصالحت په مجهول څیز باندې لازم نه شی. ﴿ بزمعافر ﴾ یعنی د کپړې یو مشهور قسم دې چه معلوم القیمت دې نو مطلب دا شو د دې عبارت چه داسې اویا جوړې چه په قیمت کښې د بزمعافر برابر وی هغه به ادا کوئ وړاندې په روایت کښې دی چه دې خلقو به دا مقدار ادا کولو د رسول اللهﷺ په ژوند کښې،اود رسول اللهﷺ دوفات نه پس عمالودامعاهده ختمه کړه یعنی ددې لحاظ ئې اونکړو، صدیق اکبر رضی الله عنه ته چه کله معلومه شوه نوهغوی دادرسول اللهﷺ د قرارداد مطابق برقرار اوساتله، د صدیق اکبر رضی الله عنه د وفات نه پس بیا هغه معاهده ګډه وډه شوه ﴿وصارت الی الصدقة ﴾ یعنی د اصل قاعدې مطابق چه به څومره صدقه وه هم په هغې اودریده.

**ما استفید من الحدیث :**

په دې حدیث کښې دی چه رسول اللهﷺ هغه خلقو سره د صدقې په باره کښې په یو مقدار معین باندې صلح اوکړه، د ګنګوهی رحمه الله په تقریر کښې دی چه که د صدقې نه مراد دلته زکوة دې او ګویا د زکوة په مقابله کښې رسول اللهﷺ په یو مقدار معین باندې مصالحت اوفرمائیلو. نو دا به د رسول اللهﷺ خصوصیت وی، د رسول اللهﷺ نه علاوه د بل امام دپاره د زکوة مفروضه په باره کښې په یو مقدار معینه باندې صلح کول جائز نه دی، او که د صدقې نه مراد دلته د زمکې د پیداوار عشر دې، نو بیا په دې صورت کښې هیڅ اشکال نشته، په عشر کښې ګنجائش شته د بل چا دپاره هم. (بذل)

## بَابٌ فِي إِخْرَاجِ الْيَهُودِ مِنْ جَزِيرَةِ الْعَرَبِ

**د جزیرة العرب نه د یهودیانو د شړلو بیان**

**د جزیرة العرب تحدید او د دې مصداق :**

جزیره د هغه آبادئ نوم دې چه دهغې څلور واړو طرفونو ته اوبه وی، د عربو د زمکې درې طرفونو ته اوبو دی مشرق مغرب او جنوب او په شمال کښې آبادی ده هم په دې وجه د عرب نه په جزیره نما سره تعبیر کولې شی، د جزیره عرب تهدید او د هغې مصداق وړاندې په متن کښې داسې راروان دې.

﴿ جزیرة العرب ما بین الوادی الی اقصی الیمن الی تخوم العراق الی البحر ﴾ یعنی جنوب کښې د

يمن د انتهاء نه واخله تر د عراق د حدودو پورې (۱) او د وادی القرى نه سمندر پورې د مينځ علاقې ته جزيرة العرب وائی يعنی په شمال کښې حدود د عراق په جنوب کښې اقصائې يمن، په مغرب کښې جده وما حولها د ينبع نه واخله تر وادی القرى پورې، او په مشرق کښې خليج فارس پورې چه څومره علاقه ده دې ته جزيرة العرب وائی او په بذل کښې حضرت د علامه شامی نه دا نقل کړی دی چه جزيرة العرب په پنځو مناطقو باندې تقسيم ده، تهامه، نجد، حجاز، عروض، يمن، تهامه خو د حجاز جنوبی حصه ده، او نجد د هغه حصې نوم دې کوم چه د عراق او د حجاز ترمينځه ده، او حجاز د هغه غر مخامخ حصې ته وائی کوم چه د يمن نه واخله شام پورې مسلسل تللې دې او عروض ديمامه علاقه ده کومه چه د بحرين پورې ده او په صحيح بخاری کتاب الجهاد باب جوائز الوفد کښې دی چه مغيره بن عبدالرحمن نه سوال اوکړې شو د جزيرة العرب په باره کښې ﴿ فقال مكة والمدينة واليمامة واليمن ﴾

[۳۰۲۹](۲) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ سُلَيْمَانَ الْأَحْوَلِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْصَى بِثَلَاثَةٍ، فَقَالَ: أَخْرِجُوا الْمُشْرِكِينَ مِنْ جَزِيرَةِ الْعَرَبِ وَأَجِيزُوا الْوَفْدَ بِنَحْوِ مِمَّا كُنْتُ أُجِيزُهُمْ، قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: وَسَكَتَ عَنِ الثَّالِثَةِ أَوْ قَالَ: فَأُنْسِيتُهَا، وقَالَ: الْحُمَيْدِيُّ، عَنْ سُفْيَانَ، قَالَ سُلَيْمَانُ: لَا أَدْرِي أَذَكَرَ سَعِيدٌ الثَّالِثَةَ فَنَسِيتُهَا، أَوْ سَكَتَ عَنْهَا.

دابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام په درې خبرو باندې وصيت فرمائيلی وو يو دا چه مشرکان به دجزيرة العرب نه اوباسئ أوبل داچه دسفير او قاصد سره به سلوک کوئ لکه څنګه چه ئې زه کوم، سعيد وائی چه ابن عباس ددريم وصيت دبيانولو نه سکوت اوفرمائيلو اوکه داسې ئې ووئيل چه دريم وصيت رانه هيرشوې دې.

## شرح الحديث:

**قوله:**﴿ عن ابن عباس رضی الله عنهما ان النبی صلی الله علیه وسلم اوصى بثلاثة فقال اخرجوا المشركين من جزيرة العرب واجيزوا الوفد بنحوها ما كنت اجيزهم ﴾: يعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم د وفات په وخت د درې څيزونو وصيت اوفرمائيلو يو د جزيرة العرب نه (۳) د مشرکينو د اخراج په مشرکانو کښې يهود او نصاری

---

(۱) په دې طريقه چه يمن داخل او عراق خارج وی،

(۲): صحيح البخاري/الجهاد ۱۷۵ (۳۰۵۳)، الجزية ٦ (۳۱٦۸)، المغازي ۸۳ (٤٤۳۱)، صحيح مسلم/الوصية ٥ (۱٦۳۷)، (تحفة الأشراف: ٥٥۱۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۲۲۲) (صحيح)

(۳) اوس دا چه د جزيرة العرب نه ټول جزيرة العرب مراد دې يا که په دې کښې څه تخصيص شته، دې باره کښې په بذل کښې دی ﴿ قيل المراد بها مكة والمدينة ونقل الطيبي ان الشافعي خص هذا الحكم بالحجاز وهو عنده مكة والمدينة واليمامة وحواليها دون اليمن وغيره اهـ وفي. العون .وقال مالك بن انس اراد بجزيرة العرب المدينة نفسها آهـ وفي. العرف الشذي : الكافر لا يقيم في جزيرة العرب، نعم يجوز له المرور واختلف في ان الحكم لجميع جزيرة العرب او لبعضها، واشار الي الاول الطحاوي في مشكل الآثار، واختصره محمد في موطاه، آهـ او په موطاء د امام محمد رحمه الله کښې دی قال محمد ان مكة والمدينة وما حولهما من جزيرة العرب (۳۷۳) خو د دې نه دا نه معلوميږی چه په دې حديث کښې جزيرة العرب په خپل عموم باندې دې يا که د دې نه بعض مراد دی، ﴿ فليفتش كتب الحنفية في ذلك ﴾

هم داخل دی، دا دوه ډلې دمشرکين اهل کتاب دی ﴿لانهم يقولون عزير ابن الله والمسيح ابن الله﴾ د رومبۍ خبرې قائل يهود دی او د دويمې خبرې قائل نصاری دی، او مجوس خو مشترک دی حکم مذکور فی الحديث يعنی د دې اخراج په باره کښې په بدائع کښې ليکلې شوې دی چه د عربو په زمکه باندې دې هيڅ کنيسه يا بيعه باقی پرې نخودلې شی او نه دې هلته د شرابو بيع او د خنزير اجازت ورکړې شی، که ښهر وی او که بانډه وی او يا ماء من مياه العرب وی، ويمنع المشرکون ان يتخذوا ارض العرب سکنا ووطنا، کذا ذکره محمد تفضيلا لارض العرب علی غيرها وتطهيرا لها عن الدين الباطل، للحديث المذکور (البذل) او دويم وصيت دا دې چه راتلونکو وفدونو ته جائزه ورکړې شی يعنی ډالئ، يعنی د هغوی په راتلو باندې دې د هغوی اهتمام اوکړې شی، هر قسم خيال دې اوساتلې شی او هغوی ته دې هديه هم پيش کړې شی، د دې امر تعلق د هغوی نه روستو راتلونکو امامانو سره دې چه وفود خو د امام المسلمين ميلمانهٔ وی او هسې خو د هر ميلمه په ميلمستيا او اعزاز او اکرام باندې هر مسلمان مامور دې. ﴿قال ابن عباس رضي الله عنهما وسکت عن الثالثة او قال فانسيتها﴾ د دريم وصيت په باره کښې ابن عباس رضي الله عنهما تردد ښکاره کوی چه يا خو رسول الله ﷺ خاموش شو او يا مانه هير دی [1] شراح ليکلې دی چه د دې امر ثالث په مصداق کښې چه په نورو روايتونو کښې

[1] د دې جملې ظاهری معنی هم دا ده چه ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي: او رسول الله ﷺ د امر ثالث نه سکوت اوفرمائيلو، وړاندې د راوی شک دې چه يا ابن عباس رضي الله عنهما دا اوفرمائيل چه امر ثالث رسول الله ﷺ خو ذکر کړې وو خو مانه هير شو، پس صاحب د عون المعبود هم دا مطلب ليکلې دې، او حضرت په بذل کښې د دې عبارت تاويل کړې دې او د دې نې دا شرح کړې ده چه سعيد راوی وائي چه ابن عباس رضي الله عنهما صرف دوه امور ذکر کړل او په دريم باندې خاموش شو، او بيا وړاندې سعيد وائي: يا ابن عباس رضي الله عنهما خو ذکر کړې وو خو ما نه هير شو، په دې صورت کښې به د قال فاعل ابن عباس رضي الله عنهما نه وی بلکه د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت کونکې شاګرد، چه دلته سعيد بن جبير رحمه الله دې او تقدير د عبارت داسې دې: ابن عباس ذکر امرين وسکت عن الثالثة الخ... په دې صورت کښې سکوت کونکې ابن عباس رضي الله عنهما شو نه رسول الله ﷺ او حضرت چه کوم تاويل فرمائيلې دې د دې منشاء دا ده چه د دې جملې په نقل کښې روايات مختلف دی، پس په صحيح بخاری کښې دا حديث په ډيرو ځايونو کښې ذکر کړې شوې دې ﴿ففي الجهاد في باب جوائز الوفد: واجيزوا الوفد بنحو ما کنت اجيزهم، ونسيت الثالثة الخ﴾ يعنی دلته قال ابن عباس رضي الله عنهما نشته، ﴿وفي الجزية في باب اخراج اليهود من جزيرة العرب: بنحو ما کنت اجيزهم، والثالثة خير، اما ان سکت عنها، واما ان قالها فنسيتها، قال سفيان: هذا من قول سليمان﴾ يعنی سفيان بن عيينه وائي چه دا قول ﴿وسکت عن الثالثة الخ﴾ زما د استاد سليمان احول دې. يعنی سليمان رحمه الله وائي چه دريمه خبره هم غوره ده يا خو زما استاد سعيد سکوت کړې دې، يا هغوی ذکر کړې وو خو زما نه هيره شوه، او د ابوداؤد په يو نسخه کښې کومه چه د بذل په حاشيه باندې ده په هغې کښې داسې دی ﴿قال سليمان لا ادري اذکر سعيد الثالثة فنسيتها او سکت عنها﴾ د دې نسخې والا د عبارت حاصل او د بخاری والا د روايت حاصل يو دی چه سکوت کونکې سعيد بن جبير رحمه الله دې، او حضرت چه کومه شرح کړې ده په هغې کښې سکوت کونکې ابن عباس رضي الله عنهما دې. او حافظ رحمه الله په فتح الباری ۷۴۱/۷ کښې احتمالا هم دا اختيار کولو سره روستو دې ته ترجيح ورکړې ده چه دا قول د سليمان احول دې او سکوت کونکې سعيد بن جبير رحمه الله دې خو په دې قول کښې حافظ حواله ورکړې ده د مسند حميدی او دمستخرج ابونعيم، کوم چه بحيثيت په بخاری کښې موجود دی لکه چه پورته ذکر شو، د دې ټولو حاصل دا څنګه چه په ابوداؤد کښې دی ﴿قال ابن عباس الخ﴾ چه د هغې نه معلوميږی.........

کوم څیزونه ذکر کړې شوې دی هغه دا کیدې شی، مثلا ﴿ الوصية بالقرآن، تجهيز جيش اسامة، لاتتخذوا اقبری وثنا یعبد، الصلوة وما ملكت ايمانكم ﴾

والحديث اخرجه البخاری ومسلم مطولا. قاله المنذری

[۳۰۳۰](¹) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، وَعَبْدُ الرَّزَّاقِ، قَالَا: أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ أَخْبَرَنِي أَبُو الزُّبَيْرِ، أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ يَقُولُ: أَخْبَرَنِي عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "لَأُخْرِجَنَّ الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى مِنْ جَزِيرَةِ الْعَرَبِ فَلَا أَتْرُكُ فِيهَا إِلَّا مُسْلِمًا".

دعمربن الخطاب رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دنبی علیه السلام نه مې اوریدلی دی چه فرمائیل ئې: ضرور به یهودیان اونصرانیان دجزیرة العرب نه اوباسم اودمسلمان نه علاوه به پکښې دبل دین والا څوك نه پریږدم.

﴿ يقول (جابر) اخبرنی عمر بن الخطاب رضی الله تعالی عنهما انه سمع رسول الله ﷺ يقول: لاخرجن اليهود والنصارى من جزيرة العرب فلا اترك فيها الا مسلما ﴾

دا حدیث دلته مطلق دې او د مسلم په روایت کښې ﴿ لئن عشت الی قابل ﴾ سره مقید دې. والحديث اخرجه البخاری ومسلم مطولا. قاله المنذری

[۳۰۳۱](²) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، عَنْ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَعْنَاهُ، وَالْأَوَّلُ أَتَمُّ.

دعمر رضی الله عنه نه دتیر روایت په شان روایت منقول دې لیکن اولنې روایت زیات کامل دې.

[۳۰۳۲](³) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْعَتَكِيُّ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ قَابُوسَ بْنِ أَبِي ظَبْيَانَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَكُونُ قِبْلَتَانِ فِي بَلَدٍ وَاحِدٍ".

دابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی په یو ښار کښې دوه قبلې نه شی کیدې (یعنی اهل اسلام او یهودیان اونصرانیان به یوځای په حجاز مقدس کښې نه اوسیږي)

﴿ عن ابن عباس رضی الله عنهما قال قال رسول الله ﷺ لا تكون قبلتان فی بلد واحد ﴾

---

←...... چه د سکت فاعل رسول الله ﷺ دې: دا په هیڅ کتاب کښې نشته، اوس به یا خو دی ته مرجوح او وهم وئیلې شي او یا دی بیا د دې تاویل اوکړې شی، په دې وجه صحیح دا ده چه د سکت فاعل سعید بن جبیر رحمه الله دې او تاویل هم هغه دې کوم چه مونږ پورته د بذل نه ذکر کړو، خو په دې کښې هم دا اشکال باقی پاتې کیږی چه په دې تاویل کښې د سکت فاعل ابن عباس رضی الله عنهما جوړیږی حالانکه راجح داده چه دده چه د هغه نه هم لاندې راوی شته یعنی سعید. اګر چه حافظ احتمالاً هغه هم لیکلې دی کوم چه بذل کښې دی.

(¹): صحيح مسلم/الجهاد ۲۱ (۱۷۶۷)، سنن الترمذي/السير ۴۳ (۱۶۰۷)، (تحفة الأشراف: ۱۰۴۱۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۲۹، ۳۲، ۳/۳۴۵) (صحيح)

(²): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۰۴۱۹) (صحيح)

(³): سنن الترمذي/الزكاة ۱۱ (۶۳۳)، (تحفة الأشراف: ۵۳۹۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۲۲۳، ۲۸۵) (ضعيف)

**شرح الحديث:**

د دې حديث په شرح کښې درې اقوال دی، اول دا چه د دې نه مراد اقامت دې په دار الحرب کښې يعنی يو سړې په دارالحرب کښې اسلام راوړو نو اوس هغه ته پکار دی چه د هغه ځائې نه منتقل شی، ۲: اظهار شعائر الکفر، يعنی ذميان خلق کوم چه په دارالاسلام کښې مقيم دی، په دار الاسلام کښې اوسيدو سره د کفر د شعائرو د اظهار هغوی ته اجازت نشته، ۳: اخراج المشرکين من جزيرة العرب، فعلی الاول المراد من البلد دار الحرب وعلی الثانی دارالاسلام وعلی الثالث جزيرة العرب. والحديث اخرجه الترمذی وذکر انه روی مرسلا، قاله المنذری

[۳۰۳۳](۱) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا عُمَرُ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ الْوَاحِدِ، قَالَ: قَالَ سَعِيدٌ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ الْعَزِيزِ: جَزِيرَةُ الْعَرَبِ مَا بَيْنَ الْوَادِي إِلَى أَقْصَى الْيَمَنِ إِلَى تُخُومِ الْعِرَاقِ إِلَى الْبَحْرِ. قَالَ أَبُو دَاوُد قُرِءَ عَلَى الْحَارِثِ بْنِ مِسْكِينٍ، وَأَنَا شَاهِدٌ، أَخْبَرَكَ أَشْهَبُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ، قَالَ: قَالَ مَالِكٌ: عُمَرُ أَجْلَى أَهْلَ نَجْرَانَ وَلَمْ يُجْلَوْا مِنْ تَيْمَاءَ لِأَنَّهَا لَيْسَتْ مِنْ بِلَادِ الْعَرَبِ، فَأَمَّا الْوَادِي فَإِنِّي أَرَى أَنَّمَا لَمْ يُجْلَ مَنْ فِيهَا مِنَ الْيَهُودِ أَنَّهُمْ لَمْ يَرَوْهَا مِنْ أَرْضِ الْعَرَبِ.

د سعيد بن عبدالعزيز نه روايت دې فرمائی چه برطرف ته د وادي القري نه واخله ديمن پورې جزيرة العرب دې اوبل طرف ته دعراق نه واخله دسمندره پورې جزيرة العرب دې ابوداود وائی چه داروايت زما په موجودګئ دحارث بن مسکين په وړاندې داسې بيان شوچه دمالك نه روايت دې چه عمر رضی الله عنه اهل نجران جلاوطن کړل اود مقام تيما والائې جلاوطن نه کړل کوم چه دسمندرسره نزدې دشام په مضافاتوکښې واقع ده، تيمادعربو په ښارونوکښې نه شميرل کيږی اوزما رائې داده چه دوادي القري يهوديان په دې وجه جلاوطن نه کړی شول دوی وادي القري په جزيرة العرب کښې داخل نه ګڼړله.

﴿ قال ابوداؤد : قرئ علی الحارث بن مسکين وانا شاهد الخ ﴾

دلته هم مصنف رحمه الله د حارث بن مسکين نه د روايت طريق هم هغه اختيار کړو کوم چه اوس نزدې تير شو فتذکر.

[۳۰۳٤](۲) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: قَالَ مَالِكٌ: وَقَدْ أَجْلَى عُمَرُ رَحِمَهُ اللَّهُ يَهُودَ نَجْرَانَ وَفَدَكَ.

د مالك نه روايت دې فرمائی چه عمر رضی الله عنه د نجران اودفدك يهوديان جلاوطن کړل.

﴿ حدثنا ابن السرح ابن وهب قال قال مالک وقد اجلی عمر يهود نجران وفدک ﴾

د نصاری نجران سره څنګه مصالحت شوې وو د دې بيان په راروان حديث کښې راځی.

**د راتلونکی باب نه د کتاب الخراج شروع ده :**

د دې نه پس په بعض نخسو کښې داسې ليکلې شوې دی : ﴿ آخر کتاب الفئ، بسم الله الرحمن الرحيم اول کتاب الخراج ﴾ د دې سرخئ نه دا په فهم کښې راځی چه د کتاب الخراج والفئ نه اوسه پورې چه کوم احاديث ذکر شو د هغې تعلق د فئ سره وو او د راتلونکی باب نه د خراج شروع کيږی.

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۹۲۵۱) (منقطع)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۹۲۵۲) (ضعيف)

## بَابٌ فِي إِيقَافِ أَرْضِ السَّوَادِ وَأَرْضِ الْعَنْوَةِ

### کومه زمکه چه مسلمانان د کافرو په ملک کښې په جنګ سره حاصله کړي هغه به څنګه تقسیمیږي؟

په دې باب کښې صرف د خراج او د خراجي زمکې بیان دې، د ایقاف نه مراد لکه چه مخکښې تیر شوې دی، ﴿ ترک القسمة بين الغانمين ﴾ دې ﴿ بل ابقاؤها على حالها وضرب الخراج عليها لمصالح المقاتلين والمسلمين عامة ﴾ یعنی زمکې لره د فتح کولو نه پس په طور د من او احسان د هغې په مالکانو (مشرکانو) باندې پریخودل او په هغه زمکه باندې خراج ،یعنی ټیکس مقرر کول.

### په عشر او خراج کښې فرق:

په عشر او خراج کښې فرق دا دې چه خراج خو د مشرکانو نه اخستلې شی او د هغې وجوب فی الذمة وی او عشر د مسلمانانو نه اخستلې شی او د هغې وجوب په ذمه کښې نه وی بلکه خارج یعنی په پیداوار کښې وی. د وجوب خراج سبب ذات ارض دې یعنی الارض النامية، او د عشر سبب وجوب خارج یعنی پیداوار دې، پس خراج په هر حال کښې واجب وی، که پیداوار وی او که نه وی، په خلاف د عشر کښې چه هغه بغیر د کروندې او پیداوار نه نه شی اخستلې. او بله دا چه په عشر کښې د عبادت معنی موندلې شی او په خراج کښې د صغار او د ذلت (من البدائع)

په ترجمة الباب کښې ﴿ ارض السواد ﴾ نه پس ﴿ ارض العنوة ﴾ دا د عطف العام علی الخاص د قبیلې نه دې، ځکه چه ارض السواد هم ارض العنوة دې، د سواد نه مراد سواد العراق دې، د عراق زمکه چونکه ډیره زیاته شنه او کثیر الاشجار والمزارع ده په دې وجه د هغې نه په سواد سره تعبیر اوکړې شو ځکه چه شین والې د لرې نه تور والی ته مائل وی، د عراق زمکه مسلمانانو په خلافت فاروقی رضی الله عنه کښې فتح کړه، عمر رضی الله عنه د هغې زمکې وقف کړې لکه چه د عمر رضی الله عنه دا مسلک وړاندې په تفصیل سره د ائمة د اختلاف نه تیر شوې دې.

[٣٠٣٥] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا سُهَيْلُ بْنُ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنَعَتِ الْعِرَاقُ قَفِيزَهَا وَدِرْهَمَهَا وَمَنَعَتِ الشَّامُ مُدْيَهَا وَدِينَارَهَا وَمَنَعَتْ مِصْرُ إِرْدَبَّهَا وَدِينَارَهَا، ثُمَّ عُدْتُمْ مِنْ حَيْثُ بَدَأْتُمْ"، قَالَهَا زُهَيْرٌ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، شَهِدَ عَلَى ذَلِكَ لَحْمُ أَبِي هُرَيْرَةَ وَدَمُهُ.

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی یوداسې وخت به راشي چه عراقیان به خپلې پیمانې اوسکې منع کړې اوشامیان به خپلې اشرفی منع کړې او مصریان به خپلې سکې او اشرفی منع کړې او تاسو چه په شروع کښې څنګه وئ هم داسې به شئ، زهیر وائی چه درې پیرې به دې باندې ګواهې اوکړه دابوهریره نه غوښې او وینې.

١): صحيح مسلم/الفتن وأشراط الساعة ٨ (٢٨٩٦)، (تحفة الأشراف: ١٢٦٥٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٦٢)، (صحيح)

﴿ عن ابى هريرة ﷺ قال قال رسول اللهﷺ منعت العراق قفيرها ودرهمها ومنعت الشام مديها ودينارها ومنعت مصر اردبها ودينارها ثم عدتم من حيث بداتم ﴾

## شرح الحديث:

په دې باب کښې مصنف ﷫ دوه احاديث ذکر فرمائيلي دی په دې رومبی حديث کښې ارض عنوة او د مال غنيمت ذکر دې او په دويم حديث کښې د مال فئ او د غنيمت دواړو حکم ذکر کړې شوې دې د دې رومبی حديث مفهوم دا دې چه رسول اللهﷺ پيشن ګوئی فرمائی چه يو زمانه به راشی چه مسلمانان به ملکونه يعنی عراق شام او مصر فتح کولو نه پس د هغه ځائې په خلقو باندې يعنی مشرکانو باندې کوم چه به په هغه ملکونو کښې آباد وی خراج مقرر کړی او په خراج کښې رسول اللهﷺ غلې او دراهم او دنانير دواړه ذکر کړې دی کومه سکه چه په کوم ملک کښې رائج وی په دې حديث کښې رسول اللهﷺ هم هغه ذکر فرمائيلې ده، پس د عراق دپاره دراهم، او د شام او مصر دپاره رسول اللهﷺ دنانير ذکر اوفرمائيل، او په غلو کښې چه کومه پيمانه به چرته رائج وه هم هغه رسول اللهﷺ په حديث کښې ذکر اوفرمائيله، پس د عراق دپاره ئې قفيز او د شام دپاره ئې مدی او د مصر دپاره ئې اردب ذکر اوفرمائيلو، دا ټول د مکيال او پيمانو نومونه دی کومې چه په دې ښهرونو کښې رائج وې، قفيز د اتو مکوک برابر وی او مدی د پنځلسو مکوک وی او اردب څلريشت صاع وی.

دا حديث د اعلام نبوة نه دې په دې کښې رسول اللهﷺ دوه پيشن ګويئ اوفرمائيلې اول دا چه يو زمانه به داسې راشی چه اسلام به عراق شام او مصر ټولو ځايونو ته اورسيږی او مسلمانان به د هغې د فتح کولو نه پس د هغه ځائې په اوسيدونکو باندې خراج مقرر کړی، دويم پيشن ګوئی دا چه بيا به يو وخت داسې راشی چه دا خلق به د دې خراج د ورکولو نه انکار اوکړی، دوباره به هم دوی ته غلبه حاصله شی، وقيل او لاجل اسلامهم والاول هو الاصح.

﴿ ثم عدتم من حيث بداتم ﴾ بيا چه تاسو د کوم ځائې نه تلی يئ هم هلته به راواپس شئ يعنی انحطاط او تنزل طرف ته، شارحانو ليکلې دی لکه چه په مجمع البحار کښې دی چه دا اشاره د هغه حديث مضمون طرف ته ده، ﴿ بداء الاسلام غريبا وسيعود كما بداء ﴾........

﴿ قالها زهير ثلاث مرات ﴾ دا ضمير د آخری جملې طرف ته راجع دې، ﴿ ثم عدتم من حيث بداءتم ﴾ دا جمله زهير راوی درې کرته اوئيله.

﴿ شهد على ذلک لحم ابى هريرة ودمه ﴾ د دې راوی چه ابوهريرة ﷺ دې هغه د دې حديث د روايت کولو نه پس تاکيدا فرمائی چه ګواهی ورکوی په دې باندې د ابوهريرة غوښه او وينه، يعنی زما دې حديث لره د رسول اللهﷺ نه په اوريدو باندې کامل يقين دې، دا هم داسې ده لکه چه مونږ په محاوره کښې وايو چه په دې باندې زما رګ رګ ګواهی ورکوی. والحديث اخرجه مسلم، قاله المنذری

[٣٠٣٦]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ، قَالَ: هَذَا مَا حَدَّثَنَا بِهِ أَبُو هُرَيْرَةَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَيُّمَا قَرْيَةٍ أَتَيْتُمُوهَا وَأَقَمْتُمْ فِيهَا فَسَهْمُكُمْ فِيهَا وَأَيُّمَا قَرْيَةٍ عَصَتِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَإِنَّ خُمُسَهَا لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ، ثُمَّ هِيَ لَكُمْ".

دابوهریره ﷺ نه روایت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دی تاسو چه هريوکي ته راشئ اوهلته اوسیږئ نوتاسوته به يوه معينه حصه ملاويږي او دكوم كلي اوسيدونكى چه دالله در سول نافرمائي اوكړه نود دغه كلي نه دالله اورسول خمس اوباسئ اوباقي حصه دي تاسو ته درکړې شي.

﴿عن همام بن منبه قال هذا ما حدثنا ابوهريرة ﷺ عن رسول الله ﷺ: وقال رسول الله ﷺ﴾

## د صحيفه همام بن منبه تعارف:

په اصل كښې دا حديث د صحيفه همام بن منبه د احاديثو نه دې، د دې صحيفې روايات متفق السند دی، په يو سند سره روایت کړې شوې دی چه د هغې سند داسې دې ﴿عن عبدالرزاق عن معمر عن همام بن منبه﴾ هم په دې وجه په دې صحيفه كښې دا سند صرف په ړومبی حديث كښې ذكر كړې شوې دې، او چونكه باقي احاديث چه يو سل او يو كم ځلويښت دی (١٣٩) هم په دې سند سره روايت كړې شوې دی په دې وجه روستو احاديثو كښې سند نه دې ذكر كړې شوې صرف د متونو په ذكر باندې اكتفاء كړې شوې ده، د دې صحيفې ټول روايات امام احمد بن حنبل ﷺ براه راست د عبدالرزاق نه روايت كوی، هم دغه شان شيخين امام بخاري او مسلم هم په خپل صحيح كښې د دې صحيفې نه بعض روايات اخستلي دی، په مسلم كښې د بخاری په نسبت زيات دی، امام ابوداؤد ﷺ دا روايت د خپل أستاد احمد بن حنبل ﷺ په واسطې سره اخستلي دې او امام مسلم په واسطه د محمد بن رافع او په واسطه د احمد بن حنبل روايت كوی ﴿هذا ما حدثنا ابوهريرة عن رسول الله ﷺ﴾ د دې صحيفې بالكل په شروع كښې هم دا عبارت دې، د دې نه پس بيا د متون احاديث سلسله شروع كيږی، د دې نظير هغه روايات دی كوم چه امام ابوداؤد ﷺ د مكتوب سمره نه اخستلي دی چه د هغې ذكر د الدر المنضود په مقدمه كښې او په اصل كتاب كښې ډير كرته تير شوې دې، او دلته چه مصنف ﷺ كوم حديث د دې صحيفې نه اخستلې دې هغه د دې صحيفې آخرى حديث دې

## شرح الحديث ومطابقته للترجمة:

**قوله:** ﴿ايما قرية اتيتموها واقمتم فيها فسهمكم فيها وايما قرية عصت الله ورسوله فان خمسها لله ورسوله ثم هي لكم﴾: يعني كلي يا آبادئ ته چه كله تاسو اورسيږئ يعني بغير د قتال نه او هلته قيام اختيار كړئ نو په دې قسم مال غنيمت كښې ستاسو د ټولو حصه ده، او د كوم كلي والا چه داسې وی چه د الله او رسول ﷺ نافرمان وی يعنى په هغې كښې تاسو ته د قتال ضرورت پيښ راشي او بيا د قتال په ذريعه تاسو هغه فتح كړو نو د دې قسم مال حكم

(): صحيح مسلم/الجهاد ٥ (١٧٥٦)، (تحفة الأشراف: ١٤٧٢٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣١٧) (صحيح)

دا دي چه په دې کښې يو خمس خو د رسول الله ﷺ دپاره دې باقي ستاسو دپاره يعنی د مقاتلينو دپاره، ځکه چه دلته د جنګ حاجت راغلې دې په خلاف د ړومبی صورت چه هغه مال بغير د قتال نه حاصل شوي دي په دې وجه په هغې کښې د ټولو مسلمانانو حصه ده ځکه چه هغه مال فئ دې او دويم مال مال غنيمت دې په دې وجه په هغې کښې تخميس اوکړې شو او باقي اربعة اخماس د مقاتلينو دپاره شو، ګويا په دې حديث کښې د مال فئ او غنيمت دواړو حکم ذکر کړې شوې دې، او دويمه خبره دا ده چه په دې حديث کښې د مال غنيمت د تقسيم ذکر دې او د دې باب په ړومبی حديث کښې د خراج ذکر وو، خراج خو وی د ايقاف او عدم تقسيم په صورت کښې، لهذا د دواړو احاديثو د يو ځائې کولو نه دا معلوم شو .د ارض مفتوحه تقسيم او ترک تقسيم (ايقاف) دواړه جائز دی، فلله در المصنف چه په دې باب کښې ئې دواړه قسم احاديث راوړی دی، مصنف حنبلي دې او د حنابله په نزد امام په ارض مفتوحه عنوة کښې مختار دې د تقسيم او عدم تقسيم دواړو. فتدبر وتشکر هر حديث باندې ډير غور سره د پوهې کوشش پکار دې. والحديث اخرجه مسلم، قاله المنذري

## بَابٌ فِي أَخْذِ الْجِزْيَةِ

### د جزيې د وصولولو بيان

جزية د هغه مشرکانو د نفسونو ټيکس ته وئيلې شی کومو ته چه په دارالاسلام کښې امن ورکولو سره د اوسيدو اجازت ورکړې شوي دې او خراج وائی د زمکې ټيکس ته، او عشر وائی د زمکې د پيداوار زکوة ته.

دلته په جزيه کښې دوه اختلافات دی، اول دا چه جزيه د کومو کافرانو نه اخستلې شی، صرف د اهل کتابو نه، که د اهل کتاب او مشرکينو دواړو نه؟ د شوافعو او حنابله په نزد صرف داهل کتابو نه،او داحنافو او مالکيانو په نزد د دواړونه،خود احنافو په نزد مشرکين عرب مستثنی دی، او دويم مسئله دا چه د جزيه مقدار واجب څه دې؟ دا دواړه مسئلې په کتاب الزکاة کښې سره د اختلاف ائمه نه د معاذ رضی الله عنه د حديث ﴿ومن کل حالم دينارا﴾ د لاندې تير شوې دی، بيا پيژندل پکار دی چه د وجوب جزية دپاره درې اوصاف شرط دی.

### د جزئې د وجوب شرائط :

قال ابن رشد : اتفقوا على انها انما تجب بثلاثة اوصاف الذكورية والبلوغ والحرية وانها لا تجب على النساء ولا على الصبيان، بيا وړاندې هغوی د دې وجه ليکلې ده هغه دا چه جزيه خو د قتل په عوض کښې ده او د قتل حکم صرف د رجال بالغين په حق کښې دې، پس په جهاد کښې د نساء او صبيان د قتل ممانعت دې. ﴿ وكذا اجمعوا على انها لا تجب على العبيد آه﴾ ابن قدامه هم په دې باندې د جمهورو علماء کرامو او ائمة اربعه اتفاق نقل کړې دې، ﴿فان عمر كتب الى امرآء الاجناد ان اضربوا الجزية ولا تضربوها على النساء والصبيان ولا تضربوها الا على من جرت عليه المواسى ﴾ رواه سعيد وابوعبيد والاثرم الخ...... مواسی، د موسی جمع په معنی د استره، د انبات طرف ته اشاره ده.

[٣٠٣٧](¹) حَدَّثَنَا الْعَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْعَظِيمِ، حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي سُلَيْمَانَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيدِ إِلَى أُكَيْدِرِ دُومَةَ فَأُخِذَ فَأَتَوْهُ بِهِ، فَحَقَنَ لَهُ دَمَهُ وَصَالَحَهُ عَلَى الْجِزْيَةِ.

د انس بن مالك اوعثمان بن أبي سليمان رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام خالد بن وليد اكيدر نوم سړي (ددومه بادشاه) ته وليږه نوخالد بن وليد اودهغه ملګرو اونيو و او نبي عليه السلام ته ئې راوستو نبي عليه السلام دهغه خون معاف کړو او په جزئيه باندې ئې ورسره صلحه اوکړه.

﴿ وعن عثمان بن ابى سليمان ﴾ دا په عن عاصم باندې عطف دې يعنى محمد بن اسحاق دې حديث لره د عاصم نه هم روايت کوى او د عثمان نه هم، خو د عاصم طريق مسند دې او د عثمان مرسل ځکه چه دلته صحابى نه دې ذکر کړې شوې.

**قوله:** ﴿ ان النبى ﷺ بعث خالد بن الوليد الى اكيدر دومة فاخذوه فاتوا به فحقن له دمه وصالحه على الجزية ﴾: دومة الجندل د يو کلى نوم دې د شام د کلو نه او کيدر د هغې د حکمران نوم دې، د دومة الجندل د فتح واقعه د غزوة تبوک په سفر کښې پيښه شوې ده چه د هغې ذکر په کتاب الجهاد کښې راغلې دې، ﴿ فلا حاجة الى اعادتها ﴾

[٣٠٣٨](²) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ مُعَاذٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَمَّا وَجَّهَهُ إِلَى الْيَمَنِ أَمَرَهُ أَنْ يَأْخُذَ مِنْ كُلِّ حَالِمٍ يَعْنِي مُحْتَلِمًا دِينَارًا أَوْ عِدْلَهُ مِنَ الْمَعَافِرِيِّ ثِيَابٌ تَكُونُ بِالْيَمَنِ".

دمعاذ بن جبل رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي هرکله چه نبي عليه السلام زه يمن ته اوليږلم نوراته ئې حکم اوکړو چه دهر بالغ نه يودينار اخلم يادې برابر دمعافري جامو نه کومې چه په يمن کښې ملاوېږي.

[٣٠٣٩](³) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ مُعَاذٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ.

دمعاذ بن جبل رضي الله عنه نه دتير روايت په شان روايت منقول دې.

[٣٠٤٠](⁴) حَدَّثَنَا الْعَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْعَظِيمِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ هَانِئٍ أَبُو نُعَيْمٍ النَّخَعِيُّ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مُهَاجِرٍ، عَنْ زِيَادِ بْنِ حُدَيْرٍ، قَالَ: قَالَ عَلِيٌّ: لَئِنْ بَقِيتُ لِنَصَارَى بَنِي تَغْلِبَ لَأَقْتُلَنَّ الْمُقَاتِلَةَ وَلَأَسْبِيَنَّ الذُّرِّيَّةَ فَإِنِّي كَتَبْتُ الْكِتَابَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى أَنْ لَا يُنَصِّرُوا أَبْنَاءَهُمْ، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا حَدِيثٌ مُنْكَرٌ، بَلَغَنِي عَنْ أَحْمَدَ أَنَّهُ كَانَ يُنْكِرُ هَذَا الْحَدِيثَ إِنْكَارًا شَدِيدًا، وَهُوَ عِنْدَ بَعْضِ النَّاسِ شِبْهُ الْمَتْرُوكِ وَأَنْكَرُوا هَذَا الْحَدِيثَ عَلَى عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ هَانِئٍ، قَالَ أَبُو عَلِيٍّ: وَلَمْ يَقْرَأْهُ أَبُو دَاوُدَ فِي الْعَرْضَةِ الثَّانِيَةِ.

---

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩٣٧، ١٩٠٠٢) (حسن)

²): سنن النسائي/الزكاة ٨ (٢٤٥٥)، (تحفة الأشراف: ١١٣١٢)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الزكاة ٥ (٦٢٣)، سنن ابن ماجه/الزكاة ١٢ (١٨٠٣)، مسند احمد (٥/٢٣٠، ٢٣٣، ٢٤٧) (صحيح)

³): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١١٣٦٣) (صحيح)

⁴): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٠٩٧) (ضعيف الإسناد)

دزیاد بن حدیر نه روایت دې فرمائی چه علي کرم الله وجهه به فرمائیل که چرې ژوندې پاتې شوم نودینو تغلب قبیلې دنصرانیانوجنګ کونکی به قتل کړم او ددوی بچی به ګرفتار کړم ځکه چه ددغه خلقو دنبی علیه السلام په مینځ کښې کومه معاهده تحریر شوي وه دهغې کتابت ماکړې وو، په هغه معاهده کښې دا وو چه دوی به مدد نه کوي د خپلو ځامنو. ابوداود وائی داروایت منکر دې اوماته خبر رارسیدلې چه امام احمد هم ددې حدیث ډیر سختې سره انکار کولو، ابو علی وائی، ابوداؤد دویم ځل چه کله دا کتاب واؤرولو نو په دې کښې ئې دا حدیث اونه وئیلو.

﴿عن ابی وائل بن معاذ رضی الله عنه ان النبی صلی الله علیه وسلم لما وجهه الی الیمن الخ﴾

په دې حدیث باندې اوددې په تخریج باندې هم کلام په کتاب الزکاة کښې تیر شوې دې.

﴿عن زیاد بن حدیر قال علی رضی الله عنه لئن بقیت لنصاری بنی تغلب لاقتلن المقاتلة ولاسبین الذریة الخ﴾

## شرح الحدیث المتعلق بمصالحة نصاری بنی تغلب :

علی رضی الله عنه فرمائی چه که زه څه ورځې نور باقی پاتې شوم نو ضرور به د نصاری بنو تغلب سرو لره قتل کوم او د هغوی ښځې او ماشومان به قید کوم ځکه چه په ما باندې رسول الله صلی الله علیه وسلم زمونږ او د هغوی ترمینځه معاهده لیکلې وه چه په هغې کښې دا هم وه چه هغوی به د خپل پیدا کیدونکی اولاد نه نصرانیان نه جوړوی.

ګویا دوی وئیل غواړی چه هغوی عهد مات کړو او خپل اولاد ئې نصرانی کړل.

﴿قال ابوداؤد : هذا حدیث منکر الخ﴾

امام ابوداؤد رحمه الله د دې حدیث د روایت کولو نه پس په دې باندې سخت کلام کوی لکه چه ستاسو مخکښې دې، او وړاندې په دې کښې دی چه د مصنف رحمه الله شاګرد لؤلؤی وائی چه دا حدیث امام ابوداؤد په خپل سنن کښې د قراءت او روایت په وخت په ړومبی ځل خو لوستلې وو خو دوباره ئې نه دې لوستلې، یعنی د سنن نه ئې خارج کړو.

اوس سوال دا دې چه د بنو تغلب د نصاراؤ سره څه معامله شوې وه که نه او آیا د دې واقعې څه اصل شته که نه؟ جواب دا دې چه او اصل شته خو د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره نه. د رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغوی سره هیڅ معاهده نه وه شوې خو د عمر رضی الله عنه د هغوی سره یو معاهده شوې وه ﴿فانه صالحهم علی تضعیف الصدقة بدل الجزیة﴾ یعنی عمر رضی الله عنه چه کله په هغوی باندې جزیة مقرر کوله نو هغوی اووې چه جزیة زمونږ په حق کښې د شرم سبب دې ځکه چه مونږ عرب یو، او جزیه ورکول د عجمیانو کار دې لهٰذا زمونږ نه چه څه غواړئ واخلئ خو د جزیه په نوم نه او په معاهده کښې دا خبره راغلې وه ﴿ان لا ینصروا اولادهم﴾ صاحب د عون المعبود ددې واقعې دا اصل د حدیث د ډیرو کتابونو مصنف ابن ابی شیبة، بیهقی وغیره په حوالې سره لیکلې ده، پس د عمر رضی الله عنه د دې عمل او فیصلې د وجې نه د جمهور علماء کرامو او ائمة ثلاثة مذهب دا دې چه د هغوی نه به د څیز دو چند اخستلې شی څومره چه د مسلم نه اخستلې شی. ﴿ففی الرکاز الخمسان وما فیه العشر عشران وما فیه ربع العشر نصف العشر، وکذلک من نسائهم﴾ خو د امام مالک رحمه الله رائې په دې کښې د جمهورو خلاف ده د هغوی په

نژد چه کوم حکم د اهل کتاب او نورو ذمیانو دې هم هغه حکم د بنو تغلب دی هغوی فرمائی چه د کتاب الله د اهل کتاب نه د جزیه اخستلو حکم دې چه په هغې کښې تول برابر دی، او نور علماء کرام لکه ابن قدامة او ملا علی قاری رحمه الله وغیره لیکلی دی چه د عمر رضی الله عنه په فیصله باندې یو صحابی رضی الله عنه هم د هغه مخالفت نه دې کړې فصار اجماعا. (اوجز ۲۶۸/۳)

[۳۰۴۱] (۱) حَدَّثَنَا مُصَرِّفُ بْنُ عَمْرٍو الْيَامِيُّ، حَدَّثَنَا يُونُسُ يَعْنِي ابْنَ بُكَيْرٍ، حَدَّثَنَا أَسْبَاطُ بْنُ نَصْرٍ الْهَمْدَانِيُّ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْقُرَشِيِّ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ صَالَحَ: رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَهْلَ نَجْرَانَ عَلَى أَلْفَيْ حُلَّةٍ النِّصْفُ فِي صَفَرٍ وَالْبَقِيَّةُ فِي رَجَبٍ يُؤَدُّونَهَا إِلَى الْمُسْلِمِينَ وَعَارِيَةِ ثَلَاثِينَ دِرْعًا وَثَلَاثِينَ فَرَسًا وَثَلَاثِينَ بَعِيرًا وَثَلَاثِينَ مِنْ كُلِّ صِنْفٍ مِنْ أَصْنَافِ السِّلَاحِ يَغْزُونَ بِهَا، وَالْمُسْلِمُونَ ضَامِنُونَ لَهَا حَتَّى يَرُدُّوهَا عَلَيْهِمْ إِنْ كَانَ بِالْيَمَنِ كَيْدٌ أَوْ غَدْرَةٌ عَلَى أَنْ لَا تُهْدَمَ لَهُمْ بِيعَةٌ، وَلَا يُخْرَجَ لَهُمْ قَسٌّ، وَلَا يُفْتَنُوا عَنْ دِينِهِمْ مَا لَمْ يُحْدِثُوا حَدَثًا أَوْ يَأْكُلُوا الرِّبَا، قَالَ إِسْمَاعِيلُ: فَقَدْ أَكَلُوا الرِّبَا، قَالَ أَبُو دَاوُد: إِذَا نَقَضُوا بَعْضَ مَا اشْتُرِطَ عَلَيْهِمْ فَقَدْ أَحْدَثُوا.

عبدالله بن عباس رضی الله عنهما وائی چه نبی کریم ﷺ د اهل نجران سره په دې شرط صلح اوکړه چه هغوی به د کپړو دوه زره جوړې مسلمانانو ته ورکوی، نیمې به د صفر په میاشت کښې ورکوی او باقی به د رجب په میاشت کښې، او دیرش زغرې، دیرش اسونه، او دیرش اوښان او د هر قسمه وسلې (جنګی سامان) نه دیرش دیرش وسلې چه هغې سره به مسلمانان جهاد کوی د عاریت په طور به ئې ورکوی، او مسلمانان به دهغوی ضامن وی، او (په ضرورت پوره کیدو باندې به) هغوی ته واپس کوی او دا عاریةً ورکول به هغه وخت وی کله چه په یمن کښې څوک دهوکه اوکړی، (یعنی سازش کولو سره څوک نقصان رسول غواړی) یا مسلمانانو سره غداری اوکړی او لوظ مات کړی (او هلته جنګ پیښ شی) په دې شرط باندې چه دهغوی به هیڅ ګرجا (عبادتخانه) نه ورانوی، او هیڅوک پادری به نه اوباسی، او دهغوی په دین کښې به مداخلت نه کوی چه ترڅو پورې هغوی بل څه نوې خبره پیدا نه کړی یا سودخوری اونه کړی، اسماعیل سدی وائی چه هغوی بیا سودخوری اوکړه، ابوداؤد وائی : کله چه هغوی په خپل ځان باندې تړلی بعضې شرطونه مات کړل نو نوې خبره ئې پیدا کړه (اوهغوی د عرب ملک نه اوویستلې شو).

﴿ عن ابن عباس رضی الله عنهما قال صالح رسول الله ﷺ اهل نجران علی الفی حلة....... وعارية ثلاثين درعا....... ان كان باليمن كيد ذات غدر ﴾

### د رسول الله ﷺ د نجران د نصاری سره مصالحت :

پورته دا راغلی وو چه رسول الله ﷺ نصاری د بنو تغلب سره مصالحت اوکړو، هغه روایت خو د حقیقت خلاف وو خو دا د حقیقت مطابق دې چه رسول الله ﷺ د نجران د نصاری سره مصالحت اوفرمائیلو، نجران په یمن کښې دې، رسول الله ﷺ د هغوی سره په دوه زره حلو باندې مصالحت فرمائیلې دی په دو قسطونو کښ، نیمه په میاشت د صفر کښې او نیمه په میاشت د رجب کښې او په دې خبره باندې هم چه که یمن کښې جهګړه او عذر شروع شو نو دا خیزونه به په عاریت باندې ورکوی کوم چه په حدیث کښې لیکلې شوې دی یعنی

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۳۶۱) (ضعيف الإسناد)

دیرش زغري، دیرش آسونه، دیرش اوښان او په هر قسم وسله کښي دیرش دیرش، که مسلمانانو د هغې په ذریعه قتال اوکړو نو هغوی به د تولو څیزونو ضامن وی، یعنی د هغه سامان واپسی به ضروری وی، ﴿ان کان بالیمن﴾ تعلق عاریة سره دې.

﴿علی ان لا تهدم لهم بیعة ولا یخرج لهم قس﴾ د دې جملې تعلق ﴿صالح﴾ سره دې یعنی مصالحت په دې خبره باندې اوشو چه مسلمانان به تلو سره د هغوی کورونه نه غورځوی او نه به د یو عالم پادری اخراج کوی. او نه به هغوی د هغوی د دین نه لرې کولې شی.

﴿ما لم یحدثوا حدثا او یاکلوا الربا﴾ د احداث د حدث نه مراد د عهد په شرطونو کښې د یو شرط ماتول دی، په دې مصالحت باندې چه د کومې جزیې ذکر دې چونکه دا جزیه په طریقه د صلح وه پس دې قسم جزیه ته جزیة الصلح والتراضی وائی، نو ګویا د جزیه دوه قسمونه شو، جزئیه صلحیه، د جزئیه صلحیه هیڅ ضابطه نشته چه په کوم څیز باندې هم صلح اوکړې شی او دویم قسم کوم چه د جزئې دې د هغې یو ضابطه ده، یعنی د مقدار په لحاظ سره چه د هغې تفصیل په کتاب الزکوة کښې تیر شوې دې.

رسول الله ﷺ چه کومه صلح نامه د نجران د په باره کښې لیکلې وه هغه کافی اوږده او تفصیلی ده، حضرت په بذل کښې دا نقل کړې ده که څوک کتل غواړی هغه دې اوګوری.

## بَابٌ فِي أَخْذِ الْجِزْيَةِ مِنَ الْمَجُوسِ

### باب د مجوسو نه د جزیه اخستلو بیان

مجوس آتش پرست وی دا خلق د عقیدې په اعتبار سره د اصلین قائل دی، یعنی دوه څیزونو لره اصل منی یو نور او بل ظلمت (تیارهٔ) او دا دعوی کوی چه څومره هم په دنیا کښې خیر دې هغه فعل دنور دې او څومره چه شرونه دی هغه د ظلمت نه صادرېږی، د هغوی په باره کښې داسې مشهوره ده چه دا خلق دوه خالقان منی یزدان او اهرمن یزدان خالق الخیر، او اهرمن خالق الشر منی (په دې دواړو کښې صرف د تعبیر فرق دې) او بهر حال دا مشرکان دی، د دوی نه خو جزیة بالاجماع اخستلې شی، خو د شوافع او حنابله په مسلک باندې به دا اشکال وی چه هغوی خو د جزئې په باره کښې د اهل کتابو تخصیص کوی، د مشرکانو نه د جزئې د اخذ قائل نه دی، هغوی د دې جواب ورکوی چه دا د موجوده حالت په اعتبار سره خو مشرکان دی خو په ابتداء کښې او د اصل په اعتبار سره دا اهل کتاب وو لکه چه په حدیث الباب کښې راځی:

[٣٠٤٢] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سِنَانٍ الْوَاسِطِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بِلَالٍ، عَنْ عِمْرَانَ الْقَطَّانِ، عَنْ أَبِي جَمْرَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: إِنَّ أَهْلَ فَارِسَ لَمَّا مَاتَ نَبِيُّهُمْ كَتَبَ لَهُمْ إِبْلِيسُ الْمَجُوسِيَّةَ.

دابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه کله د فارس والا پیغمبر وفات شو نو شیطان هغې په مجوسیت یعنی داور په عبادت کولو کښې مبتلا کړل او په دې طریقې سره ګمراه شول.

﴿عن ابن عباس رضی الله عنهما قال ان اهل فارس لما مات نبیهم کتب لهم ابلیس المجوسیة﴾ خو د هغوی په

(١): تفرد به أبو داود (حسن الإسناد)

جواب باندې دا اشکال دې چه د اهل کتاب ذبائح او د هغوی د زنانو سره نکاح کول جائز دی په خلاف د مجوسو چه د دوی هغه جائز نه ده. (۱) ﴿ قال کنت کاتبا لجزء بن معاویة.... عم الاحنف بن قیس........ اذ جآءنا کتاب عمر رضی الله عنه منه قبل موته بسنة ﴾

[۳۰۴۳] (۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، سَمِعَ بَجَالَةَ، يُحَدِّثُ عَمْرَو بْنَ أَوْسٍ، وَأَبَا الشَّعْثَاءِ، قَالَ: كُنْتُ كَاتِبًا لِجَزْءِ بْنِ مُعَاوِيَةَ عَمِّ الْأَحْنَفِ بْنِ قَيْسٍ إِذْ جَاءَنَا كِتَابُ عُمَرَ قَبْلَ مَوْتِهِ بِسَنَةٍ اقْتُلُوا كُلَّ سَاحِرٍ وَفَرِّقُوا بَيْنَ كُلِّ ذِي مَحْرَمٍ مِنَ الْمَجُوسِ وَانْهَوْهُمْ عَنِ الزَّمْزَمَةِ، فَقَتَلْنَا فِي يَوْمٍ ثَلَاثَةَ سَوَاحِرَ، وَفَرَّقْنَا بَيْنَ كُلِّ رَجُلٍ مِنَ الْمَجُوسِ وَحَرِيمِهِ فِي كِتَابِ اللَّهِ وَصَنَعَ طَعَامًا كَثِيرًا فَدَعَاهُمْ، فَعَرَضَ السَّيْفَ عَلَى فَخِذِهِ فَأَكَلُوا وَلَمْ يُزَمْزِمُوا وَأَلْقَوْا وِقْرَ بَغْلٍ أَوْ بَغْلَيْنِ مِنَ الْوَرِقِ، وَلَمْ يَكُنْ عُمَرُ أَخَذَ الْجِزْيَةَ مِنَ الْمَجُوسِ حَتَّى شَهِدَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَذَهَا مِنْ مَجُوسِ هَجَرَ.

دعمرو بن اوس او ابو الشعثاء نه روایت دې چه بجاله وئیلی دی چه زه داحنف بن قیس دتره جزء بن معاویه کاتب وم یوځل مونږ ته دعمرفاروق رضی الله عنه خط دهغه دوفات نه یوکال مخکښې راورسیدو په هغې کښې. داليکلي شوي وو چه هريوجادوګر مړ کړئ اود مجوسيانو دمحارموپه مينځ کښې جدائی راولي او منع کړئ دوی لره دخوراك په وخت کښې دبنګيدلونه، نومونږ په دغه ورځ درې ساحران مره کړل او کومومجوسيانوچه د خپلو محارموسره نکاح کړې وه په هغوی کښې مو جدائی راوسته اواحمد بن قيس ډير خوراك تيارکړې وو او مجوسيان ئې راغوښتلي وو او په خپل ورون ئې توره ايخودلي وه اودوی خوراك اوکړو ليکن نه بنګيدل اوهغه د يوې قچرې ياددوه قچرو د وزن برابر سپين زر پيش کړل اوعمر رضی الله عنه ددغه وخته پورې دمجوسيانونه جزئيه نه اخستله تردې چه عبدالرحمن بن عوف ګواهي ورکړه چه نبی علیه السلام دهجرد مجوسيانونه جزئيه اخستلي وه. دزمزي ؟؟تشريح دحديث دشارحينو په لاندينی اقوالوکښې موجود ده.

## شرح الحديث:

بجالة بن عبده وائی چه زه جزء بن معاوية چه د احنف بن قيس ترهٔ دې د هغه کاتب اوم، دا جزء بن معاويه تابعی دې، د عمر رضی الله عنه د طرف نه د اهواز ګورنر وو بجالة وائی چه مونږ ته د عمر رضی الله عنه يو خط د هغوی د وفات نه يو کال مخکښې راغلو چه په هغې کښې دا وو چه هلته ځومره جادوګران دی هغوی ټول قتل کړئ او په مجوسو کښې د هردوه ذی رحم ترمينځه جدائی راولئ (ځکه چه هغوی دمحارم دنکاح قائل وو) ﴿ وانهوهم عن الزمزمة ﴾ او دا چه هغوی د زمزمه نه بند کړئ، پس وراندې په روايت کښې دی چه هغوی په يوه ورځ کښې درې جادوګران قتل کړل او هم دغه شان ئې د دې قسم مجوسيانو او حريم ترمينځه هم تفريق راوستلو او د دريم حکم تعميل ئې داسې اوکړو چه هلته ځومره مجوسيان وو د

(۱) دا اشکال د هغه وخت د نصاری او يهودو په اعتبار سره خو صحيح دې خو اوس خو د هغوی سره هم نکاح نه کيږی.
(۲): صحيح البخاري/الجزية ۱ (۳۱۵۶)، سنن الترمذي/السير ۳۱ (۱۵۸۶)، (تحفة الأشراف: ۹۷۱۷)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الزكاة ۲۴ (۴۱)، مسند احمد (۱۹۰/۱، ۱۹۴) (صحيح)

هغوی د خوراک دعوت ئې اوکړو، چه کله ټول خلق خوراک ته کيناستل نو په مينځ کښې دا جزء بن معاويه هم کيناستلو، په خپل زنګون باندې توره کيخودلو سره او دې حاضرينو ته ئې اووې چه خوراک شروع کړئ او هغوی ئې د زمزمه نه منع کړل، توره د هغوی مخې ته وه.

﴿ والقوا وقر بغل ا وبغلتين من الورق ﴾ يعنى هغوی د زمزمه د اجازت دپاره او د هغوی په خوشامد کښې د دوه خچرو د بوجهـ په قدر سپين زر مخې ته کيخودل خو هغوی او نه منله او هغوی ئې زمزمې ته پرې نخودل، د مجوسو عادت د خوراک نه پس د زمزمه وو. چه د هغې مطلب دا وو چه دې خلقو به د خوراک کولو نه پس په خلهٔ کښې دننه دننه په پوزه باندې څه وئيل چه هغې باندې به هغوی خپل مينځ کښې پوهيدل، خو بل څوک به پرې نه پوهيدو چه څه وائی، پته نشته د دې څه وجه وه.

## د مجوس نه د جزيه اخستلو په باره کښې د عمر فاروق رضي الله عنه تردد:

**قوله:** ﴿ ولم يكن عمر اخذ الجزية من المجوس حتى شهد عبدالرحمن بن عوف ان رسول الله ﷺ اخذها من مجوس هجر ﴾: يعنى د عمر رضي الله عنه د مجوسو نه په جزيه اخستلو کښې تردد وو، بيا چه کله عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه هغوی ته عرض اوکړو چه رسول الله ﷺ د مجوس دهجر نه جزيهٔ اخستلې ده نو بيا هغوی هم اخستل شروع کړل، او په موطاء کښې دی ﴿ لما تردد عمر فی امر المجوس قال له عبدالرحمن بن عوف سمعت رسول الله ﷺ يقول: سنوا بهم سنة اهل الكتاب ﴾ يعنى رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه د مجوسيانو سره د اهل کتاب والا معامله کوئ. لكن هذا فى امر الجزية لا فى جواز النكاح بنسائهم واكل ذبائحهم.

والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی مختصرا، قاله المنذری

## يو اصولی مسئله د تحديث د صيغې متعلق:

د دې حديث په سند کښې هم دغه شان دی: عمرو بن دينار وائی چه ما د بجاله نه هغه حديث واوريدو کوم چه هغوی د عمرو بن اوس او د ابوالشعثاء نه بيانولو، بيا وړاندې د هغه حديث ذکر دې، دلته سوال کيدې شی چه عمرو بن دينار داسې ولې او نه وئيل چه ﴿حدثنى بجالة ﴾ د دې اوږدلو څه ضرروت وو، د دې جواب دا دې چه د بعض محدثينو رائې دا ده چه راوی لفظ حدثنا نه روايت هغه وخت کولې شی چه کله د هغه استاد هغه ته هغه حديث بالقصد بيان کړې وی. او که داسې نه وی بلکه مقصود بالاسماع دويم کس وی نو هغه سړې به مقصود بالاسماع نه وی خو هغه حديث ئې د هغه نه واوريدو نو بيا په دې صورت کښې د دې سامع دپاره دې حديث لره په صيغهٔ د حدثنا سره استعمال صحيح نه دی. الحاصل کوم راوی چه مقصود بالاسماع وی نو د هغه دپاره د حديث د روايت کولو په وخت حدثنا لفظ استعمالول جائز دی د بل چا دپاره نه، خو د جمهورو په نزد جائز دې؛ ومنعه بعضهم منهم الامام النسائی وطائفة قليلة قاله الحافظ فى الفتح (عون) د الدرر المنضود په مقدمه کښې هم دانواع تحمل په بيان کښې مونږ داقول هم ليکلې دې چه ﴿ عن ابن عباس رضي الله عنه قال جآء رجل من الاسبذيين من اهل البحرين وهم مجوس اهل هجر الى رسول الله ﷺ الخ ﴾

[٣٠٤٤]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مِسْكِينٍ الْيَمَامِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَسَّانَ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا دَاوُدُ بْنُ أَبِي هِنْدٍ، عَنْ قُشَيْرِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ بَجَالَةَ بْنِ عَبْدَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ مِنَ الْأَسْبَذِيِّينَ مِنْ أَهْلِ الْبَحْرَيْنِ وَهُمْ مَجُوسُ أَهْلِ هَجَرَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَكَثَ عِنْدَهُ، ثُمَّ خَرَجَ فَسَأَلْتُهُ مَا قَضَى اللَّهُ وَرَسُولُهُ فِيكُمْ؟ قَالَ: شَرٌّ قُلْتُ: مَهْ قَالَ: الْإِسْلَامُ أَوِ الْقَتْلُ، قَالَ: وَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ قَبِلَ مِنْهُمُ الْجِزْيَةَ، قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: فَأَخَذَ النَّاسُ بِقَوْلِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، وَتَرَكُوا مَا سَمِعْتُ أَنَا مِنَ الْأَسْبَذِيِّ.

دابن عباس رضی الله عنه نه روایت دي فرمائي چه دبهرين اوسيدونكي يوكس داسبزين والا څوك چه دهجي مقام دمجوسيانونه وو دنبی علیه السلام په خدمت كښې حاضر شو اودهغه سره يو شيبه ناست وو كله چه روان شو نوما ترې تپوس اوكړو چه الله اودالله رسول ستاسو په حق كښې څه فيصله اوكړه؟ هغه اووئيل زما دپاره ډيره بده فيصله وشوه ماورته اووئيل خاموش اوسه هغه اووئيل فيصله ئې دا اوكړه چه اسلام قبول كړه ګنې قتل ته تيار شه ابن عباس رضی الله عنه فرمائي چه عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه داسې اووئيل چه نبی علیه السلام ددې خلقو نه جزئيه اخستل قبول كړل نوخلقو د عبدالرحمن بن عوف په قول عمل وكړو اوڅه چه ئې داسبنى نه اوريدلي وو هغه ئې پريخودل.

## شرح الحديث

اسبذيون په مجوس كښې يو قوم دې چه داس عبادت به ئې كولو ، د دې مفرد الاسبذى دې معرب دې د الاسپ بمعنى الفرس.

ابن عباس رضی الله عنهما فرمائي چه يو اسبذى مجوس په اهل هجر كښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم خدمت ته حاضر شو ، لږ ساعت دپاره د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره اودريدو او بيا بهر لاړو ، ما د هغه نه تپوس اوكړو چه ستا په باره كښې رسول الله صلی الله علیه وسلم څه فيصله اوكړه نو هغه اووې بده فيصله، ما ترې تپوس اوكړو چه څه فيصله نو هغه اووې چه ﴿ الاسلام اوالقتل ﴾ د دې تقاضا دا ده چه د مجوسو نه به جزيه نه شي اخستلې ، حال دا چه دا د عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه د حديث خلاف دې هم په دې وجه وړاندې ابن عباس رضی الله عنهما فرمائي ﴿ وقال عبدالرحمن بن عوف قبل منهم الجزية ﴾ وړاندې ابن عباس رضی الله عنهما فرمائي چه علماء كرامو د عبدالرحمن رضی الله عنه حديث اختيار كړې دې او كوم چه ما د اسبذى نه اوريدلې وو هغې مې ترک كړو. ځكه چه د اسبذى قول معتبر نه دې په روايت كښ

دا د حديث الغاز نه دې يعنى دونړه (عجيبه سوال)، يعنى دا اوښايئ چه هغه كوم حديث دې كوم چه يو صحابى د مجوسى نه روايت كوى او هغه مجوسى ئې د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روايت كوى.

---

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٣٧١، ٩٧٢٣، ١٥٦١٣) (ضعيف الإسناد)

## بَابٌ فِي التَّشْدِيدِ فِي جِبَايَةِ الْجِزْيَةِ

### د جزيې په وصولولو کښې د سختئ کولو بيان

جبايت يعنى تحصيل او استخراج، يعنى په جزيه وصول کولو کښې تشدد کول.

[٣٠٤٥] (١) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ بْنُ يَزِيدَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، أَنَّ هِشَامَ بْنَ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ وَجَدَ رَجُلًا وَهُوَ عَلَى حِمْصَ يُشَمِّسُ نَاسًا مِنَ الْقِبْطِ فِي أَدَاءِ الْجِزْيَةِ، فَقَالَ: مَا هَذَا؟ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "إِنَّ اللَّهَ يُعَذِّبُ الَّذِينَ يُعَذِّبُونَ النَّاسَ فِي الدُّنْيَا".

دعروه بن زبير نه روايت دې فرمائى چه هشام بن حكيم بن حزام يو سړى لره ځوك چه دحمص عامل وو اوليدو چه دجزئي دوصول کولو دپاره ئې يوځو قبطي کسان په غرمو اودرولو هشام اووئيل داڅه دى؟ ماذنبى ﷺ نه اوريدلي دي چه فرمائيل ئې يقينا الله تعالى په هغه خلقو عذاب نازله وي ځوك چه بې وجې خلق په دنيا کښې په عذاب کښې مبتلا کوي.

**قوله:** ﴿عن عروة بن الزبير ان هشام بن حكيم وجد رجلا وهو على حمص يشمس ناسا من القبط فى اداء الجزية﴾: عروه وائى: د حكيم بن حزام ځوى، هشام يو سړى لره چه د حمص امير وو په داسې حال کښې بيا موندلو چه هغه څه خلق په ګرمئ کښې اودرول د جزيه د ادا کولو په باره کښ، نو په دې باندې هشام بن حكيم نكير اوكړو چه دا څه كيږى، او بيا ئې حديث واورولو د رسول اللهﷺ چه هغوى به فرمائيل الله پاک به عذاب ورکړى هغه خلقو ته کوم چه په دنيا کښې نورو ته عذاب ورکوى.

په دې روايت کښې ﴿ناسا من القبط﴾ دې. او دا واقعه ده د ملک شام، قبطيان هلته چرته وو هغوى خو به مصريان وو، لهذا په روايت کښې تحريف دې ځکه چه په مسلم کښې د دې په ځائې ﴿اناس من الانباط﴾ دې نو د نبط په ځائې قبط شو، او نبطى عجمى کاشتكار ته وائى. والحديث اخرجه مسلم والنسائى، قاله المنذرى

## بَابٌ فِي تَعْشِيرِ أَهْلِ الذِّمَّةِ إِذَا اخْتَلَفُوا (٢) بِالتِّجَارَاتِ

### کله چه ذمى کافر د تجارت مال وړى دهغه نه دې لسمه حصه په محصول کښې واخستلې شى

### د مسئله مذکورة الباب تشريح او تنقيح:

يعنى ذميان خلق چه کله مال تجارت اخستلو سره په عاشر باندې تيريږى د هغوى نه د عشر اخستلو په بيان کښ. (٣) خان پوهول پکار دى چه د ذميانو په حق کښې نه په سرو او سپينو زرو کښې زكوة شته نه د زمکې په پيداوار کښې عشر، بلکه د دوى نه به صرف جزية

---

(١): صحيح مسلم/البر والصلة ٣٣ (٢٦١٣)، (تحفة الأشراف: ١١٧٣٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٤٠٤، ٤٦٨) (صحيح)

(٢) اختلاف په معنى د تلو راتلو، قال تعالي ان في اختلاف الليل والنهار لايات لاولي الالباب)

(٣) ففي الموطاء قال مالك: وليس علي اهل الذمة ولا علي المجوس في نخليهم ولا كرد مهم ولا زروعهم ولا مواشيهم صدقة لان الصدقة انما وضعت علي المسلمين تطهيرا لهم، ما كانوا ببلد هم الذي صالحوا عليه الا ان يتجروا في بلاد المسلمين ويختلفوا فيه فيوخذهم مهم العشر فيما يريدون من التجارات آه ملخصا (اوجز ٣/٢٦٨)

اخستلې شی چه په هغې کښې د ذلت او عاجزئ معنی موندلې شی. ﴿ وقال الله تعالى حتى يعطوا الجزية عن يد وهم صاغرون ﴾ او زکوة او عشر صرف د مسلمانانو نه اخستلې شی ځکه چه دا دواړه عبادتونه دی. او د دې نه مقصود تطهیر دې ﴿ قال الله تعالى خذ من اموالهم صدقة تطهرهم، وقال ﷺ ان الله لم يفرض الزكوة الا ليطيب ما بقى من اموالكم ﴾ رواه ابوداؤد، او کفار د تطهیر قابل نه دی، ﴿ قال الله تعالى انما المشركون نجس ﴾ خو دا ټول په هغه صورت کښې دی چه تر څو هغه ذمی په هغه مقام کښې او کلی کښې اوسیږی کوم ځائې کښې چه هغوی ته د اوسیدو اجازت ورکړې شوې دې او په کوم باندې چه صلح شوې ده، او که دا خلق د هغه ښهر نه یا د هغه مقام نه بل ملک یا ښهر ته د مال تجارت دپاره سفر کوی او تلل راتلل کوی نو په دې صورت کښې به د هغوی نه په مال تجارت کښې عشر اخستلې شی، په دې باب کښې هم د دې بیان دې چه کله دا خلق مال تجارت اخستلو سره د یو ملک نه بل ملک ته لاړ شی نو د هغوی نه به په دې صورت کښې څه اخستلې شی عشر یا نصف عشر وغيره ذلک من الشرائط.

په هداية کښې دی : ﴿ باب فيمن يمر على العاشر، والعاشر من نصبه الامام على الطريق لياخذ الصدقات من التجار ﴾ او په هدایه کښې دا هم دی چه کله سوداګر په عاشر باندې مال تجارت ورتیر کړی او هغه دا اوائی چه لا تر اوسه پورې حولان حول نه دې شوې یا دا چه په ما باندې دین دې او په هغې باندې هغه قسم اوخوری نو د هغه تصدیق به کولې شی او هم دغه شان که هغه داسې اوائی چه ما د دې زکوة په ښار کښې فقیرانو ته خپله ورکړې دې، بیا لیکی چه د مسلم نه به عاشر ربع واخلی، او د ذمی نه به نصف العشر او د حربی نه عشر، او دغه شان دا هم پکښې دی چه د ذمی او مسلمان نه دې نصف العشر او ربع العشر هغه وخت واخستلې شی، چه په اندازه د نصاب مال تجارت یوسی، او د حربی په باره کښې دا دی چه هلته هم د نصاب اعتبار دې مګر دا چه هغه خلق د مسلمانانو نه د نصاب نه دکم نه عشر اخلی نو بیا به مونږ د هغوی سره هم دغه شان معامله کوو، هم دغه شان که هغوی مونږ نه د عشر نه کم اخلی نصف العشر یا ربع العشر نو بیا به مونږ هغوی سره هم دغه شان کوو، که هغوی د مسلمان نه ټول مال اخلی نو بیا به مونږ داسې نه کوو ځکه چه دا غدر دې او که هغوی ئې زمونږ نه بالکل نه اخلی نو بیا به مونږ هم نه اخلو ﴿ لانا احق بمكارم الاخلاق ﴾ (هداية ١٨٩/١)

## د ترجمة الباب والا مسئله کښې مذاهب ائمه :

او د مذاهب اربعه خلاصه په دې کښې دا ده چه د احنافو او حنابله په نزد به نصف العشر اخستلې شی په شرط د نصاب یو ځل په کال کښې، او د امام مالک رحمه الله په نزد به عشر اخستلې شی کله چه په عاشر باندې تیریږی او نه به د کال تیریدو شرط وی او نه د نصاب، او د امام مالک رحمه الله په نزد به په عام مالونو کښې هم صرف عشر اخستلې شی په ټولو ځایونو کښې، خو صرف په مکه مکرمه او مدینه طیبه کښې په بعض خوراکونو په باره کښې (غنم او تیل) د هغوی یو روایت دې چه په دې کښې به نصف عشر اخستلې شی. پس په موطاء کښې دی امام مالک رحمه الله په خپل سند سره نقل کوی د عمر بن الخطاب رضی الله عنه نه

﴿كان ياخذ من النبط من الحنطة والزيت نصف العشر يريد بذلك ان يكثر الحمل الى المدينة وياخذ من القطنية [1] ﴾ یعنی عمر ﷺ د حنطة او زیت په باره کښې د عشر په ځائې نصف عشر اخستلو چه سودا ګر خلق هغې لره په کثرت سره مدینې طیبې ته راوړی او بیا هلته ارزانې شی، او د باقی د غلو نه یعنی هغه غلې کومې چه پخولې شی لکه مسور او چنړه او لوبیا د دې نه به ئې عشر اخستلو او د زیت او د حنطة تخصیص ئې په دې وجه کړې وو ﴿ لانهما معظم طعامهم ﴾ یعنی چونکه دا څیزونه عام طور سره خوړلې شی او د خلقو دې طرف ته حاجت زیات دې. او د امام شافعی ﷫ مسلک هم د دې په باره کښې دا دې چه د اهل ذمه نه به سوا د جزیه او سوا د هغې نه چه په هغې باندې مصالحت شوې وی صدقة زکوة او عشر وغیره هیڅ نه شی اخستلې یعنی په مال تجارت کښ، مګر دا چه هغوی د غیر حجاز نه هغه مال تجارت حجاز ته راوړی، نو اول خو دې هغوی ته حجاز ته د داخلیدو اجازت ورنکړې شی، او که ورکړې شی نو بغیر د معاوضې نه نهٔ، عشر یا نصف العشر چه څه هم د امام رائې وی، او اجازت دې هم په حجاز کښې صرف د درې ورځو ورکړې شی د هغې نه زائد نه. (اوجز ٣/ ٢٧٠)

[٣٠٤٦] [2] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، حَدَّثَنَا عَطَاءُ بْنُ السَّائِبِ، عَنْ حَرْبِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ جَدِّهِ أَبِي أُمِّهِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّمَا الْعُشُورُ عَلَى الْيَهُودِ وَالنَّصَارَى وَلَيْسَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ عُشُورٌ".

ابو امه دخپل پلارنه روایت کوی فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی چه د تجارت په مال کښې دیهودیانو اونصرانیانونه به لسمه حصه اخستلې شي اودمسلمانانونه به نه شی اخستلې.

﴿قال رسول الله ﷺ انما العشور على اليهود والنصارى وليس على المسلمين عشور ﴾

**شرح الحدیث**:

عشور جمع ده د عشر او په دې باره کښې رسول الله ﷺ فرمائی چه په مسلمانانو باندې عشور نشته بلکه په یهودو او نصاری باندې دې په دې باندې دا اشکال واردیږی چه په کتاب الزکوة کښې دا تیر شوې دی چه د صدقې دوه قسمونه دی، یو هغه چه په نقدو (یعنی سرو او سپینو زرو) او مال تجارت کښې واجب کیږی چه هغې ته زکوة وائی چه د هغې مقدار اربع العشر دې، او قسم ثانی هغه چه د زمکې په پیداوار کښې واجب کیږی چه د هغې مقدار عشر او نصف العشر دې، نو بیا دلته د عشر د مسلمانانو نه څنګه نفی کولې شی، د دې جواب دا دې چه د مسلمانانو په ذمه چه کوم عشر واجب دې د هغې نه مراد د زمکې د غلو عشر دې یعنی د زمکې د پیدوار، او دلته په حدیث کښې د مال تجارت عشر مراد دې کوم چه د اهل ذمه نه اخستلې شی یا دې دلته داسې اوئیلې شی چه د عشور نه مراد خراج دې لکه چه په روستو حدیث کښې راځی، بیا د یو توجیه حاجت نشته.

[1] ) بكسر القاف وضمها لغة كالعدس والحمص واللوبيا ولارزد والسمسم وغير ذلك العشر ﴾ (اوجز ٣/ ٢٧١)

[2] ): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٥٤٦، ١٨٤٨٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/ ٤٧٤، ٤/ ٣٢٢) (ضعيف)

د دې حديث په سند کښې ډېر اختلاف او اضطراب دې، کوم چه خپله د ابوداؤد په روايتونو کښې هم دې چه د هغې تفصيل حضرت په بذل کښې ليکلې دې، چه د هغې نه دا خبره معلوميږي چه د دې حديث راوی صحابی مجهول دې.

[٣٠٤٧](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ الْمُحَارِبِيُّ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ حَرْبِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَعْنَاهُ، قَالَ: خَرَاجٌ مَكَانَ الْعُشُورِ.

حرب بن عبيد الله دنبی ﷺ نه دتير روايت. په شان روايت بيان کړې دې مګرپه دې روايت کښې دعشور په ځائې باندې خراج ذکرشوې دې.

[٣٠٤٨](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَكْرِ بْنِ وَائِلٍ، عَنْ خَالِهِ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَعْشِرُ قَوْمِي، قَالَ: "إِنَّمَا الْعُشُورُ عَلَى الْيَهُودِ وَالنَّصَارَى".

بکر بن وائل دخپل مامانه روايت کوی فرمائي چه ماعرض اوکړو اې دالله رسوله ايادخپل قوم نه لسمه حصه واخلم؟ نبی ﷺ اوفرمائيل نه لسمه حصه خو په يهوديانو او نصرانيانو باندې وي.

[٣٠٤٩](٣) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ حَرْبِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَيْرٍ الثَّقَفِيِّ، عَنْ جَدِّهِ رَجُلٍ مِنْ بَنِي تَغْلِبَ، قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَسْلَمْتُ وَعَلَّمَنِي الْإِسْلَامَ وَعَلَّمَنِي كَيْفَ آخُذُ الصَّدَقَةَ مِنْ قَوْمِي مِمَّنْ أَسْلَمَ، ثُمَّ رَجَعْتُ إِلَيْهِ فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ كُلُّ مَا عَلَّمْتَنِي قَدْ حَفِظْتُهُ إِلَّا الصَّدَقَةَ أَفَأُعَشِّرُهُمْ؟ قَالَ: "لَا، إِنَّمَا الْعُشُورُ عَلَى النَّصَارَى وَالْيَهُودِ".

د عمير ثقفی (بنو تغلب والا) نه روايت دې فرمائي چه دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم او اسلام مې قبول کړو اوهغه راته داسلام داحکامو تعليم راکړو او زما په قوم کښې چه څوك مسلمانان شوي وو دهغوی نه ئې دصدقې اخستلو تعليم ئې هم راکړو، کله چه ورته بيادوباره راغلم نوماعرض اوکړو اې دالله رسوله څه چه راته ښودلي وو هغه ټول مې ياد دي مګر صدقه مې ياده نه ده ايازه دخپل قوم نه لسمه حصه واخلم نبی ﷺ اوفرمائيل نه لسمه حصه خو په يهودو اونصاري باندې ده.

[٣٠٥٠](٤) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا أَشْعَثُ بْنُ شُعْبَةَ، حَدَّثَنَا أَرْطَاةُ بْنُ الْمُنْذِرِ، قَالَ: سَمِعْتُ حَكِيمَ بْنَ عُمَيْرٍ أَبَا الْأَحْوَصِ، يُحَدِّثُ عَنِ الْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ السُّلَمِيِّ، قَالَ: نَزَلْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ وَمَعَهُ مَنْ مَعَهُ مِنْ أَصْحَابِهِ، وَكَانَ صَاحِبُ خَيْبَرَ رَجُلًا مَارِدًا مُنْكَرًا، فَأَقْبَلَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ أَلَكُمْ أَنْ تَذْبَحُوا حُمُرَنَا وَتَأْكُلُوا ثَمَرَنَا وَتَضْرِبُوا نِسَاءَنَا، فَغَضِبَ يَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ: "يَا ابْنَ عَوْفٍ ارْكَبْ فَرَسَكَ ثُمَّ نَادِ أَلَا إِنَّ الْجَنَّةَ لَا تَحِلُّ إِلَّا لِمُؤْمِنٍ وَأَنِ اجْتَمِعُوا لِلصَّلَاةِ"، قَالَ: فَاجْتَمَعُوا، ثُمَّ صَلَّى بِهِمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ قَامَ فَقَالَ: أَيَحْسَبُ أَحَدُكُمْ مُتَّكِئًا عَلَى أَرِيكَتِهِ قَدْ يَظُنُّ أَنَّ اللَّهَ لَمْ يُحَرِّمْ شَيْئًا إِلَّا مَا فِي هَذَا الْقُرْآنِ أَلَا

---

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٥٥٤٦، ١٨٤٨٩) (ضعيف)

(٢): انظر حديث رقم: (٣٠٤٦)، (تحفة الأشراف: ١٥٥٤٦، ١٨٤٨٩) (ضعيف)

(٣): انظر حديث رقم: (٣٠٤٦)، (تحفة الأشراف: ١٥٥٤٦، ١٨٤٨٩) (ضعيف)

(٤): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩٨٨٦) (ضعيف)

وَإِنِّي وَاللهِ قَدْ وَعَظْتُ وَأَمَرْتُ وَنَهَيْتُ عَنْ أَشْيَاءَ إِنَّهَا لَمِثْلُ الْقُرْآنِ أَوْ أَكْثَرُ، وَإِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ لَمْ يُحِلَّ لَكُمْ أَنْ تَدْخُلُوا بُيُوتَ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا بِإِذْنٍ وَلَا ضَرْبَ نِسَائِهِمْ وَلَا أَكْلَ ثِمَارِهِمْ إِذَا أَعْطَوْكُمُ الَّذِي عَلَيْهِمْ".

دعرباض بن ساريه سلمي رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه دنبي عليه السلام سره خيبر ته راغلو اودهغه سره په صحابه كرامو كښې هغه څوك وو څوك چه ورسره وو او دخيبر والا مشر يو سركش اورشرير سړي وو هغه نبي عليه السلام ته راغي اووئې وئيل اې محمد آيا ستاسودپاره جائز دي چه زمونږه خره ذبح كړئ اوزمونږه ميوې اوخورئ او زمونږه ښځې قتل كړئ نبي عليه السلام چه دا واوريدل نوغصه شو اووئې فرمائيل اې عبدالرحمن بن عوف په خپل اس باندې سور لاړ شه او ددې خبرې اعلان اوكړه چه جنت حلال نه دې مګرد مسلمانانو دپاره او تاسو ټول مونځ ته راجمع شئ هركله چه هغوي راجمع شول نونبي عليه السلام مونځ وركړو اودمونځ نه پس اودريدو اووئې فرمائيل ايا ګمان كوي يوكس ستاسو په هغه وخت كښې چه ډډه ئې وهلې وي تكيه خپلې ته اوداګمان كوي چه الله تعالى څه شې نه دې حرام كړې مګرهغه څيزونه دى چه په دې قران كښې دي خبردار واورئ ماتاسوته نصيحت اوكړو اوديوڅوخبروحكم مې درته اوكړو اوديوڅوكارونونه ئې منع كړئ اوهغه هغه خبرې دي كومې چه په دې قران كښې دي يادې نه زياتې دي، يقينا الله تعالى ستاسو دپاره داهل كتابوكورونوته دهغوي داجازت نه بغيرتلل نه دى حرام كړي اونه ئې دهغوي دښځو وژل حلال كړې دى اونه ئې دهغود ميوو خوړل حلال كړي دى مګرهغه كوم چه هغوي تاسوته دركوي اوهغه دهغوي په ذمه وى (يعنى جزئيه).

﴿ عن العرباض بن سارية السلمى رضي الله عنه قال نزلنا مع النبى صلى الله عليه وسلم خيبر ومعه من اصحابه وكان صاحب خيبر رجلا ماردا منكرا فاقبل الى النبى صلى الله عليه وسلم فقال يا محمد (صلى الله عليه وسلم) الخ ﴾

**مضمون د حديث:**

مضمون د حديث دا دې چه عرباض بن سارية فرمائي چه مونږ د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره وو او د هغوي سره صحابه كرام رضي الله عنهم هم وو نو يوه ورځ مو د خيبر سردار سره ملاقات اوشو چه ډير سخت طبيعت والا وو هغه زمونږ په ليدو باندې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته متوجه شو او وې وئيل اې محمد (صلى الله عليه وسلم) آيا ستاسو دپاره دا جائز دى چه زمونږ څاروى ذبح كړئ، او زمونږ د باغونو ميوې څنګه چه غواړئ اوخورئ، او زمونږ زنانه اووهئ؟ (بعض مسلمانانو به د دې قسم حركت او د هغوى په مالونو كښې بې احتياطى كړې وى) رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغه په خبره اوريدو سره خاموش پاتې شو او ګويا د هغه اعتراض ئې برحق اوګڼړلو او په داسې كونكو باندې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ډير غصه ورغله، او رسول الله صلى الله عليه وسلم يو صحابى (غالبا عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه) ته اوفرمائيل چه لاړ شه او په آس باندې سور دا اعلان اوكړه ﴿الا، ان الجنة لا تحل الا لمومن ﴾ چه جنت حلال نه دې مګر د هم هغه مسلمان دپاره چه امانت دار وى، او دا اعلان ئې هم پرې اوكړو چه د مانځه وخت نزدې دې ټول جمع شئ، پس ټول جمع شو رسول الله صلى الله عليه وسلم ټولو ته مونځ وركړو او د مانځه نه پس اودريدو او دا خطبه ئې

اوفرمائیله ﴿ ایحسب احدکم متکئا علی اریکته ﴾ [1] آیا په تاسو کښې بعض خلق داسې دی چه په خپل تخت باندې ناست دی او تکیه ئې وهلې ده او وائی یا دا ګنړی چه الله پاک هیڅ څیز نه دې حرام کړې سوا د هغه حرامو څیزونو نه کوم چه په قرآن کریم کښې ذکر دی پوهه شئ قسم په الله ما تاسو ته د ډیرو څیزونو حکم درکړې دې او د ډیرو څیزونو نه مې منع کړې یئ او د دې قسم څیزونه هم په قرآن کښې د مذکور برابر دی او د دې نه زیات هم دی او په یو روایت کښې دی ﴿ وان ما حرم رسول الله ﷺ کما حرم الله ﴾ یعنی د کوم څیز حرام والې چه د رسول الله ﷺ د ژبې مبارکې نه وی هغه په حرمت کښې په مثل د هغې دې کوم چه په قرآن کښې حرام دې، او بیا رسول الله ﷺ د مثال په طور هغه څیزونه بیان کړل چه په هغې کښې بعض خلقو بې احتیاطی کړې وه کوم چه پورته په حدیث الباب کښې ذکر شوې دی، په تخت باندې تکیه لګول کنایه ده د عیش پرستئ او د آخرت د غفلت نه.

[٣٠٥١] [2] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَسَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ هِلَالٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ ثَقِيفٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ جُهَيْنَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَعَلَّكُمْ تُقَاتِلُونَ قَوْمًا فَتَظْهَرُونَ عَلَيْهِمْ فَيَتَّقُونَكُمْ بِأَمْوَالِهِمْ دُونَ أَنْفُسِهِمْ وَأَبْنَائِهِمْ"، قَالَ سَعِيدٌ فِي حَدِيثِهِ: فَيُصَالِحُونَكُمْ عَلَى صُلْحٍ، ثُمَّ اتَّفَقَا فَلَا تُصِيبُوا مِنْهُمْ شَيْئًا فَوْقَ ذَلِكَ فَإِنَّهُ لَا يَصْلُحُ لَكُمْ.

د جهینه قبیلې دیو کس نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی: تاسو به دیو قوم سره جنګ وکړئ او تاسو به ورباندې غالب شئ او هغوی به ستاسو نه خپل ځانونه او خپل اولاد په خپل مال باندې بچ کوي، سعید په خپل روایت کښې وئیلی دی چه: بیا به دوی ستاسو سره په مال صلح وکړي خو تاسو به د هغوی نه زیات نه وصول کوئ ځکه چه ستاسو دپاره ز-ي وصول کول جائز نه دي.

[٣٠٥٢] [3] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنِي أَبُو صَخْرٍ الْمَدِينِيُّ، أَنَّ صَفْوَانَ بْنَ سُلَيْمٍ، أَخْبَرَهُ عَنْ عِدَّةٍ، مِنْ أَبْنَاءِ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، عَنْ آبَائِهِمْ دِنْيَةً، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "أَلَا مَنْ ظَلَمَ مُعَاهِدًا أَوِ انْتَقَصَهُ أَوْ كَلَّفَهُ فَوْقَ طَاقَتِهِ أَوْ أَخَذَ مِنْهُ شَيْئًا بِغَيْرِ طِيبِ نَفْسٍ فَأَنَا حَجِيجُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ".

صفوان بن سلیم دصحابه کرامو دیو تعداد ځامنونه روایت نقل کوي چه هغوی د خپلو پلرونونه اوریدلي چه کوم چه دیوبل رشته داران وو هغوی دنبی علیه السلام نه روایت نقل کړې دې چه فرمائیلي ئې وو: څوک چه په کوم ذي باندې ظلم کوي یادهغه په حق کښې کمې کوي یادهغه دطاقت نه ورته زیات تکلیف ورکوي یادهغه دمرضئ نه بغیر دهغه څه شي حاصلوي نوزه به دقیامت په ورځ دهغه دطرف نه جګړه کوم په ورځ دقیامت.

[1] وفي رواية كما في المشكوة: لا الفين احدكم متكئا علي اريكته ياتيه الامر من امري مما امرت به او نهيت عنه فيقول لا ادري ما وجدنا في كتاب الله اتبعناه وفي رواية: الا يوشك رجل شبعان علي اريكته يقول عليكم بهذا القرآن.

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٧٠٧) (ضعيف)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٧٠٥) (صحيح)

**قوله**: ﴿ ان صفوان بن سليم اخبره عن عدة من ابناء اصحاب رسول اللهﷺ عن ابائهم دنية عن رسول اللهﷺ ﴾: دا لفظ دنية مصدر دې په معنی د دنو او منصوب دې بناء بر حاليت، او مطلب دا دې چه د څو صحابه كرامو رضی الله عنهم ځامن روايت كوی د خپلو پلارانو نه چه د هغوی سره هغه ځامن متصل النسب دی، يعنی د هغوی صلبی اولاد دې.

د حديث مضمون د ذمی په باره كښې دې چه څوك په هغه باندې ظلم او زياتئ كوی يا د هغه د طاقت نه زيات د هغه نه كار اخلی او د هغه يو څيز بغير د هغه د رضا نه اخلی ﴿ فانا حجيجه يوم القيامة ﴾ نو د هغه ذمی د طرف نه به هغه انسان سره مقدمه كونكې د قيامت په ورځ زه پخپله يم.

## بَابٌ فِي الذِّمِّيِّ يُسْلِمُ فِي بَعْضِ السَّنَةِ هَلْ عَلَيْهِ جِزْيَةٌ

**څوك چه د كال په مينځ كښې اسلام قبول كړې د تير شوي نيم كال جزيه به ترې نه شی اخستلې**

[٣٠٥٣] (١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْجَرَّاحِ، عَنْ جَرِيرٍ، عَنْ قَابُوسَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَيْسَ عَلَى الْمُسْلِمِ جِزْيَةٌ".

دابن عباس رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی علیه السلام نه روايت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائيلی دی: نشته په مسلمان باندې بدله.

**شرح الحديث ومذاهب ائمة**:

د حديث لفظ ﴿ ليس على المسلم جزية ﴾ دې په دې باندې دا شبه كيدې شی چه دا خبره خو بديهی ده چه په مسلمان باندې جزية نه وی بيا د دې د ذكر كولو نه څه فائده؟ غالبا هم په دې وجه وړاندې په روايت كښې راځی چه د سفيان ثوری رحمه الله نه سوال اوكړې شو د دې حديث د معنی په باره كښې نو هغوی اوفرمائيل مراد دا دې چه كه ذمی د كال په مينځ كښې اسلام راوړی نو اوس به د هغه نه جزية نه شی اخستلې بلكه ساقط به شی د تيرو مياشتو. په دې كښې د جمهور علماء كرامو او د ائمة ثلاثه مذهب هم دا دې او د امام شافعی رحمه الله نه هم يو روايت هم دغه شان دې، خو معتمد قول دهغوی دا دې چه نه ساقطيږی بلكه اخستلې به شی (كمافی الاوجز عن شرح الاقناع) بعض شوافعو شراح (الخطابی فی المعالم) په دې حديث كښې د جزيه نه مراد خراج اخستلې دې، يعنی كه ذمی اسلام قبول كړی او د هغه په لاس كښې خراجی زمكه وه نو د هغه نه به خراج ساقط شی، خو دويمه مسئله دا ده، دا خپله مختلف فيه ده، د احناف په نزد اسلام راوړلو سره د زمكې خراج نه ساقط كيږی، د امام شافعی رحمه الله په نزد ساقط كيږی، او په دې كښې د هغوی په نزد تفصيل دې ياتی فی باب الدخول فی ارض الخراج...والحديث اخرجه الترمذی، قاله المنذری.

[٣٠٥٤] (٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، قَالَ: سُئِلَ سُفْيَانُ، عَنْ تَفْسِيرِ هَذَا فَقَالَ: إِذَا أَسْلَمَ فَلَا جِزْيَةَ عَلَيْهِ.

محمدبن كثيروائی دسفيان نه ددې روايت دتفسير پوښتنه وكړې شونو وئې وئيل ددې مطلب دادې چه كله څوك اسلام قبول كړې نوجزيه ورباندې نشته.

(١): سنن الترمذي/الزكاة ١١ (٦٣٤)، (تحفة الأشراف: ٥٤٠٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٨٥/١) (ضعيف)
(٢): (صحيح)

# بَاب فِي الإِمَامِ يَقْبَلُ هَدَايَا الْمُشْرِكِينَ

## بیان دهغه امام چه د مشرکانو تحفې قبلوي

[٣٠٥٥](١) حَدَّثَنَا أَبُو تَوْبَةَ الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ يَعْنِي ابْنَ سَلَّامٍ، عَنْ زَيْدٍ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا سَلَّامٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ الْهَوْزَنِيُّ، قَالَ: لَقِيتُ بِلَالًا مُؤَذِّنَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِحَلَبَ، فَقُلْتُ: يَا بِلَالُ حَدِّثْنِي كَيْفَ كَانَتْ نَفَقَةُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: مَا كَانَ لَهُ شَيْءٌ كُنْتُ أَنَا الَّذِي أَلِي ذَلِكَ مِنْهُ مُنْذُ بَعَثَهُ اللَّهُ إِلَى أَنْ تُوُفِّيَ وَكَانَ إِذَا أَتَاهُ الْإِنْسَانُ مُسْلِمًا فَرَآهُ عَارِيًا يَأْمُرُنِي فَأَنْطَلِقُ فَأَسْتَقْرِضُ فَأَشْتَرِي لَهُ الْبُرْدَةَ فَأَكْسُوهُ وَأُطْعِمُهُ حَتَّى اعْتَرَضَنِي رَجُلٌ مِنَ الْمُشْرِكِينَ، فَقَالَ: يَا بِلَالُ إِنَّ عِنْدِي سَعَةً فَلَا تَسْتَقْرِضْ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا مِنِّي فَفَعَلْتُ، فَلَمَّا أَنْ كَانَ ذَاتَ يَوْمٍ تَوَضَّأْتُ ثُمَّ قُمْتُ لِأُؤَذِّنَ بِالصَّلَاةِ، فَإِذَا الْمُشْرِكُ قَدْ أَقْبَلَ فِي عِصَابَةٍ مِنَ التُّجَّارِ، فَلَمَّا أَنْ رَآنِي قَالَ: يَا حَبَشِيُّ قُلْتُ يَا لَبَّاهُ فَتَجَهَّمَنِي، وَقَالَ لِي قَوْلًا غَلِيظًا، وَقَالَ لِي: أَتَدْرِي كَمْ بَيْنَكَ وَبَيْنَ الشَّهْرِ؟ قَالَ: قُلْتُ قَرِيبٌ قَالَ: إِنَّمَا بَيْنَكَ وَبَيْنَهُ أَرْبَعٌ فَآخُذُكَ بِالَّذِي عَلَيْكَ فَأَرُدُّكَ تَرْعَى الْغَنَمَ كَمَا كُنْتَ قَبْلَ ذَلِكَ، فَأَخَذَ فِي نَفْسِي مَا يَأْخُذُ فِي أَنْفُسِ النَّاسِ حَتَّى إِذَا صَلَّيْتُ الْعَتَمَةَ رَجَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى أَهْلِهِ فَاسْتَأْذَنْتُ عَلَيْهِ فَأَذِنَ لِي، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي إِنَّ الْمُشْرِكَ الَّذِي كُنْتُ أَتَدَيَّنُ مِنْهُ قَالَ لِي: كَذَا وَكَذَا وَلَيْسَ عِنْدَكَ مَا تَقْضِي عَنِّي وَلَا عِنْدِي وَهُوَ فَاضِحِي فَأْذَنْ لِي أَنْ آبَقَ إِلَى بَعْضِ هَؤُلَاءِ الْأَحْيَاءِ الَّذِينَ قَدْ أَسْلَمُوا حَتَّى يَرْزُقَ اللَّهُ رَسُولَهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا يَقْضِي عَنِّي، فَخَرَجْتُ حَتَّى إِذَا أَتَيْتُ مَنْزِلِي فَجَعَلْتُ سَيْفِي وَجِرَابِي وَنَعْلِي وَمِجَنِّي عِنْدَ رَأْسِي حَتَّى إِذَا انْشَقَّ عَمُودُ الصُّبْحِ الْأَوَّلِ أَرَدْتُ أَنْ أَنْطَلِقَ، فَإِذَا إِنْسَانٌ يَسْعَى يَدْعُو: يَا بِلَالُ أَجِبْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَانْطَلَقْتُ حَتَّى أَتَيْتُهُ فَإِذَا أَرْبَعُ رَكَائِبَ مُنَاخَاتٌ عَلَيْهِنَّ أَحْمَالُهُنَّ فَاسْتَأْذَنْتُ فَقَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَبْشِرْ فَقَدْ جَاءَكَ اللَّهُ بِقَضَائِكَ، ثُمَّ قَالَ: أَلَمْ تَرَ الرَّكَائِبَ الْمُنَاخَاتِ الْأَرْبَعَ، فَقُلْتُ: بَلَى فَقَالَ: إِنَّ لَكَ رِقَابَهُنَّ وَمَا عَلَيْهِنَّ فَإِنَّ عَلَيْهِنَّ كِسْوَةً وَطَعَامًا أَهْدَاهُنَّ إِلَيَّ عَظِيمُ فَدَكَ فَاقْبِضْهُنَّ وَاقْضِ دَيْنَكَ، فَفَعَلْتُ فَذَكَرَ الْحَدِيثَ ثُمَّ انْطَلَقْتُ إِلَى الْمَسْجِدِ فَإِذَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَاعِدٌ فِي الْمَسْجِدِ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَقَالَ: مَا فَعَلَ مَا قِبَلَكَ؟ قُلْتُ: قَدْ قَضَى اللَّهُ كُلَّ شَيْءٍ كَانَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَبْقَ شَيْءٌ، قَالَ: أَفَضَلَ شَيْءٌ قُلْتُ: نَعَمْ قَالَ: انْظُرْ أَنْ تُرِيحَنِي مِنْهُ فَإِنِّي لَسْتُ بِدَاخِلٍ عَلَى أَحَدٍ مِنْ أَهْلِي حَتَّى تُرِيحَنِي مِنْهُ، فَلَمَّا صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَتَمَةَ دَعَانِي فَقَالَ: مَا فَعَلَ الَّذِي قِبَلَكَ؟ قَالَ: قُلْتُ: هُوَ مَعِي لَمْ يَأْتِنَا أَحَدٌ، فَبَاتَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ وَقَصَّ الْحَدِيثَ حَتَّى إِذَا صَلَّى الْعَتَمَةَ يَعْنِي مِنَ الْغَدِ دَعَانِي، قَالَ: مَا فَعَلَ الَّذِي قِبَلَكَ؟ قَالَ: قُلْتُ: قَدْ أَرَاحَكَ اللَّهُ مِنْهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَكَبَّرَ وَحَمِدَ اللَّهَ شَفَقًا مِنْ أَنْ يُدْرِكَهُ الْمَوْتُ وَعِنْدَهُ ذَلِكَ"، ثُمَّ اتَّبَعْتُهُ حَتَّى إِذَا جَاءَ أَزْوَاجَهُ، فَسَلَّمَ عَلَى امْرَأَةٍ امْرَأَةٍ حَتَّى أَتَى مَبِيتَهُ فَهَذَا الَّذِي سَأَلْتَنِي عَنْهُ.

دعبدالله هوزني نه روايت دې فرمائي چه زماپه حلب کښې دنبی ﷺ دموذن بلاله سره ملاقات اوشو ما ورته اووئيل اې بلال دا راته بيان کړه چه نبی ﷺ به څه رنګې خرچ کولو؟ بلال اووئيل دنبی ﷺ سره چه کوم مال وو دهغه وخت نه چه الله ده ته نبوت ورکړې وو تروفات کيدو پورې کله چه به ورته کوم مسلمان راغې اونبی ﷺ به بربند اوليدو نو ماته به ئې حکم اوکړو اوزه به لاړم په قرضو به مې ورله څادر واخستو او وربه مې کړو هغه به هغه کپړې واغوستلې اوهغه خوراك به ئې وخوړلو تردې چه يوه ورځ په مشرکينو کښې

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٢٠٤٠) (صحيح الإسناد)

یو کس زماسره ملاو شو اووئې وئیل اې بلال زماسره کافی ډیر مال موجوددې زمانه علاوه دبل چانه قرض مه اخله چنانچه مابه همداسې کول مایوه ورځ اودس اوکړو اوداذان دپاره پاڅیدم اوې لیدل چه دغه مشرک دتاجرانو د یوې ډلې سره راغې کله چه ئې زه اولیدلم نو اوئې وئیل اې حبشي ماورته اووئیل جناب هغه سختې کول شروع کړل اوماته ئې بدرد اووئیل اودائې هم راته اووئیل ایا تاته پته ده چه دمیاشتې پوره کیدوته څو ورځې پاتې دي مااووئیل هو، نیزدې ده یعنی یوڅو ورځې پاتې دي بیا ئې اووئیل اوګوره په میاشت کښې صرف څلور ورځې پاتې دي زه به ستانه اخپل قرض اخلم زه به تاداسې کړم لکه څرنګ چه به تامخکښې ګډې څرولې بلال وائی په دې خبره باندې زما په زړه کښې دومره افسوس راغې څومره چه خلق افسوس کوې تردې چه کله زه دماسخوتن دمونځ نه فارغ شوم او نبی ﷺ خپل کور ته لاړو نوماهم ترې دورتلو اجازت وغوښتو ماته ئې اجازت راکړو ماعرض اوکړو اې دالله رسوله ستانه دې زمامور اوپلار قربان شي دکوم مشرک نه چه به ماقرض اخستو هغه راسره جنګ اوکړو اوماته ئې بد رد اووئیل اوستاسره خودومره مال نشته چه زماقرضه پر اداشي اونه زما سره دومره مال موجود دې چه دقرض ادا کولو دپاره پوره وې او هغه کس به مارسوا کړې ماته اجازت راکړه چه زه په قبائلو کښې چاته وروتښتم په هغه خلقو کښې چاچه اسلام قبول کړې دې اودمدینې نه بهراوسیږي تردې پورې الله تعالی خپل رسول ته دومره مال ورکړي په څومره مال چه زماقرضه اداکیږي ددې خبرې په کولو سره زه راروان شوم اوخپل کور ته راورسیدم اوماتوره موذې پیزار اوډال دبالح سره کیښودل کله چه صبح صادق اوختو نوماد تختید و اراده کړې وه ګورم چه په دې وخت کښې یوسړې په منډه راغې اووئې وئیل اې بلال نبی ﷺ دې غواړي چنانچه زه روان شوم اودهغه په خدمت کښې حاضر شوم ماچه اوکتل نوهلته څلور اوښې ترلې شوې پرتې وې ماداخلیدو دپاره اجازت وغوښتو نبی ﷺ اوفرمائیل اې بلاله خوشحاله شه الله تعالی ستادقرض دادا کولو دپاره غیبي مال راليږلې دې نبی ﷺ ددې نه پس اوفرمائیل ایا تا اونه لیدل هغه څلور اوښان ماعرض اوکړو ولې نه نبی ﷺ اوفرمائیل ته دغه څاروی هم واخله اوهغه سامان هم واخله کوم چه په دوی باندې بار شوې دې اوته هغه هم واخله کومه کپړه اوغله چه په دې اوښانوباندې پرته ده دامانه دفدك أمير راليږلې دې ته دا واخله اوخپله قرضه په دې باندې اداکړه ماه داسې اوکړل، بیا بلال اوفرمائیل زه جومات ته حاضر شوم او اومې لیدل چه نبی ﷺ ناست دې اسلام اوکړو هغه اوفرمائیل تاته دهغه مال نه څه فائده حاصله شوه؟ ما اووئیل الله تعالی هغه ټول قرض ادا کړو کوم چه دهغه درسول په ذمه وو شیخ قرضه باقی پاتې نشوه نبی ﷺ اوفرمائیل ایا په دې مال کښې څه باقی پاتې شوې دې ما عرض اوکړو هو ماته ئې اوفرمائیل کوم مال چه باقی پاتې شوې د هغه په جلتئ سره خرچ کړه زه ترهغې پورې پورته نه ځم ترڅوچه تا ماته اطمینان نه وی راکړې کله چه نبی ﷺ دماسخوتن مونځ اوکړو ماته ئې رایاد کړل اوئې فرمائیل هغه مال څه شو کوم چه ستاسره باقی پاتې شوې دې؟ ما ورته اووئیل هغه زماسره دې ماته هیڅ څوك رانغی چه ما ورته دا ورکړې وې یعنی مستحق، ملاو نه شو بیا نبی ﷺ دشپې په جومات کښې قیام

اوکړو راوي وائي هرکله چه بله شپه د ماسخوتن دمونځ نه فارغ شو نوزه ئې راوغوښتم اوماته ئې اوفرمائيل هغه مال څنګه شو کوم چه ستاسره باقي پاتې شوي وو؟ ماعرض اوکړو اې دالله رسوله الله تعالی ته دهغه نه مطمئن کړي نبی ﷺ چه دا واوريدل نوتکبير ئې اووئيلو دالله تعالی شکرئې اداکړو اوحمدئې بيان کړو چه هغه ذات ماته دمال نه نجات راکړو، دنبی ﷺ سره دا انديخنه وه هسې نه چه زه وفات شم اودا مال زماسره موجود پاتې شي بيازه په هغه پسې روان وم اونبی ﷺ خپلو بيبيانوته ورغې اوهري يوې ته ئې سلام اوکړو تردې چه خپل ارام ګاه ته ورسيدو اې عبدالله داهغه خبره ده دکوې چه تا زمانه تپوس کړې دې۔

﴿ حدثني عبدالله الهوزني قال لقيت بلالا موذن رسول اللهﷺ بِحَلَب فقلت يا بلال حدثني كيف كانت نفقة رسول اللهﷺ قال ما كان له شئ كنت انا الذى الى ذلک منه منذ بعثه الله تعالى حتى توفي ﷺ الحديث ﴾

## د رسول اللهﷺ د معيشت او د وخت تيرولو په باره کښې يو اوږد حديث

دا يو اوږد حديث دې چه د هغې مضمون دا دې عبدالله الهوزني وائي چه د رسول اللهﷺ موذن سيدنا بلال ﷺ سره زما ملاقات په حلب ښهر کښې اوشو (بلال ﷺ د رسول اللهﷺ د وفات نه پس د مدينې طيبې نه شام ته تلې وو تردې چه وفات ئې هم هلته اوشو) ما اووې چه تن خو راته د رسول اللهﷺ د کور د اخراجاتو کيفيت بيان کړئ. بلال ﷺ د هغه په درخواست باندې بيانول شروع کړل، او وې فرمائيل چه د رسول اللهﷺ سره به پيسې وغيره نه وې، او د دې کارونو ذمه دار هم زه اووم ﴿ كنت انا الذى الى ﴾ دا د متکلم صيغه ده يعنی د رسول اللهﷺ د ضرورياتو لين دين او د اخستلو او خرڅولو، د رسول اللهﷺ د نبوت نه تر د وفات پورې، د رسول اللهﷺ دا حال وو چه کله به يو مسلمان هغوی ته راغلو او رسول اللهﷺ به هغه بربنډ اوليدو نو هغوی به ماته حکم اوکړو په دې باره کښې. نو ما به د چا نه قرض اخستلو سره د هغه دپاره څادر واخستلو او خوراک به مې پرې هم اوکړلو (دا د هغوی د يوې ورځې واقعه نه ده بلکه مطلب ئې دا ده چه هغوی سره به هميشه هم دغه شان کيدل چه ما به د چا نه قرض واخستلو او د ضرورت مندو ضرورتونه به مې د رسول اللهﷺ په فرمان باندې پوره کول) يوه ورځ داسې اوشوه چه يو مشرک سوداګر ماته راغلو هغه ماته اووې چه اې بلاله د چا نه قرض مه اخله، ما سره کافي ګنجائش دې صرف زما نه اخله. ما هم دغه شان کول. د يوې ورځې خبره ده چه د اودس کولو نه پس آذان ته اودريدم نو او مې کتل چه ناڅاپه هغه مشرک د څو سوداګرو سره زما مخې ته راغلو او ماته کتلو سره ئې اووئيل ﴿ ياحبشي! قلت يا لبّاه ﴾ (د لبيک په شان د غائب ضمير سره هم استعماليږي) او په دې وينا سره ئې ما ته ډيرې خبرې اوکړې او وې وئيل چه تاته معلومه هم ده چه په مياشت پوره کيدو کښې څومره ورځې باقي پاتې شوې؟ ما اووې او پوره کيدو والا ده. وې وئيل صرف څلور ورځې باقي پاتې شوې دی، وې وئيل که په څلورو ورځو کښې دې ادا نه کړو، نو د هغې په بدله کښې به زه تا اونيسم او په تا باندې به بيزې څروم

ځنګه چه به دې مخکښې ځرولې، (وړاندې سیدنا بلال ﷺ فرمائی) چه هغه وخت زما زړه کښې داسې تنګ والې او پریشانی پیدا شوه کومه چه خلقو ته په داسې موقعو باندې وی، تردې چه کله زه د ماسخوتن د مانځه نه فارغ شوم او رسول الله ﷺ خپل کور ته تشریف یوړو، نو ما اجازت واخستلو او هغوی ته حاضر شوم او عرض مې اوکړو یا رسول الله ﷺ زما مور پلار دې په تاسو باندې قربان وی هغه مشرک د چا نه چه ما قرض اخستلو هغه ما ته نن داسې داسې وئیلې دی، او نه خو تاسو سره د ادا کولو دپاره څه شته او نه ماسره، ﴿ وهو فاضحی ﴾ دا د اسم فاعل صیغه ده چه د یائې متکلم طرف ته مضاف شوې ده یعنې هغه به ما نور هم رسوا کړی (که په وخت باندې د ادا کولو دپاره څه اونشو) لهذا ماته اجازت راکړئ چه د مدینې طیبې خواؤشا چه کومو بعض قبیلو اسلام راوړې دې هلته اوتختم، ترڅو چه الله پاک تاسو ته څه درکړی هغه څیز په کوم سره چه قرض ادا شی (رسول الله ﷺ زما په خبره اوریدو باندې خاموش وو) زه د رسول الله ﷺ نه راغلم، او خپل کور ته راتلو سره مې تهیلئ، څپلئ، توره او ډهال خپل سر ته کیخودل، تردې چه کله صبح صادق شو نو ما اراده اوکړه چه په سفر روان شم، هم دې دوران کښې یو سړې ما ته په منډه راغلو چه رسول الله ﷺ دې غواړی، زه د هغوی طرف ته روان شوم، په لاره کښې ما څلور اوښې اولیدې چه په هغې باندې سامان تړلې شوې وو، زه اجازت اخستلو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم، رسول الله ﷺ زما په لیدو سره اوفرمائیل خوشحاله شه، الله پاک ستا د قرض د ادا کولو انتظام اوفرمائیلو او وې فرمائیل ﴿ الم تر الرکائب المناخات الاربع ﴾ آیا تا څلور اوښې ناستې او نه لیدې ما عرض اوکړو جی او مې لیدې، رسول الله ﷺ اوفرمائیل دا اوښې سره د دې سامانونو کوم چه په هغې باندې دی ستا په حواله دی، او رسول الله ﷺ دا هم اوفرمائیل چه په دې اوښو باندې کپړه او غله هم بار ده ﴿ اهداهن الی عظیم فدک ﴾ د فدک یهودو کښې یو لوئې سړی دا هدیة ماته رالیږلې ده، د دې په ذریعه خپل قرض ادا کړه، هغوی فرمائی چه ما هم دغه شان اوکړل، بعض سامان مې خرڅ اوکړو او خپل قرض مې پرې ادا کړو، د دې نه پس په روایت کښې دی ﴿ فذکر الحدیث ﴾ چه د هغې نه معلومیږی چه دلته نور هم څه مضمون وو کوم چه مصنف ﷫ د اختصار په وجه حذف کړو، حضرت شیخ په بذل کښې د کنز العمال په حوالې سره د دې قصې باقی حصه نقل کړې ده، بیا (یعنی د قرض د ادا کولو نه پس) زه جمات ته لاړم نو اومې کتل چه رسول الله ﷺ تشریف فرما دې ما سلام عرض کړو؟ رسول الله ﷺ د قرض په باره کښې تپوس اوکړو، ما عرض اوکړو چه الله پاک قرض پوره ادا کړو، رسول الله ﷺ تپوس اوکړو څه مال بچ شوې دې؟ ما عرض اوکړو اوجی بچ شوې دې. رسول الله ﷺ اوفرمائیل ګوره په دې باقی باندې ماته آرام راکړه، ځکه چه زه به ترهغه وخته پورې خپلو کور والو کښې یو کره هم نه ورځم تردې چه ته ما ته د هغې نه آرام راکړې بیا چه کله ماښام شو او رسول الله ﷺ د ماسخوتن د مانځه نه پس فارغ شو، نو هغوی زه راغوښتلم او تپوس ئې رانه اوکړو چه د باقی مال څه اوشو؟ ما عرض اوکړو جی ماسره دې څوک ئې د اخستلو دپاره نه دی راغلی،

پس رسول اللهﷺ دا شپه په جمات کښې تیره کړه، بیا د دویمې شپې د ماسخوتن د مانځه نه فارغ شو نو زه ئې راطلب کړم او تپوس ئې رانه اوفرمائیلو، ما عرض اوکړو چه الله پاک تاسو ته د هغې نه ارام درکړو، رسول اللهﷺ په دې باندې تکبیر او د الله پاک حمد اووې.
﴿شفقا من ان یدرکه الموت وعنده ذلک﴾ یعنی رسول اللهﷺ د دې خبرې نه ویریدو چه چرته داسې او نه شی چه ماته په دې حال کښې مرګ راشی چه دا مال ماسره وی (د دې نه پس رسول اللهﷺ د ازواج مطهرات کورونو طرف ته لاړو) زه هم په هغوی پسې شاته لاړم نو رسول اللهﷺ ټولو بیبیانو ته تشریف یوړو، هرې یوې بی بی محترمې ته د سلام کولو نه پس د نمبر ځائې ته اورسیدل (په آخر کښې سائل یعنی عبدالله الهوزنی ته فرمائی) ﴿فسکت عنی رسول اللهﷺ فاغتمزتها﴾ رسول اللهﷺ زما د ټولې خبرې اوریدو نه پس خاموشی اختیار کړه یعنی د قصې په شروع کښې، پس دا حالت زما خوښ نه شو، غالبا اشاره د رسول اللهﷺ خاموشئ ته ده چه رسول اللهﷺ د تسلئ یو جمله هم او نه فرمائیله، دا هم د هغوی د تعلق او د مینې خبره ده چه داسې وائی، د دې حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت ښکاره دې، اګر چه عظیم فدک یهودی وو، خو یهود هم د مشرکانو په حکم کښې دی ﴿لقوله تعالی قالت الیهود عزیر ابن الله﴾ اګر چه په بعض نورو احکامو کښې په مشرکانو او یهودو کښې یقینا فرق دې.

[٣٠٥٦](١) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا مَرْوَانُ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ، بِمَعْنَى إِسْنَادِ أَبِي تَوْبَةَ وَحَدِيثِهِ، قَالَ: عِنْدَ قَوْلِهِ مَا يَقْضِي عَنِّي فَسَكَتَ عَنِّي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاغْتَمَزْتُهَا.

محمود بن خالد هم دمروان بن محمدنه اوهغه دمعاویه نه دتیرروایت په شان روایت نقل کړې دې مګرپه دې کښې دااضافه ده چه کله ما نبیﷺ ته عرض وکړوچه نه زماسره مال شته اونه ستاسره دومره سرمایه شته چه دقرض دپاره پوره شي نو نبیﷺ ددې په اوریدو سره خاموش پاتې شوارمادامحسوس کړه چه شاید دې زما په خبره باندې خفه شو.

[٣٠٥٧](٢) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، حَدَّثَنَا عِمْرَانُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الشِّخِّيرِ، عَنْ عِيَاضِ بْنِ حِمَارٍ، قَالَ: أَهْدَيْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَاقَةً، فَقَالَ "أَسْلَمْتَ"، فَقُلْتُ: لَا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنِّي نُهِيتُ عَنْ زَبْدِ الْمُشْرِكِينَ".

دعیاض بن حمارنه روایت دې فرمائی چه نبیﷺ ته مې یوه سورلی هدیه کړه نو هغه راته اوفرمائیل ایا اسلام دې قبول کړو؟ماووئیل نه نو نبیﷺ اوفرمائیل زه دمشرکانو دهدیې قبلولونه منع کړې شوې یم.

﴿عن عیاض بن حمارﷺ قال اهدیت للنبیﷺ ناقة فقال اسلمت؟ قلت لا فقال النبیﷺ انی نهیت عن زبد المشرکین﴾

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٠٤٠) (صحيح الإسناد)
(٢): سنن الترمذي/السير ٢٤ (١٥٧٧)، (تحفة الأشراف: ١١٠١٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٢/٤) (حسن صحيح)

**د مشرکينو د هدايا قبلولو او نه قبلولو په باره کښې دوه مختلف احاديث :**

دا حديث د مخکښې حديث په ظاهره خلاف دې چه په هغې کښې د رسول اللهﷺ د عظيم فدک د هديې قبلولو ذکر دې، او په دې حديث کښې رسول اللهﷺ دا فرمائی چه زه د مشرکانو د عطيې د قبلولو نه منع کړې شوې يم، بيهقی رحمه الله فرمائی چه ﴿ روايات القبول اصح ﴾ او هغوی فرمائی، او يا دې دا اووئيلې شی چه د منع تعلق د مشرکينو د هدايا سره دې، او د قبول په رواياتو کښې د اهل کتابو د هدايا ذکر دې (۱) او خطابی وائی چه دا د منع روايت منسوخ دې ځکه چه رسول اللهﷺ د ډيرو مشرکانو هدايا قبول کړې دی، لکه مقوقس ماريه قبطيه رضی الله عنها او بغله. او هم دغه شان اکيدر دومه د رسول اللهﷺ په خدمت کښې هديه پيش کړه. آه (مختصرا من البذل) هم دغه شان په باب احياء الموات کښې د ملک أيله د هديه ذکر دې. ﴿ فاتينا تبوک فاهدى ملک ايلة الى رسول اللهﷺ بغلة بيضاء ﴾ امام ترمذی رحمه الله هم په دې تعارض باندې کلام کړې دې، هغوی د نسخ په باره کښې دواړه احتمالات ليکلې دی يعنی په دواړو کښې دې يو ته منسوخ اوبل ته ناسخ اووئيلې شی.

د کتاب الجهاد په آخر کښې ﴿ باب فی حمل السلاح الى ارض العدو ﴾ په هغې کښې چه کوم حديث تير شوې دې، په هغې کښې د مشرک د هديه رد مذکور دې، فتذکر.

والحديث اخرجه الترمذی وقال حسن صحيح، قاله المنذری

## بَابٌ فِي إِقْطَاعِ الْأَرَضِينَ

### د زمکې ورکولو بيان

په بعض نسخو کښې د دې باب نه مخکښې کتاب القطائع ليکلې شوې دې چه د هغې نه معلوميږی چه کتاب الخراج په دې ځائې باندې ختم شو.

**د اقطاع او احياء تعريف او په دواړو کښې فرق :**

او د دې نه پاس دويم باب راروان دې د ﴿ احياء الموات ﴾ دلته مصنف رحمه الله ترجمه قائم کړه اقطاع الارضين يعنی ارض ئې مطلقا ذکر کړو او د احياء اضافت ئې موات طرف ته اوکړو، چه د هغې وجه دا ده چه احياء بالاتفاق د ارض موات وی، موات يعنی ارض مباحه غير مملوکه او هغه بنجر زمکه چه د چا په ملک کښې نه وی، فقهاء کرامو ليکلې دی چه موات هغه زمکه ده چه د چا په ملک کښې نه وی د ښهر نه بهر وی، او د مرافق بلد نه هم نه وی يعنی د ښهر د خلقو هغې سره څه ضرورت او فائده نه وی تړلې شوې. په خلاف د اقطاع چه هغه اکثر خو د ارض موات نه وی او کله د ارض مملوکه نه هم، يعنی امام د خپلې مملوکه زمکې نه اقطاع اوکړی يا مملوکه للغير وی او د هغه په اجازت سره امام اقطاع اوکړی، دا د احنافو مسلک دې، د امام شافعی رحمه الله په نزد د امام دپاره ارض مملوکه لبيت المال اقطاع هم جائز ده، امام نووی رحمه الله د دې تصريح کړې ده.

(۱) پس وراندې چه د کومو هدايا ذکر د خطابی وغيره په کلام کښې راروان دې هغه ټول هدايا د اهل کتاب د طرف نه وی.

اقطاع وائی د وخت د خلیفه د طرف نه د زمکې څه رقبې لره نامزد کول (١) قطیعه په معنی د جاګیر چه د هغې جمع قطائع راځی، کتاب القطیعة یعنی جاګیر نامه، چه د چا دپاره ئې امام اولیکی او ورئې کړی، اقطاع او احیاء کښې فرق واضح دې، ځکه چه اقطاع د امام د فعل نوم دې هغه په بل څیز باندې موقوف نه دې، په خلاف د احیاء چه هغه د زمکې د خدمت نوم دې، پس څوک چه د یو ارض مباحه غیر مملوکه خدمت کولو سره هغه آباده کړی هغه به د هغې مالک شي، په دې کښې اختلاف دې چه په احیاء کښې د امام اذن شرط دې که نه، د امام صاحب رحمه الله په نزد ضروری دې او د امام شافعي، احمد او صاحبینو رحمهم الله په نزد ضروری نه دې، او د امام مالک رحمه الله په نزد په موات قریب کښې اذن شرط په بعید کښې نه دی، یعنی کومه چه د آبادئ نه زیاته لرې وی.

[٣٠٥٨](٢) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مَرْزُوقٍ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَائِلٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقْطَعَهُ أَرْضًا بِحَضْرَمَوْتَ.

علقمه بن وائل رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام راته دیمن په حضرموت ښار کښې زمکه په طور د ملکیت راکړې وه.

﴿عن علقمة بن وائل عن ابیه ان النبی صلی الله علیه وسلم اقطعه ارضا بحضر موت﴾

حضرموت د یمن مشهور علاقه ده چه په هغې کښې ډیر ښهرونه دی، حضرموت کښې د اقطاع نه دا نه لازمیږی چه هغه دې خاص په ښهر کښې وی ﴿ اذ لا یجوز عندنا فی المصر کما سیاتی قریبا ﴾ والحدیث اخرجه الترمذی، قاله المنذری

[٣٠٥٩](٣) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا جَامِعُ بْنُ مَطَرٍ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَائِلٍ، بِإِسْنَادِهِ مِثْلَهُ.

ابووائل په خپل سند سره دتیرشوی روایت په شان روایت نقل کړې دې.

[٣٠٦٠](٤) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دَاوُدَ، عَنْ فِطْرٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ عَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ، قَالَ: خَطَّ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَارًا بِالْمَدِينَةِ بِقَوْسٍ، وَقَالَ: "أَزِيدُكَ أَزِيدُكَ".

دعمرو بن حریث رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام راته په مدینه کښې دکور دپاره زمکه راکړه او پخپله لینده ئې کرخه راخکله اووئې فرمائیل نوره زمکه هم درکوم (یعنی

(١) په بدائع الصنائع کښې د زمکو اقسام او د احکامو په ضمن کښې لیکلی دی چه امام ته د اقطاع موات حق په دې وجه دې چه دا سبب دې د عمارت دبلاد دپاره ځکه چه د اقطاع نه پس چه کله هغه زمکه په رعایا کښې د چا ملکیت شی نو هغه د هغې خدمت کولو سره هغه آباده او فائده ورکونکې کړی په دې وجه که یو انسان د اقطاع نه پس د هغه زمکې خدمت کولو سره هغې فائده ورکونکې نه کړی نو تر دری کالو پورې به هغه سره هیڅ تعرض نه شی کولی د دری کالو نه پس هم که هغه څه نه کوی نو د هغه نه دې واپس واخستلې شی هغه زمکه به بیا موات شی لهذا اوس امام د هغه زمکې اقطاع د بل سری دپاره کولی شی (بذل)

(٢): سنن الترمذي/الأحكام ٣٩ (١٣٨١)، (تحفة الأشراف: ١١٧٧٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣٩٩)، سنن الدارمي/البیوع ٦٦ (٢٦٥١) (صحیح)

(٣): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١١٧٧٣) (صحیح)

(٤): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٧١٨) (ضعیف الإسناد)

اوس دومره واخله بیابه ئې زیاته کړم.

## شرح الحدیث:

**قوله: ﴿ عن فطر قال حدثنی ابی عن عمرو بن حریث قال خط لی رسول اللهﷺ دارا بالمدینة بقوس وقال ازیدک ازیدک ﴾**: عمرو بن حریث رضی الله عنه فرمائی چه رسول اللهﷺ زما دپاره د لینديٍ په ذریعه نخښه واچوله په مدینه طیبه کښې د یو کور د زمکې، یعنی د لینديٍ په ذریعه په زمکه باندې نخښه اچولو سره اوفرمائیل چه دومره حصه ستاسو دپاره ده، د امام د هم دې فعل نوم اقطاع دې، په دې حدیث کښې تصریح ده چه رسول اللهﷺ هغه صحابی ته د یو کور په اندازه زمکه په ښهر کښې ورکړه، د احنافو په نزد اقطاع فی المصر جائز نه دې ځکه چه په ښهر کښې کومه زمکه وی هغه به ضرور د چا ملک وی؟ جواب دا دې: الحدیث ضعیف ضعفه الائمة یرویه فطر بن خلیفة عن ابیه، وابوه مجهول، یا دې د حدیث تاویل اوکړې شی یعنی ﴿اقطع برضاء المالک. او ارضا ملکها هو صلی الله علیه وسلم﴾

د دې حدیث د آخری جملې په شرح کښې دوه احتمالات لیکلی دی یو دا چه دا استفهام دې د رسول اللهﷺ د طرف نه چه رسول اللهﷺ د زمکې د ناپ کولو په وخت هغوی ته اوفرمائیل چه دومره مقدار کافی دې یا که نوره اضافه اوکړم، او دویم احتمال دا دې چه رسول اللهﷺ فرمائی دې صحابی رضی الله عنه ته چه ګوره زه تا ته زیاته حصه درکوم، او دریم مطلب ئې دا دې چه اوس خو درله هم دومره درکوم روستو به ئې درته اضافه اوکړم.

[٣٠٦١] () حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقْطَعَ بِلَالَ بْنَ الْحَارِثِ الْمُزَنِيَّ مَعَادِنَ الْقَبَلِيَّةِ وَهِيَ مِنْ نَاحِيَةِ الْفُرْعِ فَتِلْكَ الْمَعَادِنُ لَا يُؤْخَذُ مِنْهَا إِلَّا الزَّكَاةُ إِلَى الْيَوْمِ.

ترجمه: مالک بن ربیعة بن ابی عبد الرحمن د یوڅو کسانونه اوریدلی دی چه نبی علیه السلام بلال بن حارث ته دقبلیه نوم کلي کانونه کوم چه دمکې اودمدینې په مینځ کښې واقع دي دفرع مقام طرف ته ورکړی وو، دننه پورې دزکات نه علاوه ددې کانونونه نور څه شې نه وصول کیږي.

﴿ عن ربیعة بن ابی عبدالرحمن عن غیر واحد ان النبیﷺ اقطع بلال بن الحارث المزنی معادن القبلیة وهی من ناحیة الفرع فتلک المعادن لا یوخذ منها الا الزکوة الی الیوم ﴾

یعنی رسول اللهﷺ د بلال بن الحارث دپاره مقام قَبَل کښې د معادن (کانونو) اقطاع اوفرمائیله یعنی په طور د جاګیر ئې ورته ورکړل، قبل د یو ځائې نوم دې چه په په مدینه کښې د فرع په کلی کښې واقع دې، او د فرع په باره کښې ئې لیکلي دی چه هغه یو قریه ده په طرفونو د ربذه کښې (٢) د هغې او د مدینې منورې ترمینځه د اتو بریدو فاصله ده. (بذل)

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٧٧٧)، وقد أخرجه: موطا امام مالك /الزكاة ٣ (٨)، مسند احمد (٣٠٦/١) (ضعيف)

(٢) ربذه خو د مدینې منورې نه په مشرق کښې د عراق قدیم په لاره واقع ده تقریبا د دوه سوو نه زیات کلومیتره فاصلې باندې، او فرع د مدینې منورې نه په جنوب مغرب کښې تقریبا اویا کلو میتره فاصله باندې دې، د مکې مکرمې په طرق اربعه معروفه کښې یو طریق فرعی هم دې کوم چه په کتاب الحج کښې تیر شوې دی.

**په معدن کښې زکوة واجب وی یا خمس :**

وړاندې په روایت کښې دی چه د هغه معادنو نه د هغه وخت نه تر اوسه پورې صرف زکوة اخستلې کیږی چه د هغې مطلب دې چه ربع العشر اخستلې کیږی حال دا چه د احنافو په نزد په معادن کښې خمس واجب وی، مسئله مختلف فیه ده، د احنافو په نزد په معدن کښې د خزانې په شان خمس واجب وی، په خلاف د جمهور علماء کرامو او ائمه ثلاثه چه د هغوی په نزد خمس صرف په کنز یعنی د جاهلیت په دفینو کښې دې او په معدن کښې زکوة واجب دې، د احنافو دلیل وړاندې په کتاب الخراج کښې د هغې په آواخرو کښې په ﴿ باب ما جآء فی الرکاز وما فیه ﴾ کښې را روان دې، یعنی د رسول اللهﷺ مشهور حدیث ﴿ وفی الرکاز الخمس ﴾ اصل کښې د رکاز په مصداق کښې اختلاف واقع دې د جمهور او ائمه ثلاثه په نزد رکاز د کنز په شان دی، کنز په اتفاق سره د جاهلیت د دفینې نوم دې او معدن بالاتفاق د هغه کان نوم دې چه مخلوق لله تعالی وی،[1] د احنافو په نزد د معدن مقابل کنز دې او رکاز د هغوی په نزد دواړو ته شامل دې، پس استدلال خو د هر دواړو دلو هم د دې حدیث نه دې ﴿ وفی الرکاز الخمس ﴾ خو چونکه د رکاز په مصداق کښې د احنافو او د ائمة ثلاثه اختلاف شو، په دې وجه په دې مسئله کښې هم اختلاف شو.

**د معادن قبلیه والا حدیث د احنافو د طرف نه جوابات :**

خو د حدیث الباب نه ښکاره ده چه د جمهورو تائید کیږی، د احنافو د طرف نه د دې ډیر جوابونه کړې شوې دی، اول دا چه په دې حدیث کښې دا جمله ﴿ فتلک المعادن الخ ﴾ متکلم فیه ده. حضرت شیخ په دې باندې په اوجز ج۳ کښې تفصیلی کلام فرمائیلې دې او بیا ئې په اخیر کښې د خلاصې په طور د دې حدیث شپږ جوابونه ذکر کړې دی .وفیه واستدل من قال بوجوب الزکوة فی المعادن بحدیث بلال المذکور، وأجیب عنه بوجوه الاول ما تقدم من کلام الحافظ ان زیادة وجوب الزکوة لا توجد فی الروایات الموصولة (یعنی دا اصل حدیث خو مشهور او صحیح دې) خو د دې آخری جمله هغه متکلم فیه ده. په روایات موصوله کښې نه ده ذکر کړې شوې، صرف په روایات مرسله کښې ده، والثانی ما تقدم من کلام الشافعی د دې حاصل هم دا دې چه دا ټکړه ثابت نه ده، الثالث ما اشار الیه الامام محمد رحمه الله فی موطاه اذ قال بعد ذکر حدیث الباب قال محمد : الحدیث المعروف ان النبیﷺ قال فی الرکاز الخمس الخ وهو اشارة الی ان حدیث الباب یخالف الحدیث المعروف فهو شاذ والرابع والخامس ما فی الزیلعی : قال ابو عبید فی کتاب الاموال : حدیث منقطع ومع انقطاعه لیس فیه ان النبیﷺ امر بذلک، وانما قال یوخذ منها الزکوة الی الیوم، قال ابن الهمام یعنی فیجوز کون ذلک من اهل الولایات اجتهادا منهم والسادس

---

[1] (لهذا د کنز او معدن ترمینځه بالاتفاق د مفهوم په اعتبار سره د تباین نسبت شو، الاول مدفون والثانی مخلوق، او د جمهورو په نزد رکاز او معدن دواړو کښې هم د تباین نسبت دې ځکه چه رکاز د هغوی په نزد مرادف دې د کنز. او د احنافو په نزد رکاز او باقی دواړو کښې د عموم وخصوص نسبت شو، رکاز عام دې دواړو ته شامل دې لهذا په دواړو کښې به خمس واجب وی)

ما اجاب به صاحب البدائع : يحتمل انه انما لم ياخذ منه ما زاد على ربع العشر لما علم من حاجته وذلک جائز عندنا، يعنى د دې صحابی د حاجت او فقر د وجې رسول الله ﷺ صرف د هغوی نه په زکوة اخستلو باندې اکتفاء اوکړه د خمس په ځائې اهـ يو جواب بل هم ورکړې شوې دې چه مراد دا دې چه د حوالان حول نه پس رسول الله ﷺ د هغوی نه زکوة واخستلو، (واما فى الحال فالخمس)

[٣٠٦٢]() حَدَّثَنَا الْعَبَّاسُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَاتِمٍ، وَغَيْرُهُ، قَالَ الْعَبَّاسُ حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ بْنُ مُحَمَّدٍ، أَخْبَرَنَا أَبُو أُوَيْسٍ، حَدَّثَنَا كَثِيرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ الْمُزَنِيُّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقْطَعَ بِلَالَ بْنَ الْحَارِثِ الْمُزَنِيَّ مَعَادِنَ الْقَبَلِيَّةِ جَلْسِيَّهَا وَغَوْرِيَّهَا، وَقَالَ غَيْرُهُ: جَلْسَهَا وَغَوْرَهَا، وَحَيْثُ يَصْلُحُ الزَّرْعُ مِنْ قُدْسٍ وَلَمْ يُعْطِهِ حَقَّ مُسْلِمٍ وَكَتَبَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ هَذَا مَا أَعْطَى مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ بِلَالَ بْنَ الْحَارِثِ الْمُزَنِيَّ أَعْطَاهُ مَعَادِنَ الْقَبَلِيَّةِ جَلْسِيَّهَا وَغَوْرِيَّهَا، وَقَالَ غَيْرُ الْعَبَّاسِ: جَلْسَهَا وَغَوْرَهَا وَحَيْثُ يَصْلُحُ الزَّرْعُ مِنْ قُدْسٍ وَلَمْ يُعْطِهِ حَقَّ مُسْلِمٍ. قَالَ أَبُو أُوَيْسٍ: وَحَدَّثَنِي ثَوْرُ بْنُ زَيْدٍ مَوْلَى بَنِي الدِّيلِ بْنِ بَكْرِ بْنِ كِنَانَةَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ مِثْلَهُ.

کثير بن عبد الله بن عمرو دخپل پلار نه اوهغه دده دنيکه نه روايت کوی چه نبی ﷺ بلال بن حاث مزني ته دقبليه نوم کلي کانونه کوم چه دمکې اودمدينې په مينځ کښې واقع دي دفرع مقام طرف ته ورکړی وو، اوپه قدس غرکښې د کروندې لائق زمکه په طور دملکيت ورکړې وه اودکوم مسلمان دحق نه ئې ورته نه وه ورکړې اونبی ﷺ دهغه دپاره يودستاويز تحرير کړې وو دهغه تحرير مضمون داسې وو : بسم الله الرحمن الرحيم، داهغه خط دې دکوم په لحاظ سره چه محمد الرسول الله ﷺ بلال بن حارث مزني ته دقبيله کي دکانونو تيکه ورکړې وه کوم چه پورته اوښکته واقع دي اوهغه زمکه کومه چه په قدس کښې د کروندې قابل ده، اوده ته مې دکوم مسلمان حق نه دې ورکړې، ابو اويس راوي وائی چه ماته دثور بن زيد بن ويل ازاد کړي غلام داسې حديث بيان کړې وو کوم چه هغه دعکرمه نه اوريدلې وو اوهغه دابن عباس رضي الله عنهما نه نقل کړې وو.

﴿ حدثنا العباس بن محمد بن حاتم وغيره الخ ﴾

د دې معادن قبليه والا حديث مصنف رحمه الله په ډيرو طرقو سره ذکر کړې دې، په دې کښې رومبې طريق چه کوم تير شو هغه مرسل دې، او دويم طريق او د دې نه پس چه کوم طريق دې هغه مسند دې، خو طريق مسند ضعيف دې ځکه چه په هغې کښې کثير بن عبد الله ابن عمرو بن عوف المزنی دې چه منکر الحديث دې، بلکه د هغوی تکذيب هم کړې شوې دې، ﴿ قال ابو زرعة واهی الحديث، وقال النسائی والدارقطنی متروک الحديث، وقال ابن عبدالبر مجمع علی ضعفه (بذل) ﴾ په ظاهره مصنف رحمه الله طريق مسند موخر ځکه کړو چه هغه ضعيف دې.

---

١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٠١٥، ١٠٧٧٧) (حسن)

[٣٠٦٣]( ) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ النَّضْرِ، قَالَ: سَمِعْتُ الْحُنَيْنِيَّ، قَالَ: قَرَأْتُهُ غَيْرَ مَرَّةٍ يَعْنِي كِتَابَ قَطِيعَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وحَدَّثَنَا غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ حُسَيْنِ بْنِ مُحَمَّدٍ، أَخْبَرَنَا أَبُو أُوَيْسٍ، حَدَّثَنِي كَثِيرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقْطَعَ بِلَالَ بْنَ الْحَارِثِ الْمُزَنِيَّ مَعَادِنَ الْقَبَلِيَّةِ جَلْسِيَّهَا وَغَوْرِيَّهَا، قَالَ ابْنُ النَّضْرِ: وَجَرْسَهَا وَذَاتَ النُّصُبِ، ثُمَّ اتَّفَقَا وَحَيْثُ يَصْلُحُ الزَّرْعُ مِنْ قُدْسٍ وَلَمْ يُعْطِ بِلَالَ بْنَ الْحَارِثِ حَقَّ مُسْلِمٍ، وَكَتَبَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذَا مَا أَعْطَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِلَالَ بْنَ الْحَارِثِ الْمُزَنِيَّ أَعْطَاهُ مَعَادِنَ الْقَبَلِيَّةِ جَلْسَهَا وَغَوْرَهَا وَحَيْثُ يَصْلُحُ الزَّرْعُ مِنْ قُدْسٍ وَلَمْ يُعْطِهِ حَقَّ مُسْلِمٍ، قَالَ أَبُو أُوَيْسٍ: وَحَدَّثَنِي ثَوْرُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ، زَادَ ابْنُ النَّضْرِ، وَكَتَبَ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ.

حمد بن نضر وائی داسحق بن ابراهيم نه مې داخبره دونيلو په وخت کښې اوريدلې وه چه مادنبی ﷺ دا تحرير څوځله ولوستو په کوم کښې چه دمقطعې ذکر وو، ابوداود وائی مونږ ته حديث بيان کړې شوې دې چه خلقو دحسين بن محمد نه اوهغه داويس نه اوريدلی دی اويس وائی مونږ ته کثير بن عبدالله حديث بيان کړې دې کوم چه هغه دخپل پلارنه اوهغه دده دنيکه نه نقل کړې وو چه نبی ﷺ د قبليه نومې کلي کانونه په مقطعه طور باندې بلال بن حارث مزني ته ورکړی وو کوم چه په لوړو او زغرنده ځايونو کښې واقع وو اوهغه ځايونه هم کوم چه دکرلو قابل وو د قدس په غرکښې باهرهغه ځائې کوم چه لوړ دې هغه ئې ورته ورکړل او نبی ﷺ بلال بن حارث مزني ته دکوم مسلمان حق نه وو ورکړې ابواويس وئيلی دی چه ماته ثور بن يزيد دعکرمه نه حديث بيان کړې دې اوهغه دابن عباس رضي الله عنه نه اوهغه دنبی ﷺ نه ددې روايت په شان روايت بيان کړې مګر ابن نضر دا اضافه کړې ده چه داتحرير أبی بن کعب ليکلې وو.

﴿ جلسيها وغوريها ﴾ جلسنی اوچتې زمکې او غوری ښکته زمکې ته وائی، يعنی ټول معادنن دقبليه که هغه په اوچته زمکه کښې وی يا په ښکته زمکه کښې وی، په دې طريق کښې کتاب القطيعة هم ذکر شوې دې.

﴿ قال ابن نضر : وجرسها ﴾ يعنی ابن النضر په ځائې د جليسها، جرسها وئيلې دې، خو دلته د دې لفظ هيڅ معنی نه جوړيږی کذا قيل، ﴿ ذات النصب ﴾ مدينې طيبې ته نږدې د يو ځائې نوم دې، او قُدس د يو مشهور غر نوم دې يا هر هغه ځائې کوم ځائې چه د کروندې صلاحيت وی.

[٣٠٦٤]( ) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ الثَّقَفِيُّ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْمُتَوَكِّلِ الْعَسْقَلَانِيُّ، الْمَعْنَى وَاحِدٌ أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ يَحْيَى بْنِ قَيْسٍ الْمَأْرِبِيَّ حَدَّثَهُمْ، أَخْبَرَنِي أَبِي، عَنْ ثُمَامَةَ بْنِ شَرَاحِيلَ، عَنْ سُمَيِّ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ شُمَيْرٍ، قَالَ ابْنُ الْمُتَوَكِّلِ ابْنِ عَبْدِ الْمَدَانِ، عَنْ أَبْيَضَ بْنِ حَمَّالٍ، أَنَّهُ وَفَدَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَقْطَعَهُ الْمِلْحَ، قَالَ ابْنُ الْمُتَوَكِّلِ: الَّذِي بِمَأْرِبَ فَقَطَعَهُ لَهُ فَلَمَّا أَنْ وَلَّى، قَالَ رَجُلٌ مِنَ الْمَجْلِسِ: أَتَدْرِي مَا قَطَعْتَ لَهُ إِنَّمَا قَطَعْتَ لَهُ الْمَاءَ الْعِدَّ، قَالَ: فَانْتَزَعَ مِنْهُ، قَالَ وَسَأَلَهُ عَمَّا يُحْمَى مِنَ الْأَرَاكِ، قَالَ: مَا لَمْ تَنَلْهُ خِفَافٌ وَقَالَ ابْنُ الْمُتَوَكِّلِ: أَخْفَافُ الْإِبِلِ.

١ ): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٧٧٧) (حسن)

٢ ): سنن الترمذي/الأحكام ٣٩ (١٣٨٠)، سنن ابن ماجه/الرهون ١٧ (٢٤٧٥)، (تحفة الأشراف: ١)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/البيوع ٦٦ (٢٦٥٠) (حسن لغيره)

دابیض بن حمال رضی الله عنه نه روایت دی فرمائی چه د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم اوعرض مې اوکړو چه دیمن دمارب کلي دمالګي کان را که نبی ﷺ ورته هغه کان ورکړو کله چه ابیض - لاړو نو یو کس عرض اوکړو اې دالله رسوله ایا تاته معلومه ده چه ده ته دې څه ورکړل؟ تاخو ده ته تیاري اوبه ورکړې نبی ﷺ چه دا واوریدل نو دده نه ئې واپس کړل ده بیادنبی ﷺ نه تپوس اوکړو چه ددغه زمکې نه دې دکیکر دغنو شپول تاوکړې شي چه څوك ورته نه ورځي اوخپل څاروی په کښې نه څروي نبی ﷺ اوفرمائیل چه داوښانو خپې ورته ونه رسیږي (یعنی چه د چراګاه او آبادئ نه جداوي).

﴿ عن ابیض بن حمال انه وفد الی رسول اللهﷺ فاستقطعه الملح ﴾

یعنی دې صحابی رضی الله عنه د رسول اللهﷺ نه د مالګې د کان اقطاع طلب کړه کومه چه په مقام د مارب کښې دی.

﴿ قال رجل من المجلس اتدری ما قطعت له انما قطعت له المآء العد ﴾

**شرح الحدیث :**

یعنی کله چه رسول اللهﷺ د ابیض بن حمال دپاره د مالګې د کان اقطاع اوکړه نو په حاضرین مجلس کښې یو سړی عرض اوکړو یا رسول اللهﷺ تاسو ته پته هم شته چه تاسو ددې سړې دپاره دڅه څیز اقطاع فرمائیلې ده؟ تاسودهغه دپاره دداسې اوبو اقطاع فرمائیلې ده چه تیاره شوې مالګه ده، په دې باندې رسول اللهﷺ دا اقطاع واپس کړه.

علماء کرامو لیکلی دی چه کوم څیز ظاهر العین او حاضر النفع وی، چه د هغې نه بغیر د محنت او کوشش نه د آمدنئ وصولی اوشی د هغې اقطاع جائز نه ده په ظاهره په دې وجه چه په دې باندې موات کیدل نه صادق کیږي.

﴿ قال : وساله عما یحمی من الا راک، قال ما لم تنله خفاف ﴾

دلته د حمی نه مراد احیاء ده څکه چه د حمی خو زمونږ په شریعت کښې اجازت نشته لکه چه زر به په حدیث کښې راشي، اراک یعنی د کیکر اونه، یعنی هغه سړی د رسول اللهﷺ نه تپوس اوکړو چه د اراک کومې اونې داسې دی چه د هغې احیاء کول جائز دی رسول اللهﷺ اوفرمائیل د هغه اونو چه چرته اوښ تلو سره او نه رسیدې شی یعنی چه د آبادئ نه په زیاته فاصله باندې وی، د داسې اراک احیاء جائز ده او یا مطلب دا دې چه د اونو احیاء مطلقا جائز نه ده څکه اوښ خو تولو ځایونو ته رسیدې شی، یعنی احیاء خو د ارض موات وی د اشجارو نه، او دریمه معنی د دې جملې خپله په دې حدیث کښې را روانه ده ﴿ یعنی ان الابل تاکل منتهی رؤسها ویحمی ما فوقه ﴾ یعنی د اونو چه څومره حصه داسې ده چرته چه د اوښې سټ رسیدې شی، هغه پریخودلو سره د هغې نه د پورته حصې حمی جائز ده، ﴿ فقال اراکة فی حظاری ﴾ یعنی چه کله رسول اللهﷺ دا اوفرمائیل چه په اراک او اشجار کښې حمی نه وی نو هغه سړی اووې چه زه د هغې اراک په باره کښې تپوس کوم کوم چه زما د زمکې په احاطه کښې دی، په ظاهره کښې مطلب دا دې چه دې سړی چه د کومو مواتو احیاء کړې وه او په هغې باندې ئې خپله نخښه وغیره کولو سره هغه محفوظ کړې وو نو په هغه زمکه

کښې څه اوني د اراک نه مخکښې قائم وې، نو هغه سړی اووې چه زه د داسې اونو په باره کښې سوال کوم نو په دې صورت کښې به د رسول الله ﷺ د جواب حاصل دا وی چه ته د هغې زمکې مالک شوې د احياء د وجې نه. خو د دې احياء د وجې نه به د اونو مالک نه ئې، خو که يو سړې د ارض موات احياء اوکړی او بيا د هغې نه پس په هغې کښې اونې پيدا شی د هغې حکم دا نه دې، د هغې به هغه مالک وی. (بذل)

[٣٠٦٥] (١) حَدَّثَنِي هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ الْحَسَنِ الْمَخْزُومِيُّ: مَا لَمْ تَنَلْهُ أَخْفَافُ الْإِبِلِ يَعْنِي أَنَّ الْإِبِلَ تَأْكُلُ مُنْتَهَى رُءُوسِهَا وَيُحْمَى مَا فَوْقَهُ.

ترجمه: هارون بن عبد الله محمد بن حسن مخزومي نه نقل کوي چه د «ما لم تنله اخاف الإبل» مطلب دادې چه دومره غنې لاربندولې شي چه داوښانو خولې ورته اونه رسيږي کوم ځائې ته چه داوښانو خولې رسيږي هغه نه بچ کيږی اوښان ئې خوري البته ددې نه اخوا بچ کيږي.

[٣٠٦٦] (٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَحْمَدَ الْقُرَشِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الزُّبَيْرِ، حَدَّثَنَا فَرَجُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنِي عَمِّي ثَابِتُ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ أَبْيَضَ بْنِ حَمَّالٍ أَنَّهُ سَأَلَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ حِمَى الْأَرَاكِ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا حِمَى فِي الْأَرَاكِ، فَقَالَ: أَرَاكَةٌ فِي حِظَارِي، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا حِمَى فِي الْأَرَاكِ"، قَالَ: فَرَجٌ يَعْنِي بِحِظَارِي الْأَرْضَ الَّتِي فِيهَا الزَّرْعُ الْمُحَاطُ عَلَيْهَا.

دابيض بن حمال رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه دنبی علیه السلام نه مې تپوس اوکړو دغنو دشپول په باره کښې نبی علیه السلام اوفرمائيل دغنو شپول نه شی جوړيدې ده اووئيل داهغه غنې وي کومې چه زما په فصل کښې ولاړې وې. بيانبی علیه السلام اوفرمائيل چه غنې بندول نه شی راوستلې.

[٣٠٦٧] (٣) حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ أَبُو حَفْصٍ، حَدَّثَنَا الْفِرْيَابِيُّ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، قَالَ عُمَرُ وَهُوَ ابْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ قَالَ: حَدَّثَنِي عُثْمَانُ بْنُ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ صَخْرٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَزَا ثَقِيفًا، فَلَمَّا أَنْ سَمِعَ ذَلِكَ صَخْرٌ رَكِبَ فِي خَيْلٍ يُمِدُّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَجَدَ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدِ انْصَرَفَ وَلَمْ يَفْتَحْ، فَجَعَلَ صَخْرٌ يَوْمَئِذٍ عَهْدَ اللَّهِ وَذِمَّتَهُ أَنْ لَا يُفَارِقَ هَذَا الْقَصْرَ حَتَّى يَنْزِلُوا عَلَى حُكْمِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمْ يُفَارِقْهُمْ حَتَّى نَزَلُوا عَلَى حُكْمِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَكَتَبَ إِلَيْهِ صَخْرٌ: أَمَّا بَعْدُ فَإِنَّ ثَقِيفًا قَدْ نَزَلَتْ عَلَى حُكْمِكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَأَنَا مُقْبِلٌ إِلَيْهِمْ وَهُمْ فِي خَيْلٍ، فَأَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالصَّلَاةِ جَامِعَةً فَدَعَا لِأَحْمَسَ عَشْرَ دَعَوَاتٍ اللَّهُمَّ بَارِكْ لِأَحْمَسَ فِي خَيْلِهَا وَرِجَالِهَا، وَأَتَاهُ الْقَوْمُ فَتَكَلَّمَ الْمُغِيرَةُ بْنُ شُعْبَةَ، فَقَالَ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ إِنَّ صَخْرًا أَخَذَ عَمَّتِي وَدَخَلَتْ فِيمَا دَخَلَ فِيهِ الْمُسْلِمُونَ فَدَعَاهُ فَقَالَ: "يَا صَخْرُ إِنَّ الْقَوْمَ إِذَا أَسْلَمُوا أَحْرَزُوا دِمَاءَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ فَادْفَعْ إِلَى الْمُغِيرَةِ عَمَّتَهُ، فَدَفَعَهَا إِلَيْهِ وَسَأَلَ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا لِبَنِي سُلَيْمٍ قَدْ هَرَبُوا عَنِ الْإِسْلَامِ وَتَرَكُوا ذَلِكَ الْمَاءَ، فَقَالَ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ أَنْزِلْنِيهِ أَنَا وَقَوْمِي، قَالَ: نَعَمْ فَأَنْزَلَهُ وَأَسْلَمَ، يَعْنِي السُّلَمِيِّينَ فَأَتَوْا صَخْرًا فَسَأَلُوهُ أَنْ يَدْفَعَ إِلَيْهِمُ الْمَاءَ فَأَبَى، فَأَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا: يَا نَبِيَّ اللَّهِ أَسْلَمْنَا

(١): تفرد به أبو داود (ضعيف جدا)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣)، وقد أخرجه: دي/ البيوع ٦٦ (٢٦٥٠) (حسن لغيره) (ملاحظه هو: صحيح ابي داود ٨/ ٣٩٠)

(٣): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٤٨٥١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/ ٣١٠)، سنن الدارمي/الزكاة ٣٤ (١٧١٥) (ضعيف الإسناد)

وَأَتَيْنَا صَخْرًا لِيَدْفَعَ إِلَيْنَا مَاءَنَا فَأَبَى عَلَيْنَا فَأَتَاهُ فَقَالَ: يَا صَخْرُ إِنَّ الْقَوْمَ إِذَا أَسْلَمُوا أَحْرَزُوا أَمْوَالَهُمْ وَدِمَاءَهُمْ فَادْفَعْ إِلَى الْقَوْمِ مَاءَهُمْ، قَالَ: نَعَمْ يَا نَبِيَّ اللَّهِ"، فَرَأَيْتُ وَجْهَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَغَيَّرُ عِنْدَ ذَلِكَ حُمْرَةً حَيَاءً مِنْ أَخْذِهِ الْجَارِيَةَ وَأَخْذِهِ الْمَاءَ.

دصخر بن عيل رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام دطائف په قلاكښې د قبيله بنو ثقيف سره جهاد اوكړو هركله چه صخر دا واوريدل نوپه اسونوسواره يوڅوكسان ئې دځان سره دنبي عليه السلام دامداد دپاره بوتلل و ئې ليدل چه نبي عليه السلام تلې دې اوفتح نه ده شوې صخرپه دغه ورځ دالله تعالى سره لوظ اوكړو چه زه به دا قلا نه پريږدم ترڅوچه مافتح نه وى حاصله كړې اوترڅوچه دې خلقو دنبي عليه السلام فرمان په قبلولوسره داخاني نه وي خالي كړې، هغه ددوى سره په جنګ شروع شو تردې چه قلعه ئې فتح كړه اوخلق ترې راكوز شول په دې وخت كښې صخر نبي عليه السلام ته وليكل چه اې دالله رسوله دحمد اوصلات نه پس دې واضح وي چه دبنوثقيف خلق ستادپيغام په قبلولوسره د قلا نه راكوز شول اوزه هغوى ته ورځم اودهغوى سره اسونه دى كله چه نبي عليه السلام ته داخبر اورسيد و نودپه جمع سره دمونځ كولو حكم ئې وكړو اوقبيله احمس ته ئې لس پيرى دعا اوكړه او وبې فرمائيل اې الله ته دقبيله احمس په اسونو اوسر وكښې بركت واچوي، دثقيف قبيلې والا ټول خلق دنبي عليه السلام په خدمت كښې حاضر شول په دې وخت كښې مغيره بن شعبه رضي الله عنه عرض اوكړو اې دالله رسوله صخر زما ترور ګرفتاره كړې ده حالانكې هغې اسلام قبول كړې وو نبي عليه السلام صخر راطلب كړو او ورته ئې اوفرمائيل كله چه څوك اسلام قبول كړي نودهغوى ځانونه او مالونه محفوظ كيږى په دې وجه ته مغيره ته دده ترور واپس حواله كړه چنانچه صخر مغيره ته دده ترور واپس حواله كړه بياصخر عرض اوكړو چه دقبيله بنوسليم يوه چينه ده دغه خلقو داسلام دويرې نه دغه اوبه پريخودلې دي او تختيدلي دي اې دالله رسوله ماته اوزما قوم ته ددې اوبو سره خواته داوسيدو اجازت راكړه نبي عليه السلام اوفرمائيل ته هلته اوسيږه بياڅه ورځې پس بنى سليم قبيلې والا مسلمانان شول اودوى دصخر نه دچينې دواپس كولو مطالبه اوكړه صخر انكاراوكړو نو په دې وخت كښې بنى سليم قبيلې والا دنبي عليه السلام په خدمت كښې حاضر شول او عرض ئې اوكړو اې دالله رسوله مونږ اسلام قبول كړې دې مونږ صخر ته ورغلو چه مونږ ته زمونږ چينه را واپس كړي ليكن صخر انكار اوكړو نبي عليه السلام صخر راوغوښتو او وئې فرمائيل اې صخر كله چه يو قوم اسلام قبول كړي نوهغوى خپل ځانونه او مالونه محفوظ كړل دوى ته ددوى چينه حواله كړه صخر عرض اوكړو اې دالله رسوله په سر سترګو، صخر عرض اوكړو په دې وخت كښې ماد نبي عليه السلام مخ ته وكتل چه تك سور شو د حيادوجې نه چه مادهغه نه وينځه او اوبه واپس اخستلې وو.

﴿ حدثني عثمان بن ابي حازم عن ابيه عن جده صخران رسول الله صلى الله عليه وسلم غزا ثقيفا ﴾

**شرح الحديث :**

دا صخر بن عيله الاحمسي دې د ده د حديث د شروع دا حصه مونږ د غزوه طائف په بيان كښې ليكلې ده هلته دې اوكتلې شى، د دې د وړاندې حصې شرح ليكلې شى، دا حديث لږ

اوږد دي، او شرح ته هم محتاج دي. ﴿ فكتب اليه صخر اما بعد : فان ثقيفا قد نزلت على حكمك يا رسول الله ﴾

يعني صخر بن عيله چه کله دا د طائف حصن فتح کړو نو د دې اطلاع هغوی رسول اللهﷺ ته ورکړه ﴿ فدعا لاحمس عشر دعوات اللهم بارک لاحمس في خيلها ورجالها ﴾ يعني رسول اللهﷺ د صخر بن عيلهؓ په دې کارنامې باندې خوشحاليدو سره د هغوی قوم احمس ته لس دعاګانې اوکړې چه د هغې نه يو دعا خو دلته ذکر ده باقي غير مذکور دی او کيدې شي چه دا مراد وی چه رسول اللهﷺ هم دا دعا لس کرته اوکړه.

**قوله:**﴿ وتاه القوم فتكلم المغيرة بن شعبة فقال يا نبي الله ان صخرا اخذا عمتي ودخلت فيما دخل فيه المسلمون ﴾ة د قوم نه مراد قبيله ثقيف دي، دا خو پورته ذکر شوه چه قبيله بنو ثقيف ايمان راوړې وو، نو په هغوی کښې بعضو يعني مغيره بن شعبهؓ چه ثقفي دې هغوی رسول اللهﷺ ته عرض اوکړو چه صخر بن عيلهؓ زما ترور (د پلار خور) نيولې ده حال دا چه هغه په اسلام کښې داخله شوې وه، د مغيرهؓ په دې خبره اوريدو سره رسول اللهﷺ صخر راطلب کړو او وې فرمائيل ﴿ ان القوم اذا اسلموا احرزوا دمائهم واموالهم فادفع الى المغيرة عمته ﴾ چه کله کافر خلق په اسلام کښې داخل شی نو د هغوی نفس او مال محفوظ شی، لهذا د مغيرهؓ ترور واپس کړه، هغوی واپس کړه. ﴿ وسال نبي الله ماء لبني سليم قد هربوا من الاسلام وتركوا ذلك المآء ﴾ يعني د مغيرهؓ د ترور واپس کولو نه پس صخر بن عيلة د رسول اللهﷺ نه د قريه بنو سليم سوال اوکړو چه د اسلام راوړلو نه بچ کيدو سره اوتختيدل، او هغه قريه ئې پريخودلې وه او درخواست ئې دا اوکړو چه ﴿ انزلنيه انا وقومي ﴾ چه په دې کښې ماته او زما قوم ته د اوسيدو اجازت راکړئ، رسول اللهﷺ د هغوی دا درخواست قبلولو سره هغوی ته هلته داوسيدو اجازت ورکړو ــــ د دې نه پس په روايت کښې دا دی چه بيا روستو دا خلق يعني بنو سليم اسلام راوړلو او صخرؓ ته راغلل او هغوی ته ئې اووې چه زمونږ قريه واپس کړئ، هغوی انکار اوکړو، هغوی رسول اللهﷺ ته راغلل او صورت حال ئې بيان کړو، رسول اللهﷺ بيا صخرؓ راطلب کړو او وې فرمائيل ﴿ ان القوم اذا اسلموا احرزوا اموالهم ودمائهم ﴾ وې فرمائيل دا کلې واپس کړه، هغوی اووې ډيره ښه ده. ﴿ فرايت وجه رسول اللهﷺ يتغير ذلك حمرة حياء من اخذه الجارية واخذه المآء ﴾ راوی بيان فرمائی چه په دې موقع باندې ما رسول اللهﷺ اوليدو چه د هغوی مخ مبارک متغير شوې وو صخرؓ سره د دې معاملې کولو د شرم نه چه د هغه نه جارية هم واخستلې شوه او قريه هم، اګر چه صخرؓ څه تامل نه وو کړې د رسول اللهﷺ په فيصله باندې، خو رسول اللهﷺ پخپله شرمنده کيدو.

### په حديث باندې يو قوی اشکال او د هغې جواب :

دلته دوه خبر بيا موندلې شوې اول د مغيرهؓ د ترور واپس کول، دويم د بنو سليم د کلی واپس کول، او دا واپسی رسول اللهﷺ پخپله دې وينا سره اوکړه چه کفار کله اسلام قبول

کړی نو که هغوی قیدیان وی او که غیر قیدیان نو د اسلام راوړلو نه پس د هغوی نفسونه او مال محفوظ شي، دلته د مغیره ﷛ د ترور په باره کښې خو دا احتمال دې چه کیدې شي چه هغې د صخر ﷛ د اخستلو نه مخکښې ایمان راوړې وی په دې صورت کښې د هغې واپسی د قاعدې مطابق ده خو د بنو سلیم د کلي په باره کښې په روایت کښې تصریح ده چه هغوی د اسلام نه مخ اړولې وو او دا چینه ئې پریخودلې وه او د دې نه روستو هغوی اسلام ته راغلل بیا هغوی د خپل کلي د واپسئ مستحق چرته وو؟ رسول الله ﷺ د دواړو په باره کښې هم دا قاعده اوفرمائیله چه ﴿ان القوم اذ سلموا احرزوا دمائهم واموالهم﴾ کافر قیدی که روستو اسلام راوړی نو د هغوی نفس او مال د غنیمت کیدو نه خو نه خارج کیږی دا خو اجماعی مسئله ده، دا ډیر سخت مقام دې (١) شراح د دې توجیه دا کړې ده (٢) اصل خبره دا ده چه رسول الله ﷺ ته دا د بنو سلیم چینه او هم دغه شان د مغیره ﷛ ترور واپس کول وو د څه مصلحت په بنیاد باندې په دې وجه رسول الله ﷺ چه دا جمله ارشاد اوفرمائیله چه ﴿ان القوم اذا اسلموا احرزو الخ﴾ په دې کښې رسول الله ﷺ توریه اختیار اوفرمائیله، یعنی ګول مول خبره ئې اوکړه، اصل مراد ئې ښکاره نه کړو د مقام د مصلحت د وجې نه، د دې جملې معنی حقیقي او مرادی خو دا ده چه کفار که قبل الاخذ او قبل القید اسلام کښې داخل شی نو د هغوی نفسونه او مال مامون او محفوظ کیږی، خو د مخاطب او د سامع مخې ته رسول الله ﷺ دا معنی مرادی واضحه او نه فرمائیله قصدا بلکه دا جمله ئې په اطلاق او او عموم سره اوفرمائیله چه هغه یعنی صخر بن عیله پخپله د بنو سلیم چینه واپس کړی، پس هغوی واپس کړه یو واقعه په ابوداؤد کښې وړاندې هم د دې قسم را روانه ده هلته رسول الله ﷺ اصل ضابطه شرعیه واضح فرمائیلې ده او دا فیصله ئې اوفرمائیله چه د قید کیدو نه پس کافر قیدی که اسلام راوړی نو بیا به هغه نه شی پریخودلې هغه به غلام او مملوک وی، دا واقعه په کتاب الایمان والنذور، ﴿باب النذر فيما لا يملک﴾ کښې راغلې، ﴿عن عمران بن حصين ﷛ قال كانت العضباء لرجل من بني عقيل وكانت من سوابق الحاج﴾ الخ

## د رسول الله ﷺ د عضباء اوښې واقعه

د دې خلاصه دا ده چه د رسول الله ﷺ مشهوره اوښه عضباء چه په بنو عقیل کښې د یو کافر سړی وه هغه او د هغې مالک قید کړې شوې وو، رسول الله ﷺ په هغه باندې تیر شو په داسې حال کښې چه هغه سړې په قید کښې وو نو هغه رسول الله ﷺ ته سوال اوکړو چه تاسو زه او زما اوښه ولې نیولې یو؟ رسول الله ﷺ هغه ته الزامی جواب ورکړو چه ﴿ناخذک

(١) که رسول الله ﷺ دا جمله ارشاد نه فرمائیلې نو مونږ به د دې حدیث دا تاویل کړې وې چه دا واقعه حال لاعموم لها د قبیلې نه ده)

(٢) خو د روایت بعض الفاظ د دې توجیه سره څه مطابقت نه لری، والله تعالى اعلم بمراد النبي ﷺ، باقي دا خبره اتفاقی ده چه په هغې باندې زمونږ ایمان دې چه د رسول الله ﷺ د خولې مبارکې نه هیڅ ناحق خبره نه شی راوتلې)

بجریرة حلفائک ثقیف قال وکان ثقیف قد ' ُروا رجلین من اصحاب النبیﷺ... وړاندې راوی وائی چه هغه سړی دا هم اوویل ﴿ وانا مسلم ﴾ رسول اللهﷺ مخکښې روان شو هغه رسول اللهﷺ ته آواز ورکړو یا محمد یا محمد (ﷺ) رسول اللهﷺ بیا هغه ته راواپس شو او تپوس ئې ترې اوکړو څه خبره ده ؟ هغه اوویل ﴿ انی مسلم ﴾ په دې موقع باندې رسول اللهﷺ اصل قاعده شرعیه د هغه مخې ته بیان کړه او وې فرمائیل ﴿ لو قلتها وانت تملک امرک افلحت کل الفلاح ﴾ یعنی که تا د قید کیدو نه مخکښې هم دا خبرې کړې وه نو په خپل مقصد کښې به کامیاب شوې وې، د قید کیدو نه پس اسلام راوړلو سره نفس نه بچ کیږی غلام پاتې کیږی (۱)

[۳۰۶۸](۲) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنِي سَبْرَةُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ الرَّبِيعِ الْجُهَنِيُّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَزَلَ فِي مَوْضِعِ الْمَسْجِدِ تَحْتَ دَوْمَةٍ، فَأَقَامَ ثَلَاثًا ثُمَّ خَرَجَ إِلَى تَبُوكَ وَإِنَّ جُهَيْنَةَ لَحِقُوهُ بِالرَّحْبَةِ فَقَالَ لَهُمْ: "مَنْ أَهْلُ ذِي الْمَرْوَةِ؟" فَقَالُوا: بَنُو رِفَاعَةَ مِنْ جُهَيْنَةَ فَقَالَ: قَدْ أَقْطَعْتُهَا لِبَنِي رِفَاعَةَ فَاقْتَسَمُوهَا فَمِنْهُمْ مَنْ بَاعَ وَمِنْهُمْ مَنْ أَمْسَكَ فَعَمِلَ"، ثُمَّ سَأَلْتُ أَبَاهُ عَبْدَ الْعَزِيزِ عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ، فَحَدَّثَنِي بِبَعْضِهِ وَلَمْ يُحَدِّثْنِي بِهِ كُلِّهِ.

سبره بن عبدالعزیز بن الربیع الجهنی دخپل پلار نه اوهغه دده دنیکه نه روایت کوی فرمائی چه د جهینه په کلې کښې په کوم ځائې کښې چه جومات دې هلته نبی ﷺ د یوې ونې لاندې درې ورځې ناست وو اوبیاتبوک ته روان شو د جهینه خلقو دنبی ﷺ سره په یوفراخ میدان کښې ملاقات اوکړو نبی ﷺ اوفرمائیل دلته څوک اوسیږي؟ خلقو عرض اوکړو چه دجهینه قبیلې یو شاخ بن رفاعه دلته اوسیږي نبی ﷺ چه دا واوریدل نوونې فرمائیل دا زمکه ما بنورفاعه ته ورکړه اوهغه خلقو دغه زمکه تقسیم کړه بعضې خلقو خپله حصه خرڅه کړه اوبعضو خلقو محفوظ وساتله او په دې کښې ئې محنت ومشقت (زمینداری) اوکړو ابن وهب وائی باما ددې حدیث په باره کښې دصبره دپلار عبدالعزیز نه تپوس اوکړو هغه ئې راته یوڅه حصه بیان کړه او څه حصه ئې بیان نکړه.

﴿ عن ابیه عن جده ان النبیﷺ نزل فی موضع المسجد تحت دومة فاقام ثلاثا ثم خرج الی تبوک ﴾

## شرح الحدیث

مضمون د حدیث دا دې: ربیع بن سبرة الجهنیؓ فرمائی چه رسول اللهﷺ د غزوه تبوک په سفر کښې یو ځائې په لار کښې چه چرته روستو جمات هم جوړ شوې دې د یوې لوئې اونې د لاندې کوز شو او هلته ئې تر د درې ورځو پورې قیام اوفرمائیلو او بیا ئې وړاندې تبوک ته تشریف یوړو، په لاره کښې چه کله رسول اللهﷺ یو فراخه میدان کښې وو د قبیله جهینه واله د رسول اللهﷺ د ملاقات دپاره راغلل هلته نزدې یو کلې وو چه د هغې نوم ذوالمروة وو، رسول اللهﷺ تپوس اوکړو چه ذوالمروة کښې اوسیدونکې کوم خلق دی؟ په

(۱) اوګورئ دلته رسول اللهﷺ د ښکاره قاعدې خبره بیان کړه.
(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۸۱۲) (ضعیف)

حاضرینو کښې بعضو جواب ورکړو چه د قبیله جهینه شاخ بنو رفاعه دی. رسول اللهﷺ اوفرمائیل ﴿ قد اقطعتها لبنی رفاعة ﴾ چه د هغه کلی زه اقطاع کوم د بنو رفاعه دپاره (یعنی هم د هغوی دپاره کوم چه په هغې کښې اوسیږی) وړاندې په روایت کښې دی چه د رسول اللهﷺ د دې فرمان نه پس هغه خلقو هغه کلې خپل مینځ کښې باقاعده تقسیم کړلو بعضو خپله حصه خرڅه کړه او بعضو نه کړه، دا ذوالمرة په وادی القری کښې یو کلې دې چه رسول اللهﷺ دهغې د اوسیدونکو دپاره اقطاع اوفرمائیله.

[٣٠٦٩]() حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى يَعْنِي ابْنَ آدَمَ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقْطَعَ الزُّبَيْرَ نَخْلًا.

داسماء بنت أبی بکر رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام ددې خاوند زبیر بن العوام ته دکهجورو ونې تملیکا ورکړې.

﴿ عن هشام بن عروة عن ابيه عن اسماء بنت ابی بکر ان رسول اللهﷺ اقطع الزبير نخلا ﴾ اسماء بنت ابی بکر رضی الله عنها فرمائی چه رسول اللهﷺ د هغې د خاوند زبیر دپاره د کهجورو د یو باغ اقطاع اوکړه.

**الکلام علی الحدیث من حیث الفقه :**

د شوافعو په مسلک باندې خو په دې کښې هیڅ اشکال نشته ځکه چه د هغوی په نزد اقطاع د ارض مملوکه هم جائز ده، د احنافو په نزد جائز نه ده لکه چه مخکښې تیر شو د اقطاع او احیاء په تعریف کښ، په بذل کښې د ملا علی قاری نه نقل کړې دی چه نحل چونکه داسې مال دې چه ظاهر العین او حاضر النفع دې چه د هغې اقطاع جائز نه ده، لهذا دا به وئیلې شی چه د دې اقطاع هغوی په خپله حصه خمس کښې اوکړه کوم چه د هغوی ملک وه ﴿ فلا اشکال فیه ﴾ او دویم احتمال دا دې کیدې شی چه دا نخیل د قبیلې د موات نه وی چه د هغې څوک مالک نه وی، دا روایت دلته مختصر دې دوباره د دوه احادیثو نه پس تفصیل سره را روان دې.

[٣٠٧٠]() حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، وَمُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، الْمَعْنَى وَاحِدٌ قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ حَسَّانَ الْعَنْبَرِيُّ، حَدَّثَتْنِي جَدَّتَايَ صَفِيَّةُ، وَدُحَيْبَةُ ابْنَتَا عُلَيْبَةَ وَكَانَتَا رَبِيبَتَيْ قَيْلَةَ بِنْتِ مَخْرَمَةَ، وَكَانَتْ جَدَّةَ أَبِيهِمَا أَنَّهَا أَخْبَرَتْهُمَا، قَالَتْ: قَدِمْنَا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ: تَقَدَّمَ صَاحِبِي تَعْنِي حُرَيْثَ بْنَ حَسَّانَ وَافِدَ بَكْرِ بْنِ وَائِلٍ فَبَايَعَهُ عَلَى الْإِسْلَامِ عَلَيْهِ وَعَلَى قَوْمِهِ ثُمَّ قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ اكْتُبْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ بَنِي تَمِيمٍ بِالدَّهْنَاءِ أَنْ لَا يُجَاوِزَهَا إِلَيْنَا مِنْهُمْ أَحَدٌ إِلَّا مُسَافِرٌ أَوْ مُجَاوِرٌ، فَقَالَ: "اكْتُبْ لَهُ يَا غُلَامُ بِالدَّهْنَاءِ، فَلَمَّا رَأَيْتُهُ قَدْ أَمَرَ لَهُ بِهَا شُخِصَ بِي وَهِيَ وَطَنِي وَدَارِي، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّهُ لَمْ يَسْأَلْكَ السَّوِيَّةَ مِنَ الْأَرْضِ إِذْ سَأَلَكَ إِنَّمَا هِيَ هَذِهِ الدَّهْنَاءُ عِنْدَكَ مُقَيَّدُ الْجَمَلِ وَمَرْعَى الْغَنَمِ وَنِسَاءُ بَنِي تَمِيمٍ وَأَبْنَاؤُهَا وَرَاءَ ذَلِكَ، فَقَالَ: أَمْسِكْ يَا غُلَامُ صَدَقَتِ الْمِسْكِينَةُ الْمُسْلِمُ أَخُو الْمُسْلِمِ يَسَعُهُمَا الْمَاءُ وَالشَّجَرُ وَيَتَعَاوَنَانِ عَلَى الْفَتَّانِ".

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٧٣٢)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/فرض الخمس ١٩ (٢٨١٥)، مسند احمد (٣٤٧/٦) (حسن صحيح)

[2]): سنن الترمذي/الأدب ٥٠ (٢٨١٤)، (تحفة الأشراف: ١٨٠٤٧) (حسن) (ملاحظه هو: صحيح ابي داود ٣٩٢/٧)

دقیلة بنت مخرمة ﷺ نه روایت دې فرمائی چه مونږ دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او زمونږ ملګرې حریث څوك چه دبکر بن وائل دطرف نه نبی ﷺ ته په وفد کښې تلې وواودخپل طرف نه اودخپل قوم دطرف نه ئې په اسلام باندې بیعت کړې وو، عرض ئې وکړوچه اې دالله رسوله زمونږ اودبنوتمیم په مینځ کښې مقام دهنا سرحدمقررکړئ ددې دپاره چه دهغوی نه څوك زمونږ طرف ته نه را اوړې مګر مسافر او اور وړلو والا، نبی ﷺ اوفرمائیل اې هلکه ددوی دهناء سرحد اولیکه هرکله چه ما اولیدل چه دهناء مقام ئې دده دپاره اولیکلو نوزه فکرمند شوم څکه چه دغه زما وطن وواوهلته زما کورهم وو، ماعرض وکړوچه اې دالله رسوله، ده په سرحد غوښتلوکښې انصاف نه دې کړې دهنا د اوښانو د تړلوځاې دی اودچیلوګډو چراګاه ده اودبنی تمیم ښځې او ماشومان په دې پسې وې، نبی ﷺ چه دا واوریدل نو اوئې فرمائیل اې هلکه اودریږه یعنی مه لیکه دې ضعیفې سمه خبره اوکړه، یومسلمان دبل مسلمان وروردې دیومسلمان داوبو او اونونه بل مسلمان فائده حاصلولې شي اوپکار ده چه دوی په خپل مینځ کښې دیوبل مدد وکړي.

﴿ نا عبدالله بن حسان العنبری قال حدثتني جدتای صفية وحيبة ابنتا علیبة وكانتا ربيبتي قيلة بنت مخرمة _ وكانت جدة ابيها _ انها اخبرتها ﴾

## مضمون د حدیث مع الشرح :

عبدالله بن حسان عنبری وائی چه ماته بیان اوکړو زما دوه نیاګانو صفیة بنت علیبة او دحیبة بنت علیبة دا دواړه خپل مینځ کښې خویندې وې، کیدې شی چه یو په دوی کښې د عبدالله بن حسان ام الاب وی او دویمه ئې ام الام وی. یا کیدې شی چه په دې کښې یوې ته د اخت جده کیدو د وجې نه جده وئیلې شوې وی، راوی وائی چه دا دواړه د قیله بنت مخرمه ربیبه وې یعنی دا دواړه د قیله په غیږ کښې لوئې شوې وې او بیا وړاندې دا دی چه دا قیله د دې دواړو د پلار نیا وه، ګویا خپله د دې دواړو د پلار نیا وه دا دواړه وائی چه مونږ ته قیله بیان کړه، هغه واقعه چه وړاندې په حدیث کښې را روانه ده.

﴿ قدمنا على رسول الله ﷺ قالت تقدم صاحبی تعنی حریث بن حسان وافد بکر بن وائل ﴾ قیله ﷺ فرمائی چه کله زه د رسول الله ﷺ خدمت ته روانه اوم نو کوم سړې چه په دې سفر کښې زما ملګرې وو هغه حریث بن حسان وو هغه د رسول الله ﷺ دربار عالی ته رسیدو سره زما نه مخکښې د خپل خان دپاره او د خپل قوم دپاره بیعت علی الاسلام اوکړو، ﴿ ثم قال یا رسول الله ﷺ اكتب بيننا وبينا بنی تميم بالدهناء ان لا يجاوزها الينا منهم احدا الا مسافر او مجاوز ﴾ دا قیله ﷺ چه کومه واقعه بیانوی د قبیله بنی تمیم نه ده او دا دهناء د بنو تمیم د یوې علاقه نوم دې، نو حریث ﷺ د اسلام راوړلو نه پس رسول الله ﷺ ته دا درخواست اوکړو چه دا مقام د دهناء دې زمونږ دپاره مخصوص کړې شی، او دا چه بنو تمیم د دې نه منتفع نه شی، او دا چه دې زمکې ته دې نه راځی مګر دا چه که څوك مسافر وی په دې لاره څی نو دا امر آخر دې. د حریث په درخواست باندې رسول الله ﷺ یو هلك ته چه هلته موجود وو اوفرمائیل چه دغه مقام دهنه د حریث په نوم باندې اولیکه، یعنی دهغه دپاره

ئي اقطاع کړه، ﴿ فلما رايته قد امر له بها شخص بي وهي وطني وداري ﴾ دا قيله وائی چه کله ما اوليدل چه رسول الله ﷺ هغه هلک ته مقام دهناء د حريث ﷺ دپاره د ليکلو اوئيل نو زه اوېريدم زما د خپو نه زمکه اوتختيدله. ځکه چه دا مقام دهناء زمونږ کور او وطن ته بالکل متصل وو (لهذا د هغې حق دار خو مونږ .و) ﴿ فقلت يا رسول الله ﷺ! انه لم يسئلک السوية من الارض ﴾ د دې جملې دوه مطلبه کيدې شی. ۱: دې سړی د داسې زمکې فرمائش تاسو نه نۀ دې کړې چه په هغې کښې زمونږ او د هغه استحقاق برابر وې، يعنی دا زمکه خو خالص زمونږ حق دې داسې هم نه چه هغه مشترک اومنلې شی (يعنی اول خو د مشترک کيدو په صورت کښې هم د دۀ د خپل ځان دپاره ليکل صحيح نه وو پاتې لا دا صورت چه هغه خالص زمونږ حق دې) ۲: سوية نه مراد عدل او انصاف دې يعنی د دې زمکې په غوښتلو کښې دۀ عدل او انصاف مخې ته نه دې کيخودلې وړاندې قيله ﷺ رسول الله ﷺ ته د دې زمکې نوعيت بيانوی ﴿ انما هذه الدهناء عندک مقيد الجمل مرعى الغنم ونساء بنی تميم وابناءها وراء ذلک ﴾ او يواځې دا نه چه دا دهناء تاسو ته نزدې دې (زيات لرې نه دې تاسو پخپله د دې ليدو سره اندازه لګولې شئ) دا خو زمونږ يعنی د بنو تميم د اوښانو د تړلو ځائې او د هغوی د ګډو بيزو د څرن ځائې دې او د قبيله بنو تميم زنانه او ماشومان بالکل د دې نه شاته آباد دی، ﴿ فقال امسک يا غلام صدقت المسکينة السلم اخو المسلم يسعهم الماء والشجر ﴾ چه کله رسول الله ﷺ د قيله ﷺ دا خبره پوره واوريدله او د هغوی په علم کښې د مقام دهناء نوعيت راغلو کوم چه مخکښې نه وو، په دې باندې رسول الله ﷺ دې هلک ته اوفرمائيل چه بس مه ليکه دا مسکينه رښتينې معلوميږی او بيا رسول الله ﷺ اوفرمائيل مسلمانانو لره خپل مينځ کښې د رونړو په شان اوسيدل پکار دی، يو ځائې اوبو او يو ځائې دځرن د تولو د پاره کافی کيدې شی يعنی د رونړو په شان اوسيږی او د داسې مشترک څيز د خپل ځان دپاره کول غلط دی، ګويا رسول الله ﷺ خپله فيصله واپس واخستله ﴿ ويتعاونون على الفتان ﴾ فتان که بالفتح دې نو بيا خو دا صيغه د مبالغې ده او که بالضم دې نو جمع ده د فاتن، په يو نسخه کښې دی ﴿ سئل ابوداؤد عن الفتان فقال : الشيطان ﴾ يعنی مسلمانانو لره خپل مينځ کښې د شيطان په مقابله کښې تعاون کول پکار دی، په دې جمله کښې په ظاهره په فعل دحريث باندې تعريض دې، والحديث اخرجه الترمذی مختصرا، قاله المنذری.

[۳۰۷۱](¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنِي عَبْدُ الْحَمِيدِ بْنُ عَبْدِ الْوَاحِدِ، حَدَّثَتْنِي أُمُّ جَنُوبٍ بِنْتُ نُمَيْلَةَ، عَنْ أُمِّهَا سُوَيْدَةَ بِنْتِ جَابِرٍ، عَنْ أُمِّهَا عَقِيلَةَ بِنْتِ أَسْمَرَ بْنِ مُضَرِّسٍ، عَنْ أَبِيهَا أَسْمَرَ بْنِ مُضَرِّسٍ، قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَايَعْتُهُ، فَقَالَ: "مَنْ سَبَقَ إِلَى مَاءٍ لَمْ يَسْبِقْهُ إِلَيْهِ مُسْلِمٌ فَهُوَ لَهُ"، قَالَ: فَخَرَجَ النَّاسُ يَتَعَادَوْنَ يَتَخَاطُّونَ.

د اسمربن مضرنه روايت دې فرمائی چه زه دنبی عليه السلام په خدمت کښې حاضر اودهغه په مبارک لاس مې په اسلام بيعت وکړو ،نبی عليه السلام اوفرمائيل څوك چه داسې اوبوته ورسيږي

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٥) (ضعيف)

چرته چه دده نه مخکښې کوم بل مسلمان نه وی رسیدلي نودغه اوبه دده دي خلقو چه دا واوریدل نوکرخي ئې راخکلي اولاړل (ددي دپاره چه ددوی نښه باقی پاتې شي چه مونږ دلته رارسیدلي وو)

﴿عن ابیها اسمر بن مضرس قال اتیت النبی ﷺ فبایعته فقال من سبق الی ماء لم یسبقه الیه مسلم فهو له قال فخرج الناس یتعادون یتخاطون﴾

**مضمون د حدیث:**

اسمر بن مضرس رضی الله عنه فرمائی چه زه د رسول الله ﷺ خدمت کښې حاضر شوم او د هغوی په لاس باندې مې بیعت اوکړو، دا اسمر بن مضرس طائی دې، د یوې معروفې قبیلې نوم دې نو ښکاره ده چه دوی د خپل وطن بلاد طئ نه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوي وو، نو رسول الله ﷺ د هغه د واپسئ په وخت باندې هغوی ته اوفرمائیل چه زمونږ د طرف نه لاړ شه او هلته دا زیرې ورکړه چه په تاسو کښې کوم انسان هم په کوم غیرآباده چینه چه د مخکښې نه د چا ملک نه وی رسیدو سره هغه اختیار کړی نو هغه هم د هغه دپاره ده، پس چه کله هغوی د رسول الله ﷺ خبره هلته اورسوله نو ټول خلق د خپلو کورونو نه په منډه منډه داسې قسم چینو ته اورسیدل او د چا چه کومه چینه خوښه وه په هغې باندې هغه خپله نخښه او خط راښکلو. دا هم د اقطاع یو صورت دې کوم چه رسول الله ﷺ اختیار اوفرمائیلو، دا باب هم د اقطاع روان دې.

[٣٠٧٢](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ خَالِدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقْطَعَ الزُّبَيْرَ حُضْرَ فَرَسِهِ فَأَجْرَى فَرَسَهُ حَتَّى قَامَ، ثُمَّ رَمَى بِسَوْطِهِ فَقَالَ: "أَعْطُوهُ مِنْ حَيْثُ بَلَغَ السَّوْطُ".

د ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام زبیر بن عوام ته زمکه ورکړې وه، ترکوم ځائې پورې چه دده اس منډه وهلې شوه اوبیا هغه اس اوزغلولو تردې اودریدو اوخپل چابک ئې اوغورزلو نبی علیه السلام اوفرمائیل چه ده دومره زمکه ورکړی ترکوم ځائې پورې چه دده چابک ورسیږې.

**قوله:** ﴿عن ابن عمر رضی الله عنهما ان النبی ﷺ اقطع الزبیر حضر فرسه فاجری فرسه حتی قام ثم رمی بسوطه فقال اعطوه من حیث بلغ السوط﴾: یعنی رسول الله ﷺ د زبیر رضی الله عنه دپاره د زمکې د یوې رقبې اقطاع اوفرمائیله او مقدار قطیعه ئې حضر د فرس مقرر کړو یعنی د آس یو ځل منډه، پس هغوی خپل آس اوزغلولو بیا چه د دې یوې منډې نه پس هغه چرته اودریدو د هغه ځائې نه هغوی خپله کوړه نوره هم وراندې ویشته، په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه هغه ته دې د هغه ځائې نه د کوم ځائې نه چه آس زغلولې وو د هغه ځائې نه تر هغه ځائې پورې کوم ځائې ته چه ئې چابک اورسیدو، ورکړې شي یعنی د دواړو مقدارونو مجموعه، دا د اقطاع زبیر رضی الله عنه والا روایت اوس مخکښې مختصرا ذکر شو، او په دې باندې کلام هم هلته تیر شو.

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٧٧٢٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦٢/٢/١٥٦) (ضعيف الإسناد)

## بَابٌ فِي إِحْيَاءِ الْمَوَاتِ

### بنجر (غير اباده) زمکه ابادول

په دې باب باندې کلام په تیر باب کښې تیر شو.

[٣٠٧٣](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ أَحْيَا أَرْضًا مَيْتَةً فَهِيَ لَهُ وَلَيْسَ لِعِرْقٍ ظَالِمٍ حَقٌّ".

د سعید بن زید رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی: څوک چه شاړه زمکه اباده کړي هغه دده ده، او پده باندې به د ظالم رګ څه حصه نه وی (یعنی که چرې څوک په ظلم سره دلته ونې وکري بابل قسم تصرف وکړي نو هغه ددې حقدار نه جوړیږي).

﴿ من احي ارضا ميتة فهي له وليس لعرق ظالم حق ﴾

د دې حدیث نه د احیاء مشروعیت او د هغې سبب دملک کیدل ښکاره کیږی، او نفس مسئله هم متفق علیه ده اګر چه په بعض شرطونو او تفصیلاتو کښې اختلاف دې چه د هغې بیان مخکښې تیر شوې دې.

د عرق ظالم تفسیر وړاندې پخپله په متن کښې راځی، دا په اضافت او صفت دواړو سره لوستلې شوې دې. والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی، قاله المنذری

[٣٠٧٤](2) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ مُحَمَّدٍ يَعْنِي ابْنَ إِسْحَاقَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ أَحْيَا أَرْضًا مَيْتَةً فَهِيَ لَهُ" وَذَكَرَ مِثْلَهُ، قَالَ: فَلَقَدْ خَبَّرَنِي الَّذِي حَدَّثَنِي هَذَا الْحَدِيثَ، أَنَّ رَجُلَيْنِ اخْتَصَمَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَرَسَ أَحَدُهُمَا نَخْلًا فِي أَرْضِ الْآخَرِ فَقَضَى لِصَاحِبِ الْأَرْضِ بِأَرْضِهِ وَأَمَرَ صَاحِبَ النَّخْلِ أَنْ يُخْرِجَ نَخْلَهُ مِنْهَا، قَالَ: فَلَقَدْ رَأَيْتُهَا وَإِنَّهَا لَتُضْرَبُ أُصُولُهَا بِالْفُؤُوسِ وَإِنَّهَا لَنَخْلٌ عُمٌّ حَتَّى أُخْرِجَتْ مِنْهَا.

عروه رضی الله عنه دخپل پلارنه روایت کوی فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی: څوک چه شاړه زمکه آباده کړي دادده شوه، اودتیر شوي روایت په شان روایت ئې بیان کړو مګر دا اضافه ئې اوکړه چه خبر راکړې دې ماته هغه کس چاچه داحدیث بیان کړې دې چه دوه کسانو نبی علیه السلام ته جګړه راوړله چه یوکس په دوی کښې دبل په زمکه کښې کجوري کرلي وي نوفیصله ئې اوکړه دزمکې دمالك دپاره په زمکه باندې اوکجورو والاته ئې حکم آوکړو دکجورو په ویستلوباندې، راوي وائی ماﺍولیدل چه ددغه ونو جرړي په تبرونو وهلې کیدلې حالانکه هغه ونې غټې شوې او مکملې وې تردې چه دغه ونې ددې زمکې نه وښکلې شولې.

**تشریح: قوله:** ﴿عن يحيى بن عروة عن ابيه ان رسول الله صلی الله علیه وسلم﴾

په ړومبی روایت کښې کوم لره چه د عروه نه روایت کونکې هشام دې موصوله وو، هلته صحابی ذکر کړې شوې وو او په دې طریق کښې چه د عروه نه روایت کونکې د

(1): سنن الترمذي الأحكام ٣٨ (١٣٧٨)، (تحفة الأشراف: ٤٤٦٣، ١٩٠٤٣)، وقد أخرجه: موطا امام مالك الأقضية ٢٤ (٢٦) (صحيح)

(2): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٤٤٦٣) (حسن)

هشام رور یحیٰ دې مرسلا دې.

﴿ قال فلقد خبرنی الذی حدثنی هذا الحدیث ان رجلین اختصما الی رسول اللهﷺ غرس احدهما نخلا فی ارض الاخر ﴾

## شرح الحدیث:

د دې قال قائل عروه دې هغوی فرمائی چه کوم سړی ما ته حدیث بیان کړو هغه ماته د دې خبرې خبر راکړو ﴿ الذی حدثنی ﴾ د دې مصداق هغه دې کوم چه د باب په رومبی حدیث کښې تیر شوې دی هغه سعید بن زیدؓ صحابی دې د دې روایت مضمون دا دې چه یو سړی د بل په زمکه کښې اونه نال کړه، روستو په هغوی کښې اختلاف پیدا شو هم په دې خبره باندې چه د بل په زمکه کښې تا اونه څنګه لګولې ده، دې دواړو خپلو مسئله د رسول اللهﷺ په خدمت کښې حاضره کړه نو رسول اللهﷺ د زمکې فیصله د زمکې د مالک په حق کښې اوکړه، او چا چه اونه نال کړې وه هغه ته ئې حکم اوکړو چه خپله اونه د هغه د زمکې نه اوباسه، وړاندې راوی وائی چه ما هغه اونې اولیدې چه د هغې په جرړو باندې تبرونه وهلې کیدل او هغه ډیرې اوږدې اوږدې اونې وې. تردې چه هغه ټولې ویستلې شوې د هغه زمکې نه (لفظ عم په تشدید د میم سره جمع ده د عمیم یا د عمیمه دپاره)

[۳۰۷۵](۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الدَّارِمِيُّ، حَدَّثَنَا وَهْبٌ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ ابْنِ إِسْحَاقَ، بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، إِلَّا أَنَّهُ قَالَ عِنْدَ قَوْلِهِ مَكَانَ الَّذِي حَدَّثَنِي هَذَا، فَقَالَ رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَكْثَرُ ظَنِّي أَنَّهُ أَبُو سَعِيدٍ الْخُدْرِيُّ، فَأَنَا رَأَيْتُ الرَّجُلَ يَضْرِبُ فِي أُصُولِ النَّخْلِ.

داسحق نه په هم دې سند سره روایت دې لیکن په دې سند کښې دومره فرق دې چه عروه په دې طریقې سره اووئیل چه په صحابه کرامو کښې یو کس داسې بیان کړې دې او زماغالب ګمان دادې چه هغه صحابي وو، ابوسعید خدری رضی الله عنه کیدې شی چه وو هغه فرمائیلی دی چه دغه کس د خپلو ونو جرړې په تبرونو وهلې.

**تشریح: قوله:** ﴿ حدثنا احمد بن سعید..... ﴾ دا دویم سند دې دې کښې په ځائې د ﴿ الذی حدثنی ﴾ دا عبارت دې ﴿ فقال رجل من اصحاب النبی ﷺ ﴾ او بیا عروه هم دا وائی چه زما غالب ګمان دا دې چه هغه صحابیؓ ابوسعید خدری وو، په دواړو روایتونو کښې فرق دا دې چه په رومبی روایت کښې عروة د خپل استاد تعین نه وو کړې او په دویم روایت کښې ئې په طریقه د ظن د هغه تعیین په آبوسعید خدریؓ سره کوی، آو دویم فرق دا دې چه د رومبی روآیت نه معلومیږی چه د تبر چلونکی ډیر کسآن وو آو په دې دویم روآیت کښې دی چه تبر چلونکې خپله د آونو مآلک وو.

﴿ عن عروة قال اشهد ان رسول اللهﷺ قضی ان الارض ارض الله ﴾

۱): انظر حدیث رقم: (۳۰۷۳)، (تحفة الأشراف: ۴۴۶۳) (حسن)

[٣٠٧٦]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الْآمُلِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا نَافِعُ بْنُ عُمَرَ، عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ عُرْوَةَ، قَالَ: أَشْهَدُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى أَنَّ الْأَرْضَ أَرْضُ اللهِ، وَالْعِبَادَ عِبَادُ اللهِ وَمَنْ أَحْيَا مَوَاتًا فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ جَاءَنَا، بِهَذَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِينَ جَاءُوا بِالصَّلَوَاتِ عَنْهُ.

د عروه رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه زه په دې خبره ګواهي ورکوم چه نبي عليه السلام اور فرمائيل چه زمکه توله دالله تعالى ده او ټول انسانان هم دالله تعالى بندګان دي او څوك چه بنجر زمکه اباده کړي دي ددې ډيرحقدار دې دا روايت مونږ ته دنبي عليه السلام نه هغه کسانو رانقل کړې دي چاچه دهغه نه دمونځ روايات نقل کړي دي.
عروه تابعي دې هغوی په شروع کښې دا حديث د رسول الله ﷺ نقل کړو بغير د سند ذکر کولو نه بيا روستو په ﴿ جآءنا بهذا عن النبي ﷺ ﴾ سره ئې مروی عنه طرف ته اشاره اوکړه چه هغوی ډير صحابه کرام رضي الله عنهم دی. دا حديث د مسند په حکم کښې شو. مراد د زمکې نه مطلق زمکه نه ده بلکه موات دې يعنی ارض موات د يو انسان مملوک نه وی بلکه د الله پاک ده او هم دغه شان ټول خلق د الله پاک بندګان دی، لهذا د دې احياء کولو سره مالك کيدل صحيح دی.

[٣٠٧٧]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بِشْرٍ، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ أَحَاطَ حَائِطًا عَلَى أَرْضٍ فَهِيَ لَهُ".

د سمره نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی څوك چه په بنجر زمکه کښې حدبندی اوکړي نودا دده شوه.

﴿ عن الحسن عن سمرة رضي الله عنه عن النبي ﷺ وقال من احاط حائطا على ارض فهى له ﴾

## شرح الحديث:

يعنی کوم انسان چه په يو ارض موات باندې په ديوال وغيره جوړولو سره احاطه اوکړی نو هغه د هغه دپاره شو، د دې حديث نه دا معلوميږی چه د ارض موات په نفس احاطې سره د احياء تحقق کيږی، د امام احمد رحمه الله مذهب هم دا دې چه د هغوی په نزد نفس احاطه او تحجير کافی دې. او د جمهور په نزد نفس تحجير (څلورو واړو طرفونو ته کاڼړی کيخودلو) سره د احياء تحقق نه کيږی چه کله د هغه زمکې ګټه او خدمت او استوګنه اختيار نه کړی. لهذا دجمهوروپه نزد به داحديث هم په دې باندې حمل کولې شی يعنی من احاط حائطا للسکنی.

[٣٠٧٨]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي مَالِكٌ، قَالَ هِشَامٌ: الْعِرْقُ الظَّالِمُ أَنْ يَغْرِسَ الرَّجُلُ فِي أَرْضِ غَيْرِهِ فَيَسْتَحِقَّهَا بِذَلِكَ، قَالَ مَالِكٌ: وَالْعِرْقُ الظَّالِمُ كُلُّ مَا أُخِذَ وَاحْتُفِرَ وَغُرِسَ بِغَيْرِ حَقٍّ.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٦٣٧) (صحيح الإسناد)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٥٩٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢/٥، ٢١) (ضعيف)
[3]: انظر حديث رقم (٣٠٧٣)، (تحفة الأشراف: ٤٤٦٣) (صحيح)

هشام بن عروه وئیلی دی چه د .. ظالمانوخلقو . نه مرادهغه څوك دي څوك چه دچاپه زمكه كښې بغیراجازته ونې اوكري او په دې باندې قبضه كول غواړی مالك وئیلی دی ظالم رګ دادې چه دچاپه زمكه باندې قبضه اوكړې شي یا كنده اوكې او په ناجائز طریقي سره ونې نالي كړي.

﴿ اخبرنی مالک قال هشام العرق الظالم ان یغرس الرجل فی ارض غیره فیستحقها بذلک ﴾

د باب رومبې حدیث چه د هغې په راویانو كښې هشام هم دې، هشام د هغې تفسیر كوی چه عرق ظالم دا دې چه یو سړې د بل په زمكه كښې اونې اولګوی په دې نیت چه هغه بیا د دې زمكې مستحق شي.

[٣٠٧٩]()حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ بَكَّارٍ، حَدَّثَنَا وُهَيْبُ بْنُ خَالِدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى، عَنِ الْعَبَّاسِ السَّاعِدِيِّ يَعْنِي ابْنَ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ، قَالَ: غَزَوْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَبُوكَ فَلَمَّا أَتَى وَادِيَ الْقُرَى إِذَا امْرَأَةٌ فِي حَدِيقَةٍ لَهَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَصْحَابِهِ: "اخْرُصُوا، فَخَرَصَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشَرَةَ أَوْسُقٍ، فَقَالَ لِلْمَرْأَةِ: أَحْصِي مَا يَخْرُجُ مِنْهَا، فَأَتَيْنَا تَبُوكَ فَأَهْدَى مَلِكُ أَيْلَةَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَغْلَةً بَيْضَاءَ وَكَسَاهُ بُرْدَةً وَكَتَبَ لَهُ يَعْنِي بِبَحْرِهِ، قَالَ: فَلَمَّا أَتَيْنَا وَادِيَ الْقُرَى، قَالَ لِلْمَرْأَةِ: كَمْ كَانَ فِي حَدِيقَتِكِ؟ قَالَتْ: عَشَرَةَ أَوْسُقٍ خَرْصَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنِّي مُتَعَجِّلٌ إِلَى الْمَدِينَةِ فَمَنْ أَرَادَ مِنْكُمْ أَنْ يَتَعَجَّلَ مَعِي فَلْيَتَعَجَّلْ".

دابوحمید ساعدي رضی الله عنه نه روایت دي فرمائي چه دنبی علیه السلام سره غزوه تبوك ته لاړم هركله چه وادي القري مقام ته ورسیدو نویوه ښځه ئې اولیدله چه په خپل باغ كښې ناسته وه نبی علیه السلام صحابه كرامو ته اوفرمائیل چه ددې ښځې دباغ دمیوو اندازه واخلئ بیا پخپله نبی علیه السلام ددې دمیوو لس وسقه اندزه مقرر كړه بیانبی علیه السلام هغه ښځې ته اووئیل كله چه میوه پخه شي نوددې اندازه یاد وساته ابوحمید وائی چه بیا مونږ تول تبوك ته راغلو په شام كښې دایكه نوم كلي بادشاه نبی علیه السلام ته یوسپین قچر په هدیه كښې راولیږو اونبی علیه السلام ورته هم یوڅادر وركړو اودجزئي په شرط ئې دده دملك سند اولیكلو كله چه مونږ په واپسئ كښې وادي القري ته راورسیدو نونبی علیه السلام دهغې ښځې نه تپوس وكړو چه ستاپه باغ كښې څومره میوه وه هغې اووئیل لس وسقه دهغه مقدار مطابق دكوم چه نبی علیه السلام اندازه لګولي وه ددې نه پس نبی علیه السلام اوفرمائیل په مونږ باندې مدینې ته په تلوكښې ناوخته دې كه څوك په تاسوكښې څوك زر رسیدل غواړی نوزماسره دې روان شي.

﴿ عن ابی حمید الساعدی رضی الله عنه قال غزوت مع رسول الله صلی الله علیه وسلم تبوکا فلما اتی وادی الخ ﴾

## شرح الحدیث:

ابوحمید الساعدی رضی الله عنه فرمائي چه د تبوك په سفر كښې، زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره اوم، چه كله د سفر په دوران كښې وادی القری ته اورسیدو نو هلته یو زنانه په خپل باغ كښې وه، رسول

(): صحیح البخاري/الزكاة ٥٤ (١٤٨١)، والجزية ٢ (٣١٦١)، صحیح مسلم/الحج ٩٣ (١٣٩٢)، (تحفة الأشراف: ١١٨٩١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٤٢٤) (صحیح)

الله ﷺ د دې باغ په ليدو باندې د دې په باره کښې خرص [1] اوفرمائيلو د خرص مقدار رسول الله ﷺ لس وسقه بيان اوفرمائيلو، رسول الله ﷺ صحابه کرامو ﷺ ته کوم چه هغوی سره وو هم اوفرمائيل چه تاسو هم خرص اوکړئ، او د دې باغ نه د وتلو په وخت رسول الله ﷺ هغه زنانه ته اووې چه خيال کوه په دې باغ کښې څومره پيداوار کيږي (چه معلومه شي چه د چا خرص صحيح دې) پس وړاندې په روايت کښې دی چه د سفر نه په واپسئ کښې رسول الله ﷺ د هغه زنانه نه د ميوې په باره کښې تپوس اوکړو چه څومره اوختل، نو هغې هم هغه لس وسقه بيان کړل، د رسول الله ﷺ د خرص موافق.
د دې حديث ذکر د کتاب الزکوة په باب الخرص کښې هم تير شوې دې.
﴿ فاتينا تبوک فاهدى ملک ايلة الى رسول الله ﷺ بغلة بيضاء ﴾ راوی بيان کوی چه کله مونږ تبوک ته اورسيدو نو هلته د قيام په دوران کښې د ايله بادشاه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې د بغله بيضاء هديه پيش کړه، او رسول الله ﷺ د هغې په عوض کښې هغه ته يو قيمتی شال ورکړو.
﴿ وکتب له يعنى ببحره ﴾ يعنی رسول الله ﷺ ملک ايله دپاره د هغه کلي اوليکلو.
په (بذل القوة) کښې ليکلې دی چه رسول الله ﷺ په ۹ هجری کښې د يحنه طرف ته د دعوت الى الاسلام خط اوليږلو کوم چه د ايله بادشاه وو او نصرانی وو، نو د رسول الله ﷺ د تبوک د زمانې په قيام کښې دا بادشاه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اسلام خو ئې قبول نه کړو خو جزيه ورکول ئې قبول کړل درې سوه ديناره د کال، په دې باندې رسول الله ﷺ د هغه سره صلح نامه اوليکله. دا کتاب بذل القوة فی حوادث سنی النبوة د علامه مخدوم محمد هاشم سندی بې مثاله تاليف دې چه د هغې اردو ترجمه "عهد نبوت کې ماه وسال" ازمحمد يوسف لدهيانوی، شائع شوې دې.

## مناسبة الحديث للترجمة:

په دې حديث کښې د مصنف رحمه الله غرض ﴿ وکتب له ببحره ﴾ سره تعلق دې هم د دې وجې نه مصنف رحمه الله دا حديث دلته يعنی په احياء الموات کښې راوړې دې ـــ کذا فی البذل عن تقرير الشيخ الجنجوهي.... خو اولی دا ده لکه چه ظاهره ده، چه مصنف رحمه الله دا روايت د باب الاحياء په ځائې په باب الاقطاع کښې ذکر فرمائيلې وې او صاحب د عون المعبود د حديث د باب سره مناسبت په بله طريقه ليکلې دې هغه دا چه هغه زنانه په ارض موات کښې اونې لګولو سره د هغې احياء کړې وه د رسول الله ﷺ د علم باوجود هغوی هغه زنانه په هغه باغ باندې برقرار اوساتله او د هغې نه ئې وانخستلو هم په دې وجه د دې احياء په سبب هغه مالک شوه معلومه شوه چه احياء موات د هغې د ملک سبب دې. والله تعالى اعلم آهـ
﴿فقال رسول الله ﷺ انى متعجل الى المدينة فمن اراد منكم ان يتعجل معى فليتعجل﴾

---

[1] خرص يعنی په خپل انداز سره متعين کول چه په دې باغ کښې چه کومې اونې دی په هغې باندې د ميوو دومره مقدار دې)

يعنی د تبوک نه په واپسئ باندې رسول اللهﷺ اوفرمائيل چه زه مدينې ته زر رسيدل غواړم چه په تاسو کښې هم چه کوم انسان په تندئ هلته رسيدل غواړی نو هغه دې هم ما سره راځی، د دې شرح ئې دا ليکلي ده چه کله رسول اللهﷺ مدينې طيبې ته اورسيدلو نو د هغه ځائې نه مدينې ته د داخليدو دپاره رسول اللهﷺ طريق غراب اختيار اوفرمائيله ځکه چه هغه د مدينې أقرب ترين لار وه او دويمه لار رسول اللهﷺ ترک کړه، لښکر خو ټول په دويمه لار باندې لاړو کومه چه لرې وه رسول اللهﷺ او د هغوی سره بعض صحابه کرامو دا نزدې لاره اختيار اوفرمائيله. والحديث اخرجه البخاری ومسلم قاله المنذری، قلت اخرجه البخاری فی مواضع الزكوة والحج والجهاد وغيرها

[٣٠٨٠]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ غِيَاثٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ جَامِعِ بْنِ شَدَّادٍ، عَنْ كُلْثُومٍ، عَنْ زَيْنَبَ: أَنَّهَا كَانَتْ تَفْلِي رَأْسَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَعِنْدَهُ امْرَأَةُ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ، وَنِسَاءٌ مِنَ الْمُهَاجِرَاتِ وَهُنَّ يَشْتَكِينَ مَنَازِلَهُنَّ أَنَّهَا تَضِيقُ عَلَيْهِنَّ وَيُخْرَجْنَ مِنْهَا، فَأَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تُوَرَّثَ دُورَ الْمُهَاجِرِينَ النِّسَاءُ، فَمَاتَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ فَوَرِثَتْهُ امْرَأَتُهُ دَارًا بِالْمَدِينَةِ.

ترجمه: د ام المومنين زينب رضي الله عنها نه روايت دې فرمائی چه ما دنبی عليه السلام په سرکښې سپږې لټولې په دې وخت کښې دعثمان رضي الله عنه بی بی او نورې ښځې هم ناستې وې اونبی عليه السلام ته ئې دخپلو کورونوته شکايت کوو چه داکورونه په مونږ باندې زمونږ دخاوندانو دوفات کيدونه پس تنګ کړې شوي دې او مونږ دهغه ځائې نه ويستل شوي يو نبی عليه السلام حکم اوکړو چه دمهاجرينو زنانوته دې کورونه په ميراث کښې ورکړې شي کله چه عبدالله بن مسعودوفات شو نودې نه دده ښځې کور په ميراث کښې يوړوکوم چه په مدينه کښې وو.

## مضمون د حديث :

﴿عن ام كلثوم عن زينب رضي الله عنها انها كانت تفلی راس رسول اللهﷺ وعنده امراءة عثمان بن عفان رضي الله عنه ونسآء من المهاجرات وهن يشتكين منازلهن انها تضيق عليهن﴾

د زينب ام المومنين رضي الله عنها نه روايت دې چه هغې يو ورځ د رسول اللهﷺ سر مبارک ګرولو، او هغه وخت رسول اللهﷺ سره د عثمان بن عفان رضي الله عنه کور والا ناسته وه، او نورې هم ډير مهاجرې زنانه کومو چه رسول اللهﷺ ته د خپلو کورونو د تنګ والی شکايت کولو يعنی د وارثانو د طرف نه بلکه هغوی به ترې نه ويستلې شوې. په دې باندې رسول اللهﷺ حکم اوفرمائيلو چه د مهاجرينو د وفات نه پس دې د هغوی د کورونو د هغوی ښځې وارثانې کړې شی، پس چه کله د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه وفات اوشو نو هم د هغوی بی بی د هغوی د کور وارثه شوه کوم چه په مدينه طيبه کښې وو

## په حديث باندې يو اشکال او د هغې توجيه :

په دې باندې دا اشکال واقع کيږی چه کور په ترکه کښې داخل دې او د ترکې مستحقين خو په قرآن کريم کښې منصوص دی نو صرف ښځې څنګه وارثانې کيدلې د هغوی د

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٥٨٨٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣٦٣) (صحيح الإسناد)

کورونو؟ د دې ډير جوابونه ورکړې شوې دی ۱: دا د مهاجرينو زنانو خصوصيت دې د رسول الله ﷺ د طرف نه. ۲: د دې نه مراد سکنی ده په زمانه د عدت کښې تمليک دکور مراد نه دې يعنی د مړی وارثانو لره پکار دی چه د هغه بی بی لره په آرام سره د هغه په کور کښې عدت تيرولو ته پريږدی او هغه نه پريشانه کوی. ۳: يا دا مراد دې چه د تقسيم ترکه په وخت د هغې خيال اوساتلې شی چه کور د مړی د ښځې په حصه کښې راشی، والاظهر هو المعنی الاخير، امام خطابی رحمه الله رومبې جواب اختيار کړې دې يعنی خصوصيت په دې وجه چه د مهاجرينو زوجات په مدينې طيبه کښې مسافرې وې د هغوی خاندان او قبيله وغيره هلته نه وه، او په حاشية کښې دی (او کيدې شی چه د سيوطی رحمه الله د طرف نه وی) ما دا مسئله په طور د دونړې په يو شعر کښې وئيلی ده.

سلم علی مفتی الانام وقل له :: هذا سوال فی الفرائض مبهم
قوم اذا ماتوا تحوز دیارهم :: زوجاتهم ولغیرها لا تقسم
وبقية المال الذی قد خلفوا :: يجری علی حکم التوراث منهم

وجوابه قلت:

هم المهاجرون ذاک بطیبة :: صلی علی ذیها الکریم المعلم

آه من البذل

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الدُّخُولِ فِي أَرْضِ الْخَرَاجِ

### د خراج په زمکه باندې داسيدو بيان

يعنی خراجی زمکه په بيعه اخستلو سره د هغې مالک جوړيدل يا په خراجی اوبو باندې خپله زمکه خړوب کول.

[۳۰۸۱]([1]) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ بَكَّارِ بْنِ بِلَالٍ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى يَعْنِي ابْنَ سُمَيْعٍ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ وَاقِدٍ، حَدَّثَنِي أَبُو عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ مُعَاذٍ، أَنَّهُ قَالَ: مَنْ عَقَدَ الْجِزْيَةَ فِي عُنُقِهِ فَقَدْ بَرِئَ مِمَّا عَلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دمعاذ رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه پاچه جزيه په ځان لازمه کړه نودې بې لارې شو دهغې لارې نه په کومې باندې چه نبی عليه السلام روان دې.

### الکلام علی الحديث شرحا وفقها:

﴿عن معاذ رضی الله عنه انه قال من عقد الجزية فی عنقه فقد بریء ([2]) مما عليه رسول الله ﷺ﴾

يعنی کوم انسان چه په خپله مړئ کښې د جزئې هار واچوی نو هغه بعيد شو د هغه طريق نه چه په هغې باندې رسول الله ﷺ وو. په حديث کښې جزئې نه مراد جزية الارض يعنی خراج مراد دې، د دې حديث نه دوه خبرې معلوميږی. اول د مسلمان دپاره د خراجی زمکې

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۳۷۲) (ضعيف الإسناد)

[2]) ددې ظاهری معنی خو ډيره سخته ده يعنی داسلام نه مخ اړول او کفر، خو مقصود ترې زجر او توبيخ (زورنه) ده، حقيقت دکلام نه دې مراد).

اخستل منع دی، دویم دا چه که د یو ذمی نه یو مسلمان خراجی زمکه واخلی او هغه زمکه د ذمی نه منتقل کیدو سره د مسلمان په ملکیت کښې راشی نو په دې صورت کښې د دې زمکې خراج نه ساقطیږی، د احنافو په نزد د مسلمان دپاره خراجی زمکه اخستل خو جائز دی باقی د خراج په باره کښې هغوی هم دا وائی چه هغه نه ساقطیږی لکه چه د حدیث الباب نه په فهم کښې راځی، او د شوافعو په نزد دې مسئله کښې تفصیل دې د زمکو د مختلفو قسمونو په لحاظ سره لکه چه د امام خطابی د کلام نه معلومیږی، دا مسئله د هغوی د فقه په کتابونو کښې په لټون باندې ملاؤ نه شوه، خو په رومبئ مسئله کښې دا حدیث د احنافو خلاف دې، ففی الهداية، ويجوز ان يشترى المسلم ارض الخراج من الذى يوخذ منه الخراج لما قلنا، وقد صح ان الصحابة اشتروا اراضى الخراج وكانوا يؤدون خراجها فدل على جواز الشراء واخذ الخراج وادائه للمسلم من غير كراهة (هداية ٣٤٢/٢) وفى البذل : والجواب عن الحديث ان الحديث غير محتج به لان فى سنده مجهولا اهـ په دې وجه چه د رومبی حدیث په سند کښې محمد بن عیسى دې هغه متکلم فيه دې، قيل لا يحتج به، او په دویم حدیث کښې عمارة بن ابى الشعثاء دې چه مجهول دې.

[٣٠٨٢](1) حَدَّثَنَا حَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ الْحَضْرَمِيُّ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ حَدَّثَنَا عُمَارَةُ بْنُ أَبِي الشَّعْثَاءِ، حَدَّثَنِي سِنَانُ بْنُ قَيْسٍ، حَدَّثَنِي شَبِيبُ بْنُ نُعَيْمٍ، حَدَّثَنِي يَزِيدُ بْنُ خُمَيْرٍ، حَدَّثَنِي أَبُو الدَّرْدَاءِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ أَخَذَ أَرْضًا بِجِزْيَتِهَا فَقَدِ اسْتَقَالَ هِجْرَتَهُ وَمَنْ نَزَعَ صَغَارَ كَافِرٍ مِنْ عُنُقِهِ فَجَعَلَهُ فِي عُنُقِهِ فَقَدْ وَلَّى الإِسْلاَمَ ظَهْرَهُ"، قَالَ: فَسَمِعَ مِنِّي خَالِدُ بْنُ مَعْدَانَ هَذَا الْحَدِيثَ، فَقَالَ لِي: أَشُبَيْبٌ حَدَّثَكَ؟ قُلْتُ: نَعَمْ قَالَ: فَإِذَا قَدِمْتَ فَسَلْهُ فَلْيَكْتُبْ إِلَيَّ بِالْحَدِيثِ، قَالَ: فَكَتَبَهُ لَهُ، فَلَمَّا قَدِمْتُ سَأَلَنِي خَالِدُ بْنُ مَعْدَانَ الْقِرْطَاسَ فَأَعْطَيْتُهُ فَلَمَّا قَرَأَهُ تَرَكَ مَا فِي يَدِهِ مِنَ الأَرَضِينَ حِينَ سَمِعَ ذَلِكَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا يَزِيدُ بْنُ خُمَيْرٍ الْيَزَنِيُّ لَيْسَ هُوَ صَاحِبَ شُعْبَةَ.

دابوالدرداء نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی څوك چه زمکه واخلي اوجزیه اداکول منظور کړي نودده هجرت مات شو او چاچه دمشرك دشرمولوخبره (جزیه) دهغه دشت نه اوویستله او په خپل ځټ کښې ئې واچوله نرده اسلام ته شاه وګرځوله دحدیث راوي سنان وائیلي دي چه داحدیث مادخالد بن معدان نه نقل کړې دې هغه وئیلی دی چه تاته داحدیث شبیب بیان کړې دې ما اووئیل اوبیا ماته هغه ووئیل چه کله ته شبیب ته ورشي نو ورته اووایه چه ماته دا حدیث لیکلي راولیږه سنان وائی چه شبیب دخالد دپاره تحریر کړې کله چه زه راغلم نوخالد بن معدان هغه کاغذ طلب کړو ما ورته ورکړو هغه چه کله ولوستو نو دهغه سره چه څومره خراجي زمکه وه ټوله ئې پریخوده ابوداود وائی چه یزید بن خمیر یزني وم چه دشعبه شاګرد د هغه مراد نه دی.

**قوله:** ﴿ حدثنى ابوالدرداء رضى الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ من اخذ ارضا بجزيتها فقد استقال هجرته ﴾: رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه کوم سړی یو زمکه واخستله د هغې د خراج سره. مراد ترې شراء ده. نو هغه خپل هجرت باطل کړو. او د دې نه روستو جمله هم د دې هم

---

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٩٦٩) (ضعيف الإسناد)

معنی او هم د دې تاکید دې چه د هغې ترجمه دا ده. چه کوم انسان د کافر د ذلت ځیز د هغه دمرئ نه ویستلو سره واچولو، نو هغه اسلام طرف ته خپله شا اوګرزوله.

کتب الشیخ فی البذل : وهذا علی سبیل التغلیظ والتشدید.

﴿قال فسمع منی خالد بن معدان هذا الحدیث فقال لی : اشبیب حدثک؟ فقلت نعم﴾

## شرح الحدیث :

سنان بن قیس وائی چه زما نه دا حدیث خالد بن معدان واوریدو. د اوریدو نه پس ئې تپوس اوکړو چه آیا دا حدیث تا د شبیب نه اوریدلې دې؟ ما اووې جی (زمونږ په دې سند کښې دسنان استاد شبیب دې) په دې باندې هغوی اووې چه کله ستاسو هغه ته تګ وی نو د هغه ته درخواست اوکړه چه هغه دې دا حدیث ماته په لیکلو سره راولیږی، سنان وائی چه ما په هغه باندې دا حدیث اولیکلو بیا چه کله زه راغلم خالد ته نو هغه زما نه هغه کاغذ طلب کړو چه په کوم باندې حدیث لیکلې شوې وو. سنان وائی چه کله خالد هغه حدیث اولوستلو نو هغوی سره چه کومه خراجی زمکه وه هغه ئې پریخودله.

دخالد بن معدان عمل چونکه دعدم علم په وجه ددې حدیث خلاف وو، په دې وجه هغوی په دې حدیث باندې د عمل کولو دپاره دا تحقیق اوکړو چه د حدیث د محقق کیدو نه پس په هغې باندې عمل آسان شی. دادواړه احادیث د احنافوخلاف دی ددې جواب پورته ذکر شو د صحابه کرام رضی الله عنهم نه د خراجی زمکو اخستل ثابت دی دا احادیث ضعیف دی.

﴿قال ابوداؤد : هذا یزید بن خمیر الیزنی، لیس هو صاحب شعبة﴾

مصنف رحمه الله فرمائی چه دا یزید بن خمیر کوم چه حدیث لره د ابوالدرداء نه روایت کوی دا یزید بن خمیر الیزنی دې، او هغه یزید نه دې کوم چه د شعبه شاګرد دې، ځکه چه هغه بل یزید، یزید بن خمیر الرجی دې، دا د اسماء رجال سره متعلق یو علمی افاده ده، چه د چا شک پیدا نه شی.

## باب في الأرض يحميها الإمام أو الرجل

### که امام یا بل څوک د چا د زمکې کیا، اوبه منع کړي نوڅه حکم دي؟

[٣٠٨٣](١) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ الصَّعْبِ بْنِ جَثَّامَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا حِمَى إِلَّا لِلَّهِ وَلِرَسُولِهِ"، قَالَ ابْنُ شِهَابٍ: وَبَلَغَنِي أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَمَى النَّقِيعَ.

دصعب بن جثامه رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی: منع کول جائزنه دی مګر دالله اودهغه درسول دپاره یعنی دجهاد ځاروی یا دزکات دځارو نه علاوه حمي منع کول جائزنه دي، ابن شهاب وئیلی دی چه نبی علیه السلام دنقیع زمکه منع کړې وه.

﴿عن ابن عباس رضی الله عنهما عن الصعب بن جثامة رضی الله عنه ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال لاحمی الا لله ولرسوله﴾

(١): صحیح البخاري/المساقاة ١١ (٢٣٧٠)، الجهاد ١٤٦ (٣٠١٢)، (تحفة الأشراف: ٤٩٤١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٣٧، ٣٨، ٧١، ٧٣) (صحیح)

## شرح الحديث :

حمی لفظا مصدر دې چه د هغې معنی د حفظ کولو ده، دلته اسم مفعول یعنی د محمی په معنی کښې دې، د جاهلیت په زمانه کښې د قوم د رئیسانو دا عادت وو چه داسې ځائې چه چرته شینکې وی هغه به ئې د ځان دپاره ساتلو، په رعایا کښې به چاته هم اجازت نه وو خپلو څاروو لره هلته د څرولو. اسلام خپلو. راتلو سره د دې عادت ابطال اوکړو، خو په دې کښې د رسول الله ﷺ استثناء اوکړې شوه، د الله پاک نوم خو د برکت دپاره دې، پس دا مسئله د علماء کرامو ترمینځه اتفاقی ده چه د رسول الله ﷺ نه علاوه د یو امام دپاره هم د حمی جواز نشته یعنی د خپل ذات دپاره، او که د مصلحت عامه دپاره وی لکه د جهاد آسونه او د صدقې اوښان نو د دې په جواز کښې اختلاف دې، او اگر چه د رسول الله ﷺ دپاره د حمی د جواز خپله په دې حدیث کښې تصریح ده خو رسول الله ﷺ کله هم د خپل ذات دپاره د حمی انتخاب نه دې کړې او وراندې چه په روایت کښې راځی چه د نقیع رسول الله ﷺ حمی اوکړه هغه د خپل ځان دپاره نه وه.

## په حمی او احیاء کښې فرق :

دا د احیاء الموات کتاب شروع دې چه په هغې کښې مصنف ﷫ حمی ذکر کړه د احیاء الموات خو شریعت اجازت ورکړې دې خو د حمی نه ئې منع کړې ده اگر چه د دواړو تعلق د ارض مباحه غیر مملوکه سره دې خو هغه موات د کوم د احیاء چه اجازت دې د دې نه مراد هغه بیکاره او بنجر زمکه ده او د حمی تعلق د هغه موات سره دې چه شنه وی، چه د خلقو فائدې د هغې سره تړلې وی، هم په دې وجه د دې نه منع کړې شوې ده چه په دې کښې د عوامو ضرر او نقصان دې. دا نقیع په نون سره دې د یو ځائې نوم دې کوم چه د مدینې طیبې نه په شلو فرسخو کښې واقع دې. یو نقیع هغه هم دې چه د هغې ذکر په باب الجمعه فی القری کښې راغلې دې یعنی نقیع الخضمات هغه بل ځائې دې. (بذل)

والحديث اخرجه البخاری والنسائی، قاله المنذری

[٣٠٨٤] (¹) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ الصَّعْبِ بْنِ جَثَّامَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. حَمَى النَّقِيعَ، وَقَالَ: "لَا حِمَى إِلَّا لِلَّهِ عَزَّ وَجَلَّ".

دصعب بن جثامه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ نقیع مقام حمي مقرر کړه اووئې فرمائیل چه حمي (اوبه بندول) جائز نه دی مگر دالله تعالی دپاره.

.........

¹): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٤٩٤١) (حسن)

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الرِّكَازِ وَمَا فِيهِ

### د خښ کړې شوې مال بیان

[۳۰۸۵]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ وَأَبِي سَلَمَةَ، سَمِعَا أَبَا هُرَيْرَةَ، يُحَدِّثُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "فِي الرِّكَازِ الْخُمُسُ".

دابوهريرة رضی الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي علیه السلام فرمائيلي دي: دركازنه به خمس اخستلي شي.

﴿عن ابى هريرة رضی الله عنه ان النبى صلی الله علیه وسلم قال : فى الركاز الخمس﴾

**الكلام على الحديث من حيث الفقة ومذاهب العلماء :**

په دې حديث باندې كلام د معادن قبليه والا حديث كښې تير شوې دې چه د هغې خلاصه من حيث الفقه واختلاف الائمة دا ده چه كانونه په دوه قسمه دی، يو مخلوق لله تعالى يعنى د الله پاک پيدا کړی کوم چه الله پاک د زمکې سره پيدا اوفرمائيل چه هغې ته معدن وئيلې شی، دويم مدفون دفينه جاهليه يعنى د انسانانو په زمکه كښې ښخ کړې مال د دې نوم كنز دې، د احنافو په نزد د دې دواړو حكم يو شان دې يعنى وجوب الخمس، او د جمهورو علماء كرامو چه په كښې درې امامان هم دی په دواړو كښې د فرق قائل دی، يعنى په معدن كښې د زكوة او په كنز كښې د خمس، او د اختلاف د منشاء بحث مخكښې تير شوې دې چه د هغې خلاصه دا ده چه په حديث كښې دی ﴿وفى الركاز الخمس﴾ او د احنافو په نزد د ركاز اطلاق په دواړو باندې كيږی په دې وجه د هغوی په نزد په دواړو كښې خمس دې او د جمهورو په نزد د رکاز مصداق صرف كنز دې په دې وجه د هغوی په نزد په معدن كښې خمس نشته بلكه زكوة دې

دويم اختلاف دلته دا دې چه كانونه خو د مختلفو څيزونو وی، كومو كانونو كښې خمس واجب كيږی په دې كښې د شوافعو او مالكيانو مذهب دا دې چه صرف د نقدو پيسو (ذهب وفضة) په كان كښې، د امام احمد رحمه الله په نزد هر قسم كان كښې او د احنافو په نزد په هر جامد منطبع كښې، يعنى داسې منجمد او خشک څيز چه په اور باندې كيخولو سره ويلې كيږی. لكه سره او سپين زر او نور دهاتونه، او په معادن كښې د جمهور په نزد د نصاب شرط نشته، په قليل او كثير ټولو باندې خمس واجب دې مګر په يو روايت د امام شافعی رحمه الله كښې، او په اجماع سره په دې كښې د كال تيريدو اعتبار هم نشته.

والحديث اخرجه البخارى ومسلم والترمذى والنسائى وابن ماجة مطولا ومختصرا قاله المنذرى

---

[۱]: صحيح البخاري/الزكاة ٦٦ (١٤٩٩)، والمساقاة ٣ (٢٣٥٥)، والديات ٢٨ (٦٩١٢)، ٢٩ (٦٩١٣)، صحيح مسلم/الحدود ١١ (١٧١٠)، سنن الترمذي/الأحكام ٣٧ (١٣٧٧)، سنن النسائي/الزكاة ٢٨ (٢٤٩٤)، سنن ابن ماجه/الأحكام ٤ (٢٦٧٣)، (تحفة الأشراف: ١٣١٢٨، ١٥١٤٧)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/العقول ١٨ (١٢)، مسند احمد (٢٢٨/٢، ٢٢٩، ٢٥٤، ٢٧٤، ٢٨٥، ٣١٩، ٣٨٢، ٣٨٦، ٤٠٦، ٤١١، ٤١٤، ٤٥٤، ٤٥٦، ٤٦٧، ٤٧٥، ٤٨٢، ٤٩٢، ٤٩٥، ٤٩٩، ٥٠١، ٥٠٧)، سنن الدارمي/الزكاة ٣٠ (١٧١٠)، ويأتي هذا الحديث في الديات (٤٥٩٣) (صحيح)

[٣٠٨٦]() حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ الْعَوَّامِ، عَنْ هِشَامٍ، عَنِ الْحَسَنِ، قَالَ: "الرِّكَازُ الْكَنْزُ الْعَادِيُّ".

دحسن بصري نه روايت فرمائی چه رکاز خزانې ته وئيلې شي.

[٣٠٨٧]() حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ مُسَافِرٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، حَدَّثَنَا الزَّمْعِيُّ، عَنْ عَمَّتِهِ قُرَيْبَةَ بِنْتِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ وَهْبٍ، عَنْ أُمِّهَا كَرِيمَةَ بِنْتِ الْمِقْدَادِ، عَنْ ضُبَاعَةَ بِنْتِ الزُّبَيْرِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ بْنِ هَاشِمٍ، أَنَّهَا أَخْبَرَتْهَا، قَالَتْ: ذَهَبَ الْمِقْدَادُ لِحَاجَتِهِ بِبَقِيعِ الْخَبْخَبَةِ، فَإِذَا جُرَذٌ يُخْرِجُ مِنْ جُحْرٍ دِينَارًا، ثُمَّ لَمْ يَزَلْ يُخْرِجُ دِينَارًا دِينَارًا حَتَّى أَخْرَجَ سَبْعَةَ عَشَرَ دِينَارًا، ثُمَّ أَخْرَجَ خِرْقَةً حَمْرَاءَ يَعْنِي فِيهَا دِينَارٌ، فَكَانَتْ ثَمَانِيَةَ عَشَرَ دِينَارًا، فَذَهَبَ بِهَا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَخْبَرَهُ وَقَالَ لَهُ: خُذْ صَدَقَتَهَا، فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هَلْ هَوَيْتَ إِلَى الْجُحْرِ؟ قَالَ: لَا، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: بَارَكَ اللَّهُ لَكَ فِيهَا".

دضباعه بن زبير بن عبدالمطلب بن هاشم نه روايت دې فرمائی چه ددې خاوند مقداد رضی الله عنه دخه کاردپاره بقيع الخبخبة نوم کلي ته لاړو (دمديني ځواته هلته ئې وه مږه اوليدله چه ديوسوري نه ئې يودينار راوويستلو اوبيا ئې بل راوويستلو ددې نه پس ئې بيابل راوويستلو تردې چه ولس دينار ئې پوره کړل اوبيا ئې يوه سره کځوره راوويستله په کومه کښې چه يودينار موجود وو نوټول اتلس ديناره شول مقداد نبی عليه السلام ته راوړل او واقعه ئې ورته بيان کړه او نبی عليه السلام ته ئې عرض اوکړو چه ددې دينارونو زکات واخله نبی عليه السلام ورته اوفرمائيلې ايا ته سوړې ته متوجه شوې وې؟ مقداد اووئيل نه، نبی عليه السلام اوفرمائيل الله تعالى دې تاته په دې مال کښې برکت واچوي.

## شرح الحديث وتوضيح المسئلة الثابتة بالحديث:

﴿ نا الزمعي عن عمته قريبة بنت عبدالله بن وهب عن امها كريمة بنت المقداد عن ضباعة بنت الزبير بن عبدالمطلب انها اخبرتها، قالت ذهب المقداد لحاجته بنقيع الخبجبة ([٣]) ﴾

دې حديث لره قريبه روايت کوی د خپلې مور کريمه نه او کريمه روايت کوی د خپلې مور ضباعه نه او ضباعه د خپل خاوند مقداد رضی الله عنه قصه بيانوی هغه دا ده چه ضباعه وائی چه مقداد بن الاسود رضی الله عنه خپل څه کار پسې مقام نقيع الخبجبة ته لاړو نو هغه يو ځائې کښې ناست وو هغه يو لويه مږه اوليده چه په يو سوری کښې يو دينار راکاږی او راوړلو سره ئې د سوری نه بهر پريخودله، هغه مږه بار بار دې سوړې ته ځی او هر ځل يو يو دينار راوړی، دغه شان اوولس ديناره جمع شو، او بيا ئې په آخير کښې يو سره تهيلئ رابنکله چه په هغې کښې يو دينار وو، اوس دا ټول اتلس ديناره شو، ضباعه وائې چه مقداد دې دينارونو لره اخستلو سره د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو چه د دې نه کومه صدقه واجب وی هغه ترې نه واخلئ، رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغوی نه تپوس اوکړو ﴿ هل

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٥٥٥) (صحيح)
[2]: سنن ابن ماجه/الأحكام ٣ (٢٥٠٨)، (تحفة الأشراف: ١١٥٥٠) (ضعيف)
[3]: بخاء وجيم وبخائين وبجيمين، اسم موضع بناحية المدينة.

هویت (١) الی الجحر قال لا فقال له رسول الله ﷺ بارک الله لک فیها ﴾
په دې قصه کښې چه کوم فقهي بحث دې هغه دا دې چه د دې دنیارونو دوه حیثیتونه کیدې شي یا خو دې دا لقطه اومنلې شي یا رکاز که دا د قبیلې د لقطې نه وې(٢) نو د دې اعلان واجب وو، او په حدیث کښې اعلان ذکر نه دې خو د اعلان نفی هم نه ده، لهذا اعلان واجب دې، او یا دې داسې بیان کړې شي چه ﴿ سقط التعریف لاجل عدم محل التعریف وعدم امکانه ﴾ یعنی دا چه کوم ځائې واقع دې هغه لاره عامه د تیریدو نه ده، چه اعلان اوکړې شي نو ځنګه اوکړې شي، او که دا د قبیلې د رکاز نه اومنلې شي نو بیا په دې کښې خمس واجب وو، خو د خمس اخستلو په دې حدیث کښې نشته دې بلکه ﴿بارک الله لک فیها ﴾ کښې اشاره د دې خلاف ده. نو کیدې شي چه خمس رسول الله ﷺ د مقداد په حق کښې معاف کړې وی، لاجل فقره وحاجته.

والحدیث اخرجه ابن ماجة، قاله المنذری

## بَاب نَبْشِ الْقُبُورِ الْعَادِيَّةِ يَكُونُ فِيهَا الْمَالُ

### د پخوانو قبرونو (چه مال پکښې وی) د سپړدلو بیان

عادیه په معنی د قدیمة، عرب خلق عادیة وئیلو سره قدیمة مراد کوی ځکه چه د قوم عاد زمانه زمونږ په اعتبار سره ډیره قدیم ده یعنی پخوانی قبرونه په وخت د ضرورت سپړدل، د جمهور په نزد جائز دی په دې باندې شامی بغیر د کراهت نه تصریح کړې ده، او د مالکیانو په نزد سره د کراهت نه.

[٣٠٨٨] (٣) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ حَدَّثَنَا أَبِي سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْحَقَ يُحَدِّثُ عَنْ إِسْمَعِيلَ بْنِ أُمَيَّةَ عَنْ بُجَيْرِ بْنِ أَبِي بُجَيْرٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرٍو يَقُولُ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ حِينَ خَرَجْنَا مَعَهُ إِلَى الطَّائِفِ فَمَرَرْنَا بِقَبْرٍ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذَا قَبْرُ أَبِي رِغَالٍ وَكَانَ بِهَذَا الْحَرَمِ يُدْفَعُ عَنْهُ فَلَمَّا خَرَجَ أَصَابَتْهُ النِّقْمَةُ الَّتِي أَصَابَتْ قَوْمَهُ بِهَذَا الْمَكَانِ فَدُفِنَ فِيهِ وَآيَةُ ذَلِكَ أَنَّهُ دُفِنَ مَعَهُ غُصْنٌ مِنْ ذَهَبٍ إِنْ أَنْتُمْ نَبَشْتُمْ عَنْهُ أَصَبْتُمُوهُ مَعَهُ فَابْتَدَرَهُ النَّاسُ فَاسْتَخْرَجُوا الْغُصْنَ.

دعبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه مونږ کله دنبی علیه السلام سره طائف ته لاړو نو په لاره کښې مویوقبر اولیدو نبی علیه السلام قبرته اوکتل اووئې وئیل دادابورغال قبر دې اوهغه به دحرم دحدودونه نه وتلو اوګمان به ئې دارو چه دحرم په حدودوکښې به دعذاب نه بچ یم کله چه دحرم نه بهر لاړو نوهلته په هغه باندې هغه عذاب راغې کوم چه دده په قوم باندې راغلې وو اودلته دفن کړې شو او ددې نښه داده چه هغه کله دفن کیدو نودهغه سره دسرو زرو یوه لښته دفن کړې شوه که چرې تاسودا قبر راوسپړی نوهغه لښته

(١) قال الخطابي يدل علي انه لو اخذها من الجحر لكان ركازا يجب فيها الخمس اهـ
(٢) ابن العربی په شرح د ترمذی کښې دا احتمال داسې لیکلې دې چه رسول الله ﷺ چونکه د هغوی نه تپوس اوکړو ﴿ هل هویت الي الجحر ﴾ نو ګویا په دې سره اشاره اوشوه دې طرف ته چه که هوې موندلې شوې وې نو بیا به رکاز وې، لهذا دا لقطه اومنلې شوه الخ.
(٣): تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ٨٦٠٧) (ضعيف)

به درته ملار شي خلقو چه داخبره واوریده نودقبر طرف ته ئې ورمنډه کړل اووئې سپړېدو اوهغه لښته ئې تري بهر راوويستله.

﴿ سمعت عبد الله بن عمروﷺ يقول سمعت رسول اللهﷺ يقول حين خرجنا معه الى الطائف فمررنا بقبر فقال رسول اللهﷺ هذا قبر ابی رغال وكان بهذا الحرم يدفع عنه ﴾

## شرح الحدیث او د ابورغال تذکره:

عبدالله بن عمرو بن العاصﷺ فرمائی چه ما د رسول اللهﷺ نه دا واوریدل چه کله مونږ هغوی سره طائف طرف ته روان وو او مونږ په یو قبر باندې تیر شو نو رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه دا د ابورغال قبر دې، او د حرم مکه طرف ته اشاره فرمائیلو سره ئې اوفرمائیل چه هغه دلته راغلې وو د خپل ځان نه د عذاب لرې کولو دپاره بیا چه کله د حرم نه راووتلو نو هغه هم عذاب راونیولو کوم چه هغه قوم ته رسیدلې وو هم دې ځائې کښې. نو هغه دفن هم دلته کړې شوې وو، او رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه د دې یو نخښنه دا هم ده چه د هغه سره د سرو زرو یو څانګه دفن کړې شوې وه که تاسو د هغه قبر اوکنئ نو هغه به ورسره بیا مومئ په دې اوریدو باندې صحابه کرامﷺ د هغه دقبر طرف ته منډه کړه او هغه قبر کنستلو سره ئې هغه د سرو زرو څانګه راوویستله. وئیلې شوې دی چه دا د سرو زرو ټکړه د شل رطل وزن وه.

په ترجمة الباب کښې خو دا شبهه کیده چه دا باب د دې ځائې نه دې بلکه د کتاب الجنائز کوم چه شروع کیدونکې دې په هغې کښې کیدل پکار وو، خو د حدیث د مضمون نه د دې باب دلته د راوړلو مناسبت ښکاره شو مضمون د رکاز روان وو د هغه په قبر کښې هم چونکه سرهٔ زر دفن وو چه هغه راویستلې شو نو دا قبر په منزله د رکاز شو، فلله در المصنفﷺ، د ابورغال په باره کښې لیکلې شوې دی چه: هو ابو ثقيف يعنی د قبیله ثقیف جد اعلی هم دې وو او د قوم ثمود نه وو د صالحﷺ عامل وو، د هغه تاریخ ډیر خراب دې، قيل دليل الحبشة حين جآؤا لهدم الكعبة ﴾ یعنی د حبشه د فوج چه د ابرهه په امارت کښې د کعبې د ورانولو دپاره راغلې وو د هغې رهبر هم دا وو، په ظلم او سپیرهٔ والی کښې ضرب المثل وو حاجیان خلق د هغه د قبر رجم همیشه کوی، د دې وجې نه جریر شاعر وائی د خپل حریف فرزدق په حق کښې!

اذا مات الفرزدق فارجموه كما ترمون قبر ابی رغال

د ده ذکر په سنن ترمذی کښې هم راغلې دې چه یو سړې چه د قبیله بنو ثقیف وو چه هغه خپلو ټولو بیبیانو ته په یو ځل باندې طلاق ورکړو نو عمرﷺ هغه ته اوفرمائیل

﴿لتراجعن نساءک او لارجمن قبرک كما رجم قبر ابی رغال ﴾ اهـ

دا حدیث د اعلام نبوة نه دې او د اخبار بالمغیبات د قبیلې نه دې.

دا ابواب القطائع واحیاء الموات د کتاب الخراج د ملحقاتو نه دی لهذا پوهه شئ چه دلته رارسیدو سره کتاب الخراج پوره شو. فلله الحمد والمنة

# كِتَابُ الْجَنَائِز

## د جنازي د احکامو بیان

د دې کتاب په مناسبت باندې د کتاب الخراج والفئ سره ځان داسې پوهه کړئ چه خراج څه مستقل کتاب نه دې بلکه هغه د متعلقاتو او ملحقاتو د جهاد نه دې او په جهاد او جنائزو کښې مناسبت ښکاره دې، ﴿ اذا الجهاد ینبئ عن الموت ﴾ یعنی جهاد د مرګ د یادولو ځیز دې او هغې ته ډېر زیات نزدې دې، په جهاد کښې د خپل نفس بازی وی او په صحیح بخاری او مسلم کښې کتاب الجنائز، په کتاب الصلوة پسې متصلا ذکر کړې شوې دې دصلوة الجنازة د مناسبت د وجې نه کوم چه د مړی په احکاماتو کښې دې، او په جامع ترمذی کښې دا کتاب د کتاب الحج نه پس متصلاً دې یعنی د ارکان اربعه نه فارغ کیدو نه پس دې خبرې طرف ته اشاره کوی چه د انسان مقصود په دې عباداتو او ارکان اسلام سره د آخرت تیارې دې، د صلاة الجنائز مشروعیت لکه څنګه چه په اوجز کښې لیکلې شوې دی د ۱ هجرئ نه دې لهذا کوم صحابه کرام رضی الله عنهم د هجرة نه مخکښې په مکه مکرمه کښې وفات شو په هغوی باندې مونځ نه دې کړې شوې. (کذا فی هامش البذل)

### فائده تاریخیه د بذل المجهود متعلق :

حضرت شیخ په حاشیه کښې دا هم لیکلي دی چه د سهارنپوری رحمه الله چه کوم آخری سفر د حجاز په نیت د هجرت او د بذل د تکمیل اوشو نو مدنې منورې ته د رسیدو نه پس په دیارلسم محرم ۱۳۴۴ هجری کښې د خالی په ورځ باندې د ابوداؤد د شرح باقی حصه دلته (د کتاب الجنائز) نه لیکل شروع شو آه. او د بذل المجهود په آخر کښې خپله سهارنپوری رحمه الله دا لیکلي دی چه د دې شرح تسوید په مدینه طیبه کښې په روضة من ریاض الجنة کښې سید ولد آدم بلکه د سید الخلق والعالم د قبر سره خوا کښې په ۲۱ شعبان ۱۳۴۵ هجری کښې پوره شو، یعنی د کتاب الجنائز نه آخیر پورې تقریبا یو نیم کال کښې.

جنائز د جنازې جمع ده او په جنازه کښې دوه لغات دی یو په فتحې د جیم سره او دویم په کسرې د جیم سره، په فتحې د جیم سره مړی ته ائی او په کسرې د جیم سره د جنازې کټ ته وائی چه په هغې باندې مړې اوچتولې شی، وقیل بعکس ذلک..... دا مشتق دې د جنز نه په معنی د ستر چه د باب ضرب نه دې، په ظاهره د مجنوز په معنی کښې دې یعنی مستور، ځکه چه مړې مستور کیخودلې شی، پس په حدیث کښې راغی چه د انسان چه کله انتقال اوشی نو هغه دې په یو څادر باندې پټ کړې شی، بغیر د ضرورت نه د هغه مخ ښکاره کول مناسب نه دی، په غسل وغیره کښې هم د پوره پردې لحاظ ضروری دې.

## بَابُ الْأَمْرَاضِ الْمُكَفِّرَةِ لِلذُّنُوبِ

### دهغه مرضونو بیان کوم چه د ګناهونو دپاره کفاره جوړیږی

امراض چونکه عام طور سره د مرګ مقدمه وی په دې وجه ئې د کتاب الجنائز شروع هم د دې باب نه اوکړه.

[٣٠٨٩]() حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، قَالَ: حَدَّثَنِي رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الشَّامِ يُقَالُ لَهُ أَبُو مَنْظُورٍ، عَنْ عَمِّهِ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَمِّي، عَنْ عَامِرٍ الرَّامِ أَخِي الْخَضِرِ، قَالَ أَبُو دَاوُد، قَالَ النُّفَيْلِيُّ: هُوَ الْخَضِرُ، وَلَكِنْ كَذَا قَالَ، قَالَ: إِنِّي لَبِبِلَادِنَا إِذْ رُفِعَتْ لَنَا رَايَاتٌ وَأَلْوِيَةٌ، فَقُلْتُ: مَا هَذَا؟ قَالُوا: هَذَا لِوَاءُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَتَيْتُهُ، وَهُوَ تَحْتَ شَجَرَةٍ قَدْ بُسِطَ لَهُ كِسَاءٌ، وَهُوَ جَالِسٌ عَلَيْهِ، وَقَدِ اجْتَمَعَ إِلَيْهِ أَصْحَابُهُ، فَجَلَسْتُ إِلَيْهِمْ، فَذَكَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْأَسْقَامَ، فَقَالَ: "إِنَّ الْمُؤْمِنَ إِذَا أَصَابَهُ السَّقَمُ، ثُمَّ أَعْفَاهُ اللَّهُ مِنْهُ، كَانَ كَفَّارَةً لِمَا مَضَى مِنْ ذُنُوبِهِ، وَمَوْعِظَةً لَهُ فِيمَا يَسْتَقْبِلُ، وَإِنَّ الْمُنَافِقَ إِذَا مَرِضَ ثُمَّ أُعْفِيَ كَانَ كَالْبَعِيرِ، عَقَلَهُ أَهْلُهُ، ثُمَّ أَرْسَلُوهُ فَلَمْ يَدْرِ لِمَ عَقَلُوهُ، وَلَمْ يَدْرِ لِمَ أَرْسَلُوهُ، فَقَالَ رَجُلٌ مِمَّنْ حَوْلَهُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَمَا الْأَسْقَامُ؟ وَاللَّهِ مَا مَرِضْتُ قَطُّ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: قُمْ عَنَّا، فَلَسْتَ مِنَّا، فَبَيْنَا نَحْنُ عِنْدَهُ إِذْ أَقْبَلَ رَجُلٌ عَلَيْهِ كِسَاءٌ، وَفِي يَدِهِ شَيْءٌ قَدِ الْتَفَّ عَلَيْهِ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي لَمَّا رَأَيْتُكَ أَقْبَلْتُ إِلَيْكَ، فَمَرَرْتُ بِغَيْضَةِ شَجَرٍ، فَسَمِعْتُ فِيهَا أَصْوَاتَ فِرَاخِ طَائِرٍ، فَأَخَذْتُهُنَّ فَوَضَعْتُهُنَّ فِي كِسَائِي، فَجَاءَتْ أُمُّهُنَّ فَاسْتَدَارَتْ عَلَى رَأْسِي، فَكَشَفْتُ لَهَا عَنْهُنَّ فَوَقَعَتْ عَلَيْهِنَّ مَعَهُنَّ، فَلَفَفْتُهُنَّ بِكِسَائِي، فَهُنَّ أُولَاءِ مَعِي، قَالَ: ضَعْهُنَّ عَنْكَ، فَوَضَعْتُهُنَّ، وَأَبَتْ أُمُّهُنَّ إِلَّا لُزُومَهُنَّ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَصْحَابِهِ: أَتَعْجَبُونَ لِرُحْمِ أُمِّ الْأَفْرَاخِ فِرَاخَهَا؟ قَالُوا: نَعَمْ يَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: فَوَالَّذِي بَعَثَنِي بِالْحَقِّ، لَلَّهُ أَرْحَمُ بِعِبَادِهِ مِنْ أُمِّ الْأَفْرَاخِ بِفِرَاخِهَا، ارْجِعْ بِهِنَّ حَتَّى تَضَعَهُنَّ مِنْ حَيْثُ أَخَذْتَهُنَّ، وَأُمُّهُنَّ مَعَهُنَّ، فَرَجَعَ بِهِنَّ".

دعامر الرام خضري نه روایت دي فرمائي چه زه په خپل وطن کښې وم چه مونږ نشانونه اوجهنډې اولیدلې ماتپوس اوکړو چه داڅه دي؟ نوراته معلومه شوه چه دا د رسول الله جهنډې دی، نوزه دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم هغه د یوې ونې لاندې ناست وو په یوڅادر باندې کوم چه دهغه دپاره غوړولې شوې وو، اودهغه نه ګیرچاپیره صحابه کرام ناست وو زه هم ورسره په مینځ کښې کیناستم، نبی ﷺ دمرضونو تذکره کوله اوونې فرمائیل کله چه یومومن ته مرض اورسیږي اوبیاالله تعالی هغه ته ددې نه نجات ورکړی نودا مرض دده دپاره دتیرو شوو ګناهونو کفاره جوړیږي اودا دمستقبل دپاره یونصیحت دې، اومنافق سړې چه کله بیمار شي اوبیاروغ شي نودده مثال داوښ په شان دې کله چه دده مالك ده لره اوتړي اوبیا ئې پریږدي اوداخیال اونکړي چه دې ولې ترلې شوې وو اوولې پرانستې شو، په دې وخت کښې یوکس دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اوعرض ئې اوکړو اې دالله رسوله مرض څه شې وی؟ په الله مې دې قسم وي زه هیڅ کله نه یم مریض شوې نبی ﷺ اوفرمائیل پاسه ددې ځائې نه لاړ شه ته زمونږ نه نه ئې، عامر وئیلی دی چه مونږ دنبی ﷺ سره موجود وو چه یوکس دځان نه څادر تاو کړې وو اوراغې اوپه لاس کښې ئې څه شې نیولې وو ده اووئیل اې دالله رسوله ماچه کله ته اولیدې نوتاته راروان شوم په لاره کښې مې دونو یوځنګل اولیدو هلته مې دمرغو د بچو آوازونه واوریدل زه ورغلم اوهغه چې مې اونیول په خپل څادر کښې مې راونغښتل بیاددې بچومور راغله اوزمادسرد پاسه ګرزیدله ماددې بچی پریښودل اوهغه هم پخپلو بچوباندې راوغورځیدله ددې بچوسره ماداهم اونیوله اوس مې په دې څادر کښې دځان سره راوړې دي نبی ﷺ چه

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٠٥٦) (ضعيف)

دا واوريدل نووئې فرمائيل داټول دلته کيږده ماټول هلته کيښودل ليکن دخوسره مې مور پرينه خودله «ددې دپاره چه بچی پريږدې او پخپله چرته وتښتي»نوپه دې وخت کښې نبي ﷺ صحابه کراموته اوفرمائيل ايا تاسو تعجب کوئ درحم کولوددې مرغۍ نه پخپلو چوباندې هغوی اووئيل هو، اې دالله رسوله نبي ﷺ اوفرمائيل په هغه ذات مې دې قسم وي چاچه زه په رښتيا سره نې جوړ کړې يم يقينا الله تعالى په خپل مخلوق باندې ددې نه هم زيات مهربان دې څومره چه دا مرغۍ پخپلو بچوباندې مهربانه ده تاسوداچې ددې ځائې نه يوسئ اوهم هلته ئې کيږدئ دچرته نه چه تاسو داراوړي دي او ددې بچوداموريې هم ورسره ويسئ نوهغه کس داټول هلته يوړل.

﴿ عن عامر الرام اخى الخضر قال النفيلي هو الحضر ولكن كذا قال ﴾

**مضمون د حديث :**

ابومنظور شامي راوی وائی چه ما ته زما تره بيان اوکړو د عامر رام نه روايت کولو سره چه د حضر رور دې، وړاندې مصنف رحمه الله فرمائی چه ما ته زما استاد عبدالله بن محمد النفيلي رحمه الله وائی چه دا لفظ صحيح خُضْر دې خو زما استاد يعنی محمد بن سلمه هم دغه شان وئيلې وو، دا عامر رام چه هغه ته عامر رامی هم وائی د هغه شمير په صحابه کراموﷺ کښې دې لکه چه په تهذيب کښې دی «دې ډير ښه غشې ويشتونکې وو هم په دې وجه ورته رامی وائی» ﴿ قال انى.... لببلادنا اذ رفعت لنا رايات والوية ﴾ مضمون د حديث دا دې : عامر فرمائی چه زه په خپل ښهر کښې اوم نو ناڅاپه څو جهنډې اوچتې شوې نو ما ورته کتلو سره اووې چه دا څه دی؟ نو خلقو اووې چه دا د رسول الله ﷺ جهنډه ده نو زه فورا د هغوی خدمت ته لاړم، هغه وخت هغوی د يوې اونې لاندې تشريف فرما وو يو څادر خور وو چه په هغې باندې هغوی ناست وو، د هغوی نه څلورو وارو اړخونو ته صحابه کرامﷺ وو زه هم په هغوی کښې کيناستلم نو هغه وخت رسول الله ﷺ د بيماريانو تذکره کوله او فرمائيل ئې چه مومن ته چه کله يو بيماری اورسيږی او بيا الله پاک هغه ته د هغې نه شفاء ورکړی نو دا بيماری د هغه د تيرو ګناهونو کفاره شی، او د بيا دپاره د عبرت سبب، او د دې په مقابله کښې چه کله مناف انسان بيمارشی او بيا د هغې نه روغ شی نو د هغه حال په منزله د هغه اوښ دې کوم لره چه د هغه مالک په يو وخت کښې تړی، او بيا ئې په دويم وخت کښې پرانيزی نو هغه اوښ په دې نه پوهيږی چه د هغه مالک هغه تړلې ولې وو اوس ئې پرانستې ولې دې. ﴿قال تعالى اولئک کالانعام بل هم اضل ﴾

وړاندې په روايت کښې دی چه په دې موقع باندې په حاضرينو کښې يو کس په بې پرواهئ سره تپوس اوکړو يا رسول الله ﷺ دا امراض څه وی؟ والله زه خو چرته نه يم بيمار شوې؟ نو رسول الله ﷺ د هغه په دې طرز باندې ناراضه شو او وې فرمائيل ﴿ قم عنا فلست منا ﴾ چه پاسه د دې ځائې نه ته زمونږ د ملګرتيا قابل نه ئې. ﴿ فبينا نحن عنده اذا قبل رجل عليه كساء وفى يده شئ قد التف عليه ﴾ راوی وائی چه مونږ د رسول الله ﷺ په مجلس کښې ناست وو چه يو سړې راغلو او د هغه په لاس کښې يو څيز وو چه په هغې باندې ئې د څادر پلو اچولې

وو هغه رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه کله زما په تاسو باندې نظر پريوتلو نو فورا تاسو طرف ته راروان شوم نو زه په يو جاځ باندې راتير شوم (د اونو وغيره مجموعه) نو په هغه جاځ کښې ما د مارغانو د بچو آواز واوريدلو نو ما هغه راونيول او په خپل څادر کښې مې هغه کيخودل نو د هغه بچو مور راغله د خپلو بچو د وجې نه او بالکل زما په سر باندې تاويده په الوتلو سره، چه ما د هغې بچو نه کپړه لرې کړه نو هغه فورا په هغې باندې کيناستله او د هغې نه نۀ اخوا کيده تردې چه ما په هغوی ټولو باندې څادر ور واچولو، او وې وئيل چه هغه ټول بچې وغيره ما سره دی رسول الله ﷺ اوفرمائيل دا دلته لاندې کيږده ما هغه لاندې کيخودل بيا هم د هغوی مور د هغې نه نۀ اخوا کيده، ټول صحابه کرام ﷺ په دې منظر ليدو باندې متعجب وو، ځکه چه مارغان خو د انسان خوا کښې نه ايساريږي.

### د الله پاک په خپلو بندګانو باندې غير محدود رافت او رحمت:

نو په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ اتعجبون لرحم ام الافراخ فراخها ﴾ چه آيا تاسو د دې بچو د مور په رحم باندې تعجب کوئ چه دا په خپلو بچو باندې څومره مهربانه ده؟ صحابه کرامو ﷺ عرض اوکړو او جی، رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ فوالذی بعثني بالحق لله ارحم بعباده من ام الافراخ بفراخها ﴾ قسم دې په هغه ذات چه زه ئې په حقه نبی راليږلې يم بيشکه الله پاک په خپلو بندګانو باندې زيات مهربانه دې په نسبت د دې بچو د مور نه په خپلو بچو باندې، او بيا رسول الله ﷺ هغه سړی ته اووې چه لاړ شه او دا چه دې د کوم ځائې نه راوچت کړی دی هم هلته ئې پريږده.

## بَابٌ إِذَا كَانَ الرَّجُلُ يَعْمَلُ عَمَلًا صَالِحًا فَشَغَلَهُ عَنْهُ مَرَضٌ أَوْ سَفَرٌ

### که څوک نيک اعمال کول غواړي خو مرض او سفر ورته مانع جوړشي

[٣٠٩١](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، وَمُسَدَّدٌ، الْمَعْنَى قَالَا: حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنِ الْعَوَّامِ بْنِ حَوْشَبٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ السَّكْسَكِيِّ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيْرَ مَرَّةٍ، وَلَا مَرَّتَيْنِ، يَقُولُ: "إِذَا كَانَ الْعَبْدُ يَعْمَلُ عَمَلًا صَالِحًا، فَشَغَلَهُ عَنْهُ مَرَضٌ، أَوْ سَفَرٌ، كُتِبَ لَهُ كَصَالِحِ مَا كَانَ يَعْمَلُ، وَهُوَ صَحِيحٌ مُقِيمٌ".

دابوموسی ﷺ نه روايت دې فرمائي چه يوځل دوه ځله نه بلکه ډير ځله مې دنبی ﷺ نه اوريدلي دي چه فرمائيل فې: کله چه يوانسان دنيکو عملونو ارادي کوي بيادځه مرض يادسفرپه وجه باندې دا کارسرته ونه رسولې شي نودده دپاره به هم دومره ثواب اوليکې شي څومره چه به د دصحت اودقيام په وخت کښې حاصلولو.

﴿ عن ابی بردة عن ابی موسی ﷺ قال سمعت رسول الله ﷺ غير مرة ولا مرتين ﴾

ابوموسی اشعری ﷺ فرمائي چه ما د رسول الله ﷺ نه يو ځل دوه کرته نه بلکه ډير کرته اوريدلي دی هغوی به فرمائيل چه کله يو انسان يو نيک عمل کوی او بيا د يو سفر يا مرض د وجې نه هغه اونکړې شي نو د هغه په اعمال نامه کښې عمل صالح ډير عمده کولو

(١): صحيح البخاري/الجهاد ١٣٤(٢٩٩٦)، (تحفة الأشراف: ٩٠٣٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٤١٠، ٤١٨) (حسن)

سره لیکلي شي لکه څنګه چه به هغه د صحت او اقامت په حالت کښې کول. والحديث اخرجه البخاري، قاله المنذرى

دلته په حاشیه د بذل کښې د ابوداؤد د يوې نسخې نه (ابن العبد او ابن داسه) يو حديث نقل کړې دې!

[٣٠٩٠]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، وَإِبْرَاهِيمُ بْنُ مَهْدِيٍّ الْمِصِّيصِيُّ، الْمَعْنَى قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو الْمَلِيحِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ خَالِدٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد، قَالَ إِبْرَاهِيمُ بْنُ مَهْدِيٍّ السُّلَمِيُّ عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، وَكَانَتْ لَهُ صُحْبَةٌ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا سَبَقَتْ لَهُ مِنَ اللَّهِ مَنْزِلَةٌ، لَمْ يَبْلُغْهَا بِعَمَلِهِ، ابْتَلَاهُ اللَّهُ فِي جَسَدِهِ، أَوْ فِي مَالِهِ، أَوْ فِي وَلَدِهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: زَادَ ابْنُ نُفَيْلٍ، ثُمَّ صَبَّرَهُ عَلَى ذَلِكَ، ثُمَّ اتَّفَقَا حَتَّى يُبْلِغَهُ الْمَنْزِلَةَ الَّتِي سَبَقَتْ لَهُ مِنَ اللَّهِ تَعَالَى.

ابراهيم بن مهدي السلمي دخپل پلار نه اوهغه دده دنيکه نه روايت کوی فرمائی چه دنبی ﷺ نه مې اوريدلی دی چه فرمائيل ئې: کله چه ديوبنده دپاره دالله تعالى يوه مرتبه جوړه شي کله چه ده دغه په خپل عمل نه وی حاصله کړي نوالله تعالى به په ده باندې دده جسم يامال يا اولادکښې ازمائش وکړي. ابوداود وائی چه دابن نفيل په روايت کښې دا اضافه ده چه اوبيائې دصبر تلقين وکړوپه دې باندې، په باقی روايت کښې ټول راويان متفق دي، تردې چه او رسوي ده لره دده مرتبه کومه چه دده دپاره دالله تعالى دطرف نه ليکلې شوې ده.

## مضمون د حدیث :

﴿ عن محمد بن خالد عن ابيه عن جده ([2]) وكانت له صحبة من رسول اللهﷺ الخ ﴾

چه د هغې مضمون دا دې: محمد بن خالد د خپل پلار نه او هغه د هغه د نيکه نه روايت کوی چه رسول اللهﷺ به ارشاد فرمائيلو چه کله د يو بنده دپاره د الله پاک په علم قديم کښې داسې منزلت او مرتبه وی چه هغې ته هغه د خپل عمل صالح په وجه نه شی رسيدې نو الله پاک هغه لره د بدن يا د مال يا د اولاد په ازميښت کښې واچوی او بيا هغه ته د صبر توفيق ورکړی تر دې چه هغه لره د هغه مرتبې ته اورسوی کومه چه د هغه دپاره مقدر شوې وی.

د دې حديث نه د مصائبو د رفع درجات سبب کيدل معلوميږی، او دويمه ترې نه دا خبره هم فهميږی چه اګر چه بنده ته هر څه خو ملاويږی د الله پاک په فضل سره خو دنيا دار العمل والاسباب دې الله پاک صورةً ثواب او عقاب هر دوارو لره د عمل سره تړلې دی.

﴿ قال الله تعالى : الذى خلق الموت والحيوة ليبلوكم ايكم احسن عملا ﴾

---

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٥٥٦٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٧٢/٥) (صحيح)

[2] والحديث رواه ابوداؤد ورواه احمد والطبراني في الكبير والاوسط، كذا في كتاب من روي عن ابيه عن جده للقاسم بن قطلوبغاه وفي تعليقه وقال في مجمع الزوائد ٢٩٢/٢ ومحمد بن خالد وابوه لم اعرفهما واورده الهيثمي كذلك في مجمع البحرين ٩٩/١ اهـ مختصرا وفي هذا التعليق تفصيل من شاء فليراجع اليه)

# بَابُ عِيَادَةِ النِّسَاءِ

## كومې ښځې چه د مريض د عيادت دپاره لاړې شي دهغوى بيان

[۳۰۹۲](۱) حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ بَكَّارٍ، عَنْ أَبِي عَوَانَةَ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ أُمِّ الْعَلَاءِ، قَالَتْ: عَادَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَنَا مَرِيضَةٌ، فَقَالَ: "أَبْشِرِي يَا أُمَّ الْعَلَاءِ، فَإِنَّ مَرَضَ الْمُسْلِمِ يُذْهِبُ اللَّهُ بِهِ خَطَايَاهُ، كَمَا تُذْهِبُ النَّارُ خَبَثَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ".

د ام علاء رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه نبى عليه السلام زما بيمار پرسئ ته راغې اوزه مريضه وم اووئې فرمائيل خوشخبرې واوره اې ام العلاء يقينا مرض دمسلمان گناهونه لرې كوي اوداسې ئې لرې كوي لكه څنګه چه اور دسپينو او سرو زرونه خيرې لرې كوي.

اى عيادة الرجال النساء فالاضافة الى المفعول.... پس په حديث الباب كښې دى ام العلاء فرمائي چه رسول الله ﷺ زما بيمار پرسى اوفرمائيله ﴿ وانا مريضة ﴾ او د بيمار پرسئ په وخت رسول الله ﷺ اوفرمائيل اې ام العلاء خوشحاله شه ځكه چه د مسلمان د بيمارئ په وجه باندې الله پاک د هغه نه د هغه گناهونه داسې لرې كوى لكه چه اور د سرو او سپينو زرو خيرى لره، دا ام العلاء د حكيم بنت حزام ترور وه.

[۳۰۹۳](۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى. ح وَحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ، قَالَ أَبُو دَاوُد وَهَذَا لَفْظُ ابْنِ بَشَّارٍ، عَنْ أَبِي عَامِرٍ الْخَزَّازِ، عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي لَأَعْلَمُ أَشَدَّ آيَةٍ فِي الْقُرْآنِ، قَالَ: "أَيَّةُ آيَةٍ يَا عَائِشَةُ؟" قَالَتْ: قَوْلُ اللَّهِ تَعَالَى: مَنْ يَعْمَلْ سُوءًا يُجْزَ بِهِ سورة النساء آية ۱۲۳، قَالَ: أَمَا عَلِمْتِ يَا عَائِشَةُ أَنَّ الْمُؤْمِنَ تُصِيبُهُ النَّكْبَةُ أَوِ الشَّوْكَةُ فَيُكَافَأُ بِأَسْوَإِ عَمَلِهِ، وَمَنْ حُوسِبَ عُذِّبَ، قَالَتْ: أَلَيْسَ اللَّهُ يَقُولُ: فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيرًا سورة الانشقاق آية ۸، قَالَ: ذَاكُمُ الْعَرْضُ، يَا عَائِشَةُ، مَنْ نُوقِشَ الْحِسَابَ عُذِّبَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا لَفْظُ ابْنِ بَشَّارٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ.

د ام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه ما اووئيل اې دالله رسوله زه دهغه ايت نه خبره يم كوم چه په قران كريم كښې ډير شديد اوسخت دې نبى عليه السلام اوفرمائيل هغه كوم يو ايت دې اې عائشې، ما اووئيل دا ايت «من يعمل سوءا يجز به» كله چه دا ايت نازل شو نوصحابه كرامو ته ډير گران ښكاره شونبى عليه السلام اوفرمائيل اې عائشې اياتاته معلومه نه ده كله چه په مسلمانانو باندې څه قسم افت راشي پائې په خپه كښې ازغې لاړشي نوهغه ددوى دبدو عملونو دپاره كفاره جوړيږي مگردچاسره چه حساب اوشى نوهغه دعذاب نه نه شى بچ كيدلې عائشې اوفرمائيل الله تعالى فرمائي «فسوف يحاسب حسابا يسيرا» نبى عليه السلام اوفرمائيل ددې نه مراد صرف داعمالو پيش كيدل دي اې عائشې د قيامت په ورځ په حساب كتاب كښې چه دكوم كس نه دعملونو تپوس اوكړې شي نوهغه هيڅ كله دعذاب نه نه شى بچ كيدلې- ابوداود وائى دا دابن بشار الفاظ دي اوهغه دابن أبى مليكه نه دا روايت

---

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۳۳۹) (صحيح)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۶۲۴۰)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/العلم ۳۶ (۱۰۳)، وتفسير القرآن ۱ (۴۹۳۹)، صحيح مسلم/الجنة وصفة نعيمها ۱۸ (۲۸۷۶)، سنن الترمذي/صفة القيامة ۵ (۲۴۲۶)، وتفسير القرآن ۷۵ (۳۳۳۷)، مسند احمد (۴۷/۴) (صحيح)

په اخبرنا سره بيان کړې دي.

﴿عن عائشة ﷺ قالت قلت يا رسول الله ﷺ اني لاعلم اشد اية في كتاب الله عزوجل الخ﴾

مضمون د حديث دا دې: عائشه ؓ فرمائي چه ما يو ځل رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه په قرآن کريم کښې چه د ټولو نه زيات کوم آيت کريمه سخت دې (ويرونکې) هغه ماته معلوم دې. رسول الله ﷺ تپوس اوکړو کوم آيت دې هغه؟ نو هغې عرض اوکړو ﴿من يعمل سوء يجز به﴾ چه کوم انسان هم ګناه کوي هغه ته به د هغه بدله ملاويږي، په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل اې عائشې! تا ته پته نشته چه کله يو مسلمان ته څه مصيبت اورسيږي يا ئې ازغې هم مات شي نو دا د هغه د بدو اعمالو بدله شي په دنيا کښې (مطلب دا دې چه په آيت کريمه کښې د جزاء نه مراد صرف د آخرت عذاب نه دې بلکه مطلق جزاء ترې نه مراد ده که په دنيا کښې وي او که په آخرت کښې وي پس د ډيرو ګناهو بدله په دنيا کښې ورکولې شي او بيا ترې نه په آخرت کښې مطالبه نه کيږي. ﴿ومن حوسب عذب﴾ خو چه د چا نه هلته حساب واخستلې شو هغه د عذاب نه نه شي بچ کيدې. په دې باندې عائشې ؓ عرض اوکړو چه آيا الله پاک دا نه دي فرمائيلي، ﴿فسوف يحاسب حسابا يسيرا﴾ چه د هغې نه معلوميږي چه بعض حساب به آسان هم وي نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه په دې آيت کريمه کښې د حساب نه مراد نفس عرض دې يعني د اعمال نامې صرف پيش کيدل، او زما مراد د حساب نه مناقشة في الحساب ده چه هغې ته جرح وائي، يعني چه دحساب په وخت ترې نه تپوس اوکړې چه داسې دې ولې کړې وو؟

والحديث اخرجه البخاري ومسلم (من قوله) اليس يقول الله الى آخر الحديث. قاله المنذري

وكتب في البذل هذا الحديث لا مناسبة له بباب عيادة النسآء بل له مناسبة بالباب الذي قبله.

## بَابٌ فِي الْعِيَادَةِ

### د مريض د عيادت کولو بيان

[٣٠٩٤]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ: خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُودُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ أُبَيٍّ فِي مَرَضِهِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ فَلَمَّا دَخَلَ عَلَيْهِ عَرَفَ فِيهِ الْمَوْتَ، قَالَ: "قَدْ كُنْتُ أَنْهَاكَ عَنْ حُبِّ يَهُودَ"، قَالَ: فَقَدْ أَبْغَضَهُمْ أَسْعَدُ بْنُ زُرَارَةَ فَمَهْ. فَلَمَّا مَاتَ أَتَاهُ ابْنُهُ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ أُبَيٍّ قَدْ مَاتَ، فَأَعْطِنِي قَمِيصَكَ أُكَفِّنْهُ فِيهِ، فَنَزَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَمِيصَهُ، فَأَعْطَاهُ إِيَّاهُ.

داسامه بن زيد نه روايت دې فرمائي چه نبي ﷺ دعبدالله بن ابي دعيادت دپاره لاړو په هغه مرض کښې په کوم مرض کښې چه هغه وفات شوې وو هرکله چه ورته داخل شو نودمرګ علامې ئې په کښې اوليدلې ورته ئې اوفرمائيل ماخوته ديهوديانو دمحبت نه منع کړې وې هغه اووئيل: سعد بن زراره ديهوديانوسره دشمني اوکړه څه فائده ئې اوشوه؟ کله چه عبدالله بن ابي مړ شو نودده ځوي دنبي ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اوعرض ئې

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٢٠١) (حسن)

اوکړو اې دالله رسوله عبدالله بن أبی مرشو تاسوراته دهغه دکفن دپاره خپل قمیص مبارك راکړئ، نبی ﷺ خپل قمیص اوویستلو او ورته ئې ورکړو.

**شرح الحدیث :**

مضمون د حدیث دا دې: سیدنا اسامه رضی الله عنه فرمائی چه د عبدالله بن ابی رئیس المنافقین په مرض الموت کښې رسول الله ﷺ هغوی ته د بیمار پرسئ دپاره تشریف یوړلو رسول الله ﷺ هغوی ته کتلو سره په هغوی کښې د مرګ علامات اولیدل. او رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿ قد کنت انهاک عن حب یهود ﴾ ما به ته د یهودو د مینې نه منع کولې (او د یهودو مینې ته په دې منافقت کښې اخته کړې وې او اوس د منافقت په حالت کښې مرې، صرف په ژبه باندې اسلام راوړل مفید نه دی) هغه د رسول الله ﷺ دې خبرې اوریدو سره اووې ﴿ فقد ابغضهم اسعد بن زرارة فمه ﴾ چه اسعد بن زرارة خو د یهودو سره مینه نه کوله بلکه د هغوی سره ئې بغض کولو پس څه پکار ئې راغلو دا د یهودو بغض، دا ناپوهه د رسول الله ﷺ د ارشاد په مطلب پوهه نه شو د رسول الله ﷺ اشاره خو د آخرت د عذاب طرف ته وه، هغه دا اوګڼړله چه اصل فائده خو د مرګ نه په بچ کیدو کښې ده په دې وجه ئې اووې چه اسعد بن زراره د مرګ نه کوم بچ شو.

عبدالله بن ابی د اسعد بن زراره رضی الله عنه په باره کښې د یهودو بغض ثابت کړو، د هغوی د بغض څه خاص واقعه خو نه ده ملاؤ شوې. البته په اصابه وغیره کښې خو دا وئیلې کیدې شی چه د هغه بغض داسې ثابت دې چه دې اول من اسلم من الانصار علی الاطلاق دې. یعنی مدینه چرته چه په کثرت سره یهود اوسیدل هلته د اسلام شروع هم د دوی نه اوشوه ﴿ علی رغم انف یهود او ښکاره خبره ده چه د مدینې نه د یهودو جرړه اهل اسلام پرې کړې ده او د هغوی نور هم ډیر خصوصیتونه دی ﴿ فانه اول من جمع الجمعة فی المدینة قبل هجرته علیه الصلوة والسلام﴾ کما مر فی کتاب الصلوة باب الجمعة فی القری.

د دې نه پس په روایت کښې دی چه کله هغه مړ شو نو رسول الله ﷺ ته د هغه ځامن چه د هغه د خوی نوم هم عبدالله رضی الله عنه وو او اسلام ئې راوړې وو هغوی راغلل او رسول الله ﷺ ته ئې درخواست اوکړو چه تاسو خپل قمیص ماته راکړئ چه د خپل پلار تکفین په هغې کښې اوکړم، رسول الله ﷺ هغوی ته خپل قمیص مبارک ورکړو، د ابوداؤد په دې روایت کښې خو صرف دومره دی او د صحیحینو په روایت کښې دا هم راغلی دی چه رسول الله ﷺ د هغوی قبر ته تشریف یوړو او هغه ئې د قبر نه راویستلو او هغه ئې په خپلو زنګونو باندې کیخودلو او په هغه باندې ئې د خپلې خولې مبارک لاړې پورې کړې، او خپل قمیص ئې هغه ته واغوستولو.

په بذل کښې لیکلی دی چه د رسول الله ﷺ قمیص ورکول د هغه د خوی د زړه د ساتلو دپاره ؤو(څکه چه هغه مسلمان شوې وو) سره د دې چه رسول الله ﷺ ته معلومه وه چه د هغوی قمیص د نفاق سره هیڅ فائده نه ورکوی، او وئیلې شوې دی چه د رسول الله ﷺ دا قمیص ورکول صرف د هغه احسان په بدل کښې وو چه عبدالله بن ابی منافق د رسول

الله ﷺ محترم ترهٔ عباس رضی الله عنه ته خپل قمیص ورکړې وو، ځکه چه عباس رضی الله عنه په جنګ بدر کښې قید کړې شوې وو او د هغوی قمیص شلیدلې وو د هغوی دپاره د قمیص ضرورت وو نو ابن ابی هغه وخت هغوی ته خپل قمیص ورکړې وو ځکه چه د طویل القامت کیدو د وجې نه د بل چا قمیص په هغوی باندې نه برابریدو، بیا اسلام خو هغوی روستو راوړو د خیبر د فتح نه مخکښې د یو قول مطابق.

## بَابٌ فِي عِيَادَةِ الذِّمِّيِّ
### د کافر او ذمی عیادت کول

[٣٠٩٥] (١) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ يَعْنِي ابْنَ زَيْدٍ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ: أَنَّ غُلَامًا مِنَ الْيَهُودِ كَانَ مَرِضَ، فَأَتَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُودُهُ، فَقَعَدَ عِنْدَ رَأْسِهِ، فَقَالَ لَهُ: "أَسْلِمْ، فَنَظَرَ إِلَى أَبِيهِ وَهُوَ عِنْدَ رَأْسِهِ، فَقَالَ لَهُ أَبُوهُ: أَطِعْ أَبَا الْقَاسِمِ، فَأَسْلَمَ، فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَهُوَ يَقُولُ: الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَنْقَذَهُ بِي مِنَ النَّارِ".

د انس نه روایت دې فرمائی چه یو یهودي هلك مریض شو او نبی علیه السلام ئې دتپوس دپاره ورغې دسر سره ئې کیناستوورته ئې اووئیل اسلام قبول کړه نوهغه خپل پلار ته وکتل اودده پلار دده سر ته ولاړ وو پلار ئې ورته اووئیل دابو القاسم ﷺ خبره اومنه نوهغه مسلمان شو نبی علیه السلام پاڅیدو او وئې فرمائیل دالله شکر دې چاچه زما په وجه باندې دې هلك ته ددوزخ داور نه نجات ورکړو.

﴿ عن رضی الله تعالی عنه ان غلاما من الیهود ﴾

مضمون دا دې چه انس رضی الله عنه فرمائی چه یو یهودی هلک بیمار شو، رسول الله ﷺ د هغه د بیمار پرسئ دپاره تشریف یوړو او دهغه د سرطرف ته کیناستلو او هغه ته ئې اوفرمائیل اسلام راوړه، هغه هلک د خپل پلار طرف ته اوکتل هغه هم هلته ولاړ وو، هغه اووې او د ابوالقاسم ﷺ اطاعت اوکړه پس هغه اسلام قبول کړو، رسول الله ﷺ د الله پاک حمد وثناء کولو سره را واپس شو چه الله پاک زما په وجه باندې هغه ته د دوزخ نه خلاصې ورکړو.

دا حدیث په صحیح بخاری کښې هم دې ﴿ فی باب اذا اسلم الصبی فمات هل یصلی علیه وهل یعرض علی الصبی الاسلام ﴾ د دې په شروع کښې داسې دی ﴿ عن انس رضی الله عنه قال کان غلام یهودی یخدم النبی ﷺ فمرض الحدیث ﴾ مصنف رحمه الله د دې نه د ذمی د عیادت جواز ثابت کړې دې، په حاشیه د بذل کښې دی، ﴿ ویجوز عندنا الذمی عندنا بالاجماع ﴾ کذا فی الشامی، وعن احمد فیه روایتان کما فی الشرح الکبیر.

والحدیث اخرجه البخاری والنسائی، قاله المنذری

---

(١): صحيح البخاري/الجنائز ٧٩ (١٣٥٦)، والمرضى ١١ (٥٦٥٧)، (تحفة الأشراف: ٢٩٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٧٥/٣، ٢٧٠، ٢٨٠) (صحيح)

## بَابُ الْمَشْيِ فِي الْعِيَادَةِ

### د عیادت دپاره د پیدل تلو دفضیلت بیان

[٣٠٩٦](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُودُنِي، لَيْسَ بِرَاكِبِ بَغْلٍ، وَلَا بِرْذَوْنٍ.

دجابر نه روایت دي فرمائی چه نبی ﷺ به زمابیمارپرسئ ته راتلو چه نه به په قره سوررو اونه به په ترکي اس باندي.

﴿عن جابر رضی الله عنه قال كان النبی ﷺ يعودنی ليس براكب بغلا ولا برذونا﴾

جابر رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ زما د تپوس دپاره تشریف راوړو (یعنی پیاده) هغوی به نه سوریدل نه په خچر باندې او نه په ترکی اس باندې.

مصنف رحمه الله د حدیث هم هغه معنی اخستلې ده کومه چه مونږ په ترجمه کښې لیکلې ده، یعنی د مطلقا رکوب نفی، د حضرت شیخ په حاشیه کښې دی: ما ترجم به المصنف عليه حمل الجمهور الحديث، وحمله بعضهم على انه كان راكبا على غير البغل والبرذون آه مختصرا. حافظ منذری رحمه الله فرمائی د حدیث نه ثابته ده چه رسول الله ﷺ د سعد بن عباده عیادت اوفرمائیلو راکبا علی حمار او د جابر رضی الله عنه په حدیث کښې دی ﴿اتانی النبی ﷺ يعودنی وابوبكر وهما ماشيان﴾ لهذا د مریض عیادت راکبا او ماشیا دواړو طریقو سره مسنون دي.

والحديث اخرجه البخاري والترمذی قاله المنذری

## بَابٌ فِي فَضْلِ الْعِيَادَةِ عَلَى وُضُوءٍ

### داودس په حالت کښې د بیمارپرسی کولو دفضیلت بیان

[٣٠٩٧](2) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَوْفٍ الطَّائِيُّ، حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ رَوْحِ بْنِ خُلَيْدٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ دَلْهَمٍ الْوَاسِطِيُّ، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوءَ، وَعَادَ أَخَاهُ الْمُسْلِمَ مُحْتَسِبًا، بُوعِدَ مِنْ جَهَنَّمَ مَسِيرَةَ سَبْعِينَ خَرِيفًا". قُلْتُ: يَا أَبَا حَمْزَةَ، وَمَا الْخَرِيفُ؟ قَالَ: الْعَامُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَالَّذِي تَفَرَّدَ بِهِ الْبَصْرِيُّونَ مِنْهُ الْعِيَادَةُ، وَهُوَ مُتَوَضِّئٌ.

دانس بن مالك رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه رسول پاك فرمائیلی دی چاچه اودس اوکړو اوښائسته اودس ئې اوکړو اودخپل مسلمان ورور عیادت ئې اوکړو دثواب په اراده باندې نو داویا خریفو په فاصله باندې به دجهنم نه لرې کړې شي، ما اووئیل اې ابوحمزه خریف څه شې وي کلونه، ابوداود وائی هغه روایتونه کوم چه صرف بصریانو نقل کړی دی یو په هغوی کښې دا روایت دې.

(1): صحيح البخاري/المرضى ١٦ (٥٦٦٤)، سنن الترمذي/ المناقب ٥٣ (٣٨٥١)، (تحفة الأشراف: ٣٠٢١)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الفرائض ٢ (١٦١٦) (صحيح)

(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٦١) (ضعيف)

[٣٠٩٨](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ نَافِعٍ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: "مَا مِنْ رَجُلٍ يَعُودُ مَرِيضًا مُمْسِيًا، إِلَّا خَرَجَ مَعَهُ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ يَسْتَغْفِرُونَ لَهُ حَتَّى يُصْبِحَ، وَكَانَ لَهُ خَرِيفٌ فِي الْجَنَّةِ، وَمَنْ أَتَاهُ مُصْبِحًا، خَرَجَ مَعَهُ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ يَسْتَغْفِرُونَ لَهُ حَتَّى يُمْسِيَ، وَكَانَ لَهُ خَرِيفٌ فِي الْجَنَّةِ".

د علی کرم الله وجهه نه روایت دې هریوکس چه دماښام په وخت کښې دیو مریض تپوس اوکړي نودده سره اویازره فرښتې روانې شي کومې چه دده دپاره دسحره پورې دګناهونو نه بخښنه غواړی اوودده دپاره به په جنت کښې یوباغ مقرر کړې شي اوڅوک چه د ورځې دشروع کیدو په وخت کښې دچابیمار پرسي اوکړي نودده دپاره اویازره فرښتې دماښام پورې دمغفرت دعاګاني غواړی اوودده دپاره به په جنت کښې یوباغ مقرر کړې شي.

زمونږ استاد حضرت مولانا اسعد الله صاحب رحمه الله به فرمائیل ﴿ العیادة افضل من العبادة لفظا ومعنی ﴾ په دې باب کښې مصنف رحمه الله اول د انس رضی الله عنه حدیث ذکر کړې دې چه د هغې مضمون دا دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه کوم انسان په ښه طریقې سره اودس کولو نه پس د خپل مسلمان رور عیادت اوکړی صرف د ثواب په نیت سره نو هغه د دوزخ نه د اویا کالو فاصله باندې لرې کړې شی، او دویم ئې د علی رضی الله عنه حدیث ذکر کړې دې چه د هغې مضمون دا دې چه کوم انسان د یو مریض عیادت اوکړی د سحر په وخت نو د هغه سره اویا زره ملائک اوځی کوم چه د هغه دپاره تر د ماښامه پورې استغفار کوی، او کوم انسان چه د یو مریض تپوس اوکړی د ماښام په وخت نو د هغه سره اویا زره ملائک راوځی چه د هغه دپاره د سحره پورې بخښنه غواړی، او د هغه دپاره په جنت کښې یو باغ لګولې شی.
خریف په معنی د بستان چه هغې ته مخراف هم وائی او د ترمذی په یو روایت کښې دی ﴿من حدیث ثوبان رضی الله عنه لم یزل فی خرفة الجنة ﴾ او هم د دې روایت په دویم طریق کښې دا زیادت دې ﴿ قیل ما خرفة الجنة قال جناها ﴾ یعنی د جنت میوې، فواکه، زمونږ استاذ محترم مولانا اسعد الله صاحب رحمه الله فرمائی چه هر کله دا خبره ده نو بیا چه په کومه زمانه کښې ورځ لویه وی هغه وخت تپوس د سحر په وخت کول پکار دی او کله چه شپه لویه وی نو هغه وخت تپوس د ماښام په وخت کول پکار دی.

[٣٠٩٩](٢) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ عَلِيٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَاهُ، لَمْ يَذْكُرِ الْخَرِيفَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ مَنْصُورٌ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ أَبِي حَفْصٍ، كَمَا رَوَاهُ شُعْبَةُ.

د علی کرم الله وجهه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی دا روایت دتیر روایت په شان دې لیکن په دې کښې دخرید ذکر نشته، ابوداود وائی دا روایت منصور هم دحکم نه اوهغه دابوحفص نه دشعبه په شان نقل کړې دې.

١): تفرد به أبو داود، وانظر الحديث الآتي، (تحفة الأشراف: ١٠٢١١) (صحيح)
٢): سنن ابن ماجه/الجنائز ٢ (١٤٤٢)، (تحفة الأشراف: ١٠٢١١)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الجنائز ٢ (٩٦٩)، مسند احمد (١/٨١، ١٢٠) (صحيح)

[٣١٠٠]() حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ أَبِي جَعْفَرٍ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ نَافِعٍ، قَالَ: وَكَانَ نَافِعٌ غُلَامَ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ، قَالَ: جَاءَ أَبُو مُوسَى إِلَى الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ يَعُودُهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد، وَسَاقَ مَعْنَى حَدِيثِ شُعْبَةَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: أُسْنِدَ هَذَا عَنْ عَلِيٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ صَحِيحٍ.

علی کرم الله وجهه دنبی ﷺ نه نور داسې روایات هم نقل کړی دی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی لیکن په هغه روایتونو کښې دباغ ذکر نشته، ابوداود وائی ددې حدیث د علی رضی الله عنه نه اوهغه دنبی ﷺ نه په غیر صحیح وجه باندې بیان شوې دې.

## بَابٌ فِي الْعِيَادَةِ مِرَارًا

### دباربار عیادت کولو دفضیلت بیان

[٣١٠١]() حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: لَمَّا أُصِيبَ سَعْدُ بْنُ مُعَاذٍ يَوْمَ الْخَنْدَقِ، رَمَاهُ رَجُلٌ فِي الْأَكْحَلِ، "فَضَرَبَ عَلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْمَةً فِي الْمَسْجِدِ، فَيَعُودَهُ مِنْ قَرِيبٍ".

دام المومنین عائشة رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی کله چه په غزوه خندق کښې سعد بن معاذ زخمي کړې شواوهغه داسې یوکس دده لاس په غشي ویشتلي وو اورګ ئې شلیدلې وو نونبی ﷺ دده دپاره په مسجد کښې دننه یوه خیمه ولګوله ددې دپاره چه دنزدې نه ئې عیادت وکړی.

﴿عن عائشة رضی الله عنها قالت لما اصیب سعد بن معاذ رضی الله عنه یوم الخندق رماه رجل فی الاکحل الخ﴾

**شرح الحدیث:**

یعنی سعد بن معاذ رضی الله عنه په غزوه خندق کښې یو کافر په اکحل کښې په غشی باندې ویشتلو نو رسول الله ﷺ سعد رضی الله عنه لره په مسجد کښې ایسارولو سره د هغوی دپاره په مسجد کښې خیمه نصب کړه او په مسجد کښې ئې ځکه ایسار کړو چه د نزدې کیدو د وجې نه په تپوس کولو کښې سهولت وی په دې باندې مصنف رحمه الله ترجمة قائم کړې ده العیادة مرارا، مصنف رحمه الله ګویا په دې کښې د سعد رضی الله عنه په مسجد کښې د دیره کولو او ایسارولو فائده او مصلحت بیان کړې دې چه باربار تپوس اوکړې شی.

﴿اکحل﴾ د یو رګ نوم دې چه د زراغ په مینځ کښې وی، او خلیل لیکلې دی چه اکحل دعرق حیات هغه ښاخ دې کوم چه په لاس کښې وی، او کوم ښاخ چه د دې په ملا کښې وی هغې ته ابهر وائی او کوم چه په پنډۍ کښې وی هغې ته نساء وائی. وئیلې شوې دی چه په هر اندام کښې د عرق حیات یو ځانګه وی د هغه رګ که خوله پرانستلې شی نو وینه نه اودریږی اکحل ته په فارسۍ کښې رګ هفت اندام وائی.

دا حدیث دلته خو مختصر دې اورډ او مفصل حدیث د بخاری په کتاب المغازی کښې دې.

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، قاله المنذری

[1]: انظر ماقبله، (تحفة الأشراف: ١٠٢١١) (صحیح مرفوع)

[2]: صحیح البخاری/الصلاة ٧٧ (٤٦٣)، والمغازي ٣٠ (٤١٢٢)، صحیح مسلم/الجهاد ٢٢ (١٧٦٩)، سنن النسائي/المساجد ١٨ (٧١١)، (تحفة الأشراف: ١٦٧٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٥٦، ١٣١، ٢٨٠) (صحیح)

## بَابٌ فِي الْعِيَادَةِ مِنَ الرَّمَدِ

### د سترګو د خوږیدو په وجه د چا د عیادت دپاره د تلو د فضیلت بیان

### غرض المصنف من الترجمة :

رمد یعنی د سترګو خوږیدل، د دې د تخصیص سره د ترجمې قائمولو په ظاهره ضرورت ځکه راغلو چه یو حدیث دې چه په هغې کښې درې ځیزونه د تپوس کولو نه مستثنی کړې شوې دی، ﴿ ثلاثة لیس لهم عیادة العین والدمل والضرس ﴾ اخرجه البیهقی، چه درې درې بیماریانې داسې دی چه په دې کښې تپوس نشته، یو هم دا د سترګو خوږیدل، دویم دمّل دانه، دریم د غاښ درد، خو صحیح دا دې چه دا حدیث موقوف دې مرفوع نه دې، او حدیث الباب کوم چه مصنف رحمه الله ذکر کړې دې هغه اصح دې، یا دا چه په دې حدیث کښې د تاکد نفی کړې شوې ده خو په بعض کتابونو د فقه کښې هم د دې دریو بیمارو د عیادت نفی ذکر کړې شوې ده، د دې جواب هم دا ورکړې شوې دې چه د تاکد نفی مقصود ده د مطلق سنت کیدو نه.

[۳۱۰۲]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ يُونُسَ بْنِ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ، قَالَ: "عَادَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ وَجَعٍ كَانَ بِعَيْنِي".

دزید بن ارقم رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام زما د عیادت دپاره راغې د هغه درد په وجه کوم چه زما په سترګو راغلې وو.

﴿ عن زید بن ارقم رضی الله عنه قال عادنی رسول الله صلی الله علیه وسلم من وجع کان بعینی ﴾ د حدیث نه د ترجمة الباب ثبوت ښکاره دې.

## بَابُ الْخُرُوجِ مِنَ الطَّاعُونِ

### د طاعون زده علاقې نه د وتلو بیان

طاعون یوه مشهوره بیماری ده کومه چه د بدن په مختلفو حصو کښې مثلا ځنګلو، ترخونو یا ګوتو کښې یا د بدن په ټولو حصو کښې څه دانې او زخمونه پیدا شی چه د هغې سره ورم هم وی او سخت قسم پریشانی هم او سوزې، او د هغې زخمونو ګیر چاپیره ځایونه سرۀ شی یا شین والی ته مائل، چه د هغې سره د زړه حرکت تیز شی، او قئ هم وی او د دې اطلاق په هغه وبا او مرض عام (لکه زمونږ د زمانې ډهینګی) باندې هم کیږی چه په هغې سره فضاء فاسده شی او بیا د هغې اثر په بدن کښې خور شی.

[۳۱۰۳]([2]) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ زَيْدِ بْنِ الْخَطَّابِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ نَوْفَلٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِذَا سَمِعْتُمْ بِهِ بِأَرْضٍ فَلَا تُقْدِمُوا عَلَيْهِ، وَإِذَا وَقَعَ بِأَرْضٍ وَأَنْتُمْ بِهَا فَلَا تَخْرُجُوا فِرَارًا مِنْهُ" يَعْنِي الطَّاعُونَ.

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٩٧٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٧٥/٤) (حسن)

[2]: صحيح البخاري/الطب ٣٠ (٥٧٢٩)، والحيل ١٣ (٦٩٧٣)، صحيح مسلم/السلام ٣٢ (٢٢١٩)، (تحفة الأشراف: ٩٧٢١)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الجامع ٧ (٢٢)، مسند احمد (١/١٩٢، ١٩٣، ١٩٤) (صحيح)

دعبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه نبي ﷺ فرمائيلي دی په کومه ځمکه کښې چه طاعون مرض وي هلته مه ورځئ اوکله چه په کوم ځائې کښې په تاسو باندې طاعون راشي نو ددغه ځائې نه مه تختئ (يعنی د طاعون مرض نه).

## شرح الحديث

﴿اذا سمعتم بارض فلا تقدموا (1) عليه واذا وقع بارض وانتم بها فلا تخرجوا فرارا منه﴾

د دې بيمارئ په باره کښې رسول الله ﷺ دا ارشاد فرمائي چه په کومه علاقه کښې د دې کيدل معلوم شی نو هلته مه ځائې، او که په هم هغه ځائې کښې بيا موندلې شی چرته چه تاسو يئ نو بيا دهغه ځائې نه مه تختئ يعنی ددې بيمارئ نه بچ کيدو دپاره، معلومه شوه چه که د څه ضرورت د وجې نه ځی نو بيله خبره ده ځکه چه په رومبی صورت کښې د جراءت اواستغناء معنی موندلې شي اوپه دويم صورت کښې د فرارعن القدر شبه پيدا کيږی.

د حديث نه معلوميږی چه طاعون د کفارو په حق کښې د الله پاک عذاب دي او د مومنانو په حق کښې رحمت دې، که په دې باندې صبر اوکړی نو دهغه دپاره د شهيد اجر دې، پس وړاندې مستقل باب را روان دې، ﴿فضل من مات بالطاعون﴾ چه په هغې کښې دا راځی ﴿المطعون شهيد﴾ حضرت په بذل کښې د طاعون په باره کښې دا روايت ذکر کړې دې د عائشې رضي الله عنها د حديث چه ما د رسول الله ﷺ نه د طاعون په باره کښې تپوس اوکړو ﴿فاخبرنی انه عذاب يبعثه الله علی من يشآء وان الله عزوجل جعله رحمة للمؤمنين﴾ الحديث واخرجه الشيخان من حديث سامة بن زيد مرفوعا ﴿الطاعون رجز ارسل علی طائفة من بنی اسرائيل او علی من کان قبلکم الحديث﴾ اهـ مختصرا.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم مطولا، قاله المنذری

## بَابُ الدُّعَاءِ لِلْمَرِيضِ بِالشِّفَاءِ عِنْدَ الْعِيَادَةِ

### د عيادت په وخت کښې د مريض دپاره د الله تعالی نه د شفا غوښتلو بيان

[٣١٠٤](2) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا مَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا الْجُعَيْدُ، عَنْ عَائِشَةَ بِنْتِ سَعْدٍ، أَنَّ أَبَاهَا، قَالَ: اشْتَكَيْتُ بِمَكَّةَ، فَجَاءَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُودُنِي، وَوَضَعَ يَدَهُ عَلَى جَبْهَتِي، ثُمَّ مَسَحَ صَدْرِي وَبَطْنِي، ثُمَّ قَالَ: "اللَّهُمَّ اشْفِ سَعْدًا، وَأَتْمِمْ لَهُ هِجْرَتَهُ".

عائشه بنت سعد دخپل پلار نه روايت کوی فرمائی - چه زه په مکه کښې مريض شوم اونبی ﷺ زما بيمار پرسئ ته راغې اوخپل لاس ئې زما په تندی باندې کيخود اوزما په خيټه اوشاه باندې ئې لاس راښکل اوبيائې اوفرمائيل: اې الله سعد ته شفا ورکړی اودده هجرت کامل اوګرځوې

﴿عن عائشة بنت سعد رضي الله عنها ان اباها قال اشتکيت بمکة﴾

(1) بضم التاء من الاقدام وفي بعض النسخ بفتح التاء والدال، والمحفوظ ضم التاء. (بذل).

(2): صحيح البخاري/ المرضي ١٣ (٥٦٥٩)، سنن النسائي/ الوصايا ٣ (٣٦٥٦)، (تحفة الأشراف: ٣٩٥٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٧١/١) (صحيح)

سعد بن وقاص رضی الله عنه فرمائی چه ما یو ځل په داسې حال کښې چه زه په مکه مکرمه کښې اوم بیمار شوم نو رسول الله ﷺ زما د تپوس دپاره تشریف راوړلو او زما په تندی مبارک باندې ئې خپل لاس مبارک کیخودلو او په سینه او شا باندې هم او دا دعا ئې اوکړه ﴿اللهم اشف سعد واتمم له هجرته﴾ د دې نه معلومه شوه چه کله د یو مریض تپوس له انسان لاړ شی نو د هغه په تندی باندې دې لاس کیږدی (یا دې د هغه په لاس باندې لاس کیږدی) او هغه ته دې دعاء هم اوکړی، لکه چه وړاندې مستقل باب را روان دې.

د رسول الله ﷺ دعا د سعد رضی الله عنه په حق کښې قبوله شوه او هغه جوړ شو او د اسلام ئې ډیر خدمت اوکړو ﴿فمات بعد ذلک بالمدینة المنورة سنة ٥٥ هـ بعد ما فتح العراق﴾ د سعد رضی الله عنه دا حدیث په کتاب الوصایا کښې تیرشوې دې چه په هغې کښې دا وو ﴿قلت یا رسول الله ﷺ اتخلف عن هجرتی الخ﴾ هلته نور هم ډیر څه لیکلې شوې دی فتذکر. والحدیث اخرجه البخاری اتم منه، قاله المنذری

[٣١٠٥] (١) حَدَّثَنَا ابْنُ كَثِيرٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَطْعِمُوا الْجَائِعَ، وَعُودُوا الْمَرِيضَ، وَفُكُّوا الْعَانِيَ". قَالَ سُفْيَانُ: وَالْعَانِي: الْأَسِيرُ.

دابوموسی اشعری رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمایلي دي: وږوته خوراك ورکوئ اودمریض بیمار پرسی کوئ او مسلمانان قیدیان دکفارود قبیضي نه ازادرئ، سفیان ثوري وئیلی دی چه عاني اثیرته وئیلي شي.

﴿اطعموا الجائع وعودوا المریض وفکوا العانی قال سفیان: والعانی الاسیر﴾

یعنی اوږو باندې خوراک کوئ او د مریضانو تپوس کوئ، او هر څومره چه کیدې شی د قیدیانو د خلاصولو کوشش کوئ، ای المسلم المحبوس عند الکفار، وکذا المحبوس ظلما فیجب علی المسلمین انقاذه بالفدیة (بذل) د دې حدیث حواله او ذکر په کتاب الفرائض کښې هم تیر شوې دې، ﴿وافکّ عانة﴾ الحدیث د لاندې فتذکر.

## بَابُ الدُّعَاءِ لِلْمَرِيضِ عِنْدَ الْعِيَادَةِ

**دعیادت په وخت کښې د مریض دپاره دصحت دپاره د دعا غوښتلو د فضیلت بیان**

[٣١٠٦] (٢) حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ أَبُو خَالِدٍ، عَنِ الْمِنْهَالِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ عَادَ مَرِيضًا، لَمْ يَحْضُرْ أَجَلُهُ فَقَالَ عِنْدَهُ سَبْعَ مِرَارٍ: أَسْأَلُ اللَّهَ الْعَظِيمَ، رَبَّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ، أَنْ يَشْفِيَكَ، إِلَّا عَافَاهُ اللَّهُ مِنْ ذَلِكَ الْمَرَضِ".

دعبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی: څوك چه دیوداسې مریض عیادت وکړي دچاچه دمرګ نیټه نه وی پوره شوي اودهغه خواته داد عاء:

[١]: صحيح البخاري/الجهاد ١٧١ (٣٠٤٦)، النكاح ٧١ (٥١٧٤)، الأطعمة ١ (٥٣٧٣)، الطب ٤ (٥٦٤٩)، الأحكام ٢٣ (٧١٧٣)، (تحفة الأشراف: ٩٠٠١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٩٤/٤)، سنن الدارمي/السير ٢٧ (٢٥٠٨) (صحيح)

[٢]: سنن الترمذي/الطب ٣٢ (٢٠٨٣)، (تحفة الأشراف: ٥٦٢٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٣٩/١، ٢٤٣) (صحيح)

«أسأل الله العظيم رب العرش العظيم»، اوه پېرې اووائی نو الله تعالی به ئې ضرور ددغه مرض نه جوړ کړي.

**قوله:**﴿ عن ابن عباس رضي الله عنهما عن النبی ﷺ قال من عاد مریضا لم یحضر اجله الخ ﴾ کوم انسان چه د یو داسې مریض تپوس اوکړی چه لا د هغه وخت نه وی راغلې (د مرګ) هغه تپوس کونکې دې هغه سره د ناستې په وخت دا دعاء اووۀ کرته اولولی، الله پاک به هغه ته شفاء ورکوی: ﴿اسأل الله العظيم رب العرش العظيم ان يشفيك﴾ والحديث اخرجه الترمذی والنسائی، قاله المنذری

او د دې نه روستو حدیث کښې کوم چه د عبدالله بن عمرو بن العاص نه مرفوعا روایت کړې شوې دې په دې کښې د عیادت په وخت د دې دعا لوستل ذکر شوې دی ﴿ اللهم اشف عبدک ینکالک عدوا ویمشی لک الی جنازة ﴾ او په یو نسخه کښې ﴿ الی صلوة ﴾ دې. اې الله دې خپل بنده ته شفاء ورکړه دا به د صحت نه پس ستا د دشمنانو سره جهاد کوی هغوی به زخمی کوی او ستا د رضا دپاره به د جنازې سره ځی، په دې حدیث کښې لک، لک بار بار راغلې دې معلومه شوه چه د الله پاک په نزد هم هغه عمل معتبر دې کوم چه خالص د هغه دپاره وی، او د دې حدیث نه جنازو سره د تلو اهمیت معلومیږی.

[٣١٠٧]([1]) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدٍ الرَّمْلِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ حُيَيِّ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْحُبُلِيِّ، عَنِ ابْنِ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا جَاءَ الرَّجُلُ يَعُودُ مَرِيضًا، فَلْيَقُلْ: اللَّهُمَّ اشْفِ عَبْدَكَ، يَنْكَأُ لَكَ عَدُوًّا، أَوْ يَمْشِي لَكَ إِلَى جَنَازَةٍ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَالَ ابْنُ السَّرْحِ: إِلَى صَلَاةٍ.

دابن عمر رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول پاک صلي الله علیه وسلم فرمائیلی دی: کله چه څوک دچابیمار پرسی ته ورشي نوداد عاء ذي اووائی: یعنی الله دې خپل بنده ته شفا ورکړی ددې دپاره چه ستاد رضا دپاره ستادشمن زخمي کړي اوستاد خوشحالولودپاره د چادجنازې سره لاړشي

## باب في كراهية تمني الموت

### دمرګ د تمنا کولو د ممانعت بیان

[٣١٠٨]([2]) حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ هِلَالٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَدْعُوَنَّ أَحَدُكُمْ بِالْمَوْتِ لِضُرٍّ نَزَلَ بِهِ، وَلَكِنْ لِيَقُلْ: اللَّهُمَّ أَحْيِنِي مَا كَانَتِ الْحَيَاةُ خَيْرًا لِي، وَتَوَفَّنِي إِذَا كَانَتِ الْوَفَاةُ خَيْرًا لِي".

دانس بن مالك رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله فرمائیلی دی په دنیاکښې دې دتکلیف رسیدو په وجه باندې څوك دمرګ تمنا نه کوي مګر که چرې داسې کول غواړی نوبیادې داسې اووائی اې الله دڅو پورې چه زمادپاره زندګی بهتره وي ترهغې مې ژوندې

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٨٨٦٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/١٧٢) (صحيح)

[2]: سنن النسائي/الجنائز ٢ (١٨٢٢)، سنن ابن ماجه/الزهد ٣١ (٤٢٦٥)، (تحفة الأشراف: ١٠٣٧)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/المرضي ١٩ (٥٦٧٢)، والدعوات ٣٠ (٦٣٥١)، صحيح مسلم/الذكر ٤ (٢٦٨٠)، سنن الترمذي/الجنائز ٣ (٩٧١)، مسند احمد (٣/١٠١، ١٠٤، ١٦٣، ١٧١، ١٩٥، ٢٠٨، ٢٤٧، ٢٨١) (صحيح)

اوساتي اوکله چه زما دپاره مرګ بهتروي نوبيا ماته مرګ راکړي.
﴿ لا يدعون احدكم الموت لضر نزل به ﴾
يعنی انسان لره د مرګ غوښتنه بالکل نه دی کول پکارد يو دنيوی ضرر او پريشانئ د وجې نه، او که ضرر ورکول وی نو د هغې نه د بچ کيدو دپاره جائز دی كذا قال العلماء نو اوس نو بيا څه دعا کول پکار دی په داسې موقع باندې هغه په حديث کښې ذکر شوې دی ﴿ اللهم احينی ما كانت الحياة خيرا لی وتوفنی اذا كانت الوفاة خيرا لی ﴾
ژوند د مسلمان دپاره ډير لوئې نعمت دې د يو مصيبت نه ويريدو سره د خپل ځان دپاره د مرګ دعا کول د دې نعمت ناقدری ده په حديث کښې راځی چه د مسلمان دپاره خو په هر حال کښې خير دې که د مصيبت حالت وی او که د خوشحالئ، که په مصيبت کښې صبر کوی نو د هغه دپاره اجر دې، او که د خوشحالئ په حالت کښې شکر کوی نو بيا هم د هغه دپاره اجر دې د انسان هم دا دوه حالتونه وی نو ګويا د هغه دپاره په هر حال کښې نفع او فائده ده. الحمد لله الذی هدانا وجعلنا من المسلمين..... والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری

[٣١٠٩] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَتَمَنَّيَنَّ أَحَدُكُمُ الْمَوْتَ"، فَذَكَرَ مِثْلَهُ.

دمالك بن انس نه په بل سند سره دتير روايت په شان روايت منقول دې.

## بَابُ مَوْتِ الْفَجْأَةِ

### د ناڅاپی مرګ بيان

په فجاءة کښې دوه لغات دی بضم الفاء والمد، او بفتح الفاء واسكان الجيم بلا مد.

[٣١١٠] (٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ تَمِيمِ بْنِ سَلَمَةَ، أَوْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ، عَنْ عُبَيْدِ بْنِ خَالِدٍ السُّلَمِيِّ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ مَرَّةً عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ قَالَ مَرَّةً عَنْ عُبَيْدٍ، قَالَ: "مَوْتُ الْفَجْأَةِ أَخْذَةُ أَسِفٍ".

دعبيد بن خالد سلمی (صحابي) نه روايت دې چه فرمائيل ئې اويوځل ئې اوفرمائيل چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی او بل ځل ئې اووئيل چه عبيد وئيلی دی چه چاته ناڅاپي مرګ راتلل دالله دغضب علامه ده.

﴿ موت الفجاءة اخذة اسف ﴾ اسف کښې د سين فتحه او کسره دواړه لوستلې شی، په رومبی صورت کښې د دې معنی د غضب ده او په دويم صورت کښې د صفت صيغه ده په معنی د غضبان، يعنی فجائی مرګ يعنی ناڅاپی مرګ د الله پاک د غصې نيول دی يا غضبان نيول دی، خو دا د کافر په حق کښې ده، او د مومن په حق کښې داسې نه ده بلکه رحمت دې ځکه چه کامل مومن هميشه د آخرت دپاره تيار او مستعد وی. (بذل) وفی

[1]: تفرد به أبو داود، وانظر ما قبله (تحفة الأشراف: ١٢٧٤) (صحيح)
[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٩٧٤٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٢٤/٣، ٢١٩/٤) (صحيح)

الهامش البذل..... وورد ایضا موت الفجاءة راحة المومن، وقد توفی فجاءة ابراهیم وداؤد وسلیمان علی نبینا وعلیهم الصلوة والسلام. (تفریح الاذکیاء فی تاریخ الانبیاء)

## باب فِي فَضْلِ مَنْ مَاتَ فِي الطَّاعُونِ

### دهغه کس فضیلت چه په طاعون مرض کښې مړشي

[٣١١١](1) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَابِرِ بْنِ عَتِيكٍ، عَنْ عَتِيكِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ عَتِيكٍ وَهُوَ جَدُّ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ أَبُو أُمِّهِ، أَنَّهُ أَخْبَرَهُ، أَنَّ عَمَّهُ جَابِرَ بْنَ عَتِيكٍ أَخْبَرَهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاءَ يَعُودُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ ثَابِتٍ، فَوَجَدَهُ قَدْ غُلِبَ، فَصَاحَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمْ يُجِبْهُ، فَاسْتَرْجَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ: "غُلِبْنَا عَلَيْكَ يَا أَبَا الرَّبِيعِ، فَصَاحَ النِّسْوَةُ وَبَكَيْنَ، فَجَعَلَ ابْنُ عَتِيكٍ يُسَكِّتُهُنَّ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: دَعْهُنَّ، فَإِذَا وَجَبَ فَلَا تَبْكِيَنَّ بَاكِيَةٌ، قَالُوا: وَمَا الْوُجُوبُ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: الْمَوْتُ، قَالَتِ ابْنَتُهُ: وَاللَّهِ إِنْ كُنْتُ لَأَرْجُو أَنْ تَكُونَ شَهِيدًا، فَإِنَّكَ كُنْتَ قَدْ قَضَيْتَ جِهَازَكَ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ قَدْ أَوْقَعَ أَجْرَهُ عَلَى قَدْرِ نِيَّتِهِ، وَمَا تَعُدُّونَ الشَّهَادَةَ؟ قَالُوا: الْقَتْلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الشَّهَادَةُ سَبْعٌ سِوَى الْقَتْلِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ: الْمَطْعُونُ شَهِيدٌ، وَالْغَرِقُ شَهِيدٌ، وَصَاحِبُ ذَاتِ الْجَنْبِ شَهِيدٌ، وَالْمَبْطُونُ شَهِيدٌ، وَصَاحِبُ الْحَرِيقِ شَهِيدٌ، وَالَّذِي يَمُوتُ تَحْتَ الْهَدْمِ شَهِيدٌ، وَالْمَرْأَةُ تَمُوتُ بِجُمْعٍ شَهِيدٌ".

دجابر بن عتیك دترور نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ دعبدالله بن ثابت بیمار پرسی ته راغې نوپه بې هوشۍ کښې ئې اولیدو نبی ﷺ ورته په چغه آواز وکړو هغه هیڅ جواب ورنکړو نونبی ﷺ «إنا لله وإنا إليه راجعون» اوویئیل اووئې فرمائیل مونږ ستا متعلق مغلوب شو مونږ خو غوښتل چه ته روغ شې مګردالله تقدیر زمونږ په اراده باندې غالب شوښځو چه دا واوریدل نوپه چغوشوې اوجړانې شروع کړه نوابن عتیك شروع شو چه چپ کولې یې نبی ﷺ اوفرمائیل دوی پریږده کله چه واجب شي نوڅوك دې نه جاړې خلقو عرض اوکړو اې دالله رسوله واجب کیدونه څه مراد دې؟ نبی ﷺ اوفرمائیل چه مرګ واجب شي، دده لور خپل پلار عبدالله بن ثابت ته اوویئیل په الله قسم مونږ په دې پوهیږو چه ته شهید ئې ځکه چه تادجهاد دپاره أسباب تیارکړي وو نبی ﷺ اوفرمائیل الله تعالی هرچاته دهغه دنیت موافق ثواب ورکوي اوعذاب دنیت موافق نه ورکوي ترڅوچه ګناه بالفعل ونکړي، خو بیا هم دالله نه دبخشش امید دې زمونږه مالك رحیم کریم دې نبی ﷺ اوفرمائیل تاسو شهید چاته وایئ؟ هغوی اوویئیل شهید هغه څوك دې څوك چه دالله په لار کښې په جهاد کښې د کافرانو دلاس نه مړشي نبی ﷺ اوفرمائیل دالله په لار کښې د قتل کیدونه علاوه اوه قسمه شهادتونه نور هم شته دې یوهغه کس شهید دې څوك چه په طاعون مړ شي بل هغوڅوك دې چه په اوبو کښې ډوب شي اومړشي او څوك چه دذات الجنب په مرض مړ شي هغه شهید دې څوك چه دخیټې دبیمارۍ په وجه (هیضه)مړ شي شهید دې څوك چه په آور وسوزي هغه شهد دې څوك چه ددیوال نه لاندې شي او مړ شي

(1): سنن النسائي/الجنائز ١٤ (١٨٤٧)، الجهاد ٤٨ (٣١٩٦)، سنن ابن ماجه/الجهاد ١٧ (٢٨٠٣)، (تحفة الأشراف: ٣١٧٣)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الجنائز ١٢ (٣٦)، مسند احمد (٤٤٦/٥) (صحيح)

هغه شهید دي اوکومه ښځه چه په اولاد پیدا کیدو کښې مړه شي هغه شهیده ده.

﴿ان رسول اللهﷺ جاء یعود عبدالله بن ثابت رضی الله عنه فوجده قد غلب الخ﴾

**مضمون د حدیث:**

یعني رسول اللهﷺ د عبدالله بن ثابت رضی الله عنه د تپوس دپاره تشریف یوړو، چه کله هغوی هلته اورسیدل نو وې کتل چه هغوی بیهوشه شوي دی، رسول اللهﷺ هغوی ته آواز اوکړو نو هغه په دې باندې هیڅ هم او نه وئیل، رسول اللهﷺ ﴿انا لله﴾ اوئیل او وې فرمائیل چه مونږ ستا په باره کښې مغلوب شو، یعني قضاء او قدر غالب شو او د وفات وخت رانژدې شو، کومې زنانه چه په دې کور کښې وې هغوی چغې او فریاد شروع کړو، جابر بن عتیک رضی الله عنه هغوی خاموش کولې، رسول اللهﷺ هغه ته اوفرمائیل پریږده دا زنانه یعني ژړا ته ئې پریږده، خو چه کله وفات شي نو بیا به هیڅوک نه ژاړئ، د دې نه پس په روایت کښې دی چه د هغوی لور په افسوس سره اوئیل چه والله مونږ خو دا امید لرلو چه ته به شهید کیږې ځکه چه تاسو د جهاد اسباب تیار کړي وو په دې باندې رسول اللهﷺ اوفرمائیل ﴿ان الله قد اوقع اجره علی قدر نیته﴾ یعني الله پاک هغه ته د هغه اجر ورکړي دي د هغه د نیت او ارادې مطابق ﴿وما تعدو الشهادة؟﴾ او رسول اللهﷺ تپوس اوکړو چه تاسو شهادت څه څیز ګڼړئ؟ هغوی جواب ورکړو د الله پاک په لاره کښې قتل کیدل، په دې باندې رسول اللهﷺ اوفرمائیل اسباب د شهادت د دې نه علاوه اووه نور دی ﴿المطعون شهید، والغرق شهید وصاحب ذات الجنب شهید، المبطون شهید، وصاحب الحریق شهید والذی یموت تحت الهدم شهید والمراة تموت بجمع شهید﴾

**د شهادت د اسباب سبعه تشریح:**

مطعون یعني څوک چه د طاعون په مرض باندې هلاک شي، ذات الجنب یو مشهوره بیماري ده چه د هغې دوه قسمونه دی یو حقیقي او بل عرفي، حقیقي خو ډیر خطرناک مرض دې چه په هغې کښې په پختو کښې دننه ورم او زخم پیدا شي او توخې او تبه د هغې سره لازم وی، او په دویم قسم باندې ځان داسې پوهه کړئ چه کوم بادي درد وی هغې ته وائی، ترمذي په کتاب الطب کښې د دې ډیر په کثرت سره ذکر کړې دې او هم دغه شان د رسول اللهﷺ په مرض الوفات کښې د لدود ذکر کوم چه د رسول اللهﷺ د کور خلقو رسول اللهﷺ لره د ذات الجنب مریض ګڼړلو سره کړې وو او د مبطون نه مراد چه د خیټې په مرض کښې مړ شي یعني استطلاق البطن (د دستونو مرض) (بذل)، وفی العون: ای اسهال واستسقاء او وجع بطن، وصاحب الحریق یعني چه په اور کښې سوزیدو سره مړ شي، تحت الهدم یعني د دیوال د لاندې، قال القاری الهدم بفتح الدال ویسکن... ﴿والمراة تموت بجمع﴾ بضم الجیم ویکسر سکون المیم قاله القاری، قال الخطابی معناه ان تموت وفی بطنها ولد اهـ وقال فی النهایة ای تموت وفی بطنها ولد وقیل التی تموت بکرا، والجمع بالضم بمعنی المجموع، کالذخر بمعنی المذخور، وکسر الکسائی الجیم والمعنی انها ماتت مع شیئ مجموع فیها غیر منفصل عنها من

حمل او بکارة آهـ قال النووی ضم جیمه اشهره الثلاثة (بذل، عون) یعنی هغه زنانه چه د حمل په حالت کښې مړه شی یا د وادهٔ نه مخکښې په پیغلتوب کښې مړه شی، یا په حالت نفاس کښې د ماشوم د پیدائش نه پس مړه شی لکه چه وراندې د مسند احمد په روایت کښې را روان دی او یو قول په هغې کښې دا دې چه د چا وفات په مزدلفه کښې اوشی (ځکه چه د مزدلفې دویم نوم جمع هم دې) وهو خطاء ظاهر کذا فی هامش البذل.

دا حدیث په مختلفو الفاظو او سیاق سره وارد شوې دې، د مسند احمد په یو روایت کښې دی، ﴿ ان فی القتل شهادة وفی الطاعون شهادة وفی البطن شهادة وفی الغرق شهادة وفی النفساء یقتلها ولدها جمعها شهادة ﴾

## د اسباب الشهادة تعداد:

په دې حدیث کښې د اسباب شهادت ذکر دې او دا چه هغه اووهٔ دی، امام مالک رحمه الله په موطاء کښې عنوان قائم کړې دې، ﴿ الشهدآء فی سبیل الله ﴾ حضرت شیخ رحمه الله په اوجز ٧٠/٤ کښې د هغې د لاندې لیکلې دی: وتقدم فی ابواب الجنائز ان اسباب الشهادة الواردة فی الاحادیث ترتقی الی قریب من الستین وتقدم ذکرها ([1]) ومع ذلک فالشهید الحقیقی هو قتیل المعرکة

---

[1] باب الشهادة بالتفصيل: ففيه تحت حديث جابر بن عتيك رضي الله عنه، فالمذكور في حديث جابر رضي الله عنه هذا ثمانية انواع مع الشهادة الحقيقية ولخص الزرقاني تبعا لشراح البخاري وغيرها الروايات التي اطلق فيها اسم الشهادة فزاد علي هذه الثمانية، الميت علي فراشه في سبيل الله، وصاحب السل بكسر المهملة وتشديد اللام، ومن قتل دون ماله، او دينه، او دمه، او اهله، او دون مظلمته، ومن وقصه فرسه، او بعيره في سبيل الله، او لدغته هامة او مات علي فراشه علي اي حتف شاء الله كما في رواية ابي مالك الاشعري مرفوعا عند ابي داؤد والحاكم والطبراني، وموت الغريب والشريق والذي يفترسه السبع، والخار عن دابته، والمائد في البحر الذي يصيبه القي له اجر شهيد ومن طلب الشهادة بنيته صادقة يكتب شهيدا، ومن تردي من رؤس الجبال، وفي رواية البخاري من حديث عائشة رضي الله عنها ليس من احد يقع الطاعون فيمكث في بلده صابرا محتسبا يعلم انه لا يصيبه الا ما كتب الله له الا كان له مثل اجر شهيد. فهذه سبع وعشرون خصلة سوي القتل في سبيل الله، ذكر الحافظ ان طرقها جيدة، وانه وردت خصال اخري في احاديث لم اعرج عليها الضعفاء آهـ زاد الزرقاني صاحب الحمي، والميت في السجن، وقد حبس ظلما. والميت عشقا، او طالبا للعلم، وزاد العيني من حبسه السلطان الظالم، او ضربه فمات فهو شهيد، والمرابط يموت في فراشه وحكي عن ابن العربي، وصاحب النظرة وهو المعين والغريب شهيدان، قال وحديثهما حسن، ومن مات مريضا مات شهيدا، والنفساء ومن احتسب نفسه علي الله، ومن عشق وعف وكتم ومات، مات شهيدا، وعند الترمذي، وقال حسن غريب. من قال حين يصبح ثلاث مرات اعوذ بالله السميع العليم من الشيطان الرجيم وقراء ثلاث آيات من اخر سورة الحشر فان مات من يومه مات شهيدا، وعنده غيره من قراء آخر سورة الحشر فمات من ليلته مات شهيدا، وعند الأجري يا انس ان استطعت ان تكون ابدا علي وضوء فافعل فان ملك الموت اذا قبض روح العبد وهو علي وضوء كتب له شهادة، وعن ابن عمر من صلي الضحي وصام ثلثة ايام من كل شهر ولم يترك الوتر كتب له اجر شهيد، وورد من مات يوم الجمعة او ليلة الجمعة اجير من عذاب القبر وجاء يوم القيامة وعليه طابع الشهدآء، قال ابونعيم غريب من حديث جابر، ومن خرج به خراج في سبيل الله كان عليه طابع الشهداء وزاد القاري عن ابواب السعادة علي بعض المذكورين صاحب السل اي الدق، والمسافر، والمرعوب علي فراشه في سبيل الله، وعن ابي عبيدة بن الجراح رضي الله عنه قلت يا رسول الله صلى الله عليه وسلم اي الشهداء اكرم علي الله؟ قال: رجل قام الي امام جائر فامره بمعروف ونهاه عن منكر فقتله، وعن ابن مسعود رضي الله عنه مرفوعا ان الله كتب الغيرة علي النسآء والجهاد علي الرجال فمن صبر منهن كان لها اجر شهيد، وورد من قال في كل يوم خمسا وعشرين مرة اللهم بارك لي في الموت وفيما بعد الموت ثم مات علي فراشه اعطاه الله تعالي اجر شهيد، ومنها المتمسك بالسنة عند فساد الامة، والموذن المحتسب، ومن عاش مداريا، ومن جلب طعاما الي المسلمين، ومن سعي علي امرأته وولده، وما ملكت يمينه، وغير ذلك مما يطول ذكره، فكل من كثر اسباب شهادة زيد له في ..........لـه

او من قتله اهل البغي او اهل الحرب او قطاع الطريق ونحو ذلک، وتقدم حکمه في الجنائز من اله لا يغسل ويدفن بدمه، واختلف في وجه تسمية الشهيد شهيدا على اقوال تقدم ذکرها في باب العتمة والصبح وبسطها النووي في شرح مسلم آهـ د علامه سيوطي رحمه الله هم په دې کښې مستقل يو تاليف دې، ابواب السعادة في ابواب الشهادة..... چه په هغې کښې هغوی اسباب د شهادة اويا ته رسولې دی. والحديث اخرجه النسائي وابن ماجة، قاله المنذري

## بَابُ الْمَرِيضِ يُؤْخَذُ مِنْ أَظْفَارِهِ وَعَانَتِهِ

### د قريب الموت دپاره د نوکانو کټ کولو او د ترخ د ويختو صفا کولو بيان

يعنی مريض ته پکار دی چه د خپلو بريتو او د نامه نه لاندې ويښتو خيال ساتی.

[٣١١٢]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، أَخْبَرَنَا ابْنُ شِهَابٍ، أَخْبَرَنِي عُمَرُ بْنُ جَارِيَةَ الثَّقَفِيُّ حَلِيفُ بَنِي زُهْرَةَ وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: ابْتَاعَ بَنُو الْحَارِثِ بْنِ عَامِرِ بْنِ نَوْفَلٍ خُبَيْبًا، وَكَانَ خُبَيْبٌ هُوَ قَتَلَ الْحَارِثَ بْنَ عَامِرٍ يَوْمَ بَدْرٍ، فَلَبِثَ خُبَيْبٌ عِنْدَهُمْ أَسِيرًا. حَتَّى أَجْمَعُوا لِقَتْلِهِ، فَاسْتَعَارَ مِنِ ابْنَةِ الْحَارِثِ مُوسَى يَسْتَحِدُّ بِهَا، فَأَعَارَتْهُ، فَدَرَجَ بُنَيٌّ لَهَا وَهِيَ غَافِلَةٌ. حَتَّى أَتَتْهُ، فَوَجَدَتْهُ مُخْلِيًا وَهُوَ عَلَى فَخِذِهِ، وَالْمُوسَى بِيَدِهِ، فَفَزِعَتْ فَزْعَةً عَرَفَهَا فِيهَا، فَقَالَ: أَتَخْشَيْنَ أَنْ أَقْتُلَهُ؟ مَا كُنْتُ لِأَفْعَلَ ذَلِكَ. قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى هَذِهِ الْقِصَّةَ شُعَيْبُ بْنُ أَبِي حَمْزَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عِيَاضٍ، أَنَّ ابْنَةَ الْحَارِثِ أَخْبَرَتْهُ، أَنَّهُمْ حِينَ اجْتَمَعُوا يَعْنِي لِقَتْلِهِ اسْتَعَارَ مِنْهَا مُوسَى يَسْتَحِدُّ بِهَا، فَأَعَارَتْهُ.

دابوهريرة رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه بنوحارث بن عامر بن نوفل خبيبه په سلو اوښانو باندې واخستو، ددې دپاره چه دپلار په بدل کښې ئې قتل کړي اوخبيبن حارث بن عامر د بدر په ورځ قتل کړي وو اوخبيب نه ددوی سره په قيد کښې يوه موده تيره کړه، تردې چه هغوی دده د قتل دپاره راجمع شول نوخبيب دحارث دلورنه چاره وغوښتله دصفايي دپاره نوهغې ورته ورکړه په دې وخت کښې ددوی يوماشوم دخبيب رضي الله عنه خواته ورغې اومورنې غافله وه اود خبيب په پتون باندې ناست وو اونورخوك ورسره نه وو او چاړه ئې په لاس کښې وه نود ماشوم مور ويريدله نوخبيبه دهغې په ويريدلو باندې پوه شو نوورته ئې ووئيل اياته په دې ويريږې زه به دا ماشوم قتل کړم زه هيڅکله داسې نه کوم

﴿ وعن ابي هريرة رضي الله عنه قال ابتاع بنو الحارث بن عامر بن نوفل خبيبا الخ ﴾

### د خبيب بن عدی رضي الله عنه د قتل قصه :

په دې باب کښې مصنف رحمه الله د خبيب بن عدی رضي الله عنه د قتل قصه ذکر کړې ده، دا قصه په

---

٦......فتح ابواب سعادته آهـ قلت : وزاد ابن عابدين : من قال في مرضه اربعين مرة لا اله الا انت سبحانك اني كنت من الظالمين فمات، و من يقراء كل ليلة سورة ياسين ومن بات علي طهارة فمات ومن صلي علي النبي صلى الله عليه وسلم مائة مرة، وسئل الحسن عن رجل اغتسل بالثلج فاصابه البرد فمات فقال يالها من شهادة، وهذا كما رايت ترتقي الشهداء الي قريب من ستين، وذكر صاحب مظاهر حق، بعض انواع اخر، وكذا في كنز العمال وفيه قال العيني، وفي التوضيح : الشهداء ثلاثة اقسام، شهيد في الدنيا والآخرة وهو المقتول في حرب الكفار بسبب من الاسباب، وشهيد في الآخرة دون احكام الدنيا، وهم من ذكروا آنفا، وشهيد في الدنيا دون الآخرة وهو من غل في الغنيمة ومن قتل مدبرا او ما في معناه .آهـ

١): انظر حديث رقم : (٢٦٦٠)، (تحفة الأشراف: ١٤٢٧١) (صحيح)

کتاب الجهاد کښې په ﴿باب فی الرجل یستاسر﴾ کښې په تفصيل سره تیره شوې ده هغه دې اوکتلې شی، خبیب رضی الله عنه د خپل قتل د واقعې نه مخکښې ډیر په اطمینان سره د قاتلینو نه چاړهٔ طلب کړې وه او د نامه نه لاندې ویښته ئې صفا کړې وو، لکه چه په حدیث الباب کښې ذکر دی. والحديث اخرجه البخاری والنسائی مطولا. قاله المنذری

## باب مَا يُسْتَحَبُّ مِنْ حُسْنِ الظَّنِّ بِاللَّهِ عِنْدَ الْمَوْتِ

### د مرګ په وخت کښې په الله تعالی باندې دښه ګمان کولو دفضیلت بیان

[٣١١٣](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ أَبِي سُفْيَانَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ قَبْلَ مَوْتِهِ بِثَلَاثٍ: قَالَ: "لَا يَمُوتُ أَحَدُكُمْ، إِلَّا وَهُوَ يُحْسِنُ الظَّنَّ بِاللَّهِ".

دجابر بن عبدالله رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ته مې اوریدلی دی چه فرمائیلې یسې رو دخپل وفات کیدونه درې ورځې مخکښې مړ دې نه شی په تاسوکښې یوکس مګرپه داسې حال کښې چه په الله باندې ښه ګمان کونکې وې

﴿عن جابر بن عبدالله رضی الله عنه قال سمعت رسول الله ﷺ یقول قبل موته بثلاث لا یموت احدکم الا وهو یحسن الظن بالله﴾

### شرح الحدیث :

یعنی رسول الله ﷺ د خپل وفات نه درې ورځې مخکښې دا اوفرمائیل چه د مرګ په وخت انسان لره خاص طور سره د الله پاک سره نیک ګمان پکار دې، یعنی دا خیال دې کوی چه ان شاء الله، الله پاک به په هغه باندې رحم فرمائی او د الله پاک نه دې د بخښنې امید ساتی، او په دې وخت مریض له دا هم پکار دی چه په دې آیتونو او احادیثو کښې غور او تدبر اوکړی کوم چه د الله پاک د کرم او عفو او رحمت په باره کښې دې ـــــــ کما قال الله تعالی فی الحدیث الصحیح القدسی انا عند ظن عبدی بی، قال النووی هذا هو الصواب فی معناه وقاله جمهورهم، وشذ الخطابی وذکر معه تاویلات اخر الخ (بذل) د خطابی رائې په دې کښې دا ده چه د حسن ظن نه مراد حسن عمل دې ځکه په الله پاک باندې حسن ظن بغیر د حسن عمل نه نهٔ حاصلیږی، امام نووی رحمه الله دا رد کړې دې لکه چه اوس تیرشو، پس صحیح هم داده چه په داسې وخت کښې حاضرینو اوپوښتنه کونکو لره پکاردی چه په کومو آیتونوکښې د رحمت اوبخښنې ذکردې،هغه دهغه مخې ته اولولی، بلکه دا چه هغه ته خپل نیک اعمال هم وریاد کړې شی، په الله پاک باندې د ښه ګمان پیدا کیدو دپاره هم دا آسان صورت دې، ﴿رزقنا الله حسن الظن به تعالی فی هذا الوقت﴾.

والحديث اخرجه مسلم وابن ماجة، قاله المنذری

---

(١): صحيح مسلم/الجنة وصفة نعيمها ١٩ (٢٨٧٧)، سنن ابن ماجه/الزهد ١٤ (٤١٦٧)، (تحفة الأشراف: ٢٢٩٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣١٥، ٣٢٥، ٣٣٠، ٣٣٤، ٣٩٠) (صحيح)

## بَابُ مَا يُسْتَحَبُّ مِنْ تَطْهِيرِ ثِيَابِ الْمَيِّتِ عِنْدَ الْمَوْتِ

### د مرګ په وخت کښې د پاکو جامو اغوستلو د فضیلت بیان

یعنی غوره دا ده چه د وفات په وخت د انسان جامې پاکې وی.

### د حضرت الشیخ او والد صاحب حال د وفات په وخت :

زمونږ د شیخ نور الله مرقده چه په کومه ورځ وفات اوشو ، وفات خو ئې د ماز یګر نه روستو شوې وو د وفات په ورځ سحر هغوی د خپل خادم نه د معمول خلاف دا تپوس اوکړو: ابو الحسن زما بستره پاکه ده؟ هغه اووې اوجی پاکه ده، بیا ئې په دویم وخت کښې هم یو ځل دا سوال اوفرمائیلو، او زما والد نور الله مرقده چه هغوی تر آخره پورې د طهارت او پاکوالی ډیر اهتمام کولو، پس په استنجاء کښې به ئې اول استنجاء بالحجر او د دې نه پس استنجاء بالمآء په خپل اختیار او اهتمام سره کوله، تقریبا د (۸۸) اته اتیا کالو په عمر کښې وفات شو، یو شپه او نیمه ورځ ئې د غفلت په حالت کښې تیره شوه، د دې نه مخکښې به ئې په خپل لاس سره اودس او استنجاء وغیره کوله، د وفات نه پس چه کله د بسترې نه مړې اوچت کړې شو نو ما قصدا اوکتل چه د بسترې څه حال دې ځکه چه تقریبا ځلیرشت ګنټې د غفلت په حالت کښې تیرې شوې وې. چه اومې کتل نو بستره بالکل صفا وه پکښې هیڅ قسم نخښه نه وه، تموتون کما تحیون، وتحشرون کما تموتون الحدیث.

| |
|---|
| [٣١١٤](١) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ، أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، عَنِ ابْنِ الْهَادِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّهُ لَمَّا حَضَرَهُ الْمَوْتُ دَعَا بِثِيَابٍ جُدُدٍ، فَلَبِسَهَا، ثُمَّ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "إِنَّ الْمَيِّتَ يُبْعَثُ فِي ثِيَابِهِ الَّتِي يَمُوتُ فِيهَا". |

دابوسلمه رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه کله دابوسعید خدري په دوفات کیدو وخت راغې نو نوې جامې ئې اوغوښتلې او وائې غوستلې اوبیا ئې اووئیل ماد نبی علیه السلام نه اوریدلي وو چه فرمائیل ئې چه مړ به په هغه جامو کښې پورته کولې شی په کومو کپړو کښې چه مړ شوې وي.

﴿ عن ابی سعید الخدری رضي الله عنه انه لما حضره الموت دعا بثیاب جدد فلبسها... المیت یبعث فی ثیابه التی یموت فیها ﴾

د ابوسعید خدری رضي الله عنه د وفات وخت چه کله نزدې شو نو هغوی نوې جامې راوغوښتلې او هغه ئې واغوستلې او وې فرمائیل چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلې دی چه مړې به د قبر نه هم په هغه جامو کښې اوچتولې شی په کومو جامو کښې چه هغه مرې.

### د دوه احادیثو ترمینځه تطبیق :

دلته یو مشهور اشکال دا کولې شی چه دا حدیث د هغه حدیث خلاف دې چه په هغې کښې دا دی ﴿ یحشر الناس حفاة عراة ﴾ د دې یو جواب خو دا ورکړې شوې دې چه په دې کښې په یو حدیث کښې خو د بعث ذکر دې او په دویم کښې د حشر، او دا دواړه ځانله ځانله څیزونه دی. بعث خو وائی د قبر نه پاسیدو ته او حشر وائی په میدان حشر کښې جمع کیدو ته، او

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٤٢٨) (صحیح)

په دې دواړو وختونو کښې به کافی فاصله وی، ځکه چه دا به ډیره اوږده ورځ وی، د زرو کالو برابر او یو جواب دا ورکړې شوې دې چه په حدیث الباب کښې د ثیاب نه مراد اعمال دی چه انسان خپلو اعمالو لره اوچتولو سره د قبر نه پاسی که هغه هر څنګه وی، خو دې صحابیﷺ په دې حدیث کښې ثیاب لره په ظاهری معنی باندې حمل کړې دې نو په دې دواړو احادیثو کښې هیڅ تعارض نشته، هم دا دویم جواب راجح دې، هم دغه شان وئیلې شوې دی چه آیت کریمه، ﴿وثیابک فطهر﴾ کښې د ثیاب نه مراد اعمال دی، او علامه قرطبیﷺ فرمائی (فی التذکرة فی احوال الموتی وامور الاخرة) چه کیدې شی چه حشر فی الاکفان د شهداء کرامو سره خاص وی (عون) وفی هامش البذل وخصه فی الفتاوی الحدیثیة ۱۳۳ بالشهید.

په جامع ترمذی کښې دی: قال ابن المبارک احب الی ان یکفن فی ثیابه التی کان یصلی فیها، او د دې شرح په تحفة الاحوذی کښې ده په حواله د فتح الباری چه صدیق اکبرﷺ فرمائیلې وو چه زما تکفین زما په دې دواړو کپړو کښې اوکړئ په کومو کښې چه زه مونځ کوم، او په تذکرة الحفاظ کښې دا نقل کړې شوې دی امام زهریﷺ فرمائی چه د سعد بن ابی وقاصﷺ چه کله وخت نزدې راغلو نو هغوی خپله پخوانئ د وړئ جبه راوغوښتله او وې فرمائیل چه ما هم په دې کښې کفن کړئ ځکه چه په جنګ بدر کښې ما دا اغوستلې وه او ما دا هم د دې وخت دپاره پټه کړې وه، او خپله د رسول اللهﷺ د کفن په باره کښې وړاندې د ابن عباسﷺ په حدیث کښې را روان دی چه هغوی ته په درې کپړو کښې کفن ورکړې شو چه په هغې کښې یو د هغوی هغه قمیص وو په کوم کښې چه د رسول اللهﷺ وفات اوشو، فی ثلاثة اثواب نجرانیة، الحلة ثوبان، وقمیصه الذی مات فیه... خو د رسول اللهﷺ په باره کښې په روایاتو کښې اختلاف دې.

## بَابُ مَا يُسْتَحَبُّ أَنْ يُقَالَ عِنْدَ الْمَيِّتِ مِنَ الْكَلَامِ

**د مړکیدو نکی کس په وړاندې کوم قسم خبرې کول پکار دی؟**

[۳۱۱۵] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا حَضَرْتُمُ الْمَيِّتَ، فَقُولُوا خَيْرًا، فَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ يُؤَمِّنُونَ عَلَى مَا تَقُولُونَ، فَلَمَّا مَاتَ أَبُو سَلَمَةَ، قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا أَقُولُ؟ قَالَ: قُولِي: اللَّهُمَّ اغْفِرْ لَهُ، وَأَعْقِبْنَا عُقْبَى صَالِحَةً". قَالَتْ: فَأَعْقَبَنِي اللَّهُ تَعَالَى بِهِ مُحَمَّدًا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دام المومنین ام سلمهﷺ نه روایت دې فرمائی چه نبیﷺ فرمائیلی دی کله چه تاسو ته مرګ راشي نوبیا خبرې کوئ ځکه چه فرښتې امین وائی په هغه خبرو کوې چه تاسو کوئ کله چه ابوسلمه مړ شو ما عرض اوکړو اې دالله رسوله زه څه اووایم؟ نبیﷺ اوفرمائیل داسې وایه: یعنی اې الله بخښنه ورته وکړې او مونږ ته دده نه بهتر عوض راکړې، ام سلمه وائی دهغه په عرض کښې الله تعالی ماته نبیﷺ را کړو

[1] ): صحیح مسلم/الجنائز ۳ (۹۱۹)، سنن الترمذي/الجنائز ۷ (۹۷۷)، سنن النسائي/الجنائز ۳ (۱۸۲٤)، سنن ابن ماجه/الجنائز ٤ (۱٤٤۷)، ۵۵ (۱۵۹۸)، (تحفة الأشراف: ۱۸۱۶۲، ۱۸۲٤۷)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الجنائز ۱٤ (٤۲)، مسند احمد (۲۹۱/٦، ۳۰٦) (صحیح)

## شرح الحدیث :

قوله:﴿ عن ام سلمة ﵂ قالت قال رسول الله ﷺ ﴾:ام سلمة ﵂ د رسول الله ﷺ ارشاد نقل کوی چه کله تاسو د یو مړی کور ته لاړ شئ نو هلته تلو سره ښه خبره د خولې نه اوباسئ، ځکه چه هغه وخت هلته ملائک موجود وی او تاسو چه څه وایئ په هغې باندې هغوی آمین وائی، لهذا هلته تلو سره ډیر په احتیاط خبره کول پکار دی، هغه فرمائی چه کله زما د وراندې خاوند ابوسلمة ﵁ وفات اوشو نو ما رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ اوس زه څه اولولم؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل دا اولوله ﴿ اللهم اغفر له واعقبنا عقبی صالحة ﴾ (ای الله هغه ته بخښنه اوکړه او ماته دهغه نعم البدل راکړه) هغه فرمائی چه الله پاک ماته دهغې نعم البدل رسول الله ﷺ راکړو.

دا حدیث په صحیح مسلم کښې هم دې، د هغې سیاق د دې نه لږ شان مختلف دې او په هغې کښې لږ زیادت هم دې،

ولفظه : سمعت رسول الله ﷺ يقول : ما من مسلم تصيبه مصيبة فيقول ما امره انا لله وانا اليه راجعون اللهم اجرنى فى مصيبتى واخلف لى خيرا منها، الا اخلف الله له خيرا منها، قالت فلمامات ابوسلمة قلت اى المسلمين خير من ابى سلمة، اول بيت هاجر الى رسول الله ﷺ ثم انى قلتها، په دې روایت کښې د رسول الله ﷺ هغې ته د نکاح د پیغام لیږلو ذکر دې.

یعنی هغه داسې فرمائی چه کله رسول الله ﷺ ما ته د وئیلو دپاره داسې اوفرمائیل نو ما به دا سوچ کولو چه د هغوی نه به غوره څوک وی، خو بیا هم ما دا دعا لوستله د دې روایت څه حصه په باب فی الاسترجاع کښې هم را روانه ده.

والحديث اخرجه مسلم والترمذى والنسائى وابن ماجة، قاله المنذرى

## بَابٌ فِي التَّلْقِينِ

### مړ کیدونکی ته د تلقین بیان

تلقین د جمهورو په نزد مستحب دې او د تلقین نه مراد دا دې چه هغه سره کینی، کلمه اووئیلې شی دا نه چه هغه ته د وئیلو دپاره اووئیلې شی، خو د مړی دې طرف ته د متوجه کولو دپاره دا هم وئیلې کیدې شی چه نزدې خلق خپل مینځ کښې داسې اوائی چه د الله پاک نوم مبارک دې راځئ چه مونږ ټول د الله پاک ذکر اوکړو، او د حدیث د ظاهر تقاضا د تلقین وجوب دې پس یو جماعت د وجوب قائل دې، بلکه بعض مالکیانو خو په وجوب باندې اتفاق نقل کړې دې. (بذل عن القارى) وفى الدر المختار : يلقن ندبا وقيل وجوبا بذكر الشهادتين عنده من غير امره بها، ولا يلقن بعد تلحيده وان فعل لا ينهى عنه، وفى الجوهرة انه مشروع عند اهل السنة (هامش البذل) یعنی تلقین بعد الدفن اګر چه د احنافو په نزد مستحب نه دې خو که څوک ئې اوکړی نو هغه دې منع نه کړې شی.

[٣١١٦] (١) حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ عَبْدِ الْوَاحِدِ الْمِسْمَعِيُّ، حَدَّثَنَا الضَّحَّاكُ بْنُ مَخْلَدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْحَمِيدِ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنِي صَالِحُ بْنُ أَبِي عَرِيبٍ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ مُرَّةَ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ كَانَ آخِرُ كَلَامِهِ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، دَخَلَ الْجَنَّةَ".

دمعاذ بن جبل رضی الله عنه نه روايت دي فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دی دچا اخرنئ خبره چه «لا إله إلا الله» وي نوجنت ته به داخل شي.

[٣١١٧] (٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا بِشْرٌ، حَدَّثَنَا عُمَارَةُ بْنُ غَزِيَّةَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ عُمَارَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَقِّنُوا مَوْتَاكُمْ قَوْلَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ".

دابوسعيد خدری رضی الله عنه نه روايت دي فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دی خپلو مړوته د «لا إله إلا الله» تلقين کوئ.

﴿عن معاذ بن جبل رضی الله عنه (مرفوعا) من كان اخر كلامه لا اله الا الله دخل الجنة﴾
دا د باب ړومبي حديث دي او د باب دويم حديث د ابوسعيد خدری رضی الله عنه نه مرفوعا روايت دي ﴿لقنوا موتاكم لا اله الا الله﴾
په ړومبی حديث راوړلو سره مصنف رحمه الله اشاره اوکړه د تلقين فائدې او د غرض طرف ته چه مقصد دا دې چه د مړی آخری کلام د دنيا نه د رخصت کيدو په وخت کلمه توحيد وی هم په دې وجه علماء کرامو ليکلی دی چه کله يو ځل هغه کلمه اولولی نو بيا دې ورته تلقين اونکړې شی مګر دا چه د هغې نه روستو څوک دنياوی کلام اوکړی او په دويم حديث کښې د موتی نه مراد محتضر دې مجازا، دا د مجاز د مايؤل د قبيلې نه دې، كذا قال الطيبى كما فى البذل، والامام النووى فى شرح مسلم، وكذا فى مغنى المحتاج ٣٣٠/١ (فى فقه الشافعية) او بعض شوافعو مړي په حقيقى معنو باندې محمول کولو سره حديث لره په تلقين بعد الدفن باندې محمول کړې دې خو په بذل کښې دی چه تلقين بعد الدفن امر محدث دې په سلفو کښې معروف نه وو لهذا حديث لره په دې باندې محمول کول صحيح نه دی، هم په دې باندې حضرت شيخ د بذل په حاشيه کښې ليکلي دی ﴿لكنه وارد فى الروايات العديدة كما فى منتخب كنز العمال ٢٦٠/٦ بله دا چه علامه عينى رحمه الله او حافظ ابن حجر د دواړو په کلام کښې دا دی چه د لا اله الا الله نه مراد پوره کلمه ده،
قال الكرمانى: والمراد هى وضميمتها محمد رسول الله، زين ابن المنير وائی چه لا اله الا الله شرعا د شهادتين لقب دې (عون) او هم دا پورته د درمختار نه نقل کړې شو خو په مغنى المحتاج کښې د محمد رسول الله د زيادت په مسنون کيدو او نه مسنون کيدو باندې بحث کړې شوې دې، د هغوی ميلان د عدم زيادت طرف ته دې، حديث ابى سعيد رضی الله عنه اخرجه مسلم والترمذى والنسائى وابن ماجة، قاله المنذرى

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٣٥٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٣٣/٥، ٢٤٧) (صحيح)
(٢): صحيح مسلم/الجنائز ١ (٩١٦)، سنن الترمذي/الجنائز ٧ (٩٧٦)، سنن النسائي/الجنائز ٤ (١٨٢٧)، سنن ابن ماجه/الجنائز ٣ (١٤٤٥)، (تحفة الأشراف: ٤٤٠٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣) (صحيح)

## بَابُ تَغْمِيضِ الْمَيِّتِ

### د مړي د سترګو بندولو بيان

[۳۱۱۸](۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ حَبِيبٍ أَبُو مَرْوَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ يَعْنِي الْفَزَارِيَّ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ قَبِيصَةَ بْنِ ذُؤَيْبٍ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: دَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى أَبِي سَلَمَةَ، وَقَدْ شَقَّ بَصَرُهُ، فَأَغْمَضَهُ، فَصَيَّحَ نَاسٌ مِنْ أَهْلِهِ، فَقَالَ: "لَا تَدْعُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ إِلَّا بِخَيْرٍ، فَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ يُؤَمِّنُونَ عَلَى مَا تَقُولُونَ، ثُمَّ قَالَ: اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِأَبِي سَلَمَةَ، وَارْفَعْ دَرَجَتَهُ فِي الْمَهْدِيِّينَ، وَاخْلُفْهُ فِي عَقِبِهِ فِي الْغَابِرِينَ، وَاغْفِرْ لَنَا وَلَهُ رَبَّ الْعَالَمِينَ، اللَّهُمَّ افْسَحْ لَهُ فِي قَبْرِهِ، وَنَوِّرْ لَهُ فِيهِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَتَغْمِيضُ الْمَيِّتِ بَعْدَ خُرُوجِ الرُّوحِ، سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ مُحَمَّدِ بْنِ النُّعْمَانِ الْمُقْرِيَّ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا مَيْسَرَةَ رَجُلًا عَابِدًا، يَقُولُ: غَمَّضْتُ جَعْفَرًا الْمُعَلِّمَ، وَكَانَ رَجُلًا عَابِدًا فِي حَالَةِ الْمَوْتِ، فَرَأَيْتُهُ فِي مَنَامِي لَيْلَةَ مَاتَ، يَقُولُ: أَعْظَمُ مَا كَانَ عَلَيَّ، تَغْمِيضُكَ لِي قَبْلَ أَنْ أَمُوتَ.

دام سلمه رضي الله عنها نه روايت دې فرمائی چه نبی علیه السلام ابوسلمه ته راغې (دمرګ نه پس) اودهغه سترګې بيرته پاتې شوې وې نبی علیه السلام دهغه سترګې بندې کړې نودده کور خلقو شور جوړ کړو په دې وخت کښې نبی علیه السلام اوفرمائيل دځان دپاره دخير اوکاميابئ نه علاوه بله دعامه غواړئ ځکه تاسو چه څه وائی فرښتې په هغې امين وائی بيانبی علیه السلام اوفرمائيل اې الله ابوسلمه ته مغفرت اوکړې او په هدايت موندونوکښې دده درجه لوړه کړې اودده نه په پاتې شوو خلقو کښې دده قائم مقام پيدا کړې او مونږ او ده ته خنه وکړې اې د ټول عالم پرورش کونکيه ده ته دده قبر فراخه کړې اودده قبر منور کړې.

﴿عن ام سلمة رضي الله عنها قالت دخل رسول الله صلى الله عليه وسلم على ابى سلمة وقد شق بصره (۲) فاغمضه﴾

ام سلمة رضي الله عنها فرمائی چه د ابوسلمة رضي الله عنه د وفات په وخت رسول الله صلى الله عليه وسلم تشريف راوړو هغه وخت د هغوی سترګې غړيدلې وې رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه بندې کړې په دې باندې د هغوی د کور خلقو ژړا او چغې جوړې کړې، رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل : د خير دعا کوئ ځکه چه ملائک آمين وائی ستاسو په خبره باندې، د دې نه پس رسول الله صلى الله عليه وسلم دا دعا اولوستله ﴿اللهم اغفر لابى سلمة وارفع درجته فى المهديين واخلفه (۳) فى عقبه فى الغابرين واغفرلنا وله رب العالمين اللهم افسح له فى قبره ونور له فيه﴾

د ابوداؤد په بعض نسخو کښې دلته يو زيادت دې چه د هغې مضمون دا دې چه ابوداؤد فرمائی چه تغميض العين د روح د وتلو نه پس پکار دی او بيا ئې وړاندې دا واقعه ليکلې ده چه ما د خپل استاد محمد بن محمد بن نعمان المقرى نه واوريدل هغوی به فرمائيل چه ما د ابوميسره نه واوريدل چه يو عابد او زاهد سړې وو هغوی وائی چه ما د جعفر معلم د مرګ په وخت د هغوی سترګې پټې کړې نو چه کله د هغوی وفات اوشو هم په هغه شپه ما هغه په خوب کښې اوليدو چه وې وئيل : اعظم ما كان علی تغمیضک لی قبل ان

---

(۱): صحيح مسلم/ الجنائز ٤ (٩٢٠)، سنن ابن ماجه/ الجنائز ٦ (١٤٥٤)، (تحفة الأشراف: ١٨٢٠٥، ١٩٦٠١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٢٩٧) (صحيح)

(۲) قال النووي هو بفتح الشين ورفع بصره وهو فاعل شق، اي بقي بصره مفتوحا، هكذا ضبطناه وهو المشهور، وضبطه بعضهم بصره بالنصب وهو صحيح ايضا، والشين مفتوحة بلا خلاف اهـ)

(۳) يعنى اې الله ته خليفه شه د دې مړي په باقی پاتې کيدونکو کښې د دې مړي د اولاد دپاره)

اموت....... چه په ما باندې د ټولو نه زياته بده خبره دا راغله چه تا زما سترګې د روح قبض كيدو نه مخكښې بندې كړې آهـ لهذا د دې خيال ساتل پكار دى چه كله د مرګ يقين پيدا شي نو بيا دې سترګې پټې كړې شي.

په دې حديث كښې د اغماض ميت ذكر كړې شوې دې، د علماء كرامو د دې په استحباب باندې اجماع ده چه د هغې حكمت دا ليكلې شوې دې چه د مړى هيئت خراب نه شي او علامه طيبى ليكلې دى چه كله روح قبض كيږى نو د سترګو رڼړا هم ورسره ورسره ختمه شي لهذا د سترګو په غړيدلې پاتې كيدو كښې هيڅ فائده نشته. (هامش البذل) هم دغه شان علماء كرامو ليكلې دى چه هم په دې وخت د هغوى خوله هم بندول پكار دى.

والحديث اخرجه مسلم والنسائى وابن ماجة (منذرى)

## بَابٌ فِي الِاسْتِرْجَاعِ

### د انا لله وانا اليه راجعون وئيلو بيان

حديث الباب﴿باب ما يقال عند الميت من الكلام﴾ كښې اختلاف د سياق سره تيرشوې دې.

[۳۱۱۹](١) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا ثَابِتٌ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا أَصَابَتْ أَحَدَكُمْ مُصِيبَةٌ، فَلْيَقُلْ: إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ، اللَّهُمَّ عِنْدَكَ أَحْتَسِبُ مُصِيبَتِي، فَآجِرْنِي فِيهَا، وَأَبْدِلْ لِي خَيْرًا مِنْهَا".

دام سلمه رضي الله عنها نه روايت دې فرمائى چه نبى عليه السلام فرمائيلى دى كله چه په تاسو كښې يو كس ته مصيبت اورسيږي نو دا كلمات دې اووائى: «إنا لله وإنا إليه راجعون»اې الله زه په خپل مصيبت كښې دځان دپاره ستاسره دثواب اميد لرم نه ماته په دې كښې اجر را كړې او ددې بهتره بدله راكړې.

﴿ اللهم عندك احتسب مصيبتى فاجرنى ﴾ مثل اكرمنى او مثل فانصرنى (يعنى فاجرنى) دواړو طريقو سره ضبط كړې شوې دې اول د ايجار نه يعنى اجرت او عوض وركول او دويم د اجر نه اخستلې شوې دې.

## بَابٌ فِي الْمَيِّتِ يُسَجَّى

### په مړى باندې د څادر غوړولو بيان

يعنى د انسان د وفات نه پس په هغه باندې څادر اچول پكار دى هغه ښكاره نه دى پريخودل پكار ښكاره ده چه په غسل كښې خو به وخت لګى خو دا عمل رضي الله عنهم دغه وخت كول پكار دى، لكه چه په حديث الباب كښې دى

[۳۱۲۰](٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "سُجِّيَ فِي ثَوْبٍ حِبَرَةٍ".

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٢٠٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١٧/٦) (ضعيف)

[2]: صحيح البخاري/اللباس ١٨(٥٨١٤)، صحيح مسلم/الجنائز ١٤ (٩٤٢)، (تحفة الأشراف: ١٧٧٦٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨٩/٦، ٢٦٩) (صحيح)

دام المومنين عائشي رضي الله عنها نه روايت دي فرمائی چه نبی علیه السلام (چه کله وفات شو نو)په يوه يمني کپړه کښې پټ کړې شو.

﴿عن عائشة رضي الله عنها ان النبی ﷺ سجي فی ثوب حبرة ﴾

حِبَرة... په وزن د عنَبة دا په وصف او اضافت دواړو سره لوستلې شوې دې، يعنی يمنی څادر کوم چه د کرښو والا وو. عائشه رضي الله عنها فرمائی چه رسول الله ﷺ د هغوی د وفات نه پس په يمنی څادر کښې پټ کړې شو.

صلی الله عليه وسلم شرف وكرم ___ والحديث اخرجه البخاري ومسلم، قاله المنذري

## بَابُ الْقِرَاءَةِ عِنْدَ الْمَيِّتِ

### د مړکيدونکی خوا ته د تلاوت کولو بيان

[٣١٢١](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، وَمُحَمَّدُ بْنُ مَكِّيٍّ الْمَرْوَزِيُّ، المعنى قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ وَلَيْسَ بِالنَّهْدِيِّ عَنْ أَبِيهِ، عَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اقْرَءُوا يس عَلَى مَوْتَاكُمْ". وَهَذَا لَفْظُ ابْنِ الْعَلَاءِ.

دمعقل بن يسار رضي الله عنه نه روايت دي فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائيلی دی څوك چه په تاسوکښې مړه کيږي تاسو دهغوی خواته سورة يس وائي.

**قوله:**﴿ اقرؤا ياسين على موتاكم ﴾: دلته د موتی نه مراد محتضر دي، د اکثرو علماء کرامو رائې دا ده او د بعضو رائې دا ده چه سورة ياسين د هغه په خوا کښې د هغه د مرګ نه پس اولوستلې شی چه په هغه باندې څادر اچولې شوې وی (٢) او دريم قول دا دې چه يقراء عليه عند القبر علماء کرامو د دې سورة د لوستلو په حکمت کښې ليکلې دی چه په دې وخت انسان کښې د تلفظ کولو طاقت خو وی نه. د ډير زيات ضعف د وجې نه هغه په دې وخت کښې خپل حاجت نه شی ښکاره کولې، خو د مومن سړی زړه په دې وخت کښې بالکلية الله پاک طرف ته متوجه وی نو په هغه باندې سورة ياسين په دې وخت کښې څکه لوستلې شی چه د هغه په ايمان او قوت قلبيه کښې اضافه پيدا شی، څکه چه په دې سورة کښې د شريعت امهات اصول او هغه لوئې لوئې مسائل کومه چه علماء کرامو په خپلو تصنيفاتو کښې بيان کړې ده د مختلفو امتونو احوال، د تقدير اثبات او دا چه د بندګانو د افعالو استناد د الله پاک طرف ته دې، او اثبات توحيد، نفی شرك او احوال قيامت، د حشر او نشر منظر، حساب او کتاب، ثواب او عقاب وغيره څيزونه ذكر شوې دی، او په حديث کښې هم دی چه د هر څيز دپاره زړه وی او د قرآن زړه سورة ياسين دې لهذا دا سورة د هغه مخکښې لوستلو سره به هغه ته روحانی طاقت حاصليږی او تسلی به ورته ملاويږی او د ايمانياتو استحضار به ورته کيږی. (په دې شرط چه هغه د قرآن کريم په ترجمه بآندې پوهيږی).

(١): سنن ابن ماجه/الجنائز ٤ (١٤٤٨)، (تحفة الأشراف: ١١٤٧٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٧،٢٦/٥) (ضعيف)

(٢) خو په دې باندې دا اشكال دې چه فقهاء کرامو مړی ته نزدې ناسته کښې قبل الغسل د قرآن کريم د تلاوت نه منع فرمائيلې ده)

**هره جمعه د خپل مور پلار په قبرونو باندې سورة یاسین لوستل :**

او د سورة یاسین د قبر په خوا کښې د لوستلو په باره کښې په یو حدیث کښې دی کوم چه ابن عدی وغیره روایت کړې دې، ﴿من زار قبر والدیه او احدهما فی کل جمعة فقراء عندهما یاسین غفر له بعدد کل حرف منها (البذل)

والحدیث اخرجه النسائی وابن ماجة. قاله المنذری

## بَابُ الْجُلُوسِ عِنْدَ الْمُصِيبَةِ

### د مصیبت په وخت کښې کیناستلو بیان

[٣١٢٢]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ كَثِيرٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: لَمَّا قُتِلَ زَيْدُ بْنُ حَارِثَةَ، وَجَعْفَرٌ، وَعَبْدُ اللهِ بْنُ رَوَاحَةَ، جَلَسَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ، يُعْرَفُ فِي وَجْهِهِ الْحُزْنُ، وَذَكَرَ الْقِصَّةَ.

دام المومنین عائشې رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه کله زید بن حارثه او جعفر او عبدالله بن رواحه رضی الله عنهم قتل کړې شول نو نبی علیه السلام په جومات کښې کیناستو چه په مخ باندې ئې دخفګان آثار ښکاره شول، حدیث تر آخره پورې.

**شرح الحدیث :**

یعنی دمرګ په شان د یو مصیبت په وخت که د لږ ساعت دپاره سکون او وقار او سکوت سره کینی چه په هغې کښې د غم آثار ښکاره کیږی نو په دې کښې هیڅ باک نشته، دا خپله د رسول الله ﷺ نه ثابته ده لکه چه په حدیث الباب کښې دی، عائشه رضی الله عنها فرمائی چه کله په غزوه موته کښې د زید بن حارثه رضی الله عنه، جعفر بن ابی طالب او عبدالله بن رواحه رضی الله عنهم د شهادت خبر رسول الله ﷺ ته اورسیدو نو هغوی په مسجد کښې ناست وو او د هغوی په مخ مبارک باندې د غم آثار ښکاریدل، علامه طیبی رحمه الله لیکی یعنی رسول الله ﷺ خپل غم پټ کړې وو نو فطری طور چه د هغې کوم اثر په مخ باندې ښکاره کیدل پکار وو هغه ښکاره شو، علماء کرامو لیکلې دی چه په دې کښې د اعتدال تعلیم دې چه په ټولو احوالو کښې اعتدال مسلک مستقیم دې، لهذا که چاته یو عظیم مصیبت اورسیږی نو هغه له پکار دی چه نه خو د غم په اظهار کښې افراط اوکړی خان وهل او ګریوان شلول او چغې وهل وغیره چه ناجائز او ممنوع دی، او نه دې په دې باره کښې تفریط کوی چه بې پرواهی کوی او بهادری ښائی چه علامت دې د زړه د سخت والی، بلکه د رسول الله ﷺ اتباع کول پکار دی، او دې وخت کښې د رسول الله ﷺ د جلوس فی المسجد په باره کښې لیکلې شوې دی چه د هغوی په مسجد کښې دا ناسته د معمول او عادت شریفه مطابق وه، یعنی په دې نیت باندې نه وه چه خلق دې هغوی ته د تعزیت دپاره راشی، لهذا دا د هغوی مجلس مجلس د ماتم نه وو.

[1]: صحیح البخاري/الجنائز ٤٠ (١٢٩٩)، ٤٥ (١٣٠٥)، والمغازي ٤٤ (٤٢٦٣)، صحیح مسلم/الجنائز ١٠ (٩٣٥)، سنن النسائي/الجنائز ١٤ (١٨٤٨)، (تحفة الأشراف: ١٧٩٣٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥٩/٦، ٢٧٧) (صحیح)

وړاندې په روايت کښې دی ﴿ وذكر القصة ﴾ دا قصه تفصيلا په بخاری ١/١٧٣ کښې ذکر شوې ده ﴿ فی باب من جلس عند المصيبة يعرف فيه الحزن ﴾ (بذل) چه د هغې مضمون دا دې عائشه رضي الله عنها فرمائی چه کله د دې درې واړو حضراتو د شهادت په خبر باندې ما رسول الله ﷺ په مجلس کښې په ناسته باندې اوليدو او د هغوی د مخ مبارک نه د غم آثار ښکاره کيدل او ما د خپلې حجرې د دننه نه د دروازې په چاؤدی کښې کتل نو هغه وخت رسول الله ﷺ ته يو سړې راغلو چه د جعفر رضي الله عنه د کور خلق چغې وهی، رسول الله ﷺ هغه ته اوفرمائيل چه لاړ شه او هغوی منع کړه، هغه لاړو او بيا راغلو چه هغوی خو نه منی، رسول الله ﷺ اوفرمائيل لاړ شه او هغوی منع کړه هغه لاړو او بيا راغلو او وې وئيل يا رسول الله ﷺ هغوی خو زمونږ نه اوری، رسول الله ﷺ اوفرمائيل لاړ شه بيا د هغوی په خلو کښې خاورې واچوه...... عائشه رضي الله عنها فرمائی چه ما هغه راطلب کړو چه هلاک شې نه ته پخپله هغه کار کولې شې، کوم چه رسول الله ﷺ فرمائی او نه ته رسول الله ﷺ پريږدې، مطلب دا وو چه تاله داسې عرض کول پکار وو چه دا زما د وس خبره نه ده زه دا نه شم کولې لهذا تاسو بل څوک اوليږئ (والحديث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، قاله المنذری)

## بَابٌ فِي التَّعْزِيَةِ

### د مړی وارثانو ته د تعزيت کولو بيان

تعزية دعزاء نه مشتق دې چه د هغې معنی صبر ده. لهذا د تعزية معنی شوه چا له په عزاء يعنی صبر باندې تيارول او د هغې تلقين کول، صبر ښودل، يعنی هغه ته د اجر او ثواب دعا کول چه د هغه په دې باندې تسلی اوشی او صبر شی.

[٣١٢٣](١) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَوْهَبٍ الْهَمْدَانِيُّ، حَدَّثَنَا الْمُفَضَّلُ، عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ سَيْفٍ الْمَعَافِرِيِّ، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْحُبُلِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، قَالَ: قَبَرْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْنِي مَيِّتًا، فَلَمَّا فَرَغْنَا، انْصَرَفَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَانْصَرَفْنَا مَعَهُ، فَلَمَّا حَاذَى بَابَهُ وَقَفَ، فَإِذَا نَحْنُ بِامْرَأَةٍ مُقْبِلَةٍ، قَالَ: أَظُنُّهُ عَرَفَهَا، فَلَمَّا ذَهَبَتْ، إِذَا هِيَ فَاطِمَةُ عَلَيْهَا السَّلَام، فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا أَخْرَجَكِ يَا فَاطِمَةُ مِنْ بَيْتِكِ؟" فَقَالَتْ: أَتَيْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَهْلَ هَذَا الْبَيْتِ، فَرَحَّمْتُ إِلَيْهِمْ مَيِّتَهُمْ، أَوْ عَزَّيْتُهُمْ بِهِ، فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فَلَعَلَّكِ بَلَغْتِ مَعَهُمُ الْكُدَى، قَالَتْ: مَعَاذَ اللَّهِ، وَقَدْ سَمِعْتُكَ تَذْكُرُ فِيهَا مَا تَذْكُرُ، قَالَ: لَوْ بَلَغْتِ مَعَهُمُ الْكُدَى" فَذَكَرَ تَشْدِيدًا فِي ذَلِكَ، فَسَأَلْتُ رَبِيعَةَ عَنِ الْكُدَى، فَقَالَ: الْقُبُورُ فِيمَا أَحْسَبُ.

دعمرو بن العاص خانه روايت دې فرمائی چه مونږ دنبی عليه السلام سره يومړې دفن کړو کله چه مونږ ددفن کولونه فارغ شو نونبی عليه السلام واپس روان شو او مونږ هم ورسره وو کله چه دمړی دکور دروازې ته اورسيدو نو اودريدو مخامخ يوه ښځه راروانه وه راوی وائی زما کمان دې چه نبی عليه السلام پيژندلې وکله چه هغه لاړه نو معلومه شوه چه هغه فاطمه رضي الله عنها وه نبی عليه السلام ترې تپوس اوکړو چه ته دخپل کور نه په څه وجه وتلې بې؟ هغې اووئيل اې دالله رسوله زه دمړی

(١): سنن النسائي/الجنائز ٢٧ (١٨٨١)، (تحفة الأشراف: ٨٨٥٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/١٦٩، ٢٢٣) (ضعيف)

کورته راغلي ومه ددې دپاره چه دصبر تلقین ورته اوکړم اوددوی ته تعزیت اوکړم نبی ﷺ اوفرمائیل شاید چه ته دهغوی سره مقبري ته هم تلي وې هغې عرض اوکړو په الله پناه غواړم ماخو په دې باره کښې ستاسو اوریدلی دی چه ښځې دې مقبروته دتللو نه منع کړې وې نبی ﷺ اوفرمائیل که چرې ته ددوی سره تلي وې، راوي وائي چه یوه سخته خبره ئې ورته اوکړه.

﴿عن عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما قال قبرنا مع رسول الله ﷺ یعنی میتا فلما فرغنا الحدیث﴾

د دې حدیث مضمون په باب فی صفایا رسول الله ﷺ د ړومبی حدیث په ضمن کښې تیر شوې دې هغه دې اوکتلې شی دوباره دلته د لیکلو ضرورت نشته.

﴿قال لو بلغت معهم الکدی فذکر تشدیدا فی ذلک﴾

**د امام ابوداؤد یو خاص عادت شریفه په سلوک او ادب کښې:**

د امام ابوداؤد په دې عادت شریفه باندې مونږ په ړومبی ځائې کښې لیکل کړی دی، دلته علامه شیخ محمد عوامه حفظه الله په خپل تعلیق کښې لیکی: وفی الکنایة عن بقیة الحدیث ادب من الامام ابی داؤد رحمه الله تعالی مع بضعة النبی ﷺ ورضی الله تعالی عنها ینبغي الاقتداء به، قال السخاوی رحمه الله فی اواخر فی بذل المجهود فی ختم سنن ابی داؤد وهو یعدد مناقب الامام ابی داؤد: ومن وفور ادبه انه لما اورد الحدیث فی رؤیة النبی ﷺ ابنته فاطمة رضي الله عنها فی الطریق وقالت له انها کانت تعزی اناسا فی میت لهم، لم یذکر الکلام الاخیر بل اشار الیه بقوله فذکر تشدیدا فی ذلک... وهذا یذکرنا بادب ائمة آخرین فی حدیث سرقة المراة المخزومیة وقوله ﷺ لو ان فاطمة بنت محمد ﷺ فقد رواه ابن ماجه بسنده قال محمد بن رمح سمعت اللیث بن سعد یقول قد اعاذها الله ان تسرق وکل مسلم ینبغی له ان یقول هذا، او د دې نه پس حافظ په فتح الباری کښې لیکلې دی چه امام شافعی رحمه الله هم چه کله دا حدیث د سرقه ذکر کړو نو هغوی هم داسې اوفرمائیل: فذکر عضوا شریفا من امراة شریفة آهـ

**د رسول الله ﷺ د مور پلار اخروی حکم:**

د رسول الله ﷺ د مور پلار د ایمان او عدم ایمان په باره کښې د علماء کرامو اختلاف حضرت سهارنپوری په بذل کښې په دې ځائې کښې او په را روان باب ﴿باب فی زیارة القبور﴾ کښې الی رسول الله ﷺ قبر امه فبکی وابکی من حوله د لاندې او حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې [1] د ډیرو کتابونو حوالې او مختصر مختصر عبارتونه لیکلې دی او د اهل فترة په باره کښې ئې د علماء کرامو اختلاف ذکر کړې دې چه څوک کتل غواړی هغې ته دې رجوع اوکړی، او دا احقر په خپل سبق کښې دا وائی چه په دې مسئله کښې تحقیق

---

[1] ) د علامه سیوطی، وشي الدیباج علي صحیح مسلم بن الحجاج نه نقل کړی سیوطی فرمائی چه ما په دې باره کښې اووه رسالې اولیکلې او هغوی د حدیث الباب استاذنت ربي تعالي ان استغفر لها فلم یاذن لي باندې کلام کولو سره فرمائیلي دی چه دا د مسلم په بعض نسخو کښې موجود نه دې، او که ثابت شی نو منسوخ دې الی آخر ما فی الحاشیة، او په دې باره کښې د امام برزنجی هم ډیره مشهوره رساله (سداد الدین فی اثبات النجاة والدرجات للوالدین) دې هغه کتل پکار دی، خاص هم په دې موضوع باندې مفصل او مدلل تصنیف دې)

که هر څه وی خو رښتینې خبره دا ده چه د رسول الله ﷺ د یو امتی خواهش پکار دې چه په څه طریقه د هغوی ایمان او اسلام ثابت وی نو غوره ده، یعنی چه کله د هغوی ذکر یا خیال راشی. د رسول الله ﷺ د مور پلار په باره کښې تفصیل په شپږم جلد کښې را روان دې.

## بَابُ الصَّبْرِ عِنْدَ الصَّدْمَةِ

### د مصیبت په وخت کښې د صبر کولو د فضیلت بیان

[٣١٢٤]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: أَتَى نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى امْرَأَةٍ تَبْكِي عَلَى صَبِيٍّ لَهَا، فَقَالَ لَهَا "اتَّقِي اللَّهَ، وَاصْبِرِي، فَقَالَتْ: وَمَا تُبَالِي أَنْتَ بِمُصِيبَتِي؟ فَقِيلَ لَهَا: هَذَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَتَتْهُ، فَلَمْ تَجِدْ عَلَى بَابِهِ بَوَّابِينَ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، لَمْ أَعْرِفْكَ. فَقَالَ: إِنَّمَا الصَّبْرُ عِنْدَ الصَّدْمَةِ الْأُولَى، أَوْ عِنْدَ أَوَّلِ صَدْمَةٍ".

دانس نه روایت دې چه نبی علیه السلام د یوې ښځې خواته ورغې دچاچه بچې مر وو اوجړل ئې په تیز آواز سره نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل دالله نه ویریږه په چغومه جاړه، اوصبرکوه نودې ښځې په جواب کښې اووئیل مصیبت خوپه ماراغلې دې په تاخوندې په دې وخت کښې دې ښځې ته اوویلې شول دا نبی علیه السلام دې کله چه داخبره شوه نودنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضره شوه اود نبی علیه السلام په دروازه کښې یو څوکیداران اونه موندل اوعرض ئې اوکړواې دالله رسوله مامعاف کړه ما ته نه وی پیژندلې، بیانبی علیه السلام دې ته اوفرمائیل صبر خودغم په شروع کښې وي اوکه داسې ئې اوفرمائیل صبر په اول غم کښې وي.

﴿عن انس رضی الله عنه انه قال اتی نبی الله ﷺ علی امراة تبکی الخ﴾

یعنی رسول الله ﷺ په یو زنانه باندې تیر شو چه په خپل بچی باندې ئې ژړل، رسول الله ﷺ هغې ته د صبر او تقوی تلقین اوکړو (هغې چونکې رسول الله ﷺ د غم د شدت د وجې نه نه وو پیژندلې په دې وجه) هغې اولتېه جواب ورکړو چه ستا زما په مصیبت باندې څه پرواه ده، په دې باندې چا روستو هغې ته اووې چه دا خو رسول الله ﷺ وو نو هغه فوراً د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه، راوی وائی چه هغې د رسول الله ﷺ په دروازه باندې دربان او چوکیداران بیا نه موندل، یعنی څنګه چه د دنیوی بادشاهانو په دربارونو باندې وی. نو دې زنانه رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه یا رسول الله ﷺ ! ما تاسو پیژندلې نه وئ... رسول الله ﷺ د دې خبرې خو هیڅ جواب ورنکړو خو دا ئې اوفرمائیل: ﴿ انما الصبر عند الصدمة الاولی ﴾ چه صبر خو هم هغه دې کوم چه د مصیبت په شروع کښې حاصل شی. (روستو خو هر څوک صبر کوی)

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری

[١]): صحيح البخاري/الجنائز ٣١ (١٢٨٣)، ٤٢ (١٣٠٢)، الأحكام ١١ (٧١٥٤)، صحيح مسلم/الجنائز ٨ (٩٢٦)، سنن النسائي/الجنائز ٢٢ (١٨٧٠)، سنن الترمذي/ الجنائز ١٣ (٩٨٨)، سنن ابن ماجه/الجنائز ٥٥ (١٥٩٦)، (تحفة الأشراف: ٤٣٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/١٣٠، ١٤٣، ٢١٧) (صحيح)

# بَابٌ فِي الْبُكَاءِ عَلَى الْمَيِّتِ

## په مړي پسې د خپلو وارثانو د ژړلو بيان

[٣١٢٥] (١) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَاصِمٍ الْأَحْوَلِ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا عُثْمَانَ، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ: أَنَّ ابْنَةً لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْسَلَتْ إِلَيْهِ، وَأَنَا مَعَهُ، وَسَعْدٌ، وَأَحْسَبُ أُبَيًّا أَنَّ ابْنِي أَوْ بِنْتِي قَدْ حُضِرَ، فَاشْهَدْنَا، فَأَرْسَلَ يُقْرِئُ السَّلَامَ، فَقَالَ: قُلْ "لِلَّهِ مَا أَخَذَ وَمَا أَعْطَى، وَكُلُّ شَيْءٍ عِنْدَهُ إِلَى أَجَلٍ، فَأَرْسَلَتْ تُقْسِمُ عَلَيْهِ، فَأَتَاهَا، فَوُضِعَ الصَّبِيُّ فِي حِجْرِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَنَفْسُهُ تَقَعْقَعُ، فَفَاضَتْ عَيْنَا رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لَهُ سَعْدٌ: مَا هَذَا؟ قَالَ: إِنَّهَا رَحْمَةٌ وَضَعَهَا اللَّهُ فِي قُلُوبِ مَنْ يَشَاءُ، وَإِنَّمَا يَرْحَمُ اللَّهُ مِنْ عِبَادِهِ الرُّحَمَاءَ".

داسامه بن زيد رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه دنبی علیه السلام لورمبارکې په نبی علیه السلام پسې ځوك راوليږل او په دې وخت کښې زه اوسعد دنبی علیه السلام سره وم اور شايد أبی هم ورسره وو سوال جواب داسې وو چه زمادلور ياځوی ځنکدن شروع دې مونږ ته راشه نبی علیه السلام ورته سلام اوليږلو اووئې فرمائيل داسې اووايه خاص دالله تعالی دې هغه څه، څه چه ئې واخستل اوهريوشې دهغه دطرف نه تريوی نيتې پورې ورې زينب نبی علیه السلام دوباره اوغوښتو او په قسم ئې وغوښتو نونبی علیه السلام ورته ورغې اوماشوم ئې ورته په غيږ کښې واچوو او دماشوم ساه روانه شوې وه دنبی علیه السلام سترګی د اوښکونه ډکې شوې، سعد ورته اووئيل دا څه دې؟ نبی علیه السلام اوفرمائيل دا د الله رحمت دې چه اچولې دې الله تعالی په زړونودهغه چاکښې چه څوك ئې خوښ وي اويقينا الله تعالی پخپلو بندګانو کښې په رحم کرنکوباندې رحم کوې.

﴿عن اسامة بن زيد رضي الله عنهما ان ابنة رسول الله ﷺ ارسلت اليه وانا معه وسعد احسب ابيا الخ﴾

### مضمون د حديث:

سيدنا اسامه بن زيد رضي الله عنهما فرمائی چه د رسول الله ﷺ لور (زينب) د هغوی په خدمت کښې يو قاصد د راغوښتلو دپاره راوليږلو، او هغه وخت د هغوی سره زه او سعد بن عباده او ابی بن کعب رضي الله عنه په مجلس کښې ناست وو، قاصد د هغوی پيغام راوړلو چه زما د ځوی يا د لور د راوی شک دې آخری وخت دې زمونږ خواله تشريف راوړئ. رسول الله ﷺ قاصد ته اوفرمائيل: لاړ شه او زما سلام ورته اوکړه او دا ورته اووايه ﴿لله ما اخذ وله ما اعطى وكل شئ عنده الى اجل﴾ قاصد لاړو او د هغوی خبره ئې اورسوله هغوی دوباره قاصد د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راوليږلو په دې باندې رسول الله ﷺ هلته تشريف يوړو، هغه ماشوم د رسول الله ﷺ په غيږ کښې کيخودلې شو په داسې حال کښې چه د هغه ماشوم روح په وتلو باندې وو، د رسول الله ﷺ د سترګو نه اوښکې روانې شوې، په دې باندې سعد رضي الله عنه رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه دا ژړا څنګه ده؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل دا اوښکې رحمت دې د الله پاک د طرف نه کومې چه الله پاک په خپلو بندګانو کښې چه د چا په زړه

(١): صحيح البخاري/الجنائز ٣٢ (١٢٨٤)، والمرضى ٩ (٥٦٥٥)، والقدر ٤ (٦٦٠٢)، والأيمان والنذور ٩ (٦٦٥٥)، والتوحيد ٢ (٧٣٧٧)، ٢٥ (٧٤٤٨)، صحيح مسلم/الجنائز ٦ (٩٢٣)، سنن النسائي/الكبرى الجنائز ٢٢ (١٩٦٩)، سنن ابن ماجه/الجنائز ٥٣ (١٥٨٨)، (تحفة الأشراف: ٩٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٠٤/٥، ٢٠٦، ٢٠٧) (صحيح)

کښې غواړي اچوي او رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه الله پاک هم په خپلو بندګانو کښې په هغه چا باندې رحم کوي چه رحم دل وي، سعد رضي الله عنه دا ګنړله چه کيدې شي دا صرف په اوښکو سره ژړل به هم منع وي په دې باندې رسول الله ﷺ هغه ته وضاحت اوکړوچه دا ژړا په منع کړې شوې ژړا کښې داخله نه ده بلکه دا خو غوره ده د زړه د رحم علامت دې، علماء کرامو ليکلي دي چه کمال خو په اعطاء کل ذی حق حقه کښې دې، او هغه چه د بعض صوفيه او زهاد نه نقل دي چه کله هغوی ته د هغه د يو خپلوان د مرګ خبر راغلو نو هغه په خندا شو د تقدير په فيصلې باندې د رضا کيدو د وجې نه، نو دا د کمال خبره نه ده.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي وابن ماجة، قاله المنذري

[٣١٢٦]() حَدَّثَنَا شَيْبَانُ بْنُ فَرُّوخَ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ الْمُغِيرَةِ، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وُلِدَ لِي اللَّيْلَةَ غُلَامٌ، فَسَمَّيْتُهُ بِاسْمِ أَبِي إِبْرَاهِيمَ، فَذَكَرَ الْحَدِيثَ، قَالَ أَنَسٌ: لَقَدْ رَأَيْتُهُ يَكِيدُ بِنَفْسِهِ بَيْنَ يَدَيْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَدَمَعَتْ عَيْنَا رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: تَدْمَعُ الْعَيْنُ، وَيَحْزَنُ الْقَلْبُ، وَلَا نَقُولُ إِلَّا مَا يَرْضَى رَبُّنَا، إِنَّا بِكَ يَا إِبْرَاهِيمُ لَمَحْزُونُونَ".

دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي نن شپه زمونږ يو ماشوم پيداشو اومادهغه دپاره نوم دخپل نيکه ابراهيم عليه السلام نوم کيخودو اوحديث ئې تراخره بيان کړو انسه اووئيل چه مادماشوم ليدلې وو چه دنبي عليه السلام په مخکښې ئې روح ختلو دده په ليدلوسره دنبي عليه السلام دسترګونه اوښکې روانې شوې نبي عليه السلام اوفرمائيل دسترګونه اوښکې څې اوزړه خفه وي او مونږ نه وايو مګرهغه خبره کومه چه زمونږ دپروردګار خوښه وي يعنی انالله وانا اليه راجعون، يقينامون اې ابراهيم يقينا په تا پسې خفه يو.

﴿ عن انس بن مالک رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ ولد لی الليلة غلام فسميته باسم ابی ابراهيم فذکر الحديث ﴾

د حديث مضمون دا دې : انس رضي الله عنه روايت کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه نن ما کره يو ماشوم پيدا شوې دې نو ما د هغه نوم د خپل پلار (نيکهٔ) ابراهيم عليه السلام په نوم باندې کيخودلې دې، وړاندې به په دې روايت کښې بل څه وی کوم چه مصنف رحمه الله اختصارا حذف کړې دی، بيا وړاندې په حديث کښې دی چه ما د رسول الله ﷺ دا څوئې په ساه وتلو باندې ليدلې دې په داسې حال کښې چه هغه د رسول الله ﷺ مخې ته وو، د رسول الله ﷺ د سترګو مبارکو نه اوښکې روانې شوې او هغوی ارشاد اوفرمائيلو چه سترګې اوښکې بهيوی او زړه غمګين دې او مونږ به په ژبه باندې هم هغه وايو څه چه الله پاک خوښوی. ﴿ انا بک يا ابراهيم لمحزونون ﴾ چه اې ابراهيم! مونږ ستا په تلو باندې غمژن يو.

يرضی يا يرضی، په ړومبی صورت کښې ربنا د فاعل کيدو په وجه باندې او په دويم صورت کښې ربنا بالنصب، د ابراهيم رضي الله عنه ولادت او وفات او د عمر موده په کتاب

[1]: صحيح البخاري/الجنائز ٤٣ (١٣٠٣)، صحيح مسلم/الفضائل ١٥ (٢٣١٥)، (تحفة الأشراف: ٤٠٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٩٤/٣) (صحيح)

الکسوف کښې بیان کړې شوې ده او وړاندې دلته په ﴿ باب فی الصلوة علی الطفل ﴾ په متن کښې هم را روانه ده.

والحدیث اخرجه مسلم، واخرجه البخاری تعلیقا، قاله المنذری

## بَابٌ فِي النَّوْحِ

### د مړی صفتونه یادول اوپه چغو چغو د ژړلو بیان

[٣١٢٧](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ حَفْصَةَ، عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ، قَالَتْ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَانَا عَنِ النِّيَاحَةِ".

أم عطیة رضي الله عنها نه روایت دې فرمائی چه نبی عليه السلام دنیاحة (په مړي باندې په چغه ژړلو) نه منع فرمائیلې ده.

[٣١٢٨](٢) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَبِيعَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْحَسَنِ بْنِ عَطِيَّةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: "لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّائِحَةَ وَالْمُسْتَمِعَةَ".

دابوسعید خدری رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه لعنت وئیلې دې دالله رسول ا په ویرکره ښځه باندې او په هغه ښځه چه ویر ته غوږ ږدي.

نوح یا نیاحة د مړی صفتونه کولو سره ژړل یا په چغو چغو باندې ژړل، دواړه تفسیرونه کړې شوې دی او دواړه ممنوع دی بغیر د صفتونو د ذکر کولو نه ژړل ثابت ده.

﴿ لعن رسول الله ﷺ النائحة والمستمعة ﴾

یعنی په نوحه کونکې زنانه او د هغې په اوریدونکې دواړو باندې رسول الله ﷺ لعنت فرمائیلې دې، نائحه کښې که تاء د تانیث دپاره وی نو د زنانه تخصیص د دې دپاره دې چه زیات تر دا نوحه په زنانو کښې موندلې شی او کیدې شی چه په دې کښې تاء د مبالغې دپاره وی په دې صورت کښې به اشاره وی دې طرف ته چه کوم انسان په کثرت سره دا کوی هم هغه د لعنت مستحق دې، او د چا نه چه اتفاقیه دا صادره شوې وی هغه په دې کښې داخل نه دې.

[٣١٢٩](٣) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، عَنْ عَبْدَةَ، وَأَبِي مُعَاوِيَةَ، المعنى عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ الْمَيِّتَ لَيُعَذَّبُ بِبُكَاءِ أَهْلِهِ عَلَيْهِ، فَذُكِرَ ذَلِكَ لِعَائِشَةَ، فَقَالَتْ: وَهِلَ تَعْنِي ابْنَ عُمَرَ؟ إِنَّمَا مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى قَبْرٍ، فَقَالَ: إِنَّ صَاحِبَ هَذَا لَيُعَذَّبُ، وَأَهْلُهُ يَبْكُونَ عَلَيْهِ". ثُمَّ قَرَأَتْ: وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَى سورة الأنعام آية ١٦٤. قَالَ عَنْ أَبِي مُعَاوِيَةَ: عَلَى قَبْرِ يَهُودِيٍّ.

دعمر رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلې دی یقینامړي ته عذاب

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨١٢٢)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الجنائز ٤٥ (١٣٠٦)، والأحكام ٤٩ (٧٢١٥)، صحيح مسلم/الجنائز ١٠ (٩٣٦)، سنن النسائي/البيعة ١٨ (٤١٥٨)، مسند احمد (٤٠٧/٦، ٤٠٨) (صحيح)

(٢): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٤١٩٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦٥/٣) (ضعيف الإسناد)

(٣): صحيح مسلم/الجنائز ٩ (٩٣١)، سنن النسائي/الجنائز ١٥ (١٨٥٦)، (تحفة الأشراف: ٧٣٢٤، ١٧٠٦٩، ١٧٢٢٦)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/المغازي ٨ (٣٩٧٨)، مسند احمد (٣٨/٢، ٣٩/٦، ٥٧، ٩٥، ٢٠٩) (صحيح)

ورکولې شي په جراداهل دهغه په ده باندې، راوي وائي داحديث عائشې ﷺ ته ذکر شوهني اووئيل ابن عمر سهوه شوې دې نبي ﷺ په يوقبرباندې تيريدو وبې وئيل دې قبر والا ته دده داهل والاپه وجه باندې عذاب ورکولې شي چه هغوی په ده باندې جاړې. اوبيا ئې دا ايت شريف ولوستلو : «ولا تزر وازرة وزر أخرى» راوی وائي دمعاويه په روايت کښې ديهودي دقبر ذکردې،

﴿ عن ابن عمر ﷺ قال قال رسول الله ﷺ ان الميت ليعذب ببكاء اهله عليه فذكر ذلك لعائشة فقالت وهل، يعني ابن عمر ﷺ انما مر النبي ﷺ على قبر الخ ﴾

**د ﴿ الميت يعذب ببكاء اهله عليه ﴾ حديث تحقيق او توجيه**

يو ځل عبدالله بن عمر ﷺ دا حديث نقل کړو چه مړی ته د هغه د کور د خلقو د ژړا په وجه باندې عذاب ورکولې شي، د عائشې ﷺ مخکښې چه کله د دې حديث ذکر راغلو نو هغې اوفرمائيل چه د ابن عمر ﷺ وهم پيدا شوې دې، او په نقل کولو کښې ئې غلطی کړې ده، او د صحيحينو په روايت کښې دی﴿ اما انه لم يكذب ولكنه نسي او اخطاء ﴾ او بيا هغې د خپل طرف نه صحيح حديث بيان کړو چه اصل حديث خو دا دې چه رسول الله ﷺ يو ځل د يو يهودی په قبر باندې تير شو د هغه په باره کښې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه هغه د قبر والا ته عذاب ورکولې شي يعنی د هغه د کفر او فسق د وجې نه، او حال دا چه د هغه د کور خلق په هغه باندې ژاړي. يعنی بيا دې د دې قابل چرته دې چه په هغه دې ژړا اوکړې شی، بيا د دې نه پس عائشې ﷺ د ابن عمر ﷺ د حديث د ترديد دپاره دا آيت کريمه تلاوت اوفرمائيلو. ﴿ ولا تزر وازرة وزر اخرى ﴾ امام خطابی ﷫ فرمائي: کيدې شی چه خبره هم دغه شان وی ځنګه چه عائشه ﷺ فرمائي چه دا حديث د يو يهودی په باره کښې رسول الله ﷺ فرمائيلې وو. ﴿ والخبر المفسر اولى من المجمل ﴾ او کيدې شي چه د ابن عمر ﷺ روايت هم صحيح وی او هغه د آيت کريمه خلاف نه دې ځکه چه د جاهليت والا خلقو به د ژړا او نوحه کولو وصيت کولو او په دې صورت کښې چه به کوم عذاب وی هغه به د وصيت په وجه باندې وی کوم چه هغه په ژوند باندې کړې وو، او علامه سندهی په فتح الودود کښې ليکی چه دا حديث په مختلفو طرقو او د ډيرو صحابه کرامو ﷺ نه نقل دې. او د دې معنی هم صحيح او ثابت ده د هغه توجيه نه پس کومه چه پورته ذکر شوه لهذا په دې حديث باندې د انکار هيڅ وجه نشته، هم دا خبره ملا علی قاری ﷫ هم ليکلې ده چه دا حديث په مختلفو الفاظو سره او په ډيرو روايتونو د ابن عمر او غير ابن عمر ﷺ نه ثابت دې، لهذا د عائشې ﷺ اعتراض د خپل اجتهاد په اعتبار سره دې امام نووی ﷫ فرمائي چه د دې حديث تاويل جمهورو هم دا کړې دې چه دا په وصيت باندې محمول دې چه داسې انسان ته عذاب ملاويږی د هغه د وصيت کولو د وجې نه او په کوم مړی باندې چه د هغه اهل بغير د هغه د وصيت نه ژړا اوکړی (او بغير د هغه د رضا نه) نو هغه نه په عذاب کيږی ﴿ لقوله تعالى ولا تزر وازرة وزر اخرى آهـ ﴾ د دې حديث نور هم ډير توجيهات کړې شوې دی. حضرت شيخ په اوجز المسالک کښې ليکلې دی چه علامه عينی ﷫ په دې کښې د علماء کرامو اته

اقوال لیکلي دي، او سیوطی په شرح الصدور کښې نهه اقوال، او حضرت د احادیثو د نورو شرحو نه د دې نه علاوه هم لیکلي دي چه د هغې مجموعه څوارلس اقوالو ته رسیږي مونږ د هغې نه دلته څو لیکو!

۱: ﴿ المیت یعذب بما نیح علیه ﴾ کښې باء سببیه نه ده بلکه د حال د پاره ده، ای یعذب فی حال بکاء اهله علیه..... مطلب دا چه مړي ته عذاب ورکولې شي ‹د څه گناه په وجه باندې› په داسې حال کښې چه د هغه د کور خلق په هغه باندې ژړا کونکي وي یعنی د مړي خو په قبر کښې حال دا دې چه د هغه د گناه په وجه باندې هغه ته سزا ملاویږي او دلته دا کیږي چه د هغه د فراق د وجې نه د هغه د کور خلق ژاړي او دا مطلب نه دې چه د ژړا د وجې نه هغه ته عذاب ملاویږي.

۲: دا عذاب ورکول خاص دي د کافر سره مسلمان په دې کښې داخل نه دې.

۳: دا د هغه مړي په حق کښې ده چه د هغه په معمول او د ژوند په طریقو کښې نوحه وي امام بخاریرحمه الله هم دا توجیه اختیار فرمائیلې ده لکه چه د هغوی د تبویب نه معلومیږي، باب قول النبی ﷺ یعذب المیت ببکاء اهله اذا کان النوح من سنته.

۴: دا محمول دې په هغه چا باندې چه هغه د نوحې وصیت کولو سره مړ شوې وي، جمهورو هم دا توجیه اختیار کړې ده.

۵: دا د هغه چا په باره کښې ده چا چه د ترک نوحه وصیت نه وي کړې، د دې قول په بناء باندې به د ترک نوحه وصیت کول واجب وي، دداؤد ظاهریرحمه الله او یو جماعت رائې هم دا ده.

۶: مطلب دا دې د حدیث چه مړي ته د هغه صفاتو او احوالو د وجې نه عذاب ورکولې شي په کومو صفاتو او احوالو بیانولو سره چه هغوی ژاړي، ځکه چه هغه شرعا مذموم او ناجائز وي مثلا هغوی به دا وئیل د نوحه په وخت یا مرمل النسآء (۱) یا متیم الاولاد، یا مخرب الدور، یعنی د ژړا کونکو زنانو په کلام کښې چه د کومو صفتونو طرف ته اشاره ده کوم چه په دې مړي کښې موجود وو اصل عذاب خو ورته د هغه صفتونو د وجې نه ملاویږي، او دا ژړا کونکې بې عقله زنانه هغه مذموم صفات په فخر سره بیانوي، یعنی د مړي هغه سیادت او بهادري او مالداري کومه چه به هغه په ناحقه ځایونو کښې استعمالوله او د کومو په وجه باندې چه هغه ته عذاب ملاویږي دوي د هم هغه صفتونو په بیانولو باندې ژاړي. ورجح هذا القول الاسماعیلی وهو اختیار ابن حزم وطائفته.

۷: د تعذیب نه مراد عذاب اخروي نه دې بلکه د ملائکو توبیخ او رټنه ده. مړي چه به په کومو صفتونو سره یادولې شو مثلا راځي په روایت کښې چه کله نائحه وائي ﴿واعضداه واناصراه واکاسیاه ﴾ نو ملائک دې مړي ته موکه ورکوي او هغه ته وئیلې شي انت عضدها، انت ناصرها، انت کاسیها....... یعنی وایه کنه ته رښتیا داسې ئې او هم داسې ئې؟

۸: د مړي نه مراد محتضر دې مجازا، او د تعذیب نه مراد تعذیب فی الدنیا یعنی هغه

(۱) ښځو ته ارمله یعنی کُنډه جوړونکې، ماشومانو لره یتیمانان جوړونکې، کورونه ورانونکې، یعنی چه دهغې په مرگ باندې دا مصیبتونه راځي.

ته د کور د خلقو د ژړا د وجې نه تکليف رسيږي، په دې تولو کښې زيات معروف څلورم جواب دې هم دا اختيار کړې شوې دې په درمختار او شرح اقناع کښې، او ليکلې ئې دی چه دا څيز په اهل جاهليت کښې معروف وو چه هغوی به ډير څل د مرګ په وخت د ژړا وصيت کولو، پس طرفة بن العبد وائي.

اذا مت فانعيني بما انا اهله :: وشقي على الجيب يا ابنة معبد[1]

په دې سلسله کښې د ائمه اربعه مذاهب د هغوی د فروعو د کتابونو نه په اوجز کښې نقل کړې شوې دی، مجموعی طور سره په ټولو مذاهبو کښې دا ده چه په نفس بکاء کښې هيڅ باک نشته نه د مرګ نه مخکښې او نه د مرګ نه روستو. خو ندبه حرام ده يعنی د مړی صفتونه بيانولو سره ژړل په آواز سره د زيادت د الف او د هاء نه لکه واسيداه واخليلاه او ليکلې دی چه نياحه حرام ده يعنی چغې وهل، او ژړا فرياد او واويلا کول، والحديث اخرجه مسلم والنسائي، قاله المنذري.

[۳۱۳۰](٢) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَوْسٍ، قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى أَبِي مُوسَى وَهُوَ ثَقِيلٌ، فَذَهَبَتِ امْرَأَتُهُ لِتَبْكِيَ، أَوْ تَهُمَّ بِهِ، فَقَالَ لَهَا أَبُو مُوسَى: أَمَا سَمِعْتِ مَا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَتْ: بَلَى، قَالَ: فَسَكَتَتْ، فَلَمَّا مَاتَ أَبُو مُوسَى، قَالَ يَزِيدُ: لَقِيتُ الْمَرْأَةَ، فَقُلْتُ لَهَا: مَا قَوْلُ أَبِي مُوسَى لَكِ: أَمَا سَمِعْتِ قَوْلَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ سَكَتِّ؟ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَيْسَ مِنَّا مَنْ حَلَقَ، وَمَنْ سَلَقَ، وَمَنْ خَرَقَ".

د يزيد بن اوس نه روايت دې فرمائي چه زه ابوموسی نه ته ورغلم اوهغه مريض وو نوښځه ئې دجړلودپاره پاڅيده او يادخفګان په وجه، ابوموسی ورته اووئيل اياتانه دی اوريدلي هغه چه نبی ﷺ وئيلی دی هغې اووئيل ولې نه، راوي وائی دابوموسی ښځه خاموش شوه هرکله چه ابوموسی وفات شو يزيد وائی زه ددغې ښځې سره ملاو شوم ماورته اووئيل ابوموسی تاته څه يادول چه دنبی ﷺ نه دې نه دی اوريدلي؟ يوه شيبه خاموش شوه بيا ئې اووئيل رسول الله ﷺ فرمائيلی دی هغه څوك زمونږ دا مت نه نه دې څوك چه جامې شلوي (دغم په وخت کښې) ياسر وخروي او مخ وهي.

﴿ عن امراة من المبايعات قالت كان فيما اخذ علينا رسول الله ﷺ في المعروف الذى اخذ علينا ان لا نعصيه فيه وان لا نخمش وجها ولا ندعو ويلا ولا نشق جيبا ولا ننشر شعرا ﴾

[۳۱۳۱](٣) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ الْأَسْوَدِ، حَدَّثَنَا الْحَجَّاجُ عَامِلٌ لِعُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ عَلَى الرَّبَذَةِ، حَدَّثَنِي أَسِيدُ بْنُ أَبِي أَسِيدٍ، عَنِ امْرَأَةٍ مِنَ الْمُبَايِعَاتِ، قَالَتْ: "كَانَ فِيمَا أَخَذَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَعْرُوفِ الَّذِي أَخَذَ عَلَيْنَا، أَنْ لَا نَعْصِيَهُ فِيهِ: أَنْ لَا نَخْمُشَ وَجْهًا، وَلَا نَدْعُوَ وَيْلًا، وَلَا نَشُقَّ جَيْبًا، وَأَنْ لَا نَنْشُرَ شَعْرًا".

[1]) شاعر خپلې ښځې ته خطاب کولو سره وائي او وصيت کوي چه کله زه مړ شم نو زما د مرګ خبر داسې خور کړه د کوم چه زه اهل يم، او زما په مرګ باندې په ژړا ژړا ګريوان اوشلوه.

[2]): سنن النسائي/الجنائز ٢٠ (١٨٦٦)، (تحفة الأشراف: ١٨٣٣٤)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الإيمان ٤٤ (١٠٤)، سنن ابن ماجه/الجنائز ٥٢ (١٥٨٦)، مسند احمد (٣٩٦/٤، ٤٠٤، ٤٠٥، ٤١١، ٤١٦) (صحيح)

[3]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٣٦٦) (صحيح)

ابو اسید په هغه ښځو کښې د یوې ښځې نه روایت کوی چاچه د نبی ﷺ سره بیعت کړې وو چه ویلي ئې وونبی ﷺ چه زمونږ نه بیعت اخستلې وو په هغې کښې یوه داخبره هم وه چه مونږ به نافرمانۍ نه کوو اونه به دمخ نه وینبته اوباسو اودتباشي اوهلاك شي آواز به نه کوو اودغم په وخت کښې به وینبته اوجامې نه شلوو.

**شرح الحدیث :**

اسید بن ابی اسید د هغې صحابیه رضي الله عنها نه روایت کوی چه د مبایعاتو نه ده. (قال الحافظ الم اقف علی اسمها) هغه فرمائی چه رسول الله ﷺ په کومو څیزونو باندې زمونږ نه بیعت اخستلې وو په هغې کښې یو دا خبره وه چه مونږ زنانه به په نیکو خصلتونو کښې د رسول الله ﷺ نافرمانی نه کوو نو د هغه نیکو خصلتونو نه دا هم دی چه د مصیبت په وخت باندې به مخ نه وهو او دغه شان به واویلا نه کوو او هم دغه شان به ګریوان نه شلوو او نه به وینبتو لره خوارهٔ کوو.

د دې مهاجرو زنانو نه چه رسول الله ﷺ په کوم مضمون باندې بیعت اخستلې وو هغه د سورهٔ ممتحنه په آیت کښې ذکر شوې دې ﴿ یاایها النبی اذا جآءک المومنات یبایعنک علی ان لا یشرکن بالله شیئا ولا یسرقن ولا یزنین ولا یقتلن اولادهن ولا یاتین ببهتان یفترینه بین ایدیهن وارجلهن ولا یعصینک فی معروف ﴾ په دې حدیث کښې د دې آخرې جزء ذکر دې چه د هغې مصداق هغوی په دې حدیث کښې خمش وجه او دعا بالویل او شق جیب او نشر شعر وئیلې دې.

## بَابُ صَنْعَةِ الطَّعَامِ لِأَهْلِ الْمَيِّتِ

**د مړی د کور دپاره د خوراک تیارولو بیان**

[٣١٣٢](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنِي جَعْفَرُ بْنُ خَالِدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَعْفَرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اصْنَعُوا لِآلِ جَعْفَرٍ طَعَامًا، فَإِنَّهُ قَدْ أَتَاهُمْ أَمْرٌ شَغَلَهُمْ".

عبدالله بن جعفر رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی دجعفر دکورنۍ دپاره خوراك تیار کړئ ځکه چه په دوئ داسې مصیبت راغلې دې چه دوی دې کار ته فارغ نه دي.

**الکلام علی الحدیث شرحا وفقها :**

یعنی د مړی د کور والؤ دپاره د رومبئ ورځې د سحر او مابنام د خوراک انتظام کول د لرې خپلوانو دپاره مستحب دی. فقهاء کرامو د دې تصریح کړې ده او د حدیث الباب نه ئې استدلال کړې دې او یو قول دا دې چه د دې خوراک انتظام تر د درې ورځو پورې کول پکار دی چه د تعزیت موده ده او دا ئې هم لیکلې دی چه د خوراک رالیږونکو دپاره مناسبه ده چه په تاکید سره په هغوی باندې خوراک اوکړی چه داسې او نه شی چه د زیات غم او ژړا د وجې نه هغوی خوراک پریږدی (بذل) د حدیث الباب مضمون دا دې : جعفر بن ابوطالب رضي الله عنه چه په غزوه موته کښې شهید شوې وو د هغوی ځوئې عبدالله رضي الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلې وو ﴿ اصنعوا لآل جعفر طعاما فانه قد اتاهم امر یشغلهم ﴾ یعنی د آل جعفر دپاره

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٣٦٦) (صحیح)

دوډۍ تیاره کړئ ځکه چه په هغوی باندې داسې حادثه راغلې ده چه هغوی ئې په خپل ځان اخته کړی دی او دخوراک دپاره فارغ نه دی،ددې نه مرادغم اوخفګان دې، تجهیز او تکفین نه دې ځکه چه د هغوی شهادت خو په موته کښې شوې وو چه په ملک شام کښې دې.

دا خوراک کوم چه د نورو د طرف نه وی صرف د مړی د کور والا دپاره وی. د عام دعوت خوراک نه وی لهذا نورو خلقو لره خپلو خپلو کورنو ته تلل پکار دی. او هم دغه شان خپله د مړی د کورو والو د طرف نه د میلمستیا کیدل دا خو قلب موضوع ده او بدعت مستقبحه دې قاله ابن الهمام.... والحدیث اخرجه الترمذی وابن ماجة، قاله المذری

## بَاب فِي الشَّهِيدِ يُغَسَّلُ

### شهید ته د غسل ورکولو بیان

شهید ته د غسل ورکولو مسئله خو تقریبا اتفاقی ده چه هغه ته غسل نه دی ورکول پکار، په دې کښې د حسن بصری اختلاف دې هغه د شهید د غسل ورکولو قائل دې، د هغوی دلیل دا لیکلې شوې دې ﴿ لان الغسل کرامة لبنی آدم والشهید مستحق الکرامة وانما لم تغسل شهداء احد تخفیفا علی الاحیاء لکون اکثرهم مجروحین فلم یقدروا علی غسلهم ﴾ او د جمهورو دلیل دا حدیث دې چه رسول الله ﷺ د احد د شهیدانو په باره کښې اوفرمائیل ﴿ زملوهم بکلومهم ودمائهم فانهم یبعثون یوم القیامة واوداجهم تشخب دما اللون لون الدم والریح ریح المسک الی آخر ما فی البدائع ﴾

خو په شهید باندې د مونځ کولو مسئله مختلف فیه ده، ائمة ثلاثه د دې قائل نه دی، او احناف د صلوة علی الشهید قائل دی او د امام احمد په یو روایت کښې تخیر دې، حافظ ابن قیم رحمه الله فرمائی چه د شهداء احد په باره کښې روایات مختلف دی، والصواب فی المسئلة انه مخیربین الصلوة علیهم وترکها لمجئ الآثار بکل واحدمن الامرین، وهذا احدی الروایات عن الامام احمد (عون مختصرا) د صلوة علی الشهید بحث وړاندې هم په دې باب کښې را روان دې.

[٣١٣٣](١) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا مَعْنُ بْنُ عِيسَى. ح وحَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ الْجُشَمِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ طَهْمَانَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: "رُمِيَ رَجُلٌ بِسَهْمٍ فِي صَدْرِهِ، أَوْفِي حَلْقِهِ، فَمَاتَ، فَأُدْرِجَ فِي ثِيَابِهِ كَمَا هُوَ، قَالَ: وَنَحْنُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

دجابر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه یوسړې په سینه کښې په غشي باندې ولګیدو یاپه مرۍ کښې اومړ شو په خپلو جامو کښې ونغښتلې شو څنګه چه هغه مخکښې ور جابروائی او مونږ دنبی علیه السلام سره ملګري وو.

﴿عن جابر رضی الله عنه قال رمی رجل بسهم فی صدره او فی حلقه فمات فادرج فی ثیابه کما هو ﴾

یعنی یو سړې چه په غشی لګیدلې وو په سینه کښې یا په حلق کښې چه د هغې نه ئې مرګ واقع شو نو هغه هم دغه شان د هغه په کپړو کښې دفن کړې شو. یعنی بغیر د غسل نه.

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٢٦٤٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣٦٧) (حسن)

[۳۱۳۴]() حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ، وَعِيسَى بْنُ يُونُسَ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَاصِمٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "أَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَتْلَى أُحُدٍ، أَنْ يُنْزَعَ عَنْهُمُ الْحَدِيدُ، وَالْجُلُودُ، وَأَنْ يُدْفَنُوا بِدِمَائِهِمْ وَثِيَابِهِمْ".

دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام راته حکم کړې وو داحد دشهيدانو په باره کښې چه وسپنې (اسلحه)او څرمنې ترې لرې کړئ او په خپلوجامو او وينوکښې ئې دفن کړئ.

﴿عن ابن عباس رضي الله عنه قال امر رسول الله ﷺ بقتلى احد ان ينزع عنهم الحديد ...الخ﴾:

يعنې د شهداء احد په باره کښې رسول الله ﷺ دا اوفرمائيل چه د هغوی د بدنونو نه دې وسله وغيره کوزه کړې شي او هم دغه شان زياتې جامه هم، او دوی دې په خپلو وينو او جامو کښې دفن کړې شي [۲] د جمهورو مسلک خو هم دا دې په دې کښې د امام مالک رحمه الله اختلاف دې د هغوی په نزد وسله خو به کوزولې شي خو زياتې جامه وغيره به نه شي ويستلې. والحديث اخرجه ابن ماجة، قاله المنذري

[۳۱۳۵]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ. ح وحَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، وَهَذَا لَفْظُهُ، أَخْبَرَنِي أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ اللَّيْثِيُّ، أَنَّ ابْنَ شِهَابٍ أَخْبَرَهُ، أَنَّ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ، حَدَّثَهُمْ: أَنَّ شُهَدَاءَ أُحُدٍ لَمْ يُغَسَّلُوا، وَدُفِنُوا بِدِمَائِهِمْ، وَلَمْ يُصَلَّ عَلَيْهِمْ.

دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه داحد شهيدانو ته غسل نه وو ورکړې شوې اوپه خپلو وينوکښې دفن کړې شوي وو اوجنازه هم ورباندې نه وه شوې.

﴿عن انس بن مالك رضي الله عنه ان شهداء احد لم يغسلوا ولم يصل عليهم﴾

## د صلوة على الشهيد بحث:

د صلوة على الشهيد مسئله لکه چه اوس پورته تيره شوه مختلف فيه ده، وراندې يو مستقل باب د کتاب الجنائز په آخره کښې را روان دې، ﴿باب الصلوة على القبر بعد حين﴾ چه په هغې کښې دا حديث دې ﴿عقبة بن عامر رضي الله عنه ان رسول الله ﷺ خرج يوما فصلى على اهل احد صلاته على الميت﴾ او د دې حديث په دويم طريق کښې دا دی ﴿صلى على قتلى احد بعد

---

[۱]: سنن ابن ماجه/الجنائز ۲۸ (۱۵۱۵)، (تحفة الأشراف: ۵۵۷۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۴۷/۱) (ضعيف)

[۲] قال الموفق: وينزع من ثيابه مالم يكن من عامة لباس الناس من الجلود والفراء والحديد قال احمد: لا يترك عليه فردو ولا خف ولا جلد وبهذا قال الشافعي وابوحنيفة، وقال مالك لا ينزع عنه فرو ولا خف ولا محشو لعموم قوله ﷺ ادفنوهم بثيابهم، وما رويناه اخص فكان اولي آهـ...... د دې نه معلومه شوه چه د جمهور علماء او ائمه ثلاثه مذهب خو دا دې چه د عام جامو نه علاوه دې ترې نه زياتې جامه وغيره موزې اويستلې شي. خو د امام مالک رحمه الله په دې کښې اختلاف دې د هغوی په نزد به ترې نه زياتې جامه او موزې وغيره هم نه شي ويستلې. هم دغه شان په دسوقی کښې هم دی، پس په هغې کښې دی مع خف وقلنسوة ومنطقة قل ثمنها وخاتم فضة قل فصه اي قيمته لا بآلة حرب من درع وسلاح آهـ معلومه شوه چه وسله وغيره او زغرې به د امام مالک رحمه الله په نزد هم کوزولې شي،

[۳]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۴۷۸) (حسن)

ثمان سنين كالمودع للاحياء والاموات ﴾ امام بخاری رحمه الله په ﴿ باب الصلوة على الشهيد ﴾ كښې دوه احاديث ذكر كړې دی يو هم دا د عقبه بن عامر رضي الله عنه والا او دويم د جابر بن عبدالله رضي الله عنه چه د هغې په اخر كښې دی ﴿ وامر بدفنهم فی دمائهم ولم يغسلوا ولم يصل عليهم ﴾ امام ابن قدامة په دې دواړو حديثونو كښې يو لره د خپل مسلک دليل منلو سره د دويم حديث يعنی حديث عقبه رضي الله عنه دا جواب كړې دې چه دا مخصوص دې د شهداء احد سره، ځکه چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم دا مونځ په شهيدانو باندې مونځ وو د هغوی په قبرونو باندې او اته كاله پس وو، او احناف د صلوة على القبر بالكل نه دی قائل، او جمهور هم د يو مياشت نه پس د صلوة على القبر قائل نه دی، لهذا هم دا به وئيلې شی چه دا د شهداء احد سره خاص دې، بله دا چه هغوی وئيلې دی چه د ابن عباس رضي الله عنه دا حديث ﴿ ان النبی صلى الله عليه وسلم صلى على قتلى احد ﴾ ضعيف دې ځکه چه د دې راوی حسن بن عماره دې چه ضعيف دې، وقد انكر عليه شعبة رواية هذا الحديث آهـ او قسطلانی فرمائی چه د ابن حزم ظاهری رحمه الله مذهب دا دې چه صلوة على الشهيد هم حسن دې او ترک الصلوة هم حسن دې، او هغوی استدلال کړې دې د بخاری هم د دې دواړو احاديثو نه، وقال ليس يجوز ان يترک احد الاثرين المذكورين للاخر، بل كلاهما حق مباح وليس هذا مكان نسخ لان استعمالهما معا ممكن آهـ وقال العينی : ذهب ابن ابی ليلى والحسن بن حی وعبيدالله بن الحسن وسليمان بن موسى وسعيد بن عبدالعزيز والاوزاعی والثوری وابوحنيفة وابويوسف ومحمد واحمد فی رواية واسحاق فی رواية الى انه يصلى عليه وهو قول اهل الحجاز ايضا واحتجوا فی ذلک بحديث عقبة عند البخاری، وقوله فيه صلاته على الميت يرد قول من قال ان الصلوة فيه محمولة على الدمآء وممن قال به ابن حبان والبيهقی والنووی، امام نووی رحمه الله فرمائی چه د صلاته على الميت مطلب دا دې چه كومه دعا به هغوی د مړو دپاره غوښتله هم هغه دعا ئې د هغوی دپاره اوغوښتله، او دا مطلب نه دې چه د هغوی دپاره ئې مونځ اوكړو، هم دا تاويل ابن حبان او بيهقی هم كړې دې، قال العينی : وهذا عدول عن المعنى الذی يتضمنه هذا اللفظ لاجل تمشية مذهبه فی ذلک، وهذا ليس بانصاف، واحتجوا فی ذلک ايضا بما رواه ابن ماجة بسنده عن ابن عباس رضي الله عنه قال اتى بهم رسول الله صلى الله عليه وسلم يوم احد فجعل يصلی على عشرة عشرة وحمزة وهو كما هو يرفعون، هو كما هو موضوع، يعنی په لسو لسو كسانو باندې به مونځ كولې شو او په حمزه رضي الله عنه باندې، د مونځ نه پس به خو د حمزه رضي الله عنه جنازه هم هلته پرته وه او باقی به اوچتولې شو، الى آخر ما فی اولاجز...... وفيه ايضا : وبسط الزيلعی فی نصب الراية، طرق الصلوة على الشهداء ولخصها الحافظ فی الدراية فارجع اليهما لو شئت.

په دې سلسله كښې بعض روايات حافظ ابن قيم رحمه الله هم په تهذيب السنن كښې ذكر كړې دی، ومنها : حديث انس ان النبی صلى الله عليه وسلم صلى على حمزة، وحديث ابی مالک الغفاری كان قتلى احد يوتی منهم بتسعة وعاشرهم حمزة فيصلی عليهم رسول الله صلى الله عليه وسلم ثم يحملون ثم يوتی بتسعة فيصلی عليهم وحمزة مكانه، هذا مرسل صحيح ذكره البيهقی، وقال هو اصح ما فی الباب..... د دې روايت مقتضى دا ده چه په حمزه رضي الله عنه باندې اووه كرته مونځ كړې شوې دې په باقی تولو

باندې یو یو کړت. ومنها وقد روی ابن اسحاق عن رجل من اصحابه عن مقسم عن ابن عباس ﷺ ان النبی ﷺ صلی علی حمزة فکبر سبع تکبیرات ولم یؤت بقتیل الاصلی علیه معه حتی صلی علیه اثنتین وسبعین صلوة، ولکن هذا الحدیث له ثلاث علل الی آخر ما ذکر، دا آخری روایت د هغه مخکښې روایت هم خلاف دې کوم چه مرسل قوی دې.

[٣١٣٦]() حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا زَيْدٌ يَعْنِي ابْنَ الْحُبَابِ. ح وحَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو صَفْوَانَ يَعْنِي الْمَرْوَانِيَّ، عَنْ أُسَامَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، الْمَعْنَى أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ عَلَى حَمْزَةَ، وَقَدْ مُثِّلَ بِهِ، فَقَالَ: لَوْلَا أَنْ تَجِدَ صَفِيَّةُ فِي نَفْسِهَا، لَتَرَكْتُهُ حَتَّى تَأْكُلَهُ الْعَافِيَةُ. حَتَّى يُحْشَرَ مِنْ بُطُونِهَا، وَقَلَّتِ الثِّيَابُ، وَكَثُرَتِ الْقَتْلَى، فَكَانَ الرَّجُلُ وَالرَّجُلَانِ وَالثَّلَاثَةُ يُكَفَّنُونَ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ، زَادَ قُتَيْبَةُ: ثُمَّ يُدْفَنُونَ فِي قَبْرٍ وَاحِدٍ، فَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْأَلُ: "أَيُّهُمْ أَكْثَرُ قُرْآنًا؟ فَيُقَدِّمُهُ إِلَى الْقِبْلَةِ".

دانس بن مالک ﷺ نه دتیر روایت په شان روایت نقل شوې دې مګر ددې اضافي سره چه نبی علیه السلام په حمزه باندې تیرشو اوهغه مثله شوې وو، نبی علیه السلام اوفرمائی که چرې صفیه نه خفه کیدلې نومابه د حمزه لاش همداسې بهر په ډاګه پریخودلې وو تردې چه لیوانوبه خوړلې رې بیابه دقیامت په ورځ دلیوانودخیټونه راوتلو په هغه زمانه کښې دجامو کمې وو اودشهیدانو تعداد زیات وو یو او دوه اودرې کسان به په یوه جامه کښې دفن کولې شو لیکن ددفن کولونه مخکښې به نبی علیه السلام تپوس اوکړو چه په دوی کښې دقران علم دچاسره زیات دې؟ نوهغه به ئې دقبلې طرف ته مخامخ کړو.

﴿ عن انس بن مالک ﷺ ان رسول الله ﷺ مر علی حمزة وقد مثل به فقال رسول الله ﷺ لولا ان تجد صفیة فی نفسها لترکته حتی تاکله العافیة حتی یحشر من بطونها ﴾

## شرح الحدیث :

یعنی رسول الله ﷺ د احد په جنګ کښې په حمزه ﷺ باندې تیر شو په داسې حال کښې چه هغوی مثله کړې شوې وو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه که ماته د خپلې ترور صفیه ﷺ خیال نه وې نو ما به دوی هم په دې حال کښې دلته پریخودلې وې چه حیواناتو او مارغانو د هغوی بدن خوړلې وې او بیا په آخرت کښې د هغه حیواناتو د خیټو نه د هغوی اجزاء جمع کولو سره د هغه حشر شوې وې.

دا رسول الله ﷺ ځکه غوښتله چه د هغوی په اجر او ثواب کښې اضافه اوشی، او د هغوی شهادت د الله پاک نزد ښه ښکاره شی وراندې په روایت کښې دی چه چونکه د جامو کمې وو او د مقتولینو کثرت په دې وجه دوه دوه او درې درې مړی په یو کپړه کښې کفن کړې شو، او بیا به هغوی ټول په یو قبر کښې دفن کولې شو، په قبر کښې د کیخودلو په وخت به رسول الله ﷺ تپوس کولو چاته قرآن زیات یاد دې پس هم هغه به ئې د قبلې طرف ته مخکښې کولو.

په دې روایت کښې دا هم دی چه په یو کپړه کښې به د دوه او درې کسانو تکفین کیدلو، خو په دې صورت کښې به د یو بدن د بل سره لګی او دا جائز نه ده، لهذا د دې

(): سنن الترمذي/الجنائز ٣١ (١٠١٦)، (تحفة الأشراف: ١٤٧٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢٨/٣) (حسن)

تاویل به دا کولې شی چه مثلا یو لوئې څادر دې د هغې دوه یا درې ټکرې کولو سره به هر یو مړي په ځانله ځانله ټکره کښېږ کفن کولې شو چه د یو بل سره او نه لګی. او یا بیا دا په ضرورت او مجبورئ باندې محمول کولې شی. (بذل) او مظهر شارح د مصابیح د ثوب واحد تاویل په قبر واحد سره کړې دې ممکنه ده چه دا تاویل په بعض نورو روایتونو کښې اوچلیږی خو زمونږ په دې روایت کښې نه شی چلیدې ځکه دلته د دې نه پس په روایت کښې دی ﴿ ثم یدفنون فی قبر واحد ﴾

## په حدیث الباب باندې د امام ترمذی اعتراض :

د دې نه پس په دې باندې ځان پوهه کړئ چه دا حدیث په ترمذی کښې هم دې او په هغې کښې په اخر کښې دا زیادت دې ﴿ قال فدفنهم رسول الله ﷺ ولم یصل علیهم ﴾ امام ترمذی رحمه الله د دې حدیث په سند باندې کلام کړې دې او هغه دا چه د دې حدیث په سند کښې د اسامة بن زید نه خطاء واقع شوې ده هغه دې حدیث لره په دې سند سره روایت کولو کښې متفرد دې. د اسامه نه علاوه د امام زهری رحمه الله نورو شاګردانو دا حدیث بل شان روایت کړې دې ﴿ فروی اللیث بن سعد عن ابن شهاب عن عبدالرحمن بن کعب بن مالک عن جابر بن عبدالله رضي الله عنهما ﴾ او هم دغه شان معمر دا روایت کړو ﴿ عن الزهری عن عبدالله بن ثعلبة عن جابر، ﴾ یعنی اسامه دا د انس د مسانیدو نه ګنړلې دې، او د اسامه نه علاوه لیث بن سعد او معمر د جابر د مسانیدو نه.

[۳۱۳۷]()حَدَّثَنَا عَبَّاسٌ الْعَنْبَرِيُّ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا أُسَامَةُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِحَمْزَةَ، وَقَدْ مُثِّلَ بِهِ، "وَلَمْ يُصَلِّ عَلَى أَحَدٍ مِنَ الشُّهَدَاءِ غَيْرِهِ".

دانس بن مالک رضي الله عنه نه روایت دې چه نبی علیه السلام په حمزه باندې تیرشو اوهغه مثله شوې وو، اوجنازه ئې اونکړه په یوکس باندې ددوی نه.

﴿ عن انس رضي الله عنه ان النبی ﷺ مر بحمزة وقد مثل به ولم یصل علی احد من الشهداء غیره ﴾

په دې روایت کښې ﴿ لم یصل علی احد ﴾ نه پس ﴿ بعد ﴾ د غیره لفظ دې چه د هغې نه د حمزة رضي الله عنه استثناء معلومیږی چه په هغه باندې ئې اولوستلو او د هغه نه علاوه ئې په چا باندې هم او نه لوستلو، امام دارقطنی په دې زیادت باندې کلام کړې دې پس هغوی فرمائی : ورواه عثمان بن عمر عن اسامة عن الزهری عن انس وزاد فیه حرفا لم یات به غیره فقال "ولم یصل علی احد من الشهداء غیره ولیس بمحفوظ" خو حافظ منذری رحمه الله ته لکه چه د هغوی د کلام کتلو نه معلومیږی د دارقطنی په اعتراض باندې انشراح نشته، ځکه چه هغوی د دارقطنی د اعتراض نقل کولو نه پس لیکی چه ﴿ فاسامة بن زید فقد احتج به مسلم واستشهد به البخاری، واما عثمان بن عمر فقد اتفق البخاری ومسلم علی الاحتجاج بحدیثه ﴾ او بیا وړاندې تلو سره هغوی صلوة علی حمزة چه په طریق د عثمان کښې دی د دې تاویل د بعض علماء کرامو نه دا نقل کړې دې چه دا صلوة په معنی د دعا دې.

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۴۷۹) (حسن)

فائده : دا حديث چه په هغې کښې د احد په شهيدانو باندې د مانځه نفي او د حمزه رضي الله عنه د پاره ثبوت ذکر دې، د امام دارقطني وغيره په دې باندې اعتراض کول او د حافظ منذري په ځائې د رد د دې تاويل کول په دې کښې د صلوة على حمزة نه دعاء مراد دې، د دې نه دا معلوميږي چه دا حضرات محدثين کوم چه د صلوة على الشهيد قائل نه دی په دې کښې بعض د حمزه رضي الله عنه استثناء هم نه قبلوي بلکه على العموم د نفي قائل دی،

وكنت اظن قديما ان الاختلاف انما هو فى غير حمزة لا فى حمزة فظهر من هذا خلافه.....

[٣١٣٨](١) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، وَيَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ مَوْهَبٍ: أَنَّ اللَّيْثَ حَدَّثَهُمْ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ أَخْبَرَهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَجْمَعُ بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ مِنْ قَتْلَى أُحُدٍ، وَيَقُولُ: أَيُّهُمَا أَكْثَرُ أَخْذًا لِلْقُرْآنِ؟ فَإِذَا أُشِيرَ لَهُ إِلَى أَحَدِهِمَا، قَدَّمَهُ فِي اللَّحْدِ، وَقَالَ: أَنَا شَهِيدٌ عَلَى هَؤُلَاءِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، وَأَمَرَ بِدَفْنِهِمْ بِدِمَائِهِمْ، وَلَمْ يُغَسَّلُوا".

دجابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام به دوه دوه کسان داحد شهيدان يوځائې دفن کول او وئيل به ئې چه په دوی کښې دقران علم دچاسره زيات دې؟ نوچه کله به يو تن ته اشاره وشوه نوهغه به ئې لحد ته مخکښې کوز کړو او وئيل به ئې زه به په دوی باندې ګواه يم په ورځ دقيامت اوبيابه ئې حکم اوکړو په دفن کولودوی باندې سره دوينونه او غسل به ئې ورنکړل.

﴿ حدثنا قتيبة بن سعيد ويزيد بن خالد بن موهب ان الليث حدثهم عن ابن شهاب عن عبدالرحمن بن كعب بن مالک ان جابر بن عبدالله اخبره الخ ﴾

دا هم هغه طريق دې کوم ته چه امام ترمذی رحمه الله ترجيح ورکړې ده په طريق د اسامة بن زيد باندې، او طريق د اسامة ته ئې وهم وئيلې دې، داسې معلوميږي چه د امام ابوداؤد په نزد هر دواړه طريق صحيح دی ځکه چه هغوی حديث په هر دواړو طريقو سره ذکر کړو او سکوت ئې اختيار کړو. والله تعالى اعلم بالصواب

[٣١٣٩](٢) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنِ اللَّيْثِ: بِهَذَا الْحَدِيثِ بِمَعْنَاهُ، قَالَ: يَجْمَعُ بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ مِنْ قَتْلَى أُحُدٍ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ.

په دې سند سره هم د ليث نه ددې مفهوم حديث نقل دې، په دې کښې دی چه نبي کريم صلى الله عليه وسلم د اُحد شهيدان دوه دوه سرې يو ځائې په يوه کپړه کښې دفن کول.

......

---

(١): صحيح البخاري/الجنائز ٧٢ (١٣٤٣)، ٧٣ (١٣٤٥)، ٧٥ (١٣٤٧)، ٧٨ (١٣٥٣)، المغازي ٢٦ (٤٠٧٩)، سنن الترمذي/الجنائز ٤٦ (١٠٣٦)، سنن النسائي/الجنائز ٦٢ (١٩٥٧)، سنن ابن ماجه/الجنائز ٢٨ (١٥١٤)، (تحفة الأشراف: ٢٣٨٢) (صحيح)

(٢): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٢٣٨٢) (صحيح)

## بَابٌ فِي سَتْرِ الْمَيِّتِ عِنْدَ غَسْلِهِ

### دغسل به وخت کښې مړي ته د پردې کولو بیان

او په بعض نسخو کښ، في ستر الميت دي وهو الاوضح.

[۳۱۴۰]()حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ سَهْلٍ الرَّمْلِيُّ، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: أُخْبِرْتُ عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ ضَمْرَةَ، عَنْ عَلِيٍّ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تُبْرِزْ فَخِذَكَ، وَلَا تَنْظُرَنَّ إِلَى فَخِذِ حَيٍّ، وَلَا مَيِّتٍ".

د علی کرم الله وجهه نه روایت دي فرمائی چه نبی کریم صلي الله علیه وسلم فرمائیلی دي. خپل ورون مه ښکاره کوه اودچا ورون ته مه ګوره چه مړوي اوکه ژوندي.

﴿عن علی رضي الله عنه ان النبی صلى الله عليه وسلم قال: لا تبرز فخذك ولا تنظر الى فخذ حي ولا ميت﴾

د دې حدیث نه معلومه شوه چه د ستر عورت په مسئله کښې مړې په شان د ژوندي دي، لهذا د غسل په وخت د مړی د ستر اهتمام واجب دي، كما فی ترجمة الباب. والحديث اخرجه ابن ماجة، قاله المنذری

[۳۱۴۱]()حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ عَبَّادٍ، عَنْ أَبِيهِ عَبَّادِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، قَالَ: سَمِعْتُ عَائِشَةَ، تَقُولُ: لَمَّا أَرَادُوا غَسْلَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالُوا: وَاللَّهِ مَا نَدْرِي، أَنُجَرِّدُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ ثِيَابِهِ كَمَا نُجَرِّدُ مَوْتَانَا، أَمْ نَغْسِلُهُ وَعَلَيْهِ ثِيَابُهُ؟ فَلَمَّا اخْتَلَفُوا أَلْقَى اللَّهُ عَلَيْهِمُ النَّوْمَ، حَتَّى مَا مِنْهُمْ رَجُلٌ إِلَّا وَذَقْنُهُ فِي صَدْرِهِ، ثُمَّ كَلَّمَهُمْ مُكَلِّمٌ مِنْ نَاحِيَةِ الْبَيْتِ، لَا يَدْرُونَ مَنْ هُوَ: أَنِ اغْسِلُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْهِ ثِيَابُهُ، فَقَامُوا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَغَسَلُوهُ وَعَلَيْهِ قَمِيصُهُ، يَصُبُّونَ الْمَاءَ فَوْقَ الْقَمِيصِ، وَيُدَلِّكُونَهُ بِالْقَمِيصِ دُونَ أَيْدِيهِمْ، وَكَانَتْ عَائِشَةُ تَقُولُ: لَوِ اسْتَقْبَلْتُ مِنْ أَمْرِي مَا اسْتَدْبَرْتُ، مَا غَسَلَهُ إِلَّا نِسَاؤُهُ.

دام المومنین عائشة رضي الله عنها نه روایت دي فرمائی چه کله صحابه کرامو اراده وکړه چه نبی کریم صلى الله عليه وسلم ته غسل ورکړی نو مختلف شول چه ایاد جامونه بغیر بربنډ غسل ورکړو د نورو مړو پشان اوکه دجاموسره غسل ورکړو نوچه کله دوی مختلف شول نو الله تعالی ورباندې پرکالي (خوب)راوستونو په دوی کښې څوك هم داسې نه ووچه دخوب دوجې نه زنه په سینه باندې نه وی لګیدلې، په دې وخت دکورپه ګوټ کښې ګنګوسي اوشو معلومه نشوه چه دچا آوازوو ،هغه خبره داوه چه نبی کریم صلى الله عليه وسلم ته دجاموسره دې غسل ورکړی شي خلقو چه دا واوریدل نودقمیص سره ئې غسل ورکړو ،یعني خلقوبه پرې دقمیص دپاسه اوبه اړولې اوپه قمیص به ئې مږلونه چه په لاسونوهام المومنین عائشة رضي الله عنها وائی که چرې ماته مخکښې رایاد شوي وي کومه خبره چه ماته روسته رایاده شوه نونبی علیه السلام ته به خپلوبیبیانوغسل ورکړې وې.

﴿سمعت عائشة رضي الله عنها تقول : لما ارادوا غسل النبی صلى الله عليه وسلم قالوا والله ما ندری انجرد رسول الله صلى الله عليه وسلم من ثيابه كما نجرد موتانا ام نغتسله وعليه ثيابه﴾

[1]: سنن لبن ماجه/الجنائز ۸ (۱۴۶۰)، (تحفة الأشراف: ۱۰۱۳۳)، وقد أخرجه: حم (۱۴۶/۱) (ضعيف جداً)

[2]: سنن لبن ماجه/الجنائز ۹ (۱۴۶۴)، (تحفة الأشراف: ۱۶۱۸۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۶۷/۶) (حسن)

**شرح الحدیث :**

عائشةؓ فرمائی چه د رسول اللهﷺ د غسل متعلقینو چه کله هغوی ته د غسل ورکولو اراده اوکړه نو خپل مینځ کښې ئې اوئیل او سوچ ئې اوکړو چه د رسول اللهﷺ کپړې ویستلو سره هغوی ته غسل ورکړې شی لکه چه د عامو مړو سره کولې شی یا د هغوی د جامو ویستلو نه بغیر هغوی ته غسل ورکړې شی، لا تراوسه پورې څه رائې نه وه قائمه شوې چه ناڅاپه په دوی باندې الله پاک خوب راوستلو چه د هغې په وجه باندې د هر یو زنه د سینې سره اولګیده، بیا د حجرې شریفې د یو طرف نه د یو آواز کونکی آواز راغلو چه د هغې په باره کښې چاته هم پته نه وه چه څوک دې، هغه دا کلام اوکړو چه رسول اللهﷺ ته د هغوی د کپړو سره غسل ورکړئ، د دې نه پس ټولو هم دغه شان اوکړه، **﴿فغسلوه وعلیه قمیصه یصبون الماء فوق القمیص﴾** چه اوبه ئې بهیولې د قمیص دپاسه او بدن مبارک ئې هم په هغه قمیص باندې مږلو په لاسو سره نه، په دې باندې بذل کښې لیکلی دی **﴿ویستدل بهذا الحدیث ان المیت اذا اغتسل یجب ان لا یمس عورته الا بلف الثوب علی یده﴾**

**﴿کما نجرد موتانا الخ﴾** په دې باندې حضرت شیخؒ په حاشیه د بذل کښې لیکلې دی چه د جمهور علماء ثلاثه په نزد مستحب طریقه هم دا ده چه د مړی نه کپړې ویستلې شی او په بله کپړه کښې ورته غسل ورکړې شی، د امام شافعیؒ مسلک دا دې چه د مړی غسل د هغه په مخکښې کپړو کښې کیدل پکار دی، او د جمهور په نزد دا حدیث په خصوصیت باندې محمول دې.

**په صدیق اکبرؓ کښې قدرة د اثار خلافت موجود کیدل :**

د رسول اللهﷺ په وفات باندې صحابه کرامو ؓ ته په ډیرو مسائلو کښې حیرانی پیدا شوې وه چه په دې کښې څه اوکړې شی، او د حیرانتیا راتلل قیاس ته هم زیاته نزدې وه ځکه چه اصل معلم او مفتی د صحابه کرامو ؓ دپاره رسول اللهﷺ وو. اوس که تپوس اوکړی نو د چا نه اوکړی، ځکه چه دې مخکښې مسئله کښې خو د الله پاک د طرف نه غیبی امداد راغلو، د دې نه پس چه صحابه کرامو ؓ ته څه قسمه مسئله پیدا شوه په هغې کښې ئې صدیق اکبرؓ پوره پوره رهنمائی اوکړه چه په هغې باندې د صحابه کرامو ؓ تسلی کیده، پس صحابه کرامو ؓ ته د جنازې په مانځه کښې هم شک پیدا شو، او هم دغه شان ئې د دفن په باره کښې هم شک پیدا شو، لکه چه د شمائل ترمذی په روایت کښې دی، په دې ټولو کارونو کښې صدیق اکبرؓ فیصله کن جواب ورکړو او صحابه کرامو ؓ د هغې مطابق عمل کولو، رښتیا دا ده چه الله پاک د چا نه کوم کار اخلی هغه پخپله مخامخ راشی او د خلقو په هغې باندې اتفاق پیدا شی

**﴿وکانت عائشة تقول لو استقبلت من امری ما استدبرت ما غسله الا نساؤه﴾**

**شرح الحدیث :**

راوی وائی چه مور بی بی (عائشةؓ) به فرمائیل چه کومه خبره ماته روستو معلومه شوه که وړاندې معلومه وه نو بیا به رسول اللهﷺ ته غسل د هغوی بیبیانو ورکولو نه صحابه

کرامﷺ، شارحانو د دې دا مطلب ليکلې دې چه د دې نه مراد د تعلق د نکاح باقي پاتې کيدل دی په موده د عدت کښ، يا د نکاح نه منقطع کيدل د ازواج مطهرات په حق کښې په خصوصيت سره د هميشه دپاره، دا دواړه مطلبه خو يو بل ته نزدې نزدې دی، دلته د دې جملې په مطلب کښې دوه احتماله نور هم دی کوم چه حضرت شيخ په سبق کښې بيان فرمائيلي وو، اول دا چه که ماته د مخکښې نه معلومه وه چه بعض خلق به د عدم غسل ازواج نه استدلال کوی په دې باندې چه د زوجې دپاره زوج ته غسل ورکول جائز نه دی نو بيا به هم مونږ رسول اللهﷺ ته غسل ورکړې وې، دويم احتمال ئې دا فرمائيلي وو چه عائشېرضي الله عنها ته به علم شوې وی چه بعض علوی حضرات طعن کوی چه څنګه ئې پلار يعنی ابوبکررضي الله عنه د استخلاف په مسئله کښې مشغول شوي وو، د رسول اللهﷺ تجهيز او تکفين پريخودلو سره هم دغه شان ئې لور بی بی عائشه صديقهرضي الله عنها هم په دې کښې مشغوله شوې وه، نو په دې باندې عائشهرضي الله عنها فرمائی که ماته دا مخکښې معلومه وه نو بيا به د رسول اللهﷺ بيبيانو هغوی ته غسل ورکړې وې آه

**د احد الزوجين يو بل ته غسل ورکول او مذاهب الائمة په دې کښې:**

اوس پاتې شوه دا مسئله چه په زوجينو کښې يو بل ته غسل ورکولې شی او که نه؟ د جمهور علماء کرامو او ائمة ثلاثه په نزد خو د دواړو د طرف نه جائز دې يعنی احد الزوجين يو بل ته غسل ورکولې شی که زوج وی که زوجه، او احناف په دې کښې د فرق قائل دی د هغوی په نزد د زوجې دپاره د خاوند غسل جائز دې ځکه چه په عدت کښې نکاح باقی پاتی وی، او د دې عکس جائز نه دې، د جمهور علماء کرامو استدلال د علیرضي الله عنه د غسل نه دې فاطمېرضي الله عنها ته چه فاطمېرضي الله عنها ته د هغې د وفات نه پس علیرضي الله عنه غسل ورکړې وو، جواب د دې دا دې چه دا متفق عليه امر نه دې چه فاطمېرضي الله عنها ته علیرضي الله عنه غسل ورکړې وو فقد قيل غسلتها ام ايمن، ولو سلم فقد انكر ابن مسعود على علىرضي الله عنه (بذل)

په مذاهبو کښې صحيح هم دغه شان دې او کوم چه په بذل کښې د امام شوکانیرحمه الله نه منقول دی چه د امام احمدرحمه الله په نزد د ښځې دپاره خاوند ته غسل ورکول جائز نه دی دا سهو ده، حضرت شيخ په اوجز کښې د حنابله د کتابونو نه جواز نقل کړې دې، بلکه په اوجز کښې ئې د امام شوکانیرحمه الله په نقل باندې اعتراض هم کړې دې چه يا خو هغه صحيح نه دی يا کيدې شی چه د امام احمدرحمه الله يو روايت وی، په اوجز کښې دا مسئله د موطاء د دې روايت د لاندې ليکلې شوې ده چه په هغې کښې دی ﴿ان اسماء بنت عميس امرأة ابی بکر الصديق غسلت ابابکر الصديق حين توفی﴾ (اوجز ٤٢٨/٢)

والحديث اخرج ابن ماجة منه قول عائشة لو استقبلت الخ. واخرج ابن ماجة من حديث بريدة بن الحصيبرضي الله عنه لما اخذوا فی غسل الخ قاله المنذری.

[۳۱۴۲]() حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ الْمَعْنَى، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ، قَالَتْ: دَخَلَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ تُوُفِّيَتِ ابْنَتُهُ، فَقَالَ: "اغْسِلْنَهَا ثَلَاثًا، أَوْ خَمْسًا، أَوْ أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ إِنْ رَأَيْتُنَّ ذَلِكَ، بِمَاءٍ وَسِدْرٍ، وَاجْعَلْنَ فِي الْآخِرَةِ كَافُورًا، أَوْ شَيْئًا مِنْ كَافُورٍ، فَإِذَا فَرَغْتُنَّ، فَآذِنَّنِي، فَلَمَّا فَرَغْنَا آذَنَّاهُ، فَأَعْطَانَا حَقْوَهُ، فَقَالَ: أَشْعِرْنَهَا إِيَّاهُ". قَالَ عَنْ مَالِكٍ: يَعْنِي إِزَارَهُ، وَلَمْ يَقُلْ مُسَدَّدٌ دَخَلَ عَلَيْنَا.

دام عطية رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه نبي ﷺ مونږ ته راغې په هغه وخت کښې کله چه دهغه لور وفات شوې وه چه درې ځله يا پنځه ځله يا ددينه زيات غسل ورکړئ اوکه مناسب درته ښکاره شوه نودبيرو په پاڼوکښې په بشيدلو اوبو غسل ورکړئ او په اخر کښې ورسره کافور هم شامل کړئ اوکله چه دغسل ورکولونه فارغ شئ نومانه اطلاع راکړئ، ام عطية اووئيل کله چه مونږ فارغ شو نو نبي ﷺ ته مو اطلاع ورکړه نونبي ﷺ مونږ ته خپل لنګ راکړو اووئې فرمائيل چه په دې کښې ئې راونغاړئ اونبي ﷺ دا دبرکت دوجې نه ورکړو اودمسدد په روايت کښې دخل علينا الفاظ نشته.

﴿عن ام عطية رضي الله عنها قالت دخل علينا رسول الله ﷺ حين توفيت ابنته فقال اغسلنها ثلاثا او خمسا او اكثر من ذلك ان رايتن ذلك بماء وسدر﴾

## شرح الحديث:

ام عطيه رضي الله عنها فرمائي چه کله د رسول الله ﷺ د لور وفات اوشو (او هغې ته غسل ورکړې کيدو نو) رسول الله ﷺ مونږ ته تشريف راوړو او د غسل په باره کښې ئې څو هدايات مونږ ته راکړل هغوی اوفرمائيل چه غسل درې کرته يا پنځه کرته يا د دې نه زيات څومره چه ضرورت ګنړئ هم هغه شان ورکړئ، او د بيرې په پاڼو سره غسل ورکړئ او آخرى ځل په اوبو کښې کافور يو ځائې کړئ. د دې لور نه مراد کومه لور ده؟ په بذل کښې زينب رضي الله عنها ليکلې شوې ده او د شيخ په حاشيه د بذل کښې دا دی

﴿بسط الحافظ في الفتح ۸۳/۲ الكلام على مسمى البنت هذه، وكذا في الاوجز، والاكثر على انها زينب، وقيل ام كلثوم ومال ابوالطيب في شرح الترمذى الى الجمع بينهما﴾ آهـ وقال المنذرى هى زينب زوج ابى العاص ابن الربيع وهى اكبربناته ﷺ هذا هواكثر المروى وذكر بعض اهل السير انها ام كلثوم وقد ذكره ابوداؤد فى ما بعد وفى اسناده مقال والصحيح الاول لان ام كلثوم توفيت ورسول الله ﷺ غائب ببدر آهـ﴾

﴿اغسلن﴾ د امر حاضر جمع مونث صيغه ده چه د هغې اصل مخاطب خو ام عطيه ده ځکه چه د مړی په لامبلو کښې هم دا ډيره ماهره وه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې، تردې چه وراندې په روايت کښې راځی چه محمد بن سيرين جليل القدر تابعي به د مړی د غسل طريقه د ام عطيه رضي الله عنها نه زده کوله. زرقانی فرمائي چه دا امر ام عطيه رضي الله عنها ته او کومې زنانه چه د هغې سره مدد کونکې وې هغوی ته دې.

[1]: صحيح البخاري/الوضوء ۳۱ (۱۶۷)، والجنائز ۸ (۱۲۵۳)، ۹ (۱۲۵٤)، ۱۰ (۱۲۵۵)، ۱۱ (۱۲۵٦)، ۱۲ (۱۲۵۷)، ۱۳ (۱۲۵۸)، ۱٤ (۱۲٦۰)، ۱۵ (۱۲٦۱)، ۱٦ (۱۲٦۲)، ۱۷ (۱۲٦۳)، صحيح مسلم/الجنائز ۱۲ (۹۳۹)، سنن الترمذي/الجنائز ۱۵ (۹۹۰)، سنن النسائي/الجنائز ۲۸ (۱۸۸۲)، سنن ابن ماجه/الجنائز ۸ (۱٤۵۸)، (تحفة الأشراف: ۱۸۰۹٤)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الجنائز ۱ (۲)، مسند احمد (٦/۴۰۷، ۴۰۸) (صحيح)

﴿ بمآء وسدر ﴾ باندې په حاشيه د بذل کښې ليکلي دي: وهل الغسلات كلها بماء السدر او مرتين فقط كما رجحه ابن الهمام لرواية ابى داؤد الاتية قريبا، او الواحدة فقط كما اختاره شيخ الاسلام وصاحب البدائع مختلف فيها كما فى الشامى ٦٣٢/١ والكبيرى ٥٣٥ والبحر الرائق ١٧٢/٢.

دلته يو بله مسئله هم مختلف فيه ده کومه چه په کتاب الطهارة کښې تيره شوې ده، يعنى طهارة بماء مخلوط بشئ طاهر چه په هغې کښې ائمه ثلاثه د عدم جواز قائل دى، او احناف د جواز،ګويا حديث الباب د احنافو دليل دې په دې مسئله کښې. تفصيل په اوجز کښې اوګورئ. (هامش بذل) د جمهورو د طرف نه د دې جوابات په باب فى تقبيل الميت کښې را روان دى.

﴿ فاذا فرغتن فاذنى ﴾ رسول اللهﷺ غسل ورکونکو ته اوفرمائيل چه د غسل د فراغت نه پس ماته خبر راکړئ مونږ د فارغ کيدو نه پس چه خبر ورکړو نو رسول اللهﷺ خپل څادر مونږ ته راکړو او وې فرمائيل چه په شروع کښې ئې په دې کښې راونغاړئ، او دا د هغې شعار جوړ کړئ، شعار هم هغه کپړې ته وائى کوم چه د بدن د ويښتو سره لګى، او دا په دې وجه چه د هغې برکت د هغې وجود سره اولګى،

## د استبراک باثار الصالحين ثبوت او استحباب :

په دې باندې په حاشيه د بذل کښې ليکلى دى : فيه استبراک بآثار الصالحين ويؤيده ايضا حديث البخارى فى استعداد الكفن (اوجز) د بخارى د حديث مضمون دا دې چه يو ځل يو زنانه د رسول اللهﷺ په خدمت کښې يو څادر راوړو رسول اللهﷺ هغه قبول کړو او رسول اللهﷺ ته د هغې حاجت هم وو، رسول اللهﷺ هغه د لنګ په ځائې استعمال کړو رسول اللهﷺ په هغې کښې لا وتلې نه وو چه د يو صحابى رضي الله عنه خوښ شو هغه رسول اللهﷺ ته درخواست اوکړو چه دا ماته راکړئ رسول اللهﷺ هغه ته ورکړو خلقو هغه صحابى رضي الله عنه ته اووې چه دا تا ښه اونکړل رسول اللهﷺ ته خو د دې حاجت وو بيا هم تا د رسول اللهﷺ نه د هغې سوال اوکړو سره د دې چه تا ته دا هم معلومه ده چه هغوى د چا سوال نه رد کوى، هغوى جواب ورکړو چه والله ما دا د اغوستلو دپاره نه دې اخستلې. دا خو ما د خپل کفن دپاره اخستلې دې، راوى وائى چه بيا هغه هم د هغوى د کفن په کار راغلو. (اوجز ٤٢٧/٢)

والحديث اخرجه البخارى ومسلم وابن ماجة. قاله المنذرى

# بَاب كَيْفَ غُسْلُ الْمَيِّتِ

### مړى ته غسل څنګه ورکول پکار دى؟

[٣١٤٣](١)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ، وَأَبُو كَامِلٍ، بِمَعْنَى الْإِسْنَادِ أَنَّ يَزِيدَ بْنَ زُرَيْعٍ حَدَّثَهُمْ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ حَفْصَةَ أُخْتِهِ، عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ، قَالَتْ: مَشَطْنَاهَا ثَلَاثَةَ قُرُونٍ.

دام عطية رضي الله عنها نه روايت دې فرمائى چه مونږ دهغې دسر ويښته ګومنز کړل او درې کوڅې مو ترې جوړې کړې.

(١): صحيح مسلم/ الجنائز ١٢ (٩٣٩)، سنن النسائي/ الجنائز ٣٥ (١٨٩٢)، (تحفة الأشراف: ١٨١٣٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٠٧/٦) (صحيح)

[۳۱۴۴](¹)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيرِينَ، عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ، قَالَتْ: وَضَفَرْنَا رَأْسَهَا ثَلَاثَةَ قُرُونٍ، ثُمَّ أَلْقَيْنَاهَا خَلْفَهَا مُقَدَّمَ رَأْسِهَا، وَقَرْنَيْهَا.

دام عطية رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه مونږ ددې دويختونه درې کوځې جوړې کړې اوشاه طرف ته مو زوړندې کړې يوه په مينځ کښې اويوه يوارخ ته اوبله بل ارخ ته.

﴿عن ام عطية رضي الله عنها قالت وضفرنا راسها ثلاثة قرون ثم القيناها خلفها مقدم راسها وقرنيها ﴾

**د تجهيز په وخت د زنانه ويښتو سره څه اوکړې شي؟**

دا حديث د رسول الله ﷺ د لور په باره کښې دې کوم چه پورته تير په دې کښې دا دى چه ام عطيه رضي الله عنها فرمائي چه مونږ د هغې ويښته ګومنځ کړل د هغې مو درې حصې کړې او بيا مو شاته يعنى د ملا طرف ته هغه واچول، وړاندې په روايت کښې د دې ويښتو د درې حصو تفسير ذکر کړې شوې دې، د تندى ويښته او د اړخونو ښى او ګس طرف ته

د زنانه ويښته ګومنځول او د کمسۍ په شان هغې لره ول ورکولو سره شاته اچول د احنافو په نزد نشته، امام شافعى او احمد او ابن حبيب مالکى رحمهم الله د دې قائل دې، ابن القاسم د دې انکار کړې دې (کذا فى هامش البذل عن الابى) او حضرت په بذل کښې ليکلې دى چه دا ټول څيزونه د باب زينت نه دى او دا وخت د زينت نه دې او د حديث جواب دا دې چه دا د ام عطيه فعل دې، او د رسول الله ﷺ په حديث کښې دې باره کښې هيڅ هدايت نشته او نه د دې چه رسول الله ﷺ ته د دې علم شوې هم دې که نه.

وفى الهداية : ولا يسرح شعر الميت ولا لحيته، ولا يقص ظفره ولا شعره لقول عائشة رضي الله عنها : علام تنصون ميتكم وفى حاشيته للسنبلى من نصوت الرجل اذا مددت ناصية، والاثر رواه عبدالرزاق عن الثورى عن حماد عن ابراهيم عن عائشة رضي الله عنها انها رأت امراة يكدون راسها بمشط فقالت علام تنصون ميتكم : وفيه ايضا : وتلبس المرأة الدرع اولا ثم يجعل شعرها ضفيرتين على صدرها فوق الدرع.

[۳۱۴۵](²)حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، وَحَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ، عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيرِينَ، عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لَهُنَّ فِي غُسْلِ ابْنَتِهِ: "ابْدَأْنَ بِمَيَامِنِهَا، وَمَوَاضِعِ الْوُضُوءِ مِنْهَا".

دام عطية رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه نبى عليه السلام هغه زنانوته اوفرمائيل چاچه دده لور ته غسل ورکول چه ددې دښۍ طرفونو اوداودس دځايونونه غسل ورکول شروع کړئ.

﴿ عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لَهُنَّ فِي غُسْلِ ابْنَتِهِ: "ابْدَأْنَ بِمَيَامِنِهَا، وَمَوَاضِعِ الْوُضُوءِ مِنْهَا". ﴾

يعنى رسول الله ﷺ غسل ورکونکو زنانو ته اوفرمائيل چه هغوى دې ابتداء اوکړى د ښى طرفونو نه او د اودس د اندامونو نه يعنى د اودس د اندامونو نه دې شروع اوکړى او د دې سره دې د ابتداء باليمين هم خيال ساتى په ټول غسل کښې.

والحديث اخرجه البخارى ومسلم والترمذى والنسائى وابن ماجة، قاله المنذرى

¹): صحيح البخاري/الجنائز ١٦ (١٢٦٢)، وانظر حديث رقم: (٣١٤٢)، (تحفة الأشراف: ١٨١٣٨) (صحيح)

²): انظر حديث رقم: (٣١٤٢)، (تحفة الأشراف: ١٨١٢٤) (صحيح)

[٣١٤٦]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ، بِمَعْنَى حَدِيثِ مَالِكٍ، زَادَ فِي حَدِيثِ حَفْصَةَ، عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ بِنَحْوِ هَذَا، وَزَادَتْ فِيهِ: أَوْ سَبْعًا، أَوْ أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ، إِنْ رَأَيْتُنَّهُ.

دام عطية ﷞ نه دتير روايت په شان روايت منقول دې البته ددې داضافي سره چه دي ته اوه ځله غسل ورکړئ يا ددې نه هم زيات څومره چه مناسب وي غسل ورکړئ.

[٣١٤٧]()حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ أَنَّهُ كَانَ يَأْخُذُ الْغُسْلَ عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ، يَغْسِلُ بِالسِّدْرِ مَرَّتَيْنِ، وَالثَّالِثَةَ بِالْمَاءِ وَالْكَافُورِ.

دمحمدبن سيرين نه روايت دې فرمائي چه مابه دام عطيه نه دغسل معلومات حاصلول هغې اووئيل چه مړې به اول دبيري په اوبو باندې دوه ځل اولمبولې شي بيا په دريم ځل باندې کافور ياپه عامو اوبو باندې دي اولمبولې شي.

## بَابٌ فِي الْكَفَنِ

### مړی ته د کفن ورکولو بيان

[٣١٤٨]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ: أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ يُحَدِّثُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَنَّهُ خَطَبَ يَوْمًا، فَذَكَرَ رَجُلًا مِنْ أَصْحَابِهِ قُبِضَ، فَكُفِّنَ فِي كَفَنٍ غَيْرِ طَائِلٍ، وَقُبِرَ لَيْلًا، فَزَجَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُقْبَرَ الرَّجُلُ بِاللَّيْلِ. حَتَّى يُصَلَّى عَلَيْهِ، إِلَّا أَنْ يُضْطَرَّ إِنْسَانٌ إِلَى ذَلِكَ، وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا كَفَّنَ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ، فَلْيُحَسِّنْ كَفَنَهُ".

دجابربن عبدالله ﷛ نه روايت دې فرمائي چه يوه ورځ نبی کريم ﷺ خطبه ورکړه او په خپلو صحابه کرامو کښې ئې ديوکس ذکر اوکړو څوک چه وفات شوې وو او په يولند کفن کښې دشپې دفن کړې شوې وو نبی ﷺ منع وفرمائيله دشپې په وخت کښې دمړي ددفن کولو نه اوپه ده باندې دجنازې کولو نه مګرهله چه مجبوري وي، اوبيا ئې اوفرمائيل په تاسوکښې چه څوک خپل مسلمان وروړته کفن ورکوي نوښه کفن دي ورکړي.

﴿ فكفن فى كفن غير طائل وقبر ليلا فزجر النبى ﷺ ان يقبر الرجل بالليل ﴾

مضمون د حديث دا دې: يو ځل رسول اللهﷺ خطبه ورکړه او په هغه خطبه کښې رسول اللهﷺ په خپلو صحابه کرامو﷡ کښې د يو صحابي﷛ ذکر اوکړو چه هغه وفات شوې وو او هغه په کمزوری شان کفن کښې کفن کړې شوې وو او د شپې دفن کړې شوې وو، رسول اللهﷺ په دې خطبه کښې د شپې په دفن کولو باندې نکير اوفرمائيلو مګر دا چه که څه سختنه مجبوري وی، او وې فرمائيل چه کله په تاسو کښې څوک خپل رور ښخوی نو هغه دې په ښه کپړه کښې کفن کړی.

په دې حديث کښې د دفن بالليل نه منع فرمائيلې شوې ده. د حسن بصری مذهب هم دا دې د هغوی په نزد مکروه دې، د جمهورو په نزد بغير د کراهت نه جائز دې، وړاندې په

[1]: انظر حديث رقم: (٣١٤٢)، (تحفة الأشراف: ١٨٠٩٤) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨١٠٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٨٥) (صحيح)

[3]: صحيح مسلم/الجنائز ١٥ (٩٤٣)، سنن النسائي/الجنائز ٣٧ (١٨٩٦)، (تحفة الأشراف: ٢٨٠٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٢٩٥) (صحيح)

دي باندي مستقل باب را روان دي، دجمهور د طرف نه د دي حديث جواب دا ورکړي شوي دي چه دا نهى د ترک صلوة د وجي نه ده او لقلة المصلين، او لاجل اساءة الكفن او للجميع. والحديث اخرجه مسلم والنسائي. قاله المنذري

[٣١٤٩](١)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ، حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "أُدْرِجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ثَوْبٍ حِبَرَةٍ، ثُمَّ أُخِّرَ عَنْهُ".

دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دي فرمائي چه نبي عليه السلام په يوه يمني کپړه کښي په کفن کړي شوا ودفن کړي شو اوبيا ترينه لري کړي شو.

﴿ عن عائشة رضي الله عنها قالت ادرج رسول الله ﷺ في ثوب حبرة ثم اخر عنه ﴾ دا روايت مختصر دي وړاندي د دي تفصيل را روان دي.

[٣١٥٠](٢)حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ الْكَرِيمِ، حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ عَقِيلِ بْنِ مَعْقِلٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ وَهْبٍ يَعْنِي ابْنَ مُنَبِّهٍ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِذَا تُوُفِّيَ أَحَدُكُمْ، فَوَجَدَ شَيْئًا، فَلْيُكَفَّنْ فِي ثَوْبٍ حِبَرَةٍ".

دجابر رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلی دی چه فرمائيل في: څوک چه په تاسو کښي وفات شوي اووارثان مال دار وي نوپکار ده چه دحبره کپړي کفن دي ورکړی (ديمن جوړه أعلي کپړه ده).

﴿ اذا توفى احدكم فوجد شيئا فليكفن في ثوب حبرة ﴾

يعنى په تاسو کښي چه کله د يو داسي انسان وفات اوشی چه په هغه کښي مال گنجائش وی نو غوره دا ده چه هغه په يمنی کپړو کښي دفن کړي شي.

[٣١٥١]حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ هِشَامٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبِي، أَخْبَرَتْنِي عَائِشَةُ، قَالَتْ: "كُفِّنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ يَمَانِيَةٍ بِيضٍ، لَيْسَ فِيهَا قَمِيصٌ وَلَا عِمَامَةٌ".

دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دي فرمائي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ددرې يمني سپينو کپړو کفن ورکړی شو چه قميص اوعمامه پکښي نه وه.

﴿ عن هشام قال اخبرتنى عائشة رضي الله عنها قالت كفن رسول الله ﷺ في ثلاثة اثواب يمانية بيض ليس فيها قميص ولا عمامة ﴾

يعنى رسول الله ﷺ ته خالص سپينو يمنى درې څادرو کښي کفن ورکړي شو. او د دي نه روستو روايت کښي دی ﴿ زاد من كرسف ﴾ چه هغه درې واړه کپړي د تار وي.

[٣١٥٢](٣)حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا حَفْصٌ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، مِثْلَهُ، زَادَ مِنْ كُرْسُفٍ، قَالَ: فَذُكِرَ لِعَائِشَةَ قَوْلُهُمْ: فِي ثَوْبَيْنِ وَبُرْدِ حِبَرَةٍ، فَقَالَتْ: قَدْ أُتِيَ بِالْبُرْدِ وَلَكِنَّهُمْ رَدُّوهُ وَلَمْ يُكَفِّنُوهُ فِيهِ.

(١): تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم: (٣١٢٠)، (تحفة الأشراف: ١٧٥٥٢) (صحيح)
(٢): تفرد به أبو داود: (تحفة الأشراف: ٣١٣٦)، وقد أخرجه: حم(٣/٣١) (صحيح لغيره)
(٣): صحيح البخاري/الجنائز ١٨ (١٢٦٤)، ٢٣ (١٢٧١)، ٢٤ (١٢٧٢)، ٩٤ (١٣٨٧)، (تحفة الأشراف: ١٧٣٠٩)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الجنائز ٢ (٥)، مسند احمد (٦/٤٠، ٩٣، ١١٨، ١٣٢، ١٦٥، ٢٣١) (صحيح)

صحیح مسلم/ الجنائز ۱۳ (۹۴۱)، سنن الترمذی/ الجنائز ۲۰ (۹۹۶)، سنن النسائی/ الجنائز ۳۹ (۱۹۰۰)، سنن ابن ماجه/ الجنائز ۱۱ (۱۴۶۹)، (تحفة الأشراف: ۱۶۷۸۶)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الجنائز ۲ (۵)، مسند احمد (۶/۴۰،۹۳،۱۱۸،۱۳۲،۱۶۵) (صحیح)

دام المومنین عائشة رضی الله عنها نه دتیررروایت په شان روایت منقول دي مګرددي اضافي سره چه دکفن کپړه دمالوچوجوړه وه، راوي وائي چه عائشې رضی الله عنها ته ووئیلي شول چه صحابه کراموو‌ئیلي دي چه دنبي علیه السلام کفن ددوه سپینوکپړو اوحبري څادرنه وو، عائشې رضی الله عنها اووئیل چه اول حبري څادر راوړي شولیکن صحابه کرامو واپس کړو او په دې کښې ئې ورته کفن ورنکړو.

﴿ قال فذكر لعائشة قولهم فى ثوبين وبرد حبرة فقالت قد اتى بالبرد ولكنهم ردوه ولم يكفنوه فيه ﴾

**د رسول الله صلی الله علیه وسلم د کفن متعلق تحقیق کښې د عائشې رضی الله عنها رائې:**

یعنی عائشې رضی الله عنها ته اوئیلې شو چه بعض خلق خو وائي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم په دوه سپینو کپړو او یو برګه یمنی کپړه کښې کفن کړې شو (او تاسو وایئ چه په درې سپینو کپړو کښې) نو هغوی جواب ورکړو: بیشکه برګ څادر راوړلې شوې وو خو کفن کونکو هغه واپس کړو په هغې کښې ئې کفن کړې نه وو. او د موطاء په روایت کښې دی ﴿ کفن فی ثلاثة اثواب بیض سحولية ﴾ د سین په ضمې سره او په دې کښې فتح هم راغلې ده نسبت دې سحول طرف ته چه د یمن یوه علاقه ده. علامه زرقاني رحمه الله هم د دې روایت د لاندې د کوم چه عائشې رضی الله عنها تردید کړې دې د احنافو مسلک دا لیکلې دې چه د هغوی په نزد په کفن کښې مستحب دا ده چه په هغې کښې یو ثوب حبره یعنی یمنی څادر وی، خو د هغوی دا نقل صحیح نه دې، د احنافو په نزد هم بیاض ته ترجیح ده ففى البدائع الافضل ان يكون التكفين بالثياب البيض لرواية جابر حرفوعا احب الثياب الى الله تعالى البيض فليلبسها احياؤكم وكفنوا فيها موتاكم (اوجز ۲/۴۳۱)

**د سړی د کفن په مصداق کښې د ائمة اربعه مسلکونه:**

بیا څان پوهول پکار دی چه په دې حدیث کښې دا راغلل ﴿ ليس فيها قميص ولا عمامة﴾ دا باب فی الکفن شروع دې چه په هغې کښې بیان د کفن الرجل دې ځکه چه ﴿باب فی کفن المراة ﴾ وړاندې مستقل را روان دې، د سړی کفن د ائمه ثلاثه احنافو شوافعو او حنابلو په نزد درې کپړې دی، د احنافو په نزد قمیص، ازار او لفافه، او د امام شافعی رحمه الله او احمد په نزد ثلاث لفائف، یعنی درې څادرې دوی دواړه د قمیص قائل نه دی، او د امام مالک رحمه الله په نزد د سړی کفن مسنون د دریو په ځائې پنځه کپړې دی. د احنافو په شان هغوی د قمیص قائل دی، او لفافې د هغوی په نزد دوه دی، او پنځم څیز عمامه ده. یعنی قمیص ازار لفافتین او عمامه.

**په حدیث د عائشې رضی الله عنها کښې د چا دلیل دې؟**

دا حدیث د عائشې رضی الله عنها چه په هغې کښې دی ﴿ فی ثلاثة اثواب ليس فيها قميص ولا عمامة﴾ د ائمه ثلاثه مسلک په اعتبار د عدد ثلاث سره خو موافق دی خو چونکه په دې کښې د قمیص نفی ده په دې وجه دا د شوافعو او حنابله دلیل شو او د احنافو او د مالکیانو

خلاف، احنافو د دې توجیه داسې کړې ده چه د قمیص نه مراد د مطلق قمیص نفی نه ده مراد بلکه د جدید یا د مخیط نفی مراد ده ځکه چه وړاندې د ابن عباس ﷺ په روایت کښې راځي ﴿ کفن رسول الله ﷺ فی ثلاثة اثواب نجرانیة، الحلة ثوبان وقمیصه الذی مات فیه ﴾ لهذا اوس دا حدیث د عائشې ﷺ زمونږ خلاف نه دې، او د دا حدیث د عائشې ﷺ د عدد کفن په اعتبار سره د مالکیانو خلاف دې، هغوی د دې توجیه دا کوی چه د عائشې ﷺ مراد دا دې چه په دې دریو کښې دا دواړه داخل نه دی، بلکه د دې نه علاوه دی لهذا ټول پنځه شو.

امام ترمذی ﷫ باب قائم کړو ﴿ باب ما جاء فی کم کفن النبی ﷺ ﴾ او بیا ئې په هغې کښې هم دا حدیث د عائشې ﷺ ﴿ فی ثلاثة اثواب بیض یمانیة لیس فیها قمیص ولا عمامة ﴾ ذکر کولو نه پس فرمائیلې دی : قال ابو عیسی حدیث عائشة حدیث حسن صحیح، وقد روی فی کفن النبی ﷺ روایات مختلفة، وحدیث عائشة اصح الاحادیث التی رویت فی کفن النبی ﷺ والعمل علی هذا عند اکثر اهل العلم، وقال سفیان الثوری : یکفن الرجل فی ثلاثة اثواب ان شئت فی قمیص ولفافتین وان شئت فی ثلاث لفائف ویجزئ ثوب واحد ان لم یجدوا ثوبین، والثوبان یجزئان، والثلاثة لمن وجدوا احب الیهم، وهو قول الشافعي واحمد واسحاق، وقالوا تکفن المرأة فی خمسة اثواب ﴾ او بیا وړاندې فرمائی : وفی الباب عن علی وابن عباس وعبدالله بن مغفل وابن عمر ﷺ آهـ په تخفة الاخوذی کښې د علی ﷺ د حدیث په باره کښې لیکلی دی : اخرجه ابن ابی شیبة واحمد والبزار قال کفن النبی ﷺ فی سبعة اثواب، وفی اسناده عبدالله بن محمد بن عقیل، وهو سئ الحفظ لا یصلح الاحتجاج بحدیثه اذا خالف الثقات کما هنا، (کذا فی النیل) آهـ د علی ﷺ په دې حدیث کښې دا دی چه رسول الله ﷺ ته په اووه کپړو کښې کفن ورکړې شو، خو دا حدیث ضعیف دې، د دې حدیث عائشة ﷺ دکوم په باره کښې چه امام ترمذی ﷫ فرمائی، حدیث حسن صحیح، دا د صحاح سته روایت دې پس په تخفة الاخوذی کښې دی اخرجه الجماعة.

**د کفن درې درجې دی :**

ځان پوهول پکار دی چه د کفن درې درجې دی یو کفن السنة کوم چه پورته ذکر شو یعنی درې جامې، او کفن الکفایة یعنی دوه کپړې، او دریم قسم کفن الضرورة، وهو ما وجد، یعنی د مجبورئ حالت کښې چه څۀ هم ملاؤ شی.

[۳۱۵۳](¹) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ، عَنْ يَزِيدَ يَعْنِي ابْنَ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ مِقْسَمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "كُفِّنَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ نَجْرَانِيَّةٍ الْحُلَّةُ: ثَوْبَانِ وَقَمِيصُهُ الَّذِي مَاتَ فِيهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: قَالَ عُثْمَانُ: فِي ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ: حُلَّةٍ حَمْرَاءَ، وَقَمِيصِهِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ.

دابن عباس ﷺ نه مروي دې فرمائی چه نبی ﷺ ته په درې نجراني کپړو کښې کفن ورکړې شوې وو یو لنګ یو څادر او یو قمیص په کوم کښې چه وفات شوې وو. ابوداود وائی چه عثمان بن ابی شیبة دا روایت داسې نقل کړې دې چه نبی ﷺ ته په درې کپړو کښې کفن

¹): سنن ابن ماجه للجنائز ۱۱ (۱۴۷۱)، (تحفة الأشراف: ۶۴۹۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۲۲۲) (ضعیف الإسناد منکر)

ورکړی شوي وويو سورخادر اوبل هغه قميص په کوم کښې چه وفات شوي وو.

﴿عن مقسم عن ابن عباس.......... وقميصه الذى مات فيه﴾

دا حديث اوس پورته زمونږ په کلام کښې تير شو، ورواه ابن ماجة، قاله المنذرى، خو د دې نه مخکښې ﴿باب فى ستر الميت عند غسله﴾کښې چه کوم حديث تير شوې دې په هغې کښې دا تير شوی دی ﴿فغسلوه وعليه قميصه يصبون المآء فوق القميص الخ...

په دې دواړو کښې منافات دې چه په کوم قميص کښې غسل ورکړې شی هم په هغې کښې کفن کړې شی او دغه شان حديث د ابن عباس رضي الله عنهما هم ضعيف دې، انظر التعليق الممجد فيه دليل الحنفية.

## باب كَرَاهِيَةِ الْمُغَالَاةِ فِي الْكَفَنِ

### مړی ته د قيمتی کفن ورکولو د ممانعت بيان

[۳۱۵۴](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ الْمُحَارِبِيُّ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ هَاشِمٍ أَبُو مَالِكٍ الْجَنْبِيُّ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ، عَنْ عَامِرٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، قَالَ: لَا تُغَالِ لِي فِي كَفَنٍ، فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا تَغَالَوْا فِي الْكَفَنِ، فَإِنَّهُ يُسْلَبُهُ سَلْبًا سَرِيعًا".

د علی رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه زما د پاره په کفن کښې ډيره قيمتي کپړه مه استعمالوئ، ماد نبی عليه السلام نه اوريدلي دي چه فرمائيل ئې چه تاسو په کفن کښې دحدنه تجاوز مه کوئ ځکه چه دا ډيرزر خرابيږي (يعنی فضول خرچي).

﴿عن علی بن ابی طالب رضي الله عنه قال لا تغالی فی کفن﴾

### د حديث د يو مشکل لفظ تحقيق:

﴿لا تغالى﴾ د دې لفظ په باره کښې په بذل کښې دا دی چه بصيغة المجهول من المغالاة خو په دې باندې اشکال دې چه د تانيث څه وجه ده؟ ﴿لا يغالى﴾ پکار وو او زمونږ استاد مولانا اسعدالله صاحب رحمه الله ليکلی دی، ﴿لعله لا تغالى﴾ يعنی د باب تفاعل نه مصدر، او په مصری نسخو کښې دا لفظ داسې دې ﴿لا تغال لی فی الکفن﴾ په دې صورت کښې به دا د نهی صيغه وی دپاره د مخاطب د مغالاة نه، او په بعض نسخو کښې دی، ﴿لا يغالى﴾ قال الشيخ محمد عوامه : وهو اظهر ليكون كلام عاما ليس خاصا لمخاطب معين فى حق شخص معين آهـ

علی رضي الله عنه فرمائی چه په کفن کښې مغالاتة نه دی کول پکار، يعنی زيات قيمت اختيارول، ځکه چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلی دی هغوی به فرمائيل چه کفن د زيات قيمت ولا مه جوړوئ ځکه چه هغه د مړی نه ډير زر سلب کولې شی، يعنی خاورې هغه اوخوری نو څه فائده ده په قيمتی جوړولو کښې.

١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠١٤٩) (ضعيف)

[۳۱۵۵](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ خَبَّابٍ، قَالَ: إِنَّ مُصْعَبَ بْنَ عُمَيْرٍ قُتِلَ يَوْمَ أُحُدٍ، وَلَمْ يَكُنْ لَهُ إِلَّا نَمِرَةٌ، كُنَّا إِذَا غَطَّيْنَا بِهَا رَأْسَهُ، خَرَجَ رِجْلَاهُ، وَإِذَا غَطَّيْنَا رِجْلَيْهِ، خَرَجَ رَأْسُهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "غَطُّوا بِهَا رَأْسَهُ، وَاجْعَلُوا عَلَى رِجْلَيْهِ شَيْئًا مِنَ الْإِذْخِرِ".

د خباب رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه مصعب بن عمیر رضی الله عنه داحد په ورځ شهیدشو اودهغه سره دکفن دپاره دیوې کپړې نه علاوه نورڅه نه وو اوهغه څادر هم دومره وړوکې وو که چرې مونږ پرې دده پښې پټولې نوسر ئې بربند پاتې کیدو اوکه سرموپټولې نوپښې ئې بربندې پاتې کیدې په دې وخت کښې نبی علیه السلام اوفرمائیل چه دده سر پټ کړئ او په پښوئې سرکړې واچوئ

﴿عن خباب قال ان مصعب بن عمیر رضی الله عنه قتل یوم احد ولم یکن له الا نمرة الخ﴾

یعنې مصعب بن عمیر رضی الله عنه په احد کښې شهید شوې وو او د کفن دپاره هیڅ څیز نه وو سوا د هغوی د یو برګ او مختصر څادر نه چه په هغې کښې کفن کولې شو، که هغه به ئې د سر طرف ته کولو نو خپې به ئې ښکاره کیدې او که د خپو طرف ته به ئې کولو نو سر به ئې ښکاره کیدو، رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه دا دې د سر طرف ته کړې شی او په خپو دې ورته سرکړې واچولې شی هم دا هغه دې کوم ته چه فقهاء کرام کفن الضرورة وائی.

**د مصعب بن عمیر رضی الله عنه ذکر:**

دا مصعب بن عمیر رضی الله عنه د چا چه دا واقعه ده په اوچتو صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې دې قدیم الاسلام او په مهاجرین اولین کښې دې، د اسلام راوړلو نه مخکښې په وړوکوالی کښې ډیر نیازبین وو، ډیر ښه ژوند ئې تیرولو او ښکلې جامه به ئې اچوله، لیکلې شوې دی چه د مور پلار ورسره ډیره مینه وه او مور به ورته د غوره نه غوره لباس اچولو، د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره په جنګ بدر کښې شریک شو او په احد کښې شهید شو، لکه چه په پورته روایت کښې ذکر دی، په ترمذی کښې د هغوی په باره کښې د علی رضی الله عنه روایت موجود دې چه یو ورځ مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره په مسجد نبوی صلی الله علیه وسلم کښې ناست وو چه ناڅاپه مصعب بن عمیر رضی الله عنه مخې ته راغلو په داسې حال کښې چه د هغوی په بدن باندې صرف یو څادر وو او په هغې کښې هم پیوندونه وو، چه کله رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوی په داسې حالت کښې اولیدل نو په ژړا شو دهغوی په تیرحالت اود موجوده حالت په تفاوت لیدلو باندې. الحدیث(اسد الغابة)

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی. قاله المنذری

[۳۱۵۶](۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنِي ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنِي هِشَامُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ حَاتِمِ بْنِ أَبِي نَصْرٍ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ نُسَيٍّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "خَيْرُ الْكَفَنِ الْحُلَّةُ، وَخَيْرُ الْأُضْحِيَةِ الْكَبْشُ الْأَقْرَنُ".

---

[۱]: صحيح البخاري/الجنائز ۲۷ (۱۲۷٦)، ومناقب الأنصار ٤٥ (۳۹۱۳)، والمغازي ۱۷ (٤۰٤۷)، ۲٦ (٤۰۸۲)، والرقاق ۷ (٦٤۳۲)، ۱٦ (٦٤٤۸)، صحيح مسلم/الجنائز ۱۳ (۹٤۰)، سنن الترمذي/المناقب ٥٤ (۳۸٥۳)، سنن النسائي/الجنائز ٤۰ (۱۹۰٤)، (تحفة الأشراف: ۳٥۱٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۰۹/٥، ۱۱۲، ۳۹٥/٦) (صحيح)

[۲]: سنن ابن ماجه/الجنائز ۱۲ (۱٤۷۳)، (تحفة الأشراف: ٥۱۱۷) (ضعيف)

دعبادة بن الصامت نه روايت دې چه نبی ﷺ فرمائيلی دی بهترين کفن جوړه ده (قميص اولنګ او غوره قرباني دښکرو والا ګډ دې.

﴿ خير الكفن الحلة، وخير الاضحية الكبش الاقرن ﴾

حله خو دوه کپړې وی ازار او رداء حال دا چه مسنون بالاتفاق درې کپړې دی، لهذا دا به وئيلې شی چه د حلة لهتر والئ او افضليت به د ثوب واحد په اعتبار سره وی، او بله دا چه بعض علماء کرامو د دې حديث د وجې نه دا وئيلې دی چه په کفن کښې غوره دا ده چه هغه يمنی څادرې وی کوم چه برګ وی، ملا علی قاری رحمه الله فرمائی: خو اصح دا ده چه ابيض افضل دې د حديث عائشة رضي الله عنها د وجې نه. د دې نه روستو په حديث کښې دی بهترين د قربانئ والا څاروې د ښکرو والا ګډ دې، دا ليکلی دی چه کيدې شی وجه د فضيلت ئې دا وی چه کبش اقرن عام طور سره سمين او جسيم وی، يا د حسن صورت په اعتبار سره فرمائيلې شوې دی چه د ښکرو والا زيات ډولی او ښکلې ښکاره کيږی.(بذل) والحديث اخرجه ابن ماجة مقتصرا منه علی ذكر الكفن، قاله المنذری

## بَابٌ فِي كَفَنِ الْمَرْأَةِ

### ښځې ته د کفن ورکولو بيان

**د زنانه د کفن تفصيل د ائمة اربعه په نزد:**

د زنانه مسنون کفن پنځه کپړې دی د جمهورو په نزد او په هغوی کښې ائمه ثلاثه هم دی هغه پنځه د امام شافعی رحمه الله او احمد رحمه الله په نزد دا دی: ازار، قميص، خمار، لفافتين، او د امام مالک په نزد اووۀ دی د هغوی په نزد لفافې د دوو په ځائې څلور دی، زمونږ فقهاء کرامو د دې پنځو کپړو نه داسې تعبير کړې دې: ازار، قميص، لفافه، خمار، (سربند) او خرقه (سينه بند) چه د هغې په ذريعه د هغې سينې پټولې شی، او خمار کوم چه په سر باندې تړلې شی او بيا د هغې په ذريعه ويښته پټ کړې شی کوم چه په سينه باندې پراتۀ وی. چه د هغې ترتيب داسې ليکلې شوې دې چه اول دې په سر باندې لفافه خوره کړې شی د هغې دپاسه ازار، د هغې دپاسه خرقه، د هغې دپاسه خمار او د ټولو نه دپاسه قميص، اول دې ورته قميص واغوندی بغير د لستونړو نه، د دې نه پس دې په خمار باندې د هغې سره اوتړلې شی او په سينه باندې چه کوم ويښته دی هغه دې پټ کړې شی، د دې نه پس دې په خرقه باندې د هغې سينې اوتړلې شی بيا دې ورته ازار واغوستلې شی، روبی به د ګس طرف نه راتولولې شی او د دې نه پس د ښی طرف نه چه ښې پلو پرې دپاسه وی بيا به هم دغه شان لفافه راتولولې شی.

[۳۱۵۷]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي وَكَانَ قَارِئًا لِلْقُرْآنِ، نُوحُ بْنُ حَكِيمٍ الثَّقَفِيُّ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي عُرْوَةَ بْنِ مَسْعُودٍ يُقَالُ لَهُ دَاوُدُ قَدْ وَلَدَتْهُ أُمُّ حَبِيبَةَ بِنْتُ أَبِي سُفْيَانَ زَوْجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: عَنْ لَيْلَى بِنْتِ قَانِفٍ الثَّقَفِيَّةِ، قَالَتْ: كُنْتُ فِيمَنْ غَسَّلَ أُمَّ كُلْثُومٍ بِنْتَ

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٠٥٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٨٠/٦) (ضعيف)

رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ وَفَاتِهَا، فَكَانَ أَوَّلُ مَا أَعْطَانَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الْحِقَاءَ، ثُمَّ الدِّرْعَ، ثُمَّ الْخِمَارَ، ثُمَّ الْمِلْحَفَةَ، ثُمَّ أُدْرِجَتْ بَعْدُ فِي الثَّوْبِ الْآخِرِ، قَالَتْ: وَرَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ عِنْدَ الْبَابِ، مَعَهُ كَفَنُهَا، يُنَاوِلُنَاهَا ثَوْبًا ثَوْبًا.

دليلي بنت قانف رضي الله عنها نه روايت دي فرمائي چه زه په هغه ښځو کښې وم چاچه دنبي عليه السلام لور ام کلثوم ته غسل ورکړې وو دهغې دوفات په وخت کښې. دهرڅه نه مخکښې مونږ ته نبي عليه السلام خپل لنګ راکړې وو اوبيا قميص بيا يوڅادر اوبو سربند اويوه کپړه ئې بله راکړه چه دبره طرف نه په کښې اونغښتل شوليلي وائي نبي عليه السلام ددروازې سره ناست وو اودکفن کپړې ورسره وې او مونږ ته به ئې يوه يوه کپړه راکوله.

﴿عن رجل من بنی عروة بن مسعود يقال له داؤد قد ولدته ام حبيبة بنت ابی سفيان رضي الله عنهما﴾

يعنې د قبيله بنو عروه يو سړې چه د هغه نوم داؤد دې کوم چه د ام حبيبة رضي الله عنها مخکښې پيدا شوې وو يعنې کومه دائي چه د پيدائش په وخت زنانه سره وی هغه ام حبيبة رضي الله عنها بنت ابی سفيان رضي الله عنهما وه، دا ذکر کړې شوې سړې روايت کوی د ليلی بنت قانف نه چه صحابيه ده هغه فرمائي چه زه په هغه زنانو کښې يم چا چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم لور ام کلثوم رضي الله عنها ته غسل ورکړې وو، هغه فرمائي چه د غسل نه پس د تکفين په وخت رسول الله صلى الله عليه وسلم په داسې حال کښې چه هغوی په دروازه کښې ناست وو د کفن کولو دپاره د کفن کپړې په دې ترتيب سره راکړې اول حقاء يعنی ازار بيا قميص بيا خمار بيا ملحفه (لفافه) بيا په يوه بله کپړه کښې هغه راغونډه کړې شوه (لفافه ثانيه) هغه فرمائي چه رسول الله صلى الله عليه وسلم دروازې سره ناست وو رسول الله صلى الله عليه وسلم سره د ام کلثوم رضي الله عنها کفن وو، يوه يوه کپړه به ئې مونږ ته په ترتيب سره راکوله، د دې حديث نه معلومه شوه چه دا خو ظاهره ده چه د زنانو غسل او تجهيز او تکفين خو کوی زنانه، خو سړو له په خپله نګرانئ کښې په زنانو باندې دا ټول کارونه کول پکار دی.

## بَابٌ فِي الْمِسْكِ لِلْمَيِّتِ

### په مړی د مشکو لګولو بيان

[٣١٥٨] (١) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا الْمُسْتَمِرُّ بْنُ الرَّيَّانِ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَطْيَبُ طِيبِكُمُ الْمِسْكُ".

دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دی ستاسوپه خوشبوګانو کښې بهترينه خوشبو مشک دې.

او امام بخاری رحمه الله باب قائم کړې دې ﴿ باب الحنوط للميت ﴾ او په دې کښې ئې د ابن عباس رضي الله عنهما هغه حديث ذکر کړې دې چه په هغې کښې دا دی چه د حجة الوداع په کال يو صحابی په عرفات کښې د خپلې اوښې نه غورځيدو سره وفات شو د هغوی په باره کښې رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل ﴿ ولا تحنطوه ولا تخمروا راسه ﴾ چه په دهٔ باندې خوشبوئی مه لګوئ او نه ورله سر پټ کړئ دا سړې به د قيامت په ورځ د احرام په حالت کښې پاسی.

(١): سنن النسائي/الجنائز ٤٢ (١٩٠٧)، (تحفة الأشراف: ٤٣٨١)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الأدب ٥ (٢٢٥٢)، سنن الترمذي/الجنائز ١٦ (٩٩١)، مسند احمد (٣/٣٦، ٤٠، ٤٦، ٦٢) (صحيح)

ګویا امام بخاری رحمه الله د دې حدیث د مفهوم مخالف نه د غیر محرم مړي دپاره حنوط ثابت کړل، پس په فتح الباری ۱۶۳/۳ کښې دی ﴿ قال البيهقى فيه دليل على ان غير المحرم يحنط كما يخمر راسه آهـ ﴾ او امام ابوداؤد رحمه الله حدیث الباب ﴿ اطيب طيبكم المسک ﴾ لره راوړلو سره ګویا د عموم د حدیث نه استدلال کړې دې چه په دې کښې ژوندی او مړی دواړه برابر دی.

**د ترجمة الباب والا مسئله کښې د علماء کرامو اختلاف :**

امام ترمذی رحمه الله هم بعینه هم دغه شان ترجمة الباب او هم دا حدیث ذکر کړو او بیا ئې وړاندې اوفرمائیل ﴿ والعمل على هذا عند بعض اهل العلم وهو قول احمد واسحاق، وقد ذكره بعض اهل العلم المسک للميت ﴾ په دې باندې په تحفة الاخوذی کښې لیکلی دی ﴿لم اقف على وجه الكراهة والحق هو الجواز آهـ ﴾ د حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې په دې باندې تفصیلی لیکل شوې دی د مختلفو شراحو نه د دې په باره کښې نقل کړې دی، علامه عینی رحمه الله فرمائی چه د اکثرو علماء کرامو په نزد دا جائز ده وبه قال مالک والشافعى واحمد واسحاق وكرهه عطاء والحسن ومجاهد، وقالوا انه ميتة الخ بله دا چه شیخ د ازالة الخفاء ۹۸/۲ نه نقل کړې دی چه عمر رضي الله عنه اوفرمائیل چه زما دپاره مشک په خوشبوئۍ کښې مه استعمالوئ، ﴿ لا تحنطونى بمسک ﴾ قال الشيخ لعله كره لان فيه دليل الاباحة والحرمة، خو هم په دې ازالة الخفاء کښې په بل ځائې کښې دا هم لیکلې شوې دی چه عمر رضي الله عنه به په ژوند باندې خو مشک استعمالول خو وصیت ئې دا اوفرمائیلو چه زما نه پس زما دپاره دا مه استعمالوئ، ﴿ وكان الحسن يكرهه للميت لا للحى اهـ ﴾ د مشک حقیقت چونکه دم منجمد دې نو کیدې شی هم په دې وجه باندې بعض خلقو ته د دې په استعمال کښې تردد پیدا شوې دې، حضرت شیخ لیکی چه که دا وجه وې نو بیا په دې حکم کښې مړې او ژوندې یو شان پکار وو یا به بله څه وجه وی والله تعالى اعلم (هامش البذل) والحديث اخرجه مسلم والترمذى والنسائى، قاله المنذرى

## بَابُ التَّعْجِيلِ بِالْجَنَازَةِ وَكَرَاهِيَةِ حَبْسِهَا

**د مړي په تجهیز او تکفین کښې د عجلت کولو او د ایسارولو د کراهت بیان**

یو باب د څو ابوابو نه پس را روان دې ﴿ باب الاسراع بالجنازة ﴾ په دواړو کښې فرق دې، په دې باب کښې د تعجیل نه مراد تعجیل فى التجهيز والتكفين دې، او په وړاندې باب کښې د اسراع نه مراد اسراع فى المشى ده لکه چه د دواړو ابوابو د احادیثو نه معلومیږی.

[٣١٥٩](١) حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحِيمِ بْنُ مُطَرِّفٍ الرُّؤَاسِيُّ أَبُو سُفْيَانَ، وَأَحْمَدُ بْنُ جَنَابٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا عِيسَى، قَالَ أَبُو دَاوُد: هُوَ ابْنُ يُونُسَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ عُثْمَانَ الْبَلَوِيِّ، عَنْ عَزْرَةَ، وَقَالَ عَبْدُ الرَّحِيمِ: عُرْوَةَ بْنِ سَعِيدٍ الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ الْحُصَيْنِ بْنِ وَحْوَحٍ: أَنَّ طَلْحَةَ بْنَ الْبَرَاءِ مَرِضَ، فَأَتَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُودُهُ، فَقَالَ: "إِنِّي لَا أَرَى طَلْحَةَ إِلَّا قَدْ حَدَثَ فِيهِ الْمَوْتُ، فَآذِنُونِي بِهِ، وَعَجِّلُوا، فَإِنَّهُ لَا يَنْبَغِي لِجِيفَةِ مُسْلِمٍ أَنْ تُحْبَسَ بَيْنَ ظَهْرَانَيْ أَهْلِهِ".

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٤١٨) (ضعيف)

دحصین بن وحوح رضی الله عنه نه روایت دي طلحه بن براء رضی الله عنه مریض شو اونبي علیه السلام دده دعیادت دپاره راغي رسول الله اوفرمائیل طلحه نه وینم زما خیال دي چه په هغه باندي دمرګ اثار سرګند شوي دي خوکله چه وفات شي ماخبرکړئ او توندي وکړئ دهغه په خښولو ځکه چه مناسب نه دی چه د مسلمان مړي دي دتکفین او تجهیزنه بغیر دخپل اهل سره پروت وي.

**قوله:** ﴿ ان طلحة بن البراء رضی الله عنه مرض فاتاه النبی صلی الله علیه وسلم یعوده فقال انی لا اری طلحة الا قد حدث فیه الموت الخ ﴾: یعنی طلحة بن البراء رضی الله عنه چه کله بیمار شو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ئي د تپوس دپاره تشریف یوړو رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوی ته کتلو سره اوفرمائیل چه زه وینم چه د دوی د مرګ وخت نزدې راغلي دي، پس ماته د دهٔ خبر راکړئ او تادي کوئ، یعنی د هغه په تیارئ کښ، ځکه چه د مسلمان د مړی دپاره دا مناسب نه ده چه هغه دي د کور د خلقو ترمینځه اوساتلې شی،

**په تعجیل کښي مصحلت :**

په دې باندې علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه مومن انسان د الله پاک په نزد او د انسانانو په نزد هم قابل اکرام او معزز وی خو د روح وتلو نه پس چه کله هغه بدن بې ساه پاتې شی نو په دې حیثیت سره طبیعتونه د هغه نه متوحش او متنفر شی هغه وخت هغه د هغوی په سترګو کښي مانوس او مرغوب فیه نه پاتې کیږی، په دې وجه مناسبه هم دا ده چه هغه دې سمدستی پټ کړې شی، سبحان الله.... د احکام شرعیه مصلحتونه اوګورئ

## بَابٌ فِي الْغُسْلِ مِنْ غَسْلِ الْمَيِّتِ

### بیان د غسل کولو دهغه چا دپاره څوک چه مړي ته غسل ورکړی

یعنی کوم انسان چه مړی ته غسل ورکړی هغه به روستو خپله هم غسل کوی؟

[۳۱۶۰] (۱) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بِشْرٍ، حَدَّثَنَا زَكَرِيَّا، حَدَّثَنَا مُصْعَبُ بْنُ شَيْبَةَ، عَنْ طَلْقِ بْنِ حَبِيبٍ الْعَنَزِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا حَدَّثَتْهُ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَغْتَسِلُ مِنْ أَرْبَعٍ: مِنَ الْجَنَابَةِ، وَيَوْمَ الْجُمُعَةِ، وَمِنَ الْحِجَامَةِ، وَغُسْلِ الْمَيِّتِ".

ام المومنین عائشة رضی الله عنها نه روایت دي فرمائی چه نبی علیه السلام به په څلورو وجوباندې غسل کول دجنابت نه او دجمعې په ورځ دښکرلګولو نه اودمړي دلمبولو نه

**قوله:** ﴿ عن عائشة رضی الله عنها ان النبی صلی الله علیه وسلم کان یغتسل من اربع من الجنابة ویوم الجمعة من الحجامة وغسل المیت ﴾: دا حدیث په کتاب الطهارة ﴿ باب غسل الجمعة ﴾ کښې تیر شوي دې، په دې کښې دا دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به د حجاجت د وجې نه غسل فرمائیلو او د غسل میت د وجې نه هم، خو د حجامت نه پس د رسول الله صلی الله علیه وسلم غسل کول ثابت نه دی، صرف غسل محاجم ثابت دې او دا حدیث ضعیف دې د مصعب بن شیبة د وجې نه، بلکه دا چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم چا مړی ته غسل ورکول هم ثابت نه دی، اول خو دا حدیث ضعیف دې یا به د دې تاویل داسې کولې شی چه د غسل نه مراد امر بالغسل دي

(۱): انظر حدیث رقم: (۳۴۸)، (تحفة الأشراف: ۱۶۱۹۳) (ضعیف)

[٣١٦١]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، حَدَّثَنِي ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ غَسَلَ الْمَيِّتَ، فَلْيَغْتَسِلْ، وَمَنْ حَمَلَهُ، فَلْيَتَوَضَّأْ".

دابوهريره نه روايت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي چاچه غسل ورکړل مړي ته نو دې دي غسل وکړي اوچاچه جنازه پورته کړه نوهغه دې اودس اوکړي.

**په مسئلة الباب کښې د علماء کرامو اختلاف:**

امام خطابی رحمه الله فرمائي: زما په علم کښې نشته دا خبره چه د يو فقيه په نزد دې مړی ته غسل ورکولو سره غسل واجب وی.(٢) او هم دغه شان نه په حمل کولو د مړی باندې اودس شته، او ظاهره دا ده چه امر په دې کښې د استحباب دپاره دې، چه د هغې دا وجه کيدې شی چه مړی ته غسل ورکونکې د څاڅکو نه محفوظ او په امن نه وی او ډير کرته د مړی په بدن باندې نجاست هم وی نو په دې لحاظ سره غسل ورکونکی ته د غسل کولو حکم اوکړې شو، او کوم چه په حديث کښې دی ﴿ومن حمله فليتوضاء﴾ د دې معنی دا کيدې شی چه مړی اوچتونکو يعنی جنازه اوړونکو له پکار دی چه هغوی دې د مخکښې نه په اودس کښې وی د مانځه په تيارئ کښ، او حافظ ابن قيم رحمه الله په تهذيب السنن کښې په دې کښې درې مذاهب ليکلې دی، مطلقا وجوب، دا مسلک د ابن المسيب او ابن سيرين رحمهما الله دې، مطلقا عدم وجوب دا مسلک د ائمة اربعه دې، د کافر مړی ته د غسل ورکولو نه د غسل واجب کيدل، دا يو روايت دې د امام احمد رحمه الله آهـ پس وړاندې يو مستقل باب را روان دې ﴿باب الرجل يموت له قرابة مشرک﴾ چه په هغې کښې د علی رضی الله عنه دا حديث ذکر کړې شوې دې هغوی فرمائي چه کله زه د رسول الله ﷺ د حکم مطابق د ابوطالب د دفن کولو نه پس راغلم نو هغوی ماته د غسل کولو حکم راکړو خو په هغه واقعه کښې غسل من غسل الميت الکافر نشته بلکه غسل من دفن الميت الکافر دې، د ائمه اربعه مذاهب په دې کښې دا دی د امام احمد رحمه الله په نزد د غسل ميت نه غسل کوم سنت دې کما فی الروض المربع، او د امام مالک رحمه الله نه دوه روايتونه دی يو د جوب او يو د استحباب، د امام شافعی رحمه الله هم دوه اقوال دی يو د استحباب وهو القول الجديد والقديم الوجوب، او يو روايت د امام شافعی رحمه الله نه دا دې چه ﴿ان صح الحديث لقلت بوجوبه﴾ او د احنافو په نزد اصالة خو مستحب نه دې خو خروجا عن الخلاف (٣) مستحب دې، او په ترمذی کښې دی: ﴿وقد اختلف اهل العلم فی الذی يغسل الميت فقال بعض اهل العلم من اصحاب النبی ﷺ وغيرهم اذا غسل ميتا فعليه الغسل وقال بعضهم عليه الوضوء وقال مالک بن انس استحب الغسل من غسل

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٢٧٥)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الجنائز ١٧ (٩٩٣)، سنن ابن ماجه/الجنائز ٨ (١٤٦٣) (صحيح)

(٢) په دې باندې حافظ تعقب کړې دې حيث قال کانه مادري ان الشافعي في البويطي علق القول به علي صحة الحديث والخلاف فيه ثابت عند المالکية وصار اليه بعض الشافعية آهـ من الاوجز ٢٢٩/٢.

(٣) ځکه چه د بعضو په نزد واجب دې د هغوی په رعايت کښې ١٢)

الميت ولا ادرى ذلک واجبا، وهكذا قال الشافعي، وقال احمد من غسل ميتا ارجو ان لا يجب عليه الغسل، واما الوضوء فاقل ما قيل فيه، وقال اسحق لا بد من الوضوء، وروى عن عبدالله بن المبارك انه قال لا يغتسل ولا يتوضاء من غسل الميت آهـ ﴾ د امام ترمذي رحمه الله د كلام نه معلومه شوه چه په دې مسئله كښې درې مسلكونه دى، د بعض صحابه كرامو رضي الله عنهم په نزد غسل واجب دې لكه ابوهريره رضي الله عنه كما قيل او د بعضو علماء كرامو لكه اسحاق بن راهويه د هغوى په نزد اودس واجب دې او بعض علماء كرام لكه ابن المبارك د هغوى مسلک مطلق د عدم استحباب دې، لا الغسل ولا الوضوء...

[٣١٦٢] ()حَدَّثَنَا حَامِدُ بْنُ يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ إِسْحَاقَ مَوْلَى زَائِدَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَاهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا مَنْسُوخٌ، وَسَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ، وَسُئِلَ عَنِ الْغُسْلِ مِنْ غُسْلِ الْمَيِّتِ، فَقَالَ: يُجْزِيهِ الْوُضُوءُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: أَدْخَلَ أَبُو صَالِحٍ بَيْنَهُ وَبَيْنَ أَبِي هُرَيْرَةَ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، يَعْنِي إِسْحَاقَ مَوْلَى زَائِدَةَ، قَالَ: وَحَدِيثُ مُصْعَبٍ ضَعِيفٌ، فِيهِ خِصَالٌ لَيْسَ الْعَمَلُ عَلَيْهِ.

دابوهريره نه دتير روايت په شان روايت منقول دې، ابوداود وائي داحديث منسوخ دې ماداحمدبن حنبل نه اوريدلى دى كله چه دهغه نه تپوس اوشو دغسل كولو په باره كښې په وجه دغسل وركولو مړي ته نووئې فرمائيل اودس ورله كاني دې، ابوداود وائي چه ابوصالح په دې حديث كښې خپل او ابوهريره په مينځ كښې اسحق داخل كړې دې اووئيلي يسې دي چه دمصعب په روايت كښې څه داسې څيزونه دى كوم چه ضعيف دي او په هغې عمل نشته.

﴿ قال ابوداؤد ادخل ابوصالح بينه وبين ابى هريرة فى هذا الحديث يعنى اسحاق مولى زائدة ﴾ مصنف رحمه الله فرمائي چه د دې په سند كښې ابوصالح د خپل ځان او ابوهريره رضي الله عنه ترمنيځه د اسحاق مولى زائدة واسطه ذكر كړې ده، يعنى اگر چه هغه د دوى شاگرد دې خو د دې باوجود واسطه ده، د دې نه پس په دې ځان پوهول پكار دى چه دا روايت په ترمذى كښې هم دې په هغې كښې د ابوصالح او ابوهريرة رضي الله عنه ترمينځه دا واسطه نشته، ﴿ عن سهيل بن ابى صالح عن ابيه عن ابى هريرة ﴾ لهذا دا د ترمذى والا سند منقطع شو، او د امام شافعي رحمه الله په كلام كښې دا دى چه دا حديث زما په نزد قوى په دې وجه نه دې چه دا حديث داسې روايت دې ﴿ عن سهيل بن ابى صالح عن ابيه عن ابى هريرة ﴾ او بعض حفاظو په دې سند كښې د ابوصالح او ابوهريرة ترمينځه اسحاق داخل كړې دې او وئيلي شوى دى چه ابوصالح دا حديث د ابوهريره رضي الله عنه نه نۀ دې اوريدلې، كذا فى تهذيب السنن لابن القيم. حافظ ابن القيم په دې باندې تفصيلى كلام كړې دې.

﴿ قال وحديث مصعب فيه خصال ليس العمل عليه ﴾ وفى البذل : وفى حاشية الكانفورية فى رواية ابن داسه : حديث مصعب ضعيف آهـ او د ضعف وجه خپله هم دا مصعب بن شيبة راوى دې، په ده باندې كلام او جرح په كتاب الطهارة ﴿ باب السواک من الفطرة ﴾ كښې تير شوې دې،

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢١٨٤) (صحيح)

د امام مسلم په نزد دا ثقه او قوي دې او د امام بخاري رحمه الله او نسائي رحمه الله په نزد ضعيف دې، مصنف رحمه الله فرمائي چه په دې حديث باندې د علماء کرامو عمل نشته يعنی د دې حديث په بعض اجزاء باندې کالغسل من غسل الميت کښې بعض خو اجماعی دی.

# بَابٌ فِي تَقْبِيلِ الْمَيِّتِ

## د مړی د ښکلولو بيان

[٣١٦٣](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنِ الْقَاسِمِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يُقَبِّلُ عُثْمَانَ بْنَ مَظْعُونٍ وَهُوَ مَيِّتٌ، حَتَّى رَأَيْتُ الدُّمُوعَ تَسِيلُ".

دعائشه رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه ما نبی عليه السلام اوليدو چه عثمان بن مظعون رضي الله عنه ئې ښکل کړو اوهغه مړ وو تردې چه ما دهغه اوښکي مبارکي اوليدي چه بهيدلي (عثمان بن مظعون د نبی عليه السلام رضاعي ورور وو اود مهاجرينونه وو).

﴿عن عائشة رضي الله عنها قالت رايت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقبل عثمان بن مظعون وهو ميت حتى رايت الدموع تسيل﴾

دا عثمان بن مظعون رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم رضاعی رور دې د هجرت نه دوه کاله او درې مياشتې پس د هغه په مدينه طيبه کښې وفات اوشو وهو اول من دفن بالبقيع، رسول الله صلى الله عليه وسلم د وفات نه پس د هغوی تقبيل اوفرمائيلو د صديق اکبر رضي الله عنه په باره کښې هم راځی چه هغوی هم د وفات نه پس د رسول الله صلى الله عليه وسلم تقبيل فرمائيلې وو.

### د مړی د غسل په علت کښې د علماء کرامو اقوال:

دلته يو بحث دې چه د مړی د غسل علت څه دې، فقيل تعبدی، وقيل للتطهير من الحدث او النجاسة، وقيل للتنظيف، په کتاب الطهارة کښې دا مسئله تيره شوې ده، چه مآء مخلوط بشئ طاهر يعنی کومو اوبو سره چه څه پاک څيز يو ځائې شي لکه صابون او اشنان يا د دې نه علاوه بل څيز، چه د هغې د وجې نه د اوبو په اوصاف ثلاثه کښې يو وصف متغير شوې وی په دې سره ازاله د احداث جائز ده يا نه، د ائمه ثلاث په نزد نه ده جائز د هغوی په کتابونو کښې د دې خبرې تصريح ده، د احنافو په نزد جائز ده وهو رواية عن احمد کما فی المغنی، د احنافو په دلائلو کښې يو دليل مړی ته په اوبه او بيرو سره غسل ورکولو والا روايات هم دی، ځکه چه ظاهره ده چه ماء سدر ماء مخلوط دی او د جمهورو په نزد په دې سره تطهير جائز نه دې هم دغه شان دا حضرات د دې حديث مختلف توجيهات بيانوی، يو تاويل دا کړې شوې دې چه د مړی غسل د تنظيف دپاره دې د تطهير دپاره بالکل هم نه دې، زين ابن المنير هم دا ليکلي دی، او يو دا توجيه دا کړې شوې ده چه د سدر استعمال په ټولو غسلاتو کښې نه ده بلکه يو ځل په شروع کښې يا په آخير کښې ماء قراح (ساده اوبه) استعمال کول مراد دی، يو توجيه دا کړې شې ده چه سدر لره په اوبو کښې اچولو سره

(١): سنن الترمذي/الجنائز ١٤ (٩٨٩)، سنن ابن ماجه/الجنائز ٧ (١٤٥٦)، (تحفة الأشراف: ١٧٤٥٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٤٣، ٥٥، ٢٠٦) (صحيح)

استعمالول مراد نه دی بلکه د دې د استعمال يو شکل دا هم دې چه د بيرې پانړو لره په اوبو کښې لوندولو سره د هغې نه په بدن باندې اومږلې شی او بيا روستو خالص اوبو استعمال کړې شی، ونحو ذلک من التوجيهات..... اوس که غسل د تنظيف دپاره اومنلې شی نو بيا خو په تقبيل ميت کښې هيڅ اشکال نشته او که د تطهير دپاره دې نو بيا اشکال کيدې شی، او په دې سلسله کښې د احنافو مذهب په حاشيه د لامع ۱۰۹/۲ کښې د بدائع نه دا نقل کړې شوې دې چه په دې کښې محمد بن شجاع بلخی خو دا فرمائيلې دی چه انسان په مرګ سره نه نجس کيږی کرامة له ځکه چه که هغه هم د عام حيواناتو په شان د مرګ په وجه ناپاک کيدې نو بيا به په غسل سره د پاکيدو حکم نه ورکړې کيدو، خو زمونږ د اکثرو مشائخو نه دا منقول دی چه د مرګ په وجه باندې انسان هم ناپاک کيږی لما فيه من الدم المسفوح ځنګه چه نور حيوانات ناپاکه کيږی په کومو کښې چه دم مسفوح دې خو فرق د نورو حيواناتو او د انسان دا دې چه انسان بعد الموت د غسل نه پس پاکيږی کرامة له، پس د امام محمد رحمه الله نه منقول دی چه مړې په کوهی کښې اوغورزيږی د غسل نه مخکښې نو کوهې ناپاکه کيږی په خلاف د بعد الغسل (غورځيدو).

## بَابٌ فِي الدَّفْنِ بِاللَّيْلِ

### د شپې د مړی د دفن کولو بيان

[۳۱۶۴]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَاتِمِ بْنِ بَزِيعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، أَخْبَرَنِي جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، أَوْ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: رَأَى نَاسٌ نَارًا فِي الْمَقْبَرَةِ، فَأَتَوْهَا، فَإِذَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْقَبْرِ، وَإِذَا هُوَ يَقُولُ: "نَاوِلُونِي صَاحِبَكُمْ"، فَإِذَا هُوَ الرَّجُلُ الَّذِي كَانَ يَرْفَعُ صَوْتَهُ بِالذِّكْرِ.

دجابر بن عبدالله نه روايت دې فرمائی چه مونږ په قبرستان کښې رڼرا اوليدله چه ورغلو نو موليدل چه نبی ﷺ په قبر کښې ولاړ دې او وائی خپل ملګرې ماته راکړې (لاش) داهغه کس وو چه په تيزه به ئې ذکر کولو.

﴿ سمعت جابر بن عبدالله رضي الله عنهما قال رای ناس نارا فی المقبرة فاتوها فاذا رسول الله ﷺ فی القبر واذا هو يقول ناولونی صاحبکم فاذا هو الرجل الذی کان يرفع صوته بالذکر ﴾

### د يو ذکر جهری کونکی خوش نصيبی :

مضمون د حديث دا دې، جابر رضي الله عنه فرمائی چه يو ځل داسې اوشو چه د شپې په وخت خلقو ته د لرې نه په قبرستان کښې رڼرا ښکاره شوه خلق هلته اورسيدل، د رسيدو نه پس ګورو چه رسول الله ﷺ پخپله يو قبر ته کوز شوې دې او فرمائی راوړئ مړې راکړئ د دې نه معلومه شوه چه رسول الله ﷺ هغه صحابی رضي الله عنه په خپل لاس باندې قبر ته کوز کړو، او چونکه شپه وه په دې وجه د رڼرا ضرورت پيښ شو د کوم چه په روايت کښې ذکر دې، راوی وائی (مونږ چه په غور اوکتل نو) دا مړې هم هغه سړې وو چه په اوچت آواز به ئې ذکر کولو، د راوی د دې کلام نه معلوميږی چه دا صاحب په ذکر جهری کښې معروف وو، او

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۵۶۴) (ضعيف)

کیدې شي چه هغوی ته دا سعادت هم د دې خصلت د وجې نه حاصل شوې وی، دفن باللیل باندې کلام او اختلاف وغیره اوس نزدې په باب فی الکفن کښې د یو حدیث د لاندې تیر شوې دې.
په شپه کښې د دفن قصه د ځو صحابه کرامو ﷺ سره پیښه شوې ده پس علی ﷺ فاطمه ﷺ په شپه کښې دفن کړې وه، هم دغه شان د عثمان او عائشې ﷺ تدفین هم په شپه کښې شوې دې، هم دغه شان د صدیق اکبر ﷺ، او خپله د رسول الله ﷺ تدفین په آخر د شپه کښې اوشو (ابن القیم) د دې نه علاوه د نورو صحابه کرامو ﷺ تدفین هم په شپه کښې شوې دې او په کوم روایت کښې چه د دفن لیلا ممانعت راغلې دې د هغې په علت کښې دا وئیلې شوی دی چه لرداءة الکفن او لترک الصلوة علی المیت او شفقة علی الدافنین، حدیث الباب ته نزدې د ترمذی په روایت کښې دی
عن ابن عباس ﷺ ان النبی دخل قبرا لیلا فاسرج له بسراج فاخذه من قبل القبلة وقال رحمک الله ان کنت لاواها تلا القران ﴾

**د رسول الله ﷺ د بعض صحابه کرامو قبر ته کوزیدل :**

ابن القیم ﷺ فرمائی : وقد نزل النبی ﷺ فی قبر ذی البجادین لیلا آهـ او په حاشیه د بذل کښې دی چه حافظ ﷺ په اصابه کښې د ذو البجادین په ترجمه کښې لیکلی دی چه د رسول الله ﷺ د پنځو صحابه کرامو ﷺ قبرونو ته نزول ثابت دې.

# بَاب فِي الْمَيِّتِ يُحْمَلُ مِنْ أَرْضٍ إِلَى أَرْضٍ وَكَرَاهَةِ ذَلِكَ

## د یو ځائې نه بل ځائې ته د مړی د نقل کولو دمما نعت بیان

د دې قسم باب وړاندې هم را روان دې د کتاب الجنائز په اواخر کښې ﴿ باب فی تحویل المیت من موضعه للامر یحدث ﴾ ظاهره دا ده چه په دې مخکښې باب کښې تحویل میت قبل الدفن مراد دې، او په وړاندې باب کښې تحویل بعد الدفن.

**د مړی د نقل په باره کښې مذاهب د ائمة :**

د مړی تحویل قبل الدفن وبعده د امام شافعی اومالک ﷺ په نزد جائز دې د یو مصلحت د وجې نه کجوار الصالحین یا تقدس ارض ([1]) د وجې نه لکه مکه مکرمه او مدینه طیبه، خو په

---

[1] **د موسی ﷺ د روح د قبض کولو قصه** : پس امام بخاری ﷺ باب قائم کړې دې، باب من احب الدفن في الارض المقدسة او نحوها او په هغې کښې ئې د ابوهریرة ﷺ حدیث ذکر فرمائیلې دې ﴿ قال ارسل ملك الموت الي موسي فلما جآءه صكه ففقا عينه فرجع الي ربه فقال ارسلتني الي عبد لا يريد الموت فرد الله عليه عينه وقال ارجع فقل له يضع يده علي متن ثور فله بكل ماغطت به يده لكل شعرة سنة، قال اي رب ثم ماذا قال ثم الموت، قال فالآن فسأل الله ان يدنيه من الارض المقدسة رمية بحجر، قال رسول الله ﷺ فلو كنت ثم لاريتكم قبره الي جانب الطريق عند الكثيب الاحمر، یعنی کله چه الله پاک ملک الموت د انسان په شکل کښې موسی ﷺ ته راولیږلو د روح د قبض کولو دپاره نو هغه لاړو او هغه ته ئې عرض چه زه ستاسو د روح د قبض کولو دپاره راغلې یم، موسی ﷺ هغه او نه پیژندلو) په دې باندې هغوی هغه ته یو سپیړه ورکړه چه په هغې سره یوه سترګه رنده شوه هغه الله پاک ته واپس شو او هلته ئې عرض اوکړو چه زه تاسو داسې بنده ته ......... له

دي شرط چه د مړي عزت به نه شي خرابولې ولم يوجد فيه مسلک احمد، او د احنافو په نزد د دفن نه مخکښې مړې نقل کول جائز دی تر يو ميل او دوه ميلو پورې، او هر چه پس د دفن نه دی نو بغير د عذر شرعی نه ناجائز دی، لکه يو سړې په هغه زمکه کښې دفن شی چه غصب کړې شوې وی، او فقهاء کرامو دا هم ليکلې دی چه عدم غسل يا عدم صلوة علی الميت د وجې نه نبش د قبر جائز نه دې هم دغه شان که مړې غير مستقبل القبلة دفن کړې شی نو د استقبال قبله دپاره هم نبش د قبر جائز نه دې.

[۳۱۶۵](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الْأَسْوَدِ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ نُبَيْحٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: كُنَّا حَمَلْنَا الْقَتْلَى يَوْمَ أُحُدٍ لِنَدْفِنَهُمْ، فَجَاءَ مُنَادِي النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَأْمُرُكُمْ أَنْ تَدْفِنُوا الْقَتْلَى فِي مَضَاجِعِهِمْ، فَرَدَدْنَاهُمْ".

دجابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه دغزوه احد په ورځ باندې مونږ شهيدان ددفن کولو دپاره بل ځائې ته وړل دنبی عليه السلام اعلان کونکې راغې او آواز ئې اوکړو چه نبی عليه السلام حکم کړې دې چه شهيدان دفن کړئ په هغه ځايونو کښې چرته چه قتل کړې شوي دي نوبيامونږه د شهيدانو لاشونه دشهادت ځايونوته واپس کړل.

﴿ عن جابر رضي الله عنه قال كنا حملنا القتلى يوم احد لندفنهم الخ ﴾

جابر رضي الله عنه فرمائی چه په جنګ احد کښې د شهيدانو بعض خپلوانو هغوی لره په بقيع کښې د دفن کولو دپاره اوړل اوغوښتل، په دې باندې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د طرف نه يو منادی آواز اوکړو چه رسول الله صلى الله عليه وسلم حکم فرمائی چه مقتولين دې د هغوی په شهادت ګاه کښې دفن کړې شی پس مونږ هغوی هم هلته واپس کړل.

د دې حديث نه د احنافو تائيد کيږی د نقل ميت په مسئله کښ، شوافع وغيره کوم چه د جواز قائل دی هغوی د دې جواب دا ورکوی چه دا حکم مختص دې د شهداء سره، يا دا چه

---

⬅......اوليږلم چه د مرګ اراده نه لری، الله پاک د هغه سترګه روغه کړه او ورته ئې اوفرمائيل چه اوس لاړه شه او هغه ته اوايه چه خپل لاس دې د غوئی په شا باندې کيږدی نو څومره ويښته چه د هغه د لاس د لاندې راغلل د هر ويښته په اندازه به ورته د يو کال ژوند ورکړې شی (پس هغه هم دغه شان اوکړل په دې باندې) موسی عليه السلام عرض اکړو يا زما ربه د دې نه پس به څه وی؟ الله پاک اوفرمائيل بيا به هم مرګ راځی، هغوی عرض اوکړو بيا ئې اوس واخلئ، او دا دعا ئې اوفرمائيله چه هغه دې بيت المقدس ته نزدې کړې شی، د دې نه پس رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائی چه که زه په دغه ځائې کښې وې نو ما به تاسو ته د هغه قبر ښودلې وی، د لارې طرف ته د سرې شږې کمر ته نژدې، په دې واقعه باندې يو مشهور اشکال دی چه موسی عليه السلام ملک الموت په سپيړه څنګه او وهلو د دې جواب کوم چه په حاشيه د بخاری کښې ليکلې شوې دی هغه دا دې چه هغه وخت دا ملک الموت د هغوی په خدمت کښې د انسان په شکل راغلې وو او د راتلو سره ئې ورته اونيل چه زه خو د روح د قبض کولو دپاره راغلې يم او د موسی عليه السلام په ذهن کښې دا وه چه ماته به د مرګ په وخت اختيار راکولې شی په دې وجه هغه پوهه نه شو چه دا ملک الموت دې په دې وجه داسې اوشو، نور هم د دې توجيهات کړې شوې دی، د بخاری دا ترجمة الباب او دا قصه مونږ دلته د دې غرض دپاره ذکر کړه چه تقدس د ارض هم يو امر مطلوب دې ﴿لا من حيث اصل المسئلة اغني نقل الميت ﴾

(١): سنن الترمذي/الجهاد ٣٧ (١٧١٧)، سنن النسائي/الجنائز ٨٣ (٢٠٠٦)، سنن ابن ماجه/الجنائز ٢٨ (١٥١٦)، (تحفة الأشراف: ٣١١٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٢٩٧، ٣٠٣، ٣٠٨، ٣٩٧)، سنن الدارمي/المقدمة ٧ (٤٦) (صحيح)

دا حکم ابتداء وو ځکه چه نقل کړې شوی دی چه جابر بن عبد الله رضي الله عنه خپل پلار لره چه په جنګ احد کښې شهید شوې وو د احد نه بقیع ته شپږ میاشتې پس منتقل کړې وو دا روایت خپله وړاندې په دې کتاب کښې را روان دې. والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری

## بَابٌ فِي الصُّفُوفِ عَلَى الْجَنَازَةِ

### په جنازه کښې د صفونو د تعداد بیان

او په بعض نسخو کښې دی الصفوف علی الجنازة....

[۳۱۶۶]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ مَرْثَدٍ الْيَزَنِيِّ، عَنْ مَالِكِ بْنِ هُبَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَمُوتُ، فَيُصَلِّي عَلَيْهِ ثَلَاثَةُ صُفُوفٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ، إِلَّا أَوْجَبَ". قَالَ: فَكَانَ مَالِكٌ إِذَا اسْتَقَلَّ أَهْلَ الْجَنَازَةِ، جَزَّأَهُمْ ثَلَاثَةَ صُفُوفٍ لِلْحَدِيثِ.

د مالك بن هبیرة رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی هریو مسلمان چه مړ شي او د مسلمانانو درې صفونه ورباندې جنازه اوکړي نو دده دپاره مغفرت واجب شو، راوي وائی کله چه به مالك بن هبیره ته په جنازه کښې د مونځ کونکو تعداد کم ښکاریدو نو دهغوی نه به ئې درې صفونه جوړ کړل د دې حدیث په وجه.

مضمون د حدیث دا دې چه په کوم مړی باندې د جنازه کونکو درې صفونه وی نو هغه انسان د جنت مستحق کیږی ــ د دې حدیث راوی مالک بن هبیره دې ﴿ فکان مالک اذا استقل اهل الجنازة جزاهم ثلاثة صفوف للحدیث ﴾ یعنی مالک بن هبیره رضي الله عنه د دې حدیث د وجې نه چه کله به کتل چه د مونځ کونکو تعداد ډیر زیات کم دې نو هغوی به ئې په درې حصو کښې تقسیم کړل او د هغوی نه به ئې درې صفونه جوړ کړل، مثلا که مونځ کونکی به ټول شپږ کسان وو نو د دوه دوه کسانو به ئې درې صفونه جوړ کړل.

**د جنازې د صفونو په باره کښې د امام مالک رحمه الله مذهب:**

امام بخاری رحمه الله باب قائم کړې دې، ﴿ من صف صفین او ثلاثة ﴾ د دې باب په باره کښې حضرت شیخ په حاشیة د لامع ۲/ کښې خپله رائې دا لیکلې ده چه ممکنه ده د امام بخاری غرض په هغه خلقو باندې رد کول وی کوم چه داسې وائی چه د جنازې د مانځه خو بس یو صف کیدل پکار دی، پس ابن العربی د امام مالک رحمه الله نه نقل کړی دی ﴿ انه استحب ان یکون المصلون علی الجنازة سطرا واحدا، قال ولا اعلم لذلک وجها آهـ ﴾ او بیا حضرت شیخ وړاندې د ابن قدامه نه نقل کړی دی چه مستحب دا ده چه په جنازه باندې درې صفونه قائم کړې شی هم د دې مالک بن هبیره رضي الله عنه د حدیث نه استدلال کولو سره، امام ترمذی د امام احمد رحمه الله نه هم دا نقل کړی دی چه که مونځ کونکی کم وی نو د هغوی دې درې صفونه جوړ کړې شی، خلقو د هغه نه تپوس اوکړو چه که مونځ کونکی صرف څلور وی نو بیا څه اوکړي

---

[1]: سنن الترمذي/الجنائز ٤٠ (١٠٢٨)، سنن ابن ماجه/الجنائز ١٩ (١٤٩٠)، (تحفة الأشراف: ١١٢٠٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٧٩/٤) (ضعيف)

شي نو وې فرمائيل بيا په دې صورت کښې دې صرف دوه صفونه جوړ کړې شي في کل صف رجلين، او د درې صفونو جوړولو اجازت نې ورنکړو چه په دې صورت کښې به په يو صف کښې صرف يو سړې پاتې شي. والحديث اخرجه الترمذي وابن ماجة. قاله المنذرى

## باب اتِّبَاعِ النِّسَاءِ الْجَنَائِزَ

### د جنازې سره د ښځو د تللو دمما نعت بيان

[۳۱۶۷](¹) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ حَفْصَةَ، عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ، قَالَتْ: "نُهِينَا أَنْ نَتْبَعَ الْجَنَائِزَ، وَلَمْ يُعْزَمْ عَلَيْنَا".

دام عطية رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه مونږ په جنازه پسې دتلونه منع کړې شوي وو مگر په دې کښې سختي نه ده شوې په مونږ باندې.

﴿عن ام عطية رضي الله عنها قالت : نهينا ان نتبع الجنائز ولم يعزم علينا﴾

ام عطيه رضي الله عنها فرمائي چه مونږ، يعنى زنانه منع کړې شوي دی جنازو سره د تلو نه خو په سختئ سره منع نه ده کړې شوې.

### په مسئلة الباب کښې مذاهب د ائمة :

امام نووى رحمه الله فرمائي يعنى درسول الله ﷺ د طرف نه په دې کښې تنزيهًا منع کړې شوې ده نه تحريما، او بيا هغه اووې چه زمونږ مسلک هم دا دې چه مکروه دى حرام نه دى. قاضى عياض رحمه الله فرمائي چه د جمهور په نزد منع ده خو د مدينې طيبې علماء کرامو دا جائز کړې ده، واجازه مالک وکره للشابة..... او د احنافو مسلک په درمختار کښې ليکلې دې : ويكره خروجهن تحريما لقوله عليه الصلوة والسلام ارجعن ما زورات غير ماجورات رواه ابن ماجة بسند ضعيف، لكنه يعضده المعنى الحادث باختلاف الزمان الذى اشارت اليه عائشة رضي الله عنها بقولها لو ان رسول الله ﷺ راى ما احدث النسآء بعده لمنعهن كما منعت نساء بنى اسرائيل، وهذا فى نساء زمانها فما ظنك بنساء زماننا، واما فى الصحيحين عن ام عطية (يعنى حديث الباب) فينبغى ان يختص بذلك الزمن حيث يباح لهن الخروج الى المساجد والاعياد اهـ (بذل) په حاشيه د بذل کښې دی چه علامه عينى كراهة تنزيه ته ترجيح ورکړې ده. والحديث اخرجه البخارى ومسلم وابن ماجة. قاله المنذرى

## باب فَضْلِ الصَّلَاةِ عَلَى الْجَنَائِزِ وَتَشْيِيعِهَا

### په مړي باندې د جنازې سره د تلو د فضيلت بيان

[۳۱۶۸](²) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ سُمَيٍّ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ يَرْوِيهِ، قَالَ: "مَنْ تَبِعَ جَنَازَةً فَصَلَّى عَلَيْهَا، فَلَهُ قِيرَاطٌ، وَمَنْ تَبِعَهَا حَتَّى يُفْرَغَ مِنْهَا، فَلَهُ قِيرَاطَانِ، أَصْغَرُهُمَا مِثْلُ أُحُدٍ، أَوْ أَحَدُهُمَا مِثْلُ أُحُدٍ".

(¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۱۲۲)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الجنائز ۲۹ (۱۲۷۸)، صحيح مسلم/الجنائز ۱۱ (۹۳۸)، سنن ابن ماجه/الجنائز ۵۰ (۱۵۷۷)، مسند احمد (۴۰۸/۶) (صحيح)

(²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۲۵۵۹)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الإيمان ۳۵ (۴۷)، الجنائز ۵۸ (۱۳۲۵)، صحيح مسلم/الجنائز ۱۷ (۹۴۵)، سنن النسائي/الجنائز ۷۹ (۱۹۹۶)، سنن ابن ماجه/الجنائز ۳۴ (۱۵۳۹)، مسند احمد (۲/۲، ۲۳۳، ۲۴۶، ۲۸۰، ۳۲۱، ۳۸۷، ۴۰۱، ۴۳۰، ۴۵۸، ۴۷۵، ۴۸۰، ۴۹۳، ۴۹۸، ۵۰۳، ۵۲۱) (صحيح)

دابوهریره نه روایت دي فرمائی چه رسول پاك ﷺ فرمائیلی دی: څوك چه دجنازي سره لاړ شي اود جنازي مونځ اوکړي نودده دپاره دیوقیراط برابراجردې اوڅوك چه دجنازي سره لاړ شي اودفارغیدو پورې ورسره وي نودده دپاره دوه قیراطه اجر دې اودقیراط کم مقدار داحد دغر هومره وي یا دیو قیراط مقدار داحد د غر هومره وي.

﴿من تبع جنازة فصلى عليها فله قيراط الخ﴾

یعنی څوک چه جنازې سره لاړو او په هغې باندې ئې مونځ اوکړو او د قبرستان پورې لانړو نو د هغه اجر به په اندازه د یو قیراط وی، او کوم انسان چه د مونځ د کوکو نه پس هغه سره قبر ته لاړ شی او د دفن پورې هم هلته پاتې شی نو د هغه دپاره دوه قیراط ثواب دې او رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه یو قیراط ثواب د احد د غر برابر دې، د یو قیراط مقدار په لغت کښې خو نصف دانق دې، او دانق د درهم سدس ته وائی لهذا یو قیراط د درهم دولسمه حصه شوه خو دلته په حدیث کښې لغوی معنی نه ده مراد بلکه ډیر لوئې مقدار مراد دې لکه چه په حدیث کښې دی د احد د غر برابر، وفى البذل تحت قوله فصلى عليها فرجع ولم يمش معها الى القبر حتى يدفن. فى هامشه: وقال الطحاوى فى مشكل الآثار ان هذا الاجر مع المشئ لا لمجرد الصلوة الخ آهـ فليراجع الى مشكل الآثار.

والحديث اخرجه البخارى ومسلم والترمذى والنسائى وابن ماجة. قاله المنذرى.

[۳۱۶۹](۱) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ حُسَيْنٍ الْهَرَوِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا الْمُقْرِءُ، حَدَّثَنَا حَيْوَةُ، حَدَّثَنِي أَبُو صَخْرٍ وَهُوَ حُمَيْدُ بْنُ زِيَادٍ، أَنَّ يَزِيدَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ قُسَيْطٍ، حَدَّثَهُ أَنَّ دَاوُدَ بْنَ عَامِرِ بْنِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، حَدَّثَهُ عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ كَانَ عِنْدَ ابْنِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، إِذْ طَلَعَ خَبَّابٌ صَاحِبُ الْمَقْصُورَةِ، فَقَالَ: يَا عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ، أَلَا تَسْمَعُ مَا يَقُولُ أَبُو هُرَيْرَةَ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنْ خَرَجَ مَعَ جَنَازَةٍ مِنْ بَيْتِهَا، وَصَلَّى عَلَيْهَا، فَذَكَرَ مَعْنَى حَدِيثِ سُفْيَانَ"، فَأَرْسَلَ ابْنُ عُمَرَ إِلَى عَائِشَةَ، فَقَالَتْ: صَدَقَ أَبُو هُرَيْرَةَ.

دعامربن سعد بن ابی وقاص نه روایت دې فرمائی چه زما پلار دابن عمر سره ناست وو چه خباب راغې اووئې وئیل اې ابن عمر رضی الله عنه ایاتاته معلومه ده چه ابوهریره وئیلی دی چه هغه د نبی علیه السلام نه اوریدلې وو چه فرمائیل ئې څوك چه دخپل کور نه وځی اود یوې جنازې سره روان شي اوجنازه وربانديې اوکړي اوباقی روایت ئې دسفیان دروایت په شان ذکرکړو، نوابن عمر رضی الله عنه دمعلومات دپاره عائشې رضی الله عنها ته څوك ولیږو عائشې ورته اووئیل ابوهریره رښتیا وئیلي دي.

﴿الا تسمع ما يقول ابوهريرة رضی الله عنه انه سمع رسول الله ﷺ يقول الخ﴾

یعنی ابن عمر رضی الله عنه ته چه کله د ابوهریره رضی الله عنه دا حدیث اورسیدو د یو قیراط او د دوه قیراطو والا نو هغوی د دې د تحقیق دپاره عائشې رضی الله عنها ته سړې راولیږلو چه په هغې باندې عائشې رضی الله عنها د ابوهریرة رضی الله عنه تصدیق اوکړو.

دا روایت دلته مختصر دې او په ترمذی کښې په دې باندې دا زیادت دې، ﴿ فقال ابن

۱): صحيح مسلم/الجنائز ۱۷ (۹۴۵)، (تحفة الأشراف: ۱۲۳۰۱، ۱۶۱۶۷) (صحيح)

عمر رضي الله عنهما لقد فرطنا في قراريط كثيرة ﴾ او د مسلم شریف په یو روایت کښې د دې دپاسه دا هم دی ﴿ عن سالم بن عبدالله قال كان ابن عمر يصلي على الجنازة ثم ينصرف فلما بلغه حديث ابي هريرة قال فلذكره، یعنی د ابن عمر رضي الله عنهما معمول په شروع کښې صرف د جنازې د مونځ کولو وو جنازې سره قبرستان ته د تلو عادت ئې نه وو چه کله هغوی ته د ابوهریره رضي الله عنه دا حدیث اورسیدو او بیا عائشې رضي الله عنها هم د دې تصدیق اوفرمائیلو نو هغوی په خپل عمل باندې د افسوس اظهار اوکړو، او وې فرمائیل چه مونږ د ډیرو قیراطونو نقصان اوکړو (تحفه) دا د صحابه کرامو رضي الله عنهم د یقین خبره ده هم دا خو د ټولو نه لوئې دولت وو د هغوی سره چه هغوی سره کمال یقین وو وخیر ما القی فی القلوب الیقین.

والحديث اخرجه مسلم بمعناه اتم منه، قاله المنذري

[٣١٧٠]() حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ شُجَاعٍ السَّكُونِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي أَبُو صَخْرٍ، عَنْ شَرِيكِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي نَمِرٍ، عَنْ كُرَيْبٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَمُوتُ، فَيَقُومُ عَلَى جَنَازَتِهِ أَرْبَعُونَ رَجُلًا، لَا يُشْرِكُونَ بِاللَّهِ شَيْئًا، إِلَّا شُفِّعُوا فِيهِ".

دابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دې فرمائي چه دنبی علیه السلام نه مې اوریدلی دی چه فرمائیل ئې هیڅوك داسې مسلمان نشته چه مرشي اووده په جنازه کښې څلویښت کسان اودریږی داسې کسان چاچه دالله سره شریك نه وی ګرځولې اوهغوی دده جنازه اوکړي مګر الله تعالی به ددوی سفارش ددې مړي په حق کښې قبول کړي.

﴿ ما من مسلم يموت فيقوم على جنازته اربعون رجلا الخ ﴾

یعنی د کوم سړي د جنازې د مونځ کونکو تعداد چه څلویښتو ته اورسیږی نو د هغوی دا شفاعت د الله پاک په نزد قبلیږی، او په صحیح مسلم کښې د عائشې رضي الله عنها په حدیث کښې ﴿يبلغون مائة ﴾ او د دې نه مخکښې د مالک بن هبیره رضي الله عنه په روایت کښې ثلاثة صفوف راغلې دې چه په هغې کښې نه د سلو قید دې نه د څلویښتو، په دې کښې د اختلاف عدد یو جواب دا ورکړې شوې دې، چه دا اختلاف د سائلینو په سوال باندې محمول دې یعنی دا حدیثونه رسول الله صلی الله علیه وسلم د سائلینو په سوال باندې ارشاد فرمائیلې دی یو سائل د سلو د عدد په باره کښې تپوس اوکړو او چا د څلویښتو په باره کښ، د دواړو په جواب کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل او هم داسې ده یعنی د دې عدد تحدید په شروع کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د طرف نه نۀ دې ممکنه ده چه که د دې نه د کم په باره کښې سوال کړې شوې وې نو په دې باندې به هم رسول الله صلی الله علیه وسلم هم داسې فرمائیلې وې وفی هامش البذل

وجمع بينهما اى بين المئة والاربعين الطحاوى فى مشكل الآثار ٢/١٠٤ بحمل اربعين على آخر الزمان آهـ ان شئت التفصيل فارجع اليه.

والحديث اخرجه مسلم اتم منه، واخرجه ابن ماجة بنحوه، قاله النووى.

[1]): صحيح مسلم/الجنائز ١٨ (٩٤٨)، سنن ابن ماجه/الجنائز ١٩ (١٤٨٩)، (تحفة الأشراف: ٦٣٥٤)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الجنائز ٤٠ (١٠٢٩)، سنن النسائي/الجنائز ٧٨ (١٩٩٣)، مسند احمد (٢/٣٦، ٤٠، ٩٧، ٢٣١) (صحيح)

## بَابٌ فِي النَّارِ يُتْبَعُ بِهَا الْمَيِّتُ

### د جنازې سره د اور وړلو د ممانعت بيان

[٣١٧١](١) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ. ح وحَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَرْبٌ يَعْنِي ابْنَ شَدَّادٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، حَدَّثَنِي بَابُ بْنُ عُمَيْرٍ، حَدَّثَنِي رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْمَدِينَةِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: لَا تُتْبَعُ الْجَنَازَةُ بِصَوْتٍ وَلَا نَارٍ، زَادَ هَارُونُ: وَلَا يُمْشَى بَيْنَ يَدَيْهَا".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دی په جنازه پسې دې څوك اور نه وړي اونه دې په جنازې پسې څوك آواز كوي اونه دې دجنازې نه څوك مخكښې خي اودهارون په روايت كښې ورسره دا اضافه ده چه دجنازې سره دې برابر هم څوك نه خي

قوله: ﴿ لا تتبع الجنازة بصوت ولا نار ولا يمشي بين يديها ﴾: ابوهريرة رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه نقل كوی چه په جنازه پسې د هغې نه شاته آواز نه دی كيدل پكار او نه اور، د آواز نه مراد عام دې كه د ژړا وی او كه د ذكر او تلاوت د وجې نه وی اود اورنه مراد دخوشبويۍ اور دې قبر لره دخوشبويه كولودپاره لكه چه اهل كتابو به كول، او منع د دوه وجو نه ده لاجل التفاول وهو لان النار آلة العذاب او مخالفت د اهل كتابو، او كه د رڼا دپاره اور ځان سره واخستلې شی په دې كښې هيڅ باک نشته، هغه خو ثابت دې اوس نزدې حديث تير شوې دې او وړاندې په دې روايت كښې دی چه د جنازې نه مخكښې مه ځئ. او په دې باندې وړاندې مستقل باب را روان دې.

## بَابُ الْقِيَامِ لِلْجَنَازَةِ

### د جنازې د ليدلو په وخت كښې د اودريدلو بيان

[٣١٧٢] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ، يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا رَأَيْتُمُ الْجَنَازَةَ، فَقُومُوا لَهَا حَتَّى تُخَلِّفَكُمْ، أَوْ تُوضَعَ".

عامر بن ربيع رضي الله عنه نه دنبی ﷺ نه روايت كوی چه فرمائيلی ئې وو كله چه جنازه ووينئ نو ورته اودريږئ تردې چه هغه دخلقونه مخكښې شي يادغه جنازه كيخودلې شي.

﴿ اذا رأيتم الجنازة فقوموا لها حتى تخلفكم او توضع ﴾

دلته دوه مسئلې دی او د دواړو متعلق چه كوم احاديث دی هغه مصنف هم په دې باب كښې ذكر كړې دی په هغې كښې يو مسئله خو دا ده كومه چه په دې حديث كښې ذكر كړې شوې ده، دويمه مسئله هغه ده كومه چه د باب په آخری حديث كښې را روانه ده ﴿ كان رسول الله ﷺ يقوم في الجنازة حتى توضع في اللحد فمر به حبر من اليهود فقال هكذا نفعل فجلس النبي ﷺ وقال اجلسوا خالفوهم ﴾ هم په دې وجه امام ترمذی رحمه الله دوه ځانله ځانله ابواب قائم كړی دی. ﴿ باب ما جآء في الجلوس قبل ان توضع ﴾ او دويم باب ﴿ باب ما جآء في القيام للجنازة ﴾

---

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٥٥١١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٢٧/٢، ٥٢٨، ٥٣١) (ضعيف)

د ابوداؤد په اخري حديث کښې چه کومه مسئله ذکر شوې ده دا هم هغه مسئله ده کومه چه امام ترمذیؒ په باب اول کښې بيان کړې ده، او د باب ړومبې حديث کوم چه مونږ په شروع کښې نقل کړو په دې کښې هغه مسئله ده کومه چه امام ترمذیؒ په اول کښې ذکر کړې ده، خو امام ابوداؤد دواړه قسم احاديث د يو ترجمة الباب د لاندې ذکر اوفرمائيل، بيا د دويم باب نه پس امام ترمذی يو دريم باب قائم کړو لکه چه مونږ به وړاندې بيان کړو.

**(ههنا مسئلتان) المسئلة الاولى :**

د باب په دې ړومبی حديث کښې چه کومه مسئله ذکر شوې ده هغه خو دا ده چه کوم سړی نه نزدې جنازه تيره شی هغه لره پکار دی چه هغې ته اودريږی، يعنی دا نه چه په خپل کار کښې هم هغه شان مشغول وی او د جنازې تيريدو څه پرواه نه کوی څکه چه په حديث کښې دی ﴿ ان الموت فزع ﴾ لکه چه د دې باب په دريم حديث کښې دی، چه د هغې مضمون دا دې : د جابرؓ نه روايت دې چه مونږ د رسول اللهﷺ سره وو چه يو جنازه مونږ نه نزدې تيره شوه نو رسول اللهﷺ د هغې په ليدو سره اودريدو چه د هغې په اوچتولو کښې شريک شی نو معلومه شوه چه هغه د يو يهودی جنازه ده، مونږ عرض اوکړو يا رسول اللهﷺ دا خو د يهودی جنازه ده، رسول اللهﷺ اوفرمائيل : ﴿ ان الموت فزع فاذا رأيتم جنازة فقوموا ﴾ چه مرګ د ويرې څيز دې، يعنی د بل جنازه ليدو سره خپل مرګ يادول پکار دی او وې فرمائيل چه کله تاسو يو جنازه وينئ نو اودريږئ.

خو دا حديث د جمهورو په نزد مسنوخ دې، خو امام احمدؒ، اسحاق بن راهويه، ابن حبيب مالکی او بعض شوافع چه په هغوی کښې امام نووی هم دې، د دې حضراتو په نزد د جنازې د تيريدو په وخت قيام مستحب دې، د جمهورو په نزد منسوخ دې، پس د دې باب په څلورم حديث کښې راځی کوم چه د علیؓ نه مرفوعا روايت دې ﴿ قام فی الجنازة ثم قعد بعده ﴾ چه رسول اللهﷺ به په شروع کښې خو اودريدو روستو ئې پريخودلې وو، د جمهورو مسلک هم دا دې هغوی په دې کښې د نسخ قائل دی او فريق مخالف کوم چه د استحباب قائل دی حنابله وغيره [1] هغوی دا دويم حديث يعنی د نفی حديث په جواز باندې محمول کړې دې، يعنی رسول اللهﷺ به کله قيام نه کولو د جواز د بيان دپاره دې، د دې وجې نه امام ترمذیؒ باب قائم کړې دې ﴿ باب ما جآء فی القيام للجنازة ﴾ نه پس دويم باب ﴿ باب الرخصة فی ترک القيام لها ﴾ قائم کړو څنګه چه د جمهور مسلک دې، پس امام ترمذیؒ فرمائی د علیؓ د حديث نه پس : والعمل على هذا عند بعض اهل العلم قال الشافعی : وهذا اصح شی فی هذا الباب، وهذا الحديث ناسخ للحديث الاول (اذا رايتم الجنازة فقوموا) وقال احمد ان شآء قام وان شآء لم يقم، وهكذا قال اسحاق بن ابراهيم آهـ وفی تحفة الاحوذی فعند احمد حديث على هذا ليس بناسخ للحديث الاول، بيا هغوی د حازمی نه د مذاهبو د بيانولو د لاندې ليکلې دی: وقال احمد بن حنبل ان قام لم اعبه، وان قعد فلا باس به

---

[1] بلکه صرف ابن حزم، او د حنابله د مذهب تحقيق وړاندې را روان دې.

وبه قال اسحاق الحنظلي، وقال اكثر اهل العلم ليس على احد القيام للجنازة الى آخر ما ذكر، د امام ترمذي او حازمي ﷺ د كلام نه معلومه شوه چه د امام احمد رحمه الله په نزد په دې مسئله كښې تخيير دې، مونږ پورته د هغه مسلک د استحباب د قيام ليكلي دي، ذكره الشيخ في البذل عن الشوكاني او د حضرت شيخ په حاشيه د بذل كښې دی هذا القيام منسوخ عند الائمة الاربعة وما حكى اهل الشروح عن الامام احمد انه ليس بمنسوخ عنده يأباه كتب فروعه نعم يندب عند ابن حزم وغيره قلت ومنهم النووي كما سبق.

**المسئلة الثانية :**

او دويمه مسئله دا ده چه رسول الله ﷺ به د كومې جنازې سره تلو نو قبرستان ته رسيدو سره به كيناستلو نه ﴿ حتى توضع في اللحد ﴾ ترڅو چه به مړې په قبر كښې كينخودلې شو، يو ځل داسې اوشوه چه په علماء يهود كښې يو سړې تيريدو هغه د رسول الله ﷺ په ليدو باندې اووې ﴿ هكذا نفعل ﴾ چه او تاسو صحيح كوئ مونږ هم داسې كوو. د دې واقعې نه پس رسول الله ﷺ اودريدل پريخودل او وې فرمائيل ﴿ اجلسوا خالفوهم ﴾ يعنې د وضع في اللحد نه مخكښې كينئ.

د دې مسئلې هم جمهور علماء كرام قائل دی چه د وضع في اللحد نه مخكښې په جلوس كښې هيڅ باک نشته كيناستلې شي، خو د وضع عن أعناق الرجال نه مخكښې جلوس مكروه دې عند الجمهور خلاف ثابت دې مالكيانو لره چه د هغوی په نزد جائز دې، په دې دواړو مسائلو باندې ځانله ځانله پوهيدل پكار دی، ډير كرته د دې دواړو په پوهه كښې بلكه په بيانولو كښې هم لګه چه تاسو به اوګورئ ګډوډ شي.

[۳۱۷۳](۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا سُهَيْلُ بْنُ أَبِي صَالِحٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا تَبِعْتُمُ الْجَنَازَةَ، فَلَا تَجْلِسُوا حَتَّى تُوضَعَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ الثَّوْرِيُّ، عَنْ سُهَيْلٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ فِيهِ: حَتَّى تُوضَعَ بِالْأَرْضِ، وَرَوَاهُ أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ سُهَيْلٍ، قَالَ: حَتَّى تُوضَعَ فِي اللَّحْدِ، قَالَ أَبُو دَاوُد، وَسُفْيَانُ: أَحْفَظُ مِنْ أَبِي مُعَاوِيَةَ.

د ابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه رسول الله ق فرمائيلي دی كله چه تاسو په جنازه پسې ځئ نو ترهغې مه كينئ ترڅوچه دا اېښودل شوي نه وي، ابوداود وائي داروايت سفيان ثوري په واسطه دسهيل هغه دخپل پلارنه اوهغه دابوهريره رضي الله عنه نه نقل كړې دي اوالفاظ ئې دادي: تردې چه جنازه په زمكه كيخودلې شي اودابوهريره نه په واسطه دسهيل دالفاظ نقل كړي شوي دي: تردې چه مړې په قبركښې كيخودلې شي، امام ابوداود وائي چه سفيان په نسبت دابومعاويه قوي حافظې والاوو.

**قوله:** ﴿ حدثنا احمد بن يونس الخ وفيه قال ابوداؤد : روى الثوري هذا الحديث عن سهيل عن ابيه عن ابي هريرة قال فيه:حتى توضع بالارض، رواه ابومعاوية عن سهيل : قال حتى توضع في اللحد

۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤١٢٤)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الجنائز ٤٨ (١٣١٠)، صحيح مسلم/الجنائز ٢٤ (٩٥٩)، سنن الترمذي/الجنائز ٥١ (١٠٤٣)، سنن النسائي/الجنائز ٤٤ (١٩١٥)، ٤٥ (١٩١٨)، ٨٠ (٢٠٠٠)، مسند احمد (٣/٢٥، ٤١، ٥١، ٨٥، ٩٧) (صحيح)

وسفيان احفظ من ابى معاوية: د دې وضاحت دا دې چه دې حديث لره د سهيل نه روايت كونكى درې دى، اول زهير د چا روايت چه په شروع كښې دې، دويم ثورى، دريم ابومعاويه، د زهير په روايت كښې خو ﴿حتى توضع﴾ مطلقا دې او د ثورى په روايت كښې ﴿حتى توضع بالارض﴾ دې او د ابومعاويه په روايت كښې ﴿حتى توضع فى اللحد﴾ دې، مصنف فرمائى چه سفيان احفظ دې د ابومعاويه نه لهذا ﴿حتى توضع بالارض﴾ اصح دې او مسئله هم دغه شان ده، اوس د دې باب په ټولو روايتونو باندې مشترک کلام راغلو، د دې احاديثو تخريج داسې دې، حديث عامر بن ربيعه ﷺ اخرجه البخارى ومسلم والترمذى والنسائى وابن ماجة.

[٣١٧٤](١) حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ الْفَضْلِ الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَمْرٍو، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ مِقْسَمٍ، حَدَّثَنِي جَابِرٌ، قَالَ: كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، إِذْ مَرَّتْ بِنَا جَنَازَةٌ، فَقَامَ لَهَا، فَلَمَّا ذَهَبْنَا لِنَحْمِلَ، إِذَا هِيَ جَنَازَةُ يَهُودِيٍّ، فَقُلْنَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّمَا هِيَ جَنَازَةُ يَهُودِيٍّ، فَقَالَ: "إِنَّ الْمَوْتَ فَزَعٌ، فَإِذَا رَأَيْتُمْ جَنَازَةً، فَقُومُوا".

د جابربن عبدالله ﷺ نه روايت دې فرمائى چه مونږ درسول پاك ا سره وو چه يوه جنازه راورل شوه نبى ﷺ ورته پاڅيدو بيا مونږه ددې جنازې دپورته كولو دپاره ورغلو نو معلومه شوه چه ديهودې جنازه ده نومونږ نبى ﷺ ته عرض اوكړو چه اې دالله رسوله دا خو د كوم يهودې جنازه ده، نبى ﷺ اوفرمائيل البته مرګ دويرې څيزدې كله چه تاسو جنازه اووينئ نوورته ودريږئ.

[٣١٧٥](٢) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ وَاقِدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ نَافِعِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، عَنْ مَسْعُودِ بْنِ الْحَكَمِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَامَ فِي الْجَنَائِزِ، ثُمَّ قَعَدَ بَعْدُ".

د على بن ابى طالب كرم الله وجهه نه روايت دې فرمائى چه مخكښې چه به نبى ﷺ كله جنازه اوليدله نوورته به اودريدلو ليكن بيا نبى ﷺ جنازونه اودريدل پريخودل او ناست به پاتې شو.

[٣١٧٦](٣) حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ بَهْرَامَ الْمَدَائِنِيُّ، أَخْبَرَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَسْبَاطِ الْحَارِثِيُّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سُلَيْمَانَ بْنِ جُنَادَةَ بْنِ أَبِي أُمَيَّةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَقُومُ فِي الْجَنَازَةِ حَتَّى تُوضَعَ فِي اللَّحْدِ فَمَرَّ بِهِ حَبْرٌ مِنَ الْيَهُودِ، فَقَالَ: هَكَذَا نَفْعَلُ، فَجَلَسَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ: اجْلِسُوا خَالِفُوهُمْ".

---

[1]): صحيح البخاري/الجنائز ٤٩ (١٣١١)، صحيح مسلم/الجنائز ٢٤ (٩٦٠)، سنن النسائي/الجنائز ٤٦ (١٩٢٣)، (تحفة الأشراف: ٢٣٨٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣١٩، ٣٥٤) (صحيح)

[2]): صحيح مسلم/الجنائز ٢٥ (٩٦٢)، سنن النسائي/الجنائز ٨١ (٢٠٠١)، سنن الترمذي/الجنائز ٥٢ (١٠٤٤)، سنن ابن ماجه/الجنائز ٣٥ (١٥٤٤)، (تحفة الأشراف: ١٠٢٧٦)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الجنائز ١١ (٣٣)، مسند احمد (١/٨٢، ٨٣، ١٣١، ١٣٨) (صحيح)

[3]): سنن الترمذي/الجنائز ٣٥ (١٠٢٠)، سنن ابن ماجه/الجنائز ٣٥ (١٥٤٥)، (تحفة الأشراف: ٥٠٧٦) (حسن)

دعبادة بن الصامت رضی اللہ عنہ نه روايت دي فرمائي چه نبی علیہ السلام به چه کله جنازه اوليدله نوترهغې به ولاړ وو ترڅوچه به مړې قبرته کوز کړې شوې نه وو، يوځل ديهودديانورعالم دنبی علیہ السلام خواته تيريدو اووې وئيل چه مونږ به هم داسې کول نو نبی علیہ السلام کيناستو اوئې فرمائيل کينئ اوديهوديانو مخالفت اوکړئ.

وحديث ابی سعيد خدری رضی اللہ عنہ اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی من حديث ابی سلمة بن عبدالرحمن بن عوف عن ابی سعيد بنحوه، واخرجه مسلم من حديث ابی صالح السمان عن ابی سعيد رضی اللہ عنہ.وحديث جابر رضی اللہ عنہ اخرجه البخاری ومسلم والنسائی وليس فی حديثهم ﴿ فلما ذهبنا لنحمل﴾

وحديث علی رضی اللہ عنہ اخرجه مسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة بنحوه.

وحديث عبادة بن الصامت رضی اللہ عنہ اخرجه الترمذی وابن ماجة قاله المنذری.

## بَابُ الرُّكُوبِ فِي الْجَنَازَةِ

### د جنازې سره يوځائې په سورلۍ باندې د سورتللو دمما نعت بيان

د جنازې سره په سورلۍ تلل بغير د عذر نه خلاف أولی دی او د واپسۍ په وخت په سورلۍ باندې راتلو کښې هيڅ باک نشته،د شوافعو په نزد د کراهت تصريح ده، وفی مغنی المحتاج ۲۵۹/۱ ولا باس بالركوب فی الرجوع منها لانه صلی اللہ علیہ وسلم ركب فرسا معرورا لما رجع من جنازة ابی الدحداح رواه مسلم من حديث جابر بن سمرة واما فی الذهاب فتقدم انه يكره لا لعذر كبعد المكان او ضعف آهـ وهكذا قال النووی.

[۳۱۷۷]([1]) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى الْبَلْخِيُّ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، عَنْ ثَوْبَانَ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أُتِيَ بِدَابَّةٍ، وَهُوَ مَعَ الْجَنَازَةِ، فَأَبَى أَنْ يَرْكَبَهَا، فَلَمَّا انْصَرَفَ أُتِيَ بِدَابَّةٍ فَرَكِبَ، فَقِيلَ لَهُ: فَقَالَ: "إِنَّ الْمَلَائِكَةَ كَانَتْ تَمْشِي، فَلَمْ أَكُنْ لِأَرْكَبَ وَهُمْ يَمْشُونَ، فَلَمَّا ذَهَبُوا رَكِبْتُ".

ثوبان رضی اللہ عنہ نه روايت دي چه نبی علیہ السلام ته دسوريدو دپاره يوځاروې پيش کړې شو اوهغه دجنازې سره روان وو، نبی علیہ السلام دسورلۍ قبلولونه انکار اوفرمائيلولېکن کله چه دجنازې نه دفارغيدلونه واپس شو نويوه سورلۍ ورته راوستلی شوه نبی علیہ السلام وربانډې سور شو خلقو ددې دوجې تپوس اوکړو نوونې فرمائي دجنازې دکولونه مخکښې خودجنازې سره فرشتې روانې وې ما مناسب اونه ګڼړل چه فرشتې پيدل روانې وي اوزه سور يم کله چه فرشتې واپس لاړې نوزه سور شوم.

**قوله:**﴿ عن ثوبان ان رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم اتی بدابة وهو مع الجنازة فابی ان يركب فلما انصرف اتی بدابة فركب الخ ﴾ يعنی رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم د يوې جنازې سره تشريف اوړولو خلقو ورته سورلۍ پيش کړه رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم د سوريدو نه انکار اوکړو، او په واپسۍ کښې چه ورته کله سورلۍ پيش کړې شوه نو بيا پرې سور شو، د يو صحابی رضی اللہ عنہ په سوال باندې رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم اوفرمائيل چه

---

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۱۲۱)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الجنائز ۱۵ (۱۴۸۰) (صحيح)

د یوې جنازې سره ملائک پیدل روان وو په دې وجه ما د هغه رکوب مناسب او نه ګڼړلو، اوس هر کله چه هغوی لاړل نو زه سور شوم

او د باب په دویم حدیث کښې دی چه رسول الله ﷺ په ابن الدحداح رضی الله عنه باندې د جنازې مونځ اوکړو (ویقال ابوالدحداح) بیا آس راوستلې شو او رسول الله ﷺ پرې سور شو، چه رسول الله ﷺ ئې په منډه یوړو، او مونږ به په رسول الله ﷺ پسې پیدل منډې وهلې

[۳۱۷۸](١) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سِمَاكٍ، سَمِعَ جَابِرَ بْنَ سَمُرَةَ، قَالَ: "صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى ابْنِ الدَّحْدَاحِ، وَنَحْنُ شُهُودٌ، ثُمَّ أُتِيَ بِفَرَسٍ، فَعُقِلَ حَتَّى رَكِبَهُ، فَجَعَلَ يَتَوَقَّصُ بِهِ، وَنَحْنُ نَسْعَى حَوْلَهُ".

دجابر بن سمرة رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام په ابن دحداح باندې جنازه اوکړه او په دې وخت کښې مونږ حاضر وو چه نبی علیه السلام ته یواس پیش کړې شو نبی علیه السلام دغه اس وتړلو تردې چه وربانډې سور شو اواس دانګونه وهله شروع کړل او په منډه شو نومونږ هم ور پسې ګیر چاپیر ورپه منډه شو

دا د رسول الله واپس کیدل په واپسئ کښې وو، د ابوداؤد روایت اګر چه د دې نه ساکت دې خو د ترمذی په روایت کښې د رجوع تصریح ده، لهذا په دواړو روایتونو کښې دې تعارض او نه ګڼړلې شی

په حدیث الباب کښې کراهت د رکوب خلف الجنازة ثبوت معلومیږی خو دا حدیث په ظاهر کښې د هغه حدیث خلاف دې کوم چه په را روان باب کښې راځی، د مغیره بن شعبه حدیث، ﴿ الراکب یسیر خلف الجنازة والماشی یمشی خلفها وامامها ﴾ الحدیث... څکه چه د دې نه د رکوب خلف الجنازة د جواز ثبوت ملاویږی، د دې په بذل کښې د علامه شوکانی رحمه الله نه دوه جوابونه نقل کړی دی اول دا چه دا حدیث په عدم کراهت باندې دال نه دې زیات نه زیات په جواز باندې دلالت کوی. پس کیدې شی چه رکوب جائز مع الکراهة وی، او یا دې داسې اوئیلې شی چه تاسو چه په کوم رکوب باندې نکیر فرمائیلې دې هغه د مشی ملائکه سره معلل دې او د ملائکو دا مشی د رسول الله ﷺ سره وه، پس د دې نه دا نه لازمیږی چه د ملائکو معیت او شرکت دې د جنازې سره وی آهـ او یو جواب دا ورکړې شوې دې چه حدیث د مغیره رضی الله عنه د معذور په حق کښې دې، او حدیث الباب د غیر معذور په حق کښې. حدیث ثوبان رضی الله عنه اخرجه البزار،

وحدیث جابر بن سمرة رضی الله عنه اخرجه مسلم والترمذی والنسائی. قاله المنذری

١): صحيح مسلم/الجنائز ٢٨ (٩٦٥)، سنن الترمذي/الجنائز ٢٩ (١٠١٣)، (تحفة الأشراف: ٢١٨٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٩٠/٥، ٩٥، ٩٨) (صحيح)

## بَابُ الْمَشْيِ أَمَامَ الْجَنَازَةِ

### د جنازې نه د مخکښې تلو بيان

### په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمة:

په دې کښې د علماء کرامو پنځه مذاهب دی، د امام شافعی رحمه الله په نزد د جنازې نه مخکښې تلل مطلقا مستحب دی، او د امام مالک او احمد رحمهما الله په نزد په راکب او ماشی کښې فرق دې، د راکب دپاره روستو تلل افضل دی او د ماشی دپاره وړاندې تلل، او د احنافو په نزد مطلقا روستو تلل افضل دی او د سفيان ثوری رحمه الله په نزد التخيير بلا ترجيح، يعنی دواړه برابر دی، او هم دې ته د امام بخاری رحمه الله ميلان دې، او پنځم مذهب دا دې ﴿ان كان مع الجنازة نسآء فالافضل امامها والا فخلفها﴾ (هامش البذل) دا پنځم مذهب د ابراهيم نخعی دې کما فی الاوجز، دا اختلاف صرف په افضليت کښې دې او په جواز کښې هيڅ کلام نشته فيجوز فی الجهات الاربع بالاتفاق کما فی التعليق الممجد، د احنافو دليل يو خو هغه دې کوم چه مخکښې په ﴿باب اتباع الميت بالنار﴾ کښې تير شو چه په هغې کښې دی ﴿ولا يمشی بين يديها﴾ او يو هغه دې کوم چه د را روان باب په آخره کښې راځی، ﴿الجنازة متبوعة ولا تتبع، ليس معها من تقدمها﴾ خو دا حديث ضعيف دې د ابوماجده راوی د وجې نه، قال ابوداؤد : ﴿ابوماجده هذا لا يعرف﴾ او د شوافعو دليل د باب رومبی حديث دې،

[۳۱۷۹]([1]) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبَا بَكْرٍ، وَعُمَرَ، يَمْشُونَ أَمَامَ الْجَنَازَةِ".

دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه مانبی عليه السلام او ابوبکرصديق اوعمر رضی الله عنهما ليدلي وو چه دجنازې نه مخکښې تلل

﴿عن سالم عن ابيه قال رايت النبی صلی الله عليه وسلم وابابكر وعمر رضی الله عنهما يمشون امام الجنازة، د مصنف عبدالرزاق د يو اوږد حديث د لاندې داسې دی چه ابوسعيد خدری رضی الله عنه د علی رضی الله عنه په خدمت کښې حاضر شو او د اسلام نه پس ئې د هغوی نه دا تپوس اوکړو چه ماته دا بيان کړئ چه په جنازې پسې تلل افضل دی يا روستو نو په دې باندې هغوی تندې تريو کړو، او وې فرمائيل سبحان الله! ستا په شان سړې داسې تپوس کوی او بيا ئې اوفرمائيل قسم دې په هغه ذات چا چه محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم حق نبی راليږلې دې چه په جنازه پسې د روستو تلونکی فضيلت په وړاندې تلونکی باندې داسې دې لکه د فرض مونځ فضيلت چه په نفل دې په دې باندې ابوسعيد خدری رضی الله عنه عرض اوکړو چه ما خو ابوبکر او عمر رضی الله عنهما د فلانی انصاری صحابی په جنازه کښې د جنازې وړاندې تلونکی ليدلې دی. په دې باندې علی رضی الله عنه مسکی شو او وې فرمائيل چه آيا واقعی تا داسې ليدلې دی هغوی؟ هغوی عرض اوکړو او! بيا علی رضی الله عنه اوفرمائيل چه په دې کښې لږ شک هم نشته چه هغوی ته د روستو تلو

[1] ): سنن الترمذي/الجنائز ۲۶ (۱۰۰۷)، سنن النسائي/الجنائز ۵۶ (۱۹۴۶)، سنن ابن ماجه/الجنائز ۱۶ (۱۴۸۲)، (تحفة الأشراف: ۶۸۲۰)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الجنائز ۳ (۸)، مسند احمد (۲/۸، ۱۲۲) (صحيح)

فضیلت هم دغه شان معلوم وو خنگه چه ما بیان کړو، خو خبره دا ده چه که هغوی په جنازه پسې روستو تلل نو جنازه اوړونکی به تنگ شی د هغوی په ادب او احترام کښې په دې وجه به هغوی وړاندې تلل د خلقو د سهولت په رعایت کښې آهـ مختصرا (مصنف عبدالرزاق ۴۴۷/۳) په بذل المجهود کښې دا روایت مختصرا د بدائع نه هم لیکلې شوې دې.

وحدیث ابن عمر رضی الله عنهما اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری

[۳۱۸۰] (۱) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ يُونُسَ، عَنْ زِيَادِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، وَأَحْسَبُ أَنَّ أَهْلَ زِيَادٍ أَخْبَرُونِي، أَنَّهُ رَفَعَهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الرَّاكِبُ يَسِيرُ خَلْفَ الْجَنَازَةِ، وَالْمَاشِي يَمْشِي خَلْفَهَا، وَأَمَامَهَا، وَعَنْ يَمِينِهَا، وَعَنْ يَسَارِهَا، قَرِيبًا مِنْهَا، وَالسِّقْطُ يُصَلَّى عَلَيْهِ، وَيُدْعَى لِوَالِدَيْهِ بِالْمَغْفِرَةِ وَالرَّحْمَةِ".

زیاد بن جبیر دخپل پلار نه او هغه دمغیره بن شعبه رضی الله عنه نه روایت کوی یونس وائی زما خیال دې چه زیاد داسې اووئیل چه مغیره وئیلی دی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی په سورلئ سور کس دې په جنازه پسې وروسته ځي او پیاده تلونکی دې هم په جنازه پسې وروسته ځي او دجنازې نه دې مخکښې هیڅوك نه ځي ددې ښئ طرف اوگس طرف ته او ددې سره یوځائې روان اوسئ اوچې دکوې زنانه ته ماشوم اوغورزېږي نو په هغه باندې هم جنازه کوئ اودمور اوپلار دپاره ئې دمغفرت اورحمت دعا غواړئ.

**په صلوة علی الطفل کښې د ائمة مذاهب :**

قوله: ﴿ الراکب یسیر خلف الجنازة والماشي یمشي خلفها واما مها و عن یمینها ...الخ﴾

د مغیره بن شعبه رضی الله عنه دا روایت په ترمذی شریف کښې د لفظی تغیر سره دې: الراکب علی الجنازة والماشي حیث شاء منها، والطفل یصلی علیه قال ابوعیسی هذا حدیث حسن صحیح، امام ترمذی رحمه الله دې حدیث لره ﴿ ما جآء فی الصلوة علی الاطفال ﴾ کښې ذکر کړې دې، او د امام احمد او اسحاق بن راهویه مذهب ئې دا بیان کړې دې چه د هغوی په نزد به په طفل باندې مونځ کولې شی اگر چه د پیدائش په وخت استهلال یعنی د ژوند آثار نه وی موندلې شوې، بعد ان یعلم انه خلق یعنی په دې شرط چه روح پکښې پوکولې شوې وی چه د هغې موده علماء کرامو څلور میاشتې او لس ورځې لیکلې ده د دې نه پس امام ترمذی رحمه الله دویم باب قائم کړې دې ﴿ باب في ترک الصلوة علی الطفل حتی یستهل﴾ او بیا ئې د هغې د لاندې د جابر رضی الله عنه دا حدیث مرفوع ذکر فرمائیلې دې : ﴿الطفل لا یصلی علیه ولا یرث ولا یورث حتی یستهل ﴾ خو امام ترمذی رحمه الله د دې حدیث په سند کښې اضطراب بیانولو سره د دې وقف لره په رفع باندې ترجیح ورکړې ده، خو د جمهور علماء کرامو او باقی ائمه ثلاثه مذهب هم دا دې، قال السندی : اخذ الجمهور بحدیث جابر ترجیحا للحرمة علی الحل عند التعارض..... دې مسئلې ته اشاره زمونږ په نزد په کتاب الفرائض کښې، اذا استهل المولود ورث... د حدیث د لاندې راغلې ده.

والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجة......... وحدیث ابن ماجة مختصر، قاله المنذری

(۱): سنن الترمذي/الجنائز ۴۲ (۱۰۳۱)، سنن النسائي/الجنائز ۵۵ (۱۹۴۴)، سنن ابن ماجه/الجنائز ۱۵ (۱۴۸۱)، ۲۶ (۱۵۰۷)، (تحفة الأشراف: ۱۱۴۹۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۴۷/۴، ۲۴۸، ۲۴۹، ۲۵۲) (صحیح)

## بَابُ الإِسْرَاعِ بِالْجَنَازَةِ

**باب: جنازه د زر (جلتئ سره ) د اوړلو بیان**

او د دې نه مخکښې ﴿ باب تعجيل بالجنازة ﴾ تیر شوې دې او په دې دواړو کښې فرق هم، قال الحافظ المراد بالاسراع ما فوق المشي المعتاد ويكره الاسراع الشديد آهـ عون المعبود..... ابن قدامه رحمه الله فرمائی چه دا امر بالاتفاق د استحباب دپاره دې، او د ابن حزم رحمه الله په نزد د وجوب دپاره، قال صاحب الهداية ويمشون بها مسرعين دون الخبب آهـ او وئیلې شوی دی چه په دې حدیث کښې د اسراع نه مراد اسراع فی التجهیز دې قال القرطبی والاول اظهر، وقال النووی الثانی باطل مردود بقوله فی الحدیث : تضعونه عن رقابكم (بذل) او د مصنف رحمه الله په نزد خو ګویا دا متعین ده چه په دې احادیثو کښې د اسراع نه مراد اسراع في المشی ده لکه چه د احادیث الباب نه معلومیږی، او دویم دا چه د اسراع بالتجهیز باب د دې نه مخکښې ﴿باب تعجيل الجنازة ﴾ کښې تیر شوې دې.

[٣١٨١](1) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَسْرِعُوا بِالْجَنَازَةِ، فَإِنْ تَكُ صَالِحَةً فَخَيْرٌ تُقَدِّمُونَهَا إِلَيْهِ، وَإِنْ تَكُ سِوَى ذَلِكَ، فَشَرٌّ تَضَعُونَهُ عَنْ رِقَابِكُمْ".

ابوهریره رضی الله عنه دنبی علیه السلام نه روایت کوی چه فرمائیلی ئې وو تاسو جنازه زر زر وړئ که چرې مړې نیک انسان وي نوتاسودده په ښنولوسره دې د کامیابی طرف ته زر ور ورسوئ که چرې مړې نیک انسان نه وی نودا یوشر دې کوم چه تاسو د خپلو اوږونه کوزوئ (یعنی چه څومره زر کوزي شي نو غوره ده).

وړاندې په دې حدیث کښې اسراع د حکمت طرف ته اشاره ده چه که هغه مړې نیک او صالح سړې دې نو ښکاره ده چه د هغه دپاره هلته په عالم آخرت کښې خیر او خوبی ده نو د هغې تقاضا هم دا ده چه هغه د خیر طرف ته زر اورسولې شی او که هغه سړې داسې نه وی نو بیا هغه شر دې چه د خپلو اوږو نه د هغې زر کوزول غوره دی.

[٣١٨٢](2) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عُيَيْنَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ كَانَ فِي جَنَازَةِ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ، وَكُنَّا نَمْشِي مَشْيًا خَفِيفًا، فَلَحِقَنَا أَبُو بَكْرَةَ، فَرَفَعَ سَوْطَهُ، فَقَالَ: "لَقَدْ رَأَيْتُنَا وَنَحْنُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَرْمُلُ رَمَلًا".

عبدالرحمن دخپل پلارنه روایت کوی فرمائی چه زه دعثمان بن ابی العاص نه په جنازه کښې وم او مونږ په مزه مزه روان وو په دې وخت کښې ابوبکر صدیق ته راغې اوزمونږ دوهلو دپاره ئې خپل چابك سراواخستو اووئې وئیل ایا تاسونه دی لیدلي چه کله به مونږ دنبی علیه السلام سره جنازه وړله اوروان به وو نوزر زر به تللو.

[1]: صحيح البخاري/الجنائز ٥١ (١٣١٥)، صحيح مسلم/الجنائز ١٦ (٩٤٤)، سنن الترمذي/الجنائز ٣٠ (١٠١٥)، سنن النسائي/الجنائز ٤٤ (١٩٠٩)، سنن ابن ماجه/الجنائز ١٥ (١٤٧٧)، (تحفة الأشراف: ١٣١٢٤)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الجنائز ١٦ (٥٦)، مسند احمد (٢/٢٤٠) (صحيح)

[2]: سنن النسائي/الجنائز ٤٤ (١٩١٤)، (تحفة الأشراف: ١١٦٩٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٣٦، ٣٧، ٣٨) (صحيح)

﴿ وكنا نمشي مشيا خفيفا فلحقنا ابوبكرة رضي الله عنه فرفع سوطه ﴾
يعني مونږ په جنازه کښې رو روان وو نو د شاته نه ابوبکره رضي الله عنه خپله کوره اوچتونکې په مونږ پسې شو، د خبرداری دپاره، او وې فرمائيل چه کله به مونږ د رسول الله ﷺ سره په جنازه کښې روان ؤو نو ښه تيز به تلو.

وحديث ابي بكرة اخرجه النسائي، قاله المنذري

[٣١٨٣] حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ. ح وحَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا عِيسَى يَعْنِي ابْنَ يُونُسَ، عَنْ عُيَيْنَةَ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَا فِي جَنَازَةِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَمُرَةَ وَقَالَ: فَحَمَلَ عَلَيْهِمْ بَغْلَتَهُ، وَأَهْوَى بِالسَّوْطِ.

دعيينه نه په بل سند سره هم داسې روايت نقل شوې دې ليکن په دې روايت کښې داسې دي چه داجنازه دعبدالرحمن بن سمره نه وه او ابوبکر صديق په خپل، قچر اوزغلولو او په خپل چابك ئې اشاره وکړه چه زر زر ځئ.

[٣١٨٤](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ يَحْيَى الْمُجْبِرِ، قَالَ أَبُو دَاوُد وَهُوَ يَحْيَى بْنُ عَبْدِ اللَّهِ التَّيْمِيُّ، عَنْ أَبِي مَاجِدَةَ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: سَأَلْنَا نَبِيَّنَا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمَشْيِ مَعَ الْجَنَازَةِ، فَقَالَ "مَا دُونَ الْخَبَبِ إِنْ يَكُنْ خَيْرًا تَعَجَّلَ إِلَيْهِ، وَإِنْ يَكُنْ غَيْرَ ذَلِكَ فَبُعْدًا لِأَهْلِ النَّارِ، وَالْجَنَازَةُ مَتْبُوعَةٌ، وَلَا تُتْبَعُ لَيْسَ مَعَهَا مَنْ تَقَدَّمَهَا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهُوَ ضَعِيفٌ، هُوَ يَحْيَى بْنُ عَبْدِ اللَّهِ وَهُوَ يَحْيَى الْجَابِرُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا كُوفِيٌّ، وَأَبُو مَاجِدَةَ بَصْرِيٌّ، قَالَ أَبُو دَاوُد: أَبُو مَاجِدَةَ هَذَا لَا يُعْرَفُ.

دعبدالله بن مسعود نه روايت دې فرمائي چه مونږ دنبي عليه السلام نه تپوس اوکړو چه دجنازې سره څنګه تلل پکاردي؟ نبي عليه السلام اوفرمائيل دخبب نه کم (خبب يوقسم منډه ده)که چرې جنازه دنيك انسان وي نو ده لره دده منزل (قبر)ته زر رسول پکاردي اوکه چرې نيك نه وي نوددوزخيانو نرې ويستل بهتردي اوجنازه دتهولوخلقونه مخکښې ورل پکاردي نه چه وروسته اوخوك چه د جنازې نه مخکښې ځي نوداسې ده ګوياکښې چه دې ددې جنازې سره نه دې روان.

﴿ والجنازة متبوعة ليس معها من تقدمها ﴾ په دې حديث باندې کلام مخکښې تير شوې دې،

اخرجه الترمذي وابن ماجة، وحديث ابن ماجة مختصر، قاله المنذري

# بَابُ الْإِمَامِ لَا يُصَلِّي عَلَى مَنْ قَتَلَ نَفْسَهُ

## په خودکشۍ کونکی باندې دې امام جنازه نه کوی

### د ترجمة الباب والا مسئله کښې مذاهب ائمة:

يعني کوم انسان چه خودکشۍ سره مړ وی د هغه به د جنازې مونځ کولې شی او که نه؟ د جمهور علماء کرامو او ائمه اربعه په نزد به کولې شی، د امام مالك رحمه الله يو روايت د کراهت دې او د امام احمد رحمه الله يو روايت د اهل علم وفضل دپاره د کراهت دې يعني صرف

(١): سنن الترمذي/الجنائز ٢٧ (١٠١١)، سنن ابن ماجه/الجنائز ١٦ (١٤٨٤)، (تحفة الأشراف: ٩٦٣٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٣٧٨، ٣٩٤، ٤١٥، ٤١٩، ٤٣٢) (ضعيف)

عوامو لره کول پکار دي او بعض علماء کرامو لکه امام اوزاعي او عمر بن عبدالعزيز د مطلق مونځ قائل نه دي. حضرت په بذل کښې هم دا ليکلي دي چه مشرانو امامانو او علماء کرامو لره کول نه دي پکار، او رسول الله ﷺ هم پخپله په داسې انسان باندې اگر چه جنازه نه ده کړې خو نور ئې د کولو نه نه دي منع کړي، پس دلته په روايت کښې دی ﴿ قال اذا لا اصلي عليه ﴾ او د نسائي په روايت کښې دي ﴿ اما انا فلا اصلي عليه ﴾

[٣١٨٥]() حَدَّثَنَا ابْنُ نُفَيْلٍ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا سِمَاكٌ، حَدَّثَنِي جَابِرُ بْنُ سَمُرَةَ، قَالَ: مَرِضَ رَجُلٌ، فَصِيحَ عَلَيْهِ، فَجَاءَ جَارُهُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لَهُ: إِنَّهُ قَدْ مَاتَ، قَالَ: "وَمَا يُدْرِيكَ؟ قَالَ: أَنَا رَأَيْتُهُ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّهُ لَمْ يَمُتْ، قَالَ: فَرَجَعَ، فَصِيحَ عَلَيْهِ، فَجَاءَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: إِنَّهُ قَدْ مَاتَ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّهُ لَمْ يَمُتْ، فَرَجَعَ، فَصِيحَ عَلَيْهِ، فَقَالَتِ امْرَأَتُهُ: انْطَلِقْ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَخْبِرْهُ، فَقَالَ الرَّجُلُ: اللَّهُمَّ الْعَنْهُ، قَالَ: ثُمَّ انْطَلَقَ الرَّجُلُ، فَرَآهُ قَدْ نَحَرَ نَفْسَهُ بِمِشْقَصٍ مَعَهُ، فَانْطَلَقَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَخْبَرَهُ أَنَّهُ قَدْ مَاتَ، فَقَالَ: مَا يُدْرِيكَ؟ قَالَ: رَأَيْتُهُ يَنْحَرُ نَفْسَهُ بِمَشَاقِصَ مَعَهُ، قَالَ: أَنْتَ رَأَيْتَهُ؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: إِذًا لَا أُصَلِّيَ عَلَيْهِ".

دجابر بن سمره ﷺ نه روايت دې فرمائي چه يوکس مريض شو او بيا دده دمرگ خبر خور شو نودده يوگاونډي دنبي ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اوعرض ئې اوکړو اې دالله رسوله فلاني مړ شو نبي ﷺ ورته اوفرمائيل تاته څنگه معلومه شوه چه هغه مړ دې، ده اووئيل ماخپله اوليدو او راغلم نبي ﷺ اوفرمائيل مړ نه دې بياهغه سي واپس لاړو دهغه دمرگ خبر بيامشهور شو نودغه کس بيا نبي ﷺ ته راغې او عرض ئې اوکړو اې دالله رسوله فلاني مړ شو نبي ﷺ اوفرمائيل هغه مړ نه دې بيا واپس لاړو ددې نه پس چه کله بيا خبر مشهور شو دده دمرگ نودمړي ښځې همدې گاونډي ته اووئيل څوك چه دوباره راغلې وو، لاړ شه اونبي ﷺ خبرکړه نودې گاونډي اووئيل اې الله په ده باندې لعنت اوکړې، راوي وائي چه دغه کس د مريض خواته راغې اووئې ليدل چه خپله مرئ ئې پرې کړې ده په يوغشي باندې نودې نبي ﷺ ته ورغې اوعرض ئې اوکړو اې دالله رسوله هغه مړشوې دې نبي ﷺ أوفرمائيل تاته څنگه معلومه شوې ده ده ورته أووئيل ما پخپله اوليدو اوراغلم چه خپله مرئ ئې په غشي پريکړې وه نبي ﷺ اوفرمائيل اياتا وليدو هغه سړي اووئيل هو، نبي ﷺ اوفرمائيل بياخوزه په ده باندې جنازه نه کوم.

**مضمون د حديث :**

قوله: ﴿ حدثني جابر بن سمرة ﷺ قال مرض رجل فصيح عليه .....الخ﴾

دا دې چه جابر بن سمره ﷺ فرمائي چه يو سړې مريض وو په هغه باندې ژړا او چغې وهل شروع شو ، د هغه چه کوم يو گاونډې وو هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او هغوی ته ئې د هغه د مرگ خبر ورکړو ، رسول الله ﷺ ترې نه تپوس اوکړو چه تا ته څه خبر دې چه هغه مړ شو؟ هغه اووې چه زه خو هم داسې گنړم، رسول الله ﷺ اوفرمائيل هغه لا مړ

---

[1] ): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢١٦٠)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الجنائز ٣٦ (٩٧٨)، سنن الترمذي/الجنائز ٦٨ (١٠٦٦)، سنن النسائي/الجنائز ٦٨ (١٩٦٣)، سنن ابن ماجه/الجنائز ٣١ (١٥٢٦)، مسند احمد (٨٧/٥، ٩٢، ٩٤، ٩٦، ٩٧) (صحيح)

نه دې، دا سړې را واپس شو د دې نه پس ئې بيا د ژړا او چغو آوازونه واوريدل. نو د دې مريض ښځې هغه ګاونډي ته اووې چه لاړه شه او رسول الله ﷺ ته خبر ورکړه نو دې ګاونډي روميې خو مړ کيدونکې ته خيرې اوکړې ﴿اللهم العنه﴾ بيا هغه ګاونډي د دې مړ کيدونکي کور ته لاړو او هغه ئې اوليدو چه هغه په څه تيره څيز سره خودکشي کړې ده، (دا ترجمه د مشقص ده چه هغې ته پيکان هم وائي، د غشي سوکه) د دې نه پس هغه ګاونډي د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او هغوي ته ئې د هغه د هلاکيدو خبر ورکړو، او د رسول الله ﷺ په تپوس ئې عرض اوکړو چه ما خپله اوليده د هغه خودکشي، رسول الله ﷺ تاکيدا بيا تپوس اوکړو چه تا داسې اوليدل هغه اووې اوجي! نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل په داسې صورت کښې زه به هغه باندې د جنازې مونځ نه کوم.

والحديث اخرجه مسلم والترمذي والنسائي وابن ماجة مختصرا بمعناه

## بَابُ الصَّلَاةِ عَلَى مَنْ قَتَلَتْهُ الْحُدُودُ

### د جنازې مونځ په هغه کس باندې چه په شرعي حد کښې مړ کړې شي

يعنې کوم انسان چه په حد شرعي کښې مړ شي په هغه به د جنازې مونځ کيږي او که نه؟ د جمهور په نزد به پرې کيږي او د امام زهري رحمه الله په نزد به په مرجوم باندې د جنازې مونځ نه کيږي او د قصاص په صورت کښې به پرې کيږي. او د امام مالک او احمد رحمهما الله نه روايت دې چه امام دې خپله مونځ نه کوي په هغه باندې، خو د احنافو مذهب د قطاع الطريق او بغاة په باره کښې دا دې چه د هغوي د جنازې مونځ دې اونکړې شي.

[۳۱۸۶]() حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ، حَدَّثَنِي نَفَرٌ مِنْ أَهْلِ الْبَصْرَةِ، عَنْ أَبِي بَرْزَةَ الْأَسْلَمِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "لَمْ يُصَلِّ عَلَى مَاعِزِ بْنِ مَالِكٍ، وَلَمْ يَنْهَ عَنِ الصَّلَاةِ عَلَيْهِ".

د ابوبرزه اسلمي نه روايت دې فرمائي چه رسول پاک ﷺ خو ماعز بن مالک باندې جنازه اونکړه په چاباندې چه دزنا حد جاري کړې شوې وو اونه ئې خلق په ده باندې دجنازې کولونه منع کړې وو.

قوله: ﴿عن ابي برزة الاسلمي رضي الله عنه ان رسول الله ﷺ لم يصل على ما عز...الخ﴾

ماعز بن مالک الاسلمي رضي الله عنه چه د هغه د رجم قصه مشهوره ده د هغوي د جنازې د مونځ په باره کښې روايات مختلف دي، په بعضو کښې اثبات دې په بعضو کښې نفي، نفي خو په حديث الباب کښې ده او د بخاري په يو روايت کښې دی د جابر رضي الله عنه نه روايت دې:

﴿فقال له النبي ﷺ خيرا وصلى عليه﴾ قال البخاري: لم يقل يونس وابن جريج عن الزهري ﴿فصلى عليه﴾ او د مسلم په روايت کښې دی ﴿فما استغفر له ولا سبه﴾ او هم د دې مسلم په يو روايت کښې دی ﴿استغفروا لماعز بن مالک فقالوا غفر الله لماعز بن مالک﴾ حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباري کښې جمع بين الروايتين داسې کړې ده چه رسول الله ﷺ په رومبئ ورځ په هغه باندې د جنازې مونځ اونکړو او په دويمه ورځ ئې پرې اوکړو، لکه چه په سنن د ابوقرة

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۶۱۰) (حسن صحيح)

کښې دی، په هغې کښې دی : فقيل يا رسول الله ﷺ اتصلى عليه؟ قال لا قال فلما كان من الغد قال صلوا على صاحبكم فصلى عليه رسول الله ﷺ والناس آهـ وقيل المراد بالصلوة الدعاء.

فائده: په ماعز بن مالک رضی الله عنه باندې د جنازې د مونځ کولو روايات مختلف دی خو ﴿ امراة غامدية جهينية ﴾ چه په هغې باندې به مستقل باب په كتاب الحدود كښې راشي، په هغې باندې د مونځ کولو ټول روايات متفق دی چه رسول الله ﷺ په هغې باندې جنازه اوکړه د دې فرق وجه څه ده؟ په دې باندې امام طحاوی رحمه الله په مشكل الآثار كښې داسې ليکلي دی چه امراة جهينة په خپل ځان باندې د حد جاری کولو دپاره راغلې وه، د هغې په روايت کښې تصريح ده چه زه په خپل ځان باندې حد جاری کوم د دې ګناه د وجې نه، په خلاف د ماعز رضی الله عنه چه د هغوی په باره کښې دا راځی چه کله د هغوی نه دا ګناه صادره شوه او هغوی د دې ذکر بعض خلقو ته اوکړو نو هغوی دا مشوره ورکړه چه ته د دې خبرې ذکر رسول الله ﷺ ته اوکړه پس هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې په دې نيت باندې تلې وو چه کيدې شی رسول الله ﷺ به د توبې او استغفار طريقه بيان کړی، خو چه کله دهغه د باقاعده اقرار د وجې نه د زنا ثبوت شرعی راغلو، او رسول الله ﷺ د رجم کولو فيصله اوفرمائيله او په هغې باندې عمل شروع شو نو هغه اووې ﴿ غرني قومي ﴾ چه ماته مشوره راکونکو غلطه مشوره راکړه وغيره وغيره، امام طحاوی رحمه الله فرمائی چه په دې صورت کښې د هغوی د توبې تحقق او نه شو، هم دا سبب شو د دواړو په باره کښې د اختلاف دروايت.

## بَابٌ فِي الصَّلَاةِ عَلَى الطِّفْلِ

### په نابالغه ماشوم باندې د جنازې کولو بيان

د نومولود د جنازې مونځ به په کوم صورت کښې کولې شی او په کوم صورت کښې نه دا مسئله بالتفصيل سره د اختلاف د امامانو د دې نه مخکښې ﴿ باب المشى امام الجنازة ﴾ کښې د ﴿ السقط يصلى عليه ﴾ د لاندې تيره شوه.

### رسول الله ﷺ د خپل ځوی ابراهيم رضی الله عنه د جنازې مونځ اوکړو که نه؟

په دې باره کښې خو مصنف رحمه الله صرف هم د يو مضمون حديث ذکر کړې دې يعنی په ابراهيم رضی الله عنه باندې د مونځ کولو او نه کولو.

[۳۱۸۷](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ سَعْدٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "مَاتَ إِبْرَاهِيمُ ابْنُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ ابْنُ ثَمَانِيَةَ عَشَرَ شَهْرًا، فَلَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

دام المومنين عائشة رضی الله عنها نه روايت دې فرمائی چه دنبی علیه السلام ځوی ابراهيم وفات شو او اتلس مياشتې عمرئې وو اونبی علیه السلام ورباندې دجنازې مونځ ونکړو.

﴿عن عائشة رضی الله عنها قالت مات ابراهيم ابن النبي ﷺ وهو ابن ثمانية عشر شهرا فلم يصل عليه رسول الله ﷺ ﴾

(۱): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۷۹۰۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۲۶۷) (حسن الإسناد)

د دې نه پس مصنف رحمه الله دوه روایتونه ذکر کړي دی ﴿ سمعت البهی قال : لما مات ابراهیم ابن النبی ﷺ صلی علیه رسول الله ﷺ فی المقاعد ﴾ او دویم روایت د ﴿ عن عطاء ان النبی ﷺ صلی علی ابنه ابراهیم وهو ابن سبعین لیلة ﴾ په دې روایاتو کښې د باب حدیث اول یعنی حدیث عائشة رضی الله عنها کوم چه موصولا دې په دې کښې د مانځه نفی ده چه رسول الله ﷺ په خپل ځوی باندې د جنازې مونځ اونکړو او په روستنو دوه روایتونو یعنی مرسل د بهی او مرسل د عطاء په دې دواړو کښې د صلوة اثبات دې چه رسول الله ﷺ په هغه باندې د جنازې مونځ اوکړو، علامه زیلعی رحمه الله په نصب الرایه کښې د اثبات صلوة په باره کښې متعدد احادیث مسنده او مرسله بیان کړې دې، هغه فرمائی ﴿ فیه احادیث مسندة واحادیث مرسلة، فالمسندة عن ابن عباس، والبرآء بن عازب وانس والخدری ﴾ د دې نه پس په دې یو په خپل سند کښې ذکر کړې دې، پس د ابن عباس رضی الله عنهما روایت ئې د ابن ماجة نه، او حدیث البراء لره مسند احمد او بیهقی نه، او حدیث د انس رضی الله عنه د مسند ابویعلی نه، او حدیث د ابوسعید خدری رضی الله عنه د مسند بزار نه، او د روایات مرسله د لاندې په شروع کښې دا د ابوداؤد دوه مرسل روایتونه ذکر کړی دی او بیا ئې وړاندې لیکلي دی، ورواهما البیهقی وقال هذه الاثار مرسلة وهی تشد الموصول، وروایات الاثبات اولی من روایات الترک، د دې نه علاوه نور هم روایات مرسله هغوی ذکر کړی دی، د دې نه پس په احادیث الترک کښې د ابوداؤد حدیث د عائشه رضی الله عنها ذکر کړې دې او بیا فرمائی چه وذکر الخطابی مرسل عطاء وقال هذا اولی الامرین وان کان حدیث عائشة رضی الله عنها احسن ایصالا آه امام بیهقی، خطابی او امام زیلعی رحمهم الله د دې حضراتو میلان د ترجیح اثبات طرف ته دې، د دې نه پس علامه زیلعی فرمائی چه کوم خلق ترک صلوة لره تسلیموی هغوی د دې بعض علل ضعیفه بیان کړی دی یو دا چه رسول الله ﷺ په دې ورځ باندې په صلوة الکسوف کښې مشغول وو، او یو دا چه هغه د بنوة نبی (د نبی د ځوی کیدو د وجې نه) د فضیلت د وجې نه د مانځه نه مسغنی وو څنګه چه شهدآء د شهادة د وجې نه مستغنی وی، او بله دا چه نبی په نبی باندې مونځ نه کوی ځکه چه د دوی په باره کښې راغلي دی چه ﴿ لو عاش لکان نبیا ﴾ او یا دا مراد دې چه ﴿ انه لم یصل علیه بنفسه وصلی علیه غیره ﴾ والله تعالی اعلم بالصواب (زیلعی ۲/ ۲۸۰)

[۳۱۸۸](۱) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، عَنْ وَائِلِ بْنِ دَاوُدَ، قَالَ: سَمِعْتُ الْبَهِيَّ، قَالَ: "لَمَّا مَاتَ إِبْرَاهِيمُ ابْنُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، صَلَّى عَلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَقَاعِدِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: قَرَأْتُ عَلَى سَعِيدِ بْنِ يَعْقُوبَ الطَّالَقَانِيِّ، قِيلَ لَهُ: حَدَّثَكُمُ ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ يَعْقُوبَ بْنِ الْقَعْقَاعِ، عَنْ عَطَاءٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "صَلَّى عَلَى ابْنِهِ إِبْرَاهِيمَ وَهُوَ ابْنُ سَبْعِينَ لَيْلَةً".

د بهی رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی هرکله چه د نبی علیه السلام ځوی ابراهیم وفات شو نو نبی علیه السلام ورباندې د جنازې مونځ په خپل قیامګاه کښې وکړو. ابوداؤد وائی: چه ما سعید بن یعقوب طالقانی ته اولوستل چه ستاسو نه حدیث بیان کړو ابن مبارک، هغوی د یعقوب بن قعقاع

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۹۴۷، ۱۹۸۴) (ضعیف منکر)

نه او هغوی د عطاء نه روایت کړې دې، هغه وائی چه نبی اکرم ﷺ د خپل ځوی ابراهیم د جنازې مونځ اوکړو په دغه وخت هغه د اویا ورځو وو.

**د ابراهیم رضی الله عنه د عمر په موده کښې د روایاتو اختلاف:**

دویمه خبره د حدیث الباب نه د ابراهیم رضی الله عنه د عمر د مودې په باره کښې ده په ړومبی حدیث اتلس میاشتې ده او په دویم حدیث کښې اویا شپې، یعنی دوه نیمې میاشتې، په دې کښې ړومبې روایت صحیح دې او یو قول په دې کښې د شپاړسو میاشتو هم دې او هغه په دې وجه چه د هغوی پیدائش په ذی الحجة ۸ هجری کښې دې او وفات ئې په ۱۰ ربیع الاول ۱۰ هجری کښې دې په دې صورت کښې د ولادت او د وفات میاشت مستقل حسابولو سره پوره شپاړس میاشتې جوړیږی، وقد مر فی کتاب الصلوة فی باب صلوة الکسوف.

## بَابُ الصَّلَاةِ عَلَى الْجَنَازَةِ فِي الْمَسْجِدِ

### باب: په مسجد کښې د جنازې کولو بیان

دا د شوافعو او حنابله په نزد جائز دې بغیر د کراهت نه، او د احنافو او مالکیانو په نزد په مسجد کښې مکروه دې تحریما، او وئیلې شوې دی چه تنزیها.

[۳۱۸۹](۱) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ صَالِحِ بْنِ عَجْلَانَ، وَمُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّادٍ، عَنْ عَبَّادِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: وَاللَّهِ مَا صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى سُهَيْلِ ابْنِ الْبَيْضَاءِ، إِلَّا فِي الْمَسْجِدِ.

دام المومنین عائشة رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه په الله قسم نبی علیه السلام په سهیل بن بیضاء باندې په جومات کښې جنازه کړې وه.

قوله: ﴿ عن عائشة رضی الله عنها قالت والله ما صلی رسول الله ﷺ علی سهیل بن البیضاء الا فی المسجد ﴾ او د دې نه روستو روایت کښې دی ﴿ علی ابنی البیضاء فی المسجد ﴾

عائشه رضی الله عنها فرمائی چه والله رسول الله ﷺ په سهیل بن بیضاء او د هغه په رور باندې په مسجد کښې د جنازې مونځ کړې وو.

دا روایت دلته مختصر دې او په صحیح مسلم کښې مفصل دې هغه دا چه عائشې رضی الله عنها د سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه د جنازې د مانځه په باره کښې اوفرمائیل چه هغه مسجد ته راوړئ چه هغه هم په هغوی باندې جنازه اوکړې شی، د خلقو په دې باندې اشکال پیدا شو، په دې باندې هغوی اوفرمائیل، ﴿ ما اسرع بالنبی الناس، ما صلی رسول الله ﷺ علی سهیل ابن البیضاء الا فی المسجد ﴾

[۳۱۹۰](۲) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، عَنِ الضَّحَّاكِ يَعْنِي ابْنَ عُثْمَانَ، عَنْ أَبِي النَّضْرِ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: وَاللَّهِ لَقَدْ صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى ابْنَيْ بَيْضَاءَ فِي الْمَسْجِدِ.

(۱): سنن ابن ماجه/الجنائز ۲۹ (۱۵۱۸)، (تحفة الأشراف: ۱۶۱۷۴)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الجنائز ۳۴ (۹۷۳)، سنن الترمذي/الجنائز ٤٤ (۱۰۳۳)، سنن النسائي/الجنائز ۷۰ (۱۹۶۹)، موطا امام مالك/الجنائز ۸ (۲۲)، مسند احمد (۶/۷۹، ۱۳۳، ۱۶۹) (صحيح)

(۲): صحيح مسلم/الجنائز ۳٤ (۹۷۳)، (تحفة الأشراف: ۱۷۷۱۳) (صحيح)

سُهَيْلٍ، وَأَخِيهِ.

دام المومنين عائشة ﷞ نه روايت دي فرمائي چه په الله قسم يقينانبي ﷺ په دوه ځامنود بيضاء باندې په جومات كښې جنازه كړې وه، چه سهيل اودهغه ورور وو.

د شوافعو او د حنابله استدلال د باب د رومبي حديث نه دې، او د احنافو او د مالكيانو دليل د باب دويم حديث دې.

[٣١٩١](¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، حَدَّثَنِي صَالِحٌ مَوْلَى التَّوْءَمَةِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ صَلَّى عَلَى جَنَازَةٍ فِي الْمَسْجِدِ، فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ".

دابوهريرة ﷛ نه روايت دې فرمائي چه نبي ﷺ فرمائيلي دي: څوك چه په كوم مړي باندې دجنازې مونځ په جومات كښې وكړي نوپده باندې ځه ګناه نشته.

قوله: ﴿عن ابى هريرة ﷛ قال رسول الله ﷺ من صلى على جنازة فى المسجد فلا شئ له﴾

شوافعو وغيره د دې دوه جوابونه وركړې دى اول دا چه دا ضعيف دې تفرد به صالح مولى التوامة، دويم دا چه په يو روايت كښې ﴿فلا شئ عليه﴾ دې، خو كه د دې حديث ضعف تسليم هم كړې شى نو بيا هم حديث د عائشې ﷞ كوم چه په صحيح مسلم كښې دې هم كوم د شوافعو موافق دې د دوه وجو نه؛ اول دا چه په هغه روايت كښې دى. ﴿فانكر الناس عليها﴾ چه د هغې نه معلوميږى چه د صحابه كراموﷺ په ذهنونو كښې د هغې كراهت وو، آخر دا ولې وو، دويم په دې وجه عائشې ﷞ چه د صلوة فى المسجد دپاره كوم مثال پيش كولو هغه صرف د يو يا دوه جنازو وو چه د هغې نه معلوميږى چه د رسول اللهﷺ دا عادت نه وو، د معمول خلاف غالبا د څه عارض په بناء باندې ئې دا مونځ په مسجد كښې كړې وو ممكنه ده د اعتكاف وغيره حالت وو يا زيات نه زيات جواز كوم چه د كراهت منافى نه دې.

والله اعلم بالصواب په اوجز كښې په دې باندې تفصيلى كلام حضرت شيخ كړې دې هغه لاندې په حاشيه كښې اوګورئ.(²)

---

¹): سنن ابن ماجه/الجنائز ٢٩ (١٥١٧)، (تحفة الأشراف: ١٣٥٠٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٤٤٤، ٤٥٥) (حسن)

²) قال ابن رشد وسبب الخلاف في ذلك حديث عائشة ﷞ الاتي عند مالك في الموطاء وحديث ابي هريرة ان رسول الله ﷺ قال من صلي علي جنازة في المسجد فلا شئ له وحديث عائشة ثابت وحديث ابي هريرة غير ثابت او غير متفق علي ثبوته لكن انكار الصحابة علي عائشة يدل علي اشتهار العمل بخلاف ذلك عندهم، ويشهد لذلك بروزه ﷺ للمصلي لصلاته علي النجاشي آهـ قلت حديث ابي هريرة اخرجه ابوداؤد والطحاوي وابن ماجة وابن ابي شيبة، قال الحلبي رواه ابوداؤد وابن ماجة عن ابن ابي ذئب عن صالح مولي التوامة، وصالح قال ابن معين ثقة لكنه اختلط قبل موته فمن سمع منه قبل ذلك ثبت حجة، وكلهم علي ان ابن ابي ذئب سمع منه قبل الاختلاط آهـ قلت حديث ابي هريرة عند ابن ابي شيبة فيه زيادة ونصه: قال وكان اصحاب رسول الله ﷺ اذا تضايق بهم المكان رجعوا ولم يصلوا وبسط ابن التركماني في الجوهر النقي ان صالحا انما تكلم فيه لاختلاطه، ولا اختلاف في عدالته، وابن ابي ذئب سمع منه قبل الاختلاط الي آخر في الاوجز ٢/٤٥٩ وفيه ايضا قال محمد في موطاه، وموضع الجنازة بالمدينة خارج المسجد وهو الموضع الذي كان النبي ﷺ يصلي علي الجنازة فيه، وقال الحافظ في الفتح ان مصلي الجنائز بالمدينة كان لاصقا بمسجد النبي ﷺ من ناحية جهة المشرق ودل حديث ابن عمر انه كان للجنازة مكان معد للصلوة عليها فقد يستفاد منه ان ما وقع من الصلوة علي بعض الجنائز في المسجد كان لامر عارض او لبيان الجواز آهـ)

په سهيل ابن بيضاء كښې بيضاء د سهيل رضي الله عنه د مور لقب دې، او ځ هغې نوم دعد دې او د سهيل د پلار نوم وهب بن ربيعة القرشي دې، قال النووی وكان سهيل قديم الاسلام هاجر الى الحبشة ثم عاد الى مكة ثم هاجر الى المدينة وشهد بدرا وغيرها توفى سنة ۹ هجرى او امام نووی رحمه الله دا هم فرمائى چه د بيضاء خامن درې دی سهل، سهيل او صفوان آهـ.

## بَابُ الدَّفْنِ عِنْدَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَعِنْدَ غُرُوبِهَا

### د نمر ختلو او نمر پريوتلو په وخت كښې د تدفين نه كولو بيان

[۳۱۹۲](١) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عَلِيِّ بْنِ رَبَاحٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي، يُحَدِّثُ أَنَّهُ سَمِعَ عُقْبَةَ بْنَ عَامِرٍ، قَالَ: "ثَلَاثُ سَاعَاتٍ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَانَا أَنْ نُصَلِّيَ فِيهِنَّ، أَوْ نَقْبُرَ فِيهِنَّ مَوْتَانَا: حِينَ تَطْلُعُ الشَّمْسُ بَازِغَةً حَتَّى تَرْتَفِعَ، وَحِينَ يَقُومُ قَائِمُ الظَّهِيرَةِ حَتَّى تَمِيلَ، وَحِينَ تَضَيَّفُ الشَّمْسُ لِلْغُرُوبِ حَتَّى تَغْرُبَ، أَوْ كَمَا قَالَ".

دعقبة بن عامر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه درې ساعتونه په ورځ كښې داسې دي چه په هغې كښې مونږ نبى عليه السلام دمونځ كولو او د مړو د تدفين نه منع كړي وو يو خو هغه وخت دې چه دنمر ستركه اوپر قيږي او راوخيژي ترڅوچه ښه راپورته شوي نه وی او بل دغرې او ماسپخين وخت دي ترڅوچه سوري روان شوي نه وی او بل هغه وخت دي چه نمرد پريوتو د پاره ښكته رازوړند شي ترڅوچه پريوتلي نه وي.

قوله: ﴿ انه سمع عقبة بن عامر رضي الله عنه قال ثلاث ساعات كان رسول الله صلى الله عليه وسلم ينهانا ان نصلى فيهن او نقبر فيهن موتانا الخ ﴾

يعنى رسول الله صلى الله عليه وسلم په اوقات ثلاثه كښې د مونځ كولو او د مړی د دفن كولو نه منع فرمائيلي ده يو د نمر ختلو په وخت، دويم د استواء په وخت، او دريم د غروب په وخت، د اوقات منهية مكروه بيان په كتاب الصلوة باب الصلوة بعد العصر كښې په الدرر المنضود دويم جلد ۵۲۳ صفحه باندې تير شوې دې.

### په اوقات منهية كښې په صلوة جنازة كښې مذاهب اربعه :

د صلوة جنازه په باره كښې هلته دا تير شوی دی چه بعد العصر او بعد الفجر خو بالاجماع جائز دی، او د دې اوقات ثلاثه مذكوره فى الحديث په باره كښې د احنافو مذهب دا دې چه كه جنازه خاص هم په دې وختونو كښې رارسيدلې وی نو بيا خو په دې اوقاتو كښې كول جائز دی بلكه افضل دی او تاخير دې اونكړې شی، كما فى الطحطاوى على المراقى كينې نه، او د امام شافعى رحمه الله په نزد په دې درې وختونو كښې بغير د كراهت نه جائز ده ځكه د جنازه ذات السبب دې او نوافل ذوات السبب د هغوى په نزد مطلقا په ټولو اوقاتو كښې جائز دی، او د امام احمد رحمه الله په نزد په دې درې وارو اوقاتو كښې ناجائز دې، او د

(١): صحيح مسلم/المسافرين ٥١ (٨٣١)، سنن الترمذي/الجنائز ٤١ (١٠٣٠)، سنن النسائي/المواقيت ٣٠ (٥٦١)، ٣٣ (٥٦٦)، الجنائز ٨٩ (٢٠١٥)، سنن ابن ماجه/الجنائز ٣٠ (١٥١٩)، (تحفة الأشراف: ٩٩٣٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٥٢/٤)، سنن الدارمي/الصلاة ١٤٢ (١٤٧٢) (صحيح)

امام مالک رحمه الله په نزد په دې درې واړو وختونو کښې په دوه وختونو کښې ناجائز دې او د استواء په وخت جائز دې ځکه چه دا وخت د هغوی په نزد په اوقات منهية کښې نه دې.

**په اوقات منهية کښې د مړي په دفن کولو کښې اختلاف د امامانو:**

دويم جزء د دې حديث دفن في هذه الاوقات دې، د دې په باره کښې دا دی چه دفن د جمهور په نزد په دې اوقاتو کښې مکروه نه دې هم دا د مالکيانو او احنافو مذهب دې، خو د امام احمد رحمه الله په نزد مکروه دې لکه په المغنى او الروض المربع کښې دی، او د امام شافعي رحمه الله مسلک امام خطابى رحمه الله دا ليکلې دې: وكان الشافعي يرى الصلوة على الجنائز اى ساعة شاء من ليل او نهار وكذلك الدفن اى وقت كان من ليل او نهار، يعنى د امام شافعي رحمه الله په نزد د صلوة او دفن دواړو حکم يو شان دې يعنى مطلقا جواز في جميع الاوقات، لهذا خلاصه دا راووتله چه دفن په دې اوقاتو کښې د جمهورو په نزد چه په هغې کښې درې امامان يعنى احناف، مالکيان او شوافع دی جائز دې او په امامانو کښې صرف د امام احمد په نزد مکروه دې. لهذا دا حديث د حنابله په نزد خو په خپل ظاهر پاتې شو، د دې وجې نه امام ابوداؤد رحمه الله چونکه حنبلى دې هغوی دې حديث لره په ظاهر باندې کيخودلو سره باب الدفن قائم کړو، او د احنافو او د مالکيانو په نزد دا حديث موول دې چه د دفن نه مراد صلوة على الجنازة دې، او د شوافعو په هر حال کښې خلاف دې ځکه چه د هغوی په نزد دواړه جائز دی د هغوی په نزد دا په صلوة على الجنازة باندې محمول کول مفيد نه دی هم په دې وجه امام نووى رحمه الله يو بله لار اختيار کړه هغه دا چه د دې نه مراد خو دفن دې، خو مطلق دفن ترې نه نۀ دې مراد بلکه تعمد الدفن في هذه الاوقات يعنى قصدا تاخير کولو سره په دې اوقاتو کښې جنازه کول، کما صرح به في شرح مسلم في شرح هذا الحديث، خو امام ترمذى رحمه الله دا حديث په صلوة باندې محمول کولو سره ترجمة قائم کړې ده ﴿ باب ما جاء في كراهية صلوة الجنازة عند طلوع الشمس وعند غروبها ﴾ د امام ترمذى رحمه الله په باره کښې مشهوره خو هم دا ده چه هغه شافعي المسلک دې خو د هغوی د ترجمې نه د مسلک شافعيه موافقت ليکن نه کيږی، خو د جمهورو تاويل هم دا دې، والحديث اخرجه مسلم والترمذى والنسائى وابن ماجة، قاله المنذرى.

## بَابُ إِذَا حَضَرَ جَنَائِزُ رِجَالٍ وَنِسَاءٍ مَنْ يُقَدَّمُ

**يعنى که د سړو او زنانو جنازې په يو وخت کښې راجمع شي نو څوک به مقدم کولې شي يعنى امام ته نزدې؟**

[٣١٩٣] ([1]) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ مَوْهَبٍ الرَّمْلِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ صَبِيحٍ، حَدَّثَنِي عَمَّارٌ مَوْلَى الْحَارِثِ بْنِ نَوْفَلٍ، أَنَّهُ شَهِدَ جَنَازَةَ أُمِّ كُلْثُومٍ، وَابْنِهَا، فَجُعِلَ الْغُلَامُ مِمَّا يَلِي الْإِمَامَ، فَأَنْكَرْتُ ذَلِكَ، وَفِي الْقَوْمِ ابْنُ عَبَّاسٍ، وَأَبُو سَعِيدٍ الْخُدْرِيُّ، وَأَبُو قَتَادَةَ، وَأَبُو هُرَيْرَةَ، فَقَالُوا: هَذِهِ السُّنَّةُ.

دحارث بن نوفل ازاد کړې شوي غلام عمار نه روايت دې فرمائى چه زه دام کلثوم او دهغې

[1]: سنن النسائي /الجنائز ٧٤(١٩٧٩)، (تحفة الأشراف: ٤٢٦١) (صحيح)

دځوي جنازې ته حاضرشوي وم نو دهلك جنازه امام ته نزدې کیخودلې شوه نو ما دا کار بد وګنړلو او په خلقو کښې ابن عباس او ابوسعید خدری او ابوقتادة او ابوهریرة رضي الله عنهم موجود وو هغوی ووئیل چه دا سنت عمل دې (یعنی هلك مخکښې ایخودل او بیا زنانه دهغه نه شاته).

قوله: ﴿ حدثنی عمار مولی الحارث بن نوفل انه شهد جنازة ام کلثوم وابنها فجعل الغلام مما یلی الامام فانکرت ذلک الخ ﴾

یعنی ام کلثوم بنت علی رضي الله عنها زوجه عمر رضي الله عنه او د هغې ځوئې زید بن عمر د دې دواړو جنازه راوړې شوه او د زید جنازه امام ته نزدې کیخودلې شوه، عمار فرمائی چه ما په دې باندې اشکال اوکړو، هغه وخت په جماعت کښې ابن عباس، ابوسعید خدری، ابوقتادة ابوهریرة رضي الله عنهم هم موجود وو. ﴿ فقالوا هذه السنة ﴾ یعنی دې ټولو اوفرمائیل چه مسنون طریقه هم دا ده. فی الاوجز : وعلی هذا اکثر العلماء وقول الصحابی : هی السنة له حکم الرفع وقال الحسن وسالم والقاسم النساء مما یلی الامام والرجال مما یلی القبلة قاله الزرقانی، یعنی د دې حضراتو په نزد ترتیب بالعکس دې چه د زنانه جنازه دې امام ته نزدې او د سړی جنازه دې قبلې ته نزدې کیخودلې شی او ابن رشد په دې کښې یو دریم قول هم لیکلې دې هغه دا چه چه د دواړو د جنازې مونځ دې ځانله ځانله اوکړې شی، د سړو ځانله او د زنانو ځانله. والحدیث اخرجه النسائی، قاله المنذری

## باب أَيْنَ يَقُومُ الإِمَامُ مِنَ الْمَيِّتِ إِذَا صَلَّى عَلَيْهِ

**یعنی امام لره د جنازې کومې حصې ته مخامخ اودریدل پکاردی.**

**مسئلة الباب کښې مذاهب ائمة :**

په دې کښې مذاهب دائمة دا دی چه که د سړی جنازه ده نو د جمهورو په نزد او د ائمة ثلاثه په نزد د هغه سینې ته، او د امام مالک رحمه الله په نزد د هغه وسط ته، او که جنازه د ښځې وی نو په دې کښې د احنافو مسلک هم هغه دې کوم چه د سړی په حق کښې دې یعنی عند صدرها او د باقی ائمة ثلاث په نزد داسې دې عند الشافعی حیال عجیزتها وعند احمد عند وسطها، وعند مالک حیال منکبیها.

[٣١٩٤]([1]) حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ نَافِعٍ أَبِي غَالِبٍ، قَالَ: كُنْتُ فِي سِكَّةِ الْمِرْبَدِ، فَمَرَّتْ جَنَازَةٌ مَعَهَا نَاسٌ كَثِيرٌ، قَالُوا: جَنَازَةُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَيْرٍ، فَتَبِعْتُهَا، فَإِذَا أَنَا بِرَجُلٍ عَلَيْهِ كِسَاءٌ رَقِيقٌ عَلَى بُرَيْذِينَتِهِ، وَعَلَى رَأْسِهِ خِرْقَةٌ تَقِيهِ مِنَ الشَّمْسِ، فَقُلْتُ: مَنْ هَذَا الدِّهْقَانُ؟ قَالُوا: هَذَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ، فَلَمَّا وُضِعَتِ الْجَنَازَةُ، قَامَ أَنَسٌ فَصَلَّى عَلَيْهَا، وَأَنَا خَلْفَهُ، لَا يَحُولُ بَيْنِي وَبَيْنَهُ شَيْءٌ، فَقَامَ عِنْدَ رَأْسِهِ، وَكَبَّرَ أَرْبَعَ تَكْبِيرَاتٍ، لَمْ يُطِلْ، وَلَمْ يُسْرِعْ، ثُمَّ ذَهَبَ يَقْعُدُ، فَقَالُوا: يَا أَبَا حَمْزَةَ، الْمَرْأَةُ الْأَنْصَارِيَّةُ، فَقَرَّبُوهَا وَعَلَيْهَا نَعْشٌ أَخْضَرُ، فَقَامَ عِنْدَ عَجِيزَتِهَا، فَصَلَّى عَلَيْهَا نَحْوَ صَلَاتِهِ عَلَى الرَّجُلِ، ثُمَّ جَلَسَ، فَقَالَ الْعَلَاءُ بْنُ زِيَادٍ: يَا أَبَا حَمْزَةَ، هَكَذَا كَانَ يَفْعَلُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يُصَلِّي عَلَى الْجَنَازَةِ كَصَلَاتِكَ: يُكَبِّرُ عَلَيْهَا أَرْبَعًا، وَيَقُومُ عِنْدَ رَأْسِ الرَّجُلِ، وَعَجِيزَةِ الْمَرْأَةِ؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: يَا أَبَا حَمْزَةَ، غَزَوْتَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: نَعَمْ، غَزَوْتُ مَعَهُ حُنَيْنًا، فَخَرَجَ الْمُشْرِكُونَ، فَحَمَلُوا عَلَيْنَا حَتَّى رَأَيْنَا

[1]: سنن الترمذي/الجنائز ٤٥ (١٠٣٤)، سنن ابن ماجه/الجنائز ٢١ (١٤٩٤)، (تحفة الأشراف: ١٦٢١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١٨/٣، ١٥١، ٢٠٤) (صحيح)

خَيْلَنَا وَرَاءَ ظُهُورِنَا، وَفِي الْقَوْمِ رَجُلٌ يَحْمِلُ عَلَيْنَا، فَيَدُقُّنَا، وَيَحْطِمُنَا، فَهَزَمَهُمُ اللَّهُ، وَجَعَلَ يُجَاءُ بِهِمْ، فَيُبَايِعُونَهُ عَلَى الْإِسْلَامِ، فَقَالَ رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ عَلَيَّ نَذْرًا، إِنْ جَاءَ اللَّهُ بِالرَّجُلِ الَّذِي كَانَ مُنْذُ الْيَوْمَ يَحْطِمُنَا، لَأَضْرِبَنَّ عُنُقَهُ، فَسَكَتَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَجِيءَ بِالرَّجُلِ، فَلَمَّا رَأَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، تُبْتُ إِلَى اللَّهِ، فَأَمْسَكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُبَايِعُهُ، لِيَفِيَ الْآخَرُ بِنَذْرِهِ، قَالَ: فَجَعَلَ الرَّجُلُ يَتَصَدَّى لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيَأْمُرَهُ بِقَتْلِهِ، وَجَعَلَ يَهَابُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَقْتُلَهُ، فَلَمَّا رَأَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ لَا يَصْنَعُ شَيْئًا، بَايَعَهُ، فَقَالَ الرَّجُلُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، نَذْرِي، فَقَالَ: "إِنِّي لَمْ أُمْسِكْ عَنْهُ مُنْذُ الْيَوْمَ، إِلَّا لِتُوفِيَ بِنَذْرِكَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَلَا أَوْمَضْتَ إِلَيَّ؟ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّهُ لَيْسَ لِنَبِيٍّ أَنْ يُومِضَ، قَالَ أَبُو غَالِبٍ: فَسَأَلْتُ عَنْ صَنِيعِ أَنَسٍ فِي قِيَامِهِ عَلَى الْمَرْأَةِ عِنْدَ عَجِيزَتِهَا، فَحَدَّثُونِي أَنَّهُ إِنَّمَا كَانَ لِأَنَّهُ لَمْ تَكُنِ النُّعُوشُ، فَكَانَ الْإِمَامُ يَقُومُ حِيَالَ عَجِيزَتِهَا يَسْتُرُهَا مِنَ الْقَوْمِ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: قَوْلُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتَّى يَقُولُوا لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ"، نَسَخَ مِنْ هَذَا الْحَدِيثِ: الْوَفَاءَ بِالنَّذْرِ فِي قَتْلِهِ، بِقَوْلِهِ: إِنِّي قَدْ تُبْتُ.

دابوغالب نه روایت دي فرمائي چه زه په سکة المربد مقام کښې موجود وم چه یوه جنازه راوړل شوه اوډیرخلق ورسره وو خلقو اووئیل دا د عبدالله بن عمر ﷺ جنازه ده ماچه داواوریدل نوزه هم ور پسې شوم اویوکس مې اولیدو چه نرئ جامې ئې اغوستې دي او په وروکښې اس باندې سور دې او په خپل سر باندې ئې دنمر نه دبچ کیدو دپاره د یوې کېړې نه سورې کړې وو ماتپوس اوکړو چه دازمیدار څوك دې خلقو راته اووئیل انس بن مالك نه دې کله چه جنازه کیښودې شوه نوانس نه پاڅیدو اودجنازې مونځ ئې ورکړو زه هم ور پسې ولاړ وم زما اودهغه په مینځ کښې څه شې حائل نه وو هغه دمړې دسر سره نزدې اودریدو او څلور تکبیرونه ئې اووئیل نه ډیر زر زر اونه په ډیر تاخیرسره اوبیاروان شو چه کښېنې خلقو ورته اووئیل اې ابوحمزه دیوانصارې زنانه جنازه هم ده، بیا هغه جنازه نزدې راوړې شوه اوپه شین رنګ تابوت کښې وه دهغې دملاپه برابر اودریدواود جنازې مونځ ئې پرې اوکړو لکه څرنګه چه په سړوبه ئې جنازه کوله، بیا ددې نه پس کیناستو علاء بن زیاد اووئیل اې ابوحمزه نبی ﷺ به هم داسې جنازه کوله څرنګه چه تا اوکړه او څلور تکبیرونه به ئې وئیل د سړی دسر سره به اودریدو اودښځې دملاسره انس په اووئیل هو نبی ﷺ به هم داسې جنازه کوله او په دې ځایونوکښې به اودریدو، علاء بن زیاد اووئیل اې ابوحمزه ایاته دنبی ﷺ سره جهاد ته تلې وې؟ هغه اووئیل هو زه دنبی ﷺ سره په عزوه حنین کښې موجود وم چه مشرکان بهر راووتل او په مونږ ئې حمله اوکړه، تردې چه مونږ خپل اسونه دځان نه شاته اولیدل او په کافرانوکښې یوکس وو چا چه به په مونږ حمله کوله او په توره به ئې زخمي کولو او قتل کولوبه ئې بیاالله تعالی دوی ته شکست ورکړو ددې نه پس دجنګ قیدیان راوستل شروع شول چه کله به راغلل نوپه اسلام باندې به ئې دنبی ﷺ سره بیعت کولو، په صحابه کرامو کښې یوکس ددې خبرې نذر او منلو که چرې دغه کس الله تعالی دقیدي په شکل کښې مونږته راوستو چاچه په دغه ورځ مونږ زخمي کړې وو نوزه به ئې قتل کوم داخبره چه نبی ﷺ واوریده نوخاموش شو او بیا هغه سړې راوستلې شو کله چه دغه صحابي نبی ﷺ اولیدو نوعرض ئې اوکړو اې دالله رسوله ماتوبه ویستلې ده نبی

ﷺ دهغه سره په بيعت کولو کښې توقف اوکړو په دې اراده باندې چه دا صحابي خپل نذر پوره کړي ليکن هغه صحابي ددې خبرې په انتظار کښې وو چه نبی ﷺ ماته ددغه کس د قتل کولو حکم اوکړي نوزه به ئې قتل کړم اوزه ددې خبرې نه ويريدم هسې نه چه زه دې قتل کړم او نبی ﷺ راته غصه شي کله چه نبی ﷺ اوليدل چه هغه څه نه کوي يعنی په هيڅ طريقه ئې نه وژني څوبيا ئې مجبورا دده سره بيعت اوکړو، په دې وخت کښې صحابي عرض اوکړو اې دالله رسوله زمانذر به څنګه مکمل شي نبی ﷺ اوفرمائيل زه چه ددې وخته پورې اودريدم اوانتظار مې اوکړو او بيعت مې درسره نه کوو زمادا خيال وو چه ته خپل نذر پوره کړې، ده عرض اوکړو چه اې رسول الله ماته دې اشاره ولې نه کوله؟ نبی ﷺ اوفرمائيل دپيغمبردشان سره دامناسب نه دی چه په سترګوچاته خفيه اشاره اوکړي، ابوغالب اووئيل مادخلقونه تپوس اوکړو چه انس ﷺ ددې ښځې دملا په برابر په څه وجه دجنازې دپاره ودريدلې وو؟ خلقو اووئيل په دې وجه چه په تيره شوې زمانه کښې تابوتونه نه وو امام به دجنازې کولو په وخت کښې دښځې دکوناټوسره نزدې اودريدو ددې دپاره چه دمقتديانو دنظرنه پټه شي. ابوداؤد وائی د نبی کريم ﷺ حديث «أمرت أن أقاتل الناس حتى يقولوا لا إله إلا الله» نه ددې د قتل نذر پوره کول منسوخ کړې شوی دی ځکه چه هغه راتلو سره دا وئيلی وو چه ما توبه کړې ده او اسلام مې راوړلې دې.

قوله: ﴿ عن نافع ابی غالب قال کنت فی سکة المربد فمرت جنازة معها ناس کثير، قالوا جنازة عبدالله بن عمير ﴾:

سکة المربد په بصره کښې د يو ځائې نوم دې، هسې خو مربد د ګډو بيزو او اوښانو د تړلو ځائې ته وائی، ابوغالب وائی چه زه په سکة المربد کښې ام نو زما مخې ته يو جنازه تيره شوه چه د هغې سره يو لويه مجمع وه خلقو وئيل چه دا د عبدالله بن عمير جنازه ده نو زه هم د هغې سره روان شوم، ناڅاپه زما نظر په يو داسې سړی باندې پريوتلو چه هغه يو نرۍ څادر د ځان تاؤ کړې وو چه په يو ترکی اس باندې سور وو، چه هغه په خپل سر باندې يو کپړه اچولې وه د ګرمئ نه د بچ کيدو دپاره، نو ما تپوس اوکړو چه دا ملک صاحب څوک دې؟ خلقو اووې دا انس بن مالک ﷺ دې پس جنازه کيخودلې شوه نو انس ﷺ په هغه باندې د جنازه کولو دپاره هغه ته نزدې اودريدو چه په هغې کښې ئې څلور تکبيرونه اولوستل، د مانځه د فراغت نه پس چه کله هغوی کيناستل نو خلقو عرض اوکړو دا د يوې انصاری زنانه جنازه ده په دې هم جنازه اوکړئ ﴿ وعليها نعش احضر ﴾ چه په هغې کښې باندې د شين رنګ څادر وو ﴿ فقام عند عجيزتها ﴾ خلقو ترې نه تپوس اوکړو چه ايا رسول الله ﷺ به هم دغه شان مونځ کولو؟ يعنی څلور تکبيرونه او د سړی په جنازه کښې سر ته نزدې او د ښځې په جنازه کښې کوناټو ته نزدې؟ نو هغوی جواب ورکړو او ا هم دغه شان به ئې کولو، د دې نه پس په روايت کښې بيا انس ﷺ د غزوه حنين يو خاص واقعه واوروله چه په هغې کښې دا دی چه په غزوه حنين کښې په شروع کښې مسلمانان تختيدلې وو او په کفارو کښې يو سړې داسې وو چه هغه په مسلمانانو کښې ډيره خونريزی کړې وه چه د

هغه په باره کښې يو صحابی نذر اومنلو چه که ما په دې کافر باندې قابو بيا موندله نو زه به ئې سراووهم، بيا چه کله په آخر کښې مسلمانانو ته فتح اوشوه او هغه کافران رسول اللهﷺ ته راوستلې کيدل د اسلام د بيعت دپاره نو په دې کښې دا کافر هم هغوی ته راغلو او د رسول اللهﷺ په لاس باندې ئې د بيعت کيدو اراده اوکړه خو رسول اللهﷺ قصدا د هغه د بيعت نه ايسار شو چه هغه صحابی خپل نذر پوره کړی، خو هغه صحابیؓ په دې انتظار کښې وو چه رسول اللهﷺ د هغه د قتل حکم اوفرمائی. او بغير د رسول اللهﷺ د اجازت ئې د هغه د قتل کولو همت پيدا نه شو. په دې کښې څه وقفه هم اوشوه چه کله رسول اللهﷺ اوکتل چه هغه صحابی هم هغه شان ولاړ دې او خپل نذر نه پوره کوی نو رسول اللهﷺ د هغه بيعت کولو سره هغه په اسلام کښې داخل کړو. په دې باندې هغه صحابیؓ عرض اوکړو يا رسول اللهﷺ زما د نذر به څه کيږی؟ رسول اللهﷺ اوفرمائيل چه ما خپل لاس هم د دې دپاره خو بند کړې وو د بيعت نه چه ته خپل نذر پوره کړې، نو هغه عرض اوکړو يا رسول اللهﷺ تاسو ماته په سترګو باندې اشاره ولې اونکړه؟ نو رسول اللهﷺ اوفرمائيل چه نبی په خپلو سترګو سره دا قسم اشارې نه کوی چه په هغې کښې د ظاهر او باطن مطابقت نه وی. د دې قسم واقعه په کتاب الجهاد ﴿باب قتل الاسير ولا يعرض عليه السلام﴾ کښې د عبدالله بن ابی السرح متعلق تيره شوې ده هلته د رسول اللهﷺ دا ارشاد تير شوې دې ﴿انه لا ينبغی ان تكون له خائنة الاعين﴾ او دلته د روايت الفاظ داسې دی ﴿انه ليس لنبی ان يومض﴾

په دې باندې هلته يو سوال او جواب هم تير شوې دې، دلته وړاندې په روايت کښې دی، ابو غالب وائی چه ما د خلقو نه تپوس اوکړو د انسؓ د عمل په باره کښې، يعنی د زنانه په جنازه کښې د هغې کوناټو ته نزدې اودريدل، نو هغوی دا بيان اوکړو چه هغوی داسې ځکه اوکړل چه په هغه زمانه کښې به د زنانه په جنازو باندې جنګله نه وه په دې وجه به امام د هغې کوناټو ته اودريدو د پردې دپاره، په دې باندې حضرت په بذل کښې ليکلې دی چه د دې نه معلومه چه د زنانه په جنازه کښې د امام قيام حيال عجيزتها خلاف اصل او د عارض په وجه دې، او اصل محل د دې سينه دې، خو چونکه صدر او سر دواړه نزدې نزدې دی نو کيدې شی چه د لرې نه کتونکې دا اوګڼړی چه سر ته نزدې ولاړ وی په دې وجه ئې ﴿عند راسه﴾ اووې، خو ... د خلقو په دې جواب باندې اشکال دې چه دلته خو په روايت کښې تصريح ده د جنګلې کيدو ﴿وعليها نعش احضر﴾ نو د هغې توجيه دا کيدې شی چه اصل خبره خو هم هغه ده کومه چه خلقو بيان کړه خو انسؓ چونکه مطلقا د قيام حيال عجيزتها قائل وو په دې وجه هغوی سره د جنګلې داسې اوکړل

والحديث اخرجه الترمذی وابن ماجة، قاله المنذری

.........

[٣١٩٥] (١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ الْمُعَلِّمُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُرَيْدَةَ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، قَالَ: صَلَّيْتُ وَرَاءَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى امْرَأَةٍ مَاتَتْ فِي نِفَاسِهَا، فَقَامَ عَلَيْهَا لِلصَّلَاةِ وَسَطَهَا".

دسمرة بن جندب رضی الله عنه نه روایت دي فرمائي چه ماد نبي عليه السلام په اقتداء کښې د یوې ښځې جنازه وکړه کومه چه دنفاس په حالت کښې مړه شوي وه نبي عليه السلام دهغې دجنازي دپاره دنیمائي حصې په برابر اودریدو.

**قوله:** ﴿ عن سمرة بن جندب رضی الله عنه........ فقام عليها للصلوة وسطها ﴾

زمونږ استاد مولانا امیر احمد کاندهلوی رحمه الله به فرمائیل چه دا حدیث د احنافو خلاف نه دې ځکه چه سینه هم وسط دې په دې لحاظ سره چه د سینې د لاندې هم دوه اندامونه دی بطن او رکبتین (خپې) او پورته هم دوه اندامونه دی سر او څنګلې، او که څوک د پیمائش په اعتبار سره اشکال اوکړی نو مونږ به وایو چه دواړه لاسونه دې سر طرف ته اوچتولو سره خوارهٔ کړې شي بیا به په پیمائش کښې برابر والې اوشي. دا جواب خو بس یو لطیفه ده.

والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری

## بَابُ التَّكْبِيرِ عَلَى الْجَنَازَةِ

### د جنازې د تکبیرونو بیان

د جنازې په مونځ کښې په عدد د تکبیراتو کښې روایات مختلف دی، قاضی عیاض فرمائي، چه د صحابه کرامو رضی الله عنهم آثار په دې کښې د دریو نه واخله تر نهو پورې دی، خو روستو په څلورو باندې د فقهاء او اهل فتوی اجماع منعقد شوه د احادیث صحیحه په بناء، او زما په علم کښې نشته چه د یو فقیه په نزد په دې کښې پنځه تکبیرونه وی سوا د ابن ابی لیلی نه (بذل) په حدیث الباب کښې د صلوة علی القبر ذکر دې، په صلوة علی القبر باندې وړاندې مستقل باب راروان دی.

[٣١٩٦] (٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، قَالَ: أَخْبَرَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا إِسْحَاقَ، عَنِ الشَّعْبِيِّ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "مَرَّ بِقَبْرٍ رَطْبٍ، فَصَفُّوا عَلَيْهِ، وَكَبَّرَ عَلَيْهِ أَرْبَعًا"، فَقُلْتُ لِلشَّعْبِيِّ: مَنْ حَدَّثَكَ؟ قَالَ: الثِّقَةُ مَنْ شَهِدَهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبَّاسٍ.

دشعبي رحمه الله نه روایت دې فرمائي چه نبي عليه السلام په یو تازه قبر باندې تیریدو نو نبي عليه السلام اودریدو او صحابه کرامو صفونه جوړ کړل او څلور تکبیرونه ئې ووئیل. ابواسحاق وئیلی دی چه دشعبي نه مې تپوس وکړو چه داحدیث درته چا بیان کړې دې نو وئې وئیل چه یو ثقه (معتبر) کس راته بیان کړی دی یعنی ابن عباس که څوک چه دغلته په دغه وخت کښې موجود وو.

(١): صحيح البخاري/الحيض ٢٩ (٣٣٢)، والجنائز ٦٢ (١٣٣١)، ٦٣ (١٣٣٢)، صحيح مسلم/الجنائز ٢٧ (٩٦٤)، سنن الترمذي/الجنائز ٤٥ (١٠٣٥)، سنن النسائي/الحيض والاستحاضة ٢٥ (٣٩٣)، الجنائز ٧٣ (١٩٧٨)، سنن ابن ماجه/الجنائز ٢١ (١٤٩٣)، (تحفة الأشراف: ٤٦٢٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤/٥، ١٩) (صحيح)

(٢): صحيح البخاري/الأذان ١٦١ (٨٥٧)، والجنائز ٥ (١٢٤٧)، ٥٤ (١٣١٩)، ٥٥ (١٣٢٢)، ٥٩ (١٣٢٦)، ٦٦ (١٣٣٦)، ٦٩ (١٣٤٠)، صحيح مسلم/الجنائز ٢٣ (٩٥٤)، سنن الترمذي/الجنائز ٤٧ (١٠٣٧)، سنن النسائي/الجنائز ٩٤ (٢٠٢٥)، سنن ابن ماجه/الجنائز ٣٢ (١٥٣٠)، (تحفة الأشراف: ٥٧٦٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٢٤/١، ٢٨٣، ٣٣٨) (صحيح)

[۳۱۹۷]() حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، قَالَ: "كَانَ زَيْدٌ يَعْنِي ابْنَ أَرْقَمَ يُكَبِّرُ عَلَى جَنَائِزِنَا أَرْبَعًا، وَإِنَّهُ كَبَّرَ عَلَى جَنَازَةٍ خَمْسًا، فَسَأَلْتُهُ، فَقَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكَبِّرُهَا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَأَنَا لِحَدِيثِ ابْنِ الْمُثَنَّى أَتْقَنُ.

د ابن ابی لیلي نه روایت دي فرمائی چه زیدبن ارقمه به زمونږ په جنازوکښې څلور تکبیرونه وئیل اوهغه یوځل په یوه جنازه کښې پنځه تکبیرونه ووئیل مونږ ترې تپوس وکړوچه تاخوبه مخکښې په جنازه کښې څلور تکبیرونه وئیل نن دې ولې پنځه وکړل؟نو وئې وئیل چه نبی علیه السلام به کله کله پنځه تکبیرونه هم وئیل. ابوداود وائی زماپه نزد باندې دابن مثنې روایت زیات محفوظ دې.

﴿عن ابن ابی لیلی قان کان زید یعنی ابن ارقم، یکبرعلی جنائزنا اربعا وانه کبر علی جنازة خمسا الخ﴾ ابن ابی لیلی چه د هغه مسلک پورته د قاضی عیاض په کلام کښې تیر شو د هغې ماخذ به هم دا روایت وی، او پورته دا تیر شوې دی چه په دې کښې اختلاف د شروع نه دې روستو په څلورو تکبیرونو باندې اجماع شوې وه.

والحدیث اخرجه مسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری

## بَابُ مَا يُقْرَأُ عَلَى الْجَنَازَةِ

### د جنازې په مونځ کښې څه لوستل پکاردي؟

[۳۱۹۸]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ طَلْحَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَوْفٍ، قَالَ: "صَلَّيْتُ مَعَ ابْنِ عَبَّاسٍ عَلَى جَنَازَةٍ، فَقَرَأَ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ، فَقَالَ: إِنَّهَا مِنَ السُّنَّةِ".

دطلحه بن عبد الله بن عوف رحمه الله نه روایت دې فرمائی چه دابن عباس سره مې د یوې جنازې مونځ کړونوسورة فاتحه ئې په جنازه کښې اولوستله او وئې ئیل چه دا سنت عمل دې.

**قوله:** ﴿ صلیت مع ابن عباس رضی الله عنهما علی جنازة فقرأ بفاتحة الکتاب، فقال انها من السنة ﴾ د جنازې په مونځ کښې د احنافو او مالکیانو په نزد د فاتحې قراءت نشته، د امام شافعی رحمه الله او احمد په نزد شته، زمونږ فقهاء کرام فرمائی ﴿ والآثار فی عدمها اکثر ﴾ یعنی په نفی د قرأت کښې آثار ډیر دی په نسبت د ثبوت، د احنافو په نزد سورة فاتحه د ثناء په نیت لوستلې شی د قرأت په نیت نه.

د صلوٰة جنازه ارکان د ائمه اربعه په نزد څه څه دی د هغې تفصیل په اوجز کښې ذکر شوې دې، د احنافو مذهب په دې کښې دا لیکلې شوې دې چه د هغوی په نزد صرف دوه ارکان دی تکبیرات اربعه او قیام، لهذا په ناسته بغیر د عذر نه جائز نه دې صرف په تکبیر اولی کښې دې رفع یدین اوکړې شی او ثناء دې اولوستلې شی، او د دویم تکبیر نه پس دې په

[۱]: صحیح مسلم/الجنائز ۲۳ (۹٦۱)، سنن الترمذي/الجنائز ۳۷ (۱۰۲۳)، سنن النسائي/الجنائز ۷٦ (۱۹۸٤)، سنن ابن ماجه/الجنائز ۲۵ (۱۵۰۵)، (تحفة الأشراف: ۳٦۷۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/۳٦۸، ۳۷۰، ۳۷۱، ۳۷۲) (صحیح)

[۲]: صحیح البخاري/الجنائز ٦۵ (۱۳۳۵)، سنن الترمذي/الجنائز ۳۹ (۱۰۲۷)، سنن النسائي/الجنائز ۷۷ (۱۹۸۹)، (تحفة الأشراف: ۵۷٦٤)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الجنائز ۲۲ (۱٤۹۵) (صحیح)

نبی ﷺ درود او د دریم تکبیر نه پس دعا، او د څلور تکبیر نه پس سلام کذا فی الدر المختار، وقال ابن الهمام اما ارکانها فالذی یفهم من کلامهم انها الدعاء والقیام والتکبیر، الی آخر ما بسط، او قرأت فاتحه په کتب د شوافعو او حنابله کښې په ارکانو کښې شمیر ده.

والحدیث اخرجه البخاری والترمذی والنسائی، قاله المنذری

## بَابُ الدُّعَاءِ لِلْمَيِّتِ

### د مړی دپاره د دعاء غوښتلو بیان

[٣١٩٩](١) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ يَحْيَى الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ يَعْنِي ابْنَ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِذَا صَلَّيْتُمْ عَلَى الْمَيِّتِ، فَأَخْلِصُوا لَهُ الدُّعَاءَ".

دابوهریرة رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول پاک ﷺ فرمائیلی دی: کله چه په مړي باندې د جنازې مونځ کوئ نو د مړي دپاره په اخلاص سره دعاء اوغواړئ.

**قوله:** ﴿ اذا صلیتم علی المیت فاخلصوا له الدعاء ﴾

رسول الله ﷺ ارشاد فرمائی چه کله تاسو په یو مړی باندې مونځ کوئ نو د هغه دپاره په اخلاص دعا کوئ، اوس پاتې شوه دا چه څه دعا اوکړې شی د هغې ذکر په را روان روایت کښې راځی، والحدیث اخرجه ابن ماجة، قاله المنذری

**قوله:** ﴿ شهدت مروان سال اباهریرة کیف سمعت رسول الله ﷺ یصلی علی الجنازة؟ قال امع الذی قلت؟ قال نعم قال کلام بینهما قبل ذلک ﴾

علی بن شماخ وائی چه زه مروان د مدینې طیبې امیر سره موجود اوم په داسې حال کښې چه هغه تپوس اوکړو د ابوهریرة رضی الله عنه نه چه تا رسول الله ﷺ د جنازې په مانځه کښې په کومه دعا کولو باندې اوریدلې دې؟ د دې سوال جواب وړاندې را روان دې، خو د جواب نه مخکښې ابوهریرة رضی الله عنه هغه ته اوفرمائیل چه ته سره د دې چه ما نه تپوس کوئ کوم چه ما وئیلې وو او کیدې شی دا د خطاب صیغه وی، یعنی سره د هغې چه تا وئیلې وو، د دې تشریح راوی دا کوی چه د دې دواړو ترمینځه د دې نه مخکښې څه خبره پیښه شوې، هغې طرف ته اشاره ده نود ابوهریرة رضی الله عنه د کلام حاصل دا دې چه کومه خبره زما او ستا تر مینځه پیښه شوې وه د هغې تقاضه خو دا وه چه تا زما نه تپوس نه وې کړې، مروان جواب ورکړو چه او سره د دې تپوس کوم، چه څه اوشو د حاجت په وخت خو رجوع کولې شی.

### د جنازې په مانځه کښې چه کومې دعا ګانې راغلې دی:

وړاندې د دې دعا بیان دې: ﴿ اللهم انت ربها وانت خلقتها وانت هدیتها للاسلام وانت قبضت روحها وانت اعلم بسرها وعلانیتها جئنا شفعاء فاغفر له ﴾ او د موطاء په روایت کښې دی ابوسعید مقبری د ابوهریرة رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چه تاسو د جنازې مونځ څنګه کوئ نو

(١): سنن ابن ماجه/الجنائز ٢٣ (١٤٩٧)، (تحفة الأشراف: ١٤٩٩٣) (حسن)

هغوی اوفرمائيل چه زه د جنازې سره د مړی د کور نه څم بيا چه کله هغه مخامخ کيخودلې شی نو د تکبير اولی نه پس د الله پاک حمد او ثناء لولم او د دويم تکبير نه پس د الله پاک په نبی ﷺ باندې درود او سلام او د دريم تکبير نه پس دا لولم ﴿ اللهم عبدک وابن عبدک وابن امتک کان يشهد ان لا اله الا انت وان محمدا عبدک ورسولک وانت اعلم به، اللهم ان کان محسنا فزدنی فی احسانه وان کان مسيئا فتجاوز عن سيئاته، اللهم لا تحرمنا اجره ولا تفتنا بعده ﴾ د دې دعا په باره کښې په اوجز کښې ليکلې دی چه د مالکيانو په نزد دا د ابوهريره رضی الله عنه دعا لوستل مستحب دی لکه چه د هغوی په کتابونو کښې تصريح ده، او د احنافو په کتابونو کښې چه کومه دعا ذکر ده هغه په را روانو روايتونو کښې لږه په تفاوت سره را روانه ده، وفی الاوجز ۲/۲۵۴ وروی هذا الدعاء (يعنی کومه چه په کتب حنفيه کښې ده) ﴿ عن ابی هريرة رضی الله عنه مرفوعا عند احمد والترمذی وابی داؤد وابن حبان والبيهقی الخ ﴾ او په شرح اقناع صفحه ۱۸۹ کښې ليکلې دی چه کامله دعا دا ده او بيا هغوی د دې شروع هم د هغه دعا نه کړې ده کومه چه د احنافو په کتابونو کښې ده. د هغې نه پس څه نورې دعاګانې دی کومې چه د هم هغه دعا سره شاملولو باندې د هغوی په نزد لوستلې شی، او په صحيح مسلم ۱/۳۱۱ کښې عوف بن مالک رضی الله عنه فرمائی چه مارسول الله ﷺ د جنازې په يو مونځ کښې په دې دعا لوستلو باندې واوريدو

: ﴿ اللهم اغفر له وارحمه وعافه واعف عنه واکرم نزله ووسع مدخله واغسله بالماء والثلج والبرد ونقه من الخطايا کما نقيت الثوب الابيض من الدنس، وابدله دارا خيرا من داره واهلا خيرا من اهله وزوجا خيرا من زوجه وادخله الجنة واعذه من عذاب القبر ومن عذاب النار ﴾ وراندې هغه فرمائی چه په دې دعا اوريدو سره ما دا غوښتنه اوکړه چه ارمان دا جنازه زما وې، او د حنابله په نزد لکه چه د هغوی په کتابونو کښې ليکلې شوې دی دعا دا ده: ﴿ اللهم اغفر لحينا وميتنا وشاهدنا وغائبنا وصغيرنا وکبيرنا وذکرنا وانثانا انک تعلم منقلبنا ومثوانا وانت علی کل شئ قدير، اللهم من احييته منا فاحييه علی الاسلام والسنة ومن توفيته فتوفه عليهما اللهم اغفرله وارحمه ﴾ ه؛------ او د دې سره هغه دعا کومه چه د صحيح مسلم په حواله تيره شوه.

[۳۲۰۱](¹) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ مَرْوَانَ الرَّقِّيُّ، حَدَّثَنَا شُعَيْبٌ يَعْنِي ابْنَ إِسْحَاقَ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى جَنَازَةٍ، فَقَالَ: "اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِحَيِّنَا وَمَيِّتِنَا، وَصَغِيرِنَا وَكَبِيرِنَا، وَذَكَرِنَا وَأُنْثَانَا، وَشَاهِدِنَا وَغَائِبِنَا، اللَّهُمَّ مَنْ أَحْيَيْتَهُ مِنَّا فَأَحْيِهِ عَلَى الْإِيمَانِ، وَمَنْ تَوَفَّيْتَهُ مِنَّا فَتَوَفَّهُ عَلَى الْإِسْلَامِ، اللَّهُمَّ لَا تَحْرِمْنَا أَجْرَهُ، وَلَا تُضِلَّنَا بَعْدَهُ".

دابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې فرمائيلې چه نبی عليه السلام په يو مړي باندې د جنازې مونځ اوکړو او دادعائې وغوښتله: «اللَّهُمَّ اغفر لحينا وميتنا وصغيرنا وکبيرنا وذکرنا وأنثانا وشاهدنا وغائبنا اللَّهُمَّ من أحييته منا فأحيه على الإيمان ومن توفيته منا فتوفه على الإسلام اللَّهُمَّ لا تحرمنا أجره ولا

¹): سنن الترمذي/الجنائز ۳۸ (۱۰۲۴)، (تحفة الأشراف: ۱۵۳۸۵)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الجنائز ۷۷ (۱۹۸۵)، سنن ابن ماجه/الجنائز ۲۳ (۱۴۹۹)، مسند احمد (۲/۳۶۸) (صحيح)

تضلنا بعده» يعنی اې الله بخښنه اوکړې زمونږه ژوندو او مړوته زمونږوړو اولويوته زمونږه نارينه او زنانه ته زمونږه حاضرو اوغائبوته، اې الله په مونږ کښې چه دې څوك ژوندې پريخودلې دې نودايمان سره ئې ژوندې اوساتې او په مونږ کښې چه چاله وژنې نوهغه ته داسلام سره مرګ ورکړې اې الله ته مونږ لره ددې داجرنه مخروم نه کړې اوددې نه پس خلقو لره په فتنه کښې مبتلا نکړې.

**قوله:** ﴿عن ابی هريرة رضي الله عنه قال صلی رسول الله ﷺ علی جنازة فقال اللهم اغفر لحينا وميتنا وصغيرنا وكبيرنا الخ وفی اخره اللهم لا تحرمنا اجره ولا تضلنا بعده﴾ حديث شماخ اخرجه النسائی فی اليوم والليلة، وحديث ابی سلمة اخرجه الترمذی والنسائی، قاله المنذری

[۳۲۰۲](۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ. ح وحَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا الْوَلِيدُ، وَحَدِيثُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَتَمُّ، حَدَّثَنَا مَرْوَانُ بْنُ جُنَاحٍ، عَنْ يُونُسَ بْنِ مَيْسَرَةَ بْنِ حَلْبَسٍ، عَنْ وَاثِلَةَ بْنِ الْأَسْقَعِ، قَالَ: صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى رَجُلٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ، فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ: "اللَّهُمَّ إِنَّ فُلَانَ بْنَ فُلَانٍ فِي ذِمَّتِكَ، فَقِهِ فِتْنَةَ الْقَبْرِ، قَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ: فِي ذِمَّتِكَ، وَحَبْلِ جِوَارِكَ، فَقِهِ مِنْ فِتْنَةِ الْقَبْرِ، وَعَذَابِ النَّارِ، وَأَنْتَ أَهْلُ الْوَفَاءِ، وَالْحَمْدِ اللَّهُمَّ، فَاغْفِرْ لَهُ وَارْحَمْهُ، إِنَّكَ أَنْتَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ". قَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ، عَنْ مَرْوَانَ بْنِ جَنَاحٍ.

واثلة بن اسقع نه روايت دې چه رسول الله ﷺ مونږ ته ديوجنازې مونږ راکړو ديو مسلمان دپاره نوما ترې واوريدل چه فرمائيل ئې: «اللَّهُمَّ إن فلان بن فلان في ذمتك فقه فتنة القبر» "يعنی اې الله يقينادفلانې بچې ستا په پناه کښې دې ته ورته دقبردعذاب نه نجات ورکړې اوددوزخ دعذاب نه ورته نجات ورکړې بائې داسې اوفرمائيل ستاپه ذمه اوستا په پناه کښې دې يعنی په دې وجه چه هغه بنده په تاايمان لرلو اوته دغه بنده لره دقبردفتنې يعنی دعذاب نه نجات ورکړې، د عبدالرحمن په روايت کښې داسې دې: چه دابنده ستاپه پناه کښې درکړې شوې دې ته ده لره دقبردفتنې اوعذاب ددوزخ نه بچ کړې اوته وفاء کونکې ئې يعنی دبندګانوسره چه کومه وعده کوې هغه پوره کوې اوته دحق مالك ئې اې الله دې بنده ته مغفرت اوکړې او په ده باندې رحم اوکړې يقيناته بخښش کونکې او مهربان ئې عبدالرحمن دمروان نه دا روايت په صيغه دعن سره نقل کړې دې.

﴿عن واثلة بن الاسقع رضي الله عنه قال صلی بنا رسول الله ﷺ علی رجل من المسلمين فسمعته يقول : اللهم ان فلان ابن فلان فی ذمتک وحبل جوارک فقه من فتنة القبر وعذاب النار وانت اهل الوفاء والحق اللهم فاغفرله وارحمه انک انت الغفور الرحيم﴾ اخرجه ابن ماجة، قاله المنذری

## بَابُ الصَّلَاةِ عَلَى الْقَبْرِ

### په قبر باندې د جنازې کولو بيان

### په دې مسئله کښې مذاهب ائمة :

د صلوة علی القبر مسئله مختلف فيه ده، د شوافعو او حنابله په نزد مطلقا جائز ده، د مالکيانو په نزد علی المشهور ناجائز ده، او هم دا د احنافو مذهب دې لکه چه په شروحو

(۱): سنن ابن ماجه/الجنائز ۲۳ (۱۴۹۹)، (تحفة الأشراف: ۱۱۷۵۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۹۱/۳) (صحيح)

کښې دی، ففی الاوجز عن الزرقانی : واما الصلوة علی القبر فقال بمشروعیته الجمهور منهم الشافعی واحمد وابن وهب ومالک فی روایة شاذة، والمشهور عنه منعه، وبه قال ابوحنیفة والنخعی وجماعة، وعنهم ان دفن قبل الصلوة شرع والا فلا آهـ وقال الابی فی الاکمال : مشهور قول مالک المنع، والشاذ جوازها فیمن دفن بغیر صلوة آهـ د امام مالک رحمه الله چه کوم قول شاذ دې هم هغه د احنافو مذهب دې ففی الهدایة ان دفن المیت ولم یصل علیه صلی علی قبره لان النبی ﷺ صلی علی قبر امرأة من الانصار، ویصلی علیه قبل ان یتفسخ، والمعتبر فی معرفة ذلک اکبر الرای هو الصحیح، لاختلاف الحال والزمان والمکان، وفی هامشه احتراز عما روی فی الامالی عن ابی یوسف رحمه الله انه یصلی علی المیت فی القبر الی ثلاثة ایام آهـ

ګویا د مالکیانو مشهور قول دا شو چه مطلقا ناجائز دې او د احنافو په نزد صلوة علی القبر په دې صورت کښې جائز دې چه مړې بغیر د صلوة نه دفن کړې شوې وی، او دا چه تر کومې پورې پرې د جنازې مونځ کولې شی؟ په دې کښې یو روایت دا دې چه تر درې ورځو پورې، او دویم قول کوم چه صاحب الهدایة غوره کړې دې مالم ینتفخ ولم یتفسخ، یعنی چه ترڅو پورې غالب ګمان دا وی چه د مړی بدن چاودلې نه وی او بدبویه شوې نه وی، تر هغه وخته پورې پرې کولې شی.

کوم خلق چه مطلقا د جواز قائل دی د هغوی په نزد په دې کښې هم اختلاف دې چه تر کومې پرې کولې شی، د امام اسحاق او احمد په نزد تر یو میاشتې پورې، او د شوافعو په دې کښې مختلف روایتونه دی منها کقول احمد، ومنها الی ثلاثة ایام، ومنها ما لم یبل جسده (اوجز ۲/)

[۳۲۰۳] (۱) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، وَمُسَدَّدٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ: "أَنَّ امْرَأَةً سَوْدَاءَ، أَوْ رَجُلًا، كَانَ يَقُمُّ الْمَسْجِدَ، فَفَقَدَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَسَأَلَ عَنْهُ، فَقِيلَ: مَاتَ، فَقَالَ: "أَلَا آذَنْتُمُونِي بِهِ؟" قَالَ: دُلُّونِي عَلَى قَبْرِهِ، فَدَلُّوهُ، فَصَلَّى عَلَيْهِ".

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه یوه تورنسل والا ښځه او که سړې چه په جومات کښې به ئې جارو وهله نویوه ورځ نبی ﷺ اونه لیدو نو دخلقونه ئې تپوس اوکړو چه ایا هغه مړشوې خونه دې خلقو ورته اووئیل چه مړدې نبی ﷺ اوفرمائیل ماته موخبر ولې نه وو راکړې؟ ماته دهغه قبر وښائې خلقو ورته دقبرپه باره کښې معلومات ورکړو نبی ﷺ دهغه قبرته لاړو اوجنازه ئې وربانډې اوکړه.

## په حدیث الباب کښې د روایاتو اختلاف :

قوله: ﴿عن ابی هریرة رضی الله عنه ان امراة سوداء او رجلا کان یقم المسجد فقده النبی ﷺ فسأل عنه فقیل مات، فقالا الا اذنتمونی به، قال دلونی علی قبره فدلوه فصلی علیه﴾

په حاشیه د بذل کښې حضرت شیخ لیکلې دی قال الحافظ فی الفتح ۳۷۱/۱ ان الشک من ثابت والصواب امراة اسمها خرقاء وکنیتها ام محجن الخ، وقال ایضا ۷۵/۳ المذکور فی حدیث ابن

(۱): صحیح البخاري/الصلاة ۷٤ (٤٥٨)، صحیح مسلم/الجنائز ۲۳ (۹٥٦)، سنن ابن ماجه/الجنائز ۳۲ (۱٥۲۷)، (تحفة الأشراف: ١٤٦٥٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳٥۳/۲، ۳۸۸، ٤۰٦) (صحیح)

عباس رضی الله عنهما بلفظ مات انسان كان ﷺ يعوده وهو طلحة بن البراء رضی الله عنه ووهم من قال بالاول لتغاير القصتين وكذا قال العينى آهـ...

او د موطاء په روايت كښې دى. ﴿من حديث ابى امامة سهل بن حنيف ان مسكينة مرضت فاخبر رسول الله ﷺ بمرضها فقال رسول الله ﷺ اذا ماتت فآذنونى بها فخرج بجنازتها ليلا فكرهوا ان يوقظوا رسول الله ﷺ، فلما اصبح رسول الله ﷺ اخبر بالذى كان من شانها (بعد سواله عنها كما فى رواية ابن ابى شيبة) فقال الم آمر كم ان توذنونى بها فقالوا يا رسول الله ﷺ كرهنا ان نخرجك ليلا ونوقظك الحديث، قال ابن عبدالبر هذا الحديث روى من وجوه كثيرة عن البنى ﷺ كلها ثابتة من حديث ابى هريرة وعامر بن ربيعة وابن عباس وانس رضی الله عنهم آهـ

وكتب الشيخ فى (الأوجز) قوله ان مسكينة وفى حديث ابى هريرة فى الصحيحين وغيرهما ان رجلا اسود او امراة سوداء كان يقم المسجد الى آخر ما بسط.

د حديث مضمون دا دې ابوهريرة رضی الله عنه فرمائي چه يوه توره زنانه، يا سړې (د راوى شک دې) چه په مسجد كښې به ئې جارو وهله، قم يقم مرادف دې د كنس يكنس، قمامة وائى كناسه ته يعنى خزلې لره جارو باندې يو ځائې ته جمع كړې شوه، يو ورځ چه رسول الله ﷺ هغه اونه ليده نو د هغې په باره كښې ئې سوال اوفرمائيلو نو خلقو عرض اوكړو چه هغه خو د شپې وفات شوې دې، يعنى دفن كړې شوې دې، رسول الله ﷺ اوفرمائيل تاسو زه د هغه نه خبر ولې نه كړم؟ او بيا ئې اوفرمائيل چه ما ته د هغه قبر اوښايئ چه كوم ځائې دې؟ صحابه كرامو رضی الله عنهم رسول الله ﷺ ته د هغه قبر اوښودلو، رسول الله ﷺ پرې اودريدو او مونځ ئې پرې اوكړو.

پورته دا د موطاء روايت كښې تير شو چه رسول الله ﷺ صحابه كرامو رضی الله عنهم ته داسې فرمائيلې وو چه د هغه د مرګ خبر ماته اوكړئ، خو صحابه كرامو رضی الله عنهم هم په دې خيال رسول الله ﷺ ته خبر ورنكړو چه په شپه كښې هغوى ته تكليف او نه رسى،

بهرحال دا حديث د احنافو او مالكيانو خلاف دې، په دې حديث باندې پوره كلام زما په يو تقرير كښې داسې لكيلې شوې دې، د مفيد كيدو د وجې نه نقل كولې شى، په هغې كښې ليكلې شوې دى : د شوافعو او حنابلو په نزد قبر باندې مونځ مطلقا كولې شى، اوس دا چه د كله پورې؟ په دې كښې روايات مختلف دى، د امام احمد رحمه الله په نزد زيات نه زيات ـــ تر يو مياشتې پورې،اود شوافعو په دې كښې متعدد اقوال دى، د هغې نو يو خو هم دا دې، او يو قول دې الى ثلاثة ايام، وقيل ما لم تبل الجنة، ابن عبدالبر وائى چه په دې باندې اجماع ده چه د ډيرې مودې د تيريدو نه پس به نه كولې كولې خو يو قول دا هم دې يجوز الى الابد.

**د احنافو د طرف نه د حديث الباب توجيه :**

د احنافو او مالكيانو د طرف نه د دې روايت جواب د دې چه دا د رسول الله ﷺ خصوصيت دې كومو صحابه كرامو رضی الله عنهم چه د رسول الله ﷺ سره مونځ اوكړو هغوى تبعا اوكړلو، او دليل د خصوصيت دا دې چه د صحيح مسلم په روايت كښې يو زيادت دې هغه دا چه رسول

الله ﷺ اوفرمائيل: ﴿ان هذه القبور مملوءة ظلمة وان الله ينورها بصلاتي عليها﴾ يعنى دا قبرونه بالکل تيارۀ وی او بيشکه زما په هغوی باندې زما د جنازې د مانځه د وجې نه هغه روښانه کوی، صحيح جواب هم دا دې، هسې يو جواب دا هم ورکړې شوې دې چه چونکه رسول الله ﷺ صحابه کرامو ﷡ ته د اطلاع کولو حکم فرمائيلې وو او هغوی اطلاع نه وه کړې نو ګويا هغه ړومبې مونځ صحيح شو، او يو جواب دا هم ورکړې شوې دې چه رسول الله ﷺ هغه وسره وعده کړې وه پس دا په منزله د نذر شو، دا جواب ابی په شرح د مسلم کښې ورکړې دې، اول ئې صحيح ګرزولی دې، او يو جواب د احنافو د طرف نه بعضو دا هم کړې دې چه په عموم بلوی کښې اخبار احاد معتبر نه دی، او امام مالک ﷫ دا جواب هم ورکړې دې چه په دې باندې عمل د اهل مدينه نشته، ابن الهمام وئيلې دی چه دا حديث زمونږ خلاف دې مګر دا چه اوئيلې شی چه هغه به بغير د مانځه نه دفن کړې شوې وی، خو دا خبره د صحابه کرامو ﷡ نه مستبعد ده. آهـ من الاوجز

والحديث اخرجه البخاري ومسلم وابن ماجة. قاله المنذري

## بَابٌ فِي الصَّلَاةِ عَلَى الْمُسْلِمِ يَمُوتُ فِي بِلَادِ الشِّرْكِ

### کوم مسلمانان چه د مشرکانو په ملک کښې مړه شی په هغوی د جنازې کولو بيان

او امام ترمذی باب قائم کړې دې باب صلوة النبی ﷺ علی النجاشی، د مصنف ﷫ اشاره هم اګر چه هم دې طرف ته ده خو په وصف عام سره چه د نجاشی خصوصيت اونګنړلې شی، ګويا په دې باب کښې مصنف د صلوة علی الغائب حکم بيانوی، په دې کښې هم دغه اختلاف دې کوم چه په ړومبی باب کښې وو، د شوافعو او حنابله په نزد دا جائز دې، د احنافو او مالکيانو په نزد ناجائز، د ابن تيميه مسلک په دې کښې دا دې چه د کوم مسلمان وفات په دار الحرب کښې اوشی د هغه غائبانه د جنازې مونځ په دار الاسلام کښې کيدې شی، او هم دا هغه قيد دې کوم چه مصنف ﷫ په ترجمة الباب کښې ذکر کړې دې، او د بعض علماء کرامو (ابن حبان) په نزد دا په هغه صورت کښې ده چه کله مړې د قبلې په جهت کښې وی او که د مړی علاقه قبلې طرف ته نه وی نو جائز نه دې.

[۳۲۰۴](١) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، قَالَ: قَرَأْتُ عَلَى مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَعَى لِلنَّاسِ النَّجَاشِيَّ فِي الْيَوْمِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ، وَخَرَجَ بِهِمْ إِلَى الْمُصَلَّى، فَصَفَّ بِهِمْ، وَكَبَّرَ أَرْبَعَ تَكْبِيرَاتٍ".

دابوهريره نه روايت دې فرمائی چه په کومه ورځ د نجاشي (حبشي بادشاه) مړشو نو صحابه کرامو نبی ﷺ ته دهغه دمرګ خبر ورکړونبی ﷺ دصحابه کرامو سره عيدګاه ته لاړونبی ﷺ دخلقو سره صفونه جوړ کړل او څلور تکبيرونه ئې اووئيل.

١ ): صحيح البخاري/الجنائز ٦٠ (١٣٣٤)، ومناقب الأنصار ٣٨ (٣٨٨٠)، صحيح مسلم/الجنائز ٢٢ (٩٥١)، سنن النسائي/الجنائز ٧٢ (١٩٧٣)، (تحفة الأشراف: ١٣٢٣٢)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/ الجنائز ٥ (١٤)، مسند احمد (٢/٤٣٨، ٤٣٩) (صحيح)

**قوله:** ﴿عن ابی هریرة رضی الله عنه ان رسول الله ﷺ نعی للناس النجاشی فی الیوم الذی مات فیه وخرج بهم الی المصلی فصف بهم وکبر اربعا تکبیرات﴾

د نجاشی رضی الله عنه نوم اصحمه وو، خو نجاشی لقب دې د حبشه د هر یو بادشاه د هغوی وفات په ۹ هجری کښې اوشو کما فی الخمیس والتلقیح، وقال ابن الاثیر : اسلم فی عهد رسول الله ﷺ وتوفی ببلاده قبل فتح مکة آهـ مختصرا (عون)، د هغوی ذکر په کتاب الطهارت باب المسح علی الخفین کښې تیر شوې دې.

په حدیث الباب کښې دا دی چه په کومه ورځ نجاشی شاه حبشه رضی الله عنه وفات شو هم په هغه ورځ رسول الله ﷺ صحابه کرامو رضی الله عنهم ته د هغوی د وفات خبر ورکړو، او رسول الله ﷺ صحابه کرامو رضی الله عنهم سره مصلی ته تشریف یوړو او په صحابه کرامو رضی الله عنهم باندې ئې باقاعده صفونه جوړ کړل او د جنازې مونځ ئې ادا کړو د څلورو تکبیرونو سره.

د مصلی نه مراد په حدیث کښې مصلی عیدین نه دی بلکه هغه ځائې مراد دې کوم چه د جنازې د مانځه د کولو دپاره معین وو، یعنی په بقیع الغرقد کښې، دا حدیث د احنافو او مالکیانو خلاف دې کوم چه د ﴿ صلوة علی الغائب ﴾ قائل نه دی، مختصرا د دې دوه جوابونه دی: ۱: د رسول الله ﷺ خصوصیت دې، پس د بعض روایتونو نه معلومیږی چه ټول حجابات د هغوی د مخې نه لرې کړې شوې وو او ګویا جنازه بالکل د هغوی مخې ته وه، او ښکاره خبره ده چه د رسول الله ﷺ نه علاوه دا څیز چاته هم نشی حاصلیدې. ۲: یا دې داسې اوئیلې شی چه دا د نجاشی رضی الله عنه خصوصیت وو ځکه چه درسول الله ﷺ نه د نجاشی نه علاوه په بل غائب مړی باندې د جنازې مونځ کول ثابت نه دی (۱)، والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی، وابن ماجة، قاله المنذری.

[۳۲۰۵](۲) حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ يَعْنِي ابْنَ جَعْفَرٍ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَنْطَلِقَ إِلَى أَرْضِ النَّجَاشِيِّ، فَذَكَرَ حَدِيثَهُ، قَالَ النَّجَاشِيُّ: أَشْهَدُ أَنَّهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَنَّهُ الَّذِي بَشَّرَ بِهِ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ، وَلَوْلَا مَا أَنَا فِيهِ مِنَ الْمُلْكِ، لَأَتَيْتُهُ حَتَّى أَحْمِلَ نَعْلَيْهِ".

ابوبرده دخپل پلارنه روایت کوی چه نبی علیه السلام مونږ ته حکم کړې وو چه مونږه دې د نجاشي ملك ته لاړ شو اوبیا ئې دنجاشي واقعه بیان کړه نجاشي اوئیل زه ګواهي ورکوم ددې خبرې چه محمد دالله رسول دې او محمدهغه کس دې دچاپه باره کښې چه عیسي علیه السلام زیرې ورکړې وو، اوکه چرې زه د بادشاهي په کارونو کښې مشغول نوې نو همدا اوس به زه هغه ته تلې وم اودهغه پیزار به مې ګرځول.

(۱) کذا اتذکر من بعض الاساتذة لکن ذکر صاحب عون المعبود : روي انه ﷺ صلي علي اربعة من الصحابة الاول النجاشي، وقصته في الکتب الستة وغیرها، والثاني معاویة بن معاویة المزني والثالث والرابع زید بن حارثة وجعفر بن ابي طالب، ثم بسط الروایات في ذلك، وفیه بعد ذکر الرویات والکلام علیها : والحاصل ان الامر کما قال الحافظ ابن عبدالبر والبیهقي والذهبي ان اسانید هذه الاحادیث لیست بالقویة ولکن فیه تفصیل وهو الي آخر ما ذکر)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۹۱۱۷) (صحیح الإسناد)

**قوله:** ﴿عن ابی بردة عن ابیه قال امرنا رسول الله ﷺ ان ننطلق الی ارض النجاشی، فذکر حدیثه﴾
ابوبرده د خپل پلار ابوموسی اشعری رضی الله عنه نه نقل کوی چه رسول الله ﷺ مونږ ته حکم فرمائیلې وو د هجرت الی الحبشه یعنی د مکې مکرمې نه، د هغې نه پس به د هغوی پلار هغوی ته د هجرت تفصیلات بیان کړی وی کوم چه د مصنف رحمه الله د غرض نه بیل څیز دې هم په دې وجه مصنف رحمه الله حدیث لره مختصر کولو سره اوفرمائیل، فذکر حدیثه د دې نجاشی رضی الله عنه واقعات د مسلمانانو سره د احسان اوحسن سلوک د تاریخ په کتابونو کښې مشهور دی.

په حدیث الباب کښې د هغوی د اسلام راوړلو ذکر دې هغه دا چه هغوی اووې زه ګواهي ورکوم د دې خبرې چه محمد ﷺ د الله پاک رسول دې او دا هم چه هغه نبی آخر الزمان دې د کوم بشارت چه عیسی بن مریم علیه السلام ورکړې وو، او د اسلام راوړلو په وخت ئې دا هم اووې ﴿ولولا ما انا فیه من الملک لاتیته حتی احمل نعلیه﴾ په دې کښې هغوی د خپل ترک هجرت الی المدینة عذر بیان کړې دې چه که په دې بادشاهت او حکومت کښې چه زه پکښې دې وخت یم که د دې په عوارضو او لوازمو کښې نه وې اخته نو ما به مدینې طیبې ته هجرت کړې وې او د هغوی په خدمت کښې به حاضر شوې وې تر دې چه د رسول الله ﷺ د نعلین شریفین د اوچتولو (او په خپل سر باندې د کیخودلو) سعادت به مې حاصل کړې وې، رضی الله تعالی عنه وارضاه وجعل الجنة مثواه

کوم بادشاه چه زمونږ د نبی ﷺ داسې تعریف کوی او په هغوی باندې خپل ځان قربانوی مونږ لره هم د هغوی سره محبت کول پکار دی، اګر چه رسول الله ﷺ ته د یو بادشاه یا د مخلوق د تعریف کولو او منقبت بیانولو حاجت نشته ۰ که چه د رسول الله ﷺ تعریف کونکې خو خپله رب العلمین دې، صلی الله علیه وسلم وشرف وکرم وقر وعظم

## بَابٌ فِي جَمْعِ الْمَوْتَى فِي قَبْرٍ وَالْقَبْرُ يُعَلَّمُ

**ډیر مړی په یو قبر کښې ښخول او په قبر باندې د نشان لګولو بیان**

[۳۲۰۶](۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ نَجْدَةَ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ سَالِمٍ. ح وحَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ الْفَضْلِ السِّجِسْتَانِيُّ، حَدَّثَنَا حَاتِمٌ يَعْنِي ابْنَ إِسْمَاعِيلَ، بِمَعْنَاهُ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ زَيْدٍ الْمَدَنِيِّ، عَنِ الْمُطَّلِبِ، قَالَ: لَمَّا مَاتَ عُثْمَانُ بْنُ مَظْعُونٍ، أُخْرِجَ بِجَنَازَتِهِ فَدُفِنَ، أَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا أَنْ يَأْتِيَهُ بِحَجَرٍ، فَلَمْ يَسْتَطِعْ حَمْلَهُ، فَقَامَ إِلَيْهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَحَسَرَ عَنْ ذِرَاعَيْهِ، قَالَ كَثِيرٌ: قَالَ الْمُطَّلِبُ: قَالَ الَّذِي يُخْبِرُنِي ذَلِكَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى بَيَاضِ ذِرَاعَيْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ حَسَرَ عَنْهُمَا، ثُمَّ حَمَلَهَا فَوَضَعَهَا عِنْدَ رَأْسِهِ، وَقَالَ: أَتَعَلَّمُ بِهَا قَبْرَ أَخِي، وَأَدْفِنُ إِلَيْهِ مَنْ مَاتَ مِنْ أَهْلِي".

د مطلب نه روایت دې فرمائی هرکله چه عثمان بن مظعون وفات شو اودهغه جنازه پورته کړې شوه اودفن کړې شونبی علیه السلام یو کس ته حکم اوکړو چه یوه ګټه راوړه نوهغه کس هغه ګټه نشوه اوچتولې نبی علیه السلام ورپاڅیدو ددواړه لاسونو لوستونړې ئې ونغښتل، مطلب وائی چاچه دنبی علیه السلام دا واقعه بیان کړې ده هغه وئیلی دی چه ګویا کښې زه اوس هم دنبی

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۶۷۲) (حسن)

ﷺ ددوارو لاسونو سپین والې وینم چه دواړه متې ئې نغښتلې وې اوکانړې یې اوچت کړې وو اودعثمان په قبر کښې ئې دهغه دسر طرف ته ئې کیخودلې وو او فرمائیلی ئې وو: اې قبره تاته خبرشته چه داکس زما ورور ئې اوزماپه خاندان کښې چه څوك هم وفات کیږې نودلته به ئې دده په خواو شاه کښې دفن کوم.

په دې باب کښې مصنف رحمه الله چه کوم حدیث ذکر کړې دې د هغې مضمون دا دې چه کله د عثمان بن مظعون رضی الله عنه وفات اوشو کوم چه د رسول الله ﷺ رضاعی رور وو، نو چه کله هغه دفن کړې شو نو رسول الله ﷺ یو صحابی ته حکم اوفرمائیلو چه یو لوئې کانړې راوړئ هغه لاړو خو هغوی اوچت نه کړې شو، په دې باندې رسول الله ﷺ پخپله تشریف یوړو او رسول الله ﷺ خپل لستونړی مبارک اوچت کړل او هغه کانړې ئې اوچت کړو او د عثمان بن مظعون رضی الله عنه سر ته ئې هغه کیخودلو او وې فرمائیل چه دا زه د علامت په طور ږدم، او دا ئې هم اوفرمائیل او هم ده ته نزدې به نور خپلوان دفن کوم د دې نه معلومه شوه چه د قبر سر ته د نخښې په طور یو کانړې وغیره کیخودل مناسب دی، او دا هم معلومه شوه چه که د یو خاندان او کورنئ خلق په یو ځائې کښې دفن کړې شی نو غوره ده. په ترجمة الباب کښې دوه اجزاء وو، اعلام قبر یعنی په قبر باندې یو نخښه لګول، او دویم جزء جمع الموتی فی قبر دې، د حدیث الباب نه جزء ثانی خو ثابتیږی، د جزء اول په ثبوت کښې اشکال دې، خو دا چه اوئیلې شی چه په ترجمة کښې د قبر نه مراد قبرستان او مقبره ده. ځکه چه په بعض نسخو کښې هم دغه شان دی ، فلا اشکال حینئذ

## بَابٌ فِي الْحَفَّارِ يَجِدُ الْعَظْمَ هَلْ يَتَنَكَّبُ ذٰلِكَ الْمَكَانَ

### قبر کنستونکی چه کله د بل مړی هډوکی بیامومی نو ماتوی دې نه بلکه بل چرته دې قبر جوړ کړی دفن دې کړی

یعنی که قبر کنستو والا یو قبر کنی او بیا په هغه ځائې کښې د یو مړی هډوکې راوخی نو آیا هغه ځائې پریخودلو سره دې بل ځائې قبر اوکنی؟

[۳۲۰۷](۱)حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ سَعْدٍ يَعْنِي ابْنَ سَعِيدٍ، عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "كَسْرُ عَظْمِ الْمَيِّتِ، كَكَسْرِهِ حَيًّا".

دام المومنین عائشة رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی. دمړي هډوکی ماتول داسې دي لکه د ژوندی انسان هډوکی ماتول

﴿ کسر عظم المیت ککسره حیا ﴾

عائشه رضی الله عنها فرمائی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د مړی هډوکی ماتول داسې بده ګناه ده لکه د ژوندی هډوکی ماتول

د دې حدیث نه دومره خو معلومیږی چه قبر کنستلو والا ته پکار دی چه دا هډوکې دې مات نه کړی خو پوره ترجمة الباب د دې نه نۀ ثابتیږی، خو د دې حدیث چه کوم سبب

(۱): سنن ابن ماجه/الجنائز ۶۳ (۱۶۱۶)، (تحفة الأشراف: ۱۷۸۹۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵۸/۶، ۱۰۰، ۱۰۵، ۱۶۸، ۲۰۰، ۲۶۴) (صحیح)

دې په کومه موقع باندې چه رسول الله ﷺ دا حديث بيان فرمائيلې وو د هغې نه د ترجمة الباب حکم معلوميږي، او هغه روايت دا دې کوم حضرت په بذل کښې د درجات مرقاة الصعود نه نقل کړې دې هغه دا چه جابر رضي الله عنه فرمائي چه يو ځل مونږ د رسول الله ﷺ سره د يوې جنازې سره قبرستان ته لاړو، چه مونږ هلته اورسيدو نو قبر کنستلې کيدو رسول الله ﷺ د قبر په غاړه باندې کيناستلو، قبر کنستلو والا يو هډوکې راويستلو او رسول الله ﷺ ته ئې اوښودلو چه ماتولو ئې نو رسول الله ﷺ د هغې د ماتولو نه منع اوفرمائيله وذکر ما في حديث الباب، او دا ئې هم اوفرمائيل چه دا هډوکې هم په دې قبر کښې يو طرف ته ښخ کړه، د دې نه د ترجمة الباب حکم معلوم شو چه بل ځائې کښې د قبر کنستلو ضرورت نشته، بلکه هم هلته دې دا هډوکي پټ کړې شي، خو په احترام سره مات دې نه کړې شي، والحديث اخرجه ابن ماجة، قاله المنذري

## باب في اللَّحْدِ

### دلحد (بغلی) قبر جوړولو بيان

[۳۲۰۸](۱) حَدَّثَنَا إِسْحَاق بْنُ إِسْمَاعِيل، حَدَّثَنَا حَكَّامُ بْنُ سَلْمٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ عَبْدِ الْأَعْلَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اللَّحْدُ لَنَا، وَالشَّقُّ لِغَيْرِنَا".

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دی - فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي: لحد زمونږ دپاره دي او شق دنورو خلقو دپاره وي.

**قوله:** (اللحد لنا والشق لغيرنا) دقبر دوه قسمونه دی لحد اوشق، شق خو هغه دې کوم چه زمونږ په علاقه کښې رواج دې يعنی نيغ قبر، او لحد د ترخ والا قبر د شق کولو نه پس د قبلې طرف ته يو غار شان کنستلې شي، او بيا مړې په هغې کښې ږدلې شي، د شا د طرف نه هغه بندولې شي، د کوم ځائې زمکه چه سخته وی هلته دا قبر جوړيدې شي، جائز دواړه قسمه دی، په صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې يو صحابی لاحد وو يعنی لحد به ئې جوړولو --- ابوطلحه انصاری رضي الله عنه، او يو صحابی شقاق وو هغه به شق جوړولو يعنی ابوعبيدة بن الجراح رضي الله عنه.

### (د لنا او غيرنا نه مراد)

(لنا) نه مراد مومنان د امت محمدية ﷺ او د (غيرنا) نه مراد مومنانو د امم سابقه، او مطلب دا دې چه مونږ لحد اختياروو هغه زمونږ دپاره اولی دې د شق په مقابله کښې، په دې صورت کښې د دې نه مقصود د لحد فضيلت بيانول دی، د شق نه منع مقصود نه ده ځکه چه ابوعبيده رضي الله عنه به سره د خپل جلالت شان نه په دين او امانت کښې، دا کار کولو، بله دا چه که شق ممنوع وې نو صحابه کرامو رضي الله عنهم به د رسول الله ﷺ د قبر په باره کښې دا فيصله نه فرمائيله چه په لاحد او شقاق دواړو کښې چه کوم وړاندې راشي هم هغه به اختيارولې شي، او د مسند احمد په يو روايت کښې دی (اللحد لنا والشق لغيرنا من اهل الکتاب) شيخ

۱): سنن الترمذي/الجنائز ۵۳ (۱۰۴۵)، سنن النسائي/الجنائز ۸۵ (۲۰۱۱)، سنن ابن ماجه/الجنائز ۳۹ (۱۵۵٤)، (تحفة الأشراف: ۵۵٤۲) (صحيح)

عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله فرمائي چه که مراد د لنا نه مسلمانان او د لغيرنا نه يهود او نصارى وى نو بيا خو په دې صورت کښې د لحد فضيلت بلکه د شق په کراهت باندې د دې حديث دلالت ښکاره دې او که مراد د لغيرنا نه امم سابقه دى نو په دې کښې صرف اشاره ده د لحد افضليت طرف ته (عون المعبود) او وئيلې شوې دى چه په لنا کښې د ضمير د جمع نه خپله د متکلم ذات دې يعنى لى يعنى رسول الله ﷺ د خپل ځان په باره کښې فرمائي چه زه د خپل ځان دپاره لحد غوره کوم، او د غيرنا نه مراد نور خلق. ففى الاوجز ۲: قال الطيبى يمكن ان يكون عليه الصلاة والسلام عنى بضمير الجمع نفسه اى اوثر لى اللحد وهو اخبار عن الكائن فيكون معجزة، قال السيد هذا التوجيه بعيد جدا لقوله علية الصلوة والسلام الشق لغيرنا، او د دې نه پس ئې يو احتمال دا ليکلې دې چه د لنا نه مراد معاشر الانبياء يعنى اللحد لنا معاشر الانبياء والشق جائز لغيرنا آهـ والحديث اخرجه الترمذى والنسائى وابن ماجة، قاله المنذرى

## بَابٌ كَمْ يَدْخُلُ الْقَبْرَ

### څو کسان به مړې قبر ته کوزوی؟

يعنى مړی ته په قبر کښې د کيخودلو دپاره څومره سړی کوز شي.

[۳۲۰۹](۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي خَالِدٍ، عَنْ عَامِرٍ، قَالَ: "غَسَّلَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِيٌّ، وَالْفَضْلُ، وَأُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ، وَهُمْ أَدْخَلُوهُ قَبْرَهُ، قَالَ: حَدَّثَنَا مُرَحَّبٌ، أَوِ ابْنُ أَبِي مُرَحَّبٍ، أَنَّهُمْ أَدْخَلُوا مَعَهُمْ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ عَوْفٍ، فَلَمَّا فَرَغَ عَلِيٌّ، قَالَ: إِنَّمَا يَلِي الرَّجُلَ أَهْلُهُ".

د عامر شعبي نه روايت دې فرمائي چه علي کرم الله وجهه او فضل بن عباس او اسامه بن زيد رسول پاک صلي الله عليه وسلم ته غسل ورکړل او هم دوى قبر ته کوز کړو، مرحب يا ابن أبى مرحب وئيلى دى چه دوى د ځان سره عبدالرحمن بن عوف هم ملګري کړي وو، کله چه دوى دنبى ﷺ د تدفين نه فارغ شول نو علي ها رفرمائيل دهر سړى خدمت د هغه د کور خلق کوي.

﴿ عن عامر قال غسل رسول الله ﷺ على والفضل واسامة بن زيد وهم ادخلوه قبره ﴾

يعنى رسول الله ﷺ ته غسل ورکونکى دا درې حضرات وو، على، فضل بن عباس او اسامة بن زيد رضي الله عنهم او هم دې کسانو رسول الله ﷺ قبر ته کوز کړې وو، او وراندې په يو روايت کښې دى چه دې درې وارو خپل ځان سره عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه هم شامل کړي وو، يعنى اصل خو دا درې کسان وو چه د کور وو او دوى ضرورة عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه هم شامل کړې وو، ﴿ قال على انما يلى الرجل اهله ﴾ يعنى کله چه د رسول الله ﷺ د تدفين نه دا حضرات فارغ شو نو چونکه نور لوئې لوئې حضرات صحابه کرام رضي الله عنهم ځان قربانونکى موجود وو کوم چه په دې عمل کښې شريک شوې نه وو يعنى په غسل او قبر ته کوزولو کښې نو په دې وجه على رضي الله عنه د معذرت په طور دا جمله اوفرمائيله چه مړی لره د هغه د کور خلق دفن کوى، مطلب خو ښکاره دې چه دا فرمائيل غواړى چه د دې کار کونکى مونږ په دې وجه نه يو چه مونږ د نورو نه افضل نه يو، بلکه وجه دا ده کومه چه هغوى بيان

---

۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۲۴۶) (صحيح)

اوفرمائیله، اصل کښې دا مقام مقام د تنافس وو، او د ډیر شرف خیز وو کوم چه الله پاک هغوی ته نصیب اوفرمائیلو اهل بیت کښې د کیدو د وجې نه.

[۳۲۱۰]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ أَبِي خَالِدٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ أَبِي مُرَحَّبٍ، "أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ عَوْفٍ نَزَلَ فِي قَبْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَيْهِمْ أَرْبَعَةً".

د ابو مرحب نه روایت دې فرمائی چه عبدالرحمن بن عوف دنبی علیه السلام قبر ته کوزشوې وو او وئیل ئې چه ګویا کښې هغه څلور کسان زه اوس هم وینم (علي کرم الله وجهه اوفضل بن عباس او اسامه بن زید او عبدالرحمن بن عوف).

د څلورو سړو قبر ته کوزیدل کوم چه زمونږ رواج دې یعنی شق په دې کښې خو ګران دې خو په لحد کښې ګنجائش وی.

## بَابٌ فِي الْمَيِّتِ يُدْخَلُ مِنْ قِبَلِ رِجْلَيْهِ

### مړې په قبر ته د خپو د اړخه داخلولې شی

یعنی د مړی په قبر کښې د کوزولو کیفیت څه کیدل پکار دی؟ په دې کښې دوه مذاهب دی یو هغه کوم چه احنافو اختیار کړې دې چه مړې دې قبر ته د قبلې د طرف نه کوز کړې شی یعنی د مړی کټ دې د قبر ښی طرف ته په دې عرض کیخودلې شی او بیا دې د هغه پوره بدن یو شان په دې کښې داخل کړې شی، دویمه طریقه دا ده کومه چه شوافعو او حنابله اختیار کړې ده کومه چه حدیث الباب کښې ده چه مړې لره قبر ته د خپو د طرف نه داخلول اولی دی په دې صورت کښې دې د مړی کټ د قبر خپو طرف ته اوړ د کیخودلې شی او بیا به په مزه مزه د سر د طرف نه قبر ته داخل کړې شی او په دې کښې یوه دریمه طریقه دا ده کوم چه د امام شافعی رحمه الله یو قول دې چه مړې دې قبر ته د قبر د سر د طرف نه داخل کړې شی، لهذا دا درې اقوال شو، کذا فی العون عن سبل السلام.

علامه شوکانی رحمه الله د احنافو وغیره په دلیل کښې دا لیکلې دی چه ﴿انه یسر﴾ چه دا طریقه د داخلولو زیاته آسانه ده او دا ئې هم وئیلې دی چه د سنت اتباع غوره ده د رائې نه، خو صاحب د سبل السلام وئیلې دی چه دا خبره نه ده قلت بل ورد النص فانه اخرج الترمذی من حدیث ابن عباس رضی الله عنهما ما هو نص فی ادخال المیت من قبل القبلة وانه حدیث حسن فیستفاد من المجموع انه فعل مخیر فیه آه په حاشیه د هدایه کښې حضرت مولانا محمد حسن سنبهلی رحمه الله دا تخیر د امام مالک او اهل ظواهر مذهب لیکلې دې، یعنی د هغوی په نزد اختیار دې او دواړه برابر دی، دا حدیث د ابن عباس رضی الله عنهما کوم ته چه صاحب د السبل اشاره کړې ده هغه دې کوم چه امام ترمذی رحمه الله په باب ما جاء فی الدفن باللیل کښې ذکر فرمائیلې دې،

﴿عن ابن عباس رضی الله عنهما ان النبی صلی الله علیه وسلم دخل قبرا لیلا فاسرج له سرج فاخذه من قبل القبلة وقال رحمک الله ان کنت لاواها تلاء للقران وکبر علیه اربعا﴾ قال ابو عیسی حدیث ابن عباس رضی الله عنهما حدیث حسن قد ذهب بعض اهل العلم الی هذا وقال یدخل المیت القبر من قبل القبلة، وقال بعضهم یسل سلا آه.

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۲٤٦) (صحیح)

(نبی کریم ﷺ قبر ته څنګه کوز کړې شو؟)

اوس پاتې شوه دا مسئله چه خپله رسول الله ﷺ د کوم طرف نه داخل کړې شوې وو، نو په دې سلسله کښې روايت مختلف دی پس په بيهقی کښې دی په روايت د ابن عباس او ابن مسعود رضي الله عنهم انهم ادخلوا النبی ﷺ من قبل القبلة، لكن ضعفه البيهقی او په مسند شافعی رحمه الله کښې دی ان رسول الله ﷺ سل من قبل راسه، او په مراسيل دابی داؤد کښې دی عن النخعی انه عليه السلام ادخل من قبل القبلة ولم يستل سلا (زيلعی ٢٩٩/٢) وفی الهداية : ويدخل الميت مما يلی القبلة خلافا للشافعی فان عنده يسل سلا، لما روی انه ﷺ سل سلا ولنا ان جانب القبلة معظم فيستحب الادخال منه، واضطربت الروايات فی ادخال النبی ﷺ آهـ د رسول الله ﷺ په باره کښې چه دا يو قول دې د سل د دې يو جواب زمونږ په نزد د بعض علماء کرامو نه دا منقول دې چه په حجره شريفه کښې چه په کوم ځائې کښې هغوی دفن کړې شوې دی په هغې کښې د قبلې طرف ته د ديوال د نزدې والی د وجې نه ګنجائش نه وو چه کټ هغه طرف ته کېښودلې شوې وې، والله تعالی اعلم بالصواب په دې موضوع باندې د مولانا عبدالحی رحمه الله يو مستقل تاليف دې، ﴿ كشف الستر عن ادخال الميت فی القبر ﴾

[٣٢١١]([1]) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، قَالَ: "أَوْصَى الْحَارِثُ أَنْ يُصَلِّيَ عَلَيْهِ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَزِيدَ، فَصَلَّى عَلَيْهِ، ثُمَّ أَدْخَلَهُ الْقَبْرَ مِنْ قِبَلِ رِجْلَيِ الْقَبْرِ، وَقَالَ: هَذَا مِنَ السُّنَّةِ".

دابواسحاق نه روايت دې فرمائی چه حارث داوصيت کړې ووچه عبدالله بن يزيد به وربانديې جنازه کوي، نوهغه وربانديې جنازه وکړله اودخپوداړخه ئې قبرته کوزکړو او وئې فرمائيل داسنت طريقه ده.

**قوله:** ﴿ اوصی الحارث ان يصلی عليه عبدالله بن يزيد فصلی عليه ثم ادخله القبر من قبل رجلی القبر وقال هذا من السنة ﴾ امام ترمذی رحمه الله په دې مسئله باندې مستقل باب نه دې قائم کړې بلکه ﴿ باب الدفن بالليل ﴾ د لاندې ئې حديث د ابن عباس رضي الله عنهما کوم چه مخکښې تير شو ذکر فرمائيلو سره دا مسئله ضمنا هم په دې باب کښې بيان کړې ده، او په ابن ماجة کښې د دې مضمون دوه روايتونه ذکر شوې دی، عن ابی رافع قال سل رسول الله ﷺ سعد او رش علی قبره ماء، او دويم عن ابی سعيد ان رسول الله ﷺ اخذ من قبل القبلة واستل استلالا..... او په يو نسخه کښې داسی دی : واستقبل استقبالا.

## بَابٌ كَيْفَ يَجْلِسُ عِنْدَ الْقَبْرِ
### د قبر سره ناسته په څه طريقه بايد کار ده؟

[٣٢١٢]([2]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنِ الْمِنْهَالِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ زَاذَانَ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: "خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَنَازَةِ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، فَانْتَهَيْنَا إِلَى

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩٦٧٥) (صحيح)

[2]): سنن النسائي/الجنائز ٨١ (٢٠٠٣)، سنن ابن ماجه/الجنائز ٣٧ (١٥٤٨)، (تحفة الأشراف: ١٧٥٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٨٧/٤، ٢٩٥، ٢٩٧، ٢٩٦) ويأتي هذا الحديث في السنة (٤٧٥٣، ٤٧٥٤) (صحيح)

الْقَبْرِ، وَلَمْ يُلْحَدْ بَعْدُ، فَجَلَسَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ، وَجَلَسْنَا مَعَهُ".

د براء بن عازب رضی اللہ عنہ نه روايت دي فرمائي چه مونږ دنبي عليه السلام سره د يو انصاري جنازي ته لاړو قبرته ورسيدو خو په دې وخت کښې قبر نه وو تيار شوې نونبي عليه السلام (د قبرپه خوا کښې) قبلې ته مخامخ کيناستو او مونږ هم ورسره کيناستو.

يعني که په قبر تياريدو کښې وخت وی او هغه کښتلې کيږی نو په داسې صورت کښې خلقو لره څه کول پکار دی، عام طورخلق په خبرو اترو او فضولياتو کښې اخته شی، په دې باره کښې په حديث الباب کښې دا دی سيدنا براء بن عازب رضی اللہ عنہ فرمائي چه مونږ د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم سره د يو انصاری صحابی جنازې دپاره قبرستان ته لاړو، قبر تر اوسه تيار شوې نه وو نو رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم قبلې طرف ته خاموش کيناستلو، مونږ هم د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم سره هم هغه شان کيناستلو، په بذل کښې دی چه د نسائی په روايت کښې دا زيادت دې، ﴿ وجلسنا حوله كان على رؤسنا الطير ﴾ غوره دا ده چه دې موقعې لره غنيمت ګڼړلو سره د مړی د ايصال ثواب دپاره تلاوت اوکړې شی، د حضرت شيخ يوه لور وادۀ شوې چه د هغې په ځوانئ کښې وفات اوشو اوحضرت شيخ د جنازې سره قبرستان ته تشريف اوړې وو، قبر کښتلې کيدو خلق د يو سوری لاندې په انتظار کښې ناست وو، دا احقر هم د حضرت شيخ سره ناست وو نو حضرت ماته اووئيل چه سورة ياسين اولوله، او خپله ئې هم مسلسل لوستلو، يغفر الله تعالى لنا ولها. والحديث اخرجه النسائی وابن ماجة، قاله المنذری

## بَابٌ فِي الدُّعَاءِ لِلْمَيِّتِ إِذَا وُضِعَ فِي قَبْرِهِ

### باب: مړي په قبر کښې د ايښودو په وخت د دعا بيان

[٣٢١٣](¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ ح وحَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي الصِّدِّيقِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، كَانَ إِذَا وَضَعَ الْمَيِّتَ فِي الْقَبْرِ، قَالَ: بِسْمِ اللَّهِ، وَعَلَى سُنَّةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "، هَذَا لَفْظُ مُسْلِمٍ.

دابن عمر رضی اللہ عنہ نه روايت دې فرمائي چه کله به نبي عليه السلام مړې په قبرکښې کيخودو نو دادعابه ئې ووئيله« بسم الله و على سنة رسول الله -صلى الله عليه وسلم" ابوداود وئيلی دی دا دمسلم بن ابراهيم درروايت الفاظ دي

يعني مړی لره په قبر کښې د کيخودلو په وخت څه دعا کول پکار دی، په حديث الباب کښې د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم دا معمول ذکر کړې شوې دې هغوی به په دې وخت کښې ﴿بسم الله وعلى سنة رسول الله ﴾ (صلی اللہ علیہ وسلم) لوستل

والحديث اخرجه النسائی مسندا وموقوفا، قاله المنذری

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٦٦٠)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الجنائز ٥٤ (١٠٤٦)، سنن ابن ماجه/الجنائز ٣٨ (١٥٥٠)، مسند احمد (٢/٢٧، ٤٠، ٥٩، ٦٩، ١٢٧) (صحيح)

## بَابُ الرَّجُلِ يَمُوتُ لَهُ قَرَابَةٌ مُشْرِكٌ

### د کوم مسلمان چه کوم مشرک رشته دار مړشي نوڅه کول پکار دي؟

يعني که د يو مسلمان کافر خپلوان مړ شي نو څه به کوي!

[۳۲۱٤]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، حَدَّثَنِي أَبُو إِسْحَاقَ، عَنْ نَاجِيَةَ بْنِ كَعْبٍ، عَنْ عَلِيٍّ عَلَيْهِ السَّلَامُ، قَالَ: قُلْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ عَمَّكَ الشَّيْخَ الضَّالَّ قَدْ مَاتَ، قَالَ: اذْهَبْ فَوَارِ أَبَاكَ، ثُمَّ لَا تُحْدِثَنَّ شَيْئًا حَتَّى تَأْتِيَنِي، فَذَهَبْتُ فَوَارَيْتُهُ، وَجِئْتُهُ، فَأَمَرَنِي، فَاغْتَسَلْتُ وَدَعَا لِي".

د علی رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه عرض مې اوکړو اې د الله رسوله چه ستا بوډا تره په ګمراهئ کښې وفات شوې دې (دعلی رضی الله عنه والد محترم ابوطالب صاحب نبی عليه السلام اوفرمائيل لاړ شه خپل والد دفن کړه بياراشه اوترڅوچه ماته نه ئې راغلې نو څه کارمه کوه، دې وائی چنانچه زه لاړم خپل پلاري دفن کړو بيا راغلم، نبی عليه السلام راته دغسل کولو حکم اوکړو ماغسل اوکړل اوزماد پاره ئې دعا اوغوښتله.

**قوله:** ﴿عن علی رضی الله عنه قال قلت للنبی صلی الله علیه وسلم ان عمک الشيخ الضال قد مات الخ﴾ علی رضی الله عنه فرمائی چه ما رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړو چه ستاسو بوډا ګمراه تره وفات شو، په دې باندې رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل: نو بيا لاړ شه او پلار دې ښخ کړه، او دا ئې هم اوفرمائيل د اهتمام په طور چه د ښخولو نه پس په بل څه کار کښې مشغول نه شې فورا راتلو سره ماته خبر راکړه (ثم لا تحدثن شينا ﴾ دا د احداث نه دې چه د هغې معنی ده څه کار کول، هغه فرمائی چه زه فورا لاړم او دهغه د ښخولو نه پس رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغلم نو هغوی ماته د غسل کولوحکم اوکړو، اوزماد پاره ئې دعا اوفرمائيله. والحديث اخرجه النسائی، قاله المنذری

## بَابٌ فِي تَعْمِيقِ الْقَبْرِ

### د قبر د ژورولو بيان

يعني قبر څومره ژور کنستل پکار دي؟ قالت الحنفية : ان يعمق الى الصدر والا فالى السترة (بذل) وفی نور الايضاح او يحفر القبر نصف القامة او الى الصدر، وان يزد کان حسنا، او د امام شافعی رحمه الله په نزد د قامت په اندازه، وقال مالک لا حد لاعماقه (عون)

[۳۲۱۵]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، أَنَّ سُلَيْمَانَ بْنَ الْمُغِيرَةِ حَدَّثَهُمْ، عَنْ حُمَيْدٍ يَعْنِي ابْنَ هِلَالٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عَامِرٍ، قَالَ: جَاءَتِ الْأَنْصَارُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ أُحُدٍ، فَقَالُوا: "أَصَابَنَا قَرْحٌ، وَجَهْدٌ، فَكَيْفَ تَأْمُرُنَا؟، قَالَ: احْفِرُوا، وَأَوْسِعُوا، وَاجْعَلُوا الرَّجُلَيْنِ وَالثَّلَاثَةَ فِي الْقَبْرِ، قِيلَ: فَأَيُّهُمْ يُقَدَّمُ؟، قَالَ: أَكْثَرُهُمْ قُرْآنًا، قَالَ: أُصِيبَ أَبِي يَوْمَئِذٍ عَامِرٌ بَيْنَ اثْنَيْنِ، أَوْ قَالَ: وَاحِدٌ".

دهشام بن عامر رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه دغزوه احدپه ورځ انصار درسول الله په

[1]: سنن النسائي/الجنائز ٨٤ (٢٠٠٨)، (تحفة الأشراف: ١٠٢٨٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٩٧/١، ١٣١) (صحيح)

[1]: سنن الترمذي/الجهاد ٣٣ (١٧١٣)، سنن النسائي/الجنائز ٨٦ (٢٠١٢)، ٨٧ (٢٠١٣)، ٩٠ (٢٠١٧)، ٩١ (٢٠٢٠)، سنن ابن ماجه/الجنائز ٤١ (١٥٦٠)، (تحفة الأشراف: ١١٧٣١، ١٨٦٧٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٩/٤، ٢٠) (صحيح)

خدمت کښې حاضر شول اوعرض ئې اوکړو چه اې الله رسوله مونږ زخمي شوي اوستړي شوي يو اياز مونږ دپاره څه حکم شته نبی ﷺ ورته اوفرمائيل قبرونه ازاد جوړوئ اوکه ضرورت وي نودوه دوه او درې درې کسان په يوقبر کښې دفن کړئ مونږ عرض اوکړو چه مونږ به کوم يوقبرته مخکښې کوزوو نبی ﷺ اوفرمائيل څوک چه دقرآن زيات عالم وي هشام وائی زماوالد عامرهم په دې ورځ شهيد شوي وو اودهغه سره يويادوه کسان دفن کړې شوي وو.

**قوله:** ﴿عن هشام بن عامر قال جاءت الانصار الى رسول الله ﷺ يوم احد فقالوا اصابنا قرح وجهد الخ﴾ يعنى په جنګ احد کښې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې بعض انصار راغلل، او عرض ئې اوکړو يا رسول الله ﷺ تاسو ته معلومه ده چه مونږ زخميان يو او په تکليف کښې يو نو اوس څه کول پکار دی؟ يعنی اويا قبرونه کنستل ډير ګران کار دې نو په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه قبرونه ښه ژور او فراخه اوکنئ او دوه دوه او درې درې په يو يو قبر کښې دفن کړئ، هشام وائی چه زما پلار عامر هم په دې ورځ شهيد شوې وو او چه د دوه کسانو ترمينځه دفن کړې شوې وو يوځائې، او د نسائی په روايت کښې دی ﴿فکان ابی ثالث ثلاثة فی قبر﴾ بغير د شک نه، يعنی په کوم قبر کښې چه زما پلار دفن کړې شوې وو په هغې کښې د هغوی نه علاوه دوه نور هم وو.

والحديث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری

[٣٢١٦](¹) حَدَّثَنَا أَبُو صَالِحٍ يَعْنِي الْأَنْطَاكِيَّ، أَخْبَرَنَا أَبُو إِسْحَاق يَعْنِي الْفَزَارِيَّ، عَنِ الثَّوْرِيِّ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ، بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ زَادَ فِيهِ، وَأَعْمِقُوا.

د حميد بن هلال نه دتيرشوی روايت په شان روايت منقول دې البته په دې کښې دا اضافه ده چه قبر ژور وکنئ.

[٣٢١٧](²) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ يَعْنِي ابْنَ هِلَالٍ، عَنْ سَعْدِ بْنِ هِشَامِ بْنِ عَامِرٍ، بِهَذَا الْحَدِيثِ.

ترجمه: دحضرت سعد بن هشام بن عامر نه هم دا حديث رانقل دې.

## بَابٌ فِي تَسْوِيَةِ الْقَبْرِ

### د قبر د برابرولو بيان

[٣٢١٨](³) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنَا حَبِيبُ بْنُ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ أَبِي هَيَّاجٍ الْأَسَدِيِّ، قَالَ: بَعَثَنِي عَلِيٌّ، قَالَ لِي: "أَبْعَثُكَ عَلَى مَا بَعَثَنِي عَلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! أَنْ لَا أَدَعَ قَبْرًا مُشْرِفًا إِلَّا سَوَّيْتُهُ، وَلَا تِمْثَالًا إِلَّا طَمَسْتُهُ".

¹): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١١٧٣١، ١٨٦٧٦) (صحيح)

²): انظر حديث رقم: (٣٢١٥)، (تحفة الأشراف: ١١٧٣١، ١٨٦٧٦) (صحيح)

³): صحيح مسلم/الجنائز ٣١ (٩٦٩)، سنن الترمذي/الجنائز ٥٦ (١٠٤٩)، سنن النسائي/الجنائز ٩٩ (٢٠٣٣)، (تحفة الأشراف: ١٠٠٨٣)وقد أخرجه: مسند احمد (١/٩٦، ٨٩، ١١١، ١٢٨) (صحيح)

دابوهياج اسدي نه روايت دې فرمائي چه علي رضي الله عنه اوليږلم اوراته ئي اوفرمائيل چه زه دې په داسې کار پسې ليږم په کوم پسې چه زه نبي عليه السلام ليږلې وم هغه دا چه زه به هيڅ يو لوړ قبر بغيرد برابرولونه نه پريږدم اوهيڅ يو تصوير به بغير دضايع کولونه نه پريږدم.

﴿ عن ابی هياج الاسدی قال بعثنی علی رضي الله عنه قال الی ابعثک علی ما بعثنی عليه رسول الله ﷺ ان لا ادع قبرا مشرفا الا سويته ولا تمثالا الا طمسته ﴾

او هياج اسدي وائي چه ما ته علي رضي الله عنه اوفرمائيل چه زه تا د هغه کار دپاره ليږم د کوم کار دپاره چه زه رسول الله ﷺ ليږلې اوم بيا ئې وړاندې هغه کار بيان کړو چه څه دې. چه نه به پريږدم زه هيڅ يو قبر چه لوړ وی مګر دا چه هغه برابر کړم يعنی د زمکې سره، مراد ترې قرب دې، او نه به پريږدم يو تصوير هم مګر دا چه هغه ختم کړم.

په دې حديث کښې د ارتفاع دقبر نه منع کړې شوې ده چه قبر دې زيات لوړ جوړ نه کړې شی، دا امر خو مجمع عليه دې چه قبر زيات اوچت نه دی جوړول پکار، زمکې ته نزدې لږ شان اوچتول پکار دی، قال النووی يرفع نحو شبر.

دويم څيز کوم چه په دې قبر کښې مذکور دې هغه تسوية القبر دې لکه چه په ترجمة الباب کښې دی، اوس دا خبره چه د تسوية نه مراد څه دې؟ جمهور وائی چه د دې نه مراد عدم الرفع الزائد دې چه زيات لوړ نه وی، او دويم قول په دې کښې دا دې چه د دې نه مراد تسطيح دې، يعنی قبر لره مسطح جوړول، دا مسئله مختلف فيه ده چه په قبر کښې تسنيم اولې دې يا تسطيح؟ ائمه ثلاث چه احناف هم پکښې دی د تسنيم دقبر قائل دی يعنی قبر مسنم يعنی د قب په شان کيدل پکار دی، امام شافعي رحمه الله فرمائي چه د قبر مسطح کيدل پکار دی.

د رسول الله ﷺ د قبر په باره کښې روايات مختلف دی، په هدايه کښې دی : ويسنم القبر ولا يسطح ای لا يربع لانه ﷺ نهی عن تربيع القبور، من شاهد قبره اخبر انه مسنم، يعنی د رسول الله ﷺ د قبر کتونکو وئيلې دی چه هغه مسنم دې، قال الحافظ فی الدراية : ويعارضه ما روی من عدة طرق من انها کانت مسطحة، ثم قال: وجمع بينهما الحاکم بانها کانت اولا کذالک ای مسطحة ثم لما سقط الجدارسنمت، يعنی حاکم د رسول الله ﷺ د قبر په باره کښې په اختلاف د رواياتو کښې تطبيق داسې فرمائيلې دې چه په شروع کښې خو هغه مسطح وو (کما قال الشافعي) بيا چه کله په يو زمانه کښې (په خلافت د وليد بن عبدالملک او په امارة د عمر بن عبدالعزيز رحمه الله ) کښې د حجرې شريف ديوال اوغورځيدو نو هغه وخت مسنم جوړ کړې شوې وو، قلت واخرج البخاری فی صحيحه عن سفيان التمار انه رای قبر النبی ﷺ مسنما آهـ (عون) والحديث اخرجه مسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری

[٣٢١٩](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ، أَنَّ أَبَا عَلِيٍّ الْهَمْدَانِيَّ حَدَّثَهُ، قَالَ: "كُنَّا مَعَ فَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ بِرُودِسَ مِنْ أَرْضِ الرُّومِ، فَتُوُفِّيَ صَاحِبٌ لَنَا، فَأَمَرَ فَضَالَةُ بِقَبْرِهِ

[1] : صحيح مسلم/الجنائز ٣١ (٩٦٨)، سنن النسائي/الجنائز ٩٩ (٢٠٣٢)، (تحفة الأشراف: ١١٠٢٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٨/٦، ٢١) (صحيح)

فَسُوِّيَ، ثُمَّ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُ بِتَسْوِيَتِهَا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رُودِسُ جَزِيرَةٌ فِي الْبَحْرِ.

د ابوعلی همدانی نه روایت دې فرمائی چه مونږ دفضاله بن عبید سره د اسکندریه نزدې جزیره (رودس مقام کښې وو کوم چه په روم کښې واقع دې اوهلته زمونږ یو ملګرې وفات شو فضاله رضی الله عنه حکم اوکړو اودهغه قبر دزمکې سره برابر جوړ کړې شو ددې نه پس مابیا دنبی علیه السلام نه واوریدل چه د قبرونودبرابرولوحکم ئې کولو (یعنی دزمکې سره) نه چه ددې دلوړولو، ابوداود وائی رودس دسمندرسره د یوې جزیرې نوم دې.

**قوله:** ﴿کما عند فضالة بن عبید بروذس بارض الروم الخ﴾ ابو علی همدانی وائی چه مونږ د فضالة بن عبید رضی الله عنه سره وو په مقام روذس کښې چه په ملک د روم کښې دې، زمونږ د یو ملګرې وفات اوشو نو فضاله رضی الله عنه د هغه دپاره قبر جوړ کړو چه هغه ئې د زمکې نه زیات اوچت نه کړو (علی قول الجمهور) یا مسطح جوړ کړې شو غیر مسنم او فرمائی چه ما خپله د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه واوریدل چه هغوی به هم د دې حکم فرمائیلو.

وړاندې مصنف رحمه الله فرمائی چه روذس یو جزیره ده په بحر روم کښې، د روذس په ضبط کښې هم کافی اختلاف دې چه بضم الراء دې یا بفتح الراء او د واؤ نه پس دال مهمله دې یا ذال معجمه، هسې دا هم هغه ځائې دې کوم چه په روډس مشهور دې د یورپ په علاقه کښې، والحدیث اخرجه مسلم والنسائی، قاله المنذری

[٣٢٢٠] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ بْنِ هَانِئٍ، عَنِ الْقَاسِمِ، قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى عَائِشَةَ، فَقُلْتُ: يَا أُمَّهْ، اكْشِفِي لِي عَنْ قَبْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَصَاحِبَيْهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، فَكَشَفَتْ لِي عَنْ ثَلَاثَةِ قُبُورٍ، لَا مُشْرِفَةٍ وَلَا لَاطِئَةٍ، مَبْطُوحَةٍ بِبَطْحَاءِ الْعَرْصَةِ الْحَمْرَاءِ"، قَالَ أَبُو عَلِيٍّ: "يُقَالُ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُقَدَّمٌ، وَأَبُو بَكْرٍ عِنْدَ رَأْسِهِ، وَعُمَرُ عِنْدَ رِجْلَيْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

دقاسم نه روایت دې فرمائی چه دام المومنین عائشې رضی الله عنها په خدمت کښې حاضرشوم اوعرض مې ورته اوکړو چه اې موري ماته دنبی علیه السلام او دهغه ددوه ملګرو یعنی ابوبکر رضی الله عنه اوعمر رضی الله عنه قبرونوته مې پریږده (یعنی هغه کمره راته کولاو کړه په کومه کښې چه د قبرونه موجود دې) دادرې واړه قبرونه دزمکې نه نه ډیر لوړ وو اونه دزمکې سره برابر وو بلکه دیوبالښت برابردزمکې نه پورته وو او سرې ګټې پرې خورې شوې وې ابوعلي وئیلی دی چه خلق وائی چه دنبی علیه السلام قبر دټولونه مخکښې دې اودسر مبارک سره ئې نزدې قبردابوبکر دې اودخپوسره ئې نزدې دعمرفاروق رضی الله عنه قبردې دعمرفاروق نه سر درسول پاک صلی الله علیه وسلم دخپونه لاندې دې.

﴿ عن القاسم قال دخلت علی عائشة رضی الله عنها فقلت یا امه اکشفی لی عن قبر رسول الله صلی الله علیه وسلم وصاحبیه رضی الله عنهما فکشفت لی عن ثلاثة قبور لا مشرفة ولا لاطئة مبطوحة ببطحاء العرصة الحمراء ﴾

**شرح الحدیث:**

د عائشې رضی الله عنها وراره قاسم بن محمد فرمائی چه یو ځل عائشې رضی الله عنها ته لاړم (او چونکه هم د

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٥٤٦) (ضعيف)

هغې په حجره کښې د رسول اللهﷺ او شيخينو قبرونه دی چه د هغې طرف ته پرده پرته وه، اوهغې ته مې عرض اوکړو چه مورې! ماته د رسول اللهﷺ اودهغوی د صاحبينو رضي الله عنهما قبرونه اوښايئ، هغوی پرده لرې کړه (١) نو ما درې قبرونه داسې اوليدل چه نه اوچت وو او نه زمکې سره بالکل برابر وو، چه په هغې باندې د مقام عرصه سره کانړی پراته وو، مبطوحه يعنی مفروشه، او عرصه د ځائې نوم دې او بطحاء په معنی د حصباء او الحمراء د بطحاء صفت دې.

《 قال ابو علی : يقال ان رسول اللهﷺ مقدم وابوبكر عند راسه وعمر عند رجليه، راسه عند رجلی رسول اللهﷺ 》 يعنی داسې!

| عمر رضی الله عنه | رسول الله صلی الله علیه وسلم |
|---|---|
| | ابوبکر رضی الله عنه |

او دويم قول په دې کښې دا دې چه د عمر رضي الله عنه قبر د صديق اکبر رضي الله عنه قدمونو مبارکو سره برابر دې داسې!

| | رسول الله صلی الله علیه وسلم |
|---|---|
| عمر رضی الله عنه | ابوبکر رضی الله عنه |

# بَابُ الاِسْتِغْفَارِ عِنْدَ الْقَبْرِ لِلْمَيِّتِ فِي وَقْتِ الاِنْصِرَافِ

## د تدفين نه پس د واپسۍ په وختکښې د مړي دپاره دبخښنې غوښتلو بيان

[٣٢٢١](٢) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بَحِيرٍ، عَنْ هَانِئٍ مَوْلَى عُثْمَانَ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "إِذَا فَرَغَ مِنْ دَفْنِ الْمَيِّتِ، وَقَفَ عَلَيْهِ، فَقَالَ: اسْتَغْفِرُوا لِأَخِيكُمْ، وَسَلُوا لَهُ بِالتَّثْبِيتِ، فَإِنَّهُ الْآنَ يُسْأَلُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: بَحِيرٌ ابْنُ رَيْسَانَ.

دعثمان بن عفان رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام به کله دمړي ددفن کولونه فارغ شونودقبرسره به اودريدو او اوبه ئې فرمائيل: دخپل دې وروړد پاره مغفرت اوغواړی اودده دپاره داستقامت سوال وکړې ځکه چه اوس دده نه تپوس کيدې شی.

---

(١) دا خو د هغه زمانې خبره ده چه د قبرونو طرف ته پرده پرته وه، روستو په دې حجره شريفه کښې مختلف زمانو کښې تعميری تغيرات کيدل د سقوط حائط قصه هم پيښه شوه چه د هغې ذکر په صحيح بخاری ١٨٦/١ کښې هم دې. عمر بن عبدالعزيز رحمه الله د دې قبور ثلاثه نه ګير چاپيره د اوچت ديوال احاطه کړې وه اوس خو دې قبرونو ته رسيدل هم ممکن پاتې نه شو.

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٩٤٠) (صحيح)

**قوله:** ﴿ عن عثمان بن عفان رضي الله عنه قال كان النبي ﷺ اذا فرغ من دفن الميت وقف عليه فقال استغفروا لاخيكم واسالوا له بالتثبيت فانه الان يسئل ﴾

## د تدفين نه پس د مړی دپاره دعا کول:

يعني د رسول الله ﷺ معمول وو چه کله به هغوی د مړی د دفن کولو نه فارغ کيدو نو په قبر باندې به د لږ ساعت دپاره اودريدو او فرمائيل به ئې چه د خپل رور دپاره استغفار او د تثبيت دعا اوکړئ ځکه چه د هغه نه به اوس تپوس کولې شي، "د تثبيت دعا اوکړئ" په دې کښې اشاره ده دې آيت کريمه طرف ته ﴿ يثبت الله الذين امنوا بالقول الثابت في الحيوة الدنيا والآخرة ﴾ د قول ثابت نه مراد کلمه توحيد ده، زمونږ د شيخ رحمه الله وفات په مدينه طيبه کښې شوې وو او تدفين په جنت البقيع کښې اهل بيت ته نزدې، د دفن په وخت د مسجد نبوی ځه أمامان هم موجود وو، د دفن د فراغت نه پس د مسجد نبوی امام شيخ عبدالله خربوش رحمه الله چه د قبر په غاړه تر آخره پورې ناست وو هغوی د رفع يدين سره جهرا د شيخ دپاره دعا اوفرمائيله او باقي اماماں د بقيع په دروازه باندې ولاړ وو او د ملاويدونکو سره ئې تعزيتی جملې استعمالولې، او هم دغه شان د حضرت شيخ کور والا مرحومه، مور د مولانا طلحه چه د هغوی وفات په نظام الدين دهلی کښې شوې وو او د مسجد په يو اړخ کښې ئې تدفين شوې وو، د تدفين نه پس مولانا انعام الحسن صاحب او مولانا افتخار الحسن صاحب کاندهلوی لږ ساعت په قبر باندې ولاړ وو او نور خلق هم، او حضرت جی د مولانا افتخار صاحب نه د تپوس پوښتنې نه بعد رفع يدين سره په خپل ځائې باندې ناست ناست دعا اوکړله، يغفرالله لنا ولهم

## باب كراهية الذبح عند القبر

### د قبر په خوا کښې د ذبح کولو د ممانعت بيان

[٣٢٢٢] (١) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى الْبَلْخِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا عَقْرَ فِي الْإِسْلَامِ"، قَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ: كَانُوا يَعْقِرُونَ عِنْدَ الْقَبْرِ بَقَرَةً أَوْ شَاةً.

دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائی دې: عقربه اسلام کښې نشته دې، عبد الرزاق وئيلی دی چه خلقوبه دجاهليت په وخت کښې د قبرونوسره غواګانې او چيلی ذبح کولې (ديته عقروئيلې شي کوم چه ممنوع دې)

﴿ عن انس رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ لاعقر في الاسلام ﴾

دا هم هغه حديث دې د کوم حواله چه مونږ په کتاب الاضحيه کښې ﴿ نهى رسول الله ﷺ عن معاقرة الاعراب ﴾ الحديث د لاندې ورکړې ده.

### شرح الحديث:

ددې حديث تفسير خپله په کتاب کښې د راوی د طرف نه ذکر کړې شوې دې، ﴿ كانوا يعقرون عند القبر ﴾ يعنی د جاهليت په زمانه کښې به بعضو خلقو د يو لوئې سخی په قبر باندې يو

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٤٧٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٩٧/٣) (صحيح)

ځاروي ذبح کولو سره پريخودلو غوا وغيره د درندګانو او مارغانو د ميلمستيا دپاره، چه څنګه به دوی د خلقو په خپل ژوند کښې ميلمستيا کوله هم دغه شان مونږ د مرګ نه پس هم د هغوی د طرف نه د ځاروو د ضيافت انتظام اوکړو، او بعضو به په دې نيت باندې ذبح کوله کوم چه په هغوی کښې د بعث قائل وو چه د دې صاحب قبر حشر په دې ځاروی باندې سوريدو سره اوشي د قيامت په ورځ، ﴿ والا فيبعث راجلا ﴾ يعنی که مونږ داسې اونکړو نو دې به پيدل ځی، هم د دې رسم جاهليت په ترديد کښې رسول اللهﷺ فرمائی ﴿ لا عقر فی الاسلام ﴾ په کتاب الاضحية کښې يو بل حديث تير شوې دې، ﴿ نهی رسول اللهﷺ عن شريطة الشيطان ﴾ دا حديث هم چونکه د ذبح متعلق دې په دې وجه مونږ په دې باندې تنبيه اوکړه چه د طالبانو په ذهن کښې وی دا احاديث، او په امتحان ورکولو کښې سهولت وی.

## بَابُ الْمَيِّتِ يُصَلَّى عَلَى قَبْرِهِ بَعْدَ حِينٍ

### د څه زمانې تيريدو نه پس په قبربا ندې دجنازې کولو بيان

د دې نه مخکښې هم يو باب تير شوې دې، ﴿ باب الصلوة على القبر ﴾ دلته د ﴿ بعد حين ﴾ قيد دې.

[٣٢٢٣] [1] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ أَبِي الْخَيْرِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "خَرَجَ يَوْمًا، فَصَلَّى عَلَى أَهْلِ أُحُدٍ صَلَاتَهُ عَلَى الْمَيِّتِ، ثُمَّ انْصَرَفَ".

دعقبة بن عامر نه روايت دې فرمائی چه نبي کريمﷺ يوه ورځ دمدينې نه بهر اووتلو او د احد دشهيدانو په قبرونو باندې ئې جنازه وکړله دعامومړودجنازې په شان اوبيا واپس راغی.

**قوله:** ﴿ عن عقبة بن عامرؓ ان رسول اللهﷺ خرج يوما فصلى على اهل احد صلاته على الميت ثم انصرف ﴾ يعنی رسول اللهﷺ يو ځل د شهداء احد په قبرونو باندې هم دغه شان مونځ اوکړو څنګه چه په مړی کولې شی، او د هغې نه روستو په دويم بيان کښې دی چه دا مونځ رسول اللهﷺ اته کاله پس کړې وو ګويا په ١١ هجری کښې.

د دې حديث ذکر په ﴿ باب الشهيد يغسل ﴾ کښې د صلوة على الشهيد په بحث کښې تير شوې دې، وړاندې په روايت کښې دی ﴿ کالمودع للاحياء والاموات ﴾ يعنی د رسول اللهﷺ د احد په شهيدانو باندې مونځ کول د دومره مودې نه پس او خپل وفات ته نزدې په طور د توديع او رخصت وو، د احياء توديع هم او د اموات توديع هم، د احياء توديع خو رسول اللهﷺ په حجة الوداع کښې بار بار اوفرمائيله ﴿ بقوله خذوا عنی مناسککم لعلی لا اراکم بعد عامی هذا ﴾ د حجة الوداع په ډيرو ځايونو باندې رسول اللهﷺ دا جمله ارشاد اوفرمائيله، دا خو شوه توديع داحياء او دا د شهداء احد په قبرونو باندې مونځ کول د امواتو توديع اوګڼړئ. والحديث اخرجه البخاری ومسلم، والنسائی، قاله المنذری

[1]: صحيح البخاري/الجنائز ٧٢(١٣٤٤)، والمناقب ٢٥ (٣٥٩٦)، والمغازي ١٧ (٤٠٤٢)، ٢٧ (٤٠٨٥)، والرقاق ٧ (٦٤٢٦)، ٥٣ (٦٥٩٠)، صحيح مسلم/الفضائل ٩ (٢٢٩٦)، سنن النسائي/الجنائز ٦١ (١٩٥٦)، (تحفة الأشراف: ٩٩٥٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤٩/٤، ١٥٣، ١٥٤) (صحيح)

[۳۲۲۴] (۱) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ حَيْوَةَ بْنِ شُرَيْحٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: "إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى عَلَى قَتْلَى أُحُدٍ بَعْدَ ثَمَانِ سِنِينَ، كَالْمُوَدِّعِ لِلْأَحْيَاءِ وَالْأَمْوَاتِ".

د يزيدبن ابی حبيب نه دتيرشوي روايت په شان روايت منقول دي فرمائی چه نبی عليه السلام داحد په شهيدانو باندې اته کاله پس دجنازې مونځ وکړو ګويا کښې چه نبی عليه السلام د مړو او ژوندو نه رخصتيږي

## بَابٌ فِي الْبِنَاءِ عَلَى الْقَبْرِ

### په قبر باندې د تعمير جوړولو د مما نعت بيان

[۳۲۲۵] (۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي أَبُو الزُّبَيْرِ، أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرًا، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى أَنْ يُقْعَدَ عَلَى الْقَبْرِ، وَأَنْ يُقَصَّصَ، وَيُبْنَى عَلَيْهِ".

دجابر بن عبدالله رضی الله عنه نه روايت دي فرمائی چه دنبی کريم صلي الله عليه وسلم نه مې اوريدل دي چه منع ئې فرمائيلي وه په قبر دکيناستونه اودقبرد پخولونه او په قبرباندې دعمارت جوړولونه

### شرح الحديث:

**قوله:** ﴿ نهی ان يقعد علی القبر وان يقصص ويبنی عليه ﴾

يعنی منع فرمائيلې ده رسول الله صلی الله عليه وسلم په قبر باندې د ناستې نه، ځکه چه په هغې کښې د حق مسلم استخفاف دې او ترک حرمت دې، او وئيلې شوې دی چه د دې نه مراد جلوس عند القبر للاحداد دې، يعنی د غم کولو دپاره هم هلته ناست او د هغه ځائې نه خوزی نه. او وئيلې شوې دی چه د دې نه مراد جلوس للتغوط والحدث دې، يعنی په قبر باندې ناسته کولو سره استنجاء کول، دا د امام مالک رحمه الله طرف ته منسوب دې (۳) احناف وائی چه مطلق جلوس خو مکروه تنزيهی دې، او لاجل الغائط حرام، د امام طحاوی رحمه الله نه هم د حديث معنی کښې قعود لاجل الحدث روايت کړې شوې دې.

وړاندې په حديث کښې دی چه رسول الله صلی الله عليه وسلم د تقصيص دقبر نه هم منع فرمائيلې ده، تقصيص په معنی د تجصيص، جص يعنی نوره او قصه يو څيز دې، يعنی قبر په چونې کلکول، قال الترمذی بعد تخريج الحديث : وقد رخص بعض اهل العلم منهم الحسن البصری فی

---

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۹۹۵۶) (صحيح)

(۲): صحيح مسلم/الجنائز ۳۲ (۹۷۰)، سنن الترمذي/الجنائز ۵۸ (۱۰۵۲)، سنن النسائي/الجنائز ۹۶ (۲۰۲۹)، (تحفة الأشراف: ۲۲۷۴، ۲۷۹۶)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الجنائز ۴۳ (۱۵۶۲)، مسند احمد (۳/۲۹۵، ۳۳۲، ۳۹۹) (صحيح)

(۳) وفي الكوكب ۱/۳۱۹ قال بعضهم هو اي الجلوس علي ظاهره، وقال الطحاوي ان الامام لم يكره الجلوس مطلقا هو كناية عن قضاء الحاجة وقال هو المكروه عندنا الجلوس بمعناه المشهور آهـ وفي هامشه : ووافقه مالك فقال في الموطاء المراد بالقعود الحدث، وقال النووي هذا تاويل ضعيف او باطل، والصواب ان المراد بالقعود الجلوس وهو مذهب الشافعي وجمهور العلماء، وتعقب بان ما قاله مالك ثبت مرفوعا عن زيد بن ثابت رضی الله عنه قال انما نهي رسول الله صلی الله عليه وسلم عن الجلوس علي القبر لحدث غائط او بول اخرجه الطحاوی، د دې نه پس ئې بيا د ازهار نه دا نقل کړی دی چه اولې دا ده چه دواړه دې ممنوع کړې شی، جلوس للحدث د تحريم دپاره او مطلق جلوس د تنزيه دپاره وهذا تفصيل حسن، قاله ابوالطيب)

تطيين القبور، وقال الشافعي لا باس ان يطين القبر، په حاشيه د كوكب كښې دى چه د احنافو په نزد هم د شوافعو په شان ممانعت د تجصيص قبر د دې د تطيين د قبر نه دې ففى شرح السراج للترمذى عن البرجندى : ينبغى ان لا يجصص القبر وما اتطيينه ففى الفتاوى المنصورية لا باس به خلافا لما يقوله الكرخى، وفى المضمرات، المختار انه لا يكره آهـ يعنى په ختې سره كه قبر ليو كړې شى نو په دې كښې هيڅ بدى نشته چه د قبر خاوره په ځائې باندې ولاړه وى، په هوا او بهيدو سره ضائع نه شى او دريم څيز په حديث كښې په قبر باندې د آبادئ كولو نه ممانعت دې، په بذل كښې ليكلې دى نقلا عن القارى چه نهى د بناء نه د كراهت دپاره ده په دې شرط چه هغه مقبره خپل ملك وى، او كه مقبره موقوفه وى نو په هغې كښې د حرمت دپاره دې، توريشتى وائى چه په بناء على القبر كښې دوه احتمالات دى يا خو دا چه په هغې باندې كانړى وغيره كيخودلې شى، دويم دا چه په قبر باندې خيمه قائم كړې شى او دا دواړه ممنوع دى لعدم الفائدة فيه.

[٣٢٢٦](١)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ مُوسَى، وَعَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ عُثْمَانُ: أَوْ يُزَادَ عَلَيْهِ، وَزَادَ سُلَيْمَانُ بْنُ مُوسَى: أَوْ أَنْ يُكْتَبَ عَلَيْهِ، وَلَمْ يَذْكُرْ مُسَدَّدٌ فِي حَدِيثِهِ: أَوْ يُزَادَ عَلَيْهِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: خَفِيَ عَلَيَّ مِنْ حَدِيثِ مُسَدَّدٍ حَرْفُ وَأَنْ.

جابر بن عبد الله رضی الله عنه دتيررروايت په شان روايت بيان كړې دې. امام ابوداود وئيلى دى چه دمسدد په روايت د ،،وان،، لفظ ماته ظاهرنه كړې شو.

**قوله:** ﴿ نهى ان يقعد على القبر وان يقصص ويبنى عليه ﴾﴿ قال عثمان او يزاد عليه ﴾ يعنى د دې جملې زيادت د عثمان په روايت كښې دې د مسدد په روايت كښې نه دې، د دې جملې مطلب په ظاهر كښې دا دې چه د قبر په اوچتوالى كښې زيادت كول په مقدار دشبر سره، ﴿او ان يكتب عليه ﴾ يعنى په يو كانړى باندې د مړى نوم وغيره يا بل څيز د الله او رسول نوم د بركت دپاره ليكلو سره هلته نصب كول مناسب نه دى، قال ابوالطيب السندى فى شرح الترمذى: يحتمل النهى عن الكتابة مطلقا ككتابة اسم صاحب القبر وتاريخ وفاته، او كتابة شئ من القرآن واسماء الله تعالى ونحو ذلک للتبرک لاحتمال ان يوطا او يسقط على الارض فيصير تحت الارجل آهـ په حاشية د ترمذى كښې هم داسې ليكلې شوې دى چه دمنع علت د بې حرمتئ ويره ده لئلا يبول عليه كلب او غيره_ والحديث اخرجه مسلم والترمذى والنسائى وابن ماجة بنحوه.

[٣٢٢٧](٢)حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "قَاتَلَ اللَّهُ الْيَهُودَ، اتَّخَذُوا قُبُورَ أَنْبِيَائِهِمْ مَسَاجِدَ".

دابوهريرة رضی الله عنه نه روايت دې فرمائى چه رسول پاك صلي الله عليه وسلم فرمائيلى دى: يهوديان دي الله تعالى هلاك كړي دخپلو انبياؤ د قبرونونه ئې جوماتونه جوړ كړي دي.

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٢٢٧٤، ٢٧٩٦) (صحيح)

(٢): صحيح البخاري/الصلاة ٥٤ (٤٣٧)، صحيح مسلم/المساجد ٣ (٥٣٠)، سنن النسائي/الجنائز ١٠٦ (٢٠٤٩)، (تحفة الأشراف: ١٣٢٣٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٤٦، ٢٦٠، ٢٨٤، ٢٨٥، ٣٦٦، ٣٩٦) (صحيح)

## شرح الحديث:

قوله: ﴿ "قَاتَلَ اللَّهُ الْيَهُودَ، اتَّخَذُوا قُبُورَ أَنْبِيَائِهِمْ مَسَاجِدَ" ﴾ (١) يعنی الله پاک دې هلاک کړی يهود چه هغوی د خپلو انبياء کرامو ﷺ د قبرونو نه مسجدونه جوړ کړل. يا خو واقعة په قبر باندې مسجد جوړول مراد دی ځکه چه په قبر باندې مسجد جوړ کړې شی نو قبر به په مسجد کښې دننه راشی چه د هغې نه صلوة الى القبور لازميږی. او يا دا چه د بناء مسجد نه مراد هم دا دې قبور انبياء طرف ته مونځ کول والمصنف حمل الحديث على المعنى الاول كم يظهر من الترجمة، كتب الشيخ في البذل: لعنهم رسول الله ﷺ على ذلک لانه يشابه عبادة الاصنام آهـ دا حديث په صحيح مسلم کښې هم دې او په هغې کښې د يهود نه پس د نصارى زيادت دې، په دې باندې هم اشکال دې چه د انبياء دنصارى قبر په زمکه باندې چرته دې؟ د دې جواب دا ورکړې شوې دې چه په يو روايت کښې د انبياءهم نه پس د ﴿ وصالحيهم ﴾ زيادت دې، په دغه زيادت سره اشکال حل کيږی، د انبياء تعلق به د يهودو سره شی او د صالحين تعلق به د نصارى سره. والحديث اخرجه مسلم والنسائي، قاله المنذرى

## بَابٌ فِي كَرَاهِيَةِ الْقُعُودِ عَلَى الْقَبْرِ

### په قبر باندې د کيناستلو د ممانعت بيان

[٣٢٢٨](٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ، حَدَّثَنَا سُهَيْلُ بْنُ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَأَنْ يَجْلِسَ أَحَدُكُمْ عَلَى جَمْرَةٍ فَتُحْرِقَ ثِيَابَهُ حَتَّى تَخْلُصَ إِلَى جِلْدِهِ، خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَجْلِسَ عَلَى قَبْرٍ".

دابوهريرة رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه رسول پاک صلى الله عليه وسلم فرمائيلی دی: که چرې يو کس په تاسو کښې د اور په سکرونه باندې کيني اوجامې ئې اوسوزي اوځرمني ته ئې اور ورسيږي نو دده دپاره خه ده ددې نه چه دې په قبرباني کيني

﴿ لان يجلس احدكم على جمرة الخ ﴾ خو دا خبره چه په تاسو کښې يو انسان په سکروټو کينی او د هغه جامې اوسوزی او د هغې ضرر د هغه ځرمنې ته اورسی دا غوره ده د دې نه چه هغه په قبر باندې کينی، يعنی د انجام اخروی په اعتبار سره

[٣٢٢٩](٣) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا عِيسَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ يَعْنِي ابْنَ يَزِيدَ بْنِ جَابِرٍ، عَنْ بُسْرِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، قَالَ: سَمِعْتُ وَاثِلَةَ بْنَ الْأَسْقَعِ، يَقُولُ: سَمِعْتُ أَبَا مَرْثَدٍ الْغَنَوِيَّ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ

(١) قلت وفي الترمذي ص٤٣ لعن رسول الله ﷺ زائرات القبور والمتخذين عليها المساجد، وفي حديث الباب اتخذوا قبور انبيائهم مساجد فههنا امران اتخاذ المسجد علي القبر معناه ظاهر والامر الثاني اتخاذ القبر مسجدا، وهو يحتمل معنيين ان يسجد لله تعالي متوجها الي القبر تعظيما للقبر بحيث يجعله قبلة والثاني ان يسجد للقبر فالاول شرك خفي والثاني شرك جلي كذا يستفاد من الشروح)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢٦٣٨)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الجنائز ٣٣ (٩٧١)، سنن النسائي/الجنائز ١٠٥ (٢٠٤٦)، سنن ابن ماجه/الجنائز ٤٥ (١٥٦٦)، مسند احمد (٢/٣١١، ٣٨٩، ٤٤٤، ٥٢٨) (صحيح)

(٣): صحيح مسلم/الجنائز ٣٣ (٩٧٢)، سنن الترمذي/الجنائز ٥٧ (١٠٥٠)، سنن النسائي/القبلة ١١ (٧٦١)، (تحفة الأشراف: ١١١٦٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/١٣٥) (صحيح)

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَجْلِسُوا عَلَى الْقُبُورِ، وَلَا تُصَلُّوا إِلَيْهَا".

دابومرثد غنوي رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه درسول پاك صلي الله عليه وسلم نه مې اوريدلي چه فرمائيلي ئې وو: په قبرونو باندې مه كيني اومه قبرونوته مخامخ مونځ كوئ.اخرجه مسلم والنسائي وابن ماجة، قاله المنذرى

﴿ لا تجلسوا على القبور ولا تصلوا اليها ﴾ یعنی نه خو په قبرونو باندې ناسته کولو سره د هغې بې حرمتی کوئ او نه هغې طرف ته مونځ کولو سره د هغې بې ځایه تعظیم، د افراط او تفریط دواړو نه ځان بچ کړئ، په جلوس على القبر باندې کلام په تیر شوی باب کښې تیر شوې دې.اخرجه مسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری

## بَابُ الْمَشْيِ فِي النَّعْلِ بَيْنَ الْقُبُورِ

### د پیزار سره په قبرونو باندې د ګرځیدو بیان

د امام احمد رحمه الله په نزد په قبرستان کښې د څپلو سره ګرځیدل مکروه دی، او د ابن حزم ظاهری رحمه الله په نزد نعل سبتی په څپو کولو سره تلل مکروه دی، ځکه چه په حدیث کښې چه کوم منع ده هغه په سبتی پیزار باندې دې، او د جمهور علماء کرامو او ائمة ثلاثه په نزد په قبرستان کښې د څپلو سره ګرځیدل بغیر د کراهت نه جائز دی، مصنف رحمه الله په دې باب کښې دوه احادیث ذکر کړې دی د ړومبی حدیث نه د حنابله د مسلک تائید کیږی، او د دویم حدیث نه د جمهورو د مسلک یعنی د جواز.

[٣٢٣٠](1) حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ بَكَّارٍ، حَدَّثَنَا الْأَسْوَدُ بْنُ شَيْبَانَ، عَنْ خَالِدِ بْنِ سُمَيْرٍ السَّدُوسِيِّ، عَنْ بَشِيرِ بْنِ نَهِيكٍ، عَنْ بَشِيرٍ مَوْلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ اسْمُهُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ زَحْمُ بْنُ مَعْبَدٍ، فَهَاجَرَ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "مَا اسْمُكَ؟"، قَالَ: زَحْمٌ، قَالَ: بَلْ أَنْتَ بَشِيرٌ، قَالَ: بَيْنَمَا أَنَا أُمَاشِي رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مَرَّ بِقُبُورِ الْمُشْرِكِينَ، فَقَالَ: لَقَدْ سَبَقَ هَؤُلَاءِ خَيْرًا كَثِيرًا، ثَلَاثًا، ثُمَّ مَرَّ بِقُبُورِ الْمُسْلِمِينَ، فَقَالَ: لَقَدْ أَدْرَكَ هَؤُلَاءِ خَيْرًا كَثِيرًا، وَحَانَتْ مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَظْرَةٌ، فَإِذَا رَجُلٌ يَمْشِي فِي الْقُبُورِ عَلَيْهِ نَعْلَانِ، فَقَالَ: يَا صَاحِبَ السِّبْتِيَّتَيْنِ، وَيْحَكَ، أَلْقِ سِبْتِيَّتَيْكَ، فَنَظَرَ الرَّجُلُ، فَلَمَّا عَرَفَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، خَلَعَهُمَا، فَرَمَى بِهِمَا".

بشیر بن نهیك نه روایت څوك چه دنبی علیه السلام ازاد کړې شوې غلام وو، دجاهلیت په زمانه کښې دده نوم زخم وو بیا ئې دنبی علیه السلام سره هجرت اوکړو نبی علیه السلام ترې تپوس اوکړو نوم دې څه دې، ده اووئیل زخم،نبی علیه السلام ورته اووئیل ته بشیر ئې، فرمائی چه زه دنبی علیه السلام سره روان وم په دې وخت کښې نبی علیه السلام دمشرکانو په قبرونو باندې تیرشو وئې فرمائیل داخلق د لوئې کامیابئ نه مخکښې رخصت شوی دی اوداخبره ئې درې ځل اوفرمائیله بیانبی علیه السلام دمسلمانانو دقبرونوپه خوا کښې تیرشو وئې فرمائیز دې خلقو کامیابی حاصله کړې. ده په دې وخت کښې نبی علیه السلام اچانك یوکس اولیدو چه د پیزار سره د قبرونوپه مینځ کښې ګرځیدو نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل اې پیزار والا په تا افسوس دې، پیزار اوباسه، ده چه

(1): سنن النسائي/الجنائز ١٠٧ (٢٠٥٠)، سنن ابن ماجه/الجنائز ٤٦ (١٥٦٨)، (تحفة الأشراف: ١٠٢١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨٣/٥، ٨٤، ٢٢٤) (حسن)

اوکتل نووئي پيژندو چه نبی ﷺ دي نو پيزار ئي اوويستل او وئي غورځول.

﴿ قال بينما انا اماشي رسول الله ﷺ مر بقبور المشركين فقال لقد سبق هؤلاء خيرا كثيرا. ثلاثا، ثم مر بقبور المسلمين فقال لقد ادرك هؤلاء خيرا كثيرا ﴾

بشير بن معبد رضي الله عنه فرمائی چه يو ورځ زه د رسول الله ﷺ سره روان اوم چه رسول الله ﷺ د مشركانو په بعض قبرونو باندي تير شو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه دي خلقو د ځان نه روستو خير كثير پريخودلو او مخكښي لاړل، يعنی هغه ئي حاصل نه کړو دا خبره رسول الله ﷺ دري کرته اوفرمائيله، بيا رسول الله ﷺ د مسلمانانو په بعض قبرونو باندي ورتير شو، د هغوی په باره کښي رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه دي خلقو ته خير كثير ملاؤ شو بيا ناڅاپه د رسول الله ﷺ نظر په يو داسي سړی باندي اولګيدو چه په قبرستان کښي د پيزار سره ګرځيدو، په دي باندي رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ ياصاحب السِّبْتِيَن ﴾ خپل سبتی پيزار اوباسه هلاک شي، هغه چه کله اوکتل چه دا خبره رسول الله ﷺ اوکړه نو فورا ئي ويستلي او وي غورځولي. اخرجه النسائي وابن ماجة قاله المنذری

[۳۲۳۱]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ يَعْنِي ابْنَ عَطَاءٍ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا وُضِعَ فِي قَبْرِهِ، وَتَوَلَّى عَنْهُ أَصْحَابُهُ، إِنَّهُ لَيَسْمَعُ قَرْعَ نِعَالِهِمْ".

انس رضي الله عنه د نبی ﷺ نه روايت کوی چه فرمائيلی ئي دی کله چه مړ په خپل قبرکښي کيخودلي شي او دده ملګری دده د دفن کولو نه پس واپس روان شی نو هغه د دوی د پيزار کشار آوری.

﴿ عن انس رضي الله عنه عن النبی ﷺ الخ ﴾ يعنی رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه کله مړی لره دفن کولو نه پس د هغه متعلقين واپس کيږی ﴿ انه ليسمع قرع نعالهم ﴾ نو هغه مړي په قبر کښي د هغوی د څپلو د کشاری آواز اوری.

د دي نه معلومه شوه چه مشی بين القبور فی النعل جائز ده لکه چه د جمهورو مذهب دي، او د رومبی حديث جواب د جمهورو د طرف نه په ډيرو طريقو ورکړي شوي دي اول دا چه هغه په اولويت باندي محمول دي، او دا د جواز په بيان باندي، يا دا چه په هغه حديث کښي نهی د خيلاء د وجي نه وه چه هغه سړي سبتی څپلئ په خپو کړي په تکبر روان وو، په هغه زمانه کښي به سبتی پيزار غوره شمير کيدلو، يعنی د څرمني پيزار صفا چه په هغي باندي ويښته نه وی، يا دا چه هلته کښي نهی د قذر د وجي نه وه، د هغه پيزار به ناپاک وو، والله تعالی اعلم بالصواب

والحديث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، قاله المنذری.

[1] ): صحيح البخاري/الجنائز ٦٧ (١٣٣٨)، ٨٦ (١٣٧٣)، صحيح مسلم/الجنة ١٧ (٢٨٧٠)، سنن النسائي/الجنائز ١٠٨ (٢٠٥١)، (تحفة الأشراف: ١١٧٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢٦٦٣، ٢٣٣)، ويأتي هذا الحديث في السنة (٤٧٥١، ٥٧٥٢) (صحيح)

## بَابٌ فِي تَحْوِيلِ الْمَيِّتِ مِنْ مَوْضِعِهِ لِلْأَمْرِ يَحْدُثُ

### د ضرورت په وجه مړي د قبر نه د ویستلو بیان

د دې نه مخکښې باب تیر شوي دي ﴿ باب المیت یحمل من ارض الی ارض ﴾ وتقدم هناک بیان الفرق بین الترجمتین.

[۳۲۳۲](۱) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ يَزِيدَ أَبِي مَسْلَمَةَ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: "دُفِنَ مَعَ أَبِي رَجُلٌ، فَكَانَ فِي نَفْسِي مِنْ ذَلِكَ حَاجَةٌ، فَأَخْرَجْتُهُ بَعْدَ سِتَّةِ أَشْهُرٍ، فَمَا أَنْكَرْتُ مِنْهُ شَيْئًا، إِلَّا شُعَيْرَاتٍ كُنَّ فِي لِحْيَتِهِ مِمَّا يَلِي الْأَرْضَ".

دجابر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائي چه زما دپلار سره یو بل کس دفن کړې شوي وو اوزما په زړه کښې دا ارمان وو چه جدائي کرم نوشپږ میاشتې پس مې دقبر نه وویستو دهغه په هیڅ یوڅیز کښې تبدیلي نه وه راغلي البته دګیري یوڅو ویښته چه دزمکې سره لګیدلي وو دهغوی حالت بدل شوي وو.

﴿ عن جابر رضی الله عنه قال دفن مع ابی رجل فکان فی نفسی من ذلک حاجة ﴾

جابر رضی الله عنه فرمائي چه زما والد صاحب چه په جنګ احد کښې شهید شوي وو، د هغوی سره یو بل مړې هم دفن کړې شوي وو په یو قبر کښ، هغه فرمائي چه زما په زړه کښې د دې احساس وو (یعني هغوی غوښتل چه د هغوی پلار دې په خپل قبر کښې ځانله وی) هغوی فرمائي چه ما د هغوی بدن د قبر نه شپږ میاشتې پس راویستلو، نو ما د هغوی په بدن کښې هیڅ تغیر بیا نه موندلو سوا د هغوی د ګیرې د څو ویښتو نه چه د زمکې سره یو ځائې شوې وو.

په دې حدیث کښې تحویل د میت پس د دفن نه ذکر شوې دې، په دې کښې مذاهب وغیره په ړومبی باب کښې تیر شوې دی.

## بَابٌ فِي الثَّنَاءِ عَلَى الْمَيِّتِ

### د مړي د تعریف کولو بیان

[۳۲۳۳](۲) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَامِرٍ، عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "مَرُّوا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِجَنَازَةٍ، فَأَثْنَوْا عَلَيْهَا خَيْرًا، فَقَالَ: وَجَبَتْ، ثُمَّ مَرُّوا بِأُخْرَى، فَأَثْنَوْا عَلَيْهَا شَرًّا، فَقَالَ: وَجَبَتْ، ثُمَّ قَالَ: إِنَّ بَعْضَكُمْ عَلَى بَعْضٍ شُهَدَاءُ".

ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائي دنبی علیه السلام په خوا کښې یوه جنازه تیره شوه اودهغې تعریف ئې کور نبی علیه السلام اوفرمائیل واجب شو (بخشش اوجنت) بیایوه بله جنازه دهغه په خواه کښې تیره کړې شوه هغوی ددغې جنازې بد وئیل نبی علیه السلام اوفرمائیل واجب شو (دوزخ) اوونې فرمائیل په تاسو کښې هریو کس په بل باندې ګواه دې.

۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۱۱۰) (صحیح الإسناد)

۲): سنن النسائي/الجنائز ۵۰ (۱۹۳۵)، (تحفة الأشراف: ۱۳۵۳۸)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الجنائز ۲۰ (۱۴۹۱)، مسند احمد (۲/۲۶۱، ۴۶۶، ۴۷۰، ۴۹۹، ۵۲۸) (صحیح)

﴿عن ابی هریرة رضی الله عنه قال مروا علی رسول الله ﷺ بجنازة فاثنوا علیها خیرًا فقال وجبت، ﴾ یعنی د رسول الله ﷺ مخکښې خلقو یو جنازه یوړه حاضرینو د هغه مړی نیکی بیان کړه نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د هغه دپاره جنت واجب شو، بیا په بل وخت کښې یوه بله جنازه تیره شوه د هغوی مخې ته خلقو د هغه مړی شر بیان کړو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل د هغه دپاره جهنم واجب شو. بیا رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه بیشکه بعض مسلمانان د نورو مسلمانانو په حق کښې گواهان دی، یعنی داسې گواهان چه د هغوی گواهی د الله پاک په نزد معتبر ده، او د صحیحینو په روایت کښې دی ﴿انتم شهداء الله فی الارض﴾ وفی روایة ﴿المومنون شهداء الله فی الارض﴾ د دې حدیث په شرح کښې ملا علی قاری رحمه الله فرمائی چه دې حضراتو چه د جنازې په باره کښې کوم شهادت ورکړې وو په هغې باندې رسول الله ﷺ د دې گواهانو تزکیه اوفرمائیله نو اوس ظاهره خبره ده چه د صحابه کرامو په شان خلقو شهادت وی او بیا د رسول الله ﷺ په شان انسان د هغه گواهانو تزکیه کوی نو یقینا د هغې نفع او اثر د مشهود له په حق کښې ښکاره کیدل یقینی دی.

د دې نه معلومه شوه چه د دیانت دارو او نیکو خلقو گواهی د یو مړی په باره کښې د خیر یا د شر د الله پاک په نزد معتبر ده اګر چه د واقع خلاف وی، الله پاک د مومنانو د گواهئ لحاظ ساتی (خو د خالص دنیادارو خلقو گواهی نه ده مراد) او د دې تائید د دې نه کیږی چه یو ځل داسې اوشو چه صحابه کرامو رضی الله عنهم د رسول الله ﷺ مخکښې د یوې جنازې تعریف اوفرمائیلو، لږ ساعت پس جبرائیل علیه السلام رسول الله ﷺ ته تشریف راوړو او هغوی اوفرمائیل یا محمد ان صاحبکم لیس کما یقولون الخ....یعنی دا مړې داسې نه دې څنګه چه دا خلق د هغه په باره کښې وائی ځکه چه د هغه ظاهری حالت بل څه وو او باطنی بل څه، ولکن الله صدقهم فیما یقولون وغفرله مالا یعلمون، یعنی کومه نیکی چه واقعی په دې مړی کښې وه کومه چه صحابه کرامو رضی الله عنهم بیان کړې وه الله پاک په هغه نیکئ کښې د صحابه کرامو رضی الله عنهم تصدیق کولو سره، او د کوم څیز چه دوی ته خبر نه وو د هغې معاف کولو سره د شهادت موافق معامله اوکړله (بذل) د مخلوق وینا د الله پاک اعلان دې، یعنی کوم انسان ته چه ټول خلق ښه وائی نو هغه انشاء الله ښه دې، یا کم از کم الله پاک د هغه سره د ښه خلقو معامله کوی. والحدیث اخرجه النسائی، وقداخرجه البخاری ومسلم والنسائی من حدیث ثابت البنانی عن انس رضی الله عنه، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي زِيَارَةِ الْقُبُورِ
## د قبرونو د زیارت کولو بیان

په دې سلسله کښې مصنف رحمه الله دوه بابونه قائم کړی دی، دا ړومبې باب په حق الرجال کښې دې، دویم باب په حق د نساء کښې دې، د دې نه په مخکښې باب کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی ﴿ نهیتکم عن زیارة القبور فزوروها فان فی زیارتها تذکرة ﴾ یعنی رسول الله ﷺ فرمائی چه ما تاسو ټول قبرستان ته د تلو نه منع کړی وئ خو اوس وایم چه هلته ځائې ځکه چه په زیارة قبور سره د خپل مرګ او د آخرت یاد تازه کیږی.

[٣٢٣٤]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ كَيْسَانَ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "أَتَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبْرَ أُمِّهِ، فَبَكَى وَأَبْكَى مَنْ حَوْلَهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اسْتَأْذَنْتُ رَبِّي تَعَالَى عَلَى أَنْ أَسْتَغْفِرَ لَهَا، فَلَمْ يُؤْذَنْ لِي، فَاسْتَأْذَنْتُ أَنْ أَزُورَ قَبْرَهَا، فَأُذِنَ لِي، فَزُورُوا الْقُبُورَ، فَإِنَّهَا تُذَكِّرُ بِالْمَوْتِ".

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه نبی علیه السلام دخپلې مور دقبر زیارت اوکړو وئي ژړل اونور خلق ئي هم وژړول څوك چه بده خواته وو نبی علیه السلام اوفرمائیل مادخپل رب نه اجازت وغوښتو چه زه دخپلې موردپاره دبخښني دعا وغواړم لیکن ماته اجازت اونکړې شو مادخپل رب نه اجازت اوغوښتو چه زه دخپلې مور دقبر زیارت اوکړم نواجازت راته راکړې شو او مونږ ته ئي اوفرمائیل تاسو د قبرونوزیارت کوئ ځکه چه په دې سره مرګ رایادیږي.

[٣٢٣٥] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا مُعَرِّفُ بْنُ وَاصِلٍ، عَنْ مُحَارِبِ بْنِ دِثَارٍ، عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَهَيْتُكُمْ عَنْ زِيَارَةِ الْقُبُورِ، فَزُورُوهَا، فَإِنَّ فِي زِيَارَتِهَا تَذْكِرَةً".

ابوبریدة دخپل پلارنه روایت کوی فرمائی چه رسول الله فرمائیلی دی ماتاسو د قبرونودزیارت کولونه منع کړې وي مګر اوس زیارت کوئ ځکه چه په دې سره مرګ او اواخرت رایادیږي.

په دې حدیث کښې ناسخ او منسوخ دواړه جمع دی، رومبې زیارت قبور ممنوع وو، روستو رسول الله صلی الله علیه وسلم د دې نه صرف اجازت ورکړو بلکه ترغیب ئي ورکړو، او دا دواړه خبرې خپله په دې حدیث کښې جمع دی، د دې حدیث په شرح کښې شارحینو د زیارة القبور للرجال په باره کښې د علماء کرامو اجماع لیکلې ده خو په دې کښې لږ اختلاف دې کوم چه به وړاندې راشی. خو د زنانو په باره کښې اختلاف دې چه په دې اجازت کښې هغوی هم داخلې دی یا نه؟ د جمهورو په نزد چه په هغوی کښې امام شافعی رحمه الله او مالك رحمه الله هم دې په دې کښې زنانه هم داخلې دی، د احناقو اصح قول هم دا دې دپاره د بوډئ ګانو زنانو دون الشاب وان قیل بالجواز مطلقا ایضا وسیاتی المزید علیه، د امام احمد رحمه الله نه په دې کښې دوه روایتونه دی مصنف رحمه الله د زیارة النساء دپاره ځانله مستقل باب قائم کولو سره په هغې کښې چه کوم حدیث ذکر کړې دې هغه د منع دې ﴿ لعن رسول الله صلی الله علیه وسلم زائرات القبور والمتخذین الخ ﴾ د مصنف رحمه الله میلان د عدم جواز طرف ته معلومیږي. وفی الاوجز ٥٣١/٢ قال الحافظ قال النووی تبعا للعبدری والحازمی وغیرهما : اتفقوا علی ان زیارة القبور للرجال جائزة.... كذا اطلقوا وفیه نظر، حافظ وائی چه په دې کښې د مړو په حق کښې هم اختلاف روایت کړې شوې دې پس په مصنف ابن ابی

شیبة کښې د ابن سیرین، نخعی او شعبی رحمهم الله نه د کراهت روایت کړې شوې دې، قال الحافظ : وکان هؤلاء لم یبلغهم الناسخ، او د دې بالمقابل د ابن حزم رحمه الله په نزد زیارة قبور واجب دې

[1]): صحیح مسلم/الجنائز ٣٦ (٩٧٦)، سنن النسائي/الجنائز ١٠١ (٢٠٣٦)، سنن ابن ماجه/الجنائز ٤٨ (١٥٧٢)، (تحفة الأشراف: ١٣٤٣٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٤١/٢) (صحیح)

اګر چه په عمر کښې يو ځل وی،
وفی الشرح الکبير من فروع المالکية. جاز زيارة القبور بل هی مندوبة بلا حد بيوم او مقدار ما يمکث عندها، قال الدسوقی: ذکر فی المدخل فی زيارة النسآء للقبور ثلاثة اقوال المنع والجواز بشرط الستر والتحفظ والثالث الفرق بين المتجالة والشابة اه، وفی الدرالمختار لا بأس بزيارة القبور ولو للنسآء، قال ابن عابدين قوله لا باس بل تندب کما فی البحر، وقوله ولو للنساء قيل تحرم عليهن والاصح ان الرخصة ثابتة، وجزم فی شرح المنية بالکراهة، وقال الخير الرملی ان کان ذلک لتجديد الحزن والبکاء علی ما جرت به عاتهن فلا تجوز، وعليه حمل الحديث اللعن، وان کان للاعتبار والترحم فلا باس اذا کن عجائز، ويکره اذا کن شواب کحضور الجماعة فی المسجد، قال ابن عابدين: وهو توفيق حسن آهـ حضرت سهارنپوری په بذل کښې د زنانو په حق کښې جواز ته ترجيح ورکړې ده بشرط ارتفاع موانع مثلا جزع فزع التبرج بزينة او اضاعت حق زوجيت وغيره، د بعضو رواياتو په بناء، پس د مسلم په روايت کښې دی چه عائشې ﷺ رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه زه د زيارت قبور په وخت کښې کومه دعا لولم نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل قولی السلام علی اهل الديار من المومنين والمسلمين ويرحم الله المستقدمين منا والمستاخرين وانا ان شاء الله بکم للاحقون..... او هم دغه شان د حاکم روايت دې چه فاطمې ﷺ به د خپل تره حمزه ﷺ د قبر زيارت هره جمعه کولو ﴿فتصلی وتبکی عنده﴾ حضرت فرمائی چه د زيارت قبور علت د مرګ ياديدل بيان کړې شوې دی او د دې ضرورت ټولو ته دې سړو او زنانو دواړو ته.

او په دې باندې هم ځان پوهول پکار دی چه دا خبره د زيارت قبور للنسآء په باره کښې ده او د اتباع النساء الجنائز په باره کښې نه ده (د زنانو جنازې سره قبرستان ته تلل) هغه جائز نه دی، وقد تقدم باب اتباع النساء الجنائز.

حديث ابی هريرة اخرجه مسلم والنسائی وابن ماجة، وحديث بريدة ﷺ اخرجه مسلم والنسائی بنحوه، قاله المنذری

## بَابٌ فِي زِيَارَةِ النِّسَاءِ الْقُبُورَ
### د ښځو دپاره د قبرونو د زيارت کولو بيان

[۳۲۳۶](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُحَادَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا صَالِحٍ، يُحَدِّثُ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَائِرَاتِ الْقُبُورِ، وَالْمُتَّخِذِينَ عَلَيْهَا الْمَسَاجِدَ وَالسُّرُجَ".

سنن الترمذی/الصلاة ۱۲۲ (۳۲۰)، سنن النسائی/الجنائز ۱۰۴ (۲۰۴۵)، سنن ابن ماجه/الجنائز ۴۹ (۱۵۷۵)، (تحفة الأشراف: ۵۳۷۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۲۲۹، ۲۸۷، ۳۲۴، ۳۳۷) (ضعيف)

د ابن عباس نه روايت دې فرمائی چه نبی ﷺ لعنت وئيلې دې په هغه ښځه باندې څوک چه د قبرونو زيارت کوی او څوک چه د قبرونو نه جوماتونه جوړ کړې او هلته ډيرې بلوی.

(1): صحيح مسلم/الجنائز ۳۶ (۹۷۷)، والأضاحي ۵ (۱۹۷۷)، والأشربة ۶ (۱۹۹۹)، سنن النسائي/الجنائز ۱۰۰ (۲۰۳٤)، الأضاحي ۳۶ (٤٤٤١)، الأشربة ٤۰ (٥٦٥٤، ٥٦٥٥، ٥٦٥٦، ٥٥٥٧)، (تحفة الأشراف: ۲۰۰۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵/۳۵۰، ۳۵۵، ۳۵٦، ۳۵۷، ۳٦۱) (صحيح)

## بَابُ مَا يَقُولُ إِذَا زَارَ الْقُبُورَ أَوْ مَرَّ بِهَا

### د قبرستان سره د تیریدو په وخت کښې څه ویل پکاردي؟

[۳۲۳۷]([1]) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "خَرَجَ إِلَى الْمَقْبَرَةِ، فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ دَارَ قَوْمٍ مُؤْمِنِينَ، وَإِنَّا إِنْ شَاءَ اللَّهُ بِكُمْ لَاحِقُونَ".

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام مقبرې ته لاړو اووئې فرمائیل اې د مومنانو کورنو والاپه تاسو دې سلام وي اومون. انشاء الله ستاسو سره ملاقات کونکی یو.

﴿ عن ابی هریرة رضی الله عنه ان رسول الله صلی الله علیه وسلم خرج الی المقبرة فقال السلام علیکم دار قوم مومنین وانا ان شاء الله بکم لاحقون ﴾

په دې دعا کښې په ﴿ ان شاء الله ﴾ باندې شراحو کلام کړې دې چه دا استثناء د شک په طور نه ده ځکه چه مرګ خو یقینی دې بلکه دا لفظ متکم دکلام د تحسین په طور باندې دې ذکر کوی، او دا هم وئیلې شوې دی چه کله رسول الله صلی الله علیه وسلم قبرستان ته داخل شو نو ګویا دا لفظ د دې قسم خلقو په باره کښې د هغوی د ایمان د توقع دپاره راوړلې شو، او وئیلې شوې دی چه دا استثناء د نفس موت په اعتبار سره نه ده بلکه د موت علی الایمان په اعتبار سره ده چه انشآء الله مونږ به هم په ایمان باندې د خاتمې نه پس هم تاسو سره شامل شو، والحدیث اخرجه مسلم والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری

## بَابُ الْمُحْرِمِ يَمُوتُ كَيْفَ يُصْنَعُ بِهِ

### څوک چه د احرام په حالت کښې وفات شي نو څه سره کول پکاردي؟

[۳۲۳۸]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرَجُلٍ، وَقَصَتْهُ رَاحِلَتُهُ، فَمَاتَ وَهُوَ مُحْرِمٌ، فَقَالَ: كَفِّنُوهُ فِي ثَوْبَيْهِ، وَاغْسِلُوهُ بِمَاءٍ وَسِدْرٍ، وَلَا تُخَمِّرُوا رَأْسَهُ، فَإِنَّ اللَّهَ يَبْعَثُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يُلَبِّي"، قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ، يَقُولُ فِي هَذَا الْحَدِيثِ: خَمْسُ سُنَنٍ كَفِّنُوهُ فِي ثَوْبَيْهِ، أَيْ يُكَفَّنُ الْمَيِّتُ فِي ثَوْبَيْنِ وَاغْسِلُوهُ بِمَاءٍ وَسِدْرٍ، أَيْ إِنَّ فِي الْغَسَلَاتِ كُلِّهَا سِدْرًا، وَلَا تُخَمِّرُوا رَأْسَهُ، وَلَا تُقَرِّبُوهُ طِيبًا، وَكَانَ الْكَفَنُ مِنْ جَمِيعِ الْمَالِ.

دابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام ته یوکس راوړې شو چه اوښ دهغه ورمی مات کړې وو اوداحرام په حالت کښې وفات شوې وونبی علیه السلام اوفرمائیل ده ته دده په

[1]: صحیح مسلم/الطهارة ۱۲ (۲۴۹)، سنن النسائي/الطهارة ۱۱۰ (۱۵۰)، سنن ابن ماجه/الزهد ۳۶ (۴۳۰۶)، (تحفة الأشراف: ۱۴۰۸۶)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الطهارة ۶ (۲۸)، مسند احمد (۲/۳۰۰، ۴۰۸) (صحيح)

[2]: صحیح البخاري/الجنائز ۱۹ (۱۲۶۵)، ۲۱ (۱۲۶۷)، جزاء الصيد ۲۰ (۱۸۴۹)، ۲۱ (۱۸۵۰)، صحيح مسلم/الحج ۱۴ (۱۲۰۶)، سنن الترمذي/الحج ۱۰۵ (۹۵۱)، سنن النسائي/الجنائز ۴۱ (۱۹۰۵)، المناسك ۴۷ (۲۷۱۴)، ۹۷ (۲۸۵۶)، ۱۰۱ (۲۸۶۱)، سنن ابن ماجه/المناسك ۸۹ (۳۰۸۴)، (تحفة الأشراف: ۵۵۸۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۲۱۵، ۲۶۶، ۲۸۶)، سنن الدارمي/المناسك ۳۵ (۱۸۹۴) (صحيح)

دي دواړو جامو کښې کفن ورکړئ (لنګ او څادر) او ده - ته دبيرو دپاڼړو په اوبو باندې غسل ورکړئ او سرئې په څه شي باندې پټ نه کړئ ځکه چه دقيامت په ورځ به الله تعالى ده لره دلبيك وئيلو په حالت کښې راپورته کوي. ابوداود وائی ما دامام احمد بن حنبل نه اوريدلی دی چه وئيل ئې په دې حديث کښې پنځه سنتونه دی يوخودا دې چه په دوه جامو کښې کفن ورکول دويم دبيرو په اوبو باندې غسل ورکول يعنی په هر يوغسل کښې دبير و پاڼړي په اوبو کښې شاملول پکاردي دريم داحرام والاکس سرنه پټول څلورم خوشبونه لګول پنځم دټول مال نه کفن ورکول.

يعنی چه د يو سړی د احرام په حالت کښې وفات اوشی نو د هغه سره به د محرم معامله کولې شی که د غير محرم په شان؟ د شوافعو او حنابله او اهل ظواهر په نزد به هغه سره د محرم معامله کولې شی، يعنی عدم تطييب او عدم تخمير راس يعنی د کفن نه به د هغه سر ښکاره پريخودلې کيږی او خوشبوئی به هم هغه ته نه شی نزدې کولې، د دې دواړو امامانو استدلال د حديث الباب نه دې چه د هغې مضمون دا دې: ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته يو داسې سړې راوستلې شو چه د هغه سټ د هغه سورلئ مات کړې وو، يعنی د سورلئ نه غورځيدو سره د هغه سټ مات شوې وو او وفات شوې وو او هغه په حالت د احرام کښې وو. رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل چه دې هم د دې احرام په کپړو کښې کفن کړئ او غسل ورته ورکړئ او د دهٔ سر مه پټوئ ﴿ فان الله يبعثه يوم القيامة يلبى ﴾ دا سړې به د قيامت په ورځ باندې تلبيه ويونکې پاسی يعنی د احرام په حالت کښې.

د احنافو او د مالکيانو په نزد به د دې سړی سره هم هغه معامله کولې شی کومه چه د غير محرم سره کولې شی ځکه چه احرام يو عمل دې او په مرګ باندې ټول اعمال منقطع کيږی لکه چه د مشهور حديث نه ثابته ده[1] پاتې شو دا حديث نو دا محمول دې خاص هم د هغه سړی په حق کښې، او دليل دخصوصيت د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا قول دې ﴿ فانه يبعث يلبى ﴾ د بل محرم په باره کښې دا هرګز نه شی وئيلې کيدې چه ﴿ انه يبعث يلبى ﴾ دا خو د اخبار بالغيب د قبيلې نه دې، دا حديث مصنف رحمه الله خو راوړې دې په کتاب الجنائز کښې او امام ترمذی رحمه الله په کتاب الحج کښې او امام بخاری په دواړو ځايونو کښې.

والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری

[1] اذا مات ابن ادم انقطع عنه عمله الا عن ثلاث صدقة جارية او علم ينتفع به او ولد صالح يدعو له، قال الزيلعي رواه مسلم وابوداؤد والنسائي في الوصايا والترمذي في الاحكام).

[۳۲۳۹](١) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ عَمْرٍو، وَأَيُّوبَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ نَحْوَهُ، قَالَ: وَكَفِّنُوهُ فِي ثَوْبَيْنِ. قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ سُلَيْمَانُ: قَالَ أَيُّوبُ: ثَوْبَيْهِ، وَقَالَ عَمْرٌو: ثَوْبَيْنِ، وَقَالَ ابْنُ عُبَيْدٍ: قَالَ أَيُّوبُ: فِي ثَوْبَيْنِ، وَقَالَ عَمْرٌو: فِي ثَوْبَيْهِ، زَادَ سُلَيْمَانُ وَحْدَهُ: وَلَا تُحَنِّطُوهُ.

دابن عباس رضی الله عنه نه دتیر روایت په شان روایت منقول دي مګردديي اضافي سره چه کفن ورته ورکړئ په دوه جاموکښې ابوداود وائی دخپل شیخ سلیمان نه مې اوریدلی دی هغه دایوب نه چه ددوه جاموذکرئې کوو. ابو داود وائی ایوب دسلیمان نه .ثوبیه،، لفظ نقل کړې دې اوعمرو دثوبین لفظ نقل کړې دې أبوعبیده وئیلی دی چه دایوب په روایت کښې ئې ثوبین لفظ دې اودعمرو په روایت کښې ئې ثوبيه لفظ دې اوسلیمان ورسره دا اضافه کړې ده چه خوشبو وربانديې مه لګوئ.

[۳۲۴۰](٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ نَحْوَهُ، بِمَعْنَى سُلَيْمَانَ: فِي ثَوْبَيْنِ.

دابن عباس رضی الله عنه نه دتیر روایت په شان روایت منقول دې لکه څرنګه چه دسلیمان نه ئې ثوبین لفظ نقل کړې شوې دې،

[۳۲۴۱](٣) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: وَقَصَتْ بِرَجُلٍ مُحْرِمٍ نَاقَتُهُ، فَقَتَلَتْهُ، فَأُتِيَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "اغْسِلُوهُ وَكَفِّنُوهُ وَلَا تُغَطُّوا رَأْسَهُ، وَلَا تُقَرِّبُوهُ طِيبًا، فَإِنَّهُ يُبْعَثُ يُهِلُّ".

دابن عباس نه روایت دې فرمائي يوکس چه په احرام کښې وو اوښې دهغه څټ مات کړو او مړ شو اونبی علیه السلام ته راوړلې شونبی علیه السلام اوفرمائیل ده ته غسل ورکړئ اوکفن ورکړی اوسرئې مه پټوئ اودده خواته نزدې خوشبو مه وروړئ ځکه چه دې به دقیامت په ورځ لبیک ویونکې راپورته کولې شي.

الحمد لله کتاب الجنائز پوره شو او د دې خاتمه هم ماشآء الله په داسې حدیث باندې اوشوه چه په هغې کښې په ایمان باندې د خاتمې زیرې دې ځه چه مو اولیکل الله پاک دې قبول کړی او زمونږ د ټولو دې په ایمان باندې خاتمه بالخیر اوفرمائی. آمین

آخر کتاب الجنائز

[الحمدلله! شپږم جلد ختم شو.]

١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۵۴۳۷، ۵۵۸۲) (صحیح)
٢): انظر حدیث رقم: (۳۲۳۸)، (تحفة الأشراف: ۵۵۸۲) (صحیح)
٣): انظر حدیث رقم: (۳۲۳۸)، (تحفة الأشراف: ۵۴۹۷) (صحیح)